# الدر المنضود

على

# سنن أبي داود

افادات

**حضرت مولانا محمد عاقل صاحب**

صدر مدرس مظاہر العلوم سہارنپور ہند

خصوصیات



# الدر المنضود

فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات**:- حضرت مولانا محمد عاقل صیب

صدر مدرّس مظاهر العلوم سهارنپور (هند)

**مترجمین**:

[ رفقاء ] دار التصنيف والتحقيق

**زیر نګرانی**

**مولانا شاه فیصل** فاضل وفاق المدارس

**پښتو............................اول جلد**

**خصوصیات**

① دکتاب په اول کښې د اصول حدیث مفیده مقدمه.
② د بذل المجهود شرح أبي داود عربی شرحې خلاصه اونجوړ
③ د متن ټولو احادیث ته اعراب ورکول
④ د هرکتاب په اول کښې هغې سره متعلقه ضروری مباحث.
⑤ د هر حدیث تخریج د مصدر، کتاب او رقم په حوالې سره.
⑥ د مشکلو لغاتو حل.
⑦ په فقهي مباحثو کښې د مذاهبو بیان.
⑧ دفریق مخالف دلائل
⑨ د فریق مخالف د دلائلو څخه جوابونه.
⑩ د مذهب حنفی دلائل او وجوه ترجیح

**خورونکی**

**فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور**

د کتاب نوم: الدر المنضود فی حل سنن أبی داؤد
مؤلف: حضرت مولانا محمد عاقل صاحب دامت برکاتهم
زیرنگرانی:- مولانا شاہ فیصل فاضل وفاق المدارس
خورونکی: فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

دملاویدو پتې

- مکتبه فخر الدین رازی هرات [نمائندہ فیصل کتبخانه درهرات]
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موے مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد
- نعمت کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- حقانیه کتب خانه گردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- کودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

خپرونکي

# فیصل کتب خانه

مدینه تاور محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست ابواب جلد اول

.....

## تقریظ

### دمخلص دوست صاحب التالیف والتعالیق محترم مولانا الحاج ډاکټر تقی الدین ندوی مظاهری

استاد حدیث جامعة الامارات العربية المتحده. العین

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله رب العالمین والصلوة والسلام علی سید المرسلین

محمد واله واصحابه اجمعین ومن تبعهم باحسان الی یوم الدین

زما دپاره د سعادت او خوشحالئ مقام دې چه د فاضل ګرامی محترم مولانا محمد عاقل صاحب په قیمتی کتاب **الدر المنضود علی سنن ابی داؤد** یعنی په تقریر د ابوداؤد شریف باندې څو کرښې اولیکم، د سنن ابوداؤد چه په صحاح سته کښې کوم مقام دې هغه د اهل علم نه پټ نه دې، په دې وجه زمونږ په لویو دینی مدارسو کښې چرته چه د دوره حدیث اهتمام دې سنن ابوداؤد ته په تدریسی لحاظ سره ډیر اهمیت حاصل دې، د حضرت خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله په نزد ددې کتاب سخت اهتمام وو، په سنن ابی داؤد باندې د علماء کرامو د ډیرو شرحو او حاشیو باوجود[۱] حضرت سهارنپوری رحمه الله د یو جامع شرح ضرورت محسوس کړو چه ددې ټولو خلاصه وی، او چه کوم مشکل مقامات قابل حل پاتې شوی وی دهغې تشریح اوکړې شی، حضرت سهارنپوری رحمه الله ددې عظیم الشان کار شروع هغه وخت اوفرمائیله چه دعمر شریف اکثر حصه ئې تیره شوې وه، او خپل شاګرد رشید حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب رحمه الله ئې په دې کار کښې خپل ځان سره شریک کړو، پس د استاذ او د شاګردد مسلسل لسو کالو اوپنځو میاشتو دسخت محنت نه پس دا شرح په مدینه طیبه علی صاحبها الصلوة والسلام کښې تکمیل ته اورسیده، کومه چه په هندوستان کښې په پنځو غټوغټو جلدونوکښې شائع شوې ده،اوپه آخرکښې د استاد محترم حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله په خصوصی عنایت سره د قاهرې نه په شلو جلدونو کښې د شیخ الحدیث رحمه الله په حواشی سره شائع شوه، نا چیز بنده ته هم تر د دوؤ کالوپورې دهغې دطباعت اودحواشی په ترتیب وغیره کښې د اشتغال سعادت حاصل شو.

حقیقت دا دې چه هندوستانی علماؤ خصوصا زمونږ د اکابرینو د طرف نه چه په علم حدیث باندې کوم تصنیفات وجود ته راغلی دی په هغې کښې فنی لحاظ سره دې کتاب ته ډیر اهمیت حاصل دې چه دهغې اعتراف د مصر او شام لوئې لوئې علماء کرامو هم کړې دې.

په بذل المجهود کښې په بعض مقاماتو باندې ډیر ژور بحثونه او ګران مسائل راغلی دی ضرورت وو چه یو داسې فاضل د چا چه د شیخ الحدیث رحمه الله د علومو سره پوره مناسبت وی او سنن ابی داؤد ئې ډیر کرته لوستلې وی، دهغې د باریکیانو نه خبر وی هغه د بذل المجهود په اردو ژبه کښې په مزیدار او ساده انداز کښې خلاصه تیاره کړی چه د طالبانو

---

[۱] په هغې کښې د بعضې شروحو او تعلیقاتو تعارف بنده په خپل کتاب محدثین عظام او د هغوی علمی کارنامې کښې او ډیر تفصیل په خپل تصنیف الامام ابی داؤد المحدث الفقیه، کښې کړې دې، دا عربی تصنیف د دمشق بیروت نه ډیر کرته شائع شوې دې منه)

او مدرسينو او د باحثينو او مصنفينو دپاره په هغې مباحثو باندې پوهه آسانه شي.
محترم فاضل محمد عاقل صاحب صدر المدرسين مدرسه مظاهر العلوم كوم چه د شيخ الحديث رحمه الله په قابلو شاګردانو كښې دې. د حضرت په هغوى باندې د شفقت خصوصي نظر وو په خلافت او اجازت سره ئې هم هغوى سرفراز كړى دى او هغوى خپل تعليمي او تدريسي او تاليفي مراحل د حضرت د نګرانئ او سرپرستئ لاندې تير كړى دى. او د ډيرې مودې نه د حديث پاک او سنن ابو داؤد درس وركوى. بلکه دا چه سنن ابوداؤد حضرت هغوى ته په دويم ځل په خاص طور لولې وو، ددې خصوصياتو نه علاوه الله پاک هغوى ته د اوږد بحث د مختصر او واضح بيانولو خاص ملكه وركړې ده.
هم ددې ټولو خصوصياتو د وجې او په كتاب باندې د نظر اچولو نه پس اندازه اوشوه چه دا كتاب دمدرسو طالبانو دپاره نادره ډالئ ، او د علماؤ او مدرسينو دپاره به بهترين رهنما ثابت شي، الله پاک دې مولانا ته بهترين جزاء خير وركړى او د هغوى دا كتاب او نور تاليفات دې قبول كړى او هميشوالې دې وركړى، آمين، وما ذلک على الله بعزيز.

ډاكټر تقي الدين ندوى
استاذ الحديث جامعة الامارات العربية المتحدة العين
۵ ربيع الاول ۱۴۱۳ هجرى

## پيش لفظ

الحمد لله حمدا موافيا لنعمه مكافيا لمزيده والصلوة والسلام على سيدنا محمد النبي الامي وآله وصحبه وبعد!

په موجوده دور كښې د علم دين نه چه كومه بې رخى كولې شى هغه هر څوک وينى، او چاته چه ددې علم د حاصلولو توفيق هم وى په هغوى كښې أكثر او زيات خلق د عدم رغبت ښكار دى خصوصا د نصاب په رومبو كتابونو كښې چه په هغې سره استعداد پيدا كيږى دهغې حالت نور هم زيات قابل د شكايت دې، څه نفوس داسې وى چه د خپل تعليم د ابتدائى درجاتو د عبور كولو نه پس درجه عليا ته رسيدو سره هغوى ته د خپل حالت احساس كيږى، او دې درجې ته رسيدلو سره هغوى څۀ اندازه كتاب كتلو او د مطالعې طرف ته متوجه شى، اوس ښكاره خبره ده چه د هغه وخت په توجه او محنت سره د حل كتاب استعداد پيدا كيدل خو ډير ګران دى اوس هغوى زيات نه زيات دومره كولې شى چه د استاذانو تقريرونه په درس كښې كيناستلو سره اوليكى. پس د استاذانو د درسى تقريرونو د ضبط كولو سلسله نن صبا قائم ده د خپل خپل صلاحيت مطابق ليكونكى طلبه ليكل كوى په هغوى كښې بعض با صلاحيت ښه ليكونكى هم وى.
د نن نه تقريبا شل كاله مخكښې زمونږ د مدرسې يو متعلم (مولوى ثناء الله هزارى باغى) د بنده د ابوداؤد شريف درسى تقرير ضبط كړې وو، د احقر د نظر نه هغه تير شو نو هغه وخت ماته د متعلم موصوف محنت او كوشش خوښ شو په دې وجه بنده هغه رانقل كړې وو، او د كتاب (ابوداؤد) د مطالعې په وخت مې په هغې باندې بعض ځايونو كښې د

حواشي اضافه هم کوله، دغه شان په هغې کښې کافي مفيد خبرې راجمع شوې، بعض مدرسينو هغه د خپل ځان دپاره هم نقل کړو، او بعض احبابو دهغې د طبع کولو مشوره راکړه چه مختصر او مفيد ده، د طباعت کتب سلسله ما سره څه نه څه چليږي خپل يا د حضرت شيخ رحمه الله، په دې وجه ددې کال په شروع کښې بنده د طباعت په نيت په هغې باندې نظر ثاني شروع کړو، په نظر ثاني کښې حذف او اضافه، توضيح او تنقيح د ضرورت مطابق کيږي.

زما ددې کار د ابتداء علم په څه طريقه محترم مولانا قاري صديق احمد صاحب باندوي رحمه الله ته هم اوشو، موصوف چه سهارنپور ته تشريف راوړلو نو د بنده نه ئې دهغې د تکميل تقاضه اوفرمائيله او په خپلو مبارکو کلماتو سره ئې د بنده همت افزائي هم اوفرمائيله د حضرت مولانا علمي ذوق او شوق داسې دې چه هغوی د نورو طلباؤ او فضلاؤ نه هم دا غواړي چه هغوی زيات نه زيات د خپل رغبت او توجهاتو رخ په علمي کارونو کښې اولګوي. اوس الحمد لله د موصوف د دعاء په برکت سره دکال اخيره پورې د يو جلد په اندازه مسوده تياره شوه، د کتابت کار د مخکښې نه شروع دې، ددې تقرير په جلد اول کښې کتاب الطهارة مکمل راغلي دې، د سنن ابوداؤد کتاب الطهارت ډير اوږد دې اندازه دا ده چه په جلد ثاني کښې به کتاب الصلوة والزکوة او څۀ حصه د کتاب الحج راشي، او انشاء الله دريم جلد به آخر د کتاب پورې شي، وما ذلک على الله بعزيز وهو الميسر لکل عسير.

په دې تقرير کښې چه ترڅو پورې د حل کتاب تعلق دې دهغې زيات تر ماخذ بذل المجهود شريف دې ددې نه علاوه نور مضامين يا خو هغه دي کوم چه احقر د حضرت شيخ د حواشئ بذل او د نورو شروح حديث او کتب فقه نه اخذ کړي دي، او يا هغه دي کوم چه ما د حضرت شيخ صاحب رحمه الله او مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله نه په درس کښې اوريدلي دي، په دې وجه چه احقر ته د سنن ابوداؤد ددې دواړو بزرګانو نه ځانله ځانله د لوستلو دوه ځل موقع ملاؤ شوه د موخر الذکر نه ۱۳۸۰هجري کښې کوم چه د احقر د دوره حديث کال وو، او اول الذکر نه په ۸۷هجري کښې کوم چه د بنده د تدريس سنن ابی داؤد اول کال دې دهغې شکل دا جوړ شو چه د لامع الدراري د تاليف کار چه کله په مذکوره کال کښې پوره شو نو چونکه د حضرت شيخ دا وخت فارغ شوې وو په دې وجه حضرت پخپله احقر ته اوفرمائيل چه زما کتاب (سنن ابوداؤد) باندې چه زما کوم حواشي اوبين السطور دي په هغې زما نه ځان پوهه کړه، احقر عرض اوکړو چه باقاعده کتاب او نه لولم، حضرت ددې تحسين اوفرمائيلو او د لوستلو سلسله هم هلته په دار التصنيف کښې شروع شوه او د کال آخره کښې پوره شو، فالحمد لله على ذلک،در اصل هم په دې احقر هم اوغوښتل چه هر کله حضرت شيخ الحديث رحمه الله دې نالائق او ناکاره ته دومره په شوق سره لوستل اوکړل نو څۀ چه د حضرت په برکت سره حاصل شو هغه طبع کړې شي چه دهغې نفع عام شي، اميد دې چه ددې تقرير په مطالعې سره به د ډيرو دپاره د بذل المجهود نه استفاده کول هم آسان شي هم په دې وجه خيال وو چه ددې نوم تيسير الوصول الى بذل المجهود کيخودلې شي، خو بيا مې

دا سوچ اوکړو چه هسې نه چه اوریدونکی دا گمان اوکړی چه دا د بذل المجهود حاشیه ده په دې وجه بیا دا دویم نوم تجویز کړې شو.[1]

ددې رومبی جلد دنظرثانی په وخت دنقل، املاء او دتصحیح او اصل سره دکتلو تعاون عزت مند مولوی عبدالرحمن مظاهری گلبرگوی (کرناټک) په ښه طریقه پوره کړو. فجزاه الله احسن الجزاء، همدغسې ځوک صاحب چه هم د راتلونکې مسودې په تکمیل کښې زمونږ سره مدد کوی هغوی ته دې هم الله تعالی دخپل لوئې شان مطابق جزاء خیر ورکړی دعا ده چه الله تعالی دې دا کار په سهولت سره تکمیل ته اورسوی، اودا دې دآخرت دپاره ذخیره جوړه کړی، د مور پلار استاذانو او خصوصا دحضرت شیخ نور الله مرقده په حق کښې دې د اجر سبب اوګرځوی او د طالبانو دپاره دې زیات نه زیاته فائده منده جوړه کړی آمین

والحمد لله اولا وآخراً

محمد عاقل عفا الله عنه

۲۱ رجب المرجب ۱۴۱۳ هـ

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله رب العلمین والصلوة والسلام علی سید المرسلین محمد واله واصحابه اجمعین

اللّهم انی احمدک واستعینک[2]

## بحث بدایة السبق یوم الاربعاء:[3]

زمونږ د مشائخو او استاذانو ﷫ معمول وو چه په یوم الاربعاء یعنی د چارشنبې په ورځ به ئې د سبقونو د شروع کولو اهتمام او رعایت فرمائیلو. اوس د اسلافو ددې اهتمام د دلیل واصل د معلومولو ضرورت دې.

په دې سلسله کښې د صاحب هدایه شاګرد په تعلیم المتعلم کښې د خپل استاذ صاحب هدایه عادت نقل کړې دې ﴿ کان استاذنا الشیخ الامام برهان الدین رحمه الله یوقف بدایة السبق علی یوم الاربعاء ﴾ زمونږ استاذ یعنی صاحب هدایه به د سبق د شروع کولو دپاره د چارشنبې د ورځې انتظار کولو، او په دلیل کښې به ئې په خپل سند سره یو حدیث بیانولو چه دهغې الفاظ دا دی: ﴿ ما من شئ بدئ یوم الأربعاء الا وقد تم ﴾

خو بعض محدثینو په دې حدیث باندې کلام کړې دې لکه علامه سخاوی په المقاصد الحسنة کښې لیکلې دی چه ﴿ لم اقف له علی اصل ﴾ یعنی ماته ددې حدیث هیڅ

---

[1] خو په دې تسمیه کښې تامل وو ځکه چه دا نوم حضرت شیخ د حضرت گنگوهی ﷫ د دابوداؤد تقریر کوم چه مولانا محمد یحیی صاحب ﷫ جمع کړې وو دهغې دپاره تجویز فرمائیلې وو خو چونکه په مستقبل قریب کښې ددې تقریر د شائع کیدو توقع نشته که شائع شو نو هم هغه نوم به مقید په عربئ کړې شی. الدر المنضود علی سنن ابی داؤد (عربی)

[2] د بنده عادت دې چه هره ورځ د سبق شروع کولو نه مخکښې دا دعاء لولی ددې ماخذ فعل د سیدنا بلال ﷺ مؤذن رسول الله ﷺ دې کوم چه د باب الاذان فوق المناره په روایت کښې راروان دې.

[3] ذکره مولنا عبدالحي في الفوائد البهية من ترجمة صاحب الهداية

اصل ملاؤ نه شو ، ددې نه پس علامه سخاوی د پورته حديث معارضه کړې ده، د طبرانی د هغه حديث سره چه په هغې کښې يوم الاربعاء ته د ﴿يوم نحس مستمر﴾ مصداق وئيلې دې.

ملا على قاری رحمه الله ددې اشکال دا جواب ورکړې دې چه د علامه سخاوی ﴿لم اقف له على اصل﴾ وئيل د خپل علم په اعتبار سره دی ځکه چه د صاحب هدايه په شان فقيه محدث چه يو حديث په خپل سند سره مرفوعا بيانوی، او په هغې باندې عمل کوی نو دا د هغه حديث د ثبوت دپاره کافی ده اګر که په متداول کتب حديث کښې دا حديث ملاؤ نه شی، او د طبرانی د روايت هغوی دا جواب کړې دې چه هغه ضعيف دې، او که هغه صحيح اومنلې شی نو دهغې توجيه به دا وی چه چونکه په دې ورځ په کفارو باندې عذاب نازل شوې وو، په دې وجه دا ورځ د کفارو او د اعداء الاسلام په حق کښې سپيرهٔ ده نو د مسلمانانو په حق کښې يقينا مسعود او مبارک شوه.

د صاحب هدايه او د اکابرينو ددې معمول تائيد بعض علماء کرامو په هغه حديث سره هم فرمائيلې دې کوم چه په صحيح مسلم جلد ثانی کښې واقع دې. ﴿ان الله خلق النور يوم الاربعاء﴾ چه الله پاک نور د چهار شنبې په ورځ پيدا کړو او ښکاره ده چه علم هم سراسر نور دې په دې وجه هم د چهارشنبې [1] په ورځ باندې د سبقونو د شروع کولو مناسبت ښکاره دې، دا ټول بحث مولانا عبدالحی صاحب ذکر فرمائيلې دې، اوس اوس په دې سلسله کښې يو بل حديث په علم کښې راغلو چه په هغې کښې دا دی چه علم دې د دوشنبې په ورځ باندې طلب کړې شی په دې سره سهولت وی، والله اعلم بصحة الحديث.

اوس مونږ مقدمة العلم شروع کوو.

## مقدمة العلم

د استاذانو او علماء کرامو د هميشه نه معمول پاتې شوې دې چه د کتاب د شروع کولو نه مخکښې چه په کوم فن کښې هغه کتاب دې د هغه فن ابتدائی خبرې او مقدمة العلم ډير په اهتمام سره بيان فرمائی، او علماؤ د ميزان او دمنطق هم ددې خبرې تصريح کړې ده چه د فن د شروع کولو نه مخکښې دهغې مقدمة العلم پيژندل ضروری دی.

(**اقسام مقدمه**): پوهه شه چه د مقدمې دوه قسمونه دی يو مقدمة العلم او دويم مقدمة الکتاب. [2] په دې دواړو کښې فرق تاسو په مختصر المعانی کښې لوستلې دې دهغې

---

[1] په دې سلسله کښې تير کال د رفيق محترم شيخ الحديث مولانا محمد يونس صاحب نه يو حديث په اوريدو کښې راغلو چه دهغې په ظاهر تقاضه دا ده چه د سبق ابتداء په يوم الاثنين يعنې د ګل په ورځ اوشی نو ډيره غوره ده په دې په حصول علم کښې اسانتيا راځی دهغې الفاظ دا دی ﴿اطلبوا العلم يوم الاثنين فانه ميسر لصاحبه﴾ ابونعيم اصفهانی دا په تاريخ اصفهان کښې بسنده د سيدنا انس رضی الله عنه نه روايت کړې دې خو د حديث د صحت او قوت حال معلوم نه دې.

[2] د متقدمينو په نزد صرف مقدمة العلم وه، او د مقدمة الکتاب اصطلاح روستنې ايجاد دې، علامه تفتازانی رحمه الله ددې اختراع کړې ده لکه چه د مطول شرح تلخيص نه معلوميږی او منشاء د اختراع هم د هغه ځائې نه معلوميدلې شی.

دلته د بيانولو حاجت نشته خو دا خبره خو بديهي ده چه د مقدمة العلم تعلق د فن سره وي، او د مقدمة الكتاب تعلق د كتاب سره وي، تاسو ته به دواړه مقدمې بيانولې شي، اول مقدمة العلم [1] واورئ!

په مقدمة العلم كښې بعض حضرات صرف درې امور بيانوي، تعريف، موضوع، غرض او غايت، او بعض حضرات اته امور بيانوي، چه هغې ته رؤس ثمانيه هم وائي، او بعض حضراتو امور عشره ليكلې دي.

اعلم ان مبادی كل فن عشره    الحد والموضوع ثم الثمره
الاسم والاستمداد وحكم الشارع    وفضله ونسبة والواضع
ومسائل والبعض بالبعض اكتفى    ومن درى الجميع حاز الشرفا

زمونږ شيخ رحمه الله به د كتاب په شروع كښې د مقدمة العلم والكتاب لاندې شل امور بيانول.

په مقدمة العلم كښې نهه:

۱: تعريف، ۲: موضوع، ۳: غرض وغايت ۴: اسمه،
۵: مدون، ۶: نسبت، ۷: مرتبه ۸: قسمت او تبويب

دا اته امور هغه دي كوم ته چه رؤس ثمانيه وائي، او علماء اسلام په دې باندې د نهم څيز يعنى د حكم شارع اضافه كړې ده، او حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل چه په مقدمة الكتاب كښې هم دا څيزونه دي، سوا د تعريف نه چه د كتاب تعريف نه وي [2] او موضوع د علم او د كتاب د دواړو يوه وي، ددې دواړو نه علاوه په مقدمة الكتاب كښې باقي هم هغه اووۀ څيزونه دي كوم چه په مقدمة العلم كښې وي، نهه او اووۀ شپاړس امور شو او ددې نه علاوه څلور څيزونه د متفرقات او اشتات د قبيل نه دي:

۱: نُسخ د كتاب، ۲: شروح وحواشي، ۳: سند حديث، ۴: آدابِ طالب،

دا ټول شل امور شو، اوس مونږ مقدمة العلم هم د دغه پورته ذكر شوى ترتيب مطابق بيانوو.

### (۱) تعريف حديث:

ځان پوهه كړئ چه دلته دوه څيزونه دي يو علم حديث يعنى فنِ حديث، دويم حديث يعنى نفس حديث، لكه چه تاسو ته به معلومه وي چه يو خو دې علمِ بلاغت وفنِ بلاغت، او يو دې بلاغت كوم چه د فصاحت مقابل دې، هم په دې وجه د دواړو تعريف بيل بيل كولې

---

[1] ټول صحاح سته د يو فن يعنى د فنِ حديث كتابونه دي، لهذا دا مقدمة العلم كومه چه مونږ دلته بيانوو ددې ټولو كتابونو سره به ددې تعلق وي او په ټولو ځايونو كښې به دا مقدمه كار وركوي. په خلاف د مقدمة الكتاب چه هغه د هر كتاب جدا جدا وي په دې لحاظ سره مقدمة العلم عام او مقدمة الكتاب خاص شوه، او په ترتيب كښې په اعتبار د ذكر سره عام په خاص باندې مقدم وي، هم په دې وجه مقدمة العلم مونږ دلته مخكښې ذكر كوو.

[2] ددې نه مراد د حد منطقي نفى ده ګڼې تعريف په معنى د تعارف هغه د كتاب هم وي.

شی، د علم بلاغت بیل کوم چه د معانی او بیان د مجموعي نوم دې او د نفس بلاغت څانله یعنی کلام د مقتضی الحال مطابق کیدل، هم دغه شان دلته هم دوه څیزونه دی، حدیث او فن حدیث بیا د فن حدیث دوه قسمونه دی، یو علم روایت حدیث، دویم علم درایة حدیث یا داسې اوایئ چه علم الحدیث روایت، علم الحدیث درایة، او زمونږ مخې ته چه کوم کتاب دې بلکه د دوره حدیث ټول کتابونهَ هغه د علم درایت حدیث سره تعلق لري، او هم ددې تعریف بیانول اصل او مقصود دې، مناسب دا ده چه د فن حدیث د تعریف د پیژندلو نه مخکښې د نفس حدیث تعریف اوپیژندلې شی.

حدیث د رسول اللهﷺ اقوالو، افعالو، احوالو او تقریراتو ته وئیلې شی، د تقریر مطلب دا دې چه یو امتی د رسول اللهﷺ په مخکښې یو کار کړې وی، او رسول اللهﷺ په هغې باندې انکار نه وی کړې نه هغه وخت او نه روستو نو هغې ته د رسول اللهﷺ تقریر وائی او کوم څیز چه داسې ثابت شی دهغې په باره کښې به داسې وئیلې شی چه دا څیز په حدیث سره ثابت دې، یعنی د رسول اللهﷺ په تقریر سره، وجه دهغې دا ده [1] چه د نبی د شان نه دا خبره بعید ده چه د هغوی په مخکښې دې یو ناجائز کار اوکړې شی یا د هغوی په علم کښې راشی، او هغوی په هغې باندې نکیر او نه فرمائی ددې نه معلومه شوه چه د رسول اللهﷺ چه څنګه افعال او اقوال د امت دپاره حجت دی، هم دغه شان د هغوی سکوت هم حجت دې، بلکه داسې اوایئ چه د نبی هر څیز حجت دې سبحان الله! د انبیاء ﷺ څه عجیبه شان دې، د هغوی هر یو څیز حجت دې، پس کوم څیز چه د رسول اللهﷺ د تقریر نه ثابت شی دهغې باره کښې دا وئیلې شی چه دا څیز د حدیث نه ثابت دې.

تقریر خو بالاتفاق بین المحدثین والاصولین د حدیث په تعریف کښې داخل دې، لانه حجة ایضا، او احوال دوه قسمه دی، اختیاریه او غیر اختیاریه (لکه د رسول اللهﷺ حلیه مبارکه، قد، مخ مبارک وغیره) یا داسې اوایئ چه خُلقیه او خَلقیه، د محدثینو په اصطلاح کښې دواړه قسمونه په حدیث کښې داخل دی، بلکه هر هغهَ څیزکوم چه د رسول اللهﷺ طرف ته منسوب وی، هغه حدیث دې، ﴿ کل ما نسب الی النبیﷺ حتی الحرکات والسکنات فی الیقظة والمنام ﴾ او د اصولینو یعنی د اصول فقه په اصطلاح کښې قسم ثانی یعنی احوال غیر اختیاریه دا د حدیث په تعریف کښې داخل نه دی ځکه چه هغوی خو د هغه حدیث نه بحث کوی کوم چه د حجت او دلیل د قبیل نه وی، او د اوصاف خلقیه یعنی د احوال غیر اختیاریه تعلق د یو حکم شرعی سره نشته، لهذا هغه حجت هم نهَ دی، دا خو تعریف شو د نفس حدیث، اوس مونږ (انشاء الله) د علم حدیث تعریف بیانوو، اول د علم

---

[1] ددې مثال د سیدنا موسیٰ علیه السلام او خضر علیه السلام قصه ده کومه چه مشهوره او معروف ده، او په قرآن کریم کښې ذکر ده. موسیٰ علیه السلام سره د معاهدې نه چه هغه به د سیدنا خضر علیه السلام په فعل باندې هیڅ نه فرمائی، بلکه خاموش به وی، خو چه کله موسیٰ علیه السلام د خضر علیه السلام نه د داسې کارونو صدور اولیدو کوم چه په ظاهر کښې د شریعت خلاف وو، نو موسیٰ علیه السلام خاموش پاتې نه شو او فورا ئې انکار اوفرمائیلو)

حديث رواية، کوم چه دلته مقصود دې، [1] او دهغې نه روستو د علم الحديث دراية.

## تعريف علم الحديث :

د دې يو مشهور تعريف خو دا دې : هو علم يعرف به اقوال النبیﷺ وافعاله واحواله، علامه کرمانی او عينی هم دا ليکلې دې علامه سيوطیؒ ددې باره کښې ليکلی دی، هذا غير محرر.... يعنی دا تعريف واضح او منقح نه دې، د هغوی دا اشکال صحيح دې، ځکه چه دا تعريف خو د سيرت په هر کتاب باندې صادق راځی، که هغه په اردو کښې وی يا په عربئ کښې، که په سند سره وی يا بغير د سند نه، او پخپله علامه سيوطیؒ ددې يو بل تعريف بيان فرمائيلې دې چه په هغې باندې هيڅ اشکال نشته، او زما په نزد د ټولو نه غوره هم هغه دې، ﴿ هو علم يشتمل على اقوال النبیﷺ وافعاله وروايتها وضبطها وتحرير الفاظها ﴾ يعنی علم روايت حديث هغه فن دې چه په هغې کښې د رسول اللهﷺ اقوال افعال د الفاظو د صحت او د سند د تحقيق سره نقل کړې شی په دې تعريف کښې احوال غالبا د اختصار دوجې حذف کړې شوی دی، او د رسول اللهﷺ تقرير کوم چه د حديث په تعريف کښې داخل دې اګرچه دلته مذکور نه دې خو د رسول اللهﷺ تقريرات په افعالو کښې راتلې شی، ځکه چه تقرير وائی سکوت او ترک نکير ته، او دا هم فعل من الافعال دی.

د علم دراية [2] حديث تعرِيف کوم چه نهايت مختصر او جامع دې. [3] حافظ ابن حجرؒ داسې فرمآئيلې دې ﴿ معرفة القواعد المُعَرفة بحال الراوی والمروی ﴾ يعنی فن درايت حديث د هغه قواعدو او اصولو پيژندل دی چه دهغې په ذريعه سره د رواياتو او د راويانو احوال پيژندلې او معلومولې شی.

هم دا تعريف علامه سيوطیؒ په خپله الفيه کښې داسې بيان کړې دې،

علم الحديث ذوقوانين تحد ۔۔۔ يدری بها احوال متن وسند

فذانک الموضوع والمقصود ۔۔۔ ان يعرف المقبول والمردود

په دې دوه شعرونو کښې د علم اصول حديث تعريف، موضوع او غرض وغايت

---

[1] حضرت شيخؒ به فرمائيل چه اګر که دا کتابونه چه کوم زمونږ مخې ته دی د رواية حديث دی خو زمونږ په مدارسو کښې دا دراية لوستلې شی، ګويا مونږ خلقو د علم روايت حديث نه علم درايت حديث جوړ کړې دې (انتهی بلفظه)

[2] چه دهغې بل نوم علم مصطلح الحديث او اصول حديث هم دې، او دې ته علوم الحديث هم ونيلې شی، صاحب منهل ليکلې دی چه علم دراية حديث او علم اصول حديث دواړه يو دی، وهو کما قال کما في مقدمة التدريب صفحه ۵ وکذا يفهم من مطالعة الکتب لا کما يتوهم من مقدمة الاوجز انهما علمان متغائران، فتامل)

[3] د علم دراية يو مفصل تعريف امام سيوطیؒ بيان کړې دې، ﴿ هو علم يعرف منه حقيقة الرؤية وشروطها وانواعها واحکامها وحال الرواة وشروطهم واصناف المرويات وما يتعلق بها ﴾ يعنی هغه علم چه دهغې په ذريعه د رواية حديث حقيقت معلوم شی چه روايت څنګه اوکړې شی دهغې معتبر طرق څه دی، شرائط او انواع ئې څه دی، اودهغې احکام چه کوم روايت مقبول وی او کوم مردود، هم دغه شان د راويانو د جرح او تعديل اسباب او طرق، او نور اصطلاحات فن معلوم شی، رواية وائی نقل الحديث بالسند ته)

درې واړه څیزونه راغلی دی، یعنی علم اصول حدیث د هغه قوانینو نوم دې چه په هغې سره د حدیث د سند او متن احوال معلوم شی، او هم دا دوه څیزونه یعنی متن او سند ددې علم موضوع ده، او غرض ددې فن دا دې چه د مقبول او مردود روایاتو معرفت حاصل شی، چه کوم حدیث مقبول دې او قابل استدلال دې، او کوم حدیث مردود او غیر معتبر دې.

**(۲) موضوع علم الحدیث :**

علامه کرمانی لوئی محدث دې، او د علامه ابن حجر او د عینی وغیره ټولو نه مقدم دې، هغوی په شرح د بخاری کښې د علم حدیث د موضوع په باره کښې فرمائیلې دی، ﴿هو ذات الرسول ﷺ﴾ یعنی د علم حدیث موضوع د رسول الله ﷺ ذات گرامی دې، په دې باندې علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه زمونږ استاذ علامه کافیجی رحمه الله به همیشه تعجب فرمائیلو چه هغوی ذات رسول ﷺ څنګه د علم حدیث موضوع مقرر کړه، حال دا چه دا خو د علم طب موضوع ده، ځکه چه رسول الله ﷺ انسان دې، او د انسان بدن د علم طب موضوع ده، شارحینو د علامه سیوطی رحمه الله د خپل استاذ ددې اشکال د نقل کولو نه پس خپله د هغوی په خاموش پاتې کیدو باندې تعجب کړې دې چه ددې نه خو معلومه شوه چه دا اشکال د سیوطی رحمه الله په نزد هم صحیح دې، حال دا چه دا اشکال غلط دې ځکه چه د رسول الله ﷺ په ذات کښې دوه څیزونه دی، یو وصف انسانیت او دویم وصف رسالت، او د کرمانی مراد دا دې چه ذات رسول د وصف رسالت په اعتبار سره د علم حدیث موضوع ده نه د وصف انسانیت او د بدن په اعتبار سره، او ښکاره ده چه وصف رسالت سره د طب د موضوع څه تعلق؟ او انسان او بدن د انسان د علم طب موضوع ده، د صحت او مرض په لحاظ سره پس دا دواړه څیزونه بیل بیل شو.

زمونږ د شیخ رحمه الله رائې په مقدمة د اوجز کښې دا ده چه ذات الرسول ﷺ خو دې د مطلق علم حدیث موضوع او منلې شی، که هغه د حدیث هر یو قسم وی، او علم روایت حدیث په کوم کښې چه مونږ بحث کوو، چونکه خاص دې د مطلق علم نه، په دې وجه ددې موضوع هم خاص کیدل پکار دی، پس حضرت شیخ رحمه الله اوفرمائیل چه د علم روایة موضوع ﴿الروایات والمرویات من حیث الاتصال والانقطاع﴾ ده، یعنی د رسول الله ﷺ احادیث د سند د اتصال او نقطاع وغیره اوصافو او کیفیات سند په لحاظ سره.

**(۳) د علم الحدیث غرض و غایت :**

غرض وائی ما لاجله الفعل یعنی د کوم څیز د حصول دپاره چه کار اوکړې شی بیا چه کوم کار په هغه څیز باندې مرتب وی هغې ته غایت وائی، پس که هغه مرتب کیدونکې څیز د سړی د مقصود مطابق وی نو هغه غرض هم دې او غایت هم، او که ترتب د مقصود خلاف وی نو هغې ته به نتیجه خو وئیلې شی خو غایت نه، لهذا غرض خاص او غایت عام شو، لکه تاجر چه د حصول نفع دپاره تجارت کوی بیا په دې تجارت باندې کله نفع مرتب شی او کله نقصان، نو دې نقصان ته به غایت وائی خو غرض ورته نه شی وئیلې کیدې.

حضرت شیخ رحمه الله به د صحیح بخاری په درس کښې ددې درې غرضونه بیانول،

(۱) **اول غرض** : د هغه زيرو او بشارتونو مصداق جوړيدل کوم چه د حديث د لوستونکو او دهغې د تعليم کونکو په باره کښې راغلی دی؛ مثلاً :

۱ : د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ نضر الله امرأ سمع مقالتی فوعاها واداها فرب حامل فقه غير فقيه ورب حامل فقه الی من هو افقه منه... رواه الترمذی ﴾ او په ابوداؤد شريف کښې هم دا مضمون د زيد بن ثابت رضي الله عنه په حديث مرفوع کښې راغلی دی، الله پاک دې تروتازه او خوشحال او هميشه ګل ګلزار اوساتی هغه سړې چه زما خبره واوری او بيا هغه محفوظ کړی، او نورو ته هغه اورسوی، (الحديث) په دې کښې دواړه احتمالونه دی چه جمله دعائيه وی يا جمله خبريه، وړاندې رسول الله ﷺ نورو ته د روايت د رسولو فائده بيان کړې ده، هغه دا چه ډير کرته داسې کيږی چه ډير خلق کومو ته چه هغه روايت رسولې شی هغه د رسونکی نه زيات فهيم او پوهه وی، او په يو روايت کښې دی، ﴿ فرب مبلغ اوعی له من سامع ﴾ يعنی چاته چه روايت رسولې شی هغه زيات محفوظ ساتونکې وی حديث لره په نسبت د اوريدونکی، ددې حديث نه يو نکته معلومه شوه چه بعض شاګردان په فهم او حفظ وغيره اوصافو کښې د استاذ نه مخکښې وی، لکه چه مشاهده هم ده.

د پورته حديث د لاندې بعض علماء کرامو ليکلې دی چه : ما من رجل يطلب الحديث الا کان علی وجهه نضره.... يعنې کوم سړې چه په حقيقی معنی کښې طالب حديث وی د هغه په مخ باندې رڼړا او د تازګئ آثار وی، زه وايم چه دا هم داسې ده لکه چه د اهل جنت په باره کښې ارشاد دې ﴿ تعرف فی وجوههم نضرة النعيم (الآية) ﴾ او که په يو طالب حديث کښې دا صفت بيا نه موندلې شی نو دا به د طلب په کمی باندې محمول کولې شی، يا دا چه د هغه طلب، طلب صادق نه دې.

۲ : هم دغه شان د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو، ﴿ ان اولی الناس بی يوم القيامة اکثرهم علی صلوة، رواه الترمذی وابن حبان فی صحيحه ﴾ يعنی د قيامت په ورځ به د ټولو نه زيات ماته نزدې هغه خلق وی کوم چه په ما باندې په کثرت سره درود وائی، ابن حبان رحمه الله فرمائی چه په دې حديث کښې تصريح ده ددې خبرې چه د قيامت په ورځ باندې به د ټولو نه زيات قرب د رسول الله ﷺ سره د اصحاب الحديث وی، ځکه چه په کثرت صلوة باندې هم دا حضرات موصوف وی، ځکه چه هم دې حضراتو ته د صلوة او سلام دلوستلو او د ليکلو زياته موقع ملاويږی.

۳ : د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اللّهم ارحم خلفائی ﴾ اې الله زما د خلفاؤ سره د رحم معامله اوکړه، صحابه کرامو رضي الله عنهم تپوس اوکړو، يا رسول الله ﷺ من خلفائک؟ يا رسول الله ﷺ ستاسو خلفاء څوک دی؟ نو هغوی اوفرمائيل : ﴿ الذين يروون احاديثی ويعلموها الناس ﴾ يعنی هغه خلق زما خلفاء دی کوم چه زما احاديث روايت کوی او خلقو ته دهغې تعليم ورکوی، په دې حديث کښې رسول الله ﷺ د علم حديث سره شوق

او رغبت لرونکو ته خپل نائب او خليفه وئيلې دى، او ددې نه علاوه ئى ورته د رحمت دعاء فرمائيل ده، ددې نه زيات نور څه فضيلت او سعادت کيدې شى. نو خلاصه دا چه دا دعاګانې او بشارتونه کوم چه په احاديثو کښې راغلى دى دهغې د مصداق جوړيدو دپاره مونږ علم حديث لولو.

**تنبيه**: ځان پوه کړه چه طالب حديث له خپل فضائل اوريدلو سره کوم چه په پورته احاديثو کښې ذکر دى، ډير مغرور او د خپل ځان په باره کښې په خوش فهمئ کښې اخته کيدل نه دى پکار بلکه په خپل ځان کښې د تواضع صفت پيدا کول پکار دى، اوګورئ زمونږ حضرت شيخ رحمه الله چه د خپلې زمانې راس المحدثين وو، ټول عمر ئې په اشتغال بالحديث او د کتب حاديث د شروح په تصنيف او تاليف کښې تير شو، خو دهغې باوجود په مقدمه د لامع کښې په مراتبو د اهل حديث باندې کلام کولو سره فرمائى: ﴿ نحن لسنا بمحدثين ﴾ يعنى زمونږ په شان خلق فى الواقع محدث نه دى، د محدث بللو مستحق نه دې، صرف د اشتعال بالحديث د وجې نه راته عرفا محدث وئيلې شى، په اصل کښې مونږ خو مبتدئين يو.

(۲) **دويم غرض**: دا دې چه د دين او شريعت مدار په قران کريم باندې دې او په قرآن کريم کښې اصول بيان کړې شوى دى د جزئياتو تفصيل او تشريح په هغې کښې نشته، او حديث د قرآن کريم او دهغې د مجملاتو تشريح ده، لهذا د حديث نه بغير نه په صحيح معنې فهم قرآن حاصليدې شى، او نه په هغې باندې صحيح عمل ممکن دې، پس د فهم القرآن او عمل بالقرآن دپاره مونږ احاديث لولو.

(۳) **دريم غرض**: کوم ته چه به حضرت شيخ رحمه الله د جرندې پل فرمائيلو [1] زمونږ د ټولو مسلمانانو د رسول الله ﷺ سره مينه ده او هر سړې د مينې دعويدار دې نو رسول الله ﷺ زمونږ محبوب شو او د محب د خپل محبوب هره ادا او د هغه هره خبره خوښوى، احاديث طيبه هم د هغوى الفاظ او هم د هغوى خبرې دى، پس د رسول الله ﷺ محبت د حديث پاک د لوستلو او بل ته د ښودلو مقتضى دى، او د محبوب د کلام نه لطف اندوز کيدل خپله يو مستقل غرض دې. (من احب شيئا اکثر من ذکره) مقوله مشهوره ده. [2]

(۴) **څلورم غرض**: به زمونږ استاذ محترم مولانا امير احمد صاحب رحمه الله بيانولو چه د علم حديث غرض ﴿ معرفة کيفيت الاقتداء بالنبى ﷺ ﴾ يعنى د رسول الله ﷺ اتباع او د هغوى په نقش قدم باندې انسان څنګه لاړ شى ددې طريقه معلوم شى په دې وجه مونږ حديث لولو، او زه وايم (يعنى استاذ محترم مولانا محمد عاقل صاحب) چه دا غرض د صاحب مشکوة د

---

[1] دا د حضرت رحمه الله يوه خاص اصطلاح ده چه دهغې تشريح دې د بخارى په تقرير کښې اوکتلې شى،

[2] حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل چه فرض کړئ چه د احاديثو په تعليم او تعلم کښې هيڅ فائده نه وى، هيڅ ثواب نې هم نه وى، ددې د لوستلو دپاره هم دا يو غرض کافى دې چه حديث پاک د محبوب کلام دې او محب ته د محبوب په کلام کښې لذت حاصليږى.

کلام نه (۱) کوم چه د مشکوة په خطبه کښې دې مستفاد کیږی، او هم دا مضمون صاحب د مفتاح السعادة هم دغه شان لیکلی دې ﴿التحلی بالآداب النبویة، والتوقی عما یکرهه وینهاه﴾ یعنی د رسول اللهﷺ په اخلاقو او اوصافو سره ځان ډولی کول، او کوم څیزونه چه د هغوی نه وو خوښ دهغې نه ځان ساتل.

(۵) **پنځم غرض**: هغه دې کوم چه صاحب منهل لیکلې دې ﴿الاحتراز عن الخطأ فی الانتساب الی النبیﷺ﴾ یعنی د رسول اللهﷺ طرف ته د یو څیز د غلط انتساب نه محفوظ کیدل، ځکه چه دا خبره کول چه دا فلانئ خبره رسول اللهﷺ کړې دې یا نه، په دې باندې محدثین پوهیدلې شی، حدیث وغیر حدیث، کلام رسول وکلام غیر رسول کښې فرق هم هغه حضرات کولې شی کوم چه د فن حدیث نه خبر وی.

(۶) **شپږم غرض**: علماء کرامو بیان کړې دې چه د هر فن یو تاثیر وی، لکه چه مثلا د منطق تاثیر بکواس یعنی قدرة علی الکلام دې، هم دغه شان که په صحیح معنی کښې په اخلاص او محبت سره په حدیث پاک کښې مشغول شی نو په دې سره په طالب العلم کښې شان صحابیت پیدا کیږی ځکه چه صحابه کرامؓ د رسول اللهﷺ په احادیثو، صحبت او په طرز عمل سره صحابه جوړ شوی دی، او طالب حدیث هم هر وخت د رسول اللهﷺ د احوالو او اوصافو او دهغې د مطالعې او دهغې په تحقیق کښې لګیدلې وی، بیا به دهغې نه ځنګه نه متاثر کیږی، ګویا طالب حدیث ته د رسول اللهﷺ صحبت حاصل دې.

او غرض د ټولو علوم دینیه ﴿الفوز بسعادة الدارین﴾ بیانولې شی.

**فائده**: ځان پوهه کړئ چه په دې بیان کړې شوی اغراضو کښې هیڅ تضاد او تباین نشته، بلکه واقعه دا ده چه دا ټول څیزونه په حدیث پاک کښې د مشغولیدو فوائد او ثمرات دی، کوم چه د انسان د حیثیت او صلاحیت مطابق په هغه کښې پیدا کیږی، د یو څیز ډیر فوائد کیدې شی.

### (۴) اسمه: یعنی وجه تسمیه ددې فن:

اسمه یعنی د فن نوم او دهغې وجه تسمیه، نو ددې فن نوم علم حدیث دې، اوس دا خبره کول چه حدیث ته حدیث ولې وائی؟ حافظ ابن حجرؒ دوه اقوال ذکر کړی دی:

**وجه تسمیه نمبر۱**: د حدیث معنی د حادث راځې، الله پاک د خپل ذات او صفات په اعتبار سره قدیم دې، په دې وجه د الله پاک کلام (قرآن کریم) هم قدیم دې، دهغې بالمقابل د رسول اللهﷺ ذات حادث دې، په دې وجه د هغوی کلام هم حادث دې، په دې وجه د رسول اللهﷺ کلام ته حدیث په معنی د حادث وئیلې شی.

(۱) د خطبه مشکوة الفاظ دا دی: اما بعد فان التمسک بهدیه لا یستتب الا بالاقتفاء لما صدر من مشکوته، والاعتصام بحبل الله لا یتم الا ببیان کشفه ﴾ د جمله اولی نه د مولانا امیر احمد صاحبؒ بیان کړې شوې غرض مستفاد کیږی، او د دویمې جملې نه د حضرت شیخؒ په کلام کښې چه کوم غرض ثانی راغلې دې، هغه موندلې کیږی، فالحمد لله علي ذلك)

**وجه تسمیه نمبر ۲**: حدیث وائی خبرې او کلام ته، او چونکه دا د رسول اللهﷺ خبرې دی، په دې وجه دې ته حدیث وئیلې شی، په دې باندې دا اشکال کولې شی چه په حدیث کښې صرف خبرې چرته دی، په دې کښې خو د رسول اللهﷺ احوال او افعال هم داخل دی، ددې جواب دا دې چه د رسول اللهﷺ احوالو او افعالو ته تغلیبا احادیث وئیلې شی.

**وجه تسمیه نمبر ۳**: بعض علماؤ لیکلې دی چه د رسول اللهﷺ د اقوالو او افعالو ته په حدیث سره تعبیر کول خود ساخته اصطلاح نه ده، بلکه خپله د قرآن کریم نه مستنبط ده، هغه داسې چه د رسول اللهﷺ هغه ارشادات کومو ته چه حدیث وئیلې شی هغه سراسر بیانِ دین دې او په سورة الضحی کښې هم ددې بیان دین نه په تحدیث سره تعبیر کړې شوې دې ﴿ واما بنعمة ربک فحدث ﴾ دلته د نعمت نه مراد دین دې لکه چه په بعض نورو آیتونو کښې دی. ([1]) پس د حدیث تسمیه هم ددې تحدیث نه اخستلې شوې ده، ددې لږ شان وضاحت دا دې چه په اصل کښې ﴿ واما بنعمة ربک فحدث ﴾ مربوط دې د ﴿ ووجدک ضالا فهدی ﴾ سره،([2]) او د آیت کریمه د مضمون خلاصه دا ده چه مونږ ته بې خبر بیا موندلې نو مونږ تاته علوم او معارف درکړل، بیا وړاندې تلو سره فرمائی پس تاسو هغه علوم او معارف (کوم چه ستاسو په احادیث کښې موجود دی) د خلقو مخکښې بیان کړئ، دې بیانولو ته په آیت کریمه په تحدیث سره تعبیر کړې شوې دې، پس هم ددې نه لفظ حدیث اخستلې شوې دې.

**د حدیث قریب المعنی څو الفاظ او د هغې په خپل مینځ کښې فرق**:

ځان پوهه کړه چه دلته څو اصطلاحی الفاظ نور دی، حدیث، اثر او سنت دا الفاظ په خپل مینځ کښې مترادف دی او که مختلف؟ کوم چه محدثین هم لیکی، او اصولین هم، لکه چه تاسو په نور الانوار او شرح نخبه وغیره کښې لوستلې دی.

**(په حدیث او خبر کښې فرق)**

د جمهور محدثینو رائې دا ده چه حدیث او خبر دواړه مترادف دی بیا د حدیث په تعریف کښې اختلاف دې، بعضو د رسول اللهﷺ د اقوالو او احوالو سره مخصوص کړې دې او بعضو د صحابه کرامو رضی الله عنهم اقوال هم د حدیث په تعریف کښې داخل منلی دی، او بعضو پکښې د تابعینو اقوال هم شامل کړی دی، د بعض محدثینو رائې دا ده چه په حدیث او خبر کښې تباین دې، حدیث، ما جاء عن النبیﷺ او خبر ما جاء عن غیره، او بعضو حدیث ته خاص یعنی ما جاء عن النبیﷺ او خبر ته عام معنی یعنی ما جاء عن النبیﷺ ومن غیره، وئیلې دې.

---

[1]) پس ارشاد دې: واذکروا نعمة الله علیکم ومانزل علیکم من الکتاب والحکمة یعظکم به (الایة)...... الیوم اکملت لکم دینکم واتممت علیکم نعمتي (الایة)... په دې دواړو آیتونو کښې الله پاک د دین نه په نعمت سره تعبیر کړې دې)

[2]) او فأما الیتیم فلا تقهر، الم یجدك یتیمًا فاوي»، سره مربوط دې او وأما السائل فلا تنهر، د ووجدك عائلا فأغني»، سره مربوط دې، ګویا لف ونشر غیر مرتب دې.

(په حدیث او سنت کښې فرق)

اوس پاتې شو فرق د سنت او حدیث، په مینځ کښې نو بعضو خو دې ته د یو بل مرادف وئیلې دې او دویم قول دا دې چه د حدیث اطلاق د رسول الله په صرف اقوالو باندې کیږي، او سنت عام دې، ددې اطلاق د رسول الله ﷺ په اقوالو او افعالو او احوالو ټولو باندې کیږي، او د اثر اطلاق خو د محدثینو په نزد په حدیث مرفوع او موقوف دواړو باندې کیږي، لکه امام طحاوي رحمه الله د خپل کتاب نوم شرح معانی الاثار کیخودلې دې او هغوی په دې کښې روایات مرفوعه او موقوفه ټول راوړي دي، او بعض علماء کرامو اثر خاص کړې دې، د موقوف سره، په مرفوع باندې دهغې اطلاق نه کوي.

(۵) مدون (او تدوین حدیث):

مدون اول:

د تدوین حدیث ابتداء داسې شوې ده چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د کبار تابعینو په نزد خو د تدوین او ترتیب سلسله نه وه، د هغوی سره خو علوم نبویه په سینو کښې محفوظ وو، د تصنیف او تالیف د هغوی په نزد دستور نه وو، ځکه چه د عربو حافظې ډیرې قوی وې، هغوی ته د لیکلو څۀ ضرورت وو؟ غرض دا چه هغه وخت احادیث عام طور سره د صحابه کرامو او تابعینو په سینو کښې محفوظ وو، چه صحابه کرام او تابعین کله د دنیا نه رخصتیدل شروع شو او نزدې وه چه دنیا د صحابه کرامو د متبرک نفوسو نه خالي شي ځکه چه د رسول الله ﷺ د وفات تقریبا سل کاله شوې وو، په ۹۹هجری کښې عمر بن العزیز رحمه الله چه کله خلیفه شو نو هغوی په دې ویره باندې چه ددې متبرک هستیانو د وفات کیدو سره دا علوم هم کوم چه د هغوی په سینو کښې محفوظ وو، د هغوی سره قبرونو ته لاړ نه شي په دې وجه هغوی په ۹۹ هجری کښې د خپل زیر اثر ممالکو علماء کرامو او حفاظ حدیث په نوم باندې فرامین اولیږل چه د رسول الله ﷺ احادیث دې جمع کړې شي، پس حافظ ابونعیم اصفهانی په تاریخ اصفهان کښې لیکي، کتب عمر بن عبدالعزیز الی الافاق انظروا حدیث رسول الله ﷺ فاجمعوه... او د بعض روایاتو نه معلومیږي چه هغوی خاص طور قاضي ابوبکر بن حزم رحمه الله ته، کوم چه د هغوی د طرف نه د مدینې منورې قاضي او امیر وو، دا فرمان اولیکلو لکه چه په مؤطا کښې امام محمد په خپل سند سره نقل کړې دی، او امام بخاري رحمه الله په صحیح بخاري باب کیف یقبض العلم کښې تعلیقا ذکر فرمائیلې دی:

وَكَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ إِلَى أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ انْظُرْ مَا كَانَ مِنْ حَدِيثِ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَاكْتُبْهُ فَإِنِّي خِفْتُ دُرُوسَ الْعِلْمِ وَذَهَابَ الْعُلَمَاءِ، یعنی عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د ابوبکر بن حزم رحمه الله په نوم باندې حکم اولیږلو چه د رسول الله ﷺ احادیث اولټوئ، هغه اولیکئ او ماته ئې راولیږئ، ځکه چه ماته د علم د ختمیدو او د علماء کرامو د ختمیدو ویره ده، پس د خلیفه عادل عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په تحریک باندې د هغه وخت محدثین حضراتو احادیث جمع کړل، په ابتداء کښې چه کوم حضراتو احادیث جمع کړي وو، په هغوی کښې دوه نومونه زیات مشهور او منقول دي یو ابن شهاب الزهري رحمه الله چه د هغوی پوره نوم

محمد بن مسلم بن عبید الله بن عبد الله بن شهاب الزهری رحمه الله دي. او دویم ابوبکر بن حزم رحمه الله (ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم) چونکه دا ـ واړه حضرات معاصر او د یوې زمانې دی، د ابن شهاب زهری رحمه الله وفات په ۱۲۵ هجری کښې شوې دې او د ابوبکر بن حزم رحمه الله وفات په ۱۳۰ هجری کښې شوې دې په دې وجه په یقین سره دا تعین نه شی کیدې چه اول مدون په دې دواړو کښې څوک دې؟ د اکثر حضراتو میلان د ابن شهاب الزهری رحمه الله طرف ته دې، هم دا د امام مالک، حافظ ابن حجر او علامه سیوطی رحمهم الله وغیره رائې ده، او د امام بخاری رحمه الله میلان په ظاهر کښې د ابوبکر بن حزم طرف ته دې، ځکه چه امام بخاری رحمه الله لکه چه مخکښې تیر شوی دی هم د هغوی د نوم تصریح کړې ده.

د جمهورو تائید ددې نه هم کیږی چه ابن عبدالبر په التمهید کښې د امام مالک رحمه الله نه نقل کړی دی چه د عمر بن عبد العزیز رحمه الله د قاضی ابوبکر بن حزم رحمه الله خپل جمع کړی احادیث د هغوی په خدمت کښې د راولیږلو نه مخکښې وفات شوې وو، او ددې نه علاوه ابن عبدالبر په جامع بیان العلم واهله کښې لیکلې دی چه امام زهری رحمه الله اوفرمائیل چه عمر بن عبدالعزیز رحمه الله مونږ ته د سنت د جمع کولو حکم اوفرمائیلو ﴿ فکتبناها دفترا دفترا ﴾ نو مونږ د احادیثو دفترې دفترې اولیکلې او هغه مو د خلیفه راشد په خدمت کښې اولیږل. هغوی د خپل خلافت ما تحت ملکونو کښې اولیږل ددې نه معلومه شوه چه امام ابن شهاب الزهری رحمه الله احادیث د ابن حزم رحمه الله نه مخکښې لیکلې وو، لهذا د اولیت سهرا د هغوی په سر ده.

په دې سلسله کښې یو دریم نوم د امام شعبی اخستلې شی چه د چا نوم عامر بن شراحیل دې، امام سیوطی رحمه الله په تدریب الراوی کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله نه نقل کړی دی چه ﴿ اما جمع حدیث الی مثله فقد سبق الیه الشعبی، یعنی صرف د یو مضمون د احادیثو راجمع کولو کار د ټولو نه اول امام شعبی رحمه الله کړې دې، او هغوی د طلاقو متعلق احادیث راجمع کړل او وې لیکل، هذا باب من الطلاق جسیم، یعنی د احادیث متعلقه بالطلاق دا یو ډیر لوئې باب دې او قرین قیاس هم دا قول معلومیږی چه امام شعبی رحمه الله مدون اول اومنلې شی د تقدم زمانی د وجې نه، ځکه چه د شعبی پیدائش په ۱۷ هجری کښې شوې دې، او د زهری ولادت ۵۰ هجری کښې، خو ددې باوجود په مدونین کښې د هغوی نوم مشهور نه دې، وجه دا ده چه د هغوی د تدوین تعلق د یو خاص مضمون د احادیثو سره وو، یعنی د کومو تعلق چه د طلاق سره وی، د هر قسم روایاتو هغوی جمع نه ده فرمائیلې.

پس ددې خلاصه او تحقیق والله اعلم دا دې چه صرف د یو نوع او یو مضمون د احادیثو جمع کولو کار د ټولو نه اول د عامر بن شراحیل شعبی رحمه الله کارنامه ده، او مطلقا د جمع احادیث په سلسله کښې دوه اقوال دی، عند الاکثر الزهری وعند البعض ابوبکر بن حزم، ویظهر الیه میل البخاری.

**فائده** : د پورته ذکر شوی بیان نه معلومه شوه چه د تدوین حدیث دا اهم ترین کار د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په تحریک باندې شوې دې، کومه چه یقینا یو تجدیدی کارنامه ده،

لکه چه په حدیث کښې راغلی دی[1] الله پاک به په دې امت کښې هر سل کاله پس یو داسې شخصیت یا جماعت پیدا کوی کوم چه به د احیاء دین په سلسله کښې یو ښکاره خدمت سرته رسوی، علماء کرامو خلیفه عادل عمر بن عبدالعزیز رحمه الله ته د اولې صدۍ مجدد وئیلی دی، او علامه سیوطی رحمه الله په دې باندې د علماء کرامو اتفاق لیکلې دې، پس دا د احادیث شریفه چه کومه مبارکه ذخیره زمونږ مخې ته موجود ده، د موصوف د حسنِ تدبیر او سعی مشکور نتیجه ده.[2] تقبل الله مساعیه وجزاه الله عنا وعن جمیع المسلمین خیرا.

هسې علماء کرامو په هره زمانه کښې د هرې صدۍ د مجدد د خپل خپل تحقیق او معلوماتو مطابق تعیین فرمائیلې دې، او په هغې باندې کتابونه لیکلې شوی دی، د ډیرو ارباب علم او اصحاب بصیرت رائې دا ده چه د مولانا محمد الیاس رحمه الله د دعوت او تبلیغ دا مبارک تحریک د څوارلسمې هجری صدۍ په تجدیدی کارنامو کښې یوه کارنامه ده.

## طبقات المدونین:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه د تدوین حدیث مختلف ادوار دی، اول دور خو هغه دې کوم چه مخکښې تیر شو کوم ته چه تدوین علی الاطلاق وئیلې شی، یعنی کیف ما اتفق د هر نوع روایات او احادیث بغیر د څه خاص ترتیب او مضمون د رعایت کولو نه یو ځائې په کتابی شکل کښې راجمع کول. دویم دور تدوین علی الابواب دې، یعنی د احادیث په مخلوط ذخائرو کښې د هر مضمون احادیث بیل بیل کولی او په بیلو بیلو بابونو کښې ترتیب ورکول ددې نه پس بیا دریم دور راځی تدوین علی الصحاح.... چه په هغې کښې حضرات محدثینو دا اهتمام اوکړو چه په موجوده ذخیرو کښې ئې احادیث صحیحه د سقیمه نه ممتاز کړل، او صرف د صحیح احادیثو ئې جدا انتخاب اوکړو، د ټولو نه اول دور د ړومبئ صدئ په اختتام باندې بیا موندلې شو، دویم دور د دویم صدئ په مینځ کښې بیا موندلې شو، او دریم دور د دریمې صدئ په اوائلو کښې بیا موندلې شو.

د اول دور د حضراتو تعیین په تفصیل سره پورته تیر شو، او د دویم دور په حضراتو کښې دا نومونه زیات مشهور دی، ابن جریج، د دوی نوم عبدالملک بن عبدالعزیز بن جریج دې، هشیم بن بشیر الواسطی، معمر بن راشد الیمنی، امام مالک او عبدالله بن مبارک رحمهم الله وغیره او د دریم دور په حضراتو کښې د ټولو نه ړومبې نوم د امام

---

[1] من حدیث ابي هریرة رضي الله عنه مرفوعا ان الله یبعث لهذه الامة علي راس کل مائة سنة من یجدد لها دینها اخرجه ابوداؤد في کتاب الملاحم وکذا الطبراني في الاوسط والحاکم في المستدرک)

[2] د هغوی په سوانح او سیرت باندې مستقل کتابونه لیکلې شوې دی، دهغې نه یو هغه دې کوم چه د امام مالک رحمه الله بغیر د واسطې نه شاګرد رشید ابو محمد عبدالله بن عبدالحکم المالکی المصری المتوفی ۲۱۴ هجری تالیف کړې دې، چه په هغې کښې د موصوف د زهد او قناعت، تقوی او طهارت، خوف او خشیت او په زمانه د خلافت کښې د عدل او انصاف او د تواضع قصې ډیرې په ښکلې انداز کښې لیکلې شوې دی، چه دهغې اردو ترجمه اوس اوس د مکتبه خلیلیه نه شائع شوې ده، د کتاب مترجم مولانا محمد یوسف صاحب لدهیانوی رحمه الله دې)

بخاري رحمه الله دي او د هغوی نه پس د امام مسلم رحمه الله
د دې درې وارو ادوارو (طبقات ثلاثه) ذکر علامه سیوطي رحمه الله په خپله الفیه[1] کښې داسې کړې دې!

| | |
|---|---|
| اول جامع الحديث والاثر | ابن شهاب امر له عمر |
| و اول الجامع للابواب | جماعة في العصر ذواقتراب |
| كابن جريج و هشيم مالك | و معمر و ولد المبارك |
| و اول الجامع باقتصار | على الصحيح فقط البخارى |

يعنی د عمر بن عبدالعزيز په حکم باندې احاديثو لره جمع کونکې د ټولو نه اول هستی د ابن شهاب الزهری رحمه الله ده او خاص د ابوابو په ترتيب باندې د ټول نه مخکښې احاديثو لره راجمع کونکی يو جماعت دې کوم چه تقريبا د يوې زمانې دی لکه ابن جريج، هشيم، امام مالک، معمر بن راشد اليمني او عبدالله بن مبارک رحمهم الله، او صرف د صحيح احاديثو راجمع کونکو مقتدا امام بخاری رحمه الله دې.

زمونږ شيخ رحمه الله په مقدمه د اوجز کښې ليکلي دی چه د حافظ ابن حجر رحمه الله د کلام نه طبقات مدونين څلور معلوميږی، هغوی د آخری طبقې نه مخکښې د يوې طبقې اضافه کړې ده، يعنی تدوين على المسانيد، مسند په انواع د کتب حديث کښې يو خاص قسم دې، په کوم کښې چه احاديث د صحابه کرامو د نومونو په ترتيب سره ذکر کولې شی، د مضمون حديث لحاظ په هغې کښې نه وی، په دې طبقه کښې حافظ د دوه شخصياتو نومونه پيش کړی دی، عبيدالله بن موسى العبسى او نعيم بن حماد الخزاعى او بيا ددې نه پس خو سلسله قائم شوه، او ډير مسانيد اوليکلې شو، مسند ابوداؤد الطيالسى، مسند حميدی، مسند ابويعلى او د امام احمد بن حنبل رحمه الله مسند خو ډير مشهور دې، کوم چه زما په خيال کښې په دې وخت موجوده کتب حديث کښې د ټولو نه ضخيم او لوئې دې، اوريدلې مو دی چه په هغې کښې د ديرشو زرو احاديثو ذخيره ده، او د ټولو نه لويه خوبی ئې دا ده چه سره ددې ګڼر تعداد روايتونو دهغې روايتونه قوی دی پس شاه عبدالعزيز صاحب دهلوی رحمه الله دا کتاب په طبقاتو د کتب حديث کښې په دويمه طبقه کښې شمار کړې دې، يعنی سنن ثلاثه (ابوداؤد، ترمذی، نسائی) په درجه کښې ئې شمار کړې دې.

### كتابت حديث:

دا د پنځم نمبر کوم چه د مدون حديث بحث دې دهغې يوه تکمله باقی ده، يعنی کتابت حديث، او حاصل ددې دا دې لکه چه حضرت شيخ رحمه الله به په درس بخاری کښې فرمائيل چه فرقه ضاله يعنی منکرين حديث دلته دا اشکال کړې دې چه د تدوين حديث سلسله لکه چه د پورته بيان نه معلوميږی د رسول الله ﷺ د وفات نه تقريبا سل کالونه پس شروع شوې ده،

[1] الفيه هم د تصنيف يوه نوع ده، چه په زرو اشعارو کښې په يو فن يوکتاب اوليکلې شی لکه په اصول حديث کښې الفيه سيوطی، او الفيه عراقی مشهور دی.

کوم کلام چه د متکلم د انتقال نه سل کاله پس اولیکلې شی او مرتب کړې شی، هغه څنګه قابل قبول کیدې شی، په دې اوږده موده کښې د سهو او نسیان قوی امکان دې، ځکه چه په موجوده کتابونو کښې د ټولو نه قدیم مجموعه مؤطأ امام مالک ده، او ددې وجود دنیا ته په قول د ابوطالب مکی د رسول الله ﷺ د وفات نه تقریبا یو سل او لس یا شپږ شلې کاله پس راغلې دې، ځکه چه مؤطأ په ۱۲۰ یا ۱۳۰ هجری کښې تیاره شوه، د منکرین حدیث ددې قسم اشکالاتو او تفوهاتو زمونږ علماء کرامو جوابونه ورکړې دی، مستقل کتابونه پرې چهاپ شوی دی (۱) مونږ دلته دا وایو چه د منکرین حدیث د طرف نه دا سراسر مغالطه ده هغوی په کتابت حدیث او تدوین حدیث کښې فرق نه کوی حال دا چه په دواړو کښې فرق دې هغه دا چه د تدوین حدیث بیان کوم چه اوس تیر شو هغه بیل څیز دې او نفس کتابت حدیث بیل څیز دې، د تدوین نه مراد باقاعده په کتابی شکل کښې جمع کول دی، دا بیشکه د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په زمانه کښې او د رسول الله ﷺ د وفات نه تقریبا سل کاله پس شروع شو، خو د نفس کتابت سلسله خو خپله د رسول الله ﷺ په ژوند کښې شروع شوې وه، ډیر احادیث صحیحه په دې باندې دال دی او اکثر مصنفینو د صحاح ستة د کتاب العلم په عنوان سره مستقل ابواب قائم کړی دی.

امام بخاری رحمه الله په بخاری شریف کښې د ﴿باب كتابة العلم﴾ د لاندې درې احادیث ذکر فرمائیلې دی.

د ټولو نه اول ئې د ابوجحیفه رحمه الله روایت نقل کړې دې چه شاګرد دې د علی رضی الله عنه هغوی د علی رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه تاسو سره څه کتاب شته؟ (چه په هغې کښې احادیث نبویه یا د اهل بیت متعلق خصوصی احکام لیکلې شوې وی) په دې باندې علی رضی الله عنه په جواب کښې اوفرمائیل: لَا، إِلَّا كِتَابُ اللَّهِ، أَوْ فَهْمٌ أُعْطِيَهُ رَجُلٌ مُسْلِمٌ، أَوْ مَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ، یعنی ما سره لیکلې شوې هیڅ نشته سوا د کتاب الله نه چه هغه لیکلې شوې دې، یا مونږ سره هغه فهم او پوهه ده کومه چه یو مسلمان سړی ته ورکړې شوې وی یا هغه امور دی کوم چه په دې صحیفه کښې لیکلې شوی دی، ابوجحیفه رحمه الله تپوس اوکړو ﴿فَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ؟﴾ په دې صحیفه کښې څه خبرې دی؟ سیدنا علی رضی الله عنه جواب ورکړو، ﴿الْعَقْلُ وَفِكَاكُ الأَسِيرِ، وَلاَ يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ﴾ یعنی بعض دیتونه او قصاصونه او د قیدیانو متعلق احکام دی، او د نسائی په روایت کښې دی ﴿فاخرج كتابا من قراب سيفه﴾ یعنی سیدنا علی رضی الله عنه د خپلې تورې د تیکی نه څه لیکل راویستل او هغه ئې ورته اوښودل.

د ابوجحیفه ددې سوال مقصود دا وو چه د علی رضی الله عنه په باره کښې ډیر خلق وائی چه هغوی سره مخصوص علوم دی، او رسول الله ﷺ هغوی ته څه خاص وصیتونه فرمائیلې دی، لکه چه روافض وائی نو علی رضی الله عنه په خپل جواب کښې دهغې پوره پوره تردید اوفرمائیلو.

(۱) د مولانا حبیب الرحمن اعظمی رحمه الله تصنیف نصرة الحدیث په نوم باندې هم په دې موضوع باندې په اردو کښې یو مستند کتاب دې، او په السنة ومكانتها في التشريع الاسلامي عربي د کښې مصطفی حسنی السباعی،

۲: د پورته ذکر کړې شوی باب دویم حدیث د ابوهریره ﷺ نه روایت دې، چه د فتح مکه په کال باندې یو رجل خزاعی یو رجل لیثی قتل کړې وو نو په دې موقع باندې رسول الله ﷺ د حرم محترم د حرمت او تعظیم په باره کښې خطبه ارشاد اوفرمائیله په دې وخت کښې یو یمنی سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه یا رسول الله ﷺ دا خطبه ماته اولیکئ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ اکتبوا لابی شاه ﴾ چه دا خطبه دې هغه ته لیکلو سره ورکړې شی.

۳: دریم حدیث هم د ابوهریره ﷺ دې هغوی فرمائی ﴿ مَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم أَحَدٌ أَكْثَرَ حَدِيثًا مِنِّي إِلاَّ مَا كَانَ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، فَإِنَّهُ كَانَ يَكْتُبُ، وَلاَ أَكْتُبُ ﴾ یعنی صحابه کرامو ﷺ کښې څوک هم زما نه زیات احادیث روایت کونکې نشته، سوا د عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ څکه چه هغه به لیکل کول او ما به نه کول.

د بخاری په روایت کښې خو صرف دومره دی، او د سنن ابی داؤد په روایت کښې داسې دی چه سیدنا عبدالله بن عمرو بن العاص خپله فرمائی چه ما به د رسول الله ﷺ هره خبره لیکله، نو زه بعض قریشو ددې نه منع کړم چه رسول الله ﷺ بعض وخت په غصه کښې وی او بعض وخت په خوشحالئ کښې وی، غرض دا چه هره خبره قابل نقل نه وی، په دې باندې عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ فرمائی چه ما ددې خبرې ذکر رسول الله ﷺ ته اوکړو، نو هغوی ﷺ ارشاد اوفرمائیلو ضرور ئې لیکه که د غصې حالت وی او که د رضا، ﴿ فانی لا اقول فیهما الا حقا ﴾ چه زما د ژبې نه په هر حال کښې حق راوځی.

او عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ ددې خپلې مجموعې نوم "صحیفه صادقه" کیخودلې وو، او هغوی به فرمائیل، ﴿ ما یرغبنی فی الحیوة الا الصادقة والوهط ﴾ چه زما په دنیا کښې رغبت صرف د دوه څیزونو د وجې نه دې یو خو دا صحیفه صادقه، او بله هغوی خپله یو زمکه یاده کړه چه په هغې کښې به ئې کرونده وغیره کوله، چه هغې ته به وهط وئیلې شو، چه دهغې ذکر د نسائی په روایت کښې هم راغلې دې، دا صحیفه د عبدالله بن عمرو ﷺ په وفات باندې د هغوی نمسی شعیب بن محمد بن عبدالله ته ملاؤ شوې وه. او د شعیب نه د هغوی ځوئی عمرو روایت کوی، چنانچه د حدیث په کتابونو کښې چه څومره احادیث په دې سلسلې سره نقل کړې شوې دی، یعنی عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده، هغه ټول د صحیفه صادقه نه اخستلې شوې دی.

خو د بخاری په دې حدیث باندې دوه اشکالات راځی:

## ړومبې اشکال او دهغې جواب

او اشکال دا چه د حدیث مقتضی خو دا ده چه د عبدالله بن عمر ﷺ مرویات د ابوهریره ﷺ نه زیاتیدل پکار دی، حالانکه داسې نه ده بلکه ابوهریره ﷺ په أصحاب الألوف کښې دې!

کن حدیث بوهریره راشمار پنج الف وسه صد وهفتاد وچار

یعنی د ابوهریره ﷺ د روایت کړې احادیثو تعداد پنځه زره درې سوه او شپږ اویا دې او عبدالله بن عمرو ﷺ په اصحاب مئین کښې دې د هغوی نه صرف اووۀ سوو ته نزدې

احادیث روایت کړې شوې دی.
حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې ددې اشکال ډېر جوابونه کړی دی.
**(رومبی جواب):** (١) دا استثناء منقطع ده او په دې صورت کښې اشکال بیخی ختمیږی، ځکه چه په دې صورت کښې به د کلام مطلب دا وی چه په صحابه کرامو کښې چا سره هم زمانه زیات احادیث نه وو، اګرچه دا خبره ضرور ده چه عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما به احادیث لیکل او ما به نه لیکل، پس په دې کښې امکان دې ددې خبرې چه د هغوی احادیث زما نه زیات شی (کوم چه زه په یقین سره نه شم وئیلې) خو د عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه علاوه د نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم په باره کښې هغوی یقین سره وائی چه زما احادیث د هغوی نه زیات دی.
**(دویم جواب):** (٢)او که استثناء متصل اومنلې شی نو بیا په دې صورت کښې بیشکه د ابوهریره رضی الله عنه د کلام مقتضی دا ده چه د عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما احادیث زما د احادیث نه زیات دی، خو حقیقت دا دې چه په کتب حدیث کښې د هغوی روایات د ابوهریره رضی الله عنه د روایاتو نه ډېر کم دی، لکه چه مخکښې تیر شو، پس ددې سبب څه دې؟ د هغوی روایات چرته لاړل؟ علماء کرامو د عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما د قلت احادیث مختلف اسباب بیان کړی دی.
**(سبب نمبر ١):**یو سبب دا بیان کړې شوې دې چه د عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما اشتغال بالعبادة د تعلیمی اشتغال نه زیات وو، په دې وجه د هغوی په روایاتو کښې قلت واقع شو.
**(سبب نمبر ٢):**دویم سبب دا بیان کړې شوې دې چه د اسلامی فتوحاتو نه پس د هغوی زیات تر قیام په مصر او طائف کښې وو، او دې دواړو ځایونو ته د علماء کرامو رحلة علمی دومره نه وو څومره چه د مدینې منورې طرف ته وو، او د ابوهریره رضی الله عنه قیام په مدینه منوره کښې وو، هلته به طالبین علم حدیث په کثرت سره راتلل، او خپله ابوهریره رضی الله عنه هتله په تحدیث روایات کښې مصروف وو او تر د آخری عمره پورې وو، په دې وجه د ابوهریره رضی الله عنه نه د روایت کونکو تعداد په دنیا کښې زیات شو او د هغوی روایات په عالم کښې ښه نشر شو، چنانچه امام بخاری رحمه الله فرمائی چه د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کونکی او د هغوی شاګردان اته سوه تابعین دی، دا خبره بل یو صحابی رضی الله عنه ته نه ده حاصله شوې.
**(سبب نمبر٣):**او یو سبب دا بیان کړې شوې دې چه د ابوهریره رضی الله عنه په حق کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم دعاء فرمائیلې وه چه د هغوی نه یو روایت هم هیر نه شی، په دې وجه د هغوی روایات د عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما نه هم زیات شو.
**(سبب نمبر٤):**او یو سبب دا هم بیان کړې شوې دې چه عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما ته د شام په فتوحاتو کښې ډېر کتابونه او صحائف د اهل کتابو د صحائفو نه په لاس راغلې وو، چه دهغې به هغوی مطالعه کوله او دهغې نه به ئې مضامین هم نقل کول نو د هغوی ددې طرز د وجې نه ډیرو تابعینو د هغوی نه حدیث اخستل پریخودلې وو، دا ټول جوابات حافظ په فتح الباری کښې ذکر کړی دی، د کومو صحائفو ذکر چه د حافظ په کلام کښې

راغلي دي دهغې طرف ته اشاره حافظ ابن کثیر رحمه الله هم په خپل تفسیر کښې کړې ده، [1] خاص طور سره د صحیفه یرموکیه ذکر کومه چه عبدالله رضی الله عنه ته د یرموک نه حاصله شوې وه، دهغې ذکر د هغوی په تفسیر کښې څو ځایونو کښې راغلي دي، او په ابوداؤد کښې هم په باب امارات الساعة کښې دی، ﴿وکان عبدالله یقرء الکتب﴾ [2]

## دويم اشكال او دهغې جواب

دويم اشکال دا دې چه د بخاری شریف ددې حدیث نه خو معلومیږی چه ابوهریره رضی الله عنه به احادیث نه لیکل، او د مستدرک حاکم وغیره کتب د روایت نه په ظاهره معلومیږی چه هغوی به لیکل کول، ځکه چه حسن بن عمرو وائی چه زما په موجودګئ کښې یوه ورځ د ابوهریره رضی الله عنه مخې ته یو حدیث اولوستلې شو نو حسن وائی چه په دې باندې ابوهریره رضی الله عنه زما لاس اونیولو او خپل کور ته ئې بوتلم او هلته ئې د ډیرو احادیثو کتابونه او مجموعې مونږ ته اوښودلې او وې فرمائیل اوګورئ دا احادیث ماسره لیکلې موجود دی؟ ددې تعارض ابن عبد البر رحمه الله دا جواب ورکړې دې چه حدیث همام (د بخاری حدیث د کوم راوی چه همام دې) اصح دې، او هغه دويم روايت ضعيف دې، او دويم جواب هغوی دا کړې دې چه په دواړو روایتونو کښې جمع هم ممکن ده داسې چه دا اووئیلې شی چه ابوهریره رضی الله عنه به په عهد نبوی صلی الله علیه وسلم کښې لیکل نه کول او روستو ئې لیکل شروع کړل، په دې باندې حافظ په فتح الباری کښې لیکی چه ددې نه زیات قوی جواب دا دې چه د ابوهریره رضی الله عنه سره د حدیث د مکتوب کیدو نه دا نه لازمیږی ﴿ان یکون بخطه﴾ چه د هغوی په لاس دې لیکلې شوې وی، پس چه کله د بخاری د روایت نه دا ثابت ده چه هغوی به لیکل نه کول نو دا خبره تقریبا متعین ده چه هغه احادیث هغوی سره د بل چا د لاس لیکلې وو.

هم دغه شان د نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم مکتوبات او لیکل ملاویږی لکه مکتوب سمره د دهغوی د ځامنو په نوم باندې مشهور د دې، په مسند بزار کښې چه دهغې سل روایتونه دی او امام ابوداؤد رحمه الله هم په خپل سنن کښې ددې مکتوب سمره نه شپږ روایات د مختلفو مضامینو په متفرق ابوابو کښې ذکر فرمائیلې دی کوم چه ټول په ټول یو سند سره روایت کړې شوې دی او د هر حدیث په شروع کښې ﴿اما بعد﴾ ذکر دې، [3] هم دغه شان د همام بن

[1] ذکره لي الشیخ محمد یونس الجونفوري)

[2] چه عبدالله بن عمرو به د آسمانی کتابونو (تورات او انجیل) مطالعه کوله.

[3] سوال پیدا کیږی چه د هر حدیث په شروع کښې اما بعد ولې دی؟ جواب دا دې چه په اصل کښې صورت حال دا دې چه مکتوب سمره د احادیثو یو جزء یعنی رساله ده، ددې رسالې ټول احادیث په یو سند سره روایت کړې شوې دی، ګویا ټول احادیث په سند کښې مشترک دی په دې وجه مرتب کتاب یعنی سمره رضی الله عنه داسې اوکړل چه د رسالې په شروع کښې ئې هغه سند اولیکلو په کوم چه هغه ټول احادیث روایت کړې شوې دی ددې نه پس ئې په رساله کښې مسلسل متون احادیث ذکر اوفرمائیل، او چونکه دا رساله هغوی د خپلو ځامنو دپاره لیکلې وه، یعنی دا احادیث ئې په هغه رساله کښې د هغوی دپاره جمع کړې وو نو ځنګه چه د مواعظ وغیره په شروع کښې ......

منبه صحیفه عن ابی هریره رضی الله عنه نه معروف او مشهور ده کومه چه خو ورځي مخکښې په حیدر آباد کښې طبع شوې ده، هم دغه شان د رسول الله ﷺ دعوت نامې او خطونه، او بعض احکام صدقات او فرائض وغیره کوم چه لیکلو سره رسول الله ﷺ خپلو عمال وغیره ته عطاء فرمائیل، پس په کتاب الصدقات کوم چه هغوی عمرو بن حزم ته لیکلو سره ورکړې وو چه کله هغوی د نجران د عامل په طور لیږلې کیدلو، معروف او مشهور دې.

**(په زمانه د رسالت کښې باقاعده د کتابت حدیث نه کیدو وجوهات)**

خو باقاعده په کثرت اهتمام سره کتابت حدیث د رسول الله ﷺ په زمانه کښې جمهور صحابه کرامو رضی الله عنهم نه دې کړې، چه دهغې ډیرې وجې دی.

**(رومبۍ وجه)**: ۱: اول دا چه کتابت خپله مقصود بالذات نه دې بلکه دا خو صرف د حفاظت یو ذریعه ده، که د چا حافظه ډیره قوی وی نو هغه ته د کتابت ضرورت نه وی، او د عربو حافظې ډیرې قوی وې، لوئې لوئې قصیدې به ئې ډیرې په آسانئ سره یادولې.

**(دویمه وجه)**: ۲: دویمه وجه دا ده چه اکثر په هغوی کښې د کتابت نه خبر نه وو، ډیرو کمو خلقو له کتابت ورتلو.

**(دریمه وجه)**: ۳: ددې نه علاوه یو وجه دا هم ده چه د بعض روایاتو نه د کتابت حدیث ممانعت معلومیږی، لکه په مسلم شریف کښې د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دې ﴿لاَ تَكْتُبُوا عَنِّى وَمَنْ كَتَبَ عَنِّى غَيْرَ الْقُرْآنِ فَلْيَمْحُهُ﴾ هم په دې وجه باندې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د کتابت حدیث په باره کښې اختلاف راغلې وو، بعضو ورته جائز او بعضو ورته ناجائز وئیلو، ددې وجوهاتو په بناء صحابه کرامو رضی الله عنهم په کثرت سره روایات نه دی لیکلی.

د پورته ذکر شوې تقریر نه معلومه شوه چه د کتابت حدیث په باره کښې په روایاتو کښې تعارض پیدا شو، د بعضو نه جواز بلکه امر او د بعضو نه منع ثابتیږی، ددې ډیر جوابونه دی.

**د مسلم د حدیث نه جوابات**

**(رومبې جواب)**: ۱: د صحیح مسلم په روایت کښې د محدثینو کلام دې، د امام بخاری رحمه الله رائې دا ده چه د حدیثِ مسلم رفع ثابت نه ده بلکه هغه موقوف دې په صحابی باندې.

**(دویم جواب)**: ۲: دویم جواب دا دې چه دا منع عارضی او وقتی وه چه د قرآن کریم سره د احادیثو التباس رانشی.

**(دریم جواب)**: ۳: دریم جواب دا دې چه د رسول الله ﷺ د منع کولو مطلب دا دې چه یو ځائې

---

له ...... د خطبې نه پس لفظ د اما بعد وی دغه شان ددې رسالې په شروع کښې هم دی، اوس روستو راتلونکې هر مصنف رحمه الله چه کله ددې رسالې نه یو حدیث اخلی نو که د اول نه وی او که د آخر نه، نو د هغه حدیث په شروع کښې هغه سند لګوی کوم چه د هغه رسالې په شروع کښې ذکر شوې دې، امام ابوداؤد رحمه الله ددې رسالې نه مختلف قسم شپږ احادیث په خپل پوره کتاب کښې ذکر کړی دی، د تولو په شروع کښې ئې هغه سند لګولې دې کوم چه د رسالې په شروع کښې دې، په دې وجه ددې شپږو احادیثو په سند کښې اما بعد موندلې شی.

دواړه او نه ليکلي شي. او که داسې ليکلې شوې وي نو هغه وران کړئ.
(څلورم جواب): ۴: او وئيلې شوې دي چه نهي مقدم ده، او د اذن روايات روستنی دی کوم چه دهغې دپاره ناسخ دي.
بهرحال په سلف صالحينو کښې خو د کتابت حديث د جواز او عدم جواز اختلاف وو، خو روستو د خليفه عادل عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په زمانه کښې په جواز د کتابت بلکه په استحباب د کتابة باندې د ټولو اجماع اوشوه، كما قال الحافظ بلکه حافظ داسې هم ليکلې دي چه داسې هم وئيلې کيدې شي چه په چا باندې تبليغ علم واجب وي او حال دا چه هغه سره د خپل نسيان ويره وي نو د هغه په حق کښې کتابت حديث واجب دې.

(۶) **نسبته** ([1])

ځان پوهه کړه چه د علوم اجناس مقرر دي، اول د علم دوه قسمونه دی، عقليه او نقليه،
بيا د نقليه دوه قسمونه دی :۱: شرعيه، ۲: غير شرعيه،
بيا د شرعيه دوه قسمونه دی، ۱: اصليه، ۲: فرعيه،
اوس کتل دا دی چه علم حديث د کوم جنس نه دې، نو د علم حديث تعلق د رسول الله ﷺ د اقوالو او افعالو وغيره سره دې کوم چه د منقول د قبيلې نه دې، او زمونږ د دين مدار چونکه په قرآن او حديث باندې دې، او دواړه خيزونه د اصل دين نه دی، لهذا علم حديث د علوم نقليه شرعيه اصليه نه شو، او علم فقه اګرچه د علوم نقليه شرعيه نه دې خو فرعيه دې نه اصليه، او نحو او صرف او معاني اګرچه علوم نقليه دی خو غير شرعيه دی.
**مرتبه** : حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل : مرتبه په دوه اعتبارو سره وی، يو د تعليم او تعلم، او دويمه د شرافت او فضيلت په لحاظ سره.

د تعليم په لحاظ سره د علم حديث مرتبه دا ده چه دا د علوم عربيه اليه نه پس کيدل پکار دی، ځکه چه زمونږ عجميانو دپاره ددې علوم نه بغير په حديث باندې پوهيدل ګران دی، اصل کښې د علوم عربيه دوه قسمونه دی، آليه او عاليه يا مقصوده او غير مقصوده نحو وصرف، معاني و بيان وغيره د علوم آليه نه دې چه د قرآن او حديث د پوهې دپاره آله ده، او تفسير، حديث او فقه علوم عاليه او مقصوده دی، د تعليم ترتيب داسې دې چه اول دې علوم آليه اولوستلې شی دهغې نه پس علوم عاليه. څنګه چه زمونږ په مدارس عربيه کښې وی چه د نحو او صرف تعليم په شروع کښې ورکولې شی، او دهغې نه پس د حديث او تفسير علم.

---

[1]) دويم تعبير ددې جنس يا اجناس دې، لکه څنګه چه د حضرت شيخ رحمه الله په تقرير بخاری کښې دی او صاحب د شرح تهذيب هم د جنس لفظ اختيار کړې دې، حاصل د دواړو تعبيرونو يو دې ځکه چه د نسبت مطلب هم دا دې چه ددې علم د فلاني علم سره څه نسبت دې، او په دواړو کښې څه فرق او تعلق دې، آيا دا علم د هغه بل علم جنس دې، او که دهغې نه علاوه د بل جنس دې)

## د علم حدیث فضیلت :

او د فضیلت په اعتبار سره مرتبه دا ده چه علم حدیث افضل العلوم الشرعیه دي. سفیان ثوري رحمه الله فرمائی ﴿ لا اعلم علما افضل من علم الحدیث ﴾ علوم شرعیه پنځه دی. حدیث، فقه، تفسیر، اصول فقه او علم العقائد. او بعض علماء علم تصوف مستقل علم شمار ګرځولي دی علوم دینیه ئی د پنځو په ځائي شپږ شمار کړي دی، د شرح عقائد د مشهور شرح النبراس مصنف هم دغه شان کړي دی. علامه سیوطی رحمه الله په تدریب کښي ددي علم شرافت بیانولو سره فرمائی چه باقی ټول علوم شرعیه دي علم ته محتاج دی، د فقه احتیاج خو ښکاره دي (چه زیات تر فقهی مسائل د احادیثو او بیا په دویمه درجه کښي د قیاس نه ثابت دی). او د تفسیر احتیاج دي علم ته داسي دي چه مفسرینو ددي خبري تصریح کړي ده چه﴿ اولی التفاسیر ما جاء عن النبی صلی الله علیه وسلم ﴾ چه غوره تفسیر هغه دي کوم چه د حدیث نه ثابت وی خو عجیبه خبره ده چه علامه سیوطی رحمه الله په الاتقان فی علوم القرآن کښي د علم حدیث په ځائي علم تفسیر ته افضل العلوم وائی، او په ظاهر کښي صحیح هم دا معلومیږی. ځکه چه د علم د افضلیت مدار دهغي په موضوع باندي وی خومره چه افضله موضوع وی هم هغه هومره به علم افضل وی او د علم حدیث موضوع که د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات دي نو د علم تفسیر موضوع قرآن کریم دي کوم چه کلام الله دي، د الله پاک صفت قدیمه دي کوم چه د علم حدیث د موضوع نه افضل دي، د ډیري مودي خبره ده چه ما د مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله په یو تصنیف کښي کتلي وو، هغوی لیکلي وو چه د یو ځل قصه ده چه د رمضان په میاشت کښي څه خلق ماته راغلل چه د هغوی خپل مینځ کښي په دي باندي اختلاف وو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات غوره دي د قرآن کریم نه اوکه قرآن کریم افضل دي؟ مولانا لیکلی دی چه ما ورته اووئیل قرآن کریم افضل دي، او وجه مي ورته هم هغه بیان کړه کومه چه پورته بیان شوه یعنی د حادث او قدیم فرق چه قدیم افضل وی د حادث نه ددي مضمون یو حدیث په المقاصد الحسنة کښي ملاؤ شوي دي چه دهغي الفاظ دا دی ﴿آیة من کتاب الله خیر من محمد واله﴾(صلی الله علیه وسلم) خوعلامه سخاوی ددي حدیث په باره کښي لیکی چه ماته دا روایت چرته هم ملاؤ نه شو، خو وړاندي تلو سره هغوی ډیر روایات د فضائل قرآن متعلق داسي جمع کړی دی چه دهغي حاصل دا دي چه د قرآن کریم یو آیت د اسمان اوزمکي اودنیا ومافیها نه افضل دي،خوپه دي قسم روایاتو سره مسئله نه حل کیږی.

د بنده په نزد ددي جواب دا دي چه که دا تسلیم هم کړي شی چه قرآن کریم افضل دي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ذات ګرامی نه، نو بیا به هم دا وئیلي شی چه د علم الحدیث موضوع د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات دي په حیثیت د وصف رسالت، او د علم تفسیر موضوع قرآن کریم دي په اعتبار د بیان معنی او ایضاح مراد، کوم چه د بندګانو صفت دي، نه په اعتبار د صفت باری کیدو یعنی په علم تفسیر کښي د قرآن کریم نه بحث په دي حیثیت سره نه کیږی چه هغه کلام الهی او صفت باری دي بلکه د ایضاح معنی په لحاظ سره کیږی، لهذا داسي وئیلي کیدي شی چه د علم حدیث موضوع افضل ده د تفسیر د موضوع نه،

وقد بقي بعض خبايا في الزوايا ([1])

## (۷) قسمت او تبویب:

څنګه چه د کتاب تقسیم او تبویب کولې شي لکه چه بعض وخت مصنف د کتاب په شروع کښې لیکی چه زما دا کتاب په دومره فصول او ابوابو باندې مشتمل دې، هم دغه شان د علم هم تقسیم او تبویب وی، مثلا مناطقه د علم منطق په باره کښې لیکی چه ددې مباحث په دوؤ حصو کښې تقسیم دی یعنی تصورات او تصدیقات یا قول شارح او حجت. صاحب تلخیص د علم معانی په باره کښې لیکلې دی ﴿ الفن الاول فی علم المعانی وهو ینحصر فی ثمانیة ابواب ﴾ چه د علم معانی مضامین په اتؤ ابوابو کښې منحصر دی هم دغه شان ځان پوهول پکار دی چه د علم الحدیث مضامین منحصر دی په ابواب ثمانیه کښې یعنی د حدیث په کتابونو کښې اته قسمه مضامین بیانولې شی، کوم حدیث چه هم تاسو ګورئ هغه به ددې ابواب ثمانیه نه خارج نه وی، بلکه هم په وې کښې به یو نه یو مضمون په هغې کښې موندلې شی.

او هغه ابواب ثمانیه دا دی:

۱: عقائد، ۲: احکام، ۳: تفسیر، ۴: تاریخ، ۵: رقاق، ۶: مناقب، ۷: آداب، ۸: فتن.

حضرات محدثینو په دې ابواب ثمانیه کښې په هر مضمون باندې بیل بیل تصنیفات هم کړې دی، او د حدیث پاک کوم کتاب چه په دې ټولو ابواب ثمانیه باندې مشتمل وی هغې ته جامع وائی. (علی القول المشهور). ([2])

---

[1] ددې وضاحت دا دې چه هسې خو دا مسئله مختلف فیه ده چه د رسول الله ﷺ ذات افضل دې او که قرآن کریم؟ کوم حضرات چه قرآن کریم ته افضل وائی هغه په دې بناء چه قرآن کریم کلام الهی او صفت باری دې، او ټول صفات باری قدیم دی، او رسول الله ﷺ حادث دې، او قدیم افضل وی د حادث نه، او د علم تفسیر موضوع قرآن کریم دې کوم چه قدیم دې، دلته بحث دا دې چه د لفظ قرآن اطلاق په کلام نفسی او لفظی دواړو باندې کیږي، او صفت باری کوم چه قدیم دې هغه په معنی د کلام نفسی دې نه قرآن په معنی د کلام لفظی څکه چه هغه خو حادث مرکب من الحروف دې، او د علم تفسیر موضوع قرآن کریم په معنی د کلام لفظی دې نه په معنی د کلام نفسی کما هو ظاهر فتامل.

[2] چنانچه د احادیث العقائد نوم علم التوحید کیخودلې شی، په دې کښې د امام بیهقی رحمه الله تصنیف کتاب الاسماء والصفات مشهور او معروف دې او احادیث الاحکام د کوم تعلق چه د کتب فقه د ترتیب مطابق د کتاب الطهارة نه واخله تر د کتاب الفرائض (وصایا) پورې دې، ددې قسم تصنیفات خو بیشمیره دی، د احادیثو د داسې کتاب نوم سنن کیخودلې شی، او احادیث التفسیر یعنی هغه احادیث چه دهغې تعلق د تفسیر قرآن سره وی دهغې نوم علم التفسیر کیخودلې شی، په دې موضوع باندې د حدیث ډیر کتابونه لیکلې شوې دی، لکه تفسیر ابن مردویه، تفسیر ابن جریر، تفسیر ابن ماجه، تفسیر ابن کثیر، او هم دغه شان د علامه سیوطی رحمه الله الدر المنثور کوم چه په فن حدیث کښې د تفسیر ډیر جامع او مشهور او معروف کتاب دې، او د احادیث التواریخ والسیر دوه حصې دی، یو هغه چه دهغې تعلق د آسمان، زمکې، ملائکه، انبیاء سابقین او امم سابقه جنات او شیاطین او د نورو حیواناتو د تخلیق سره وی، د هغه حصې نوم د محدثینو په اصطلاح کښې بدء الخلق دې. په صحیح بخاری کښې یو کتاب بدء الخلق په عنوان باندې موجود دې، او دویمه.....

## حكم الشارع :

په کومه علاقه کښې چه ددې صلاحيت لرونکې صرف يو کس وی هلته به د هغه د پاره ددې علم حاصلول واجب لعينه وی، او چرته چه صلاحيت لرونکی ډير اشخاص وی هلته به ددې تحصيل واجب على الكفاية وی، بفضله تعالى وتوفيقه مقدمة العلم پوره شوه.

**تنبيه** : د مقدمة العلم دا امور تسعه مونږ په هغه ترتيب او نهج باندې ذکر کړی دی کوم چه به زمونږ شيخ رحمه الله په درس بخاری کښې اختيارولو خو وړاندې په مقدمة الكتاب کښې مونږ د حضرت شيخ والا ترتيب قائم او نه ساتلې شو په هغې کښې چه مونږ کوم ترتيب زيات اسان اوګنړلو هغه مو اختيار کړو.

## مقدمة الكتاب

د مقدمة الكتاب حاصل او خلاصه صرف دوه څيزونه دی، **احدهما ما يتعلق بالمصنف** (په کسرې د نون سره) **والثانی ما يتعلق بالمصنَف** (يعنی كتاب) اول ترجمة المصنف يعنی د مصنف رحمه الله حالات او پوره تعارف، دويم د کتاب تعارف، اوس به چه لاندې کوم امور هم بيانولې شی دې ټولو ته به مقدمة الكتاب وئيلې شی، د ټولو نه اول ما يتعلق بالمصنِف رحمه الله واورئ.

---

ــه......حصه هغه ده چه دهغې تعلق د رسول الله ﷺ د ابتداء ولادت نه واخله تر وفات پورې، او د هغوی د آل و اصحاب رضي الله عنهم د ذات سره وی دهغې نوم علم السير دې، بس په دې کښې بېشميره کتابونه ليکلې شوی دی، لکه زاد المعاد في هدي خير العباد، د حافظ ابن القيم رحمه الله، سيرت ابن اسحاق، سيرت ابن هشام، او د قسطلانی مواهب لدنيه او د شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله مدارج النبوة اود مجدالدين فيروزآبادی صاحب قاموس سفرالسعادة چه ددې شرح شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله ليکلې شوې کوم چه په شرح سفر السعادة سره مشهور دې، او احاديث الرقاق ته علم السلوک والزهد وئيلې شی په دې موضوع باندې د امام احمد او عبدالله بن مبارک رحمهما الله کتاب الزهد مشهور دی او په جامع ترمذی کښې هم د زهد د رواياتو ډير اوږد باب موجود دې، او د احاديث المناقب نوم علم المناقب دې په دې کښې هم ډير تصانيف دی، لکه مناقب قريش، مناقب الانصار، مناقب العشرة المبشرة او د محب طبری کتاب الرياض النفرة في مناقب العشرة المبشرة مشهور دې او القول الصواب في مناقب عمر بن الخطاب، دغه شان القول الجلي في مناقب امير المومنين علي، او په مناقب علی کښې د امام نسائی رحمه الله رساله چه په هغې باندې د هغوی سخت مخالفت کړې شوې وو چه دهغې واقعه مشهور ده او د احاديث الآداب نوم علم الادب کيخودلې شی، د امام بخاری رحمه الله کتاب الادب المفرد په دې موضوع باندې مشهور دې، د ډيرو مدرسو په نصاب کښې داخل دې، او د احاديث الفتن نوم علم الفتن کيخودلې شی په دې کښې هم ډير تصنيفات دی، يو طويل او پخوانې تصنيف په دې کښې د نعيم بن حماد دې او اشراط الساعة يعنی د علامات قيامت په موضوع باندې چه کوم کتابونه ليکلې شوې دی ښکاره خبره ده چه هغه به هم په دې علم الفتن کښې شمار کولې شی، لکه الاشاعة لاشراط الساعة دسيد شريف محمد البرزنجی او الاذاعة د نواب صديق حسن خان بهوپالی او د شاه رفيع الدين صاحب کتاب علامات قيامت په نوم باندې په اردو کښې، دا ټول مضمون مونږد انتهائی مفيد کيدو په وجه د لامع الدراری د مقدمې نه په تلخيص سره اخستلې دې،

## د مصنف رحمه الله نوم، نسب او نسبت :

د مصنف رحمه الله اسم گرامی سلیمان دې، ابوداؤد ئې کنیت دې، د والد محترم نوم ئې اشعث دې، پوره نسب ئې داسې دې، سلیمان بن الاشعث بن اسحاق بن بشیر بن شداد بن عمرو الازدی السجستانی، ویقال له السجزی. الازدی : ازد په یمن کښې یو مشهور قبیله ده، السجستانی : نسبت دې د سجستان طرف ته، کوم چه معرب دې د سیستان، دا یو معروف ښهر دې په اطرافو د خراسان کښې د خراسان او کرمان ترمینځه هم په دې وجه مصنف رحمه الله ته خراسانی هم وئیلې شی، او په سجزی کښې دوه اقوال دی بعض وائی چه سجستان ته سجز هم وئیلې شی، دویم قول دا دې چه دا تغیر په نسبت کښې راتلو سره شوې دې، په نسبت کښې تغیر ډیر کیږی لکه د نسبت الی الری په وخت رازی وئیلې شی.

د سجستانی په باره کښې مورخ ابن خلکان لیکلی دی چه دا نسبت د سجستان یا سجتانه طرف ته دې التی هی قریة من قری بصرة، یعنی کوم چه د بَصرې یو قریة ده، شاه عبدالعزیز صاحب رحمه الله په دې باندې رد کړې دې چه د ابن خلکان سره ددې چه په تاریخ دانئ کښې کمال لری دهغه نه په دې خبره کښې غلطی شوی ده، او صحیح دا ده چه د اقلیم معروف طرف ته ئې نسبت دې، نواب صدیق حسن خان رحمه الله فرمائی چه د ابن خلکان د تخطیه حاجت نشته، ځکه چه هغوی دا قول په قیل سره بیان کړې دې.

## سن ولادت او وفات :

امام ابوداؤد رحمه الله د دریمې صدئ په شروع کښې په ۲۰۳ هجری کښې په سجستان کښې پیدا شو، (دا هغه زمانه وه چه طاهر بن حسین د مامون الرشید د طرف نه د خراسان گورنر وو..... من المترجم) د تحصیل علم په سلسله کښې ئې مختلف بلادو مصر، شام، حجاز، عراق او خراسان ته سفرې اوکړې، بغداد ته ئې بار بار تشریف راوړې دې، او بیا ئې هم هلته استوګنه اختیار کړه، او د خپل سنن ئې هم هلته روایت اوکړو.

## د بغداد قیام او د هغه ځائې نه بصرې ته منتقل کیدل :

امام ابوداؤد رحمه الله په اخیر عمر کښې د وفات نه څلور کاله مخکښې په ۲۷۱ هجری کښې د امیر بصره په درخواست باندې د بغداد نه بصرې ته منتقل شوې وو، چه په هغې کښې هغوی د امام صاحب نه درې فرمائشونه کړی وو، چه دهغې قصه هغه ده کومه چه د امام صاحب یو خادم ابوبکر بن جابر رحمه الله بیانوی چه د یوې ورځې قصه ده چه امام ابوداؤد رحمه الله د ماښام د مانځه نه پس خپل کور ته تشریف اوړې وو، امیر بصره ابو احمد الموفق د هغوی د کور په دروازه باندې حاضر شو او دروازه ئې اوټکوله، د هغوی خادم ابوبکر بن جابر رحمه الله خبر ورکړو چه امیر بصره تشریف راوړې دې، د دننه راتلو اجازت ورته ملاؤ شو، امام صاحب ترې نه تپوس اوفرمائیلو چه تاسو څنګه تشریف راوړو؟ هغوی ورته اووئیل چه درې حاجتونه دی، اول دا چه تاسو بصرې ته لاړ شئ چه بصره ستاسو په علم باندې آباده شی، ځکه چه هلته به تاسوله د دنیا نه د هر طرف نه خلق د علم د حصول دپاره راځی. دویم حاجت دا دې چه تاسو زما اولاد ته خپل سنن اوښایئ، او دریم دا چه د هغوی دپاره مجلس

روایت (درس) بیل منعقد کړئ، ځکه چه زما اولاد د عوامو سره نه کینی، امام ابوداؤد رحمه الله اول دوه خبرې منظور کړې، او د دریمې د منظورولو نه ئې عذر اوفرمائیلو، او وې فرمائیل ﴿الناس شریفهم ووضیعهم فی العلم سواء﴾ یعنی د تحصیل علم په باره کښې اوچت خاندان او ښکته خاندان ټول برابر دی. د هغوی خادم ابوبکر رحمه الله وائی چه بیا هم دغه شان اوشوه چه ټولو به په یو مجلس کښې درس اوریدلو، خو د امیر بصره د درخواست په رعایت کښې به ئې صرف دومره اوفرمائیل چه د اولاد امیر او د عوامو ترمینځه به یو حجاب حائل کولې شو، باقی د هغوی دپاره بیل مستقل مجلس منعقد نه کړې شو.

امام موصوف رحمه الله د خپل ژوند اخری څلور کلونه په بصره کښې تیر کړل او په ١٦ شوال ٢٧٥ هجری کښې د جمعې په ورځ باندې وفات شو. هغوی وصیت فرمائیلې وو چه که کیدې شی نو حسن بن مثنی دې ماته غسل راکړی ګینې د سلیمان بن حرب کتاب الغسل ته کتلو سره دې ماته غسل راکړې شی، د جنازې مونځ پرې عباس بن عبدالواحد اوکړو، او د سفیان ثوری رحمه الله د قبر په خوا کښې دفن کړې شو رحمه الله.

## شیوخ او تلامذة:

امام ابوداؤد د امام بخاری او د امام مسلم د شیوخ رحمهم الله نه احادیث حاصل کړی دی، حافظ ابن حجر رحمه الله د هغوی د شیوخ تعداد تقریبا درې سوه ښودلې دې، په باقی ارباب صحاح سته کښې هغوی د چا شاګرد هم نه دې، د هغوی په شیوخ کښې امام احمد بن حنبل رحمه الله دې امام ابوداؤد رحمه الله د هغوی په ډیرو ممتاز شاګردانو کښې دې، او خپله امام احمد رحمه الله هم د هغوی نه یو حدیث اوریدلې دې، او امام ابوداؤد رحمه الله به په دې باندې فخر کولو، هغه حدیث، حدیث العتیره دې یعنی ﴿ان رسول الله ﷺ سئل عن العتیرة فحسنها﴾ صاحب منهل ته وهم شوې دې، او هغوی د حدیث العتیره نه هغه مشهور حدیث مراد اغستلې دې کوم چه په اکثر صحاح ستة کښې دې، او خپله په ابوداؤد کښې هم دې یعنی ﴿لا فرع ولا عتیرة﴾ خو دا صحیح نه دی، ځکه چه دا حدیث غریب نه دې او امام احمد رحمه الله دې ته غریب وئیلې وو، پس حافظ ابن کثیر رحمه الله په البدایة والنهایة کښې لیکلی دی چه امام ابوداؤد رحمه الله وائی چه زه یوه ورځ د امام احمد رحمه الله په خدمت کښې حاضر شوم، اتفاق سره ابن أبی سمینه هم راغې نو هغوی ته امام احمد اوفرمائیل چه د هغوی (ابوداؤد) سره یو غریب حدیث دې هغه اولیکه، چنانچه هغوی ما ته درخواست اوکړو په دې باندې ما هغوی ته هم هغه حدیث املاء کړو، په دې قصه کښې ددې حدیث د غریب کیدو تصریح ده.

دا زمونږ او ستاسو د سبق (عبرت) حاصلولو مقام دې چه امام احمد بن حنبل رحمه الله سره د بې شمیره احادیثو د معلوم او محفوظ کیدو باوجود خپل یو شاګرد سره حدیث اولیدو نو هغه ئې ډیر په اهتمام سره واوریدلو او هم هغه وخت ئې اولیکلو، بلکه نورو ته ئې دهغې ترغیب ورکړو.

د امام احمد بن حنبل رحمه الله یو بله واقعه رایاده شوه کومه چه ملا علی قاری رحمه الله په مرقاة کښې لیکلې ده چه یو ځل د امام احمد رحمه الله یو شاګرد د هغوی نه تپوس اوکړو چه ﴿الی

متى العلم؟ فاين العمل ﴾ چه دا د لوستلو او زدکړې کار به آخر ترکومې پورې وی عمل به کله کوو؟ امام احمد بن حنبل رحمه الله ددې خبرې په اوریدو باندې ډیر مناسب جواب ورکړو ﴿ علمنا هذا هو العمل ﴾ چه دا زمونږ د احادیثو یادول اوریدل او اورول پخپله یو عمل دې، اصل کښې دې حضراتو سره صرف الفاظ نه وو بلکه د علم حقیقت او دهغې روح او دهغې نور په دې حضراتو کښې موجود وو، په داسې صورت کښې دا هر څه لیکل او لوستل علمی اشتغال پخپله یو عمل جوړیږی. والله الموفق.

## د امام ابوداؤد رحمه الله تلامذه :

هسې خو ښکاره ده چه د امام ابوداؤد به په سوونو څۀ بلکه په زرګونو شاګردان وی، خو په هغوی کښې چه کوم مشهور شخصیات دی او کوم چه د امامت درجې ته رسیدلې دی په هغوی کښې امام ترمذی او امام نسائی دا دواړه حضرات شامل دی، چنانچه په جامع ترمذی کښې یو روایت د کتاب الدعوات کښې په اخر کښې او دویم روایت په کتاب المناقب کښې د مناقب اهل بیت په باره کښې امام ترمذی رحمه الله د امام ابوداؤد نه نقل کړی دی [۱] او ددې دوه روایاتو نه علاوه ئې د بعض راویانو د تحقیق په سلسله کښې په دوه نورو ځایونو کښې هم ذکر کړې دې، او د امام نسائی رحمه الله په باره کښې دا خبره خو محقق ده چه هغه د امام ابوداؤد رحمه الله په شاګردانو کښې دې خو دا خبره چه امام نسائی رحمه الله په خپل سنن کښې د امام ابوداؤد رحمه الله نه څۀ روایت اخستلې دې یا نه؟ دا خبره په یقین سره نه شی کیدلې په اصل کښې صورت حال دا دې چه د امام نسائی رحمه الله د امام ابوداؤد رحمه الله نه علاوه بل یو ابوداود استاذ دې او د هغوی نوم هم سلیمان دې، سلیمان بن سیف الحرانی، امام نسائی په خپل سنن کښې د هغوی نه په کثرت سره روایت کوی چرته ئې صرف کنیت ذکر کوی او په بعض ځایونو کښې د کنیت سره د نوم تصریح هم کوی او فرمائی : ﴿ حدثنا ابوداؤد سلیمان بن سیف الحرانی ﴾ چرته چه صرف کنیت ذکر کوی او وائی حدثنا ابوداؤد په دې کښې د بعض موقعو په باره کښې د حافظ ابن حجر وغیره علماء کرامو رائې دا ده چه ظاهره دا ده چه ددې نه مراد ابوداؤد سجستانی دې. باقی ما په پوره کتاب کښې چرته هم د سلیمان بن اشعث او د سجستانی تصریح نه ده موندلې [۲] چونکه د حافظ په نزد په بعض ځایونو کښې د ابوداؤد نه امام ابوداؤد سجستانی مراد دې، هم په دې وجه هغوی په تقریب التهذیب کښې د امام ابوداؤد په نوم پاندې د نسائی رمز هم لیکلې دې، والله اعلم

---

[۱] د هغه روایت الفاظ دا دی : حدثنا أبو داود سليمان بن الأشعث السجزي.... عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم يسال احدكم ربه حاجاته كلها حتي يسئل شسع نعله اذا انقطع ترمذی ۲/۲۰۰ او دویم حدیث په کتاب المناقب کښې دې او هغه داسې دې: أبو داود سليمان بن الأشعث.... عن ابن عباس قال: قال رسول الله صلي الله عليه و سلم أحبوا الله لما يغذوكم من نعمه وأحبوني بحب الله وأحبوا أهل بيتي لحبي حدثنا ترمذی ۲/۲۲۰)

[۲] په نسائی جلد ثانی صفحه ۳۲۸ کښې په حاشیه ۷ باندې اوګورئ، هلته محشی دا لیکلې دی چه ظاهر دا ده چه دلته په سند کښې امام ابوداؤد السجستانی مراد دې، ځکه چه هغه هم د امام نسائی رحمه الله په شیوخ کښې دې،

بالصواب. او چونکه امام احمد رحمه الله کوم چه د امام ابوداؤد رحمه الله په اوچتو او مشهور استاذانو کښې دې، هغوی هم د امام ابوداؤد رحمه الله نه یو حدیث اوریدلې دې، په دې لحاظ سره که امام احمد رحمه الله هم د هغوی د شاګردانو په فهرست کښې ذکر کړې شی نو دا به عبث نه وی، او د امام ابوداؤد رحمه الله دپاره خو دا یقینا د فخر خبره ده.

**اولاد** : د امام ابوداؤد رحمه الله یو ځوئی هم دې، ابوبکر عبدالله بن ابی داؤد دا هم ډیر لوئې محدث تیر شوې دې، د خپل والد صاحب نه ئې حدیث حاصل کړل، او د بغداد په اکابر حفاظو کښې به د هغوی شمیر کولې شو، ګویا امام بن امام وو، اوس نزدې مې د هغوی یو تالیف هم د نظر نه تیر شو، چه د هغې نوم البعث دې، کوم چه د بیروت نه شائع شوې دې، چه په هغې کښې ئې د حشر و نشر او مرګ او قبر پورې متعلق احادیث راجمع کړې دی، مختصر شان د پنځوس شپیتو صفحاتو رساله ده چه په هغې کښې ئې ډیر نادر احادیث جمع فرمائیلې دی، هم دغه شان د امام ابوداؤد رحمه الله په ترجمه کښې د هغوی د یو رور ذکر هم ملاویږی، چنانچه حافظ ذهبی رحمه الله په سیرالاعلام النبلاء کښې لیکلې دی چه د امام ابوداؤد رحمه الله رور محمد بن الاشعث په عمر کښې د هغوی نه لږ شان لوئې وو او په علمی سفرونو کښې د امام ابوداؤد رحمه الله ملګرې وو.

## د امام ابوداؤد رحمه الله فقهی ذوق :

په امام ابوداؤد رحمه الله باندې فقهی ذوق د نورو مصنفین صحاح ستة په نسبت غالب وو، چنانچه په باقی ارباب صحاح ستة کښې هم دا یو بزرګ دې، چاته چه شیخ ابواسحق شیرازی رحمه الله په خپل کتاب طبقات الفقهاء کښې ځائې ورکړې دې. هم ددې فقهی ذوق نتیجه ده چه ممدوح په خپل کتاب کښې احادیث احکام ډیر په اهتمام سره راجمع کړی دی، چناچنه د نورو کتب صحاح په شان به تاسو ته په دې کښې د فضائل اعمال او زهد روایتونه نه ملاویږی، اګرچه په دې لحاظ سره دا کتاب د ډیرو ابوابو نه خالی شو، خو د فقهی احادیثو ځومره لویه ذخیره چه به تاسو ته په دې کښې ملاویږی دومره به درته په باقی کتب صحاح کښې په یو کښې هم نه ملاویږی. امام غزالی رحمه الله تصریح فرمائیلې ده چه په علم حدیث کښې صرف هم دا کتاب د مجتهد دپاره کافی دې، زکریا ساجی رحمه الله فرمائی : كتاب الله عزوجل اصل الاسلام وكتاب السنن عهد الاسلام..... یعنی کتاب الله اصل الاسلام دې او سنن ابوداؤد فرمان اسلام دې.

## د بئر بضاعة زیارت او تحقیق علمی :

د امام ابوداؤد رحمه الله بیان دې چه زه مدینې منورې ته د حاضرئ په موقع باندې د بیر بضاعة د زیارت دپاره لاړم نو ما هغه په خپل څادر باندې ناپ کړو دهغې عرض اووۃ ذراع وو، کوم باغبان چه دروازه پرانستله او زه ئې کوهی ته اورسولم ما د هغه نه تپوس اوکړو چه آیا د عهد نبوی ﷺ نه پس ددې کوهی دوباره تعمیر شوې دې؟ نو هغه اووئیل نه، فرمائی چه ما دهغې اوبه متغیر اللون بیا موندلې، امام ابوداؤد رحمه الله د بئربضاعه قصه په خپل کتاب کښې په احکام المیاه کښې د حدیث بئر البضاعة د لاندې ذکر فرمائیلې ده، په مخکښې

زمانو کښې به سفرِ حج او زيارتِ مدينه طيبه د علومو د تحصيل او د تحقيقات علميه يو لويه ذريعه وه.

## كلمات الائمة فى وصفه :

ابن منده رحمه الله فرمائی چه کومو حضراتو په احاديثو کښې ډير زيات محنت او تحقيق کړې دې او د احاديثو د لويو لويو ذخائرو نه ئې احاديث صحيحه د غير صحيحه نه بيل او ممتاز کړې دی، په هغوی کښې څلور حضرات ډير مشهور دی، ۱: امام بخاری، ۲: امام مسلم، ۳: امام ابوداؤد، ۴: امام نسائی.

موسى بن هارون رحمه الله يو محدث دې هغوی فرمائی : خُلِقَ ابوداؤد فى الدنيا للحديث وفى الاخرة للجنة ما رايت افضل منه... يعنى د امام ابوداؤد رحمه الله پيدائش په دنيا کښې د حديث د خدمت دپاره او په آخرت کښې د جنت د دخول دپاره شوې دې، د هغوی نه غوره انسان ما نه دې ليدلې.

د ابراهيم حربی رحمه الله مقوله چه د هغوی په شان کښې مشهوره ده چه کله مصنف رحمه الله د خپل سنن تاليف اوفرمائيلو نو هغوی ددې په ليدلو باندې اوفرمائيل ﴿ الين لابى داؤد الحديث كما الين لداؤد عليه السلام الحديد ﴾ چه د امام ابوداؤد رحمه الله دپاره فن حديث داسې آسان او نرم کړې شوې دې لکه څنګه د سيدنا داؤد عليه السلام دپاره الله پاک اوسپنه نرمه کړې وه، كما قال تعالى : والنا له الحديد الآية.... ابو طاهر السلفی رحمه الله هم دا مضمون منظوم کړې دې!

| | |
|---|---|
| لان الحديث وعلمه بكماله | لامام اهليه ابى داؤد |
| مثل الذى لان الحديث وسبكه | لبنى اهل زمانه داؤد |

د بعض ائمونه نقل دی چه امام ابوداؤد رحمه الله په خپل طور طريقه او سيرت کښې د خپل استاد امام احمد بن حنبل مشابه وو. او هغوی مشابه وو د خپل استاذ وکيع سره، او هغوی مشابه وو د سفيان سره، او سفيان مشابه وو د منصور، او منصور د ابراهيم، او هغه د علقمه او هغه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه، او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مشابه وو د رسول الله صلی الله عليه وسلم.... رضى الله تعالى عنهم اجمعين.

## د سهل بن عبدالله تسترى قصه :

مشهوره ده چه يو ځل سهل بن عبدالله تستری رحمه الله [1] چه د خپلې زمانې په اکابر صوفياء او اولياؤ کښې دې، د امام ابوداؤد په خدمت کښې تشريف راوړو او عرض ئې اوکړو ﴿ ان لى اليک حاجة ﴾ چه زما تاسو ته يو غرض دې چه دهغې دپاره زه حاضر شوې يم، امام صاحب اوفرمائيل، وايئ څه دې هغه حاجت؟ هغوی اوفرمائيل چه که تاسو ئې پوره کوئ نو وايم درته، امام صاحب رحمه الله ورته اوفرمائيل که ممکن وی نو ضرور به ئې پوره کوم، په دې باندې هغوی اوفرمائيل : اخرج الى لسانک الذى تحدث به احاديث رسول الله صلی الله عليه وسلم حتى اقبله،

---

[1] ) تستر معرب شوستر منهم سهل بن عبدالله التسترى شيخ الصوفية صحب ذالنون المصرى كذا فى المعجم)

یعنی تاسو خپله ژبه مبارکه راوباسئ چه په هغې باندې تاسو د رسول اللهﷺ احادیث مبارکه بیانوئ، چه زه دا ښکل کړم، په دې باندې امام ابوداؤد خپله ژبه مبارکه راویستله، نو هغوی هغه ښکل کړه او لاړل.

## د امام ابوداؤد فقهی مسلک :

د امام ابوداؤد فقهی مسلک څه وو؟ په دې کښې اختلاف دې، حضرت شاه ولی الله صاحب رحمه الله په خپله رساله الانصاف فی بیان اسباب الاختلاف کښې لیکلي دی : واما ابوداؤد والترمذی فهما مجتهدان منتسبان الی احمد واسحق.... یعنی امام ابوداؤد په اصول او قواعد کلیه کښې خو د امام احمد متبع دې او په فروع کښې د هغوی تابع نه دې، د امام احمدرحمه الله وضع کړې شوې احکام مخې ته ږدلو سره خپله استنباط احکام کوی، که هغه استنباط د امام احمدرحمه الله د مسلک مطابق وی او که نه وی، داسې مجتهد ته مجتهد منتسب وائی، او کوم فقیه چه په اصول او قواعدو کښې هم د یو امام ما تحت نه وی هغه ته مجتهد مطلق وائی. حضرت شاه عبدالعزیزرحمه الله په بستان المحدثین کښې لیکلی دی چه بعض هغوی ته شافعی وائی او بعض حنبلی، او حضرت شیخ په مقدمه د لامع کښې لیکلې دی چه تاج الدین سبکی هغوی په طبقات الشافعیه کښې ذکر فرمائیلې دې چه ددې معنی دا شوه چه د سبکی په نزد هغوی شافعی دی، او هم دغه شان نواب صدیق حسن خان هم دې شافعی شمیر کړې دې، او شیخ ابو اسحق شیرازیرحمه الله هغوی لره په خپل کتاب طبقات الفقهاء کښې په اصحاب احمد کښې شمار کړې دی، او په عرف شذی کښې لیکلې شوې دی، المشهور انه شافعی والحق انه حنبلی کالنسائی، هم دغه شان په فیض الباری کښې هم د ابن تیمیه په حوالې سره هغوی حنبلې لیکلې شوې دې د علامه انور شاه صاحب په شان زمونږ د حضرت شیخ هم دا رائې ده چه امام ابوداؤد حنبلی دې، چه دهغې حضرت څه شواهد هم بیان کړې دی کوم چه به وړاندې راشی، مناسب دا ده چه په مصنفینِ صحاح سته کښې د باقی پنځو محدثینو د فقهی مسلک هم ذکر اوکړې شی.

## د نورو مصنفین صحاح سته فقهی مسلک :

د امام بخاریرحمه الله په مسلک کښې اختلاف دې مشهور دا ده چه هغه شافعی المسلک دې، چنانچه تاج الدین سبکیرحمه الله هغوی په طبقات الشافعیه کښې ذکر فرمائیلې دی، د علامه انور شاه کشمیری او هم دغه شان زمونږ د حضرت شیخرحمه الله رائې دا ده چه امام بخاریرحمه الله مجتهد دې، شاه صاحب فرمائی چه دا چه مشهوره ده چه امام بخاریرحمه الله شافعی المسلک دې نو دهغې وجه ښکاره ده چه په بعض مسائل خلافیه مشهوره کښې هغوی د شوافعو موافق دی، لکه رفع الیدین، جهر بالامین وغیره، کنې د هغوی موافقت د امام ابوحنیفهرحمه الله سره د امام شافعیرحمه الله د موافقت نه کم نه دې، لکه په وضوء من القبلة او وضوء من مس الذکر، مسئلة القلتین او جهر بالبسملة وغیره مسائلو کښې د احنافو موافق دې.

د امام مسلم رحمه الله په باره کښې شاه صاحب فرمائی ﴿ لا اعلم مذهبه بالتحقيق ﴾ او په تراجم او ابواب (کوم چه په حاشيه باندې ليکلې شوې دی) د هغوی خپل مقرر کړې شوی نه دی، بلکه د امام نووی رحمه الله د طرف نه دی، لکه چه مشهوره ده او د يو مصنف رحمه الله دمسلک فقهی اندازه د هغه د تراجم او ابوابو نه کيدې شی، او هغه دلته نشته، او نواب صديق حسن خان په الحطة فی ذکر صحاح الستة کښې او په اتحاف النبلاء کښې هغوی ته شافعی المسلک وئيلی دی، او مولانا عبدالرشيد نعمانی په ما تمس اليه الحاجة کښې دا ليکلې دی چه يو قول دا دې چه دې مالکی المسلک دې ځکه چه بعض علماء کرامو رحمهم الله خپل سند مسلسل بالمالکية امام مسلم ته رسولې دې.

د امام نسائی رحمه الله په باره کښې شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله تصريح کړې ده چه هغوی حنبلی دې، او هم دا د انور شاه کشميری رحمه الله رائې ده، او تاج الدين سبکی دا په طبقات الشافعيه کښې ذکر کړې دې، او هم دا د شاه ولی الله صاحب او د نواب صديق حسن خان رائې ده چه هغوی شافعی المسلک دی.

امام ترمذی رحمه الله مسلکا شافعی دې، په هيڅ يو مسئله کښې هغوی د امام شافعی رحمه الله مخالفت صراحتا نه دې کړې، سوا د مسئله ابراد بالظهر نه، امام شافعی رحمه الله چه د ابراد بالظهر دپاره کوم شرط لګولې دې په دې باندې امام ترمذی رحمه الله دا اعتراض فرمائيلې دې، چه دا قيود د اطلاق حديث خلاف دې، چه دهغې تصريح خپله امام ترمذی رحمه الله په جامع ترمذی کښې فرمائيلې ده، او د شاه ولی الله صاحب رحمه الله رائې دا ده چه امام ترمذی رحمه الله مجتهد منتسب الی احمد واسحق دې، لکه چه د امام ابوداؤد رحمه الله د مسلک د لاندې اوس ذکر کړې شو.

د امام ابن ماجه رحمه الله په باره کښې شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه غالبا هغوی شافعی المسلک دی.

### د امام ابوداؤد رحمه الله د حنبلی کيدو قرائن:

زمونږ شيخ رحمه الله به فرمائيل چه امام ابوداؤد کلک حنبلی دې، او ددې خبرې تائيد د هغوی د تراجم او ابواب نه په ښه طريقې سره کيږی، ﴿ فانه اهتم بذکر ادلة الحنابلة اکثر من غيرهم ﴾ ځکه چه امام ابوداؤد په نسبت د نورو ائمه د حنابلو دلائل په کثرت او اهتمام سره بيان کړی دی، مثلا د باب البول قائما ترجمه ئې قائم کړې ده او په روايت سره ئې دهغې جواز ثابت کړې دې لکه چه د حنابلو مذهب دې او دهغې خلاف ئې د جمهور روايات نه دی ذکر کړې، او دغه شان اودس بفضل طهور المرأة په سلسله کښې ئې چه کوم صنيع اختيار فرمائيلې دې، دهغې نه هم د مذهب حنابله طرف ته رجحان معلوميږی او هغه داسې چه مصنف رحمه الله د جواز رواياتو لره اولا او د منع روايات په اخر کښې ذکر فرمائيلې دی لکه چه د حنابلو مذهب دې او د جمهور دمسلک تقاضا دا وه چه د ابوابو ترتيب ددې برعکس وی چه اول د منع روايات ذکر کړې شی او روستو د جواز اوهم دغسې ئې باب الوضوء من لحوم

الابل قائم کړې دې، اودا ئې حدیث سره ثابت کړې دی لکه څنګه چه د حنابله مسلک دې. او هم دغه شان په ابواب الامامة کښې ئې باب قائم کړې دې: باب الامام یصلی قعود، یعنی که امام د څه عذر په وجه په ناسته باندې مونځ ورکړی نو مقتدی څنګه مونځ اوکړی؟ قائما یا قاعدا د جمهورو مذهب دا دې چه قائما دې اوکړی او د امام احمد مذهب دا دې چه د امام په ابتداء کښې دې قاعدا اوکړی، په دې باب کښې مصنف صرف د حنابلو دلیل ذکر فرمائیلې دې، ﴿ واذا صلی جالسا فصلوا جلوسا ﴾ او مصنف په دې مسئله کښې د جمهورو د مسلک مطابق نه باب قائم کړې دې او نه ئې د جمهورو دلیل ذکر کړې دې، د جمهورو دلیل د مرض الوفات قصه ده چه په هغې کښې رسول الله په ناسته باندې مونځ ورکړې وو، او صحابه کرامو په رسول الله پسې په ولاړه مونځ کړې وو، دا د رسول الله آخری فعل وو، امام خطابی مشهور شارح د سنن ابی داؤد هم په دې باندې اظهار د تعجب فرمائیلې دې چه مصنف د خپل عادت شریفه خلاف په دې مسئله کښې د جمهورو دلیل یعنی د مرض الوفاة قصه نه ده ذکر کړې، د هغوی الفاظ کوم چه حضرت په بذل کښې تحریر فرمائیلې دی دا دی: فلست ادری کیف اغفل بذکر هذه القصة وهی من امهات السنن والیه ذهب اکثر الفقهاء، دا زمونږ د حضرت شیخ رائې او دهغې وضاحت دې خو زه وایم چه مصنف په دې کتاب کښې بعض ابواب د مسلک حنابله په خلاف هم قائم کړې دی، لهذا دا وئیل چه ګلګ حنبلی دې، په دې قول کښې نظر دې.

**فائده**: بعض علماء کرامو لیکلې دی چه په محدثینو کښې بعضو ته چه شافعی او چا ته مالکی وئیلې شی، دهغې مطلب دا نه دې چه هغه د هغوی متبع او مقلد محض دې، بلکه ددې مطلب دا دې چه دا حضرات خپله مجتهدین دی، د چا اجتهاد او استنباط د یو امام موافق شو، او د چا استنباط د بل امام موافق شو.

## ائمه متبوعین او غیر متبوعین:

دلته دا پیژندل مناسب دی چه د اصحاب مذاهب دوه قسمه دی، یو ائمه متبوعین او بل غیر متبوعین، یعنی یو خو هغه امامان دی چه د چا مذاهب رائج او متبوع دی، او د هغوی اقوال په منقح طور د ترجیح الراجح سره منقول او محفوظ دی، ددې قسم مذاهب د اهل سنت والجماعت دې وخت کښې په دنیا کښې صرف څلور دی، یعنی د ائمه اربعه معروفه مسلکونه، او د هغوی اتباع او تقلید ډیر اسان دې، څکه چه ددې حضرات فقه مدون او مرتب ده، امام بخاری وغیره حضرات محدثین په مجتهدینو کښې خو دی خو په ائمه متبوعین کښې نه دی، د سفیان ثوری او امام اوزاعی وغیره بعض حضراتو مذاهب د څو صدو پورې متبوع او رائج وو. خو بیا ددې سلسله ختم شوه، چنانچه د سفیان ثوری سلسله تر د پنځمې صدئ پورې جاری وه، او دهغې نه پس منقطع شوه، هم دغه شان د امام اوزاعی مسلک صرف تر دوؤ صدو پورې اوچلیدو. دهغې نه پس منقطع شو، دا شرف الله پاک ائمه اربعه ته ورکړې دې، چه د هغوی د اتباع سلسله ئې تر نن ورځې پورې باقی

اوساتله ، او تر آخره پورې به انشاء الله باقي وي، په دې زمانه کښې ددې څلورو ائمو مذاهبو نه د يو د تقليد نه سوا بل يو مسلک ممکن الاتباع نشته.

## د علامه عبدالوهاب شعراني يو مکاشفه :

دا خبره علامه شعراني رحمه الله هم ليکلې ده، او هغوی د مذاهب اربعه اهميت بيانولو سره د ائمه اربعه په سلسله کښې خپله يو مکاشفه ليکلې ده، هغه دا چه هغوی ددې حضراتو منازل او مرتبې په خپل مکاشفه کښې د جنت په نهرِ حيات باندې ليدلی دی، هغوی په خپل معروف او مشهور کتاب الميزان الکبری کښې ددې څلورو ائمه د قبو څلور نقشې جوړې کړې دی، او د ټولو نه اول ئې په شروع کښې هغه قبو ته متصل د رسول الله ﷺ قبه جوړه کړې ده،ګويا کل پنځه قبې شوې يو د رسول الله ﷺ او دهغې په خوا کښې د امام ابوحنيفه، بيا دهغې خوا کښې د امام مالک، او بيا دهغې ته مخامخ د امام شافعی، او دهغې نه وړاندې بيا د امام احمد رحمه الله ، هغوی د يو نهر نقشه راښکلو سره دهغې په غاړه باندې پنځه واړه قبې جوړې کړی دی، او دا نهر د جنت هغه نهر دې کوم ته چه نهر حيات وائی، چه دهغې وجود په دنيا کښې په صورت د درياب د شريعت مطهره دې، هغوی فرمائی چه دې څلورو واړو امامانو ته د رسول الله ﷺ خاص نيابت حاصل دې، امت محمديه ته د شريعت محمديه په رهنمائی کولو کښې دې څلورو حضراتو ته د رسول الله ﷺ سره داسې تړون حاصل دې چه دهغې په بناء باندې دا وئيلې کيدې شی چه دا څلور واړه حضرات د رسول الله ﷺ نه نۀ په دنيا کښې جدا دی او نه په آخرت کښ، هغوی دا هم ليکلې دی چه مونږ په دې نقشه کښې د ائمه اربعه قبو سره متصل د رسول الله ﷺ قبه خکه ذکر کړه چه دې حضراتو ته چه کوم مقام عالی حاصل شوې دې، هغه صرف د رسول الله ﷺ د شريعت د اتباع نتيجه ده او په اخر کښې هغوی ليکی چه په دې نقشه کښې چه په کوم ترتيب باندې مونږ قبې جوړې کړی دی هغه عقلی يا قياسی نه دی، بلکه دا شکل د هغه شکل مطابق دې کوم چه ما په خپلو بعض احوالو کښې په جنت کښې ليدلې دې، د قبو دا نقشه چه څوک کتل غواړی نو هغوی دې اصل کتاب الميزان الکبری ته رجوع اوکړی، يا دې د حضرت شيخ رحمه الله اردو تاليف شريعت و طريقت کا تلازم صفحه ۵۱ اوګوری. حضرت د هغه نقشې شکل په دې کتاب کښې جوړ کړې دې.

**فائده** : د مضمون سابق نه معلومه شوه چه په دې حضرات مصنفين صحاح سته کښې د چا په باره کښې هم دا نقل نه دی چه هغوی احناف وو، خو دا څيز هم يو ناقابل انکار حقيقت دې کوم چه حضرت شيخ په مقدمه د لامع کښې ليکلې دې، حضرت په مقدمه د لامع کښې د مثال په طور ډيرش داسې مشران محدثين شمير کړې دی کوم چه د امام ابوحنيفه رحمه الله د شاګردانو په سلسله کښې يا د مذهب حنفی په اتباع کونکو کښې داخل دی او حال دا دې چه هغه ټول په ټول د امام بخاری يا د نورو مصنفينِ صحاح د استاذانو او شيوخ يا د شيوخ الشيوخ په فهرست کښې شامل دی.

..........

## د امام ابوداؤد احادیث منتخبه:

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چا ما د رسول الله ﷺ پنځه لاکهه احادیث لیکلي دی دهغي نه مي د څلور زره او اته سوه احادیثو انتخاب اوکړو او په خپل سنن کښي مي ذکر کړي دي. او بیا په دي څلور زرو احادیثو کښي ما صرف د څلورو احادیثو انتخاب کړي دي، فرمائی: ویکفی الانسان لدینه من ذلک اربعة احادیث.... یعنی په دي څلورو زرو کښي صرف څلورو احادیث داسي دي کوم چه د انسان د دیندار جوړیدو دپاره کافی دی.

۱: ﴿انما الاعمال بالنیات﴾.

۲: ﴿من حسن اسلام المرء ترکه مالا یعنیه﴾

۳: ﴿لا یکون المومن مومنا حتی یرضی لاخیه ما یرضی لنفسه﴾

۴: ﴿الحلال بین والحرام بین وبینهما امور مشتبهات فمن اتقی الشبهات استبرأ لدینه وعرضه﴾

حضرت شاه عبدالعزیز صاحب رحمه الله ددي شرح دا لیکلي ده چه اول حدیث د تصحیح عبادت دپاره کافی دي، او دویم د عزیز عمر د اوقاتو د ضائع کولو نه د حفاظت دپاره کافی دي، او دریم د حقوق العباد د ادا کولو دپاره کافی اووافی دي. او څلورم د مشتبه امورو نه د بچ کیدلو دپاره کافی دي.

د امام ابوداؤد رحمه الله ددي احادیث منتخبه ذکر د تراجم رجال په ډیرو کتابونو کښي شوي دي، د مشکاة شریف په آخر کښي د صاحب مشکاة د طرف نه الاکمال په نوم باندي یو رساله ملحق ده، په هغي کښي هم صاحب مشکاة د امام ابوداؤد رحمه الله په ترجمه دا احادیث ذکر فرمائیلي دی.

الله پاک دي، دغي حضراتو ته زمونږ د طرف نه او د ټول امت مسلمه د طرف نه ډیر جزاء خیر ورکړي چه هغوی په حقیقت کښي د امت محمدیه سره د همدردئ او خیر خواهئ حق ادا کړي دي، اوګورئ دا څومره غټ کار دي چه دوی د لکهونو احادیثو په ذخیره کښي صرف د څو زرو احادیثو انتخاب فرمائی، او بیا په څو زرو کښي د یو څو عدد انتخاب، صرف زمونږ او ستاسو د سهولت دپاره چه مونږ ته په دین باندي تلل آسان شي، زمونږ دنیا او آخرت برابر شي دهغي دپاره کوشش فرمائی، ډیر په غور سره دي احادیثو لره د خپل ژوند په ټولو شعبو کښي مونږ له مخې ته کیخودل پکار دی، ددي احادیث منتخبه په فوائدو او جامعیت باندي یو سړي تر کوم ځائي پوري لیکل کولي شي، د امام ابوداؤد رحمه الله د قول مطابق د لکهونو احادیثو لب لباب دي.

### (د امام اعظم رحمه الله احادیث منتخبه)

حضرت شیخ رحمه الله په درس بخاری او هم دغه شان په اوجز المسالک شپږم جلد کښي لیکلي دی [1] چه د امام ابوداؤد رحمه الله بغینه ددي احادیثو انتخاب د هغوی نه

[1] په دي باندي ماته د ابو موسی اشعری او د معاذ بن جبل رضی الله عنهما اوږده قصه رایاده شوه کومه چه د کتاب الحدود په اوائل کښي ذکر ده او غالبا په بخاری شریف کښي هم ده، قصه خو د........٦

مخکښې امام ابو حنیفه رحمه الله هم کړې دې. خو هغوی ددې څلورو نه علاوه د یو بل حدیث هم انتخاب فرمائیلې دې، لهذا ټول پنځه شو. او هغه دا دې ﴿ المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده ﴾ حضرت شیخ رحمه الله دا هم فرمائی چه دا پنځم حدیث غالبا امام ابوداؤد رحمه الله په دې وجه وانخستلو چه دهغې مضمون او معنی د حدیث نمبر۳ یعنی ﴿ لا یومن احدکم الخ ﴾ نه مستفاد کیږی.

په اصل کښې دا ﴿ انما الاعمال بالنیات ﴾ والا حدیث ډیر اهم دې هم په دې وجه حضرات محدثین دا د خپلو تصنیفاتو په شروع کښې ذکر کوی. حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه د تصوف حقیقت صرف تصحیح نیت دې، چه انسان هر یو کار کوی تجارت او زراعت، تصنیف وتالیف، درس او تدریس، محنت مزدوری اول دې خپل نیت صحیح کړی، په ښه نیت سره مباحات هم په عباداتو کښې داخلیږی او په یو موقع باندې ئې ارشاد اوفرمائیلو چه زمونږ د سلوک او تصوف ابتداء د ﴿ انما الاعمال بالنیات ﴾ نه ده یعنی تصحیح نیت او دهغې منتهی ﴿ ان تعبد الله کانک تراه ﴾ ده.

## تصنیفات امام ابوداؤد رحمه الله :

د امام ابوداؤد رحمه الله په فن حدیث کښې ددې کتاب نه علاوه نور هم تصنیفات شته چه په هغې کښې بعض ملاویږی او بعض پکښې نایاب دی. ۱: مراسیل ابی داؤد چه په دې کښې مصنف صرف روایات مرسله ذکر فرمائیلې دی، دا مختصر شان تالیف دې او د سنن په بعض نسخو کښې په آخره کښې ملحق هم دې. ۲: الرد علی القدریة ۳: الناسخ والمنسوخ ٤: ما تفرد به اهل الامصار.... چه دهغې مطلب په ظاهر کښې دا دې چه هغه احادیث چه دهغې راویان په سند کښې ټول په ټول د یو خاص ښهر اوسیدونکی وی، مثلا کلهم بصریون کلهم کوفیون... ددې قسم احادیث ئې یو ځائې عادت جمع کړی دی، د مصنف رحمه الله عادت په سنن کښې هم دا دې چه د بعض احادیثو د لاندې فرمائی، هذا الحدیث رواته کلهم بصریون. دا څیز په لطائف اسناد کښې شمیرلې کیږی. ۵: فضائل الانصار، ٦: مسند مالک بن انس ۷: المسائل.... دا د رسالې په شکل کښې دې چه په حجاز کښې شائع شوې دې. ۸: د امام ابوداؤد رحمه الله یو بل تصنیف هم معلومیږی چه دهغې نوم کتاب بدء الوحی دې ځکه چه حافظ

---

ـه.... اوریدو د وجې نه حذف کولې شی خو دهغې د آخر ټکره دا ده چه دې دوارو صحابه کرامو په خپل مینځ کښې خبرې کولې، د یو بل تپوس ئې کولو، او بله دا چه په عباداتو کښې د هر یو معمول څه دی؟ هر یو خپل معمول بیان کړو، اول ابوموسی اشعری رضی الله عنه معمولات عبادات بیان کړل دهغې د اوریدلو نه پس سیدنا معاذ بن جبل رضی الله عنه اوفرمائیل: واما انا فارجو في نومتي ما ارجو في قومتي.... یعنی چه زه خو ټوله شپه ویخ نه شم پاتې کیدې زیاتې مجاهدې زما نه نه کیږی، زه خو د شپې اوده کیږم هم او پاسم عبادت هم کوم، او زه په خپلو اوده کیدو کښې د الله پاک نه هم د هغه اجر او ثواب امید لرم کوم چه ترې په ویخیدو سره په عبادت کښې لرم، ددې قصې د نقل کولو نه زما مقصود دا دې چه هر کله د انسان نیت صحیح شی او هغه طالب د آخرت وی په هر څیز کښې آخرت ته نظر کوی نو بیا دې انسان ته په مباحاتو کښې هم هغه ثواب ملاویږی کوم چه په عباداتو کښې کیدل پکار دی.

ابن حجرؒ د تهذیب جلد اول په شروع کښې ددې تذکره کړې ده، خو د هغوی په ټولو تصانیفو کښې د ټولو نه اعلی او افضل او جامع سنن دې.
د فائدې یوه بله خبره هم واورئ هغه دا چه د حافظ ابن حجرؒ چه کوم مشهور تصنیف تقریب التهذیب دې. په هغې کښې هغوی اصالة خو د صحاح ستة ټول راویان ذکر کړې دی، او بعض راویان د غیر صحاح ئې هم ذکر کړې دی او په هغې باندې ئې لفظ تمیز لیکلې دې، ددې مطلب دا دې چه دا راوی د صحاح سته په راویانو کښې نه دې د هغوی نه بیل دې. او د صحاح ستة طرف ته د اشارې کولو دپاره هغوی رموز مقرر کړی دی، چه په هغې سره اشاره کوی دې خبرې طرف ته چه ددې راوی روایات په صحاح کښې په فلانی فلانی کتاب کښې دی، پس که هغه راوی داسې وی چه د هغه روایات په ټول صحاح سته کښې موجود وی نو په هغه راوی باندې رمز (نشان) د ع لګوی، کوم چه د الجماعة مخفف دې، او د بخاری رمز(نشان)، خ او د مسلم دپاره م او د سنن ابوداؤد دپاره د او د نسائی د پاره س او د ابن ماجه دپاره ق ،ځکه چه هغه قزوینی دې. او که هغه راوی د مراسیل ابوداؤد وی نو په هغې باندې د مد رمز لګوی، او که د کتاب الرد علی القدریة راوی وی نو په هغې باندې رمز قد لیکی، په ق سره اشاره قدریه طرف ته او په د سره ابوداؤد طرف ته، او که هغه راوی د مصنفؒ تصنیف الناسخ والمنسوخ وی نو دهغې دپاره رمز خد دې او د ما تفرد به اهل الامصار دپاره صد، او د مسند مالک بن انس دپاره کد، او د المسائل دپاره لام رمز لګوی د حافظ ددې صنیع نه د محدثینو د امام ابوداؤد ددې تصنیفاتو سره اعتناء (تعلق) معلومیږی.

## ما یتعلق بالمصنّف

اوس د مقدمة الکتاب دویمه حصه یعنی ما یتعلق بالمصنَف ای الکتاب بیانولې شی، په دې کښې د ټولو نه اول اسم الکتاب دې.

## د کتاب نوم او وجه د تسمیه

پس ځان پوهه کړه چه زمونږ مخې ته چه کوم کتاب دې دهغې نوم سنن دې، او سنن د حدیث هغه کتاب ته وئیلې شی چه په هغې کښې خاص طور سره احادیث الاحکام د ابواب فقهیه په ترتیب باندې جمع کړې شی او په دې کتاب کښې هم دغه شان ده چنانچه ددې شروع د کتاب الطهارة نه ده او دهغې نه پس کتاب الصلوة، کتاب الزکوة دې، کوم چه د فقهاء کرامو ترتیب دې دا خبره مخکښې تیره شوه چه د احادیثو ټول مضامین اته دی او په کوم کتاب کښې چه هغه ټول راجمع شی هغې ته جامع وائی، چونکه په دې کتاب کښې ټول ابواب ثمانیه نشته، اګرچه اکثر مضامین په کښې دی په دې وجه دې ته جامع اونه وئیلې شو، په دې کښې کتاب التفسیر دغه شان، تواریخ او مغازی او رقاق یعنی د زهد وغیره ابواب نشته، په خلاف د سنن ترمذی چه په هغې کښې دا دواړه خبرې شته چه په ابواب ثمانیه باندې مشتمل دې، چنانچه د هغه کتاب التفسیر او کتاب الزهد ډیر اوږد دې، او دهغې ترتیب د ابواب فقیه د ترتیب مطابق هم دې، په دې وجه په هغې باندې د جامع او

سنن دواړو اطلاق کولې شي.

په اصل کښې محدثینو په مختلفو طریقو سره د احادیثو خدمت کړې دې او په مختلفو طرزونو سره ئې قسم قسم د احادیثو کتابونه تصنیف فرمائیلی دی؛ د هر قسم تصنیف نوم ئې هم جدا کیخودلې دې، څه ته سنن وائی ،نو څه ته جامع ،څه ته معجم، نو څه ته مسند؛ څه ته مستخرج نو څه ته مستدرک وغیره وغیره ډیر زیات قسمونه دی چه دهغې د اصطلاحاتو پیژندل د طالبانو دپاره ډیر ضروری او مفید دی. حضرت شیخ رحمه الله په مقدمه د لامع کښې ډیر په تفصیل سره د حدیث د کتابونو اقسام سره د مثالونو بیان فرمائیلې دی، او احقر هم د الفیض السمائی په مقدمه کښې په ښه طریقې سره بیان کړی دی، تاسو له لږ شان وخت ویستلو سره دغه څیزونو مطالعه ضرور کول پکار دی ځکه چه بغیر د محنت نه هیڅ نه ملاویږی. په مسلم شریف کښې به تاسو اولولئ په یو مقام باندې دی: ﴿لا یستطاع العلم براحة الجسم﴾ چه د بدن د راحت سره علم نه حاصلیږی.

ع: من طلب العلی سهر اللّیالی

حضرت شیخ رحمه الله به د طالبانو مخکښې دا شعر په کثرت سره لوستلو ، که موقع وه نو وړاندې تلو سره به انشاء الله مونږ هم بعض انواع د کتب حدیث بیان کړو.

## غرض د منصف یعني وجه د تالیف :

حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه د امام ابوداؤد رحمه الله غرض په دې کتاب سره مستدلات ائمه راجمع کول دی، یعنی ائمه فقهاؤ په خپلو خپلو مسائلو کښې چه د کوم احادیثو نه استدلال کړې دې چه هغه ټول استدلالات او دلائل په دې کتاب کښې راشی، او د هر مذهب والا امام دلیل په دې کتاب کښې ملاؤ شی او حقیقت هم داسې دې، چنانچه امام غزالی رحمه الله تصریح فرمائیلې ده چه د یو مجتهد دپاره په کتب حدیث کښې صرف دا یو کتاب داسې دې کوم چه د هغه د مقصد دپاره کافی کیدلې شی.

علامه ابن القیم رحمه الله دغرض تالیف په سلسله کښې فرمائی چه دهغې حاصل دا دې چه کله د حاسدینو او طاعنینو د طرف نه په ائمه فقهاؤ باندې تنقیدونه او د قلت روایات اعتراضات اوکړې شو نو امام ابوداؤد رحمه الله اوغوښتله چه په نوی طرز باندې یَو داسې کتاب اولیکلې شی چه په هغې کښې مستدلات ائمه بالاستیعاب مخې ته راشی، چه دغه ناقدینو خُله بنده شی. امام ابوداؤد رحمه الله په هغه خط کښې کوم چه هغوی د اهل مکه په نوم لیکلې دې پخپله لیکلی دی چه زما په دې کتاب کښې د امام مالک، سفیان ثوری او د امام شافعی رحمهم الله اصول او دلائل موجود دی، چنانچه ابن الاعرابی فرمائی چه که یو سړی سره د قرآن کریم او د سنن ابی داؤد نه علاوه بل یو کتاب هم نه وی نو لم یحتج الی غیرهما.

## زمانه د تالیف :

متعین طور سره دا معلومه نه شوه چه مصنف رحمه الله ددې د تصنیف نه په کوم سنه کښې فارغ شو، خو دا ملاویږی چه کله هغوی ددې د تالیف نه فارغ شو نو هغوی دا د خپل مشهور استاد امام احمد بن حنبل په خدمت کښې پیش کړو نو هغوی دا خوښ کړو، اود امام

احمد رحمه الله سنة وفات ۲۴۱ هجری دې. ددې نه معلومیږی چه ددې تالیف د سنة مذکوره نه مخکښې شوې دې. والله سبحانه وتعالی اعلم.

## د سنن ابوداؤد مرتبه په اعتبار د تعلیم :

مرتبه په دوه اعتبارونو سره وی، یو خو د تعلیم په اعتبار سره یعنی تعلیمی ترتیب څه کیدل پکار دی، دویم مرتبه د صحت او قوت په اعتبار سره، د تعلیم په اعتبار سره ترتیب چه کوم مونږ د استاذانو نه اوریدلې دې، دا دې چه د مشکوة شریف نه پس ترمذی لوستل پکار دی، ځکه چه طالب العلم ته د ټولو نه اول د مذاهب ائمه معلومولو ضرورت وی، پس دا ټول وظائف د امام ترمذی رحمه الله دې، امام ترمذی رحمه الله خاص طور سره د حدیث د ذکر کولو نه پس په مسئله ثابتة بالحدیث او په هغې کښې اختلاف علماء او په مذاهبو باندې رڼا اچوی، اوس هر کله چه د علماء کرامو مذاهب معلوم شو نو ضرورت پیش شو د دې خبرې چه د هر یو دلیل معلوم شی، پس مستدلات ائمه ذکر کول وظیفه ده د امام ابوداؤد رحمه الله، لهذا د ترمذی نه پس ابوداؤد لوستل پکار دی، د مسئلې او د دلیلِ مسئلې معلومیدو نه پس ضرورت وی ددې خبرې چه طریقه د استخراج معلومه شی یعنی دا خبره چه دا مسئله ددې حدیث نه څنګه ثابتیږی، پس په طرق استخراج باندې تنبیه کول وظیفه ده د امام بخاری رحمه الله، هم په دې وجه هغوی یو حدیث د لس لس کرتو نه هم زیات ذکر کوی، ځکه چه صرف د یو حدیث نه مختلف مسائل ثابتیږی، په دې وجه د سنن ابی داؤد نه پس بخاری شریف لوستل پکار دی، اوس چه هر کله مسئله او دلیل د مسئلې او طریق استخراج درې واړه خبرې معلومې شوې، نو بیا د نور استحکام او تائید دپاره نور دلائل او شواهد حاصلولې شی، او دا خیز ملاویږی په مسلم شریف کښې، ځکه چه هغوی د یو مضمون ډیر احادیث په مختلفو سندونو سره په یو ځائې ذکر کوی، پس څلورمه درجه شوه د مسلم شریف، اوس چه هر کله دا پورته ذکر شوی څیزونه حاصل شو نو اوس ضرورت د دې خبرې دې چه په دې دلائلو کښې غور کولو سره دا اوکتلې شی چه په دې کښې څه خامی یا علت خفیه خو نشته، پس دا خبره حاصلیږی د سنن نسائی نه، په علل حدیث باندې تنبیهٔ فرمائیل د هغوی خاص وظیفه ده، دا ترتیب شو د اصول خمسه په اعتبار د تعلیم او تعلم، د متقدمینو په نزد امهات کتابونه پنځه دی، چنانچه امام نووی په تقریب کښې هم دا پنځه په کتب صحاح کښې شمار کړی دی، بعض علماء کرامو امهات کتب د پنځو په ځائې شپږ شمار کړې دی کوم چه د صحاح سته په نوم سره مشهور دی، او مشهور دا ده چه هغه شپږم کتاب ابن ماجه دې، لهذا اوس د ټولو نه په آخر کښې د دې د لوستلو نمبر دې، ددې وجه دا جوړیدلې شی چه امام ابن ماجه رحمه الله په دې خپل کتاب کښې ډیر نادر احادیث ذکر کړی دی او د نوادر پیژندل روستو خبره ده.

خو دا ترتیب د تعلیم په اعتبار سره هغه وخت ممکن دې چه کله یو استاد دا ټول کتابونه د یو بل نه پس ښائی، خو که په یو وخت کښې ددې کتابونو لوستونکی ډیر استاذان وی کوم چه هر کتاب په خپله خپله ګهنټه کښې لولی، لکه نن صبا چه زمونږ په

مدارسو کښې کیږی نو بیا هلته دا ترتیب ظاهر دې چه نه شی چلیدې، حضرت اقدس ګنګوهی رحمه الله به چونکه په یواځې باندې د دوره حدیث ټول کتابونه ښودل، په دې وجه دا ترتیب هلته چلیدې شو، بهر حال دا چه کومې خبرې بیان کړې شوې د تعلیمی ترتیب په سلسله کښې که په هغې باندې د عمل موقع ملاؤ نه شی خو ددې حضرات مصنفینو خپل خپل مخصوص طرز بیان او د هر کتاب یو خصوصیت مخې ته راغلو کوم چه د طالبانو دپاره مفید او سبب د بصیرت دې.

### طبقات کتب حدیث:

دویمه مرتبه کومه چه مونږ په شروع کښې بیان کړې ده د صحت او قوت په اعتبار سره ده، پس خاص د سنن ابو داؤد مرتبه د معلومولو نه مخکښې د مطلق احادیث مراتب معلومیدل پکار دی، ځکه چه د حدیث کتابونه خو د سوونو په تعداد کښې دی، او ټول په ټول حجت او قابل استدلال نه دی، د صحت او ضعف په لحاظ سره مختلف دی، په دې سلسله کښې حضرت شاه عبدالعزیز صاحب رحمه الله یو ډیره مفیده او مختصر رساله تصنیف فرمائیلې دې، چه دهغې نوم دې، ما یجب حفظه للناظر. په دې کښې شاه صاحب رحمه الله د صحت او قوت په اعتبار سره د کتب حدیث طبقات او مراتب بیان فرمائیلې دی، حضرت شیخ رحمه الله په درس بخاری کښې ددې رسالې اهمیت بیان فرمائیلو او فرمائیل به ئې چه دا رساله واقعی قابل د حفظ ده. شاه صاحب دهغې نوم ما یجب حفظه للناظر صحیح کیخودلې دې. او بیا حضرت شاه صاحب په دې رساله کښې چه کوم طبقات د کتب بیان فرمائیلې دی، هغه ټول به ئې بیان فرمائیل، دانګ حضرت شیخ ددې رسالې نه دا طبقات کتب د لامع الدراری په مقدمه کښې هم ذکر فرمائیلې دی، حضرت شاه صاحب په دې رساله کښې لیکلې دی چه د حدیث طبقات پنځه دی.

**طبقه اولی**: هغه کتابونه دی چه دهغې ټول احادیث حجت او قابل استدلال دی، بلکه د صحة مرتبې ته رسیدلې دی کوم چه د حدیث قوی د ټولو نه اعلی درجه ده، په دې طبقه کښې تقریبا هغه ټول کتابونه داخل دی کوم چه په اسم صحیح سره موسوم دی، او بعض ددې نه علاوه دی، په دې طبقه کښې شاه صاحب رحمه الله مؤطا امام مالک، صحیحین، صحیح ابن خزیمه، صحیح ابن حبان، صحیح ابوعوانة، صحیح ابن السکن، المنتقی لابن الجارود او مستدرک حاکم شمیر کړې دې.

**طبقه ثانیه**: هغه کتابونه دی چه دهغې احادیث صالح للاخذ او قابل استدلال دی، اګرچه ټول د صحت درجې ته نه وی رسیدلې او د یو حدیث د حجت کیدو دپاره دهغې د صحت رتبې ته رسیدل ضروری نه دی، ځکه چه حدیث حسن هم حجت او قابل استدلال وی، او په دې طبقه کښې دا کتابونه دی، ابوداؤد، ترمذی، نسائی او مسند احمد. او دا کتابونه په دې طبقه کښې ددې وجې نه دی چه په دې کښې بعض روایات ضعیف دی او هغه حسن ته نزدې دی.

**طبقه ثالثه**: د هغه کتابونو ده چه په هغې کښې هر قسم روایات ملاویږی، قابل

استدلال او غير قابل استدلال لکه ابن ماجه، مسند ابوداؤد الطيالسي، مسند ابويعلى الموصلى، مسند البزار، مصنف عبدالرزاق، مصنف ابوبكر بن ابى شيبة، المعاجم الثلاثة للطبرانى، سنن البيهقى، شعب الايمان للبيهقى، سنن دارقطنى، الحلية لابى نعيم او د تفسير كتابونه، لکه تفسير ابن مردويه، الدر المنثور فى التفسير بالماثور وغيره هغه تمام کتب حديث کوم چه په تفسير ليکلې شوى دى.

**طبقه رابعه** : د هغه کتابونه ده چه د هغې په هر حديث باندې به د ضعف حکم لګولې شى، يعنى په دې شرط چه هغه حديث صرف په هغه کتاب کښې وى، او په پورته کتابونو کښې نه وى، لکه د حکيم ترمذى نوادر الاصول، د ديلمى مسند الفردوس، الکامل لابن عدى، کتاب الضعفاء للعقيلى او د تاريخ کتابونه لکه تاريخ الخلفاء، تاريخ ابن عساکر، تاريخ ابن النجار او تاريخ الخطيب البغدادى وغيره.

**طبقه خامسه** : د کتب موضوعات ده، چه په هغې کښې صرف احاديث موضوعه ذکر شوى دى، علماء محدثينو او ناقدينو ډير کتابونو داسې ليکلى دى چه په هغې کښې هغوى صرف احاديث موضوعه لټولو سره راوړې دى چه عام اهل علم د هغې نه باخبر شى او په دهوکه کښې د واقع کيدو نه بچ شى، چنانچه الموضوعات الکبرى د ابن الجوزى په دې سلسله کښې مشهور کتاب دې، نور هم ډير کتابونه دى، اللآلى المصنوعة فى الاحاديث الموضوعة د امام سيوطى، الموضوعات الکبرى، المصنوع فى معرفة الموضوع دواړه د ملا على قارى رحمه الله دى، تذکرة الموضوعات د شيخ محمد طاهر پټنى، تنزيه الشريعة عن الاخبار الشنيعة، د ابن عراق او الفوائد المجموعة د امام شوکانى او موضوعات المصابيح د قزوينى.

د پورته بيان نه معلومه شوه چه د صحاح سته نه صحيحين او مؤطا مالک په طبقه اولى کښې داخل دى، او سنن ابن ماجه په طبقه ثالثه کښې دې، او سنن ثلاثه (ابوداؤد، ترمذى، نسائى) په طبقه ثانيه کښې دى او په صحاح سته کښې يو کتاب هم په طبقه رابعه کښې نشته.

**تنبيه** : ځان پوهه کړه چه شاه عبدالعزيز رحمه الله په خپله رساله عجاله نافعه کښې طبقات کتب حديث څلور ذکر کړى دى. او په فيما يجب حفظه للناظر کښې ئې پنځه طبقې شميرلى دى، لکه چه اوس بيان کړې شوې نو ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه په عجاله کښې چه کوم تقسيم کړې شوې دې هغه د صحت او شهرت دواړو په اعتبار سره دې او په فيما يجب حفظه کښې صرف د صحت او د ضعف په اعتبار سره دې، په دې وجه په دې کښې يو قسم زيات شو.

**تنبيه ثانى** : شاه ولى الله صاحب رحمه الله چه کوم د طبقات کتب مراتب ګرځولى دى په هغې کښې د حديث د صحت او قوت مدار ګويا په کتابونو باندې کيخودلې دې، چنانچه شاه صاحب رحمه الله د صحيحين احاديث په غير صحيحين باندې مقدم ګڼړى، او ګويا د يو حديث په بخارى او مسلم کښې کيدل د ترجيح دپاره کافى دى، هم دا مسلک د ابن الصلاح محدث دې، خو شيخ عبدالحق محدث دهلوى رحمه الله د صحت حديث مدار په

کتابونو باندې نه دې کیخودلې. (١) بلکه د صحت حدیث مدار ئې په رجالِ سند او اصول نقد باندې کیخودلې دې، او هم دا مسلک د محقق ابن همام دې.

## د صحاح ستة ترمینځه فرقِ مراتب:

اوس د صحاح ستة ترمینځه تفصیلا فرق مراتب واورئ، پس ځان پوهه کړئ چه اصح السنة خو ګویا بالاتفاق بلکه داسې اوایئ چه عند الجمهور صحیح بخاری دې، چنانچه مشهور علی الالسنة دې، انه اصح الکتب بعد کتاب الله تعالی.

خو د امام شافعی رحمه الله نه منقول دی ﴿ لا اعلم کتابا اصح من المؤطا ﴾ ددې جواب دا دې چه دا مقوله د هغه وخت ده چه صحیحین لا په وجود کښې هم نه وو راغلی، د امام شافعی رحمه الله وفات په ٢٠٤هجری کښې دې او د امام بخاری رحمه الله پیدائش د ١٩٤هجری دې، ددې نه معلومه شوه چه د امام شافعی رحمه الله د وفات په وخت د امام بخاری رحمه الله عمر صرف لس کاله وو، هم دغه شان ابوعلی نیشاپوری رحمه الله (دا د حاکم صاحب مستدرک استاد دې) نه چه مروی دی چه ما تحت ادیم السماء کتاب اصح من مسلم، ددې هم علماء کرامو مختلف توجیهات فرمائیلی دی، مشهور جواب دا دې چه په صحت کښې د مسلم ترجیح مقصود نه ده بلکه په حسن ترتیب او د جودت نظم په اعتبار سره ترجیح مقصود ده، او دا صحیح ده ځکه چه په ترتیب او حسن سیاق اَو په دقائق اسناد کښې مسلم شریف واقعی د ټولو نه اوچت دې، هغوی د یو مضمون روایات په ټولو طرقو باندې په یو ځائې ډیر په ښه طریقه او عمده انداز کښې بیانوی، امام نووی رحمه الله هم د شرح مسلم په شروع کښې په اسانید باندې کلام کولو سره ددې ځیز ډیر په شد او مد سره اظهار فرمائیلې دې او د امام مسلم رحمه الله د طرز بیان ئې مدح فرمائیلې ده.

بهر حال د صحیح بخاری مرتبه په صحت او قوت کښې د مسلم نه زیاته ده، او ددې خبرې تائید ددې نه هم کیږی چه د بخاری روایات متکلم فیها د مسلم د متکلم فیها نه کم دی، اګرچه جواب د ټولو ورکړې شوې دې، پس د صحیح بخاری د روایات متکلم فیها کوم چه صرف په بخاری کښې دی، دهغې تعداد اته اویا دې، او د صحیح مسلم هغه روایات کوم چه متکلم فیها دی، پوره سل دی، او داسې روایات چه دهغې تخریج دواړو کړې دې، یعنی هغه روایات متفق علیه او متکلم فیها دی، دهغې تعداد دوه دیرش دې، لهذا د مسلم متکلم فیها روایات د بخاری نه ٢٢ زیات دی، ددې روایات متکلم فیها تعداد په حساب د ابجد بعض علماء کرامو نظم کړی دې.

(١) مولانا عبدالحلیم چشتی د عجاله نافعه مصنفه شاه عبدالعزیز دهلوی اردو شرح فوائد جامعه کښې د شیخ عبدالحق محدث دهلوی په ترجمه کښې په دې موضوع باندې ډیر په تفصیل سره بحث کړې دې، دا عبدالحلیم چشتی د مولانا عبدالرشید نعمانی صاحب التصانیف رور دې، هغوی د عجاله نافعه ډیر په عمده او محققانه انداز کښې په اردو ژبه کښې شرح لیکلې ده د فوائد جامعه په نوم باندې د پاکستان نه ډیره موده مخکښې شائع شوې وه.

فدعد لجعفي وقاف لمسلم وبل لهما فاحفظ وقيت من الردى
٧٨ ١٠٠ ٣٢

يو دليل دا دې چه امام بخاري رحمه الله د خپل صحيح انتخاب د شپږو لاكهو احاديثو نه فرمائيلې دې، او امام مسلم رحمه الله صرف د درې لاكو نه انتخاب فرمائيلې دی.
د صحيح بخاري نه پس مرتبه ده د صحيح مسلم، بيا ددې نه پس عند الجمهور مرتبه د ابوداؤد ده، خو د ابن سيد الناس رحمه الله رائې دا ده چه سنن ابوداؤد او مسلم دواړه په يو درجه كښې دی، خو دا د جمهورو د قول خلاف دی، ددې نه پس بيا مشهور دا ده چه د ترمذی شريف مرتبه ده، خو د ډيرو حضراتو تحقيق دا دې چه د نسائی شريف درجه د ترمذی نه پورته ده، هم دا زمونږ د حضرت شيخ رحمه الله رائې هم ده او قرين قياس هم دا ده، ځكه چه د ترمذی داسې روايات متكلم فيها په كوم باندې چه ابن الجوزی د وضع حكم لګولې دې ديرش دی، او په نسائی شريف كښې صرف لس احاديث دی چه په هغې باندې ابن الجوزی د وضع حكم لګولې دې، او بعض مغاربه خو تردې پورې وئيلې دی لكه علامه سخاوی رحمه الله په فتح المغيث كښې نقل كړی دی چه د نسائی شريف درجه د بخاری نه هم اوچته ده، دويمه وجه هغه ده كومه چه ددې واقعې نه هم معلوميږی چه امام نسائی رحمه الله چه كله سنن كبری تاليف اوفرمائيلو چه په هغې كښې هر قسم روايتونه وو قوی او ضعيف نو امير د وخت دهغوی نه تپوس اوكړو :اكله صحيح؟ فقال لافقال الاميرفاكتب منه الصحيح مجردا فلخص منها الصغرى وسماه المجتبى (بالباء او النون) يعنی آيا ددې ټولو احاديث صحيح دی؟ امام نسائی رحمه الله اوفرمائيل نه... نو په دې امير اووئيل چه په دې كښې صرف صحيح روايات بيل كړئ، په دې باندې امام نسائی د سنن كبری تلخيص كولو سره دهغې نه صرف احاديث صحيحه واخستل، او ددې سنن صغرى نوم ئی المجتنى كيخودلو په ياء سره يا المجتبى په نون سره دواړه اقوال دی، په اول صورت كښې به اخستلې شی د اجتباء (بالباء نه)، چه دهغې معنى ده انتخاب او د خوښولو او په دويم صورت كښې به ماخوذ وی د اجتناء (بالنون) نه چه دهغې معنى ده د ميوې وغيره د راټولولو ، حاصل معنى د دواړو يوه ده.
د علامه انور شاه كشميری رحمه الله رائې دا ده چه د نسائی شريف درجه د ابوداؤد نه هم اوچته ده، او په دليل كښې دا فرمائی چه امام نسائی رحمه الله خپله ارشاد فرمائيلې دې : ما اخرجت فى الصغرى فصحيح... يعنی ما چه په سنن صغرى كښې څومره روايات ذكر كړی دی هغه ټول صحيح دی. او امام ابوداؤد رحمه الله د سنن ابوداؤد په باره كښې فرمائی ﴿ ما لم اذكر فيه شيئا فهو صالح ﴾ يعنی چه په كوم روايت باندې څه كلام اونكړم (او داسې روايات په سنن ابوداؤد كښې ډير زيات دی) نو هغه صالح دی او صالح عام دې، صحيح او حسن دواړو ته شامل دې نو ددې نه معلومه شوه چه سنن صغرى افضل دې د سنن ابوداؤد نه.

**په سنن ابن ماجة او سادس ستة كښې د علماء كرامو اختلاف :**

اوس د ټول نه په اخر كښې د سنن ابن ماجه مرتبه ده بالاتفاق ځكه چه په دې كښې ډير ضعيف روايات دی، د حافظ ذهبی رائې دا ده چه په دې كښې داسې روايات كوم چه حجت

او قابل استدلال نه دی، هغه تقریبا زر دی او داسې روایات چه بالکل مطروح او ساقط الاعتبار دی هغه دیرشو ته نزدې دی، او ابن الجوزی رحمه الله خو هغه په موضوعات کښې داخل کړې دی او حافظ مزی رحمه الله قاعده کلیه فرمائیلې ده، کل ما انفرد به ابن ماجة فهو ضعیف، چه کوم روایات داسې وی چه صرف په ابن ماجه کښې وی او په صحاح ستة کښې په بل یو کتاب کښې نه وی نو هغه ضعیف دې، خو حافظ ابن حجر رحمه الله دا قاعده کلیه نه ده تسلیم کړې، او فرمائیلې ئې دی چه علی الاطلاق داسې نه ده، اګرچه دا صحیح ده چه په هغې کښې ډیر احادیث ضعیف او منکر دی.

حضرت شیخ رحمه الله په مقدمه د لامع کښې لیکی چه متقدمینو سنن ابن ماجه لره په اصول او امهات کتب کښې نه دې شمار کړې، چنانچه امام نووی رحمه الله په تقریب کښې امهات کتب صرف پنځه ګرځولی دی یعنی د هغوی په نزد د صحاح ستة په ځائې صحاح خمسه دی، یعنی صحیح بخاری، صحیح مسلم، جامع ترمذی، سنن ابوداؤد او سنن نسائی، ابن ماجه هغوی نه دې ذکر کړې، وئیلې شی ﴿ اول من ضمه الی الاصول ابن طاهر المقدسی ﴾ یعنی ابن ماجه لره اول په کتب صحاح کښې ابن طاهر المقدسی داخل کړې دې، دا ابن طاهر المقدسی هم هغه دې د چا چه دوه کتابونه شروط الائمة الستة او اطراف الکتب الستة [1] ډیر مشهور دی، په دې دوؤ کتابونو کښې هغوی د صحاح د پنځو کتابونو سره شپږم ابن ماجه هم اخستلې دې، او بعض حضراتو د ابن ماجه په ځائې مؤطا مالک سادس سته منلې دې، پس رزین بن معاویه العبدری هم په هغوی کښې دې بلکه اصل هم هغه دې، هغوی په خپل کتاب تجرید الصحاح کښې کتب خمسه او په ځائې د ابن ماجه د مؤطا احادیث اخستلې دی، هم دغه شان ابن الاثیر الجزری په جامع الاصول لاحادیث الرسول کښې د صحاح ستة احادیث راجمع کړی دی، او د ابن ماجة په ځائې موطاء اخستلې دې، او ابوسعید علائی ددې په ځائې سنن دارمی ته سادس ستة وئیلې دې، او ابوالحسن سندهی فرمائی چه د طحاوی شرح معانی الآثار احق دې چه هغه صحاح ستة کښې شمار کړې شی، فانه عدیم النظیر فی بابه.

## د صحاح سته بعض خصوصیات:

د هر کتاب څه خصوصیات وی، په صحاح ستة کښې هم هر یو کتاب بیل بیل خصوصیت لری، چنانچه په بخاری شریف کښې لوئی خصوصیت او اهمیت تراجم ته حاصل دې، چنانچه مشهور ده چه فقه البخاری فی تراجمه... حضرت شیخ الهند رحمه الله په تراجم بخاری کښې لیکلی دی چه د امام بخاری ټوله سرمایه د هغوی په تراجم کښې ده، په تراجم بخاری کښې لطیف اشارات او ژور طرق د استنباط موندلې شی، چه په هغې سره د امام بخاری رحمه الله باریک بینی او د بالغ نظرئ پته لګی، بعض وخت په ترجمة الباب او حدیث الباب کښې په ظاهره هیڅ مناسبت نه ښکاری، او بعض تراجم پکښې مکرر هم معلومیږی،

[1] اطراف حدیث دیو خاص قسم کتاب اصطلاحی نوم دې، چه دهغې تعارف به انشاء الله روستو راشی

حال دا چه هلته غرض مختلف وی هم دا وجه ده چه شراحو د بخاری ددې تراجمو د حل کولو دپاره مستقل اصول او ضوابط جوړ کړل، حضرت شیخ رحمه الله په مقدمه د لامع کښې اولاً د شاه ولی الله صاحب رحمه الله لیکلې شوې شل اصول او دهغې نه پس د شیخ الهند لیکلې شوې پنځلس اصول نقل فرمائیلې دی، بیا دهغې نه روستو په مختلف شروح د بخاری یا تراجم کښې غور کولو او د شروح د مطالعې کولو نه پس چه کوم اصول خپله د حضرت شیخ په ذهن کښې راغلل هغه ئې ذکر فرمائیلې دی، غرض دا چه ټول راجمع کړې شی نو اویا اوصول جوړیږی چه هغه ئې ډیر په وضاحت او د مثالونو د ذکر کولو سره د لامع الدراری په مقدمه کښې ذکر فرمائیلې دی، دا حقیقت دې چه حضرت شیخ رحمه الله حتی الاستطاعة د تراجم بخاری د حل کولو حق ادا اوفرمائیلو، اګرچه مشهوره ده چه د تراجم بخاری د شرح قرض د امت په ذمه باندې تر اوسه پورې باقی دې.

## دصحیح مسلم بعضې خصوصیات:

او د صحیح مسلم یو ښکاره خصوصیت او وصف امتیازی دا دې چه هغوی د یو مضمون ټول احادیث ډیر په ښکلی انداز یعنی په حسن ترتیب سره یو ځائې بیانوی، د یو حدیث ډیر سندونه ډیر په عمده انداز کښې ذکر کوی، چه په هغې باندې محدثین حضرات ښه پوهیدلې شی، زمونږ او ستاسو په شان طالبان هغه باریکیانو ته چرته رسیدلې شی، پس امام نووی رحمه الله د شرح مسلم په شروع کښې ځائې په ځائې د امام مسلم رحمه الله د هغه حسن ترتیب او د جودة وضع ذکر فرمائیلې دې، په دې کتاب کښې اګرچه صورة تراجم الابواب مفقود دی خو فی الواقع د مضامینو په اعتبار سره اصل کتاب مبوب او مرتب دې، هر باصلاحیت انسان ددې کتاب په احادیثو باندې ابواب او تراجم قائمولې شی، پس موجوده تراجم کوم چه په حاشیه کښې درج دی هغه د امام نووی رحمه الله شارح مسلم د طرف نه دی، بعض خلق وائی چه د امام نووی رحمه الله تراجم د صحیح مسلم شایان شان نه دی، او په دې سره د کتاب حق نه ادا کیږی، زه وایم که ستاسو نه کیدې شی نو تاسو ئې حق ادا کړئ دا هسې فضول خبرې دی، خلقوته په تنقید کولو او رائې قائمولو کښې هسې خوند ملاویږی، د امام نووی رحمه الله په دې شرح کښې ډیر خیر او برکت دې، د مسلم شریف ئې ډیره نفیس او جامع شرح لیکلې ده. فجزاه الله عنا أحسن الجزاء.

## د سنن ترمذی بعضې خصوصیات:

او د ترمذی شریف د ټولو نه اهم قابل اعتناء څیز کوم چه ډیر محنت طلب دې او په دې زمانه کښې په دې باندې هیڅ مستقل کتاب نشته، هغه د هغوی قول وفی الباب عن فلان وفلان، یعنی د هغه روایاتو تخریج د کومو چه هغوی حواله ورکوی، هغه چرته او په کوم کتاب کښې دی.[1]

[1] دا تقریر د ١٣٩٠ هجري دې او دا نفي د هم هغه وخت په اعتبار سره ده، ګنې اوس په نژدې وخت کښې په دې موضوع باندې مستقل یو کتاب د کراچۍ نه شائع شوې دې، چه دهغې نوم.......٢٦

## د سنن نسائی بعضې خصوصيات:

او د نسائی شریف یو خاص څیز دا دې چه هغوی په بعض احادیثو باندې داسې کلام فرمائی : قال أبوعبدالرحمن هذا حديث خطأ... نو دلته تحقيق طلب څيز دا وی چه په کوم څیز باندې مصنف رحمه الله نقد فرمائی هغه څه دی؟ او بل دا چه دهغې چه کوم المقابل صواب دې هغه څه دی؟ هسې خود نسائی شریف تراجم او ابواب ته هم خاص اهمیت حاصل دې، خو چونکه په دې خصوصیت کښې بخاری د هغه نه فائق دې په دې وجه هغه نظر انداز کولې شی، او زما اندازه دا ده چه د نسائی شریف کتاب الطهارة دقیق او مشکل دې، او دهغې ابواب خاص طور سره قابل اعتناء دی.

## د سنن ابن ماجه بعضې خصوصیات:

او د ابن ماجه خصوصیت دا دې چه په هغې کښې ډیر نادر او غریب احادیث دی، دا رنګ چونکه په هغې کښې ضعیف احادیث په کثرت سره دی او بعض روایات پکښې موضوع هم دی، په دې وجه دا ضروری ده چه ډیر په احتیاط سره ئې تعلیم او تعلم اوکړې شی، یعنی دا چه د هغه احادیث موضوعه او مطروحه معلومات اوکړې شی او هغه په ګوته کړې شی.

## د شرح معانی الاثار بعضې خصوصیات:

او د طحاوی شریف په خصوصیاتو کښې یو ممتاز څیز د هغوی انظار دی، امام طحاوی رحمه الله اول د مذهب حنفی ترجیح په طریق د روایت سره ثابتوی، دهغې نه چه فارغ شی نو دلیل عقلی طرف ته متوجه شی، او د مذهب حنفی ترجیح په طریقې د درایت او نظر او عقل بیانوی.

## خصائص د سنن ابوداؤد :

اوس مونږ د سنن ابوداؤد بعض خصوصیات ذکر کوو او بعض عادتونه د مصنف رحمه الله ذکر کوو.

۱: په سنن ابوداؤد کښې د ټولو خصوصیاتو نه یو اهم څیز قال أبوداؤد دې. ددې په غرض باندې پوهیدل ډیر اهم دی، چنانچه کله خو هغوی په دې سره اختلاف رواة في الإسناد ذکر کوی، او کله اختلاف رواة في الفاظ الحديث بیانوی، او کله صرف تعدد د طرق وغیره طرف ته اشاره کوی، اوس په هر مقام باندې د قال أبوداؤد په مطلب باندې پوهیدل او په هغه اختلافات او فرقونو باندې ځان پوهول کوم لره چه هغوی بیانول غواړی یو اهم کار دې، ددې اقاویل ابوداؤد څومره صحیح تشریح او توضیح چه صاحب بذل المجهود کړې ده داسې یو شارح هم زمونږ د علم په اعتبار سره نه ده کړې.

۲: یو عادت د مصنف رحمه الله دا دې چه هغوی کله کله د یو حدیث سند بیانوی نو هغوی هم ددغې سند سره د هغه حدیث دویم سند هم ذکر کول شروع کړی، او بیا د هر سند چه کوم

---

له.... دې کشف النقاب عما يقوله الترمذي وفي الباب، او پخوانو شراحو چه په دې سلسله کښې کوم کتابونه لیکلې دی لکه ابن سید الناس، حافظ عراقی او حافظ ابن حجر وغیره، هغه اوس نایاب دی.)

الفاظ روایت شوي وي هغه بیل بیل او ممتاز کړي، داسې اګرچه نور حضرات مصنفین هم کوي خو ډیر کم، په سنن ابوداؤد رحمه الله کښې دا څیز ډیر په کثرت سره موندلې شي، غالبا هم په دې وجه باندې دا دې کتاب په خصائص کښې ذکر کولې شي.

۳: د مصنف رحمه الله یو عادت دا دې چه ډیر کرته د ترجمة الباب په ذریعه باندې جمع بین الروایات او دفع تعارض طرف ته اشاره کوي چه دهغې د کتاب د مطالعې نه اندازه لګولې کیدې شي.

۴: ددې خصوصیاتو نه یو دا هم دې چه دهغې تصریح مصنف رحمه الله پخپله کړې ده په هغه خط کښې کوم چه هغوی اهل مکه ته لیکلې وو، چه امام ابوداؤد رحمه الله په خپل سنن کښې د یو داسې راوي حدیث نه دې راوړې کوم چه د هغوی په نزد متروک وي.

۵: هم دغه شان مصنف رحمه الله د خپل سنن په باره کښې دا هم فرمائیلي دي: إنه يقدم رواية الأقدم على الأحفظ،، یعنی که د یو حدیث دوه سندونه دي چه په هغوی کښې یو راوي أقدم دي (یعنی سند عالي او د کمو واسطو والا) او د دویم سند راوي أحفظ دې نو هغوی اول الذکر لره اختیاروي، یعنی سند عالي اختیاروي اګر که دهغې رواة أحفظ نه وي.

۶: د مصنف رحمه الله یو عادت دا هم دې کوم چه د هغوی هم د دغه رساله مذکوره نه مستفاد دې چه د هغوی اصل منشاء دا ده چه د ترجمة الباب د ثابتولو دپاره دهغې نه لاندې صرف یو روایت راوړي په دې شرط چه دهغې نه پوره ترجمة الباب ثابتیږي، او که هغوی په یو باب کښې د یو نه زیات أحادیث راوړي نو هغه د څۀ خاص فائدې د پاره وي، مثلاً دا چه په هغه دویم حدیث کښې د څه لفظ زیادت وي کوم چه په اول حدیث کښې نه وي یا د څه خاص فائدې د وجې نه ددې خصوصیت حاصل دا دې چه د مصنف رحمه الله مقصود جمع روایات او تکثیر روایات نه دې بلکه ترجمة الباب لره ثابتول دي، چه دهغې دپاره یو یا دوه احادیث کافي دي، په خلاف د امام نسائي او امام مسلم رحمهما الله چه هغوی د یو حدیث ډیر طرق ذکر کوي د هغوی مخې ته تکثیر طرق دې، ډیر کرته هغوی یو حدیث په خپل کتاب کښې د لس دولسو نه هم په زیاتو طرقو سره ذکر کوي.

۷: دا رنګ مصنف رحمه الله په هغه رساله کښې خپل یو عادت دا هم بیان فرمائیلي دي چه هغوی ډیر کرته د اوږد حدیث اختصار کوي، او د هغه حدیث صرف هغه حصه ذکر کوي کومه چه د ترجمة الباب سره مناسب او دهغې سره متعلق وي، ځکه چه د پوره حدیث ذکر کولو په صورت کښې د هغه حدیث چه کوم جزء مقصود دې هغه د بعض خلقو په حق کښې مخفی پاتې کیدې شي، یعنی په دې پته لګیدو کښې ورته مشکل پیدا کیدې شي چه ددې اوږد حدیث کومه حصه مقصود دی ده.

۸: دا رنګ یو خصوصیت ددې د مصنف رحمه الله د تصریح مطابق دا هم دې چه هغوی په دې کتاب داحادیثو کوم چه صرف څلور زره او اته سوه دي دهغې انتخاب د پنځو لاکهو احادیثو نه کړې دې، او د مسلم په باره کښې مشهوره ده چه د هغوی انتخاب د درې لاکهو احادیثو نه دې.

۹: ددې کتاب یو خصوصیت دا دې چه دا اول السنن دې، یعنی ددې طرز دا اول کتاب دې، او ددې نه مخکښې د حدیث تصانیف د جوامع او مسانید د قبیل نه وو.
۱۰: دا رنګ یو خصوصیت ئې دا هم دې چه په احادیث احکام باندې دومره جامع کتاب ددې نه مخکښې نه دې لیکلې شوې، د فقهی احادیثو څومره لویه ذخیره چه په دې کتاب کښې موندلې شی هغه په بل کتاب کښې نشته، پس بعض علماء کرامو لکه ابن العربی رحمه الله او امام غزالی رحمه الله تصریح فرمائیلې ده چه په کتب حدیث کښې هم دا یو کتاب د مجتهد دپاره کافی دې.
ددې کتاب په باره کښې یو خبره دا کړې شوې ده چه رسول الله ﷺ په خوب کښې اوفرمائیل: من أراد أن يتمسک بسنتي فليقرأ سنن ابی داوٗد... څوک چه زما په سنت تمسک یعنی دهغې اتباع کول غواړی نو هغه لره سنن ابوداوٗد لوستل پکار دی، او وئیلې شوی دی چه خوب لیدونکې ابوالعلاء الوادری رحمه الله دې.

## د ماسکت عنه ابوداوٗد بحث:

دا بحث هم د خصائص ابوداوٗد نه دې، او د علماء کرامو ترمینځه اختلافی دې، ددې بحث حاصل دا دې چه امام ابوداوٗد د روایاتو د تخریج په ضمن کښې اختلاف رواة فی الاسناد لره بیان فرمائی. او بیا د کوم راوی متابعت چه د هغه په علم کښې وی هغه هم ذکر فرمائی چه دهغې نه د یو روایت راجح کیدل او د بل مرجوح کیدل پخپله مستفاد او واضحه کیږی، غرض دا چه داسې صنیع اختیار فرمائی چه په هغې سره د فن حدیث سره مناسبت لرونکی باخبر حضرات اندازه لګولې شی چه دا روایت د کومې درجې دې، او بعض وخت مصنف رحمه الله پخپله د یو طریق د راجح کیدلو تصریح یا کم أز کم اشاره فرمائی، خو بعض ځایونو کښې داسې وی چه د روایت د ذکر کولو نه پس بالکل خاموش پاتې شی، په روایت کښې اختلاف یا څه قسم اضطراب هیڅ هم نه بیانوی، اوس دلته سوال واردیږی چه په کوم روایت باندې مصنف رحمه الله سکوت فرمائی هغه د کومې درجې دې؟ نو ددې قسم روایاتو په باره کښې مصنف رحمه الله په هغه رساله کښې کومه چه ئې د اهل مکه په نوم ده،[۱] لیکی: ما لم أذکر فيه شيئا فهو صالح... یعنی په کوم حدیث باندې چه زه څه کلام اونکړم نو هغه صالح یعنی قابل احتجاج ګنړل پکار دی، اوس مصنف رحمه الله خو دا اوفرمائیل چه دا قسم روایت زما په نزد معتبر او قابل استدلال وی، خو د حضرات محدثینو په هغې کښې اختلاف دې، او په هغې کښې درې اقوال مشهور دی،

**(ومبی قول)**: (۱) یو قول هغه دې چه کوم ابن منده او ابن السکن اختیار کړې دې، هغه دا دې چه ما سکت علیه أبوداوٗد بغیر د تردد نه حجت او صحیح دې.

**(دویم قول)**: (۲) دویم قول هغه دې کوم چه امام نووی رحمه الله او ابن صلاح اختیار کړې دې هغه

---

[۱] داامام ابوداوٗد دا رساله د ابوداوٗد د بعضو نسخو په اول یا آخر کښې مطبوع ده، د مطالعې قابله ده او دعلامه زاهد الکوثری په تحقیق سره دمصر نه شائع شوې ده.

دا چه که د خارج نه دهغې ضعف ثابت نه شي نو هغه به د حسن په درجه کښې وی حجت او قابل استدلال به وی،

**(دریم قول):** (۳) دریم قول هغه دې کوم چه حافظ ابن حجرؒ اختیار کړې دې هغه دا چه په کوم روایت باندې مصنفؒ سکوت اختیار اوفرمائی دهغې شاهد او موئد لټول پکار دی، که د هغه روایت شاهد ملاؤ شي نو بیا خو به حجت وی ګڼلې هغه روایت قابل توقف دې، او حافظ دخپل قول وجه دا بیان کړې ده چه مصنفؒ په خپله رساله کښې دا هم لیکلې دی چه ﴿وما فیه وهن شدید بینته﴾ یعنی په کوم روایت کښې چه سخت ضعف وی نو هغه زه بیانوم، حافظؒ فرمائی چه د مصنفؒ ددې کلام نه معلومیږی چه چرته وهن غیر شدید وی هغه نه بیانوی بلکه سکوت پرې کوی، چه کله صورت حال دا دې نو ما سکت علیه ابواؤد مطلقا څنګه حجت اومنلې شي، دارنګ هغوی دا هم فرمائی چه مونږ ګورو چه په بعض ځایونو کښې داسې کیږی چه د یو روایت په سند کښې ضعیف راوی وی، خو دهغې باوجود مصنفؒ هلته سکوت فرمائی. لکه عبدالله بن لهیعه او صالح مولی التوامه وغیره او بعض وخت داسې کیږی چه هغوی د یو ضعیف راوی په وجه یو ځائې کښې په یو روایت باندې کلام اوفرمائی، بیا چه په بل ځائې کښې هغه راوی په یو روایت کښې راشی نو هغوی په ما سبق باندې اعتماد کولو سره په هغې کلام نه فرمائی، خو کتونکې دا اوګڼړی چه مصنفؒ پرې سکوت فرمائیلې دې، غرض دا چه ددې ټولو وجوهاتو مقتضی حافظ دا راویستله چه د ما سکت علیه ابوداؤد حکم توقف دې، چه تر څو پورې دهغې شاهد او موئد ملاؤ نه شی هغې ته دې حجت او نه وئیلې شی،

**(څلورم قول):** (۴) یو څلورم قول دلته هغه دې کوم چه مونږ د خپلو استاذانو نه اوریدلې دې هغه دا چه په ما سکت علیه أبوداؤد کښې حافظ منذریؒ ته کتل پکار دی، که هغوی هم سکوت اوکړی نو بیا خو ما سکت علیه أبوداؤد حجت دې ګڼلې نه دې، چنانچه بعض مقامات داسې دی چرته چه مصنفؒ خو سکوت فرمائیلې دې خو حافظ منذریؒ هلته کلام فرمائیلې دې، دا منذری هم هغه حافظ ذکی الدین منذری دې کوم چه د الترغیب والترهیب د حدیثونو دمشهور کتاب مصنف دې، په لویو مبصرینو او ناقدینِ حدیث کښې دې، هغوی د سنن ابوداؤد اختصار کړې دې اودهغې شرح ئې فرمائیلې ده.

## په سنن ابوداؤد کښې حدیث ثلاثی شته که نه؟

یو بحث دلته دا دې چه په دې سنن کښې چرته حدیث ثلاثی شته او که نه، علامه سخاویؒ په فتح المغیث کښې لیکلې دی چه په سنن ابوداؤد کښې یو حدیث ثلاثی دې، او دا هغه حدیث دې کوم چه د حوض کوثر په بیان کښې دې چه دهغې راوی ابوبرزه الاسلمیؓ دې، مضمون دهغې دا دې چه یو ځل عبیدالله بن زیاد امیر کوفه هغه صحابی په خپل مجلس کښې طلب کړو، پس هغوی تشریف یوړو، امیر عرض اوکړو چه ما تاسو دې دپاره راغوښتلی یئ چه ستاسو نه معلومه کړم چه تاسو د رسول اللهﷺ نه د حوض کوثر په باره کښې څه اوریدلې دی او که نه؟ ددې حدیث تخریج امام ابوداؤدؒ د کتاب

په اواخر یعنی شرح السنة کښې کړې دې په باب فی الحوض کښې، ددې په باره کښې علامه
سخاوی رحمه الله لیکلي دی چه دا حدیث د سند په اعتبار سره ثلاثی دې، خو دا د هغوی تسامح
ده، په سند حدیث باندې نظر اچولو سره په اول ځل بیشکه دا معلومیږی چه دا ثلاثی دې،
خو د غور کولو نه پس معلومیږی چه ثلاثی نه دې بلکه رباعی دې، خو دې حدیث ته رباعی
فی حکم الثلاثی وئیلې کیدې شی، ځکه چه دې حدیث لره د صحابی رضی الله عنه نه روایت کونکې
تابعی دې او د تابعی شاګرد هم تابعی دې، لهذا د اتحاد طبقه د وجې نه دوه راویان د یو په
حکم کښې کیدې شی، پس په دې لحاظ سره دې ته ثلاثی وئیلې کیدې شی.

دې حدیث ته بعض حضراتو په حدیث الدحداح سره تعبیر کړې دې، چه دهغې وجه
دا ده چه ابوبرزه الاسلمی رضی الله عنه صحابی راوی حدیث دحداح یعنی د قد نه وړوکې او پیړ بدن
والا وو، او عبیدالله بن زیاد د هغوی په لیدو باندې د طنز او مسخرې په طور دحداح
وئیلې وو چه دهغې په اوریدلو باندې ابوبرزه رضی الله عنه د خفګان اظهار فرمائیلې وو.

## په کتب صحاح کښې د ثلاثیات وجود:

د دې نه پس پیژندل پکار دی چه د ثلاثی مطلب دا دې چه د مصنف کتاب او د رسول
الله ﷺ ترمینځه صرف د درې راویانو واسطه وی که صرف دوه وی نو هغه حدیث ته به
ثنائی وئیلې شی، په صحاح سته کښې په یوکتاب کښې هم حدیث ثنائی نشته، خو په
مؤطا د امام مالک رحمه الله کښې بعض روایات ثنائی شته، او ثلاثیات په صحاح سته کښې په
بعضو کښې شته او په بعضو کښې نه، په ترمذی شریف کښې صرف یو حدیث ثلاثی دې،
کوم چه په کتاب الفتن کښې دې د کوم راوی چه انس بن مالک رضی الله عنه دې چه دهغې مضمون
دا دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : **یأتی علی الناس زمان الصابر فیهم علی دینه کالقابض علی
الجمر،،** یعنی په خلقو باندې داسې زمانه راروان ده چه په هغې کښې به په دین باندې قائم
پاتې کیدل داسې ګران وی لکه سکروټه په لاس کښې نیول، او په ابن ماجه کښې پنځه
ثلاثیات دی، او د ټولو نه زیات په بخاری شریف کښې دی په هغې کښې دوه ویشت (۲۲)
احادیث ثلاثی دی، او په نسائی او مسلم کښې یو حدیث هم ثلاثی نشته، په دې دواړو
کښې زیات نه زیات علو سند په شکل د رباعی ده، او په ټولو صحاح ستة کښې رباعی په
کثرت سره ملاویږی.

(**سند عالی او سند نازل**): د وسائط (یعنی رجال سند) کمیدلو ته د محدثینو په اصطلاح کښې
علو سند وئیلې شی. او د کوم سند راویان چه کم وی هغې ته عالی سند وائی. او ددې
مقابل سند سافل یا نازل دې، په صحاح ستة کښې چه کوم زیات نه زیات نزول دې هغه
عشاری دې، پس په ترمذی او نسائی کښې یو یو حدیث عشاری دې. یعنی هغه حدیث چه
په هغې کښې د صاحب کتاب او د رسول الله ﷺ ترمینځه د لسو راویانو واسطه وی.

## الروایات المنتقدة لابن الجوزی رحمه الله:

د ابن جوزی رحمه الله د تشدد فی الروایات د وجې نه علماء کرامو په هغوی باندې نقد کړې دې،
په دې سلسله کښې مستقل تصانیف دی، پس حافظ ابن حجر رحمه الله القول المسدد فی الذب

عن مسند احمد ليکلې دې، چه په هغې کښې هغوی د مسند احمد داسې څليريشت (۲۴) احاديث مستثنی کړې دی. په کوم باندې چه امام ابن الجوزی رحمه الله د وضع حکم لګولې دې، حافظ فرمائی چه په دې څليريشت رواياتو کښې عجب دا ده چه يو روايت د مسلم شريف هم دې هذه غفلة شديدة منه... او علامه سيوطی رحمه الله يو رساله ليکلې ده چه دهغې نوم القول الحسن فی الذب عن السنن دې په هغې کښې هغوی د شپږ شلو احاديثو نه د زياتو استثناء کړې چه دهغې يو روايت د بخاری د نسخه حماد بن شاکر دې او يو روايت د مسلم دې. يو بل کتاب د علامه سيوطی رحمه الله التعقبات علی الموضوعات دې چه په هغې کښې هغوی لکه څنګه حضرت شيخ په مقدمه د لامع کښې ليکلې دی، درې سوه احاديث مستثنی کړې دی، چه په هغې کښې يو روايت د مسلم او بل د بخاری دې، او اته ديرش روايات پکښې د مسند احمد دی او نهه احاديث پکښې د سنن ابوداؤد دی، او لس پکښې د نسائی شريف دی او ديرش پکښې د ترمذی شريف دی او هم دومره د ابن ماجه دی، او شپيته پکښې د مستدرک حاکم دی او ددې ټولو احاديثو په باره کښې هغوی دا ثابته کړې ده چه دا موضوع نه دی، د سنن ابو داؤد په کومو نهه رواياتو باندې چه ابن الجوزی رحمه الله د وضع [1] حکم لګولې دې هغه دا دی:

۱: حديث صلوة التسبيح.

۲: حديث ابی ابن عماره فی عدم توقيت المسح.

۳: حديث معاذ بن جبل فی جمع التقديم فی السفر.

٤: حديث للسائل حق وإن جاء علی فرس.

٥: حديث لا تمنع يد لا مس أخرجه المصنف فی کتاب النکاح.

٦: حديث من سئل عن علم فکتمه، ألجم بلجام من نار.

۷: حديث لا تقطعوا اللحم بالسکين.

۸: حديث القدرية مجوس هذه الأمة.

۹: حديث المؤمن غر کريم والمنافق خب لئيم.

علامه سيوطی رحمه الله په دې کښې د بعض خو په القول الحسن فی الذب عن السنن کښې جواب ورکړې دې او د بعض په التعقبات علی الموضوعات کښ، يعنی دا ئې ثابته کړې ده چه دا موضوع نه دی، بلکه واقعه دا ده چه په صحاح ستة کښې په يو کتاب کښې هم

---

[1] د سنن ابوداؤد دغه رواياتو ته د موضوع وئيلو دا مطلب نه دې چه هغوی دتصريح سره دا فرمائيلې وی چه فلان فلان حديث کوم چه په سنن ابو داؤد او ترمذی کښې دی هغه موضوع دې بلکه هغوی خو صرف په احاديث موضوعه باندې يو غټ کتاب ليکلې دې په دې کښې هغوی صرف هغه روايات کوم چه د هغوی په تحقيق کښې موضوع وو جمع کړې دی. اوس چونکه د هغوی تشدد د علماء کرامو ترمينځه مشهور وو، په دې وجه علماء کرامو د هغوی ددې کتاب په دې نيت سره جائزه واخستله چه په دې احاديثو کښې چرته داسې حديث خو نشته چه د صحاح نه په يو کتاب کښې موجود وی، ددې تحقيق نه معلومه شوه چه په سنن ابوداؤد کښې داسې روايات نهه ملاويږی)

سنو۴ د ابن ماجه نه ان شاء الله هيڅ موضوع حديث نشته. مونږ دا خبره د الفيض السمائی په مقدمه کښې هم ليکلې ده.

## د امام ابوداؤد رحمه الله شرط تخريج :

دهغه ټولو امورو نه چه دهغې پيژندل د طالب حديث دپاره اهم او مفيد دی هغه شروط د أئمه حديث دی، تاسو به په شروح او حواشي کښې په کثرت سره اولولئ او اُوبه وينئ چه دا فلانې حديث چونکه د امام بخاری رحمه الله د شرط مطابق نه وو يا د فلانی مصنف رحمه الله د شرط مطابق نه وو، په دې وجه دا هغوی په خپل کتاب کښې نه دې اخستلې. ددې نه معلومه شوه چه د محدثين او مؤلفين صحاح ستة د تخريج احاديث دپاره خپل خپل خاص شرطونه لری کوم روايت چه د هغوی په نزد د هغوی په اختيار کړې شوې شرطونو او معيار باندې پوره وی هم هغې ته په خپل کتاب کښې ځائې ورکوی. حضرت شيخ په مقدمه د لامع کښې ليکلی دی چه د محدثينو د شرطونو په سلسله کښې ډير کتابونه او رسالې تصنيف کړې شوې دی، پس د حازمی شروط الأئمة الخمسة مشهور او معروف دې چه په هغې باندې د علامه زاهد الکوثری تعليق هم دې. هم دغه شان د ابن طاهر المقدسی شروط الائمة الستة هم په دې موضوع باندې مستقل کتاب دې، او ددې نه مخکښې بلکه داسې اوايئ چه د ټولو نه مخکښې امام ابوعبدالله بن مند رحمه الله کوم چه د ځلورمې صدئ امام دې، په دې موضوع باندې کتاب ليکلې دې، بهر حال ضرورت دا دې چه دا اوپيژندلې شی چه د امام ابوداؤد رحمه الله په دې کتاب کښې څه شرطونه دی، چه دهغې لحاظ ساتلو سره هغوی په سنن کښې روايات اخلی.

په دې سلسله کښې ماته يو ډيره مختصر او جامع خبره په معارف السنن کښې ملاؤ شوه، کومه چه هغوی د علامه انور شاه کشميری رحمه الله نه نقل کړې ده، په هغې کښې ئې په مختصر انداز کښې د اکثر صحاح ستة د مصنفينو شرائط بيان کړی دی، هغه مونږ بيانوو چه په هغې سره به د امام ابوداؤد رحمه الله د شرط علم هم اوشی، خو ددې شرطونو د پيژندلو نه مخکښې په دې خبره هم ځان پوهه کول پکار دی چه بعض علماء کرامو ددې خبرې تصريح کړې ده چه دې حضرات مصنفين صحاح ستة په يو مقام باندې هم دا تصريح نه ده کړې چه زمونږ په دې تصنيف کښې فلانې فلانې شرط دې، بلکه صورت حال دا دې چه حضرات محدثينو دصحاح ستة مطالعه کولو سره ددې دمصنفينو طرز عمل اوليدلو چه د هغوی په خپل کتاب کښې د رواياتو د اخستلو ترتيب څه دې. او د کومې درجې روايات اخلی دې ځيزونو ته په غور سره کتلو نه پس ئې دا خبره بيان کړې ده چه د فلانی مصنف رحمه الله شرط د تخريج دا دې او د فلانی دا دې، اوس واورئ هغه شرطونه کوم چه مولانا يوسف بنوری رحمه الله د علامه انور شاه کشميری په حوالې سره په معارف السنن کښې بيان کړی دی، شاه صاحب فرمائی :

د امام بخاری رحمه الله شرط الاتقان وکثرة ملازمة الراوی للشيخ دې. يعنی امام بخاری رحمه الله د داسې راوی روايت اخلی چه په هغې کښې دوه صفتونه وی، اول اتقان چه دهغې حاصل دا

دي چه په راوی کښې د قوت حفظ سره سره د اهتمام حفظ شان موجود وی، دویم صفت ملازمة الشیخ دې، یعنی د خپل شیخ په خدمت کښې حاضر اوسیدل او د هغه سره د ډیرې زمانې پورې پاتې کیدل.

د امام مسلمؒ شرط صرف اتقان دې، کثرت ملازمت ئې شرط نه دې بلکه د هغوی په نزد خو صرف امکان لقاء او معاصرت بین الراوی والمروی عنه کافی دې.

د امام ابوداؤدؒ او امام نسائیؒ شرط صرف کثرت ملازمت دې نه چه اتقان.

د امام ترمذیؒ په نزد د دواړو موجودیدل ضروری نه دی.[1]

صاحب منهل د ابن مندهؒ نه نقل کړی دی چه د امام ابوداؤدؒ شرط د داسې راویانو داحادیثو تخریج کول دی چه د هغوی په ترک باندې اجماع نه وی (یعنی بالاجماع متروک نه وی) اودې سره سره په سند کښې انقطاع او ارسال نه وی بلکه حدیث متصل السند وی.

**د علامه انور شاه کشمیری د خبرې وضاحت په نورو الفاظو کښې:**

راویان د حدیث په پنځه قسمه دی:

۱: تام الضبط و کثیر الملازمة... وی.... یعنی قوت حافظه ئې برابر ده او د استاد سره ئې ډیر وخت تیر کړې وی. ددې فائده دا وی چه کوم شاګرد د استاذ سره ډیر پاتې شی نو د هغه په خبره باندې ښه پوهیږی او کله چه ئې ورسره موده کمه تیره کړی نو د هغه په خبره باندې صحیح نه پوهیږی.

۲: تام الضبط وقلیل الملازمة... وی.... یعنی اول صفت خو پکښې شته خو ملازمت ئې د استاد سره کم دې.

۳: کثیر الملازمة وخفیف الضبط دی... یعنی استاد سره خو ډیر پاتې شوې دې خو قوة حافظه ئې برابره نه وی او په بعض روایاتونو کښې خطاء کیږی.

۴: چه خفیف الضبط و قلیل الملازمة...وی.... یعنی د قسم اول بالکل برعکس.

۵: المجاهیل والضعفاء.... وی، یعنی مجهول او ضعیف راویان.

چه هر کله تاسو دا پنځه قسمه راویان اوپیژندل نو اوس دا هم زده کړه چه د امام بخاریؒ عادت دا دې چه البخاری یاتی بالنوع الاول مستوعبا او یستوعب من النوع الاول. یعنی د تام الضبط او کثیر الملازمة راویانو نه نقل کوی لکه امام زهری او د هغوی شاګردان ؒ ویختار من النوع الثانی... یعنی په دویم قسم نوع کښې تحقیق کوی او دهغې نه پس ترې انتخاب کوی. نو په دې وجه د امام بخاریؒ شرط ډیر زیات اعلی شو په سند کښې ډیره علو پیدا شوه.

او هر چه امام مسلمؒ دې نو هغوی د ړومبو دواړو نوعو نه استیعاب کوی او په دویم نوع کښې د قلت ملازمت پرواه نه کوی او نوع ثالث نه انتخاب کوی یعنی پس د تحقیق نه ترې روایت اخلی نو د هغوی د روایت درجه د صحیح بخاری نه کمه شوه.

---

[1] کذا في معارف السنن (۱/ ۲۰)

او هر چه امام نسائي رحمه الله دي نو هغوی د اول درې واړو نه استيعاب کوی او د
ځلورم نوع نه انتخاب کوی.
او ابوداؤد رحمه الله د ځلورو واړو نوعو نه استيعاب کوی او د پنځمې نوع نه انتخاب
کوی نو په دې وجه په ابوداؤد کښې د نسائي په نسبت روايات ډير کمزورې دی.
او ترمذي رحمه الله په دې لحاظ په پنځمه درجه کښې دې چه هغوی ددې ټولو نه
استيعاب کوی، يعنې هر قسم راويان پکښې شته.
او ابن ماجه کښې ورسره بيا دوه ويشت (۲۲) احاديث موضوعه هم جمع شوې دی
اګر که بعض روايتونه د بخاری هم پکښې شته خو ورسره دغه شان روايات ئې هم راوړې
دی نو دهغې مرتبه د ټولو نه ښکته ده...... من المترجم)

## د سنن ابوداؤد نسخې او د تعدد نسخ منشاء :

ځان پوهه کړه چه ددې کتب صحاح نسخې مختلف دی د سنن ابوداؤد رحمه الله نسخې نورې هم
مختلف او متعدد دی دلته دا سوال وارديږی چه د تعدد نسخ منشاء او مقصد څه دې؟ نو
ځان پوهه کړه چه زمونږ په زمانه کښې د تحصيل حديث طريقه او صورت دا وی چه طالب
علم د حديث کتاب مخې ته کيږدی او د استاد نه په هغې باندې ځان پوهه کړی او هغه
اولولی، اود کومې زمانې چه دا تصانيف دی صحاح ستة وغيره، په هغه زمانه کښې
مطابع نه وو، په دې طريقه باندې د کتب حديث نسخې مطبوعه نه ملاويدې ځنګه چه په
دې زمانه کښې ملاويږی، بلکه په هغه زمانه کښې به د حديث تحصيل داسې کيدو چه يو
طالب حديث به د يو محدث په خدمت کښې حاضر شو او د هغوی په خدمت کښې
حاضريدو سره به ئې عرض اوکړو چه زه ستاسو نه ستاسو ددې رواياتو سماع کول غواړم
او هغه معلومول غواړم، په دې پاندې به هغه محدث د خپل اصل کتاب نه يا د خپلې
حافظې نه خپلو شاګردانو ته د هغه احاديثو املاء کوله، هلته به د طالب العلم مقصود د
لوستلو نه د متون احاديث او دهغې د اسانيدو حاصلول وو. کوم چه به د مخکښې نه د
هغوی په علم کښې نه وو او يا به ورسره په يو کتاب ليکلې موجود نه وو. ګويا د اصل
رواياتو حاصلول به ئې مقصود وو او په دې زمانه کښې دا صورت حال نه دې. بلکه اوس
خو داسې ده چه کوم احاديثو لره د استاد نه لسوتل غواړی نو ځنګه چه هغه احاديث د
استاد سره په مطبوعه کتاب کښې موجود دی هم دغه شان هغه احاديث خپله د شاګرد سره
د مخکښې نه موجود او محفوظ دی. اوس چه هر کله دا خبره ده چه په هغه زمانه کښې به
شاګردانو د خپل استاد نه احاديث اوريدلو سره ليکل او جمع کول، ظاهره ده چه ليکونکی
شاګرادان مختلف وی، بعض شاګردانو ترې نه په دې کال لوستل اوکړل او بعضو تير کال،
او بعضو په اوؤم کال، د هم دغې محدث نه احاديث اوريدلو سره اوليکل نو په کوم کال
باندې چه دې محدث خپلو څومره شاګردانو ته د څومره رواياتو املاء اوکړه هغوی سره
هغه هومره محفوظ شو، اوس د استاذ په املاء کولو سره په مختلف کالونو کښې د
رواياتو کمې زياتې کيدو، لکه په دې زمانه کښې چه تاسو د استاذانو تقرير ضبط کوئ نو
دا ضروری نه ده چه څومره تقرير استاذ دې کال کړې دې هم دومره تقرير دې تير کال هم

کړې وی، بلکه د کلام په کمی او زیادت کښې یقینا فرق وی هم دغه شان په هغه زمانه کښې به هم د نفس روایاتو په تعداد کښې کمې زیاتې راتلو، پس هم دا وجه ده د اختلاف نسخ او د تعدد نسخ، اوس مونږ دا بیانوو چه ددې کتاب څومره نسخې دی، نو ددې ډیرې نسخې دی چه په هغې کښې زیات مشهور د امام ابوداؤد د څلورو شاګردانو څلور نسخې دی، چه هغه سهارنپوری رحمه الله د بذل المجهود په مقدمه کښې لیکلې دی.

۱: **نسخه لؤلؤی:** یو نسخه د ابوعلی لؤلؤی ده چه دهغې پوره نوم محمد بن احمد عمرو البصری دې، المتوفی ۳۳۳ هجری واللولوی منسوب الی بیع اللؤلؤ، یعنی لؤلوی د ملغلرو د اختسلو او خرڅولو طرف ته منسوب دې، غالبا د هغوی به د ملغرو او موتیانو وغیره تجارت وو، زمونږ په دور (په بلاد مشرق کښې) هم دا نسخه رائج ده. هغوی دا په ۲۷۵ هجری کښې د امام ابوداؤد رحمه الله نه روایت کړه او دا آخری املاء ده کومه چه ورته هغوی په مذکوره کال املاء کړې ده. هم دا کال د مصنف رحمه الله د وفات کال دې، هم په دې وجه دا نسخه اصح النسخ ګڼړلې شی.

۲: **نسخه ابن داسه:** دویمه نسخه د ابن داسه ده چه د هغوی پوره نوم ابوبکر محمد بن بکر بن داسه التمار البصری دې، په بلاد مغرب کښې هم دا نسخه مشهوره ده، امام ابوسلیمان الخطابی کوم چه د حدیث په مشهور شارحینو کښې دې، او د سنن ابوداؤد شارح هم دې هغوی سنن ابوداؤد براه راست د ابن داسه نه اخذ کړې دې، هغوی فرمائی: قرأته بالبصرة علی ابی بکر بن داسه... او بیا ئې د اخذ کولو نه پس هم په هغه نسخه باندې شرح هم لیکلې ده، کومه چه د معالم السنن په نوم باندې مشهوره ده د ابن داسه او لؤلؤی په نسخو کښې فرق صرف د تقدیم او تاخیر دې د کمی او زیاتی نشته.

۳: **نسخه ابوعلی الرملی:** دریمه نسخه د ابوعیسی الرملی ده، د هغوی پوره نوم ابوعیسی اسحق بن موسی الرملی دې، د وراق ابوداؤد په لقب سره مشهور دې، د وراق معنی په ظاهر کښې د کتب خانې د محافظ ده، وهذه النسخة تقارب نسخة ابن داسه.

۴: **نسخه ابن الاعرابی:** څلورمه نسخه د ابن الاعرابی ده، د هغوی نوم ابوسعید احمد بن محمد دې، المتوفی ۳۰٤ هجری... د ابن الاعرابی په کنیت سره مشهور دې [1] دا نسخه ناقص ده په دې کښې کتاب الفتن، کتاب الملاحم، کتاب الحروف او هم دغه شان نیم کتاب اللباس نشته.

۵: **نسخه ابوالحسن عبدی:** پنځمه نسخه د ابوالحسن عبدی ده، په دې نسخه کښې د بعض راویانو په سندونو باندې داسې کلام دې کوم چه په نورو نسخو کښې نشته... نبه علیه الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالی.

---

[1] ) ابن الاعرابي هذا غير ابن الاعرابي اللغوي المشهور هو محمد بن زياد المتوفي ۲۳۱ هجرى وهذا الثاني اقدم من صاحب النسخة افاده مولانا سعيد بالنبوري)

## الشروح والحواشي :

حضرت شیخ رحمه الله په مقدمه د بذل کښې (چه تر اوسه پورې غیر مطبوع ده) ددې کتاب د شلو نه زیات شروحات شمیر کړې دی، ددې پنځه شروح خو مشهور او کامل دی، اکثر په هغې کښې مطبوع هم دی.

۱: **معالم السنن :** دا شرح د امام ابوسلیمان احمد بن ابراهیم الخطابی المتوفی ۳۸۸ هجری تالیف دې، دهغوی دا شرح په نسخه ابن داسه باندې ده لکه چه ددې نه مخکښې مونږ بیان کړل، او دا شرح کامل، جامع او مختصر ده، د بنده خیال وو چه دا غالبا اقدام الشروح ده، ددې نه پس ددې خبرې تصریح ماته په فیض الباری کښې ملاؤ شوه چه دا ددې کتاب د ټولو نه اولنئ شرح ده.

۲: **شرح ابن رسلان:** یو شرح شهاب بن رسلان هم لیکلې ده کوم چه د حافظ ابن حجر رحمه الله شاګرد دې د هغوی دا شرح د شرح ابن رسلان په نوم سره مشهوره ده، اوریدلې مې دی چه دا شرح کافی مبسوط په اتو جلدونو کښې ده، خو دهغې کامل نسخه موجوده نه ده، ددې متفرق جلدونه د بعض حضراتو سره محفوظ دی، ددې دوه جزونه حضرت سهارنپوری رحمه الله د حجاز مقدس نه په خپل اهتمام سره نقل کړی وو او دلته ئې راوړې وې، کوم چه د مظاهر العلوم په کتب خانه کښې محفوظ وی، حضرت شیخ رحمه الله به ددې شرح ډیر تعریفونه فرمائیل، او حضرت ددې د موجوده اجزاء نه په خپلو تالیفاتو کښې کافی استفاده فرمائیلې ده.

۳: **مرقاة الصعود الی سنن أبی داؤد:** دا د علامه جلال الدین سیوطی رحمه الله المتوفی ۹۱۱ هجری تصنیف دې، علی بن سلیمان الدمنتی ددې شرح تلخیص کړې دې، او ددې تخلیص نوم دې درجاة مرقاة الصعود، حضرت سهارنپوری چه په بذل المجهود کښې فرمائی : کذا فی الشرح... نو دهغې نه هم دا شرح مراد وی.

۴: **المختصر للمنذری :** ددې نوم مصنف رحمه الله المجتبی کیخودلې دې، حافظ ذکی الدین منذری او د هغوی د شرح ذکر زمونږ په کلام کښې راغلې دې.

۵: **تهذیب السنن:** دا د علامه ابن القیم رحمه الله تصنیف دې، په دې کښې په هر حدیث باندې کلام نشته، بلکه په بعض بعض ابوابو باندې کلام کړې دې، او په بعض ځایونو کښې ئې ښه په تفصیل سره لیکلې دی هیڅ کمې ئې نه دې پریخودلې.

دا پنځه خو قدیم او مشهور شرحې دی، او درې شرحې دهغې نه روستو دی، چه هغې ته شروح جدیده وئیل مناسب دی.

۱: **عون المعبود شرح سنن ابوداؤد :** دا د یو اهل حدیث عالم شرح ده چه د هغه نوم محمد اشرف عظیم آبادی دې دا شرح مکمل ده، او په څلور غټو جلدونو کښې طبع شوې ده، په دې شرح کښې فوائد حدیثیه کافی دی، خو د شارح نه د کتاب په حل کولو اود قال ابوداؤد په بیان مراد کښې په ډیرو ځایونو کښې تسامح شوې دې چه دهغې زمونږ حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې په ډیرو مقاماتو باندې تنبیه فرمائیلې ده، او

چونکه اهل حدیث او غیر مقلد دي په دې وجه ئې په مقلدینو خصوصا په احنافو باندې استطالة لسان (ژبه اوږده) کړې ده، چه دهغې په وجه باندې زمونږ حضرت سهارنپوری رحمه الله د هغوی نه خفه وو، چه دهغې ذکر خپله حضرت په مقدمه د بذل کښې فرمائیلې دې، او دا ئې هم لیکلې دی چه زه ددې شرح نه یو مضمون په خپله شرح کښې د هغه وخته پورې نه نقل کوم چه ترڅو پورې چه زه دهغه مضمون په اصل کتاب یعنی منقول عنه کښې او نه ګورم.

۲: **بذل المجهود فی حل أبی داؤد:** کومه چه زمونږ او ستاسو دپاره د تعارف محتاج نه ده یا کم از کم نه دی کیدل پکار، دا شرح ممزوج په پنځو ضخیم جلدونو کښې ده، د کتاب په حل او قال ابوداؤد په بیان مراد کښې ددې نه غوره هیڅ شرح نشته، حضرت شیخ رحمه الله د خپل ژوند په آخره زمانه کښې دا د خپلو حواشی د اضافې سره د بیروت نه په مصری طرز باندې طبع کړې وه، کومه چه په څلریشت جلدونو کښې ده. (وقد رأیت کتابا فی المکتبة الشاملة ألف فی تعاقب بعض مسائل الشیخ السهارنپوری اسمه فتح المعبود في بیان الهفوات في کتاب بذل المجهود تألیف : محمد بن عبدالرحمن الخمیس... من المترجم)

د دې شرح په تالیف کښې د حضرت سهانپوری رحمه الله تقریبا لس کاله لګیدلي دی، په دې تالیف کښې حضرت شیخ رحمه الله د حضرت سهارنپوری رحمه الله ښې لاس وو، او حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه حضرت سهارنپوری په مقدمه د بذل المجهود کښې ددې تعاون ذکر کولو سره زما په باره کښې لیکلې وو هو جدیر بان ینسب الیه هذا الشرح، دا عبارت ما په خپل لاس وران کړو، کله چه د حضرت سهارنپوری رحمه الله په دې باندې نظر پریوتلو نو تپوس ئې اوکړو چه دا دې څه اوکړل؟ ما عرض اوکړو چه حضرت په دې کښې د بذل اهانت دې. حضرت خاموش شو، حضرت سهارنپوری رحمه الله په مقدمه د بذل کښې د حضرت شیخ رحمه الله په دې تالیف کښې د اعانت تذکره په دې الفاظو سره کړې ده :

وأعاننی علیه بعض أحبائی خصوصا منهم عزیزی وقرة عینی وقلبی الحاج الحافظ المولوی محمد زکریا بن مولانا الحاج الحافظ المولوی محمد یحیی الکاندهلوی رحمه الله تعالی.

په بذل المجهود باندې د حضرت شیخ رحمه الله ډیر قیمتی حواشی دی، په هغې کښې ډیر حواشی د بذل المجهود مصری سره په حاشیه کښې طبع شوې دی، احقر د بذل المجهود نه د استفادې سره سره د هغه حواشی نه هم استفاده کړې ده.

په دې تقریر کښې به لوستونکی د بذل المجهود ا و د حضرت شیخ رحمه الله د هغه حواشی په کثرت سره حواله بیا مومی، امید دې چه دا تقریر به د بذل المجهود شریف د مضامین عالیه طرف ته د رسیدو یو غوره او اسانه ذریعه وی.

۳: **المنهل العذب المورود فی شرح سنن أبی داؤد:** دا د محمود بن محمد خطاب سبکی تصنیف دې، کوم چه په علماء ازهر کښې یو ډیر جید عالم دې او مالکی المسلک دې د هغوی دا شرح پوره نه ده، عمر ورسره وفا اونکړه چه دهغې په وجه د شرح تکمیل او نه شو، دا شرح په ممالک عربیه کښې مطبوع او ملاویږی. د هغوی طرز د علامه عینی رحمه الله د هغه طرز سره ملاویږی کوم چه هغوی په شرح د بخاری کښې اختیار کړې دې، او دهغې

دوه درې حواشي مشهور او معروف دي

۱: **فتح الودود**: دا د ابوالحسن محمد بن عبد الهادی السندهی المتوفی ۱۱۳۹هجری حاشیه ده، موصوف مسلکا حنفی وو د علامه سیوطی په شان د هغوی هم په ټولو صحاح ستة باندې حواشي دي.

۲: **التعلیق المحمودة**: دا د مولانا فخر الحسن الگنگوهی حاشیه ده، کوم چه د حضرت رشید احمد گنگوهی په شاګردانو کښې وو.

۳: **أنوار المحمود علی سنن أبی داؤد**: دا په اصل کښې د شیخ الهند، مولانا خلیل احمد سهارنپوری، مولانا انور شاه کشمیری او د مولانا شبیر احمد عثمانی ﷺ د هغه درسي تقاریرو مجموعه ده، کوم چه یو صاحب جمع کړې دي.

د دې نه علاوه نورو هم ډیرو حضراتو ددې کتاب شرح لیکل شروع کړل خو تکمیل ته او نه رسیدل، پس امام نووی رحمه الله هم شروع کړه علامه عینی هم شروع کړه چه دهغې هغوی په عمدة القاری شرح بخاری کښې حواله هم ورکړې ده، هم دغه شان حافظ عراقی رحمه الله تر د باب السجود السهو پورې شرح په اووهٔ جلدونو کښې اولیکله، وئیلې شوې دی چه که دا شرح د پوره کتاب هم په داسې تفصیل سره لیکلې کیدله نو په څلویښتو جلدونو کښې به پوره کیده.

**اداب د طالب الحدیث:**

د حضرت شیخ رحمه الله معمول زمونږ د طالب علمئ د زمانې نه مخکښې د ابوداؤد شریف په سبق کښې او دهغې نه پس زمونږ د طالب علمئ په دور کښې د بخاری شریف په سبق کښې د طالب حدیث دپاره د لسو آدابو د بیانولو دستور وو زه هم عام طور په سبقونو کښې هم هغه لس آداب ذکر کوم کله لږ په تفصیل او کله په اختصار سره، دې وخت کښې ئې هم مختصرا واورئ!

۱: **اخلاص نیت**. ۲: **اهتمام الحضور فی الدرس**:.. یعنی د سبق پابندی، ما د خپلې طالب علمئ په زمانه کښې الحمد لله ښه پابندی کړې ده، ماته یاد نه دی چه ما چرته د شرح جامی په سبق کښې هم په پوره کال کښې یو غیر حاضری کړې وی پاتې له د حدیث په سبق کښ، صرف دا نه چه غیر حاضری مې نه ده کړې بلکه رخصت مې هم نه دې اخستلې، ځکه چه کوم سبق د استاذ د لوستلو نه پاتې شو بس پوهه شه چه هغه حقیقتا پاتې شو، په غیر حاضرئ کښې د تعلیم ډیر لوئې نقصان دې او دا د بې برکتئ باعث دې.

۳: **الاصطفاف**: یعنی صف جوړول، طالبان دې په سبق کښې صف جوړولو سره د قاعدې مطابق کینې دا نه چه درسګاه ته ناوخته راځی، او راتلو سره پټ شان د دروازې په اړخ کښې غلې کینی.

۴: **د هیئت جلوس اصلاح**: یعنی مؤدب او څومره چه کیدې شی د التحیات په شکل باندې دې کینی، غرض دا چه پرلت وهلو سره دې نه کینی.

۵: **عدم النوم فی أثناء الدرس**: د سبق دوران کښې دې نه اودهٔ کیږی او سبق دې په ذوق او

شوق سره او په بیدارئ باندې اوری، ګهنتیه (پیریډ) ترې نه په غفلت کښې تیره نه شی.

۶: **عدم الاعتماد علی الکتاب**: یعنی په کتاب باندې دې تکیه نه لګوی په هغې باندې دې سنګل وغیره ږدلو سره بوج نه راولی،

۷: **عدم الضحک فی بعض ألفاظ الحدود**: یعنی په کتاب الحدود وغیره کښې چه کوم فحش او نامناسب الفاظ راشی نو ضرورة که دهغې ترجمه په اردو، پښتو کښې اوکړې شی نو هغه ډیر په سنجیدګئ سره اوریدل چه خندا پرې بالکل رانشی، زمونږ د حضرت شیخ رحمه الله عادت شریفه دا وو چه د کتاب الحدود په یو حدیث کښې چه به کله څه فحش یا نامناسب لفظ راغلو نو د هغه لفظ ترجمه به ئې په اردو کښې صفا صفا کوله، او دا به ئې فرمائیل چه دا د عربئ کنځل دی چه هر کله ضرورة او مصلحة ئې رسول الله ﷺ د خپلې ژبې مبارکې نه راویستلې شی نو زمونږ څه حیثیت دې، پس حضرت شیخ رحمه الله چه به کله په کتاب الحدود کښې دا لفظ ﴿ انکتها ﴾ یا په بخاری کښې ۳۷۸/۱ کښې د صلح حدیبیه والا حدیث کښې د صدیق اکبر رضي الله عنه په کلام کښې دا لفظ راتلو : (امصص بظر اللات) نو ددې الفاظو به ئې په اردو کښې ترجمه صریح کوله.

۸: **الأدب بأئمة الفقه** : یعنی د فقهاء کرامو سره ډیره د ادب معامله کول، داسې دې نه وی چه یو حدیث په ائمه کښې د یو امام خلاف راشی، نو د هغه امام په باره کښې د بې ادبئ خبره په ذهن کښې راشی په دې سلسله کښې به حضرت شیخ رحمه الله د حضرت ګنګوهی رحمه الله واقعه اوروله کومه چه حضرت په خپل تصانیف آپ بیتی وغیره کښې څو ځایه لیکلې ده هغه دا چه حضرت ګنګوهی رحمه الله په خپل درس حدیث کښې د یو داسې حدیث چه په ظاهر کښې د احنافو خلاف وو ډیره ښه توجیه او تاویل اوفرمائیلو، په شاګردانو کښې یو عرض اوکړو چه که امام شافعی رحمه الله دا توجیه اوریدلې وې نو هغوی به د خپل قول نه رجوع کړې وې؟ په دې باندې حضرت رحمه الله اوفرمائیل : توبه توبه استغفرالله.... که امام شافعی رحمه الله موجود وې نو زما دا تقریر به یو شبه وې، او حضرت مجتهد به ددې جواب کړې وې، اوس خو چونکه ائمه مجتهدین زمونږ مخکښې نشته صرف د هغوی اقوال زمونږ مخکښې دی، په هغه اقوالو کښې مونږ د امام ابوحنیفه رحمه الله قول أقرب الی القرآن والحدیث بیا مومو، په دې وجه دهغې تائید کوو ګینې که (بالفرض) په ائمه مجتهدین کښې په دې زمانه کښې څوک موجود وې نو د هغوی د اتباع او د تقلید نه بغیر به ګزاره نه وه.

۹: **احترام د علم او د علماء کرامو**: یعنی د استاذانو ادب نه صرف ظاهرا بلکه د زړه نه، ګینې د استاذ بې ادبی د علم نه د محرومتیا قوی سبب دې، صرف استاذ نه بلکه د تکرار کونکو او د درس د ملګرو او د کتاب او درسګاه کښې د کیخودلې شوو تختو وغیره چه په هغې باندې کتاب ږدلو سره لوستلې شی د هغه ټولو د احترام لحاظ ساتل.

۱۰ : **د هیئت اصلاح کول**: یعنی د خپل هیئت وضع قطع او جامې د شریعت او سنت مطابق ساتلو اهتمام او هغه لباس کوم چه د حدیث نه ثابت او منقول وی دهغې رعایت ساتل او د کوم قسم لباس چه په حدیث کښې ذکر نه وی په هغې کښې د هغه زمانې د نیکانو اتباع

کول، څکه چه په قرآن کریم کښې دی ﴿ واتبع سبيل من اناب إلى ﴾ الاية.

## انواع کتب الحديث :

الحمد لله مقدمة الكتاب پوره شوه، صرف د سند بیان باقی دې، تاسو ته به یاد وی چه مونږ کوم ځائې کښې د ابوداؤد د تسمیه بحث اجمالا ذکر کړې وو، هلته مونږ وئیلې وو چه د بیا دپاره که موقع ملاؤ شوه نو بعض قسمونه د کتب حدیث او دهغې تعریف او مصادیق به سره د مثالونو بیانوو، اوس هغه واورئ!

حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه کله ما مشکوة شریف درس کړو نو هغه وخت ماته په تتبع او تلاش سره صرف لس دولس اقسام د کتب حدیث معلوم شو، دهغې نه پس چه مې څومره اشتغال بالحدیث او د کتب حدیث مطالعه زیاتیدله نو بیا ډیر انواع مخې ته راتلل، پس د لامع د مقدمې د تالیف پورې راته پنځویشت نه زیات انواع معلومه شوې وو، دا خبره حضرت شیخ په درس بخاری کښې بیان فرمائیلې وه، اوس تاسو واورئ چه حضرت شیخ په مقدمة د لامع کښې په تفصیل سره اویشت انواع د کتب حدیث او دهغې مثالونه لیکلې دی، حضرت سهارنپوری رحمه الله هم د بذل المجهود په مقدمه کښې ډیر په اختصار سره لس قسمونه د کتب حدیث بیان کړی دی، او بنده مقدمه د بذل او مقدمه د لامع دواړه مخې ته ږدللو سره د الفیض السمائی په مقدمه کښې پنځویشتو ته نزدې انواع د کتب حدیث دهغې تعریفونه او دهغې مصداقات او مثالونه په تفصیل سره بیان کړې دی، لږ شان وخت اوباسئ او هغه اوګورئ. د کومو کتابونو په تصنیف او تالیف کښې چه حضرات محدثینو خپل عمرونه اولړول، چه مونږ کم از کم د هغه کتابونو د نومونو نه خو خبر شو، او دا اوګورو چه دې حضراتو په کوم کوم طرز سره د حدیث نبوی خدمت فرمائیلې دې، که الله پاک مونږ هم د خادمین حدیث په ډله کښې شامل کړی نو څومره د سعادت خبره ده، بهر حال څو انواع حدیث مونږ دلته بیانوو.

۱: **جامع**: ۲: **سنن**: دا دواړه مستقل قسمونه دی چه دهغې تعریف د تسمیه کتاب په ضمن کښې راغله.

۳: **مسند**: دا د حدیثو هغه کتاب دې چه په هغې کښې احادیث په ترتیب د اسماء الصحابه ذکرشوې وی، او د مضامینو ترتیب پکښې ملحوظ نه وی، پس د داسې کتابونو په سرخئ کښې د صحابی نوم لیکلې شی، مثلا مسند انس بن مالک او بیا صرف هم هغه روایات ذکر کړې شی کوم چه د انس رضي الله عنه نه روایت کړې شوې وی اګر که مضمون ئې هر څه وی.

بیا بعض محدثینو په دې کښې د حروف تهجی د ترتیب اعتبار کړې دې، لهذا د کوم صحابی د نوم په شروع کښې چه الف وی اول به د هغوی د روایاتو ذکر کولې شی، لکه انس بن مالک او ابی بن کعب رضي الله عنهما وغیره، او بیا د هغه صحابی روایات چه د هغه نوم په باء سره شروع وی، لکه براء بن عازب او بلال بن الحارث رضي الله عنهما وغیره، او بعضو د مراتب صحابه رضي الله عنهم اعتبار کړې دې، په دې صورت کښې به د خلفاء راشدینو روایات مقدم کولې شی، حال دا چه د هغوی د نوم په شروع کښې عین دې، مسند احمد او مسند ابوداؤد

الطیالسی کوم چه د حدیث د کتب متداوله نه دی دا دواړه د مراتب صحابه په اعتبار سره دی، او بعضې په دې کښې د قبائلو د ترتیب لحاظ ساتی، په دې صورت کښې د ټولو نه مخکښې د بنو هاشم روایات اخلی، ثم الأقرب فالأقرب.
او کله په مسند کښې صرف د یو صحابی د روایاتو په جمع کولو باندې اکتفاء کولې شی، مثلاً مسند ابی بکر یا د صحابه کرامو د یو جماعت روایات ذکر کړې شی مثلاً مسند الاربعة چه په هغې کښې صرف د خلفاء اربعه رضی الله عنهم روایات راجمع کړې شی او مسند العشرة چه په هغې کښې د عشره مبشره روایات ذکر کړې شی.
۴: **مشیخة**: د احادیثو هغه کتاب ته وائی چه په هغې کښې روایات په ترتیب د شیوخ بیان کړې شی، یعنی مصنف چه کوم احادیث د خپل یو شیخ نه اوریدلې وی هغه یو ځائې راجمع کړی، مثلاً اسماعیلی أحادیث الاعمش رحمه الله جمع کړی دی، او امام نسائی رحمه الله د فضیل بن عیاض رحمه الله احادیث راجمع کړې دی، دا مشیخة د لفظ شیخ جمع ده.
۵: **المعجم**: بعض ددې تعریف داسې کړې دې: ما یذکر فیه الأحادیث علی ترتیب الشیوخ، خو حضرت شیخ رحمه الله په مقدمه د لامع کښې لیکلې دی چه دا تعریف خو د مشیخة دې، او معجم وائی د حدیث هغه کتاب ته چه ما یذکر فیه الأحادیث علی ترتیب الهجاء یعنی په کوم کتاب کښې چه احادیث د حروف تهجی په اعتبار سره ذکر کړې شی، بیا دهغې ترتیب که د صحابه کرامو رضی الله عنهم په اعتبار سره وی او که د شیوخ په اعتبار سره وی، لهذا معجم پورته دواړو قسمونو یعنی مسانید او مشیخة ته شامل شو، پس طبرانی د معجم کبیر ترتیب د اسماء صحابه په اعتبار سره دې، او د معجم اوسط وصغیر ترتیب ئې د شیوخ په اعتبار سره دې او دواړو ته معجم وئیلې شی.
۶: **الترتیب**: په معاجم او مسانید کښې چونکه د مضامینو لحاظ نه شی ساتلې، په دې وجه په هغې کښې یو مضمون راویستل آسان کار نه دې، په دې وجه محدثین حضراتو ضرورت اوګڼړلو ددې خبرې چه یو قسم د کتب حدیث داسې پکار دی چه په هغې کښې د مسانید او معاجم هغه روایات د مضمون په اعتبار سره ترتیب کړې شی لهذا اوس الترتیب د انواع کتب حدیث نه یو مستقل نوع شوه، او روستو علماء کرامو د حدیث دا خدمت کړې هم دې، پس مسند احمد ته هم ترتیب ورکړې شوې دې، حضرت شیخ رحمه الله په مقدمه د لامع کښې ددې هم ډیر مثالونه لیکلې دی، زما والد صاحب رحمه الله هم د معجم صغیر د احادیثو د مضامینو فهرست مرتب فرمائیلې وو.
۷: **الاطراف**: د احادیثو هغه کتاب دې چه په هغې کښې د حدیث صرف سر یعنی د شروع حصه ذکر کولو سره د پوره حدیث طرف ته اشاره کولې شی، او بیا هغه حدیث چه په کومو کومو کتابونو کښې په کوم سند سره روایت وی هغه أسانید بالاستیعاب ذکر کړې شی. یا په کومو کتابونو کښې چه هغه احادیث ذکر دی دهغې حواله ورکړې شی، د ابن طاهر مقدسی تصنیف اطراف الکتب الستة کښې هم دغه شان کړې شوې دی، یعنی هغه احادیث چه د صحاح سته نه په کوم کتاب کښې دی، صرف دهغې حواله ورکړې شوې ده، او د

حافظ جمال الدين المزى كتاب تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف د قسم اول د قبيل نه دې، دا ډير د فائدې او د کار څيز دې، چه په مختصر شان وخت کښې معلوميږي چه دا حديث په کوم کوم کتاب کښې دې، او په کوم سند سره دې، دا ټول څيزونه په يو وخت معلوميږي، که په خپله ئې لټون ته ناسته اوکړې شي نو معلومه نه ده چه څومره وخت به پرې خرچ شي.

۸: **المستدرک** : دا د حديث هغه کتاب ته وائي کوم چه يو بل کتاب مخې ته ږدلو سره اوليکلې شي او په هغې کښې هغه احاديث ذکر کړې شي کوم چه په اصلي کتاب کښې ذکر کول پکار وو، ځکه چه هغه د مصنف په اصل شرط باندې پوره خيژي، خو د څه وجې نه په هغه کتاب کښې نشته، مثلا که يو سړې په بخاري باندې استدراک کول غواړي نو په هغې کښې به دا وي چه يو داسې کتاب اوليکلې شي چه په هغې کښې هغه ټول احاديث واخستلې شي کوم چه په بخاري کښې کيدل پکار وو په دې وجه چه هغه د بخاري د شرطونو مطابق دي خو په بخاري کښې هغه د څه وجې نه رانغلل نو دا کتاب کوم چه روستو اوليکلې شو دې ته به مستدرک على البخاري وئيلې شي، پس حاکم هم دغه شان يو کتاب په صحيحين باندې ليکلې دې کوم ته چه مستدرک على الصحيحين وائي.

د مستدرک د پورته ذکر شوي تعريف نه معلومه شوه چه په دې کښې صرف هغه روايات کيدل پکار دي کوم چه په اصل کتاب کښې نشته، خو د حاکم نه يو تساهل دا شوې دې چه بعض روايات هغوي په مستدرک کښې داسې ذکر کړې دي کوم چه په اصل يعني صحيحين کښې موجود دي، او دويم تساهل کوم چه د هغوي مشهور دې چه هغوي په مستدرک کښې بعض متکلم فيه روايات هم واخستل کوم چه د اصل د شرط مطابق نه وو، هم په دې وجه علماء کرامو (لکه امام ذهبي رحمه الله) د هغوي تعقب کړې دې.

۹: **المستخرج** : دا د حديث هغه کتاب دې چه په هغې کښې د يو بل کتاب د احاديثو تخريج اوکړې شي، او هغه داسې چه صاحب مستخرج د اصل کتاب هر هر حديث د اصل د ترتيب مطابق په خپل سند سره په بيل کتاب کښې ذکر کړي، داسې چه د هغه د سند ترمينځه مصنف رحمه الله د اصل واقع نه شي بلکه د صاحب مستخرج سند د اصل د مصنف د شيخ يا د شيخ الشيخ سره ورانډې يو ځائې شي، او ددې فائده تقويت حديث ده، اوس د هر کتاب دوه سندونه شو، يو د اصل کتاب سند او دويم د مستخرج، لکه مستخرج اسماعيلي کوم چه په بخاري باندې دې او په صحيح مسلم باندې د ابوعوانة مستخرج مشهور دې، او مستخرج د ابونعيم اصفهاني کوم چه په صحيحين باندې دې.

محدثينو د مستخرج دپاره يو شرط دا هم لګولې دې چه صاحب مستخرج د داسې سند نه عدول اونکړي کوم چه مصنف داصل ته نزدې وي مثلا که هغه سره داسې سند وي کوم چه مصنف د اصل سره ملاويږي نو بيا دې داسې سند نه راوړي کوم چه مصنف داصل سره په شيخ الشيخ کښې ملاويږي، خو که د عدول څه غرضِ صحيح وي مثلا علو سند وغيره نو بيا امر آخر دې.

۱۰: **الافراد والغرائب** : دا د حديث هغه کتاب ته وائي چه په هغې کښې د يو شيخ

تفردات ذکر کړې شی، هغه روایات چه ددغه شیخ د نورو اصحاب (شاګردانو) سره نه وی، اوس ښکاره ده چه په هغې کښې چه څومره احادیث وی ټول به غریب وی، لکه د دارقطنی کتاب الأفراد کوم چه ډیر مشهور او جامع دې، د امام مسلمؒ په تصانیفو کښې هم یو کتاب ددې قسم دې.

۱۱: **غریب الحدیث**: دا هغه کتابونه دی چه په هغې کښې د حدیث د الفاظ غریبه معنی او دهغې تشریح کولې شی، په نورو الفاظو کښې داسې وئیلې شی چه د حدیث لغات بیانولې شی، ځکه چه د حدیث معنی بیانول آسانه خبره نه ده د ذمه دارئ څیز دې، پس لیکلې شوې دی چه د امام احمدؒ نه د یو حدیث معنی اوتپوسلې شوه نو هغوی اوفرمائیل: سلوا أصحاب الغریب... یعنی کوم خلق چه د لغات حدیث امامان دی او دهغې ماهرین دی د هغوی نه ددې لفظ معنی اوتپوسئ، زه د حدیث شرح او بیان مراد د خپل ګمان نه نۀ شم کولې، هم دغه شان اصمعی کوم چه د لغت ډیر لوئې امام دې د هغوی نه یو خل د ﴿الجار أحق بسقبه﴾ معنی اوتپوسلې شوه چه د سقب څه معنی ده؟ نو وې فرمائیل أنا لا أفسر حدیث رسول اللهﷺ ولکن العرب تزعم أن السقب اللزیق، یعنی زه د خپل طرف نه د حدیث معنی نه شم بیانولې خو دومره پوهیږم چه عرب وایی چه د سقب معنی د متصل او د ګاونډی ده،

## د غریب الحدیث په موضوع باندې یو څو مشهور تصانیف:

بهر حال په دې موضوع باندې د څو مشهور کتابونو نومونه دا دی،

۱: کتاب الغریب د ابوعبید قاسم بن سلام، ۲: الفائق د زمخشری، ۳: کتاب الغریبین د ابوعبید هروی، او دې وخت کښې ددې قسم ډیر جامع دوه کتابونه عام طور سره متداول دی، یو النهایه د ابن الاثیر الجزری کوم چه په پنځو جلدونو کښې دې، او دویم کتاب مجمع البحار د شیخ محمد طاهر پټنی (ګجراتی)، دا په پنځو جلدونو کښې دې، او د النهایة نه زیات ضخیم (غټ) کتاب دې.

۱۲: **العلل**: د حدیث هغه کتاب ته وائی چه په هغې کښې د سندونو علل بیان کړې شی، علل جمع ده د علت، علت د محدثینو په اصطلاح کښې د سند پټ عیب او نقص ته وائی، یعنی د یو حدیث سند په ظاهر کښې برابر او رشتینې دې، خو په حقیقت کښې په هغې کښې څه باریک او ژور نقص دې، چه په هغې باندې ماهرین او ناقدین حدیث ښه پوهیږی، پس علل د حدیثو هغه کتاب شو چه په هغې کښې د اسانیدو په دقیق او پټو نقائصو باندې تنبیه اوکړې شی.

## د علل په موضوع باندې یو څو مشهور تصانیف:

په دې نوم باندې ډیر کتابونه لیکلې شوې دی لکه کتاب العلل د امام بخاریؒ، کتاب العلل د امام دارقطنیؒ، او د امام ترمذیؒ په دې کښې دوه کتابونه دی، یو العلل الصغیر کوم چه د ترمذی په آخره کښې ملحق دې، او یو العلل الکبیر، او هم دغه شان العلل الکبیر د ابن ابی حاتم، او العلل المتناهیة فی الاحادیث الواهیة د ابن الجوزیؒ.

۱۳: **کتاب الأربعین یا أربعینه:** کوم ته چه زمونږ په عرف کښې چهل حدیث وائی ددې تصنیف سلسله قائم شوې ده د یو حدیث په بناء باندې کوم چه په دبیهقی په شعب الإیمان کښې دې، د حدیث راوی ابوالدرداء رضی الله عنه دې هغوی فرمائی چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د علم هغه کوم مقدار دې چه دهغې د حصول نه پس انسان فقیه شی نو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: من حفظ علی أمتی أربعین حدیثا فی أمر دینها بعثه الله فقیها وکنت له یوم القیامة شافعا وشهیدا، دا حدیث د ټول طرقو په اعتبار سره اګرچه ضعیف دې، خو اکثر حضرات محدثینو په دې مختصر شان عمل باندې د دومره لوئې ثواب او فضیلت د حاصلولو په لالچ او حرص کښې اربعینات تصنیف کړی دی، حضرت شاه ولی الله صاحب رحمه الله د څلویښتو احایثو یو کتاب لیکلې دې، کوم چه ډیر مختصر دې حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه زما والد صاحب به د مفید الطالبین په ځائې هغه درس کولو، د امام نووی رحمه الله هم کتاب الاربعین دې چه دهغې ډیر شروح لیکلې شوې دی، ابن رجب حنبلی، ملا علی قاری، او شیخ ابن حجر مکی رحمه الله دې ټول حضراتو دهغې شروح لیکلی دی، حافظ ابن حجر رحمه الله هم یو کتاب د څلویښتو حدیثو لیکلې دې، په هغې کښې هغوی یو جدت دا پیدا کړې دې چه ټول احادیث ئې د صحیحین نه داسې اخستلې دی چه په هغې کښې د امام مسلم رحمه الله سند د امام بخاری رحمه الله د سند نه عالی دې، حضرت شیخ رحمه الله په مقدمه د لامع کښې لیکلی دی چه زه په مدینه طیبه کښې د هغه چهل حدیث په زیارت باندې مشرف شوې یم.

۱۴: تعالیق: د حدیث هغه کتاب دې چه په هغې کښې صرف د حدیث متن بیان کړې شی، او اسانید حذف کړې شی، لکه مصابیح السنة او مشکوة المصابیح کښې چه دی، په دې دوارو کتابونو کښې صرف په متونِ احادیث باندې اکتفاء کړې شوې ده، خو صاحب مشکاة د صحابی د نوم اضافه کړې دَه، او د حدیث د ذکر کولو نه پس په کتب مشهور کښې په کومو کښې چه هغه احادیث موندلې شی، د هغې حواله ورکړې شوې ده، او تعالیق ډیر زیات دی، لکه جمع بین الصحیحین د حمیدی، تجرید الصحاح، د رزین بن معاویه العبدری، جامع الأصول د ابن الاثیر الجزری، او مجمع الزوائد د هیثمی، چه په هغې کښې هغوی د صحاح ستة زوائد د شپږو کتابونو یعنی مسانید ثلاثه، مسند احمد، مسند البزار، مسند ابویعلی او د طبرانی معاجم ثلاثه نه جمع کړی دی، یعنی ددې شپږو کتابونو صرف هغه احادیث ئې جمع کړی دی کوم چه په صحاح ستة کښې نشته، او ددې کتابونو هغه احادیث کوم چه په صحاح ستة کښې موجود دی هغه ئې نه دی اخستلی، هم دغه شان جمع الجوامع د علامه سیوطی رحمه الله چه په هغې کښې هغوی دټولو احادیثو بالاستیعاب اخستلو قصد کړې وو چه څومره احادیث په دنیا کښې موجود دی هغه ټول په هغې کښې راشی خو ظاهره ده چه دا کار ډیر ګران وو، خو مصنف رحمه الله وفات شو، اودا کار پوره نه شو، دا کتاب هغوی په دوه قسمونو کښې تقسیم کړو، داسې چه احادیث قولیه ئې مرتبا علی الحروف او احادیث فعلیه ئې د اسماء صحابه رضی الله عنهم په ترتیب باندې ذکر کړل، د

سیوطی جامع الصغیر کوم چه مشهور کتاب دې او د کوم احادیث چه مرتب علی الحروف دی، هم هم ددې جمع الجوامع نه اخستلې دی، او کنز العمال کوم چه د حدیث مشهور او معروف کتاب دې، دا هم د سیوطی د جمع الجوامع ترتیب دې کوم چه شیخ علی متقی مشهور صوفی او محدث مرتب کړې دې.

۱۵: **المسلسلات**: د حدیث هغه کتاب دې چه په هغې کښې صرف احادیث مسلسله ذکر کړې شی او الحدیث المسلسل هغه حدیث دې چه دهغې په سند کښې ټول راویان د اول نه آخره پورې یا د سند اکثر راویان په یو خاص وصف کښې مشترک او متفق وی، لکه الحدیث المسلسل بالاولیة یعنی هغه حدیث کوم چه هر شاګرد د خپل استاد نه د ټولو احادیثو نه مخکښې اوریدلې وی خو محدثینو لیکلې دی چه په دې کښې تسلسل د اول نه تر آخره پورې نه دې موندلې شوې، بلکه د سند په بعض حصه کښې موندلې شوې دې، هم دغه شان الحدیث المسلسل بالمصافحة یعنی هغه حدیث کوم چه هر شاګرد د خپل استاد نه د مصافحې سره اوریدلې وی، هم دغه شان الحدیث المسلسل بقراءة سورة الصف یعنی هر شاګرد چه کله د استاذ نه دا حدیث واوریدلو نو استاد په وخت د تحدیث کښې د سورة صف تلاوت اوکړو، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په احادیث مسلسله کښې د ټولو نه زیات صحیح مسلسل بقراءة سورة الصف دې، د شاه ولی الله صاحب رحمه الله کتاب المسلسلات چه دهغې پوره نوم الفضل المبین فی المسلسل من حدیث النبی الأمین مشهور دې، په مدرسو کښې لوستلې شی، حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه دا کتاب د ټولو نه اول خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله په ۱۳۳۰ھ طبع کړې وو.

۱۶: **شرح الآثار** : دا هم په انواع دکتب حدیث کښې یو خاص قسم دې، او دې ته علم تاویل الحدیث او مختلف الحدیث هم وائی، چه دهغې موضوع دا ده چه کوم احادیث چه په ظاهر کښې متضاد دی په هغې کښې مطابقت پیدا کړې شی یا د بعضو په بعضو باندې ترجیح ثابت کړې شی، او دا کار هم هغه حضرات مصنفین کولې شی کوم چه په علم حدیث وفقه او اصول درې واړو کښې مهارت لری، پس ددې قسم بعض تالیفات دا دی : ۱: د امام شافعی رحمه الله اختلاف الحدیث، او د ابن قتیبه الدینوری تاویل مختلف الحدیث او د امام طحاوی رحمه الله شرح معانی الاثار او مشکل الآثار ډیر جامع کتابونه دی.

۱۷ : **الکتب المولفة فی الأدعیة المأثورة** : په انواع دکتب حدیث کښې بعض کتابونه داسې دی چه په هغې کښې صرف د دعاګانو او اذکار شرعیه احادیث جمع کولې شی او په دې موضوع باندې ډیر کتابونه لیکلې شوې دی لکه عمل الیوم واللیلة د امام نسائی، عمل الیوم واللیلة د ابن سنی، کتاب الأذکار د امام نووی، الحصن الحصین د محمد بن محمد جزری شافعی، او الحزب الأعظم د ملا علی قاری، حضرت شیخ رحمه الله په مقدمة د لامع کښې لیکلی دی چه زمونږ مشائخ او اکابر د الحزب الاعظم ورد ته ترجیح ورکوی د محمد بن

سليمان الجزولي السملالي په دلائل الخيرات باندې ځکه چه په هغې کښې ډير روايات ضعيف دی.
دا مختصر او مشهور انواع د کتب حديث مونږ بيان کړل د تفصيل دپاره دې مقدمه د لامع او د الفيض السمائی مقدمه اوکتلې شی.
بحمد الله تعالى وتوفيقه، تردې ځائې پورې تمهيدی مضامين د مقدمة العلم والکتاب پوره شو، اوس صرف د سند ذکر کول باقی دی، دهغې نه پس به کتاب شروع شی، د سند د بيانولو نه مخکښې يو بل مفيد مضمون کوم چه مې په ذهن کښې دې او کله کله ئې په سبق کښې هم بيانوم چونکه دهغې تعلق هم د سند سره دې لهذا اول هغه واورئ!

**په هندوستان کښې علم حديث :**

زمونږ سندونه بلکه داسې اووايه چه د محدثينِ هند ټول سندونه په شاه ولی اللهؒ باندې يو ځائې کيږی، اصل کښې صورت حال دادې کوم چه د تاريخ حديث نه خبر اهل علمو ليکلې دې چه په هند کښې اګرچه د علم حديث سلسله څه نه څه د هميشه نه وه، خو د بلاد عربيه په مقابله کښې ډير کمه او هسې په نوم وه، نو په شروع کښې به صرف د صنعانی په مشارق الانور زده کولو او ښودلو باندې اکتفاء کولې شوه، ددې نه پس په هغې کښې د مشکوة شريف اضافه اوشوه او بس.
د لسمې صدئ په مينځ کښې په بلاد عربيه کښې د علم حديث انحطاط شروع شو، او هم ددې سره سره الله پاک ددې په مقابله کښې د هندوستان اوسيدونکی د حديث دتحصيل او دهغې د خدمت طرف ته متوجه کړل، پس په لسمه صدئ کښې حضرت شيخ علی متقی برهانپوری صاحب د کنزل العمال چه د هغوی وفات ۹۸۵ هجری کښې شوې دې، الله پاک پيدا کړو او د خدمت حديث دپاره ئې منتخب کړو، پس هغوی علم حديث د علماء حجاز نه حاصل کړو او هندوستان ته راتلو سره ئې هغې ته شهرت ورکړو، د هغوی نه پس د هغوی د شاګردانو نه دا سلسله شروع شوه لکه شيخ عبدالوهاب برهانپوریؒ المتوفی ۱۰۰۱ هجری او شيخ محمد طاهر پټنی المتوفی ۹۷۶ هجری چه د هغوی تصنيفات په علم حديث کښې ډير مشهور دی لکه مجمع البحار کوم ته چه د تمامو صحاح ستة شرح وئيلې کيدې شی، هم دغه شان تذکره الموضوعات وغيره.
د دې نه پس بيا په يولسمه صدئ کښې دور راغلو د شيخ عبدالحق محدث البخاری ثم الدهلوی المتوفی ۱۰۵۲ هجری، هغوی د حجاز مقدس نه فنِ حديث حاصل کړو، او په هندوستان کښې ئې دهلی دهغې مرکزِ اشاعت جوړ کړو، او په شروح حديث کښې ئې بعض اوچت کتابونه اوليکل، پس موصوف د مشکاة دوه شرحې اوليکلې، يو په عربئ کښې يعنی لمعات النقيح او يو په فارسئ کښې يعنی اشعة اللمعات بيا د هغوی په

اولاد او روستو خاندان کښې محدثین پیدا شو چا چه د حدیثو شروحات اولیکل.

د دې نه پس په دولسمه صدئ کښې د شیخ المشائخ حضرت شاه ولی الله احمد بن عبدالرحیم دهلوی رحمه الله المتوفی ۱۱۷۶ هجری مبارک دور راغلو شاه صاحب حجاز ته تشریف یوړو او د هغه ځائې د مشائخو خصوصا د شیخ ابوطاهر مدنی رحمه الله نه ئې علم حدیث حاصل کړو، او بیا ئې هندوستان ته د واپسئ نه پس په دینی خدماتو خصوصا د علم حدیث په خدمت کښې مشغول شو، او هم د هغوی د زمانې نه په هندوستان کښې د صحاح ستة د درس او تدریس سلسله شروع شوه.

او بیا په دیارلسمه هجرئ کښې د حضرت شاه صاحب نه پس د هغوی د اصحاب او اولادو سلسله روانه شوه، چه په هغوی کښې شاه عبدالعزیز صاحب رحمه الله المتوفی ۱۲۳۹هجری د هغوی د نیابت حق ادا کړو، او د هغوی نه پس د هغوی په شاګردانو کښې د هغوی نمسئ شاه محمد اسحاق صاحب مهاجر مکی رحمه الله المتوفی ۱۲۶۲هجری او بیا د هغوی په شاګردانو کښې شاه عبدالغنی مجددی مهاجر مدنی المتوفی ۱۲۹۶هجری چه د هغوی د درس حدیث نه د هندوستان او حجاز د محدثینو یو جماعت تیار شو، پس د هغوی په شاګردانو کښې حجة الاسلام قاسم العلوم مولانا قاسم صاحب نانوتوی المتوفی ۱۲۹۷ هجری دې.

او بیا په اخیر کښې یعنی په څوارلسمه صدئ کښې قطب الارشاد رأس الفقهاء والمحدثین حضرت مولانا رشید احمد صاحب ګنګوهی المتوفی ۱۳۲۳ هجری دې چا د ډیرو کلونو پورې ټوله دوره په یواځې درس کوله، او دهغې نه پس د هغوی په شاګردانو کښې علماء دارالعلوم ومظاهر العلوم کوم چه ټول پیژنی، چه د هغوی نه خاص طور مونږ د مولانا محمد یحي صاحب کاندهلوی m ذکر کوو، ځکه چه هغوی زمونږ په سند کښې راځی، او دویم په دې وجه هم چه د حضرت ګنګوهی خدمات حدیث او افادات درسیه د موصوف په وجه باندې د تالیفاتو په شکل کښې زمونږ ټولو وړاندې راغلی دی، او ددې نه پس بیا د هغوی ځوئې حضرت مولانا محمد زکریا الکاندهلوی ثم المهاجر المدنی m دې، او هم د هغوی د شاګردانو په سلسله کښې مونږ هم داخل یو، الله پاک دې په حقیقت کښې هم زمونږ ددغه محدثین عظام په سلسله کښې شمول اوفرمائی، ځنګه چه مو صورة په دې سند حدیث کښې ددې حضراتو سره شمول اوشو نو د هغه د غیر محدود رحمت نه څۀ بعید دی.

## اسناد ددې امت خصوصیت دې:

علماء کرامو لیکلې دی چه اسناد یعنی باقاعده په حوالې سره نقل در نقل من أوله الی آخره په دې طور چه په هره زمانه کښې هر حدیث لره په خپل سند سره صاحب حدیث ته اورسوی، دا ددې امت محمدیه د خصوصیاتو نه ده، تیرو امتونو ته دا نعمت حاصل نه وو، علامه سیوطی رحمه الله لیکی د ارسال او اعضال سره د سند سلسله په ډیرو یهودو کښې

موندلې شي، خو هغوی خپل سند تر آخره پورې یعنی موسیٰ علیه السلام ته او نه رسولې شو، بلکه د هغوی او د موسیٰ علیه السلام ترمینځه ډیرې واسطې باقي پاتې کیږي کومې چه هغوی پوره نه کړې شوې، هغوی لیکي: بل یقفون بحیث یکون بینهم وبین موسیٰ أکثر من ثلاثین عصرا وانما یبلغون الی شمعون ونحوه. هم دغه شان د نصاری په باره کښې ئې لیکلې دي چه هغوی هم په خپل سند کښې د شمعون او بولص نه وړاندې نه شي تلې، پس دا خصوصیت الله پاک صرف امت محمدیه ته ورکړې دې چه هغوی د خپل نبي هر قول او فعل بلکه پوره حرکات و سکنات پوره په احتیاط او سند متصل سره نقل کړې دي، امام مسلم رحمه الله په مقدمه د مسلم کښې د عبدالله بن المبارک رحمه الله دا ارشاد نقل کوي ﴿الاسناد من الدین لولا الاسناد لقال من شاء ما شاء﴾، او د حضرات محدیثنو په نزد د سند ذکر کولو اهتمام نه صرف د احادیث نبویه او آثار صحابه رضی الله عنهم سره خاص دې، بلکه هغوی اقوال د ائمه هم په سند سره ذکر کوي، په جامع ترمذی کښې دا څیز په کثرت سره موندلې شي چه ډیر کرته د امامانو د اقوالو د ذکر کولو نه پس دهغې سند هم بیانوي.

## سند بیانولو ته حاجت دې:

دا یو ښکاره خبره ده چه یو حدیث که هغه مرفوع وي او که موقوف وي بغیر د سند نه ثابت او معتبر نه شي کیدې، د یو کس، دعالم او محدث اوچت شان هغه د سند د بیان نه نهٔ شي مستغني کولې، د بعض صحابه کرامو خو دا حال وو چه که هغوی ته به یو صحابي د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث بیانولو کوم چه به هغه د نبي علیه السلام نه اوریدلې وو نو د هغه نه به ئې په سماع حدیث باندې استخلاف کولو (چه اول تاسو په دې باندې قسم اوخورئ چه دا حدیث ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دې) لکه چه د علي رضی الله عنه په باره کښې مشهوره ده، په دې بې مثال ضبط و احتیاط اتقان او اهتمام سره د احادیثو دا ذخیره او زمونږ مضبوط دین نقل کړې شوې دې، بعض اکابرین فقهاء او صوفیاؤ په خپلو تصانیفو کښې په استدلال او استشهاد کښې احادیث بغیر د سند نه بیان کړي دي نو په هغې باندې روستنو علماء کرامو د اسانیدو د ذکر کولو دپاره مستقل کتابونه اولیکل، لکه نصب الرایه فی تخریج احادیث الهدایة، التخلیص الحبیر او تخریج عراقي وغیره.

تر کومې پورې چه په دنیا کښې د نشرو اشاعت اود طباعت سلسله نه وه قائمه شوې بلکه محدثین حضراتو به روایت حدیث دخپل حفظ یا دخپل خاص کتاب نه چه دهغې نه د محدثینو په اصطلاح کښې په اصل سره تعبیر کولې شي، بیاتولو، تر هغه وخته پورې هر کس ددې خبرې مکلف وو چه حدیث د سند سره واؤري او محفوظ ئې کړي، او بیا به وخت د روایت دا حدیث د خپل پوره سند سره طالبانو ته بیان کړي، خو نن صبا کتب حدیث، متون حدیث سره د سندونو طبع شوي او په ټوله دنیا کښې خوارهٔ شوي دي، او

اوس هغه دور پاتې نه شو چه يو محدث طالبانو ته احاديث د خپل حفظ نه يا د خپل مخصوص مجموعې او ليک نه بيان کړی بلکه هم ددې کتابونو نه د سماع حديث او اِسماع حديث سلسله قائم شوه، او ددې تصنيفاتو او کتابونو انتساب د هغوی د مصنفينو پورې نه صرف حد د شهرت ته بلکه حد د تواتر ته رسيدلی دی، نو اوس د هر طالب حديث يا محدث دپاره خپل سند هغې مصنفينو پورې بيانول يا هغې لره محفوظ ساتل د ثبوتِ حديث دپاره ضروری پاتې نه شوه، او بيا د سند وړاندې حصه يعنی د مصنفينو نه د رسولَ الله ﷺ پورې خپله په دې کتابونو کښې موجود ده.

غرض دا چه په دې زمانه کښې د ثبوتِ حديث يا د صحت استدلال بالحديث دپاره دا کافی ده چه په مروجه او مشتهره کتب حديث کښې د يو کتاب حواله پيش کړې شی. خو په دې کښې هيڅ شک نشته چه خپل پوره سند بيانول او هغه محفوظ ساتل باعث د برکت او د فخر سرمايه ده. هم په دې وجه زمونږ د استاذانو عادت دې چه هغوی د کال په شروع کښې د کتاب د شروع کولو نه مخکښې خپل سند بيانوی، هم د هغوی په اتباع کښې مونږ هم خپل سند بيانوو.

د دې نه پس مونږ خپل اصل مقصود يعنی سند حديث بيانوو، دا خبره مخکښې ذکر شوه چه زمونږ بلکه د محدثين هند ټول سندونه ټول په ټوله د شاه ولی الله صاحب رحمه الله سره يوځائې کيږی، زمونږ د حديث استاذان خصوصا د حضرت شيخ رحمه الله معمول په سند بيانولو کښې دا وو چه هغوی به خپل سند تر د شاه ولی الله صاحب رحمه الله پورې بيانولو، او بيا د هغوی نه د وړاندې سند په باره کښې به هغوی فرمائيل چه شاه صاحب خپل سندونه ليکلی او شائع کړی دی، کوم چه مطبوع دی او ملاويږی، لکه الإرشاد إلى مهمات الإسناد. او ما د مثال په طور د شاه صاحب يو سند په مقدمه د اوجز کښې د خپل سند سره بيان کړې دې، که څوک غواړی نو هلته دې اوګوری، لهذا اوس د سند ګويا درې حصې شوې، يو زمونږ نه واخله تر شاه ولی الله صاحب رحمه الله پورې، او دويمه حصه د شاه ولی الله صاحب رحمه الله نه تر د صاحبِ کتاب پورې، او دريمه حصه د صاحب کتاب نه تر د رسول الله ﷺ پورې، دريمه حصه خو خپله په کتاب کښې موجود ده، دلته مونږ صرف اول حصه بيانوو.

### زما د ابوداؤد سند:

اوس ددې کتاب يعنی زما د ابوداؤد سند واورئ، ما ابوداؤد شريف دوه کرته د دوؤ استاذانو نه لوستلې دې، په اول ځل ۱۳۸۰ هجری کښې کوم چه زما د دوره حديث کال وو، په دې کښې ما ابوداؤد شريف د سابق ناظم حضرت مولانا محمد اسعد الله صاحب رحمه الله نه لوستلې وو، ددې نه پس په ۱۳۸۸ هجری کښې چه کله احقر په اول ځل په مظاهر العلوم

کښې ابوداؤد درس کولو، هغه وخت ما دوباره ابوداؤد شریف د حضرت شیخ رحمه الله نه اولوستلو.[1]

بهر حال د بنده اول سند داسې دې، بنده دا کتاب روایت کوي د مولانا اسعد الله صاحب نه، هغوی روایت کوي د مولانا محمد یحیی صاحب کاندهلوی رحمه الله نه، هغوی روایة کوي د حضرت مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله نه، هغوی روایت کوي د شاه عبدالغنی مجددی رحمه الله نه، هغوی روایت کوي د خپل والد ماجد ابوسعید مجددی رحمه الله نه، او هغوی روایت کوي د شاه عبدالعزیز رحمه الله نه.

د بنده دویم سند حدیث د حضرت شیخ رحمه الله نه دې، او د حضرت شیخ رحمه الله درې سندونه دی، دوه سندونه قراءة او یو سند اجازة، حضرت شیخ رحمه الله په ۱۳۳۴هجری کښې د دورې اکثر کتابونه د خپل والد صاحب مولانا محمد یحیی کاندهلوی صاحب رحمه الله نه اولوستل، او دهغې نه پس ئې د ۳۵ هجری نه مسلسل تر څو کلونو پورې د دورې اکثر کتابونه د حضرت سهارنپوری رحمه الله نه اولوستل، په دې وجه د حضرت شیخ دوه سندونه څو قراءة شو، او دریم سند ئې اجازة دې.

د حضرت شیخ اول سند څو داسې دې، حضرت روایت کوي د مولانا محمد یحیی صاحب نه، هغوی د مولانا رشید احمد گنگوهی نه، هغوی د شاه عبدالغنی مجددی نه، هغوی د شاه ابوسعید مجددی نه، او هغوی د شاه عبدالعزیز صاحب نه.

---

[1]) ددې صورت داسې وو چه د لامع الدراری املاء به حضرت شیخ په ما باندې کوله اوپه دې کښې به دحضرت روزانه کافی وخت لږیدلو، ددې دآخری جلد املاء هم په دغه کال پوره شوه، او دا هغه کال وو په کوم کال چه سنن ابی داؤد په رومبی ځل ماته د لوستلو دپاره راکړې شوې وو او ددې سبق خول ماته حواله شوی وواو غرض داچه د املاء پوره کیدلو نه پس دحضرت شیخ کافی وخت فارغ شو، په دې باندې حضرت شیخ ماته اوفرمائیل چه زما د ابوداؤد نسخه په کوم کښې چه به ما سبق خودلو په هغې باندې زما حواشي او نکات دی، زما زړه غواړی چه زه خپل نکات او حواشي چه په هغې کښې ډیر د اشاراتو په شکل کښې اومجمل دی تا پرې پوهه کړم، په دې باندې ما عرض اوکړو چه په ځائې ددې چه زه دستاسو صرف حواشي وغیره باندې ځان پوهه کړم، باقاعده کتاب ستاسو نه اووایم، حضرت صاحب زما دا درخواست قبول کړو، بیا به حضرت صاحب ماته روزانه لږ لږ. څومره چه به ما په مدرسه کښې ښودلو، هغومره به حضرت صاحب ماته ښودلو، اود کال آخره پورې بحمدلله کتاب پوره شو، دکال په آخر کښې په آخری ورځ د سبق کافی مقدار باقی پاتې وو، پوره کتاب الادب پاتې وو ،د یخنۍ شپه وه په کومه ورځ چه د سحر کتاب ختمیدلو دهغې نه په مخکښې شپه کښې پوره کتاب الادب دحضرت شیخ صاحب نه د شپې دماسخوتن نه پس د شپې ۱۲ بجو پورې اووئیلو اوختم شو، د دورې د نورو مدرسینو ټول سبقونه پوره شوی وو. غالبا د رجب ۲۹ یا ۳۰ تاریخ وو، ما دسحر په رومبۍ گهنټه کښې دکتاب آخری سبق شروع کړو د څلورمې گهنټې تر آخره پورې مې ښودلو سره کتاب ختم کړو. دکتاب ختمولو نه پس زه دحضرت شیخ صاحب په خدمت کښې حاضر شوم، حضرت صاحب د شاباش او جزاک الله وغیره دعاگانې اوکړې، دغه وخت حضرت صاحب دسترخوان ته رارسیدلې وو نود حضرت صاحب سره په روټۍ کښې شریک شوم. هغوی سره یوځائې د روټۍ خوړلو د مخکښې نه معمول وو، داسې معلومیده چه په دې پوره وخت کښې دحضرت توجه زما د سبق ښودلو طرف ته وه. نوّرالله مرقده وجعل الجنة مثواه وحشرنا معه.

د حضرت شیخ دویم سند داسې دې، حضرت شیخ روایت کوی د مولانا خلیل احمد صاحب سهارنپوری نه، هغوی د مولانا محمد مظهر نانوتوی نه، هغوی د مولانا مملوک علی نانوتوی نه، هغوی د مولانا رشید الدین دهلوی نه او هغوی د شاه عبدالعزیز صاحب رحمه الله نه

د حضرت شیخ دریم سند کوم چه اجازة دې، هغه داسې دې، حضرت شیخ روایت کوی د مولانا عنایت الهی صاحب (د مدرسې مهتمم اول نه) هغوی روایت کوی د مولانا احمد علی محدث سهارنپوری نه، هغوی د شاه محمد اسحق صاحب نه، او هغوی د شاه عبدالعزیز صاحب نه رحمهم الله

د حضرت شیخ صاحب رحمه الله په اسانید ثلاثه کښې دریم سند کوم چه اجازة دې، دا که تاسو په غور سره اوګورئ نو معلومه به شی چه د شاه صاحب پورې یو واسطه کمه ده، په دې وجه هغه سند عالی شو، دا درې سندونه شو زمونږ د حضرت شیخ رحمه الله په دې کښې د حضرت خلیل احمد سهارنپوری رحمه الله صرف یو سند راغلې دې.

ځان پوهه کړئ چه د حضرت سهارنپوری رحمه الله هم درې سندونه دی.

یو خو هم هغه کوم چه ذکر شو.

دویم دا چه حضرت سهارنپوری رحمه الله ته اجازتِ حدیث حاصل دې، د شاه عبدالغنی مجددی نه، او د شاه صاحب سند پورته ذکر شو.

درسم سند داسې دې چه حضرت سهارنپوری رحمه الله ابوداؤد شریف د رمضان په میاشت کښې د مولانا عبدالقیوم صاحب بډهانوی رحمه الله نبیره شاه صاحب عبد العزیز صاحب رحمه الله او دشاه محمد اسحاق دځوی نه اولوستلو، او مولانا عبدالقیوم صاحب بډهالوی رحمه الله شاګرد دې د شاه محمد اسحاق صاحب، د چا سند چه پورته ذکر شو.

د دې نه علاوه دوه سندونه د حضرت سهارنپوری رحمه الله په سلاسل حجازیه کښې دی، کوم وخت چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په حجاز مقدس کښې تشریف فرما وو نو د بعض علماء حجاز نه هغوی اجازت حدیث حاصل کړې وو، عن الشیخ احمد دحلان، او عن السید احمد البرزنجی، دغه شان د حضرت سهارنپوری رحمه الله ټول پنځه سندونه شو چه په هغې کښې دوه سندونه قراءة دی، او باقی درې اجازة.

په دې سلسله د اسانیدو کښې اوس تاسو هم شاملیږئ، دعاءاوکړئ چه الله پاک ددې سلسلې د برکتونو نه مونږ ته هم راکړی او مونږ ته توفیق راکړی چه ددې خیال اوساتو، او ددې اکابر او مشائخو د اتباع توفیق دې رانصیب کړی. آمین

قد تمت المبادی من مقدمة العلم والکتاب، والله ولی التوفیق والسداد وآخر دعوانا أن الحمد لله رب العلمین، وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا ومولانا محمد واله وصحبه اجمعین.






**بسم الله الرحمن الرحيم**

## ابتداء بالبسملة وترک حمدلة

مصنف رحمه الله خپل سنن په بسم الله باندې اکتفاء کولو سره شروع فرمائیلې دې او حمدله ئې نه ده ذکر کړې، ددې څه وجه ده؟ جواب دا دې چه د قرآن کریم د اتباع کولو د وجې نه قال تعالی ﴿ اقرأ باسم ربک الذی خلق ﴾ معلومه شوه چه د بسم الله نه ابتداء پکار ده، دغه شان په حدیث کښې دی ﴿ کل أمر ذی بال لم یبدأ فیه ببسم الله فهو أبتر ﴾ هم دغه شان نورو حضرات مصنفینو متقدمینو هم په خپلو تصنیفاتو کښې کړی دی، لکه امام مالک رحمه الله په مؤطا کښې، امام احمد بن حنبل رحمه الله په مسند کښې او دغه شان په صحاح ستة کښې تولو

سوا د امام مسلم رحمه الله نه په بسم باندې اکتفاء کړې ده، حمدله ئې نه ده ذکر فرمائیلې.
اوس پاتې شو دا اشکال چه په یو روایت کښې راځی کوم چه مصنف رحمه الله هم په سنن کښې راوړې دې او په هغې کښې د حمد ذکر دې ﴿ كل أمر ذى بال لا يبدأ فيه بحمد الله فهو أقطع ﴾ ګویا مصنف رحمه الله په خپل بیان کړی روایت باندې عمل اونکړو؟
علماء کرامو ددې ډیر جوابونه کړی دی.
۱: په دې مقام باندې د ابوداؤد نسخې مختلف دی، په بعضو نسخو کښې د بسم الله نه پس حمد هم ذکر دې، په بذل المجهود کښې د هغه نسخې عبارت لیکلې شوې دې.
۲: په دې روایت کښې د کتابت قید نشته، بلکه صرف ابتداء بالحمد ذکر ده، کیدې شی چه مصنف رحمه الله د بسم الله د کتابت نه پس حمد په خپلې ژبې سره ادا کړې وی، لکه چه د امام احمد رحمه الله په باره کښې نقل دی چه هغوی به د روایت حدیث په وخت صلی الله علیه وسلم په ژبه باندې وئیلو لیکلو به ئې نه.
۳: هغه روایت په کوم کښې چه حمد ذکر شوې دې سندا ضعیف دې. دهغې په سند کښې مصنف رحمه الله کلام کړې دې په کتاب الأدب کښې هغه روایت ذکر دې.
۴: ابتداء بالحمد مخصوص ده[1] په خطاب (یعنی بیان او تقریر) پورې کتاب او خطوط په دې کښې داخل نه دی، دلیل په دې باندې د رسول الله ﷺ طرز عمل دې هغه دا چه هغوی به همیشه خطبه په حمد سره شروع فرمائیله، الحمد لله نحمده الخ... او د خطبې په شروع کښې به ئې بسم الله نه لوستله، ددې بالمقابل د خطوط ابتداء به ئې صرف په بسم الله سره فرمائیله، مثلا : بسم الله الرحمن الرحيم من محمد رسول الله الى هرقل الخ او په صلح نامه د حدیبیه کښې دی بسم الله الرحمن الرحيم هذا ما قاضى عليه محمد رسول الله، وغیره وغیره
۵: حمد نه مقصود نفس ذکر دې نه مخصوص لفظ د حمد، لکه چه د مسند احمد په روایت کښې تصریح ده كل أمر ذى بال لم يبدأ بذكر الله فهو اقطع وابتر، او نفس ذکر په بسم الله سره حاصل شو.
۶: حمد وائی د صفات کمالیه اظهار ته او دا معنی یقینا په الرحمن الرحیم کښې حاصل شوه، دا جواب د حضرت شیخ رحمه الله د والد مولانا محمد یحیی صاحب رحمه الله خوښ وو.
**فائده** : علامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دا چه کوم حضرات مصنفین د ابتداء بالبسمله او حمدله په روایاتو کښې تطبیق ورکوی چه یو ځائې کښې ابتداء حقیقی ده او یو ځائې کښې ابتداء اضافی ده، دا صحیح نه ده، ځکه چه حدیث د بسم الله او حدیث د حمد دواړه بیل بیل احادیث نه دی چه په دواړو کښې تعارض منلو سره دا جواب ورکړې شی بلکه یو روایت دې چه په هغې کښې اضطراب دې بعض راویان بسم الله او بعض حمد ذکر کوی.

[1]) ذکره مولانا شبیر احمد عثماني نقلا عن الزرقاني، قلت قال الحافظ الذهبي إن من بركة العلم أن ينسب إلي قائله)

# كتاب الطهارة

مصنف رحمه الله د ټولو نه مخکښې كتاب الطهارة ذكر کړو چه دهغې وجه ددې كتاب د نوم نه ښکاره ده هغه دا چه دا كتاب د سنن د قبيل نه دې او سنن په أنواع د کتب حدیث کښې هغه نوع ته وائی چه دهغې ترتيب د ابواب فقهيه په ترتيب باندې وی، او چونکه حضرات فقهاء كرام کتب فقه د كتاب الطهارة نه شروع کوی، په دې وجه امام ابوداؤد رحمه الله هم خپل سنن د كتاب الطهارة نه شروع اوفرمائيلو.

اوس دا سوال پاتې کیږی چه فقهاء د كتاب الطهارة نه ولې شروع کوی، نو ددې وجه دا ده چه د انسان تخليق د عبادت دپاره شوې دې، د الله پاک ارشاد دې ﴿ وما خلقت الجن والإنس إلا ليعبدون ﴾ او أم العبادات او جامع العبادات صلوة دې، هم دغه شان د رسول الله ﷺ ارشاد دې ﴿ بنى الاسلام على خمس شهادة أن لا إله بلا الله وأن محمدا رسول الله وأقام الصلوة الخ ﴾ په دې کښې رسول الله ﷺ په ټولو ارکانو باندې مونځ مقدم کړې دې او د مانځه دپاره څه شرطونه دی چه په هغې کښې اقوى شرط طهارت دې او دا ښکاره ده چه شرط هميشه په مشروط باندې مقدم وی د وجې د موقوف علیه کیدو نه، په دې وجه حضرات فقهاء او اصحاب السنن په خپلو کتابونو کښې كتاب الطهارة اول ذکر کوی.

## د كتاب او باب اصطلاح : [1]

بعض علماء کرامو فرمائیلي دی چه که د مسائلو اعتبار بجنسها اوکړې شی یعنی جنس مسائل بیانول وی نو دهغې نه په كتاب سره تعبير کولې شی څکه چه جنس متعدد انوع ته جامع (شامل) وی او د کتاب معنی هم لغة جمع ده، او که د مسائلو اعتبار بنوعها اوکړې شی یعنی صرف يو نوع مسائل بیانول مقصود وی نو دهغې نه په باب سره تعبير کولې شی، څکه چه د باب معنی هم په لغت کښې نوع راځی او که بعض جزئیاتو لره د ما قبل نه ممتاز کولو سره بیانول مقصود وی نو دهغې نه په فصل سره تعبير کولې شی، څکه چه هغه د ماقبل نه مفصول او جدا دی، ددې دریو واړو ترمينځه په نسبت باندې تاسو ځان داسې پوهه کړئ لکه څنګه چه د مناطقه په نزد د جنس، نوع او صنف ترمينځه نسبت دې، يعنى جنس عام لکه الحيوان، نوع خاص لکه الانسان، او صنف أخص لکه الإنسان الرومى، دغه شان کتاب عام، باب خاص او فصل اخص دې. [2]

## د طهارة معنى او اقسام :

طهارة مصدر دې د طهر يطهر، د نصر او کرم نه [3] ددې معنی لغوی ده ﴿ النظافة والتنزه عن

---

[1] د کتاب او د باب د اصطلاح استعمال د تابعينو د زمانې نه دې څنګه چه دا خبره صاحب منهل بیان کړې دې.

[2] صنف وائی هغه نوع ته کوم چه مقید وی د يو قيد سره، لکه الانسان الرومی.

[3] د ابوداؤد شرح غاية المقصود کښې دا د باب نصر او ضرب نه ليکلې شوې دې په ظاهر کښې دا د کتابت غلطی ده صحیح لفظ ضرب نه دې بلکه قرب دې، حضرت په بذل کښې په دې باندې تنبيه فرمائيلې ده.

الاقذار والادناس ﴾ يعنى د ګندګئ او خيرو نه پاک او صفا کيدل، او شرعا طهارة وائى : د بې اودسئ يا خباثت د لرې کولو دپاره د قاعدې شرعيې مطابق أحد المطهرين يعنى اوبه يا خاوره استعمالول، نو د طهارت دوه قسمونه شو:

۱: إزله حدث، ۲: ازاله خبث،

بيا د اول دوه قسمونه دى، ۱: عن الحدث الأصغر کوم ته چه اودس وائى، ۲: عن الحدث الأکبر کوم ته چه غسل وائى، دلته مطلق او جنس طهارت مراد دې ځکه چه د مصنف رحمه الله مقصود دواړو لره ذکر کول دى پس د قسم اول نه فارغيدو نه پس به قسم ثانى بيانوى.

د صوفياؤ په نزد د طهارة څو قسمونه دى، امام غزالى رحمه الله فرمائى ددې څلور قسمونه دى، ۱: تطهير الظاهر عن الحديث والخبث، ۲: تطهير الجوارح عن الحرام، ۳: تطهير القلب عن الرذائل، ٤: تطهير السر عما سوى الله تعالى، يعنى زړه د غير الله د تعلق نه پاکول، ع : پاک کن قلب مرا تو از خيال غير خويش، وقال ابو الطيب !

عذل العواذل حول قلبى التائه :: وهوى الأحبة منه فى سودائه

## بَابُ التَّخَلِّي عِنْدَ قَضَاءِ الْحَاجَةِ

### باب دې په بيان د ځانله والې کې په وخت د قضاء حاجت کې

دلته دا سوال واردېږى چه مصنف رحمه الله د طهارة ابتداء په آدابو د استنجاء سره ولې اوفرمائيله؟ جواب دا دې چه حضرات فقهاء کرامو رحمهم الله ليکلې دى چه د اودس او غسل نه مخکښې د قضاء حاجت نه فارغيدل اولى او مستحب دى، پس هرکله چه دا خبره ده نو مناسب شوه چه د طهارة ابتداء د آدابو د استنجاء نه اوکړې شى چه ترتيب ذکرى د ترتيب خارجى مطابق شى، مونږ د پوره کتاب د کتلو نه هم دا اندازه لګولې ده چه مصنف رحمه الله د ابوابو په ترتيب قائمولو کښې د وجود خارجى ترتيب لره ملحوظ ساتى کوم چه ډيره مناسبه طريقه ده، دويمه خبره دا ده چه د طهارة وجوب د انسان سره هغه وخت متعلق کيږى چه کله د مخکښې نه ناقض طهارة موجود وى ګينې بغير ددې نه تحصيل حاصل دې، او په نواقض الوضوء کښې کثير الوقوع څيز خارج من السبيلين يعنى بول و براز دى، نو دغه اودس واجبونکى طرف ته اشاره کولو دپاره دا ابواب مخکښې راوړلې شو.

مصنف رحمه الله د آداب خلاء بيانولو دپاره تقريبا پنځويشت بابونه منعقد فرمائيلى دى او په هغه ټولو کښې ئې اداب د استنجاء بيان کړى دى، ابن العربى په عارضة الاخوذى شرح ترمذى کښې د استنجاء ديرش آداب ذکر فرمائيلى دى سبحان الله! زمونږ شريعت محمديه څومره جامع شريعت دې چه په دې کښې د استنجاء په شان د معمولى څيز دپاره دومره آداب دى. اللهم اجعلنا متادبين باداب الشريعة على صاحبها افضل الصلاة والتحية.

دلته چه مصنف رحمه الله اول کوم ادب بيان کړې دې هغه تخلى دې يعنى د استنجاء دپاره خلوت او يواځې والې اختيارول، د جاهليت په زمانه کښې به داسې کيدل چه خلقو به بغير د تکلف نه د يو بل مخې ته کيناستلو سره قضاء حاجت کولو او خپل مينځ کښې به ئې خبرې هم کولې، لکه چه دا مضمون پنځه شپږ بابونه پس په يو حديث کښې راځى،

اسلامي تعليماتو دا طريقه ختم کړه.

او په دې هم ځان پوهه کړه چه هم ددې سلسلې يو بل باب په کتاب کښې راروان دې، باب الاستتار فی الخلاء، دا دواړه ادبونه ځانله ځانله مستقل آداب دی، تخلی مستقل ادب دې او تستر مستقل ادب دې، تخلی به حاصليږی په انتقال مکانی کولو او خلقو نه لرې کيدو سره چه د آبادئ نه لرې لاړ شی، او د استتار دپاره ابعاد ضروری نه دې بلکه دهغې تعلق د آبادئ سره هم دې، پس که د استنجاء دپاره د آباد ځائې نه علاوه څه خالی مکان نه وی نو هم په هغه ځائې باندې به دا قائم کولې شی، هم په دې وجه مونږ اووئيل چه دا دواړه آداب بيل بيل او مستقل دی.

[۱](۱)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ بْنِ قَعْنَبٍ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا ذَهَبَ الْمَذْهَبَ أَبْعَدَ".

**ترجمه**: حديث بيان کړی دی مونږ ته عبد الله بن مسلمه بن قعنب القعنبي، هغه وائی حديث بيان کړی دی مونږ ته عبد العزيز يعني ابن محمد، هغه روايت کوي د محمد نه يعني ابن عمرو نه، هغه روايت کوي د ابو سلمة نه، هغه روايت کوي د مغيرة بن شعبة نه، يقيناً نبي ﷺ به چه کله د اودس ماتي له تلو نو لرې به تلو.

**تشريح**: قوله:﴿ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ ﴾ په دې باب کښې مصنف رحمه الله دوه احاديث بيان کړی دی يو د مغيره بن شعبه رضی الله عنه او دويم د جابر بن عبدالله رضی الله عنهما، د دواړو مضمون يو دې، خو په دويم حديث کښې لږ شان زيادت دې کوم چه به معلوم شی.

قوله : ﴿ كَانَ إِذَا ذَهَبَ الْمَذْهَبَ ﴾ يعنی رسول الله ﷺ چه به د قضاء حاجت دپاره تلو نو لرې والې به ئې اختيارولو يعنی د خلقو او د آبادئ نه، اوس دا چه څومره لرې به تلو، دا په دې حديث کښې ذکر نه دی، په راروان حديث کښې د بُعد مقدار بيان کړې شوې دې او په هغې کښې دی چه ﴿ حتی لا يراه احد ﴾، يعنی دومره لرې به تلل چه د خلقو د نظر نه غائب شی، او د استنجاء په وخت پرې د چا نظر پرينوځی. په معارف السنن کښې د جمع الفوائد په حوالې سره ليکلې شوې دی چه د طبرانی په يو روايت کښې ددې بعد مقدار په دوه ميلو سره بيان کړې شوې دې يعنی دوه ميلو ته نزدې.

(**حکمت ابعاد**): اوس دا خبره چه ددې ابعاد حکمت څه دې، علماء کرامو ليکلې دی چه اګرچه ځان پټول يعنی د خلقو نه پرده او يواځې والې خو په آبادئ کښې هم حاصليدې شی، خو په لرې تلو کښې دا فائده ده چه په اطمينان سره به فارغ شی، که خلقو ته نزدې وی نو په اخراج ريح کښې به تامل کوی او حياء به ورځی، او د آبادئ والو هم په دې کښې مصلحت دې، ګندګی به د هغوی نه لرې وی، اګرچه د رسول الله ﷺ فضلات د رائحه کريهه نه محفوظ وو بلکه د هغوی په خصائصو کښې دا خبره منقول ده چه د هغوی فضلة په زمکه باندې نه ده

(۱): سنن الترمذي/الطهارة ١٦ (٢٠)، سنن النسائي/الطهارة ١٦ (١٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٢ (٣٣١)، (تحفة الأشراف: ١١٥٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٤/٤)، سنن الدارمي/الطهارة ٤ (٦٨٦) (حسن صحيح)

ليدلې شوې، زمکې به هغه تيرولہ.

(**د لفظ أبعد تحقيق**): قوله : ﴿ أَبْعَدَ ﴾ دا فعل متعدی دې کوم ته چه د مفعول احتياج دې کوم چه دلته نه دې ذکر کړې شوې تقدير د عبارت دا کيدې شی ﴿ ابعد نفسه عن الناس ﴾ او بعض شارحينو ليکلی دی چه ﴿ ابعد ﴾ دلته د فعل لازم په ځائې استعمال شوې دې، ای بعد عن الناس... او فعل متعدی د لازمی په ځائې بعض وخت مبالغه استعمالولې شی، لکه ﴿ زيد يعطی ﴾ يعنی زيد ښه ورکړه کوی، او هم دغه شان دلته مبالغة مقصود ده او ترجمه به دا وی چه (ښه) لرې به تلو.

(**د لفظ المذهب تحقيق**): قوله:﴿ الْمَذْهَبَ ﴾ په دې کښې دوه احتمالات دی يا مصدر ميمی دې يا ظرف مکان دې، اوالف لام بهر حال عهد خارجی دې، يعنی چه کله به تلو نو په مخصوص تللو باندې به تلو او د مخصوص تلو نه مراد د قضاء حاجت دپاره تلل دی، او په دويم صورت کښې به ئې ترجمه دا وی چه کله به رسول اللهﷺ تلو د تلو ځائې ته چه دهغې نه مراد بيت الخلاء ده، شارحينو ليکلې دی چه لفظ مذهب عرفا د بيت الخلاء په معنی کښې استعماليږی او هم دغه شان لفظ خلاء مرفق، مرحاض او کنيف د دې ټولو يوه معنی راځی.

د دې حديث نه مصنفؒ ترجمة الباب يعنی تخلی ثابت کړې ده، په دې حديث کښې اګرچه لفظ د تخلی موجود نه دې خو دا معنی مصنفؒ د ابعد نه راويستلې ده چه د لرې والی نه مقصود د رسول اللهﷺ خلوت اختيارول وو، د حديث مطابقت د ترجمة الباب سره کله خو صريح يعنی لفظا او معنی وی او کله صرف معنوی وی يعنی په طريقه د استنباط، نو دلته هم دغه شان ده او که مصنفؒ دلته په ځائې د تخلی **باب الابعاد يا باب التباعد عند الحاجة** قائم کړې وې، ځنګه چه بعض مصنفينو امام نسائی او امام ابن ماجه کړې دی نو مطابقت به لفظا او معنی هر قسمه وې، خو په دې صورت کښې به په ترجمة الباب کښې څه مشکل او باريکی وې، اوس د استنباط يو شان پيدا شوې دې، امام ترمذیؒ په دې حديث باندې دا ترجمه قائم کړې ده : **باب ما جاء ان النبیﷺ کان اذا ذهب المذهب ابعدا....** دا ترجمة بلفظ الحديث ده، او ښکاره ده چه په دې کښې هيڅ باريکی نشته، سادګی ده پکښ، په صحاح ستة کښې د ټولو نه زياتې آسانې او ساده تراجم د ترمذی دی.

## د صحاح سته د تراجم خپل مينځ کښې فرق او مرتبه :

مولانا انور شاه کشميریؒ په عرف الشذی فرمائی چه په صحاح ستة کښې د ټولو نه اعلی تراجم خو د صحيح بخاری کښې دی هغه په دې معامله کښې سباق الغايات دی، او د بخاری بعض تراجم دومره باريک او ژور دی چه عقلونه ئې حيران کړی دی، د بخاری شارحينو د بخاری د تراجم حل کولو دپاره مستقل اصول مرتب کړل. چنانچه حضرت شيخؒ په مقدمه د لامع کښې تقريبا اويا اصول بيان فرمائيلې دی، غرض دا چه د بخاری تراجم د ټولو نه اعلی دی، او د هغه خور يعنی صحيح مسلم، دهغې حال دا دې چه تراجم ندارد نه داسې او نه داسې، اګر که کتاب فی الواقع د مضمون په لحاظ سره مبوب او مرتب دې، خو عناوين او تراجم هغوی پخپله نه دی قائم کړی، روستو شارحينو قائم کړل،

او دهغې نه روستو درجه ده د نسائی د تراجم، دهغې تراجم کافی دقیق او وزنی دی کله خو د هغه ترجمه د بخاری د تراجمو سره بالکل یو شان شی، غرض دا چه دهغې حل کول هم کافی محنت غواړی، دهغې نه پس بیا درجه ده د ابوداؤد د تراجم، او دهغې نه پس بیا درجه ده د ترمذی د تراجم، په عرف الشذی کښې بس هم دومره لیکلې شوی دی زه وایم چه د سنن ابن ماجه تراجم هم صفا او واضح دی.

[۲](۱)حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ الْبَرَازَ، انْطَلَقَ حَتَّى لَا يَرَاهُ أَحَدٌ".

**ترجمه**: د جابر بن عبد الله نه روایت دې. یقیناً نبي ﷺ به چه کله اراده اوکړه دقضاء حاجت نو (دومره لرې تلو)تلو به تردې چه هیچا به نه لیدلو.

**تشریح**:قوله:﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قال كَانَ إِذَا أَرَادَ الْبَرَازَ ﴾ براز د باء په فتحې او کسرې دواړو سره راځی، ددې معنی د وسیع او فراخه میدان ده، ابن الاثیر الجزری فرمائی چه اصل معنی خو ددې هم دا ده، خو بیا روستو د قضاء حاجت نه کنایه شوه، ځکه چه خلقو به په داسې میدان کښې قضاء حاجت کولو، څنګه چه خلاء په اصل کښې خالی کور ته وائی، او بیا دا مجازا د قضاء حاجت ځائې دپاره استعمال شو. دا چه مونږ اووئیل چه په براز کښې فتحه او کسره دواړه جائز دی دا د جوهری او صاحب قاموس رائې ده، خو خطابی مشهور شارح حدیث دلته د کسرې نه انکار کړې دې او وئیلې ئې دی چه براز بالکسر خو د باب مفاعلت مصدر دې چه دهغې معنی مبارزت یعنی جنګ کښې د مقابلې ده خو دا صحیح نه ده جوهری لیکلې دی چه د براز بالکسر دواړه معنې راځی، مبارزت او مقابله او غائط یعنی د انسان د بدن نه چه کومه فضله وځی لهذا براز مشترک شو په دواړو معنو کښې.

**دفع التعارض بين الروايات الواردة في الباب**:

په حدیث الباب کښې چه د رسول الله ﷺ کوم عادت شریفه بیان کړې شوې دې په هغې باندې دا اشکال پیدا کیږی چه د ابن عمر رضی الله عنهما د بیت حفصه والا روایت کوم چه په باب الرخصة فی استقبال القبلة کښې راځی هغه ددې خلاف دې د هغې نه د رسول الله ﷺ په کور کښې قضاء حاجت کول ثابتیږی، حضرت په بذل کښې ددې دوه توجیهات لیکلی دی یا خو دې دا اووئیلې شی چه د رسول الله ﷺ عادت د لرې تلو د بناء الکنف فی البیوت نه مخکښې دې یعنی چه کله په کورونو کښې بیت الخلاء نه وې بیا چه کله روستو په کورونو کښې بیت الخلاء جوړیدل شروع شو نو رسول الله ﷺ دا ابعاد ترک کړو، او یا دې دا اووئیلې شی چه د دې عادت شریفه کوم چه په دې حدیث کښې ذکر دې، ددې تعلق د سفر سره دې، یعنی په سفر کښې چه به چرته منزل او پړاؤ وو هغه وخت به ئې نزدې استنجاء نه فرمائیله بلکه په فاصله باندې تلو سره به ئې استنجاء فرمائیله، په حضر کښې ئې دا عادت نه وو.

---

(۱): سنن لبن ماجه/الطهارة ۲۲ (۳۳۵)، (تحفة الأشراف: ۲۶۵۹)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/المقدمة ٤ (۱۷) (صحيح)

دلته یو سوال بل دي هغه دا چه د مصنف رحمه الله غرض جمع روایات او تکثیر روایات نه دي، بلکه هغوی د ترجمة الباب د ثبوت دپاره یو حدیث ذکر کول کافي ګڼري، لکه چه هغوی ددې خپل عادت تصریح په هغه رساله کښې کړې ده کوم چه د اهل مکه په نوم ده، چه دهغې ذکر په مقدمة الکتاب کښې راغلې دې په هغې کښې هغوی لیکلی دی چه که زه په یو باب کښې د یو نه زیات احادیث راوړم نو د یوې کلمې او کلام د زیادت د وجې نه به وی، پس دلته په حدیث ثاني کښې یو زیادت دې، یعنی مقدار ابعاد کوم چه په حدیث اول کښې نه وو، په دې وجه ئې دویم حدیث راوړلو.

(**سوال**): خو دلته سوال دا پاتې کیږی چه که مصنف رحمه الله په یو باب کښې بغیر د ضرورت او فائدې نه د یو حدیث نه زیات راوړل نه غوښتل نو دهغې یو شکل دا وو چه صرف حدیث ثاني به ئې ذکر فرمائیلي وې چه په هغې کښې د زیادت فائده ده.

(**جواب**): ددې جواب دا کیدې شي چه په اصل کښې حدیث ثاني د حدیث اول په اعتبار سره ضعیف دې په دې وجه مصنف رحمه الله دا مناسب او نه ګڼړله چه قوی پریخودلو سره دې په ضعیف باندې اکتفاء اوکړې شی، په دې وجه ئې خو اصالة د قوت په وجه باندې حدیث اول ذکر کړو، او په حدیث ثاني کښې چه کوم ضعف وو هغه ئې د تائید او د شاهد په درجه کښې راوړلو او په شواهدو کښې ضعیف احادیث هم چلیږی، د ضعف وجه به وړاندې معلومه شی.

### د سند متعلق بعض امور او اصطلاحات:

(حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ): ځان پوهه کړئ چه تیر کال تاسو په مشکاة شریف کښې صرف متون احادیث لوستلی دی، مشکاة شریف د اسانیدو نه خالی دې، هغوی صرف متون حدیث اخستلې دی، اسانید ئې حذف کړې دی هم په دې وجه د مشکاة شمار په تعالیق کښې کولې شی، او تاسو ته معلومه ده چه کتب الحدیث مختلف الانواع دی، د هرې نوع نوم بیل بیل دې، بهر حال دلته د دورې په کتابونو کښې متون حدیث لره د اسانیدو سره بیانولې شی نو دلته یو مستقل کار بل زیات شو یعنی په سندونو باندې ځان پوهه کول او دهغې اصطلاحات وغیره پیژندل او دا چه ددې د لوستلو طریقه څه ده؟ وغیره وغیره

پس دلته د (حدثنا) قائل امام ابوداؤد رحمه الله دې، او ددې ناقل د امام ابوداؤد رحمه الله شاګرد ابو علی لؤلؤی دې او عبدالله بن مسلمه د مصنف رحمه الله استاذ دې، د سند په ابتداء کښې حدثنا او او اخبرنا پوره لیکلې کیږی، او د سند په دوران کښې د اختصار دپاره حدثنا په ځائې ثنا یا، نا لیکلې شی، او اخبرنا لره نا لیکلې شی، بله دا چه په مینځ کښې د نا نه مخکښې قال هم محذوف وی، کوم چه په لیکلو کښې نه راځی، خو لوستل ئې ضروری دی، لهذا دا سند به داسې لولو: (حدثنا عبدالله بن مسلمة قال حدثنا عبدالعزیز) او بله دا چه هر سند دې د وبه قال نه شروع کړې شی کوم چه مخفف دې د (وبالسند المتصل منا الی المصنف)، ددې د اضافې ضرورت په دې وجه دې چه د هر حدیث سند ممکل شی ځکه چه په کتاب کښې خو سند صرف د مصنف رحمه الله نه شروع کیږی، اوس د سند د شروع حصه یعنی زمونږ نه د

مصنف رحمه الله پورې د راوړلو ضرورت دې نو په دې عبارت سره ددې سند غير مذکوره حصې طرف ته اشاره کيږي او هر استاذ او مدرس خپل سند د شروع نه واخله تر د کتاب د مصنف رحمه الله پورې په اوله ورځ باندې بيانوي او زمونږ او ستاسو سند په هر حديث د کتاب کښې د مصنف پورې يو دې، په دې وجه د هر حديث په شروع کښې د مصنف رحمه الله د سند نه مخکښې ﴿ وبه قال ﴾ لوستل د تکميل سند دپاره کافي دي، او که څوک د سند په شروع کښې دا جمله او نه لولي نو کم از کم په ذهن کښې خو ئي دا خبره کيدل پکار دي.

## د لفظ ابن د لوستلو او ليکلو قواعد :

ځان پوهه کړه چه لفظ ابن د خپل ماقبل صفت او مابعد ته مضاف وي او چونکه د موصوف او صفت اعراب يو وي نو کوم اعراب چه د ابن نه د مخکښې اسم وي هم هغه اعراب به د لفظ ابن وي، لکه عبد الله بن مسلمة کښې ابن د عبد الله صفت دې، او عبد الله د فاعل کيدو په وجه باندې مرفوع دې هم دغه شان ابن هم مرفوع شو، او مسلمه د ابن مضاف اليه دې او په ټولو ځايونو کښې دابن ما بعد مضاف اليه وي، لهذا په دې باندې به د مضاف اليه والا اعراب لوستلې کيږي.

بله قاعده د ابن دا ده چه که دا د علمين متناسلين ترمينځه واقع شي او دهغې نه مخکښې اسم منون وي نو دهغې تنوين به ساقطيږي لکه : ﴿ مسددُ بن مسرهد ﴾ کښې مسدد منون وو خو د ابن د وجې نه به تنوين ساقطيږي. دا به مُسَددُ بْنُ مُسَرْهَدٍ لوستلې شي، او هم دغه شان به د ابن الف د کتابت نه حذف کولې شي، مګر دا چه د کرښې په شروع کښې واقع شي او که د علمين متناسلين ترمينځه واقع نه وي نو هلته د ابن الف ليکلې شي او د ابن نه ماقبل چه کوم تنوين ساقطيږي هغه به هم باقي وي بلکه لوستلې به شي لکه حدثنا عبدالله بن مالکٍ ابنُ بحينة، دلته دويم ابن د علمين متناسلين ترمينځه نه واقع کيږي ځکه چه مالک د عبد الله پلار دې او بحينة د عبد الله مور ده، يعنی دمالک زوجة نو مالک او بحينة خپل مينځ کښې متناسلين نه دی بلکه زوجين دی، او په ابن بحينة کښې لفظ ابن د ما قبل يعنی د مالک دپاره صفت نه دې بلکه ددې نه چه کوم مخکښې اسم دې يعنی د عبدالله صفت دې، ګويا د عبدالله دوه صفتونه شو يو دا چه هغه ابن مالک دې، دويم دا چه هغه ابن بحينة دې، دلته به د مالک نه پس د ابن الف ليکلې شي اګرچه لوستلې به نه شي، بله دا چه د مالک نه به تنوين هم نه ساقطيږي، دا د لفظ ابن د ليکلو او لوستلو قواعد دی چه ددې پيژندل د يو طالب حديث دپاره ضروری دی ګنې هميشه به په ليکلو او لوستلو کښې خطاء کيږي، لهذا ښه ځان پوهول پکار دی د حديث د عبارت صحيح لوستل انتهائی ضروری دی، د ﴿ من کذب عليّ متعمدا فليتبوأ مقعده من النار ﴾ د لاندې اصمعی رحمه الله ليکی چه ماته ددې حديث په بناء د هغه طالب علم د طرف نه ډيره خطره او ويره وی کوم چه عبارت د حديث د قواعدو خلاف لولی ځکه چه رسول الله ﷺ خو به د قواعدو مطابق تلفظ فرمائيلو او دا ئې ددې حديث خلاف لوستلو سره د هغوی طرف ته منسوب کوی.

......

## تحدیث او اخبار وغیره الفاظ کښې د فرق بحث :

اوس ددې ځائې نه د سند حدیث یو خاص اصطلاح پیژندل ضروری دی هغه دا چه په ﴿حدثنا﴾ او ﴿اخبرنا﴾ کښې څه فرق دې؟ ځکه چه کله دا راځي او کله هغه، جواب دا دې چه د اخبار او تحدیث ترمینځه خو لغة هیڅ فرق نشته. خو د محدثینو په اصطلاح کښې څه فرق شته او که نه؟ نو په دې کښې د محدثینو دوه جماعتونه دی، متقدمین او متاخرین، متقدمین او اکثر علماء په دې کښې د فرق قائل نه دی، بلکه داسې اوایئ چه دا دواړه الفاظ په یو مفهوم باندې دلالت کوی، بعض اصحاب درس د ائمه اربعه هم دا مسلک لیکلې دې یعنی عدم الفرق او متاخرین ددې دواړو مفهوم جدا جدا بیانوی هغوی وائی چه ﴿حدثنا﴾ به هغه وخت وئیلې شی چه کله استاذ لوستلې وی او شاګرد اوریدلی وی او که ددې برعکس وی چه شاګرد ئې اولولی او استاذ ئې په غور سره واوری د نو دهغې دپاره لفظ د اخبرنا استعمالیږی نو د متاخرینو په نزد د دواړو مفهوم مختلف شو.

د امام بخاری رحمه الله شمیر هم په متقدمینو کښې دې، هم دغه شان امام زهری او امام مالک، امام بخاری رحمه الله خو هم ددې مقصد دپاره په کتاب العلم کښې یو باب قائم کړې دې او دا ئې ثابت کړې دی چه په دواړو کښې هیڅ فرق نشته، او هغه باب دې باب قول المحدث حدثنا واخبرنا وانبانا، او متاخرین کوم چه په دې الفاظو کښې فرق کوی په هغوی کښې امام مسلم او امام نسائی رحمهما الله خاص طور سره قابل ذکر دی لکه چه دلته شارحینو لیکلې دی او زه وایم چه هم دغه حال زمونږ د امام ابوداؤد رحمه الله دې هغوی هم په اخبار او تحدیث کښې د فرق د وجې نه بعض وخت حاء تحویل راوړی.

او دریم قول دلته هغه دې کوم چه بعضو اختیار کړې دې چه سماع من لفظ الشیخ کښې خو مطلقا اخبرنا او حدثنا استعمالول پکار دی او که تلمیذ قراءت اوکړی نو هغه وخت اخبرنا قراءةً علیه او حدثنا قراءةً علیه لوستل پکار دی، حاصل دا چه مطلق اخبار او تحدیث خو د سماع من لفظ الشیخ دپاره استعمالیږی او که شاګرد په استاذ باندې قراءت اوکړی نو هلته اخبرنا او حدثنا سره د قراءةً علیه اضافه کول پکار دی.

یو قول دلته دادې چه بعضې محدثین (قیل ومنهم الامام النسائی) اخبار وی یا تحدیث، د روایت په وخت ددې استعمال هغه وخت صحیح دې کله چه شیخ د اسماع قصد هم کړی وی لهذا که څوک طالب د یو محدث په مجلس کښې تبعًا شریک شی، او دغه شیخ ددې طالب د اسماع قصد نه وی کړې، نوبیا په داسې صورت کښې دې طالب ته د حدثنا یا أخبرنا وئیلو حق نشته، کما فعل أبوداؤد قرئ علی الحارث بن مسکین وأنا شاهد وکذا الامام النسائی والبسط فی الفیض السمائی).

یو اختلاف دلته دا دې چه په سماع لفظ الشیخ کوم ته چه متاخرین تحدیث وائی او قراءة علی الشیخ کوم ته چه اخبار وائی، په دواړو کښې د مرتبې په اعتبار سره افضل کوم یو دې؟ پس د اکثرو محدثینو رائې دا ده چه تحدیث د اخبار نه افضل دې او د امام ابوحنیفه رحمه الله وغیره د بعض فقهاء کرامو رحمهم الله مذهب ددې خلاف دې یعنی اخبار اولی دې د

تحدیث نه، او دریم قول دلته دا دې چه دا دواړه په مرتبې کښې مساوی دی، او هم دا قول د امام بخاری رحمه الله بیانولې شی.

## د تحمل حدیث طرق :

ځان پوهه کړه چه د حدثنا اخبرنا او انبانا نه علاوه نور هم الفاظ راځی، ددې تولو د پیژندلو دپاره ددې ضرورت دې چه دا معلومه شی چه د تحمل حدیث څومره طرق دی ځکه چه د هر طریقِ تحمل دپاره طریقِ تعبیر بیل دې[1] پس د دوؤ بیان اوشو،

۱ : سماع من لفظ الشیخ، ۲ : قراءة علی الشیخ...

۳: او دریم طریق دې الاجازة من الشیخ مشافهة یعنی باقاعده لوستل خو د چا د طرف نه هم اونشی نه د استاد د طرف نه او نه د شاګرد د طرف نه، بس یو شیخ یو طالب حدیث ته بالمشافهة د روایتِ حدیث اجازت ورکړی د دې دپاره په وخت د روایت انبانا استعمالیږی.

۴: څلورم طریق المَناولة ده چه دهغې مطلب دا دې چه شیخ یو طالب لره خپل اصل سماع یعنی هغه کتاب نه چه په هغې کښې د هغه مسموعات (روایات لیکلې شوې دی) بعینه هغه یا دهغې نقل ورکړی د روایت د اجازت سره چه زما د طرف نه تاته ددې د روایت کولو اجازت دې یا بغیر د اجازت نه او دې صورت کښې به په وخت د روایت وئیلې شی حدثنی فلان مناولة یا ناولنی فلان.

۵: پنځم طریق د تحمل الکتابة والمکاتبة دې [2] یعنی شیخ یو طالب ته یو حدیث خپله اولیکی یا ئې په چا باندې اولیکی چاته چه ورکولې شی برابره خبره ده که هغه حاضر وی هغه ته ئې حواله کړی یا غائب وی خو لیکلو سره ئې هغه ته اولیږی، ددې بیا دوه قسمونه دی یو کتابت مجرده او دویم مقرونة بالاجازة

۶: شپږم طریق د تحمل هغه دې چه هغې ته په اصطلاح کښې الوجادة وائی، د وجاده مطلب دا دې چه یو طالب حدیث ته د یو محدث یو کتاب چه په هغې کښې احادیث لیکلې شوې وی په څۀ طریقه حاصل شی دهغې دپاره طریق د تعبیر ﴿ وجدت فی کتاب فلان یا فی اصل فلان ﴾ دې.

**فائده** : دا معلومه شوې ده چه دا د تعبیراتو فرق د متاخرینو په نزد دې او د متقدمینو په نزد طریق تحمل خو هم هغه دی د کوم بیان چه پورته راغلې دې خو د هغوی په نزد طریق تعبیر د هر یو جدا او مختلف نه دې.

## شرح السند :

قوله : ﴿ حدثنا عبدالعزیز یعنی ابن محمد ﴾ دا په عبدالعزیز بن محمد الدراوردی سره مشهور

---

[1] یعنی د روایت په وخت ځکه چه روایت حدیث د تحمل حدیث نه پس کیږی اود تحمل طرق چونکه مختلف دی په دې وجه ددې په لحاظ سره په روایت کښې الفاظ راوړلې شی کله حدثنا او کله اخبرنا وغیره.

[2] په دې باندې دویم باب کښې نور کلام راروان دې.

دي دراورد په خراسان کښې یو کلی دي، دا راوی متکلم فیه او سئ الحفظ دي، د بخاری په راویانو کښې دې خو امام بخاری رحمه الله د هغوی روایت منفردا نه دې اخستلې بلکه مقرونا بغیره ئې اخستلې دې.

دلته په دې باندې ځان پوهول غواړی چه د یعنی اضافه ولې کړې شوې ده؟ جواب دا دې چه دا د حضرات محدثینو سخت احتیاط کول دی چه راوی د خپل استاذ نه څومره لفظ اوریدلې وو د هغه د طرف نه زه هغه هومره نقل کوم او کوم څیز چه د هغه په نزد وضاحت ته محتاج وو، د خپل طرف نه ئې هغه وضاحت لره جدا کولو سره بیان کړو چه د شاګرد او د استاذ الفاظ مخلوط نه شی، حاصل دا چه عبدالله بن مسلمه د خپل استاذ عبدالعزیز نوم بغیر د نسب نه بیان کړې وو، د هغوی ولدیت ئې نه وو بیان کړې نو اوس مصنف رحمه الله د خپل طرف نه دا وضاحت فرمائی چه زما د استاذ عبدالله بن مسلمه مراد د عبدالعزیز نه عبدالعزیز بن محمد دې د یعنی لغوی معنی یرید ده په دې کښې چه کوم ضمیر فاعل دې هغه عبدالله بن مسلمه ته راجع دې او د دې یعنی قائل مصنف رحمه الله دې، مصنف رحمه الله فرمائی عبدالله بن مسلمه مراد اخلی د عبدالعزیز نه عبدالعزیز بن محمد.

قوله :﴿ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ ﴾ دا ابوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف دې د چا شمار چه په فقهاء سبعه[1] کښې کیږی د هغوی په نوم کښې اختلاف دې، بعضو وئیلې دی چه هم دا ابوسلمه نوم ئې دې، بعض وخت کنیت نوم وی او وئیلې شوې دی چه د هغوی نوم عبدالله دې وقیل اسماعیل، حضرت شیخ رحمه الله لیکلې دی چه شیخ سراج احمد سرهندی شارح ترمذی ته وهم راغلې دې، د هغوی نه ددې راوی په تعین کښې غلطی شوې ده، هغوی لیکلې دی چه ددې نه مراد منصور بن سلمه دې دا غلطه ده ځکه چه منصور بن سلمه په طبقه عاشره کښې دې د هغوی د صحابی سره خو څه چه د تابعی سره هم ملاقات نه دې شوې، نو بیا دلته د صحابی نه څنګه روایت کوی، دویم دا چه دا منصور بن سلمه د سنن ابوداؤد په راویانو کښې نه دې.

قوله : مسدد بن مسرهد، دا د اوچتې درجې محدث دې، امام ابوداؤد رحمه الله د هغوی نه په دې سنن کښې په کثرت سره روایت کوی د هغوی په باره کښې لیکلې شوې دی چه په بصره کښې چه د ټولو نه مخکښې مسند کوم چه د حدیث یو خاص نوع کتاب دې، هم هغوی تصنیف فرمائیلې وو، د هغوی د نسب سلسله هم ډیره عجیب اوغریب ده کومه چه په بذل کښې ذکر شوې ده او د هغه نومونو یو خاصیت ئې هم لیکلې دې چه که هغه نومونه په یو کاغذ باندې اولیکلې شی او د تعویذ په طور د محموم یعنی تبې وهلی انسان په غاړه کښې واچولې شی نو غوره عمل دې، تبه به ترې لاړه شی، زمونږ استاذ محترم ناظم صاحب

[1] یعنی: سعید بن المسیب، قاسم بن محمد بن ابی بکر، عروة بن الزبیر، خارجة بن زید بن ثابت، ابوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف، عبیدالله بن عبدالله بن عتبه ابن مسعود، سلیمان بن یسار (تدریب ص ۲۴۰ ج۲) وقیل سالم بن عبدالله بن عمر بدل ابی سلمة بن عبدالرحمن. (معارف السنن ج۱ ص ۱۳۵)

(مولانا اسعد الله رحمه الله ډیر ادیب او نظیف الطبع وو، هغوی به په سبق کښې فرمائیل مسدد کاسمه مسدد، چه مسدد د خپل نوم په شان په حقیقت کښې هم مسدد دې اصل کښې د مسدد معنی مصلَح او اصلاح کړې شوې دې په دې وجه ئې داسې اوفرمائیل.

قوله : ﴿ عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ ﴾ د هغوی نوم محمد بن مسلم بن تدرس المکی دې، د هغوی شمیر په مدلسینو کښې دې او دلته هغوی په طور د عنعنه روایت کوی په دې وجه په دې روایت کښې ضعف دې، د ضعف یو بله وجه هم ده چه په دې سند کښې اسماعیل بن مالک راوی کثیر الوهم دې هم په دې وجه دا حدیث د حدیث اول نه سندا کمزورې دې، امام ابوداؤد رحمه الله اګرچه په دې روایت باندې سکوت فرمائیلې دې خو حافظ منذری رحمه الله د اسماعیل بن عبدالمالک په وجه په دې کلام فرمائیلې دې، او د ما سکت علیه ابوداؤد مستقل علمی بحث دې کوم چه په مقدمه کښې تیر شو.

الحمد لله په باب اول باندې کلام پوره شو، په دې باب کښې ډیر اهم مفید او ضروری اصطلاحات او ابتدائی بحثونه راغلی دی، دا ټول څیزونه د حفظ قابل دی.

## بَابُ الرَّجُلِ يَتَبَوَّأُ لِبَوْلِهِ

### باب دې په بیان د سړي کښې چې اودس ماتي لپاره ځائ ګوري.

(**ماقبل سره ربط او مناسبت**): ا د آداب استنجاء د سلسلې دویم باب دې چه ددې تعلق د بول سره دې او ددې نه مخکښې باب د براز متعلق وو لکه څنګه چه د تقابل تقاضه ده، بلکه غوره دا ده چه داسې اووئیلې شی چه په اول باب کښې چه کوم ادب ذکر کړې شوې دې یعنی تخلی هغه عام او مشترک دې دهغې تعلق د بول او براز دواړو سره دې او په دې باب سره مقصود یو بل ادب بیانول دی، یعنی نرمه زمکه اختیارول ددې تعلق خاص د بول سره دې، اول ادب مشترک دې او دویم ادب مختص دې د بول سره ﴿ يَتَبَوَّأُ ﴾ په معنی د ځائې حاصلولو، هم ددې نه دې مباءة چه دهغې معنی د منزل ده، مطلب دا شو چه د تشو متیازو دپاره انسان لره مناسب ځائې اختیارول پکار دی چنانچه د حدیث الباب نه معلومه شوه چه متیازې په مکان دمث یعنی نرمه زمکه کښې کول پکار دی چه د متیازو د څاڅکو نه حفاظت راشی.

اوس دلته د یوې مسئلې خبره پیدا شوه دا چه درشاش البول حکم څه دې؟ چنانچه ابن رسلان شارح ابوداؤد لیکلی دی چه د امام شافعی رحمه الله مذهب عدم العفو دې که بدن وی او که جامه وی خو امام نووی رحمه الله عفو ته زیات صحیح وئیلی دی د حرج د وجې نه، او زمونږ مذهب په درمختار کښې لیکلې شوې دې چه رشاش البول که په بدن یا کپړا باندې پریوځی نو معاف دی، خو که په اوبو کښې ګډ شی نو معاف نه دی، لږې اوبه به پرې ناپاکه کیږی، هغوی وائی لان طهارة الماء اوکد، یعنی د اوبو د طهارت مسئله ډیره اهم ده چه دهغې وجه ښکاره ده چه د اوبو نجاست دهغې د سیال کیدو د وجې نه متعدی دې په خلاف د ثوب او د بدن.

[۳]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو التَّيَّاحِ، قَالَ: حَدَّثَنِي شَيْخٌ، قَالَ: لَمَّا قَدِمَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبَّاسٍ الْبَصْرَةَ فَكَانَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي مُوسَى، فَكَتَبَ عَبْدُ اللهِ إِلَى أَبِي مُوسَى يَسْأَلُهُ عَنْ أَشْيَاءَ، فَكَتَبَ إِلَيْهِ أَبُو مُوسَى إِنِّي كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ، فَأَرَادَ أَنْ يَبُولَ، فَأَتَى دَمِثًا فِي أَصْلِ جِدَارٍ فَبَالَ، ثُمَّ قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَبُولَ فَلْيَرْتَدْ لِبَوْلِهِ مَوْضِعًا".

**ترجمه:** حدیث بیان کړی دی مونږ ته موسی بن اسماعیل، هغه وائی حدیث بیان کړی دی مونږ ته حماد، هغه وائی خبر راکړی دی مونږ ته ابو التیاح، هغه وائی: حدیث بیان کړی دی شیخ، هغه وائی هر کله چه راغی عبد الله بن عباس بصرې ته، نو احادیث به ئې بیانول د ابو موسی نه، نو اولیکل عبد الله ابو موسی ته چه پوښتنه ئې ترینه کوله د څه شیانو. نو اولیکل هغه ته ابو موسی، زه اوم د رسول الله ﷺ سره یوه ورځ، نو اراده ئې اوکړه چه تشې متیازې اوکړي، نو راغی یو نرم ځائې ته چه د دیوال دبیخ په خوا کښې وو نو بول ئې اوکړل، بیا رسول الله ﷺ اووئیل: کله چه اراده اوکړي یو ستاسو نه چه بول اوکړي نو طلب دې کړي خپلو متیازو لپاره (نرم)ځائ.

## د حدیث الباب تشریح:

حدیث الباب چه دهغې مضمون اوس پورته تیر شو، راوی ابو موسی اشعری رضی الله عنه دې او دا حدیث هغوی د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په خدمت کښې د هغوی په تپوسلو باندې بصرې ته اولیږلو چرته چه ابن عباس رضی الله عنهما مقیم وو، د تپوس کولو صورت حال دا جوړ شو چه ابن عباس رضی الله عنهما بصرې ته د علی رضی الله عنه د طرف نه والی لیږلې شوې وو هغوی هلته د رسیدلو نه پس د اهل بصره نه هغه احادیث واوریدل کوم چه اهل بصره د ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه روایت کول نو ابن عباس رضی الله عنهما د بعض هغه احادیثو په باره کښې کوم چه هغوی د اهل بصره نه اوریدلې وو د ابوموسی رضی الله عنه طرف ته مراجعت اوکړو پس دهغې په جواب کښې ابوموسی رضی الله عنه د ابن عباس رضی الله عنهما طرف ته حدیث الباب لیکلو سره اولیږلو.

د نور وضاحت دپاره ځان پوهول پکار دی چه د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه مخکښې په بصره کښې خپله د ابوموسی اشعری رضی الله عنه قیام وو، هغه وخت هغوی د سیدنا عمر رضی الله عنه د طرف نه د هغه ځائې عامل وو، اهل بصره چه د ابوموسی رضی الله عنه نه کوم احادیث اوریدلې وو هغه په ظاهر کښې هم ددې زمانې د قیام وو.

دا خو شو د حدیث الباب صحیح صحیح مفهوم، صحیح مونږ ځکه اووئیل ځکه چه د بعض شارحینو نه دلته خطائی شوې ده، هغه دا چه هغوی ﴿ فَكَانَ يُحَدِّثُ ﴾ ئې په ځائې د مجهول په صیغې د معروف سره اولوستلو، چه په هغې سره مضمون کښې تغیر واقع شو، یو خبره دلته پاتې شوه چه د روایت چه کوم الفاظ دی ﴿ يَسْأَلُهُ عَنْ أَشْيَاءَ ﴾ ددې نه خو معلومیږی چه د ابن عباس رضی الله عنهما د تپوس د څو احادیث متعلق وو او دلته په جواب کښې

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۱۵۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۹۶/٤، ۳۹۹، ٤١٤) (ضعيف)

صرف يو حديث ذکر دې، اوس په دې کښې دوه احتمالات دی، يا خو د ابوموسیؓ د طرف نه په جواب کښې يو حديث ليکلې راغلو او يا دا چه دلته په روايت کولو کښې راوی اختصار کړې دې. والله اعلم بالصواب.

﴿ قوله فَأَتَى دَمِثًا ﴾ دمث په کسرې د ميم او سکون د ميم دواړو سره دې په لغت کښې رخوه يعنی نرمې زمکې ته وائی چه په هغې کښې اوبه په تيزئ سره جذب کيږی، دا ئې د متيازو دپاره هم په دې وجه اختيار اوفرمائيلو، بلکه دا چه د دمث اطلاق مجازا په هغه سړی باندې هم کيږی کوم چه د نرم خوئی والا وی، پس د رسول اللهﷺ په صفتونو کښې راځی ﴿ د مث ليس بالجافی ای کان لين الخلق ﴾....... ﴿ فَلْيَرْتَد ﴾ ددې مصدر ارتياد دې، ارتاد يرتاد ارتيادا، او په مجرد کښې، راد يرود رودا وريادا راځی چه دهغې معنی د طلب کولو ده.

دلته يو اشکال دې چه په متيازو کښې تيزی اوشوريت وی چه په هغې سره د ديوال بنياد ته نقصان رسيږی نو رسول اللهﷺ د بل د ديوال په ويخ کښې ولې بول اوکړل، ظاهره ده چه د هغوی د شان نه دا بعيده ده چه د هغوی نه چاته نقصان اورسيږی، ددې ډير جوابونه کړې شوې دی.

۱: ديوال عادی وو يعنی د چا په ملک کښې نه وو نو بيا څه باک دې.

۲: کيدې شی چه رسول اللهﷺ د ديوال نه لرې ناست وی چه د هغه ځائې نه بول د ديوال ويخ ته نه رسيدل خو راوی د قرب د وجې نه دهغې نه مجازا په فی اصل جدار سره تعبير اوکړو.

۳: کيدې شی چه رسول اللهﷺ ته د مالک رضا حاصله وی، د مالک د اذن نه پس هيڅ اشکال نه پاتې کيږی.

۴: هغه د راپريوتلې کور نړيدلې ديوال وو کوم ته چه کهنډر وائی، بيا څه نقصان دې.

**الرواية بالكتابة:**

ددې حديث د اصول حديث يو مسئله هم معلوميږی هغه دا چه رواية بالکتابة جائز دې. دا خبره مخکښې تيره شوه چه د تحمل حديث د طرقو نه يو طريق کتابت هم دې اصولينو ليکلې دی چه د روايت بالکتابة دوه قسمونه دی، يو مجرده يعنی صرف حديث ليکلو سره ورکړې شی، او دويم مقرونة بالاجازة يعنی شيخ يو طالب ته حديث ليکلو سره ورکړی او ورسره د رواية اجازت هم ورکړی مثلا داسې اوائی ﴿ اجزتک ما کتبت لک ﴾ د جمهورو په نزد د کتابت دواړه قسمونه معتبر دی که مجرده وی او که مقرونة، بعض علماء لکه قاضی ابوالحسن ماوردی شافعیؒ کتابت مجرده لره معتبر نه ګڼړی، د جمهورو په نزد دواړه صورتونه معتبر دی خو شرط دا دې چه مکتوب اليه د کاتب خط پيژنی، او بعضو د بينة شرط هم لګولې دې خو دا ضعيف دې.

**شرح السند:**

﴿ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ ﴾ دا حماد بن سلمه دې، په سندونو کښې دوه حماد زيات مشهور دی، يو حماد بن سلمه او دويم حماد بن زيد، موسی بن اسماعيل اکثر د حماد بن سلمه نه روايت

کوی، (۱) د حماد بن زید نه د هغوی روایات کم دی، علامه سیوطی رحمه الله لیکلي دی چه موسی بن اسماعیل چه کله مطلق حماد وائی نو د هغوی مراد دهغې نه حماد بن سلمه وی، ﴿ أَبُو التَّيَّاحِ ﴾ دا کنیت دې نوم ئې یزید بن حمید الضبعی دې، شیخ مشر سړي یا استاد دواړه مراد کیدې شی، دا راوی مجهول دې، د مسند احمد په روایت کښې د لفظ شیخ په ځائې رجل اسود طویل واقع دې، ﴿ عَنْ أَبِي مُوسَى ﴾ د هغوی نوم عبدالله بن قیس رضی الله عنه دې

## د راوی مجهول د روایت حکم

دلته یو سوال پیدا کیږی هغه دا چه د راوی مجهول روایت معتبر دې او که نه؟ جواب دا دې چه په دې کښې تفصیل دې،

د مجهول دوه قسمونه دی، ۱: مجهول العین، ۲: مجهول الحال،

(**مجهول العین**): مجهول العین وائی ﴿ من لم یرو عنه الا واحد ﴾، یعنی هغه راوی چه د چا نه روایت کونکي صرف یو کس وی، د مجهول العین د روایاتو په باره کښې درې اقوال دی.

۱: مطلقا مقبول، ۲: مطلقا غیر مقبول، ۳: دریم دا چه ددې مجهول العین نه راویت کونکې راوی که داسې وی چه د هغه عادت صرف د ثقه نه د روایت کولو وی نو بیا خو د داسې مجهول روایت معتبر دې ګڼلې غیر معتبر، ځکه چه د بعض راویانو عادت وی چه هغوی صرف د ثقة نه روایت اخلی، لکه عبدالرحمن بن المهدی او یحیی بن سعید الانصاری،

دویم قسم مجهول د مجهول الحال دې،

(**مجهول الحال**): د مجهول الحال بیا دوه قسمونه دی، ۱: مجهول الحال ظاهرا و باطنا، ۲: مجهول الحال باطنا لا ظاهرا، یعنی د چا ظاهر حال خو بهتر وی خو د باطن د حال علم ئې نه وی، هم دې ته مستور هم وائی د جمهورو په نزد د قسم اول روایات مردود دې او د دویم یعنی د مستور معتبر دې، او د احنافو په نزد د مستور د روایت معتبر کیدو دپاره شرط دا دې چه هغه د قرون ثلاثه نه وی ګینې معتبر نه دې

**فائده**: او په یو بله خبره هم ځان پوهول پکار دی چه دا ټول تفاصیل او اقسام د هغه مجهول په باره کښې دی کوم چه غیر صحابی وی او که په سند کښې یوصحابی مبهم او مجهول مذکور وی نو په هغې سره څه فرق نه راځی، ځکه چه ﴿ الصحابة کلهم عدول ﴾ د جمهورو مسلک دې هم په دې وجه په کتب رجال کښې به د یو صحابی په باره کښې هم تاسو دا او نه وینئ چه د هغه په باره کښې لیکلې شوې وی چه ثقة دې حجة دې او مقبول دې ځکه چه صحابه کرام رضی الله عنهم توثیق ته محتاج نه دی او د جرح خو سوال نه پیدا کیږی.

---

(۱) د موسی بن اسماعیل د حماد بن زید نه روایت که تاسو کتل غواړئ نو ابواب المواقیت کښې باب من نام عن صلوة ونسیها دریم حدیث اوګورئ په هغې کښې دی: ﴿ حدثنا موسی بن اسماعیل نا حماد عن ثابت ﴾ دا روایت په نسائی او ترمذی کښې هم موجود دې هلته د حماد بن زید تصریح ده.

# باب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ

**باب دې په بيان د هغې کې چې وايي سړى کله چې د اودس ماتي ځائي ته داخل شي.**

[۴]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَعَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ، قَالَ: عَنْ حَمَّادٍ، قَالَ: اللهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ، وَقَالَ: عَنْ عَبْدِ الْوَارِثِ، قَالَ: أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې، هغه وائى، وو رسول الله صلی الله علیه وسلم کله چه به بيت الخلاء ته داخل شو نو وئيل به يې، د حماد نه روايت دې وايي: (اللهم اني اعوذ بک) او د عبد الوارث نه روايت دې هغه وائى: (اعوذُ بالله من الخبث و الخبائث) اې الله زه پناه غواړم تا پورې د نارينو او د زنانو شيطانانو نه. ابو داود وايي: روايت کړى دى شعبه د عبد العزيز نه (اللهم اني اعوذُ بک) او کله ئې وئيلى دي (أعوذ بالله) او وئيلى دي وهيب (فليتعوذ بالله).

[۵]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَمْرٍو يَعْنِي السَّدُوسِيَّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ هُوَ ابْنُ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: اللهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ، وَقَالَ شُعْبَةُ: وَقَالَ مَرَّةً: أَعُوذُ بِاللهِ، وَقَالَ وُهَيْبٌ: عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ، فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللهِ.

**ترجمه**: روايت دې د انس رضی الله عنه نه ددې حديث، هغه وائى: (اللهم اني اعوذ بکَ) او وئيلى دي شعبه: چه کله هغه وئيلى دي (اعوذ بالله). او وهيب چه د عبدالعزيز بن صهيب نه کوم روايت کړې دې په هغې کښې «فليتعوذ بالله» " پکارده چه دالله پناه اوغواړى " الفاظ دى.

**تشريح**: د آداب خلاء نه يو ادب دا هم دې چه کله انسان بيت الخلاء ته د داخليدو اراده اوکړى نو هغه دعاء دې اووائى کومه چه ماثور او منقول ده: ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ ﴾ لکه چه په حديث الباب کښې دى او د سنن سعيد بن منصور په روايت کښې دى چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به ﴿ بسم الله أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ ﴾ لوستلو، په دې روايت کښې د لفظ بسم الله زيادت دې، حافظ فرمائى چه دا زيادت په شرط د مسلم دې.

د جمهورو په نزد دا دعاء د دننه داخليدو نه مخکښې لوستل پکار دى، په دې کښې د بعض مالکيانو، ابراهيم نخعى، ابن سيرين او عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما اختلاف دې، د هغوى په نزد د داخليدو نه پس هم لوستلې شى، په منهل کښې يوه واقعه ليکلې شوې ده عزرمى رحمه الله فرمائى چه زه شعبى رحمه الله ته لاړم او ورته مې اووئيل چه که ماله په بيت الخلاء کښې اينګې راشى نو زه الحمد لله اولولم او که نه؟ هغوى اوفرمائيل نه چه

[1]: صحيح مسلم/الحيض ۳۲ (۳۷۵)، سنن الترمذي/الطهارة ٤ (٦)، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۲، ۱۰٤۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ۹ (۱٤۲)، الدعوات ۱۵ (٦۳۲۲)، سنن النسائي/الطهارة ۱۸ (۱۹)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۹ (۲۹٦)، مسند احمد (۱۰۱/۳، ۲۸۲)، سنن الدارمي/الطهارة ۱۰ (٦۹٦) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الوضوء ۹ (۱٤۲)، الدعوات ۱۵ (٦۳۲۲)، سنن الترمذي/الطهارة ٤ (۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸۲/۳) (شاذ)

ترڅو بهر نه ئې راغلې، هغوی وائی بیا زه ابراهیم نخعی ته لاړم ما د هغوی نه هم دا تپوس اوکړو، هغوی اوفرمائیل : إِحْمَدِ اللهَ فان الحمدَ يصعَد ولا يهبط ﴾ آو هیڅ باک نشته، په بیت الخلاء کښې الحمد لله وایه ځکه چه الحمد لله د الله پاک ذکر او عمل صالح دې، هغه به پورته د آسمان طرف ته اوخیژی، لاندې طرف ته به نه راځی، په خلاف د نجاست چه هغه لاندې غورځیږی، دا اشاره ده د الله پاک د قول طرف ته ﴿ اليه يصعد الكلم الطيب والعمل الصالح ﴾، بهر حال ددې واقعې نه د ابراهیم نخعی رحمه الله مسلک معلوم شو.

په حدیث الباب کښې اګرچه د ﴿ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ ﴾ لفظ دې چه دهغې نه په ظاهر کښې دا معلومیږی چه دا دعاء دې بیت الخلاء ته د داخلیدو نه روستو اولوستلې شی، خو د الادب المفرد په روایت کښې ﴿ اذا اراد ان يدخل الخلاء ﴾ واقع شوې دې چه په هغې سره ده خبره صفا شوه.

﴿ قوله مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ ﴾ خبث د باء په ضمې او سکون دواړو سره لوستلې شی، د ضمې په صورت کښې د خبيث جمع ده، او د سکون په صورت کښې دوه احتمالونه دی یا خو دې داسې اووئیلې شی چه مفرد دې د مکروه او شر په معنی دې، او یا دې داسې اووئیلې شی چه دا هم جمع ده، باء تخفیفا ساکن کړې شوه، هسې قاعده هم دا ده چه په هر ذی ضمتین کښې ثانی تخفیفا ساکن لوستلې شی،

(دخبث او خبائث نه مراد): د خبث او خبائث په تفسیر کښې درې اقوال دی :

۱ : د خبث نه مراد شیطانان سړی او د خبائث نه مراد زنانه شیطانانې دی.

۲ : دویم قول دا دې چه د خبث نه مراد قبائح او شرونه دی او د خبائث نه مراد معاصی دی

۳ : او دریم قول دا دې چه د خبث نه مراد شیاطین او د خبائث نه مراد نجاسات دی،[1]

او ددې دریم قول تشریح بعض ظرفاؤ دا کړې ده چه هر کله ﴿ أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ ﴾ وئیلو سره د شیطانانو نه پناه اوغوښتلې شوه نو اوس به هغه شیاطین چه په بیت الخلاء کښې جمع دی د هغه ځائې نه منتقل او منتشر شی، اوس ددې انتقال او انتشار د وجې نه احتمال وو چه نجاست ورسره اولګی په دې وجه اووئیلې شو ﴿ والخبائث ﴾ یعنی د نجاساتو نه هم پناه غواړم.

**شرح السند :**

﴿ قوله قال عن حماد الخ ﴾ دلته د مصنف رحمه الله استاذ الاستاذ دوه دی، حماد بن زید او عبدالوارث، د دواړو الفاظ مختلف دی، په دې وجه مصنف رحمه الله هغوی ممتاز کوی چه مسدد د حماد نه چه کوم نقل کوی په هغې کښې دی ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ ﴾ او مسدد چه د عبدالوارث نه دا نقل کړې دې په هغې کښې په ځائې د ﴿ اللهم ﴾ لفظ د ﴿ اعوذ بالله ﴾ دې،

---

[1] او وئیلی شوی دی د خبث نه مراد خباثت یعنی فسق اوفجور او د خبائث نه مراد افعال ذمیمه او خصال ردیه.

ددې تشریح نه معلومه شوه چه د قال ضمیر د مسدد طرف ته راجع دې، وړاندې حدیث راروان دي د شعبة، څنګه چه حماد او عبدالوارث دواړه دا حدیث د عبدالعزیز نه روایت کوی، دغه شان شعبه هم دا حدیث دعبدالعزیز نه روایت کوی .د شعبه د روایت نه معلومه شوه چه دا د ﴿ اللهم ﴾ او د ﴿ اعوذبک ﴾ اختلاف خپله د عبدالعزیز د طرف نه دې، هغوی کله داسې وائی او کله هغه شان ، لهذا دا نه شی وئیلې کیدې چه په تیر روایت کښې چه د حماد او عبدالوارث کوم اختلاف بیان کړې شوې وو دهغې تعلق د هر یو تن یاد او حفظ سره وو ، یوته دغه شان یاد پاتې شو او بل ته هغه شان، بلکه دا په فهم کښې راغله چه خپله د استاذ نه دواړو طریقو سره نقل دی.

﴿ قوله وَقَالَ وُهَيْبٌ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ ﴾، د حدیث الباب دا څلورم طریق دې، او وهیب د عبدالعزیز شاګرد دې، هغوی حدیث اولټه کړو، مخکښې درې راویانو حدیث، حدیث فعلی ګرځولې وو ، یعنی د رسول الله ﷺ عمل ئې نقل کړو چه هغوی به داسې کول او دوی حدیث، حدیث قولی جوړ کړو ، یعنی د رسول الله ﷺ ارشاد چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا دعاء لوستل پکار دی، د وهیب روایت په ظاهر کښې تعلیقا دې ځکه چه ددې سند ابتدائی حصه مصنف رحمه الله نه ده ذکر کړې او دا هم احتمال دې چه د مصنف رحمه الله مراد دا وی چه ﴿ وقال وهیب ای بالسند المذکور ﴾ نو په دې صورت کښې به دا تعلیق نه وی بلکه حدیث موصول به وی.

[۶]([1])حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِبْنِ أَنَسٍ، عَنْ زَيْدِبْنِ أَرْقَمَ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ هَذِهِ الْحُشُوشَ مُحْتَضَرَةٌ، فَإِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ، فَلْيَقُلْ: أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ".

**ترجمه**: د زید بن ارقم رضي الله عنه نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ وئیلی دی: یقینًا دا بیت الخلاء د شیطانانو د حاضریدو ځایونه دی، چه کله یو کس ستاسو نه داخل شي خلاء ته نو اودي وائې «أعوذ بالله من الخبث والخبائث» زه د الله پناه غواړم د ناپاکه جناتو سړو او دناپاکه جناتو ښځونه".

**تشریح**: ﴿ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ ﴾ دا د دې باب دویم حدیث دې، په دې کښې د دعاء مذکور نه علاوه علت استعاذه بیان کړې شوې دې، او هغه دا چه بیوت الخلاء د شیطانانو د حاضریدلو محل دې، لهذا هغې ته د داخلیدو په وخت دالله تعالی نه استغاذه کول پکار دی، او بیوت الخلاء محتضر یعنی محل د حضور شیاطین ځکه دي چه هغه د ذکر الله نه خالی وی، چرته چه ذکر او د الله پاک نوم نه شی اخستلې هلته شیطانان ځان رارسوی، ددې نه معلومه شوه چه ذکر الله د شیطانانو نه د بچ کیدو ذریعه ده په کوم زړه کښې چه د الله پاک ذکر ننوځی هلته د شیاطینو تصرف زیات نه وی، د ترمذی د روایت نه معلومیږی کوم

[1]): سنن ابن ماجه/الطهارة ۹ (۲۹۶)، سنن النسائي/اليوم والليلة (۷۵، ۷۶)، (تحفة الأشراف: ۳۶۸۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۹/٤، ۳۷۳) (صحيح)

چه هغوی په کتاب الامثال کښې ذکر کړې دي چه د ذکر مثال د يو محفوظ او مضبوط قلعه په شان دې څنګه چه انسان د دشمنانو او ډاکوانو د تعاقب نه د يو مضبوطې قلعه په ذريعه په سهولت سره بچ کيدې شی هم دغه شان د شياطينو د اثراتو نه د ذکر په ذريعه بچ کيدې شی ګينې دوی څوک هم نه پريږدی

﴿ قوله إِنَّ هَذِهِ الْحُشُوشَ ﴾ دا د حُشّ په ضمې د حاء سره جمع ده او بعضو دا مثلث يعنی په حاء باندې درې واړه حرکتونه لوستلې دی. دا وئيلې شی د کهجورو هغه ګڼړو اونو ته چه په يو ځائې باندې ولاړې وی، چونکه عام طور سره انسان چه کله په ځنګل کښې وی نو د اونو شاته ګيناستلو سره استنجاء کوی په دې وجه حشوش وئيلو سره مجازا د قضاء حاجت ځائې مراد کولې شی.

دلته يو طالب علمانه اشکال کيدې شی، هغه دا چه ددې حديث نه معلوميږی چه د اونو لاندې ناسته کولو سره استنجاء کيدلې شی نو بيا به دا حديث د ﴿ اتقوا اللاعنين ﴾ حديث خلاف شی، کوم چه په روستو باب کښې راروان دې، چه په هغې کښې د خلقو د سورو په ځايونو کښې د استنجاء کولو نه ممانعت دې؟ ددې جواب به د هغه مقام تقرير کتلو سره حل شی. دلته صرف تنبيه اوکړې شوه.

ځان پوهه کړئ چه د زيد بن ارقم رضی الله عنه په دې حديث کښې اضطراب دې کوم چه امام ترمذی رحمه الله په خپل کتاب کښې په تفصيل سره بيان کړې دې. په دې اضطراب سره دا خبره هم معلومه شوه چه بعض راويانو دا حديث د انس رضی الله عنه طرف ته منسوب کړې دې او اکثر حضراتو زيد بن ارقم رضی الله عنه ته منسوب کړې دې او صحيح هم دا ده چه ددې راوی زيد بن ارقم دې، د انس رضی الله عنه طرف ته ددې نسبت وهم دې.

## بَابُ كَرَاهِيَةِ اسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ عِنْدَ قَضَاءِ الْحَاجَةِ

### باب دې په بيان د کراهيت د مخ کولو قبلې ته په وخت د قضاء حاجت کې

د خلاء د آدابو نه يو ادب دا دې کوم چه دلته ذکر کولې شی چه قضاء حاجت يعنی د بول او براز په وخت نه قبلې ته مخ کول پکار دی او نه شا کول په دې سلسله کښې مصنف رحمه الله دوه ابواب قائم کړی دی، په اول باب کښې ئې مطلقا د ممانعت روايات ذکر فرمائيلې دی، او ددې نه روستو په بل باب کښې ئې د جواز استقبال روايات بيان کړی دی. چونکه په ظاهره کښې په رواياتو کښې اختلاف دې په دې وجه په علماء کرامو هم اختلاف پيدا شو پس په دې کښې اته مذاهب مشهور دی.

**مذاهب الائمة فی مسئلة الباب:**

۱: المنع مطلقا ددې قائل احناف، ابن حزم ظاهری رحمه الله او بعض مالکيان دی لکه ابن العربی،

۲: الجواز مطلقا ددې قائل عروة بن الزبير رضی الله عنه، ربيعة الرأی، د امام مالک رحمه الله استاذ او داؤد ظاهری دی.

۳: الفرق بين الصحراء والبنيان يعنی صحراء کښې کراهت او په آبادو کښې دننه جواز بلکه په

صحراء کښې هم که یو څیز په مینځ کښې حائل شي نو جائز دې، دا د ائمه ثلاثه او اسحق بن راهویه مذهب دې.

۴ الفرق بین الاستقبال والاستدبار، یعنی استقبال مطلقا ناجائز او استدبار مطلقا جائز دې که صحراء وی او که آبادی، دا د امام ابوحنیفه رحمه الله او د امام احمد رحمه الله یو روایت دې.

۵ النهی للتنزیه، په استقبال او استدبار دواړو کښې کراهت تنزیهی دې، دا هم د امام ابوحنیفه رحمه الله او د امام احمد رحمه الله نه یو روایت دې.

۶ (صرف استدبار صرف بنیان): صرف استدبار صرف په آبادئ کښې جائز دې، باقی درې صورتونه یعنی استقبال فی البنیان، استقبال فی الصحراء، استدبار فی الصحراء دا درې واړه ناجائز دی، دا د امام ابویوسف رحمه الله یو روایت دې.

۷: النهی یشمل القبلتین، یعنی قبله منسوخه بیت المقدس او غیر منسوخه بیت الله شریف دواړو ته استقبال او استدبار ممنوع دې، دا د ابراهیم نخعی او ابن سیرین نه منقول دی.

۸: النهی یختص بأهل المدینة ومن علی سمتهم : چه د استقبال او استدبار ممنانعت صرف د اهل مدینه او د هغه خلقو دپاره دې چه د چا قبله هم هغه طرف ته ده کوم طرف ته چه د اهل مدینة ده او د اهل مدینه قبله د جنوب په طرف ده، دا قول نقل دې د ابوعوانه رحمه الله نه کوم چه د مزنی شاګرد دې.

دویم اختلاف دلته دا دې چه د منع علت څه دې؟ د جمهورو په نزد علت د منع احترام قبله دې چه د قضاء حاجت په وخت استقبال او استدبار کښې د قبلې بې حرمتی ده، او د شعبی په نزد احترام مصلین دې، یعنی په صحراء کښې چه کوم ملائک او پیریان مونځ کوی د هغوی د رعایت او احترام د وجې نه ممانعت دې، یو بل اختلاف دا دې چه په دې استقبال او استدبار کښې بې حرمتی د څه وجې نه ده؟ بعضو وئیلې دی د خروج نجاست د وجې نه، او بعض وائی چه د کشف عورت الی القبلة د وجې نه دې، لهذا په کومو څیزونو کښې چه خروج نجس یا کشف عورة موندلې شی نو د هغه کارونو په وخت به هم استقبال او استدبار ممنوع وی، پس په فصد او حجامة کښې خروج نجاست دې او وطی، ختان او استحداد کښې کشف عورة دې، لهذا ددې ټولو کارونو په وخت به هم استقبال مکروه وی او هسې خو زمونږ په نزد وطی مستقبل القبلة مکروه تنزیهی او تغوط مکروه تحریمی دې.

[۷]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَلْمَانَ، قَالَ: قِيلَ لَهُ: لَقَدْ عَلَّمَكُمْ نَبِيُّكُمْ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى الْخِرَاءَةَ، قَالَ: أَجَلْ، لَقَدْ "نَهَانَا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ، وَأَنْ لَا نَسْتَنْجِيَ بِالْيَمِينِ، وَأَنْ لَا يَسْتَنْجِيَ أَحَدُنَا بِأَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ، أَوْ نَسْتَنْجِيَ بِرَجِيعٍ أَوْ عَظْمٍ".

[1]: صحيح مسلم/الطهارة ۱۷ (۲٦۲)، سنن الترمذي/الطهارة ۱۲ (۱٦)، سنن النسائي/الطهارة ۳۷ (٤۱)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱٦ (۳۱٦)، (تحفة الأشراف: ٤٥٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤۳۷/٥، ٤۳۸، ٤۳۹) (صحيح)

**ترجمه**: روایت دی د سلمان رضی الله عنه نه هغه وائی، اووئیل شو هغه ته، یقیناً ښودلي دي تاسو ته ستاسو نبي هریو شی تر قضاء حاجت د طریقي پوري، هغه اووئیل آو، یقیناً مونږ منع کړي یو رسول الله ﷺ د مخ کولو نه قبلي ته په وخت د ډک اودس ماتي کښي او تش اودس ماتي کښي، او دا چه مونږ به استنجاء نه کوو په ښي لاس، او استنجاء به نه کوي یو کس زمونږ نه په کم د دریو کاڼړو نه، او یا مونږ استنجاء اوکړو په خوشایانو او یا په هډوکي باندي

**تشریح**: قوله ﴿ عَنْ سَلْمَانَ قَالَ قِيلَ لَهُ ﴾ د حدیث مضمون دا دي چه سلمان رضی الله عنه ته بعض خلقو اعتراضا اووئیل، او داسي ویونکی مشرکان وو، لکه چه د مسلم شریف او د ابن ماجه په روایت کښي دی ﴿ لَقَدْ عَلَّمَكُمْ نَبِيُّكُمْ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى الْخِرَاءَةَ ﴾ چه ستاسو نبی (ﷺ) عجیبه سړي دي چه تاسو ته د وړو وړو خبرو تعلیم درکوی تردي چه د قضاء حاجت طریقه درته هم ښائی، (آیا دا خبري د انبیاء (علیهم السلام) د بیانولو دی، د انبیاء کرامو تعلیمات خو ډیر اوچت کیدل پکار دی)

قوله :﴿ الْخِرَاءَةَ ﴾ د خاء په کسرې او فتحې دواړو سره جائز دې ددې معنی د قضاء حاجت ده، او په غائط یعنی فضله باندې هم ددې اطلاق کیږی بعضو په دې کښې د فتحې او د کسرې فرق کړې دې، په یو صورت کښې یو معنی او په بل صورت کښې بله معنی، بعضو وئیلې دی چه دواړه معنو کښې مشترک دی.

قوله :﴿ قَالَ أَجَلْ ﴾ سیدنا سلمان رضی الله عنه ددې اعتراض کونکی جواب ډیر په موثر انداز کښې ورکړو، یعنی جواب په طریقه د حکیم ئې اختیار کړو او دا ئې اوفرمائیل چه او .. بیشکه هم دغه شان ده لکه څنګه چه ته وائې، زمونږ نبی ﷺ مونږ ته واقعی د هر وړوکی او لوئې څیز تعلیم راکړې دې او د هر یو څیز آداب ئې راته ښودلې دی. مطلب دا چه دا خو د صفت خبره ده نه د اعتراض، د جواب علی اسلوب الحکیم مطلب دا وی چه د سائل د حال او موقع محل مطابق جواب ورکړې شی که هغه په سوال باندې منطبق کیږی او که نه لکه ﴿ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَهِلَّةِ قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ الاية ﴾ او ددې نه زمونږ د شریعت محمدیه مطهره جامعیت هم معلومیږی چه ددې تعلیمات څومره کامل او مکمل دی، او ولې به نه وی چه د الله پاک ارشاد دې ﴿ الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي ﴾ الاية... الحمد لله الذی هدانا للإسلام.

﴿ قوله وَأَنْ لاَ نَسْتَنْجِيَ بِالْيَمِينِ ﴾ دا لاء زائده ده لکه چه ښکاره ده، استنجاء بالیمین د شوافعو او حنابله په نزد مکروه تنزیهی ده او د اهل ظواهر په نزد حرام ده او د احنافو په نزد مکروه تحریمی ده.

**په استنجاء کښې مباحث اربعه :**

﴿ قوله : وَأَنْ لاَ يَسْتَنْجِيَ أَحَدُنَا بِأَقَلَّ مِنْ ثَلاَثَةِ أَحْجَارٍ ﴾ ځان پوهه کړه چه په استنجاء کښې څلور بحثونه دی، ۱: تحقیقه لغة، ۲: حکمه شرعا، ۳: عدد الأحجار، ٤: الاستنجاء بشئ نجس.

پس ځان پوهه کړه چه استنجاء ماخوذ ده د نجو نه د نجو معنی د غائط ده پس د استنجاء معنی شوه غسل مواضع النجو ومسحه چه مقعد لره وینځل یا په کاڼړي لوټې سره صفا کول.

دویم بحث د استنجاء حکم شرعی دې، پس دا مسئله مختلف فیه ده، د ائمه ثلاثه او داؤد ظاهری په نزد مطلقا واجب دی، او د احنافو په نزد سنت ده، هم دا یو روایت د امام مالک رحمه الله نه دې او دا هغه وخت دې چه نجاسة د مخرج نه متجاوز نه وو ګینې بیا زمونږ په نزد هم واجب ده [1]

دریم بحث هم اختلافی دې د احنافو او مالکیانو په نزد په استنجاء کښې ایتار بالثلاث ضروری نه دې، بلکه مقصود انقاء د محل ده د انقاء محل دپاره چه هر څومره احجار کافی شي دهغې استعمال ضروری دې، ابتداء هیڅ عدد متعین نه دې، د داؤد ظاهری رحمه الله هم دا مذهب دې سره ددې چه هغه ظاهری دې، او ددې بالمقابل د امام شافعی او احمد رحمهما الله په نزد ایتار بالثلاث واجب دې په سبیلین کښې د هر یو دپاره درې درې لوټې ضروری دی، او که یو کاڼړې د طرفونو والا وی یعنی دهغې ډیرې کنارې وی نو بیا د هغوی په نزد هر طرف قائم مقام د یو کاڼړي دې، پس که په یوه لوټه کښې درې اړخونه وی نو هغه د هغوی په نزد د دریو لوټو قائم مقام دې، په دلائلو باندې کلام به انشاء الله په باب الاستنجاء بالأحجار کښې راشي.

څلورمه مسئله هم مختلف فیه ده، د امام شافعی، احمد او اهل ظواهر په نزد په شئ نجس سره استنجاء ناجائز ده، او د احنافو په نزد په شئ نجس سره د استنجاء تحقق کیدې شی، په دې شرط چه د مقام إنقاء اوشی، او د مالکیانو مذهب هم تقریبا هم دا دې، لهذا په روث او رجیع سره به استنجاء د شوافعو او حنابله په نزد جائز نه وی او د احنافو او د مالکیانو په نزد به جائز وی خو مع الکراهة، خو دلته یو بل اختلاف دې هغه دا چه د امام مالک رحمه الله په نزد د ماکول اللحم څناور روث او رجیع پاک دی، صرف د غیر ماکول ګندګی د هغوی په نزد ناپاکه ده نو د هغوی په نزد د ماکول اللحم څناور په رجیع سره استنجاء کول جائز مع الکراهة دی، او د غیر ماکول رجیع اګر که کافی کیدې شی خو سره د حرمت نه ددې مسئلې دلائل په راتلونکی باب، باب ما ینهی عنه أن یستنجی به کښې به ذکر کړې شی.

په دې حدیث کښې د استنجاء ډیر آداب او مسائل راغلل خو د مصنف رحمه الله غرض صرف د

[1] اصل کښې د مخرج نه په زیاتی کیدو کښې تفصیل دې، که مقدار متجاوز د درهم نه کم وی نو دهغې ازاله مستحب ده او بغیر د ازالې نه مونځ مکروه تنزیهی دې، او که مقدار متجاوز بقدر الدرهم وی نو دهغې ازاله واجب ده او بغیر د ازالې نه به مونځ مکروه تحریمی وی او که مقدار متجاوز د یو درهم نه زیات وی نو دهغې ازاله فرض ده بغیر دهغې نه به مونځ صحیح نه وی،

یو جزء ﴿ لَقَدْ نَهَانَا –صلى الله عليه وسلم– أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ ﴾ سره متعلق دي.

**شرح السند**: ﴿ أَبُو مُعَاوِيَةَ ﴾ د هغوی نوم محمد بن حازم دي ﴿ الأَعْمَش ﴾ دا سليمان بن مهران دي، ﴿ عَنْ سَلْمَانَ ﴾ دا په معمرين صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې دې د هغوی د عمر په باره کښې دوه اقوال مشهور دی، ۳۵۰ کلونه او وئيلې شوې دی ۲۵۰ کلونه، خو حافظ په تهذيب التهذيب کښې د امام ذهبي رحمه الله قول نقل کړې دې چه ما د هغوی دعمر په باره کښې د خپل تير قول نه رجوع اوکړه او اوس زما رائې دا ده چه د هغوی عمر د اتيا کالو نه زيات نه وو، حافظ فرمائی چه هغوی سبب د رجوع نه دې بيان کړې

[۸]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ بِمَنْزِلَةِ الْوَالِدِ، أُعَلِّمُكُمْ، فَإِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الْغَائِطَ، فَلا يَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلا يَسْتَدْبِرْهَا وَلَا يَسْتَطِبْ بِيَمِينِهِ، وَكَانَ يَأْمُرُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ وَيَنْهَى عَنِ الرَّوْثِ وَالرِّمَّةِ".

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وائی چه وئيلی دي رسول الله صلى الله عليه وسلم، يقيناً زه ستاسو لپاره په شان د پلار يم زه تاسو ته ښايم هر شئ، کله چه يو کس ستاسو نه راشي ډک اودس ماتي ته نو قبلې ته دي مخ نه کوي، او نه دي ورته شا کوي، او نه دي استنجاء کوي په ښي لاس باندې، او وو چه امر به ئې کولو په درې کاڼرو، او منع به ئې کوله د خوشايانو نه او د هډوکي نه.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، قوله إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ بِمَنْزِلَةِ الْوَالِدِ ﴾ دا کلام په طور د تمهيد رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيلو ځکه چه وړاندې په کومو امورو باندې تنبيه فرمائی هغه هم دا قسم امور دی په کومو باندې چه بعض مشرکينو اعتراض کړې وو چه دومره وړې وړې خبرې بيانوی کومې چه په ماشومتوب کښې مور پلار ښائی، پس هم په دې وجه رسول الله صلى الله عليه وسلم دلته د مخکښې نه بيان کړه چه زه ستاسو دپاره په منزله د پلار يم.

په دې حديث کښې ﴿ بمنزلة الوالد ﴾ اوفرمائيلې شو ځکه چه په حقيقت کښې هغوی د امت پلار نه دې، هم په دې وجه په قرآن کريم کښې فرمائيلې شوې دی ﴿ مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِنْ رِجَالِكُمْ ﴾ او د رجال قيد په آيت کريمه کښې په دې وجه دې چه هغوی د خپلو لوڼړو والد وو اګرچه د هغوی مذکر اولاد هم پيدا شوې وو خو هغوی ټول په ماشومتوب کښې وفات شو، د رجوليت حد ته نه وو رسيدلی، په دې وجه هغوی د رجال والد نه دی، بهر حال په آيت کريمه کښې د ابوة حقيقی او نسبی نفی ده او دلته په منزلة الوالد وئيلې شوې دې، لهذا په آيت کريمه او حديث شريف کښې هيڅ تعارض نشته، آو اشکال په يو طريقه کيدې شی هغه دا چه په سورة احزاب کښې چرته چه ﴿ النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ

(): سنن النسائي/الطهارة ۳٦ (٤٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٦ (٣١٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٧، ٢٥٠) (حسن)

الاية ﴾ راغلې دي هلته په بعض قراءتونو کښې ﴿ وهو اب لهم ﴾ (او هغه خپله يعنی رسول الله ﷺ د مومنانو پلار دې) هم راغلې دي لکه چه په تفسير ابن کثير کښې ددې ذکر دې، نو په دې دوه آيتونو کښې به په ظاهره تعارض راشی، جواب ښکاره دې چه چرته د ابوة اثبات دې دهغې نه روحانی ابوة او تربيت مراد دې، او په دې کښې څه شک دې چه هغوی د امت روحانی پلار دې او په کوم آيت کريمه کښې چه نفی ده دهغې تعلق د حقيقی او نسبی ابوة سره دې.

قوله:﴿وَكَانَ يَأْمُرُ﴾ دلته راوی د کلام سياق او طرز تعبير بدل کړو لکه چه محسوسيږی هم، بعض وخت داسې کيږی چه چرته راوی ته د استاذ الفاظ په ښه طريقه ياد نه وی نو هلته د عبارت سياق بدلولو سره په خپلو الفاظو سره دهغې نه تعبير کوی.

قوله:﴿ عَنِ الرَّوْثِ وَالرِّمَّةِ ﴾ رمة يا خو جمع ده د رميم، زړو هډوکو ته رميم وائی، او وئيلې شوې دی چه دا مفرد دې د رميم په معنی، د استنجاء بالرميم ممانعت يا خو په دې وجه دې چه په دې کښې ملاست، يعنی غوړوالې وی چه په هغې سره د مقام انقاء په ښه طريقه نه کيږی، يا د زخمی کيدو د ويرې نه چه هغه ځائې خوږ نه کړی، او يا د نجاست د وجې نه که عظم ميتة مراد کړې شی، ځکه چه عظم ميتة د شوافعو په نزد ناپاک دې اګر که د احنافو په نزد پاک دی.

[۹](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ رِوَايَةً، قَالَ: "إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ وَلَا بَوْلٍ وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا، فَقَدِمْنَا الشَّامَ فَوَجَدْنَا مَرَاحِيضَ قَدْ بُنِيَتْ قِبَلَ الْقِبْلَةِ، فَكُنَّا نَنْحَرِفُ عَنْهَا وَنَسْتَغْفِرُ اللَّهَ".

**ترجمه**: د ابو ايوب رضي الله عنه نه روايت دی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی: کله چه راشئ تاسو ډک اودس ماتې ته نو مخ مه کوئ قبلې ته په غائطو سره او نه په بولو سره، ليکن مشرق ته مخ کړئ او يا مغرب ته، نو مونږ راغلو شام ته پس بيامونډلې مونږ ټټی چه جوړې شوې وې په طرف د قبلې، نو وو مونږ چه منحرف کيدلو به دهغې نه او استغفار به مو غوښتلو.

**تشريح**: قوله:﴿ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ رِوَايَةً إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ الخ ﴾ د روايةً نه مراد دې مرفوعا، تقدير د عبارت داسې دې رواية عن النبی ﷺ، دا د رفع حکمی د الفاظو نه دی هم دغه شان يرفع الحديث، يبلغ به، دا هم د رفع حکمی الفاظ دی يعنی دغه شان چه کوم حديث بيانولې شی هغه ته به حکما مرفوع وئيلې شی، اګر که راوی د رسو ل الله ﷺ تصريح نه کوی، ﴿ عَنْ أَبِي أَيُّوب ﴾ د هغوی نوم خالد بن زيد الانصاری دې، ﴿ أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ ﴾ ددې غائط نه مراد محل د قضاء حاجت دې او وړاندې لفظ ﴿ بالغائط ﴾ راروان دې دهغې نه مراد نجاست او فضله ده،

¹): صحيح البخاري/الوضوء ۱۱ (۱٤٤)، الصلاة ۲۹ (۳۹٤)، صحيح مسلم/الطهارة ۱۷ (۲٦٤)، سنن الترمذي/الطهارة ٦ (۸)، سنن النسائي/الطهارة ۲۰ (۲۱)، ۲۱ (۲۲)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۷ (۳۱۸)، (تحفة الأشراف: ۳٤۷۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القبلة ۱ (۱)، مسند احمد (٥/٤١٦، ٤١٧، ٤٢١)، سنن الدارمي/الطهارة ٦ (٦٩٢) (صحيح)

﴿ مَرَاحِيضَ ﴾ دا د مرحاض جمع ده، د رحض نه اخستلې شوې دې چه دهغې معنی د غسل یعنی وینځلو ده، ددې اطلاق په بیت الخلاء باندې کیږي، مرحاض، کنیف، خلاء، مذهب او خشوش کوم الفاظ چه په حدیث کښې راځی دا ټول یوه معنی لری

**مضمون د حدیث :**

د حدیث مفهوم دا دې چه ابوایوب انصاری رضی الله عنه فرمائی چه مونږ ملک شام فتح کولو سره هغې ته داخل شو نو هلته مونږ ډیر بیوت الخلاء داسې اولیدل چه د قبلې طرف ته جوړ کړې شوې وو (ځکه چه هغه د نصاری او د مشرکینو جوړې کړې شوې وې کوم چه په شام کښې د مخکښې نه آباد وو) نو بعض وخت به داسې کیدل چه مونږ به په تندئ کښې په غلطئ سره هغه بیوت الخلاء ته د قضاء حاجت دپاره لاړو، او بیا چه به هلته رسیدو سره پوهه شو نو زر به مو خپل رخ بدل کړو، یعنی هم په دې بیوت الخلاء کښې به مو رُخ بل طرف ته واړولو. او دا هم احتمال دې چه دا مراد وی چه مونږ به دې بیوت الخلاء ته د تلو نه پس د یادیدو نه پس د هغه ځائې نه راواپس کیدلو، په اول صورت کښې به ﴿ عنها ﴾ کښې ضمیر د قبلې طرف ته راجع وی او په دویم صورت کښې به د مراحیض طرف ته راجع وی

دا حدیث په کوم کښې چه ﴿ وَلٰكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا ﴾ ذکر دې، د ابوعوانه رحمه الله مستدل دې، د ابوعوانه رحمه الله مذهب مخکښې ذکر شو، جمهور دا وائی چه دا طریقه یعنی تشریق او تغریب، رسول الله صلی الله علیه وسلم د اهل مدینه په لحاظ فرمائیلې وو، ددې هم هغه حضرات مخاطب دی، په مدینه طیبه کښې د آستقبال او استدبار نه د بچ کیدلو شکل هم دا دې چه د مشرق یا مغرب طرف ته مخ کړې شی او که د جنوب طرف ته مخ کړی نو هلته استقبال قبلة راځی او د شمال طرف ته کولو سره استدبار قبله راځی، او زمونږ یعنی اهل هند په تغریب سره استقبال قبلة او تشریق سره استدبار قبله لازمیږي، مونږ دپاره ددې دواړو ځیزونو نه بچ کیدل ضروری دی، زمونږ په حق کښې که دا کلام وې نو داسې به فرمائیلې ولکن جنبوا أو شملوا، جنوب او شمال طرف ته استنجاء کوئ.

د ابوایوب انصاری رضی الله عنه دا حدیث د صحاح ستة روایت دې، د سند په اعتبار سره بالکل صحیح دې، هیڅ کلام پرې نشته، اودامطلقا د استقبال او استدبار په ممانعت باندې دلالت کوی، د صحرا او آبادئ په دې کښې هیڅ فرق نشته، لکه څنګه چه د احنافو مذهب دې.

**په دوؤ متعارض احادیثو کښې تطبیق :**

﴿ قوله فقدمنا الشام ﴾ مشهور روایت هم داسې دې او په صحیحین کښې هم دغه شان دی خو د نسائی او موطاء په روایت کښې د شام په ځائې مصر دې، اوس یا خو دې داسې اووئیلې شی چه کومه خبره دلته ده هغه ارجح ده یا دې د تعدد واقعه قول اختیار کړې شی چه په دواړو ځایونو کښې هم دا خبره پیښه شوې وه لکه څنګه چه حافظ عراقی رحمه الله فرمائیلې دی او په دې کښې هیڅ استبعاد نشته ځکه چه د ابوایوب انصاری رضی الله عنه په باره کښې دا راغلی دی چه ﴿ انه لزم الجهاد بعد رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس په مدینه کښې د قیام په ځائې دهغوی اکثر زمانه په جهاد او فتوحاتو کښې تیره شوه، تردې چه د هغوی

وفات هم په قسطنطنیه کښې د جهاد په سفر کښې اوشو، حال دا چه د هغوی کور د مسجد نبوی ﷺ سره بالکل متصل وو، او په ۹۳ هجری کښې چه کله مونږ حج ته تلی وو نو هلته مسجد نبوی ﷺ سره متصل یو کور باندې یو تختئ لګیدلې وه چه په هغې باندې ئې لیکلې وو بیت ابی أیوب الأنصاری ﷛، ما ددې خبرې نه ډیر عبرت واخستلو تاسو هم په دې سوچ اوکړئ چه هغوی د رسول الله ﷺ ګاونډ پریخودلو او د دین په نشر واشاعت کښې مشغول شو او د وطن مالوف مدینه منوره په ځائې په قسطنطنیه کښې وفات کیږی.

[۱۰]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى، عَنْ أَبِي زَيْدٍ، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ أَبِي مَعْقِلٍ الْأَسَدِيِّ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَتَيْنِ بِبَوْلٍ أَوْ غَائِطٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأَبُو زَيْدٍ هُوَ مَوْلَى بَنِي ثَعْلَبَةَ.

**ترجمه**: د معقل بن ابي معقل الاسدي نه روایت دې هغه وائی: منع کړې ده رسول الله ﷺ ددې نه چه مونږ مخ کړو دواړو قبلو ته په ډک اودس ماتې او یا تش اودس ماتې کښې، ابو داوٗد وایې: ابو زید مولی د بنو ثعلبه دې.

**تشریح**: قوله:﴿ عَنْ مَعْقِلِ بْنِ أَبِي مَعْقِلٍ الْأَسَدِيِّ الخ ﴾ دا صحابی ابن الصحابی ﷠ دې، او هغوی ته معقل بن ابی الهیثم هم وائی.

قوله:﴿ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَتَيْنِ ﴾ دا حدیث په مذاهب ثمانیه کښې د اووم مذهب دلیل دې چه دهغې ابراهیم نخعی او ابن سیرین ﷭ قائل دی.

**(د جمهورو د طرفه جوابونه)**:

جمهور ددې قائل نه دی ددې ډیر جوابونه کیدې شی، اول دا چه دا روایت ضعیف دې، د ابوزید راوی په باره کښې وئیلې شوې دی چه هغه مجهول دې، دویم جواب دا دې چه دا د هغه وخت خبره ده چه کله بیت المقدس قبله وه، روستو هغه منسوخ شوه او بیت الله قبله شوه نو راوی د روایت په وخت دوه حکمونو لره کوم چه په مختلفو اوقاتو کښې ورکړې شوې وو جمع کړل، او دریم جواب دا دې چه د بیت المقدس د استقبال ممانعت په دې وجه دې چه په مدینه منوره کښې استقبال بیت المقدس سره استدبار کعبه لازمیږی، او امام احمد ﷫ نه نقل دی چه هغوی اوفرمائیل چه دا روایت په حدیث بیت حفصه ﷝ د ابن عمر ﷠ باندې منسوخ دې، کوم چه په وړاندې باب کښې راروان دې.

[۱۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ ذَكْوَانَ، عَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ، ثُمَّ جَلَسَ يَبُولُ إِلَيْهَا، فَقُلْتُ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَلَيْسَ قَدْ نُهِيَ عَنْ هَذَا؟ قَالَ: بَلَى، "إِنَّمَا نُهِيَ عَنْ ذَلِكَ فِي الْفَضَاءِ، فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ شَيْءٌ يَسْتُرُكَ، فَلَا بَأْسَ".

**ترجمه**: د مروان بن الاصفر نه روایت دې هغه وائی: چه ما اولیدلو ابن عمر چه خپله اوښه ئې چو کړې وه مخامخ قبلې ته بیا کیناستلو متیازې ئې کولې هغې ته، نو ما اووئیل: اې

[۱]: سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۷ (۳۱۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۰/۴) (منکر)
[۲]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۴۵۱) (حسن)

أبو عبد الرحمن! آیا د دېنه نه منع نه ده شوې؟ نو هغه اووئیل آو، یقینًا د دېنه منع شوي ده په صحراء کښې، خو کله چه ستا او د قبلې په مینځ کښې څه شئ وی چه تا پناه کوي دهغې نه نو بیا پروا نه کوي.

**تشریح:** قوله ﴿ عَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ قَالَ رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ ﴾ یعنې یو ځل ابن عمر رضی الله عنهما خپله سورلئ د قبلې په طرف کینوله، او بیا دهغې نه روستو داسې کیناستلو چه هغه سورلئ باندې ئې ځان پټ کړو او بول ئې اوکړل، مروان الاصفر د هغوی نه تپوس اوکړو چه آیا ددې نه منع نه ده راغلې؟ ابن عمر رضی الله عنهما اوفرمائیل بیشکه منع راغلې ده، خو په فضاء او ښکاره میدان کښې چه کله یو څیز حائل نه وی، او که د استنجاء کونکی او قبلې ترمینځه یو څیز حائل وی نو بیا هیڅ باک نشته، او دلته ساتر موجود دې یعنې سورلئ، غالبا هغوی به سورلئ هم په دې وجه کینولې وی او دا هم احتمال دې چه کینولې ئې خو په دې غرض نه وه بلکه ځکه ئې کینولې وه چه هغوی هم هلته کوزیدل، خو ددې نه پس چه ئې کله متیازو کولو ته حاجت شو نو دا کار ئې ترې نه واخستلو.

## د احنافو د طرف نه د حدیث جوابات :

ځان پوهه کړه چه دا حدیث د باب د ټولو روایاتو او هم دغه شان د احنافو د مذهب خلاف دې ځکه چه په تیرو ټولو روایتونو کښې نهی مطلقا ذکر کړې شوې ده او دلته ئې صحابی ابن عمر رضی الله عنهما مقید فرمائی، اوس په دې تقیید کښې دوه احتمالونه دی یا خو هغوی د رسول الله ﷺ نه معلومولو سره دا خبره کړې ده، په دې صورت کښې خو ښکاره ده چه د هغوی دا خبره به حجت وی خو دویم احتمال دا دې چه دا خبره به هغوی په طریق د استنباط فرمائیلې وی او د استنباط ماخذ به ئې د بیت حفصه رضی الله عنها روایت وی کوم چه وړاندې راروان دې، واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال او د بیت حفصه والا روایت جوابات به مونږ هم هلته ورکوو

او یوه خبره بله هم ده کوم چه حضرت په بذل کښې په تحقیق سره بیان فرمائیلې ده چه په دې حدیث باندې اګرچه امام ابوداؤد رحمه الله بلکه منذری رحمه الله هم سکوت فرمائیلې دې خو ددې حدیث په سند کښې یو راوی حسن بن ذکوان دې هغه ضعیف دې، اکثر محدثینو د هغه تضعیف کړې دې، پس امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی ﴿ احادیثه اباطیل ﴾ چه د هغوی روایات غیر معتبر دی، چونکه دا حدیث د ائمه ثلاثه موافق دې په دې وجه هغوی د حسن بن ذکوان د تضعیف دا جواب ورکوی چه حسن بن ذکوان خو د صحیح بخاری په راویانو کښې دې، زمونږ د طرف نه جواب دا دې چه دا د بخاری په هغه راویانو کښې دې په چا باندې چه کلام کړې شوې دې، هم په دې وجه حافظ رحمه الله په مقدمه د فتح الباری کښې د هغه راویانو په فهرست کښې ذکر کړې دې په چا باندې چه کلام کړې شوې دې، دویمه خبره دا ده چه په بخاری کښې ددې راوی صرف یو روایت دې او هغه هم داسې د کوم چه شواهد موجود دی او هم ددې وجې نه امام مسلم او امام نسائی د هغه روایات نه اخلی، حاصل دا چه په دې باب کښې تر اوسه پورې چه څومره احادیث مرفوعه راغلی دی، په ټولو کښې ممانعت علی الاطلاق ذکر کړې شوې دې، او د باب په آخری صرف یو روایت کښې کوم چه

مرفوعا نه دي بلکه موقوفا دي په دې کښې ممانعت مقيدا دې مطلقا نه دې، که دا روايت سندا قوى هم وې نو بيا به هم د هغه روايات صحيحه مرفوعه په مقابله کښې معتبر نه وو، او اوس په داسې حال کښې چه دا سندا ضعيف هم دې نو څنګه معتبر کيدې شي.

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### باب دې په بيان د رخصت کې په دغې کې

په دې باب کښې د جواز استقبال روايات ذکر کول مقصود دى او دا هم وئيلې شي چه په ترجمې سره دې طرف ته هم اشاره فرمائى چه د منع روايات په عزيمت باندې محمول دى، او د ثبوت روايات په رخصت يا عذر وغيره باندې محمول دى، ګويا د جمع بين الروايات طرف ته اشاره اوشوه، ﴿ ذلک ﴾ کښې اشاره ترجمه سابقه طرف ته ده او په ترجمه سابقه کښې استقبال مذکور دې خو دلته په حديث الباب استقبال القبلة ذکر نه دې بلکه استدبار کعبه دې په دې وجه وئيلې به شى چه د ترجمې اثبات د حديث الباب نه په طريقه د قياس دې يعنى مصنف رحمه الله استقبال په استدبار باندې قياس کوى چه هر کله استدبار جائز دې نو استقبال هم جائز دې، او دا هم وئيلې شى چه په ترجمه سابقه کښې اګرچه صراحة صرف استقبال ذکر وو، خو هلته استقبال او دهغې مقابل استدبار هم مراد وو از قبيل، ﴿ سرابيل تقيکم الحر ﴾ په دې صورت کښې د قياس ضرورت نشته.

[۱۲]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: "لَقَدِ ارْتَقَيْتُ عَلَى ظَهْرِ الْبَيْتِ فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى لَبِنَتَيْنِ مُسْتَقْبِلَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ لِحَاجَتِهِ".

**ترجمه**: د عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وائى يقيناً زه اوختلم په چت د کور، نو ما رسول الله ﷺ اوليدلو په دوه خښتو باندې چه مخ کونکى وو بيت المقدس ته د خپل حاجت د وجې نه.

**تشريح**: ﴿ قوله: عَلَى ظَهْرِ الْبَيْتِ ﴾ او په بعض رواياتو کښې ﴿ بيتنا ﴾ او په بعضو کښې ﴿ بيت حفصة ﴾ ذکر دې، دا څه خاص اختلاف نه دې، حفصه رضي الله عنها د هغوى خور وه، د خور د کور نسبت ئې خپل طرف ته مجازا اوکړو، او خصوصا په دې وجه هم چه د خپلې خور دې يواځې وارث وو، او د حفصه رضي الله عنها طرف ته هم د کور نسبت د سکنى د وجې نه دې ګينې کور خو اصل کښې د رسول الله a ملک وو

د حديث حاصل دا دې چه عبد الله بن عمر i فرمائى چه يو ځل زه د خپلې خور حفصه k کور ته لاړم، او هلته د څه ضرورت د وجې په چهت اوختلم نو اومې کتل چه رسول الله a په دوه کچه ښختو باندې ناست دې او قضاء حاجت فرمائى، او هغه وخت د هغوى رخ د بيت

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ۱۲ (۱۴۵)، ۱۴ (۱۴۹)، صحيح مسلم/الطهارة ۱۷ (۲۶۶)، سنن الترمذي/الطهارة ۷ (۱۱)، سنن النسائي/الطهارة ۲۲ (۲۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۸ (۳۲۲)، (تحفة الأشراف: ۸۵۵۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القبلة ۲ (۳)، مسند احمد (۲/۱۲، ۱۳)، سنن الدارمي/الطهارة ۸ (۶۹۴) (صحيح)

المقدس طرف ته وو، او په مدینه طیبه کښې د بیت المقدس په استقبال سره د کعبې استدبار راځي، لهذا په دې حدیث سره استدبار قبله په وخت د قضاء الحاجة ثابت شو.

دلته په حدیث کښې یو سوال دې، چه دهغې طرف ته اوس مخکښې مونږ اشاره اوکړه، هغه دا چه ابن عمر رضي الله عنهما پورته تلو سره رسول الله ﷺ په داسې حالت کښې ولې اولیدو؟ جواب پورته راغلو چه هغوی قصدا د لیدلو دپاره نه وو ختلې، بلکه د خپل څه ضرورت د وجې نه ختلې وو، د علامه کرماني رحمه الله رائې دا ده چه کیدې شي هغوی قصدا او ارادة کتلې وی خو صرف د بدن پورته حصه به ئې لیدلې وی، او بیا ئې دهغې نه اندازه لګولې وی چه هغوی څنګه ناست دې او په دې حالت کښې قصدا کتل ګویا د علمی او د شرعی مصلحت د وجې نه وو، خو اکثر شارحینو لیکلې دی چه دا وجه بعید ده.

﴿ قوله عَلَى لَبِنَتَيْنِ ﴾ ددې نه یو ادب دا معلوم شو چه استنجاء په هواره زمکه باندې ناسته کولو سره نه دی کول پکار، ګینې د مقعد د تلوث ویره ده، پس هم ددې وجې نه امام بخاری رحمه الله په دې حدیث باندې باب تړلې دې باب من تبرز علی لبنتین.

## د احنافو د طرف نه د حدیث الباب جوابونه:

ځان پوهه کړه چه چونکه واقعه د آبادئ ده، په دې وجه حضرات ائمه ثلاثه ددې نه په خپل مسلک باندې استدلال کړې دې چه د قضاء حاجت په وخت استقبال او استدبار فی البنیان جائز دې، صرف په صحراء کښې منع دې، زمونږ د طرف نه ددې ډیر جوابونه کړې شوې دی.

۱: عموم الدعوی وخصوص الدلیل: یعنی د جمهورو دعوی عام ده چه استقبال او استدبار دواړه په آبادئ کښې جائز دی، او د حدیث الباب نه صرف جواز د استدبار معلومیږی، لهذا دعوی عام او دلیل خاص شو.

۲: توقف الاستدلال علی تقدم المنع: یعنی ددې حدیث نه د استدلال صحیح کیدل په دې باندې موقوف دی چه دا ثابت شی چه د منع روایات ددې نه مقدم دی، او دا نه شی ثابتیدلې، بلکه کیدې شی چه د منع روایات ددې نه روستو وی.

۳: ترجیح المحرم علی المبیح: یعنی هر کله چه په حرام او مباح کښې تعارض راشی نو حرام ته به ترجیح ورکولې شی، دلته تعارض دې، د بابِ اول روایات مطلقا په منع باندې دال دی، لهذا هم هغې ته به ترجیح حاصله وی.

۴: ترجیح المحرم علی الفعل: یعنی دا روایت فعلی دې اود منع روایت قولی دې قول ته په فعل باندې ترجیح وی.

۵: الفرق بین عین القبلة والجهة: یعنی اصل ممانعت د عین قبله د استقبال څخه دې، د جهت قبله نه نهٔ دې. او دلته دا کیدې شی چه رسول الله ﷺ د جهت قبلې طرف ته خو وو خو د عین قبلې نه منحرف وو.

۶: المعتبر الاستقبال بالفرج دون الصدر، یعنی دلته استقبال بالفرج معتبر دې نه استقبال بالوجه نو کیدې شی چه د رسول الله ﷺ سینه او مخ خو دې د قبلې طرف ته وی خو د فرج رخ بل طرف ته وی.

۷: النظر لفجائی لا یعتد به : یعنی د ابن عمر رضی الله عنهما دا نظر فجائی وو، لهذا په داسې نظر باندې مسئله شرعی نه شی بنا کیدې
هسې یو جواب دا هم کیدې شی چه د رسول الله ﷺ فضلات د اکثرو علماء کرامو په نزد پاک وو، نو په دې صورت کښې علت د منع نه دې موجود، حاصل دا چه دا د رسول الله ﷺ خصوصیت دې، احقر د رسول الله ﷺ د فضلات د طهارت په سلسله کښې د حضرت شیخ په حکم با... ې ډېر مواد اودمذاهب اربعه عبارات فقیهیه جمع کړې وو، درساله شیم الحبیب په اخیر کښې دا مضمون په طور د ضمیمه ملحق دې چه څوک کتل غواړی اودې گوری.

[۳]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْحَاقَ، يُحَدِّثُ، عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: "نَهَى نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ بِبَوْلٍ، فَرَأَيْتُهُ قَبْلَ أَنْ يُقْبَضَ بِعَامٍ يَسْتَقْبِلُهَا".

**ترجمه**: د جابر بن عبد الله رضی الله عنه روایت دې، هغه وائی منع کړې ده د الله نبي ﷺ د دېنه چه مونږ مخ کړو قبلې ته په بولو سره، نو ما اولیدلو مخکښې د وفات کیدو نه یو کال چه مخ ئې ورته کړې وو.

**تشریح**: ﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رضی الله عنهما﴾ سیدنا جابر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ د استنجاء په وخت د استقبال قبله نه منع فرمائیلې وه، خو ما هغوی د وفات نه یو کال مخکښې اولیدل چه هغوی مستقبل قبله بول کول.

د دې حدیث جواب دا دې چه ډیر علماء کرامو مثلا ابن عبدالبر ددې حدیث تضعیف کړې دې حافظ ابن القیم رحمه الله په تهذیب السنن کښې ډیر په تفصیل سره په دې باندې کلام کړې دې او ددې ضعف ئې ثابت کړې دې، او هغوی اوفرمائیل چه په دې کښې محمد بن اسحاق راوی دې، لا یحتج به فی الاحکام، او هغوی دا هم فرمائی چه دا د حکایة فعل لا عموم لها د قبیل نه دې، په خلاف د احادیث منع چه ډیر صریح او صحیح دی، بیا دا حدیث دهغې معارضه څنگه کولې شی، خو امام ترمذی رحمه الله ددې حدیث تحسین کړې دې او امام نووی رحمه الله په دې کښې توقف فرمائیلې دې.
اصل کښې د محمد بن اسحق په تعدیل او تجریح ک... ې ډیر اختلاف دې، په دې کښې خو هیڅ شک نشته چه هغه امام المغازی دې، د فن تاریخ او سیر امام دې، خو په حدیث کښې هم معتبر دې یا نه، په دې کښې اختلاف دې، شعبه وائی ﴿هو امیر المومنین فی الحدیث﴾ او امام مالک رحمه الله په هغوی باندې سخته جرح کړې ده، تر دې ئې فرمائیلې دی چه ﴿دجال من الدجاجله﴾ یعنی دهوکه باز دې، علامه عینی د هغوی د ثقاهت قائل دی، او هغوی د اکثرو علماء کرامو نه هم دا نقل کړی دی او هم دغه شان شیخ ابن الهمام رحمه الله هم فرمائی ﴿ثقة ثقة﴾. والله اعلم.

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ۷ (۹)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۸ (۳۲۵)، (تحفة الأشراف: ۲۵۷٤) (حسن)

## د مسلک احناف وجه الترجیح :

د منع روایات کوم چه په اول باب کښې تیر شوی دی، کوم چه د احنافو مستدل دی هغه ټول په ټوله قولی دی او په دې باب کښې مصنفرحمه الله صرف دوه روایات ذکر کړی دی، او هغه دواړه فعلی دی، د ائمه ثلاثه سره یو روایت قولی هم دې، کوم چه په مسند احمد او ابن ماجه کښې دې چه دهغې سند داسې دې، ﴿عن خالد بن ابی الصلت عن عراک بن مالک عن عائشة﴾ مضمون دهغې داسې دې چه عائشهرضي الله عنها فرمائی چه د رسول اللهﷺ مخکښې د داسې خلقو ذکر اوکړې شو څوک چه د قضاء حاجت په وخت کښې استقبال مکروه ګڼړی نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ استقبلوا بمقعدتی القبلة ﴾ چه که داسې وی نو بیا زما د قضاء حاجت د محل رخ دې د قبلې طرف ته کړې شی. دا حدیث په بیهقی او دارقطنی کښې دې، امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې ددې تحسین کړې دې، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه خالد بن ابی الصلت مجهول او ضعیف دې لکه چه په کتب رجال کښې دی، بلکه دا چه د خالد سماع د عراک نه ثابته نه ده هم دغه شان د عراک سماع د عائشېرضي الله عنها نه ثابت نه ده، کما قال البخاری واحمد، لهذا دا د هغه احادیث صحیحه په کومو کښې چه مطلقا ممانعت دې دهغې مقابله څنګه کولې شی.

## باب كَيْفَ التَّكَشُّفُ عِنْدَ الْحَاجَةِ

### باب دې په بیان د کیفیت د ځان ښکاره کولو کې په وخت د قضاء حاجت کې

[۱۴](1) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ رَجُلٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ حَاجَةً لَا يَرْفَعُ ثَوْبَهُ حَتَّى يَدْنُوَ مِنَ الْأَرْضِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَهُوَ ضَعِيفٌ، قَالَ أَبُو عِيسَى الرَّمْلِيُّ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بِهِ.

**ترجمه**: د ابن عمررضي الله عنهما نه روایت دې، یقیناً نبیﷺ وو چه کله به ئې اراده اوکړه د قضاء حاجت نو نه به ئې اوچتوله خپله جامه تردې چه زمکې ته به نزدې شو.

**تشریح**: په دې ترجمة الباب او حدیث الباب کښې یو نهایت لطیف ادب بیان کړې شوې دې. او دا ادب په یو قاعده باندې متفرع دې، هغه دا چه ﴿الضروری یتقدر بقدر الضرورة﴾، چه کوم کار د مجبورئ او ضرورت د وجې نه اختیار کړې شی هغه په قدر د ضرورت اختیارول پکار دی، هم دا ډیره احوط طریقه ده نو هم ددې سلسله دا باب دې چه انسان بیت الخلاء ته تلو سره د قضاء حاجت دپاره د بدن نه کپړه لرې کړی او عورت ښکاره کړی نو دا کپړه لرې کول او کشف عورة په تدریج سره د ضرورت مطابق کول پکار دی، ناڅاپه

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۹۲، ۸۵۹۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ۱۰ (۱٤)، سنن الدارمي/الطهارة (۶۹۳/۷) (صحيح)

پوره کېږه نه دی لرې کول پکار، پس په حديث الباب کښې دی چه رسول اللهﷺ به چه کله د قضاء حاجت اراده فرمائيله نو خپله کپړه به ئې نه اوچتوله تر څو چه به زمکې ته نزدې شوې نه وو.

فقهاء کرامو ليکلې دی چه بغير د ضرورت نه تعرى او کشف عورت په يواځې والی (خلوت) کښې هم جائز نه دې، لکه چه امام نووی او علامه شامی ددې تصريح کړې ده.

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ﴾ ددې حديث د سند مدار په اعمش باندې دې، د اعمش دلته دوه شاګردان دی، وکيع او عبدالسلام، د مصنف رحمه الله مقصود د تلامذه اعمش اختلاف بيانول دی، اختلاف دلته په دوؤ طريقو سره دې، اول دا چه د وکيع په روايت کښې اعمش او د صحابی ترمينځه د يو رجل مبهم واسطه ده، په خلاف د عبدالسلام د روايت چه هلته د صحابی او د اعمش ترمينځه واسطه نشته، دويم اختلاف دا دې چه وکيع ددې حديث راوی صحابی ابن عمر رضی الله عنهما ګرځولې دې، او عبد السلام انس رضی الله عنه، او ددې نه پس مصنف رحمه الله د حديث ثانی په باره کښې فرمائی وهو ضعيف.

د ضعف ظاهری وجه دا ده چه د اعمش سماع د انس رضی الله عنه نه ثابت نه ده، لهذا په دې سند کښې انقطاع ده، او په اول سند کښې واسطه موجود ده، خو واسطه د رجل مبهم ده په دې وجه هغې کښې هم ضعف راتلل پکار دی؟ دهغې جواب دا دې چه کيدې شی چه د مصنف رحمه الله په نزد به د رجل مبهم مصداق يو قوی راوی وی هم په دې وجه هغه د خپل ذاتی علم په بناء باندې هغه ته ضعيف نه دې وئيلې، اوس دا چه هغه رجل مبهم څوک دې؟ جواب د بيهقی د روايت نه معلوميږی چه هغه قاسم بن محمد دې، د حافظ ابن حجر او علامه سيوطی رحمه الله دواړو رائې هم دا ده، او د ابن قيم رائې دا ده چه ددې نه مراد غياث بن ابراهيم دې، خو دا په دې وجه صحيح نه ده چه هغه ضعيف دې که دهغې مصداق د مصنف رحمه الله په نزد غياث بن ابراهيم وې نو په حديث اول باندې به ئې هم د ضعف حکم لګولې وې.

دا چه پورته راغلل چه د اعمش سماع د انس رضی الله عنه نه ثابته نه ده، د جمهورو رائې هم دا ده چه د اعمش سماع نه د انس رضی الله عنه نه ثابت ده نۀ د بل يو صحابی رضی الله عنه نه، خو په دې کښې د ابونعيم اصفهانی اختلاف دې لکه چه منذری ليکلې دی، د هغوی رائې دا ده چه اعمش انس بن مالک او عبد الله بن ابی اوفی رضی الله عنهما ليدلې دی، او ددې دواړو نه ئې اوريدل هم ثابت دی، منذری وائی دا خلاف مشهور خبره ده.

**فائده** : ځان پوهه کړه چه دا حديث هم په دې دوؤ سندونو سره په ترمذی شريف کښې هم دې، خو امام ترمذی رحمه الله په دواړو احاديثو باندې د مرسل يعنی منقطع کيدو حکم لګولې دې چه دهغې وجه دا ده چه د ترمذی په روايت کښې وکيع او د عبدالسلام د دواړو په سند کښې انقطاع ده، په دواړو ځايونو کښې د اعمش او د صحابی ترمينځه واسطه ذکر نه ده نو په دې صورت کښې د امام ترمذی رحمه الله په دواړو باندې کلام کول صحيح شو، د ترمذی د سند تقاضه هم دا ده چه دواړه دې ضعيف شی

## بَابُ كَرَاهِيَةِ الْكَلَامِ عِنْدَ الْحَاجَةِ

### باب دې په بيان د کراهيت د خبرو کې په وخت د قضاء حاجت کې

د قضاء حاجت په وخت بغير د ضرورت او مجبورئ نه خبرې کول خلاف أدب دی، مکروه تنزيهی دي، خو که ورسره بل څه قباحت هم شامل شی مثلاً، کشف عورت د بل چا په مخکښې لکه چه په حديث الباب کښې دی نو په دې صورت کښې به يقيناً کراهت تحريمی وی

[د]( )حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ عِيَاضٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سَعِيدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا يَخْرُجِ الرَّجُلَانِ يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ كَاشِفَيْنِ عَنْ عَوْرَتِهِمَا يَتَحَدَّثَانِ، فَإِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَمْقُتُ عَلَى ذَلِكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: هَذَا لَمْ يُسْنِدْهُ إِلَّا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ.

**ترجمه**: روايت دی د ابو سعيد نه، هغه وائی: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه هغه به ويل نه اوځي دوه سړي چه کوي ډک اودس ماتی چه ښکاره کونکي وي د عورت خپل او خبرې کوي، يقيناً الله تعالى غصه کيږي په دې باندې

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنِي أَبُو سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ الخ ﴾، ﴿ قوله لَا يَخْرُجُ الرَّجُلَانِ ﴾ ظاهره دا ده چه دا د نهی صيغه ده،لهذا دادې د جيم په کسرې سره اولوستلې شی،اوکه مضارع منفی ورته اووئيلې شی نو بيا به مرفوع وی، ﴿ يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ ﴾ ضرب الغائط کنايه وی د قضاء حاجت نه

د حديث الباب مضمون دا دې چه نه دی پکار دوه کسانو له چه هغوی دې يو ځائې د قضاء حاجت دپاره لاړ شی، او بيا د قضاء حاجت په وخت يو بل ته عورت ښکاره کړی، او خبرې هم کوی، ځکه چه الله پاک په داسې کار باندې سخت ناراضه کيږی، د ابن ماجه په روايت کښې په دې حديث کښې د ﴿ ينظر احدهما الى عورة صاحبه ﴾ زيادت دې

په دې حديث کښې مَقت يعنی شدت بغض وغضب په مجموعه فعلين يعنی تحدث عند قضاء الحاجة او کشف عورت عند الآخر باندې مرتب کولې شی، په دې کښې زيات سخت خيز کوم ته چه حرام وئيل پکار دی هغه کشف عورة عند الآخر دې، او پاتې شوه مسئله د خبرو کولو نو دا مکروه تنزيهی ده، خو علامه شوکانی ددې حديث د لاندې ليکی چه ددې حديث مقتضی دا ده چه د قضاء حاجت په وخت کلام کول حرام وی، ځکه چه مقت يعنی د شدت بغض وغضب ترتب صرف په مکروه خيز باندې نه شی کيدې، خو د هغوی دا استنباط صحيح نه دې لکه چه مونږ بيان کړه يعنی کوم حکم چه په دوه بيلو بيلو کارونو باندې مرتب کيږی هغه بيل بيل په هر يو باندې څنګه مرتب وئيلې کيدې شی، دا خبره حضرت په بذل کښې ليکلې ده

قوله ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا لَمْ يُسْنِدْهُ إِلَّا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله ددې حديث په سند کښې چه کوم علت غامضه خفيه دې هغه ظاهروی، علماء کرامو ليکلې دی چه په

( ): سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٤ (٣٤٢)، (تحفة الأشراف: ٤٣٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٦) (صحيح لغيره) (الصحيحه: ٣١٢٠، وتراجع الألباني: ٧،٥)

معرفت علل يعني په اسانيد كښې چه كوم باريک او پټ نقائص وى د هغې معلومول د علم حديث د انواعو نه يو نوع دې، د معرفت علل مطلب دا دې چه د يو حديث سند په ظاهر كښې برابر او رشتينې دې په ظاهره په هغې كښې هيڅ قابل اشكال خبره نشته خو فى الواقع په هغه سند كښې يو باطنى بيمارى ده په كوم باندې چه ددې فن لوئې امامان پوهيږى، لكه دراقطنى، امام ابوحاتم رازى، امام بخارى، امام نسائى وامثالهم. نو باطنى بيمارى په دې سند كښې كوم چه مصنف رحمه الله بيانول غواړى، دا ده چه دا حديث د يحيى بن ابى كثير نه د عكرمه نه علاه بل چا مسندا نه دې روايت كړې، پس د يحيى بن ابى كثير دويم شاګرد امام اوزاعى رحمه الله دې هغه دا حديث په ځائې د مسند مرسلا روايت كوى، د هغوى روايت په بيهقى كښې داسې دې، ﴿ عن الاوزاعى عن يحيى بن أبى كثير، قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾ اوګورئ دا حديث په دې طريق سره مرسل دې ځكه چه صحابى دلته نه دې ذكر شوې نو حاصل دا شو چه بعض راويان دې حديث لره مسندا او بعض مرسلا نقل كوى، او دا هغه اضطراب دې چه دهغې په وجه باندې په حديث كښې ضعف راغلو، او په دې اضطراب باندې اطلاع ښكاره ده چه په تتبع د طرقو سره اوشوه، د مصنف رحمه الله په ذهن كښې چونكه نور طرق وو په دې وجه ئې دا مسئله معلومه كړه او تنبيه ئې اوفرمائيله

## بَابُ أَيَرُدُّ السَّلَامَ وَهُوَ يَبُولُ

### باب دې په بيان ددې كې چې آيا جواب د سلام وركولې شى په حالات د بولو كولو كې؟

دا ترجمه زمونږ په نسخه كښې هم دغه شان ده، لهذا دلته به حرف استفهام محذوف منل پكار وى او په بعض نسخو كښې حرف استفهام مذكور دې داسې، ايرد السلام وهو يبول، يعنى كه يو سړې متيازې كوى او بل هغه ته سلام اوكړى نو په دې حالت كښې به د سلام جواب وركوى او كه نه؟ د حديث الباب نه معلومه شوه چه په داسې حالت كښې جواب نه دى وركول پكار، او وجه ددې ښكاره ده چه دا حالت د كشف عورت حالت دې. او د كشف عورت په حالت كښې مطلق خبرې كول هم مكروه دى، لا پاتې خو سلام او ذكر الله، كه روستو جواب وركړى نو دا د هغه تبرع او احسان دې واجب نه دى.

ځنګه چه جواب د سلام په دې حالت كښې مكروه دې خپله سلام كول هم مكروه دى. اوس دلته مناسب دى چه دا معلومه شى چه په كومو حالاتو كښې سلام كول مكروه دى. پس حضرت په بذل كښې دا مضمون د در مختار نه نقل كړې دې، كوم چه په نظم كښې دې پس هغه دې اوكتلې شى [1]

---

[1] د لوستونكو د سهولت دپاره هغه اشعار دلته نقل كول شى.

سَلَامُكَ مَكْرُوهٌ عَلَى مَنْ سَتَسْمَعُ :: وَمَنْ بَعْدَ مَا أَبْدِي يُسَنُّ وَيُشْرَعُ
مُصَلٍّ وَتَالٍ ذَاكِرٍ وَمُحَدِّثٌ :::::: خَطِيبٌ وَمَنْ يُصْغِيَ إِلَيْهِمْ وَيَسْمَعُ
مُكَرِّرُ فِقْهٍ جَالِسٌ لِقَضَائِهِ :::::: وَمَنْ بَحَثُوا فِي الْفِقْهِ دَعْهُمْ لِيَنْفَعُوا
مُؤَذِّنٌ أَيْضًا أَوْ مُقِيمٌ مُدَرِّسٌ :::::::: كَذَا الْأَجْنَبِيَّاتُ الْفَتِيَّاتُ امْنَعْ
وَلُعَّابُ شِطْرَنْجٍ وَشِبْهٌ بِخُلْقِهِمْ :::::::: وَمَنْ هُوَ مَعَ أَهْلٍ لَهُ يَتَمَتَّعُ
وَدَعْ كَافِرًا أَيْضًا وَمَكْشُوفَ عَوْرَةٍ : وَمَنْ هُوَ فِي حَالِ التَّغَوُّطِ أَشْنَعُ

[۴] ()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ، وَأَبُو بَكْرٍ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "مَرَّ رَجُلٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُولُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَغَيْرِهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، تَيَمَّمَ ثُمَّ رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلَامَ.

**ترجمه:** د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دې، هغه وائي: تیر شو یو سړی په نبي ﷺ باندې او هغه متیازې کولې، نو سلام ئې واچولو په هغه باندې نو جواب ئې ورنه کړو.

**تشریح:** قوله: ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ وَأَبُو بَكْرٍ مَرَّ رَجُلٌ الخ ﴾ د وړاندې حدیث نه معلومیږی چه مهاجرین قنفذ سلام کړې وو نو کیدې شی چه دا رجل مبهم هم هغه وی او کیدې شی چه ابوالجهیم بن الحارث وی لکه چه د مشکوة په روایت کښې د هغوی د نوم تصریح ده، او د ابوالجهیم روایت په ابوداؤد کښې هم په ابواب التیمم کښې راروان دې او کیدې شی چه بل څوک وی قطعی طور سره تعیین نه شی کیدلې چه دا څوک دې؟ خو د هغوی په تعیین نه کیدو باندې په روایت باندې هیڅ اثر نه پریوځی.

حاصل دا چه دا صحابی رضي الله عنه په رسول الله ﷺ باندې ورتیر شو په داسې حال کښې چه هغوی اودس ماتې کولو هغوی رسول الله ﷺ ته سلام اوکړو نو هغوی د سلام جواب ورنکړو ددې روایت نه خو هم دا معلومیږی چه رسول الله ﷺ د سلام جواب ورنکړو، په بل روایت کښې دی ﴿ ثُمَّ رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلَامَ ﴾ که دواړه بیل بیل واقعات وی نو هیڅ اشکال پکښې نشته او که یوه واقعه وی لکه چه د حضرت سهارنپوری رجحان دې طرف ته دې نو په دې صورت کښې به د ﴿ فلم یرد ﴾ معنی دا وی چه فورا ئې جواب ورنکړو، بلکه بعد التیمم ئې جواب ورکړو.

یوه مسئله دلته دا ده چه استنجاء بالحجر کونکی ته سلام اوکړې شی نو هغه جواب ورکولې شی او که نه، نو په دې کښې اختلاف دې په عرف شذی کښې دا لیکلې دی چه د حضرت گنگوهی رحمه الله رائې دا ده چه جواب ورکول جائز دی، او د مولانا مظهر نانوتوی رائې دا ده چه جائز نه دی.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَغَيْرِهِ ﴾ ځان پوهه کړه چه په دې باب کښې چه مصنف رحمه الله کوم روایت موصولا ذکر فرمائیلې دې هغه هم د ابن عمر دې، اوس دلته چه د ابن عمر رضي الله عنهما روایت تعلیقا ذکر کوی هغه وړاندې په ابواب التیمم کښې راروان دې او د مصنف رحمه الله په کلام کښې په غیره سره د ابوالجهیم روایت طرف ته اشاره ده او دا روایت هم په ابواب التیمم کښې راروان دې، خو په بذل کښې حضرت د عنده مصداق ابن عباس رضي الله عنهما لره لیکلې دې، خو واضحه دې وی چه وړاندې په ابواب التیمم کښې د ابن عمر رضي الله عنهما د روایت نه علاوه چه بل کوم روایت راروان دې، هغه د ابوالجهیم دې، د ابن عباس رضي الله عنهما نه دې.

اوس پاتې شوه دا خبره چه د مصنف رحمه الله غرض په دې کلام سره څه دې، نو په دې

(): صحيح مسلم/الحيض ۲۸ (۳۷۰)، سنن الترمذي/الطهارة ۶۷ (۹۰)، الاستئذان ۲۷/۲۷۲۰)، سنن النسائي/الطهارة ۳۳ (۳۷)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۲۷ (۳۵۳)، (تحفة الأشراف: ۷۶۹۶) (حسن)

کښې دوه احتمالونه دی، یو دا چه مصنف رحمه الله دا وئیل غواړی چه په دې روایت کښې اختصار واقع شوې دې، نور روایات کوم چه مفصل دی، په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ د تیمم نه پس جواب ورکړو ،دویم احتمال په غرض دمصنف کښې دادې چه ددې روایت نه خو دا معلومیږی چه رسول الله ﷺ د سلام جواب ورنکړو، خو په یوه بله موقع باندې چه کله هم دا خبره راپیښه شوه نو رسول الله ﷺ د سلام جواب د تیمم کولو نه پس ورکړو، ګویا قصې متعدد دی.

## د عبادات فائتة لا الی خلف دپاره د تیمم جواز:

﴿ قوله : تَيَمَّمَ ثُمَّ رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلاَمَ ﴾ د متیازو نه د فارغیدو نه پس د سلام جواب ورکول جائز دی، خو چونکه په سلام کښې د الله پاک ذکر دې او ذکر الله په طهارت سره افضل دې په دې وجه رسول الله ﷺ فورا تیمم کولو سره د سلام جواب ورکړو.

د دې نه امام طحاوی رحمه الله استدلال کړې دې چه کوم عبادات فائتة د لا الی خلف د قبیلې نه وی، یعنی د کومو عباداتو د فوت کیدو نه پس چه قضاء نشته، مثلا صلوة الجنازة، صلوة العیدین، دهغې اودس کولو سره د ادا کولو په صورت کښې که د فوت کیدو ویره وی نو د اوبو په موجودګئ کښې فورا تیمم کولو سره هغه عبادات ادا کولې شی، دا د احنافو مسلک دې، ائمه ثلاثه ددې قائل نه دی، هم په دې وجه امام نووی رحمه الله ددې حدیث توجیه داسې کړې ده چه د رسول الله ﷺ دا تیمم کول د اوبو دنشتوالی د وجې نه وو خو دا خبره د ظاهر خلاف ده ځکه چه دا د مدینې واقعه ده، او په آبادئ کښې خو اوبه وی.

[۱۷](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ حُضَيْنِ بْنِ الْمُنْذِرِ أَبِي سَاسَانَ، عَنِ الْمُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ، أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُولُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتَّى تَوَضَّأَ، ثُمَّ اعْتَذَرَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: "إِنِّي كَرِهْتُ أَنْ أَذْكُرَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ إِلاَّ عَلَى طُهْرٍ، أَوْ قَالَ: عَلَى طَهَارَةٍ".

**ترجمه**: د مهاجر بن قنفذ نه روایت دې، دغه راغی نبي ﷺ ته او هغه متیازې کولې نو سلام ئې اوکړو هغه ته، نو جواب ئې ورته ورنکړو تردې چه اودس ئې اوکړو، بیا ئې اعتذار پیش کړو هغه ته، نو وئې وئیل: یقینا ما بد ګڼړل چه د الله تعالی ذکر اوکړم مګر په پاکۍ باندې، او یایې اووئیل: (د طهر په ځائې باندې طهارة).

**تشریح**: قوله:﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى.... وَهُوَ يَبُولُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ ﴾ روایات په دې باره کښې مختلف دی، چه رسول الله ﷺ ته په کوم حالت کښې سلام کړې شوې دې، ددې حدیث نه معلومیږی چه د عین بول کولو په وخت کړې شوې دې، د نسائی په روایت کښې هم دغه شان دی، ﴿ وهو يبول ﴾ او د مسند احمد په روایت کښ، ﴿ كان يبول او قد بال ﴾په شک د راوی سره دې، خو په ابن ماجه کښې دی، ﴿ وهو يتوضا ﴾ یعنی د اودس کولو په وخت ئې

(1): سنن النسائي/الطهارة ٣٤ (٣٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٧ (٣٥٠)، (تحفة الأشراف: ١١٥٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٠/٥)، سنن الدارمي/الاستئذان ١٣ (٢٦٨٣) (صحيح)

سلام کړې دې، اوس یا خو به دا د ابن ماجه روایت مرجوح اوګرځولې شی چه د اکثرو روایاتو خلاف دې، یا دې هغه توجیه اوکړې شی کومه چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې د شیخ شاه عبدالغنی صاحب رحمه الله نه نقل فرمائیلې ده، هغه دا چه راوی دلته د استعارې نه کار اخستلې دې چه مسبب وئیلو سره ئې سبب مراد کړې دې یعنی سبب الوضوء وهو البول.

﴿ قوله : إِنِّي كَرِهْتُ أَنْ أَذْكُرَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ إِلاَّ عَلَى طُهْرٍ ﴾ رسول الله ﷺ ارشاد فرمائی چه ما بغیر د طهارة نه د الله پاک نوم اخستل غوره او نه ګنړل، ځکه چه سلام د الله پاک په نومونو کښې یو نوم دې، په قرآن کریم کښې دی ﴿ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الآية ﴾ او په الادب المفرد کښې د انس رضی الله عنه حدیث دې مرفوعا، ﴿ السلام اسم من اسماء الله تعالی ﴾.

دلته یو اشکال دا واردیږی چه د رسول الله ﷺ دا ارشاد د هغه حدیث عائشه رضی الله عنها خلاف دې کوم چه وړاندې په بل باب کښې راروان دې ﴿ کان یذکر الله علی کل احیانه ﴾ په ظاهر کښې تعارض معلومیږی؟ ددې څو جوابونه کیدې شی. ۱: حدیث الباب په اولویت باندې محمول دې، او د عائشې رضی الله عنها حدیث په جواز باندې. ۲: د عائشې رضی الله عنها په حدیث کښې د ذکر نه مراد ذکر قلبی دې او دلته ذکر لسانی فلا منافاة. ۳: علی کل احیانه. کښې احیانه ضمیر رسول الله ﷺ ته راجع نه دې، بلکه د ذکر طرف ته راجع دې او معنی به دا وی، کان یذکر الله عزوجل فی احیان الذکر، یعنی هغه ټول اوقات چه په هغې کښې ذکر مناسب دې، په هغې کښې به رسول الله ﷺ ذکر فرمائیلو په دې صورت کښې هیڅ اشکال پاتې نه شو، دا جواب علامه سندهی کړې دې.

دلته یو بل اشکال دا دې چه د بیت الخلاء نه د وتلو په وخت د رسول الله ﷺ نه بعض دعاګانې منقول دی، او ظاهره ده چه هغه دعاګانې به بغیر د طهارت نه لوستلې شی، او د حدیث الباب نه په حالت غیر طهارت کښې د ذکر الله کراهت معلومیږی؟ ددې جواب دا دې چه د اذکارو دوه قسمونه دی، یو اذکار مطلقه چه په هغې کښې د څه خاص وخت تعیین نشته، دویم اذکار مخصوصه موقتة چه په هغې کښې د یو خاص وخت تعین ملحوظ وی، پس د اذکار مخصوصه موقتة دپاره ضروری ده چه په هغه اوقاتو کښې اولوستلې شی که طهارت وی او که نه وی، او کوم اذکار چه مطلقا دی د هغې دپاره به البته اولی دا وی چه په طهارت سره وی.

..........

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَذْكُرُ اللَّهَ تَعَالَى عَلَى غَيْرِ طُهْرٍ

**باب دې په بيان د سړي کې چې د الله ذکر کوي بغير د پاکۍ نه**

[١٨]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ خَالِدِ بْنِ سَلَمَةَ يَعْنِي الْفَأْفَاءَ، عَنِ الْبَهِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى كُلِّ أَحْيَانِهِ".

**ترجمه:** د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې، هغې وئيلى دى: وو رسول الله ﷺ چه د الله ذکر به ئې کولو په ټولو حالاتو کښې.

**تشريح:** د مصنف رحمه الله عادت دا دې چه هغوى کله کله داسې هم کوى چه د باب په اخير کښې که يو داسې روايت راشى چه دهغې خلاف بل روايت وى نو مصنف رحمه الله دا مخالف باب فورا په بل روايت کښې ذکر کوى چه هغه روايت لره ملحوظ ساتلو سره دهغې جواب باندې سوچ اوکړې شى. پس دلته د تير باب په اخير کښې د رسول الله ﷺ ارشاد نقل شو ﴿انى كرهت ان اذكر الله﴾ حال دا چه د عائشي رضي الله عنها روايت دهغې خلاف دې، په دې وجه مصنف رحمه الله دا باب قائم کړو او د عائشي رضي الله عنها حديث ئې ذکر کړو، ګينې ظاهره ده چه ددې ترجمة الباب تعلق د سياق او سباق چه کوم ابواب شروع دى يعنى ابواب الاستنجاء سره نشته، په دې باب کښې مصنف رحمه الله چه کوم حديث ذکر فرمائيلې دې په دې باندې کلام په تيرو ابوابو کښې تير شوې دې.

## بَابُ الْخَاتَمِ يَكُونُ فِيهِ ذِكْرُ اللَّهِ يَدْخُلُ بِهِ الْخَلَاءَ

**باب دې په بيان د ګوتمې کې چې په هغې کې د الله ذکر وي چې ننويستلى شي بيت الخلاء ته**

[١٩]([2]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِي عَلِيٍّ الْحَنَفِيِّ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ وَضَعَ خَاتَمَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ، وَإِنَّمَا يُعْرَفُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ ثُمَّ أَلْقَاهُ وَالْوَهْمُ فِيهِ مِنْ هَمَّامٍ، وَلَمْ يَرْوِهِ إِلَّا هَمَّامٌ.

**ترجمه:** د انس رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وائى: وو نبي ﷺ چه کله به داخل شو بيت الخلاء ته نو کيخودله به ئې ګوتمه خپله.

**تشريح:** د اداب استنجاء بيان شروع دې، مصنف رحمه الله فرمائى چه ددې ټولو ادابو نه يو ادب دا دې چه که چا ګوتمه اچولې وى چه په هغې کښې د الله پاک يا د رسول الله ﷺ نوم وى نو هغه دې بيت الخلاء ته د تلو نه مخکښې بهر کيخودلې شى.

پس په حديث الباب کښې سيدنا انس رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله ﷺ به کله هم بيت

---

[1]: صحيح البخاري/الأذان ١٩ (٦٣٣) تعليقًا، صحيح مسلم/الحيض ٣٠ (٣٧٣)، سنن الترمذي/الدعوات ٩ (٣٣٨٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١ (٣٠٢)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٧٠، ١٥٣) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/ اللباس ١٦ (١٧٤٦)، الشمائل ١١ (٨٨)، سنن النسائي/الزينة ٥١ (٥٢١٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١ (٣٠٣)، (تحفة الأشراف: ١٥١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٩٩، ١٠١، ٢٨٢) (منكر)

الخلاء ته د داخلیدو اراده فرمائیله نو خپل خاتم به ئې بهر کیخودلو او دا په دې وجه چه د هغوی په ګوتمه کښې محمد رسول الله لیکلې شوې وو، په دې کښې د ګوتمې هیڅ تخصیص نشته، بلکه هر هغه څیز یا کاغذ چه په هغې کښې د الله پاک نوم لیکلې شوې وو، مثلا دراهم او دنانیر سره به هم دا معامله کولې شی بلکه که د ذکر الله نه علاوه مطلق حروف هم په هغې کښې لیکلې شوې وی که هغه هر څنګه وی نو بیا به هم داسې کولې شی، ځکه چه حروف د الله پاک د کلام او د اسماؤ ماده ده په دې حیثیت سره مطلق حروف هم قابل احترام دی، لکه چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې لیکلې دی.

دلته یو طالبعلمانه سوال پیدا کیږی هغه دا چه مصنف رحمه الله فرمائی: ﴿ باب الخاتم یکون فیه ذکر الله ﴾ په خاتم کښې ذکر الله کوم دې، ذکر خو د ذاکر صفت دې او د هغه سره قائم دې؟ ددې جواب دا دې چه دلته د ذکر نه مراد هغه الفاظ دی کوم چه په ذکر باندې دال دی، په دې باندې هم هغه اشکال واردیږی چه الفاظ خو د لافظ په ژبه کښې دی، نه په خاتم یا کاغذ کښې؟ بیا به هم دا وئیلې شی چه د الفاظو نه مراد زمونږ هغه نقوش او د حروفو شکلونه دی کوم چه په الفاظو باندې دال دی، ځان پوهه کړه چه نقوش په الفاظو باندې دلالت کوی او الفاظ په معانی باندې نو ګویا درې څیزونه شو، نقش، لفظ، معنی، حاصل د کلام دا چه د ذکرالله نه مراد ما یدل علی الذکر دې او ما یدل علی الذکر دوه دی، یو بغیر د واسطې نه لکه الفاظ او یو بالواسطه لکه نقوش او هم دا دلته مراد دی.

د رسول الله ﷺ خاتم مبارک د ډول دپاره نه وو بلکه هغه د هغوی مهر وو په هغې باندې د هغوی نوم مبارک لیکلې شوې وو، او د مهر په طریقه باندې به هغه په خطونو باندې لګولې شو، ځکه چه کله رسول الله ﷺ غیر مسلم بادشاهانو ته د دعوت الی الاسلام د خطونو لیږلو اراده اوفرمائیله نو هغوی ته عرض اوکړې شو چه د بادشاهانو دستور دې چه هغوی غیر مختوم لیک نه قبلوی، چه کله د باقاعده مهر سره هغوی ته لفافه یا خط اورسیږی هغه اخلی نو ددې ضرورت د لاندې رسول الله ﷺ په دې موقع باندې دا خاتم جوړ کړې وو.

دلته دا پیژندل هم ضروری دی ځکه چه ددې به روستو ضرورت راځی چه رسول الله ﷺ په شروع کښې د سرو زرو ګوتمه جوړه کړې وه، صحابه کرامو رضی الله عنهم هم د رسول الله ﷺ په اتباع کښې د سرو زرو ګوتمه جوړه کړه، خو بیا رسول الله ﷺ دا د سرو زرو ګوتمه ناخوښه کړه او ګزار ئې کړه، او دوباره رسول الله ﷺ د سپینو زور خاتم جوړ کړو او هم هغه ئې بیا تر مرګه پوره استعمالوله، د رسول الله ﷺ د وفات نه پس خلیفه اول او د هغوی نه پس خلیفه ثانی او د هغوی نه پس خلیفه ثالث ته هغه راورسیده، بیا د خلیفه ثالث د لاس نه وتلو سره هغه په څه طریقه بئر اریس کښې چه د مدینې طیبې مشهور کوهې دې هغې ته غورځیدو سره ورکه شوه، سره د ډیر لټون نه ورته ملاؤ نه شوه، د علماء کرامو وینا ده چه د سیدنا عثمان رضی الله عنه په خلافت کښې چه کوم اختلافات واقع شو کوم چه د تاریخ په کتابونو کښې معروف او مشهور دی، ددې مبارکې ګوتمې د ورکیدو نه پس هغه هر څه اوشو، معلومه نه ده چه په دې ګوتمه کښې څه راز وو او څومره برکتی وه.

دلته یوه خبره دا هم اوپیژنئ چه ددې صحیح صورت حال هغه دې کوم چه پورته ذکر شو، خو په ابواب الخاتم کښې یو روایت راغلې دې چه دهغې په سند کښې راوی امام زهری رحمه الله دې، د هغوی په روایت کښې دا هم دی چه رسول الله ﷺ د سپینو زرو خاتم جوړ کړو، خو په ابواب الخاتم کښې یو روایت راغلې دې چه دهغې په سند کښې راوی امام زهری رحمه الله دې، د هغوی په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ خاتم فضة جوړه کړه او بیا ئې هغه ناخوښه کولو سره اوغورځوله، د جمهور شراح او محدثینو رائې دا ده چه دا د زهری وهم دې، رسول الله ﷺ د سپینو زرو نه بلکه د سرو زرو خاتم غورځولې وو، لکه په شروع کښې تفصیلا تیر شوې دی، او بعض علماء کرامو د زهری د روایات یو توجیه هم کړې ده کومه چه به په خپل مقام باندې راشی، دلته تول ځیزونه تبعا راغلل.

## د حدیث الباب په باره د محدثینو اختلاف رائې :

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ ﴾ دا قال ابوداؤد ډیر اهم دې او ډیر تفصیل هم غواړی، او مصنف رحمه الله چه کومه دعوی کړې ده هغه مختلف فیه ده، د ټولو حضراتو دهغې سره اتفاق نشته، حضرت په بذل کښې په دې باندې تفصیل سره کلام کړې دې، د امام نسائی رحمه الله رائې دا ده چه دا حدیث غیر محفوظ دې، او د امام دارقطنی رحمه الله د کلام نه معلومیږی چه دا شاذ دې، ځکه چه په دې کښې هغوی د اختلاف رواة ذکر کړې دې ددې بالمقابل امام ترمذی رحمه الله ددې حدیث تحسین فرمائیلې دې او ورسره ئې ورته غریب هم وئیلې دې، اوس گویا امام ابوداؤد رحمه الله یو طرف ته شو، بل طرف ته امام ترمذی رحمه الله، د دواړو رائې مختلف دی، حافظ منذری رحمه الله په دې مسئله کښې د امام ترمذی رحمه الله سره دې، د مصنف رحمه الله ملګرې نه دې هغوی وائی چه ددې راویان ثقات او اثبات دی، او زمونږ د حضرت سهارنپوری رحمه الله میلان هم د امام ترمذی رحمه الله د رائې طرف ته دې، د حضرت د مصنف رحمه الله ددې رائې سره اتفاق نشته چه دا حدیث منکر دې.

## د مصنف رحمه الله د دعوې ثبوت او په هغې نقد :

﴿ وَإِنَّمَا يُعْرَفُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ ﴾ په دې سره مصنف رحمه الله په خپله دعوی باندې دلیل قائموی، یعنی د نکارت وجه بیان فرمائی، ځان پوهه کړه چه د حدیث منکر مقابل ته معروف وئیلې شی، هم په دې وجه مصنف رحمه الله دلته منکر کوم چه مقابل د معروف دې دا په خپل قول ﴿وانما یعرف ﴾ سره بیانول غواړی، د مصنف رحمه الله د دلیل حاصل دا دې چه ددې حدیث په سند کښې د همام راوی نه دوه وهمونه شوې دی، د یو تعلق د سند سره دې او د بل د متن سره، په سند کښې هغوی دا کړې دی چه د ابن جریج او د زهری ترمینځه چه کومه واسطه وه یعنی زیاد بن سعد هغه ئې پریخودلې دې، او دویم وهم د متن سره متعلق دې هغه دا چه اصل متن ددې سند هغه نه وو کوم چه همام ذکر کړو بلکه هغه دې کوم چه د ابن جریج نه د

همام نه علاوه نور راویان نقل کوی،[1] چه دهغې الفاظ دا دی ﴿ ان النبی ﷺ اتخذ خاتما من ورق ثم القاه ﴾ نو ګویا د همام نه دوه وهمونه شوې دی، یو ترک واسطه او یو تبدیل متن چه په ځائې د هغه متن ئې بله خبره ذکر کړه او وې وئیل ﴿ کان النبی ﷺ اذا دخل الخلاء وضع خاتمه ﴾ دا خو هغه خبره ده کومه چه مصنف رحمه الله کړې ده.

او دویمه ډله کومه چه دې حدیث ته صحیح وائی لکه امام ترمذی رحمه الله، حافظ منذری رحمه الله او حضرت سهارنپوری رحمه الله، هغوی داسې فرمائی چه په دې حدیث باندې د منکر تعریف صادق نه راځی، منکر وئیل ورته غلط دی، ځکه چه د حدیث منکر په تعریف کښې دوه اقوال دی، او دواړه تعریفونه دلته نه صادقیږی، ځکه چه حدیث منکر هغه حدیث دې چه دهغې په سند کښې یو راوی شدید الضعف وی مثلا متهم بالکذب وی او هغه د ثقه راوی مخالفت کوی، او دویم قول د منکر په تعریف کښې دا دې چه په کوم روایت کښې راوی شدید الضعف وی دا بحث پکښې نشته چه د ثقه مخالفت کوی یا نه غرض دا چه د هر دواړو اقوالو په بناء باندې د حدیث منکر دپاره ضروری ده چه په هغې کښې یو راوی شدید الضعف وی او همام داسې راوی نه دې بلکه ثقه او د صحیحین په راویانو کښې دې د هغوی طرف ته د وهم نسبت کول صحیح نه دی، دویمه خبره دا ده چه هغه متفرد نه دې بلکه په بیهقی کښې یحیی بن المتوکل او د دارقطنی په کتاب العلل کښې یحیی بن الضریس د هغوی متابعت کړې دې، لهذا دا حدیث منکر نه شو بلکه مونږ وایو چه صحیح دې، د ترک واسطه او د تبدیل متن دواړه اعتراضات بې بنیاده دی دا مستقل دوه متنونه دی کوم چه په دوؤ سندونو سره روایت کړې شوې دی لکه چه د حافظ ابن حبان رائې ده، هغوی هم داسې فرمائی چه دا دواړه بیل بیل حدیثونه دی د یو متن داسې دې ﴿ اذا دخل الخلاء وضع خاتمه ﴾ او د دویم متن داسې دې ﴿ اتخذ خاتما من ورق ثم القاه ﴾ د هر یو سند بیل بیل دې، په اول کښې د زیاد بن سعد واسطه نشته، په دویم کښې شته، وړاندې تلو سره حضرت سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه دې حدیث ته مدلس وئیلې کیدې شی ځکه چه په دې کښې ابن جریج راوی مدلس دې.

اوس ځان پوهه کړه چه په مصنف رحمه الله باندې دا اشکال واردیږی چه هغوی حدیث ثانی ته معروف ځنګه اووئیلو حال دا چه مشهور عند المحدثین دا ده چه په دې کښې زهری ته وهم شوې دې چه رسول الله ﷺ د سپینو زرو خاتم غورځولې وو، او دا خبره نقل کړې شوه کما تقدم تفصیله.

### توجیه لطیف از حضرت گنگوهی :

دلته حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې د حضرت گنگوهی رحمه الله د تقریر نه یوه ډیره لطیفه خبره نقل کړې ده، هغه دا چه د همام طرف ته د وهم نسبت صحیح نه دې، ځکه چه هغه ثقه

[1] او هغه راویان دا دی : عبدالله بن الحارث المخزومي، ابوعاصم، هشام بن سلیمان، موسي بن طارق، لکه چه د شروح نه معلومیږی)

دي، باقي دا چه بيا هغوی دا حديث داسې څنګه نقل کړو کوم چه د مصنفﷺ په قول خلاف معروف دې، دې باره کښې حضرت ګنګوهیﷺ فرمائی غالبا شوې داسې ده چه د زهری هغه روايت په کوم کښې چه د خاتم فضة د القاء ذکر دې د جمهورو په نزد غلط دې او غلطی منسوب کيږی د زهری طرف ته نو همام دا سوچ اوکړو چه په څه طريقه د زهری نه دا اعتراض لرې کړې شی څکه چه دا صحيح ده چه رسول اللهﷺ د سپينوزرو ګوتمه نه وه غورځولې، نو همام د زهری د بيان کړې روايت توجيه او اصلاح.دا اوکړه چه د خاتم فضة د غورځولو نه مراد دا دې چه رسول اللهﷺ به بيت الخلاء ته د تلو نه مخکښې دا کيخودله او دا چه د القاء متبادر معنی مراد نه ده، په دې صورت کښې به څوک د زهری روايت ته غلط اووائی، ددې توجيه په بنياد د زهری نه اعتراض ختميږی، والله تعالی اعلم بالصواب.

**د کلام مصنفﷺ توجيه :**

دا ټولې خبرې خو تقريبا هم هغه دی کومې چه حضرت سهارنپوریﷺ په بذل کښې ليکلې دی، د عبد ضعيف رائې دا ده چه د مصنفﷺ د کلام دې داسې توجيه اوکړې شی چه دهغې په وجه د مصنفﷺ نه اعتراض لرې شی هغه دا چه د حديث منکر تعريف کښې د متقدمينو رائې جدا ده او د متاخرينو جدا، حضرت سهارنپوریﷺ چه د تعريف منکر په سلسله کښې څه ليکلې دی او بيا ئې چه په مصنفﷺ باندې کوم اعتراض کړې دې هغه د متاخرينو د رائې مطابق دی او د متقدمينو په نزد د حديث منکر اطلاق په ما تفرد به الراوی باندې هم کيږی (1) کوم ته چه حديث شاذ وائی، که هغه راوی ثقه وی او که غير ثقه، پس د مصنفﷺ مراد هم دلته د منکر نه شاذ دې علی اصطلاح القدماء او په قدماء محدثين کښې امام احمد بن حنبلﷺ هم دې او امام ابوداؤدﷺ د هغوی خاص شاګرد رشيد دې، کيدې شی چه هغوی دلته منکر په معنی د شاذ اخستلې وی، فثبت ما ادعاه المصنفﷺ والله اعلم بالصواب.

## بَابُ الِاسْتِبْرَاءِ مِنَ الْبَوْلِ

### باب دې په بيان د څان ساتلو کښې د بولو نه

**د ترجمة الباب تشريح او غرض :**

څان پوهه کړه چه استبراء او استنجاء دوه بيل بيل څيزونه دی، فقهاء کرام استنجاء ته سنت وائی او استبراء ئې لازم ليکلې ده، د استنجاء مباحث او مسائل تير شوی دی، د استبراء تعريف دا دې : طلب البراءة عن بقية البول.... چه د بولو نه پس چه په مثانه يا د متيازو په

(1) قال الحافظ في مقدمة الفتح في ترجمة بريد بن عبدالله احمد وغيره يطلقون المناكير علي الافراد المطلقة وفي قواعد علوم الحديث ۲۵۸ فرق بين قول المتقدمين هذا حديث منکر وبين قول المتاخرين ذلك... الي آخر ما فيه) ددې نه پس په سن ۱۸ هـ کښې د زيات غور کولوسره ښکاره شوه چه دا توجيه هغه وخت چليدې شوه کله چه مصنف په دې باندې صرف د منکر اطلاق کړې وې، خو داسې نه ده بلکه مصنف ددې حديث مقابل هم ذکرکړې دې چه هغه ئې معروف ګرځولې دې او دا حديث ئې د همام وهم ګرځولې دې، نو دکلام سياق ددې تقاضه کوی چه دا حديث دمصنف په نزد غير محفوظ دې، کمامور أي النسائي، والله أعلم، دا جدا خبره ده چه دچا دمصنف ددې رائې سره اتفاق نه وی.فقط.

نالئ کښې چه کومه قطره پاتې شی دهغې د اثر نه په ښۀ طريقه باندې براءت او اطمينان حاصلول، دا خو استبراء ده(۱) کوم ته چه فقهاء کرام لازم وائی، او ترځو چه دا حاصل شوې نه وی اودس شروع کول صحيح نه دی، خو ظاهره دا ده چه د مصنف رحمه الله مراد دلته د استبراء نه عام معنی ده يعنی په متيازو کښې احتياط کول حتی الامکان دهغې د ځان ساتلو کوشش کول، چه چرته دهغې په باره کښې بې احتياطی او نه شی که په بدن کښې وی او که په کپړه کښې وی، د روايات الباب مقتضی هم دا ده. ګينې د احاديثو مطابقت به د ترجمې سره مشکل شی کما لا يخی علی المتامل، او هم ددې غرض په عموم کښې به دا هم راشی چه بول جالسا پکار دی نه قائما، ځکه چه کوم احتياط او حفاظت چه په بول جالسا کښې دې هغه په قائما کښې هرګز نشته، هم په دې وجه وراندې تلو سره مصنف رحمه الله دويم باب باب البول قائما منعقد فرمائيلې دې، اوس په دواړو بابونو کښې مناسبت په ښۀ طريقه واضح شو.

**تنبيه** : ځان پوهه کړه چه د څو صفحاتو نه پس يو باب الاستبراء بل راروان دې په دواړو کښې په ظاهره تکرار دې، په دفع تکرار باندې به کلام هم هلته کولې شی.

[۲۰](۲)حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَهَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، قَالَ: سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يُحَدِّثُ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَبْرَيْنِ، فَقَالَ: "إِنَّهُمَا يُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ، أَمَّا هَذَا فَكَانَ لَا يَسْتَنْزِهُ مِنَ الْبَوْلِ، وَأَمَّا هَذَا فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ، ثُمَّ دَعَا بِعَسِيبٍ رَطْبٍ، فَشَقَّهُ بِاثْنَيْنِ، ثُمَّ غَرَسَ عَلَى هَذَا وَاحِدًا وَعَلَى هَذَا وَاحِدًا، وَقَالَ: لَعَلَّهُ يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا"، قَالَ هَنَّادٌ: يَسْتَتِرُ مَكَانَ يَسْتَنْزِهُ.

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې، هغه وائی: تير شو رسول الله صلی الله عليه وسلم په دوؤ قبرونو باندې، نو وئې وئيل: دې دواړو ته عذاب ورکول کيږي، او عذاب ورته نه ورکول کيږي په يو لوی شي باندې، هر چه دا دی نو وو چه ځان ئې نه ساتلو د بولو نه، او هر چه دادی نو چغلي به ئې کوله، بيا ئې راوغوښتله يوه لختــه د قجورې لمده نو دوه ځائې ئې کړه، بيا ئې ناله کړه په دې باندې يوه، او په دې باندې يوه، او وئې وئيل: کيدی شي چه سپک شي د دې دواړو نه تر کومې چه اوچې شوې نه وي، وئيلی دې هناد يستتر په ځائې د يَسْتَنْزِهُ.

**تشريح**: قوله :﴿ مَرَّ رَسُولُ اللَّهِ –صلی الله عليه وسلم– عَلَى قَبْرَيْنِ ﴾ دلته بحث دا دې چه دا دواړه قبرونو والا مسلمانان وو که کافر، په دې کښې دواړه اقوال دی، پس د ابوموسی المدينی رائې بالجزم دا ده چه دا غير مسلم وو او ددې تائيد د هغه روايت نه کيږی چه په هغې کښې

(۱) د استبراء او استنجاء بيان خو پورته راغلو، دلته يو دريم لفظ دې، چه دهغې معنی دا ده ﴿طلب النقاوة بان يدلك المقعد بالاحجار والاصبع عند الاستنجاء بالماء﴾ يعنی صفائی طلب کول، په داسې طريقه چه استنجاء بالحجر کوی نو حجر په مقعد کښې ښه راکاږی او که اوبه وی نو په لاس سره هم مقعد اومږی،
(۲): صحيح البخاري/الوضوء ۵۵ (۲۱۶)، ۵۶ (۲۱۸)، الجنائز ۸۱ (۱۳۶۱)، ۸۸(۱۳۷۸)، الأدب ۴۶ (۶۰۵۲)، ۴۹ (۶۰۵۵)، صحيح مسلم/الطهارة ۳۴ (۲۹۲)، سنن الترمذي/الطهارة ۵۳ (۷۰)، سنن النسائي/الطهارة ۲۷ (۳۱)، الجنائز ۱۱۶ (۲۰۶۷)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۲۶ (۳۴۷)، (تحفة الأشراف: ۵۷۴۷)، مسند احمد (۱/۲۲۵)، سنن الدارمي/الطهارة ۶۱ (۷۶۶) (صحيح)

راغلې دی ﴿ هلكا في الجاهلية ﴾ خو دا روایت ضعیف دې، ځکه چه په دې کښې ابن لهیعه راوی دې، او د ابن العطار رائې دا ده چه دا قبر والا مسلمانان وو، او د بعض روایاتو نه هم ددې تائید کیږی، حافظ ابن حجر رحمه الله هم دې رائې ته ترجیح ورکړې ده پس د ابن ماجه په روایت کښې دی ﴿ مر علی قبرین جدیدین ﴾ او د مسند احمد په روایت کښې دی ﴿ مر بالبقیع﴾ بل دا چه رسول الله ﷺ تپوس اوفرمائیلو ﴿ من دفنتم الیوم ﴾ ددې ټولو روایاتو تقاضه دا ده چه دا د مسلمانانو قبرونه وو.

علامه قرطبی رحمه الله د بعض اهل علم نه نقل کړې دی چه په دوی کښې یو سعد بن معاذ رضی الله عنه وو، خو امام قرطبی رحمه الله فرمائی چه دا قول صرف د رد کولو دپاره ذکر کیدلې شی د معتبر کیدو په حیثیت سره نه، حاصل دا چه دا قول صحیح نه دې، د سعد بن معاذ رضی الله عنه واقعه په حدیث کښې بل شان راځی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددې دواړو صاحبانو نومونه معلوم نه شو، په یو روایت کښې هم د نوم تصریح ملاؤ نه شوه، غالبا راویانو د مسلمان د پردې ساتلو د وجې نه قصدا داسې اوکړل.

## د یو بل حدیث نه اشکال او دفع تعارض:

﴿ قوله إِنَّهُمَا يُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ ﴾ دلته یو اشکال کولې شی هغه دا چه په دې حدیث کښې خو د کبیر کیدو نفی کړې شوې ده او یو بل روایت کوم چه په الادب المفرد کښې دې په هغې کښې داسې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ بلی انه کبیر ﴾ اوس په ظاهر کښې په دواړو روایتونو کښې تعارض شو؟ جواب دا دې چه د کبیر دوه معنې دی، نفی د یو معنې په اعتبار سره ده او اثبات د دویمې معنې په اعتبار سره دې، کبیر په معنی د امر شاق او ګران لګه د الله پاک په قول کښې چه دی ﴿ وانها لکبیرة الا علی الخاشعین ﴾ مونږ ته کبیره وئیلې شوې دې، ددې معنی په اعتبار سره خو نفی کولې شی او مطلب دا دې چه د کوم امر د وجې نه چه هغوی ته عذاب ورکولې شی هغه یو داسې کار نه وو چه دهغې نه بچ کیدل ګران وو او کوم کبیر چه ثابتولې شی دهغې نه مراد ګناه کبیره ده یا به داسې اووئیلې شی چه په دواړو ځایونو کښې یو معنی مراد ده یعنی ګناه کبیره خو د کوم چه نفی کولې شی دهغې نه مراد اکبر الکبائر دې مطلق کبیره نه، او د کوم چه اثبات کولې شی دهغې نه مراد مطلق ګناه کبیره ده، په دې صورت کښې به مطلب دا وی د حدیث چه د کوم کار د وجې نه چه هغوی ته عذاب ورکولې شی هغه څه ډیره لویه ګناه نه وه، اګرچه فی نفسه لویه وه، یا دې داسې اووئیلې شی چه نفی ددې دواړو کسانو د اعتقاد په اعتبار سره ده یعنی د هغوی په نزد دا کبیره نه وه او په واقع کښې د الله پاک په نزد هغه کار ګناه کبیره وه، وغیر ذلک من الاجوبة والاحتمالات.

وړاندې د حدیث مضمون دا دې چه په دې دواړو کښې د هغه د عذاب سبب د هغه د بولو په باره کښې ترک احتیاط دې او د دویم سبب نمامی او چغلخوری ده. د ترجمة الباب نه ثابته شوه چه استبراء من البول ضروری ده ګینې په عذاب قبر کښې د اخته کیدو ویره ده، د نمیمة تعریف مشهور دې ﴿ نقل کلام الغیر علی وجه الافساد والاضرار ﴾ چه خپل

مینځ کښې د تعلقاتو خرابولو په نیت باندې د یو سړی خبره بل ته نقل کول.

﴿ قوله ثُمَّ دَعَا بِعَسِيبٍ رَطْبٍ ﴾ د عذاب حل رسول اللهﷺ دا اوفرمائیلو چه تروتازه څانګه ئې راوغوښتله او د طبرانی په روایت کښې دی چه صدیق اکبرؓ څانګه راوړله هغه رسول اللهﷺ په اوړدوالی کښې ماته کړه او په دواړو قبرونو باندې ئې ښخې کړې.

﴿ قوله لَعَلَّهُ يُخَفِّفُ عَنْهُمَا ﴾ [1] رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائیلو امید دې چه ددې دواړو سړو نه په عذاب کښې تخفیف اوکړې شی ترڅو چه دا څانګې اوچې شوې نه وی.

د دې نه معلومه شوه چه د څانګو د شین والی په تخفیف عذاب کښې دخل دې، اوس په دې کښې د علماء کرامو دوه اقوال دی بعض خو وائی چه بالکل هم داسې ده، شین والی لره په دې کښې دخل دې ځکه چه په څانګه کښې چه ترڅو پورې شین والې باقی وی هغه د الله پاک تسبیح کوی نو د ذکر او تسبیح په برکت سره به په عذاب کښې تخفیف وی ﴿ قال الله تعالى وان من شئ الا يسبح بحمده ﴾ بعض حضراتو لیکلي دی چه دلته د څیز نه مراد هغه څیز مراد دې چه د حیات خاوند وی او د اونې او د څانګې حیات دهغې شین والې دې پس ترڅو چه هغه شنه وی ذکر به کوی دهغې په برکت سره به په عذاب کښې تخفیف وی، دویم قول دا دې چه د شین والی او اوچ والی په دې کښې هیڅ دخل نشته بلکه کیدې شی چه رسول اللهﷺ د تخفیف عذاب په باره کښې چه د الله پاک نه کومه دعاء او سفارش کړې وی هغه هم دې قید سره وی یعنی دا چه یا الله کم از کم ترڅو چه دا څانګې اوچې شوې نه وی تر هغه وخته پورې د هغوی نه په عذاب کښې تخفیف اوکړه یا دا چه رسول اللهﷺ ورته د مطلق تخفیف دعاء کړې وی خو د هلته نه جواب ملاؤ شو چه تر څو پورې تری (تازګی) باقی وی په عذاب کښې به تخفیف کولې شی، والله سبحانه وتعالى أعلم.

## ډیر فوائد کوم چه د حدیث الباب نه حاصلیږی:

د دې حدیث نه څو امور معلوم شو، ۱: د عذاب قبر حق کیدل کوم چه د اهل سنت والجماعت مذهب دې او محققین معتزله ددې قائل دی، خو بعض نور معتزله ددې نه انکار کوی او په دلائل عقلیه سره ئې رد کوی چه مړې جماد دې هغه ته به د عذاب قبر څنګه احساس کیږی او هسې هم د مشاهدې خلاف ده، د اهل سنت مذهب دا دې چه دا عذاب بدن ته وی او د روح د را واپس کیدو سره اوس که د روح اعاده پوره بدن ته شوې وی یا بعض ته کوم چه الله پاک ته ښه معلومه ده قاله العینی، او علماء کرامو دا هم لیکلی دی چه ماشومانو ته په قبر کښې فهم او حس ورکولې شی چه هغوی د الله پاک د نعمت مشاهده اوکړی.

۲: د بول مطلب مطلق ناپاک کیدل که د ماکول اللحم وی او که د غیر ماکول اللحم وی، ځکه چه په حدیث کښې ﴿ لا يستنزه من البول ﴾ مطلقا دې که خپل متیازې وی او که د

[1] که دا په صیغه د مجهول سره وی نو ضمیر به راجع وی د عذاب طرف ته، او که معروف وی نو د لعله د ضمیر مرجع یا خو الله تعالی دې یا عسیب رطب دې.

خاروي وی او ﴿ المطلق يجرى على اطلاقه ﴾ مشهوره قاعده ده يعنى د شوافعو او د احنافو مسلک دې، د مالکيانو او د حنابله رائې دا ده چه بول د ماکول اللحم طاهر دی هم دا د امام محمدرحمه الله رائې ده.

امام خطابیرحمه الله شارح حدیث ددې حدیث نه استدلال کړې دې چه ټول ابوال مطلقا ناپاک دی که هغه د ماکول اللحم وی او که د غیر ماکول اللحم وی، خو ابن بطال مالکیرحمه الله فرمائی چه دا استدلال صحیح نه دې ځکه چه که دلته ﴿ لا يستنزه من البول ﴾ راغلې دې نو په بل ځائې کښې هم په دې روایت کښې ﴿ بوله ﴾ راغلې دې او مراد ترې نه بول انسان دې، او د انسان بول د ټولو په نزد ناپاک دی.

د دې حدیث نه دا هم مستفاد شوه چه وضع الجریده على القبر یعنی د قبر سر ته یو اونه یا بوټې یا دهغې ځانګه ښخول مشروع بلکه مفید دی، پس امام بخاریرحمه الله په کتاب الجنائز کښې ترجمه قائم کړې ده، باب وضع الجرید على القبر او بیا ئې په دې باب کښې مرور على القبرين والا حدیث لره ذکر فرمائیلې دې هم دغه شان هغوی په دې باب کښې د سیدنا بریده بن الحصیبرضي الله عنه وصیت روایت کړې دې کوم چه هغوی د خپل وفات په وخت کړې وو چه زما په قبر باندې دوه ځانګې ښخې کړې شی، زمونږ په فقهاء کرامو کښې علامه شامی هم ددې د جواز تصریح کړې ده، حافظ ابن حجررحمه الله هم ددې سره متفق دې او په بذل المجهود کښې د سهارنپوریرحمه الله میلان هم دې طرف ته دې خو علامه خطابیرحمه الله دا نه تسلیموی، هغوی په دې کښې ډیر احتمالات پیدا کړی دی او دا مسئله ئې ختمه کړې ده، د هغوی احتمالات بس هم دغه شان دی، حافظ هغه رد کړې دی، خو ددې مسئلې نه دې په قبرونو باندې ګلونه او ځادرې وغیره اچول قیاس نه کړې شی ځکه چه دا قیاس باطل دې ځکه چه دهغې چرته ثبوت نشته، په وضع الجریده کښې خپله مړی ته فائده رسول مقصود وی، مثلا دا چه هغه د عذاب او تکلیف نه محفوظ وی، د عقیدت په طور نه او ګلونه او ځادرې د عقیدت په طور وی او د خپلو اغراض فاسدؤ حصول پکښې مقصود وی. فاين هذا من ذاک.

﴿ قَالَ هَنَّادٌ « يَسْتَتِرُ ». مَكَانَ « يَسْتَنْزِهُ » ﴾ مونږ مخکښې وئیلې وو چه د مصنفرحمه الله عادت دا دې چه ډیر کرته د دوؤ استاذانو دوه سندونه یو ځائې بیانوی او د دواړو په الفاظو کښې چه کوم اختلاف وی هغه وړاندې تلو سره بیل کړی، پس دلته د مصنفرحمه الله دوه استاذان دی زهیر او هناد، د دواړو په الفاظو کښې چه کوم تفاوت دې هغه بیانوی، د زهیر په روایت کښې لفظ ﴿ يَسْتَنْزِهُ ﴾ واقع شوې دې او د هناد په روایت کښې ﴿ يستتر ﴾ دې د استتار نه مراد یا خو استتار بینه وبین البول دې نو بیا خو به دا مرادف وی د يَسْتَنْزِهُ. یا به ددې نه مراد بینه وبين الناس وی نو په دې صورت کښې به ددې معنی وی بې پردګی او کشف عورت.

[۲۱]([۱])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ: كَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهِ. وَقَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ: يَسْتَنْزِهُ.

**ترجمه**: ابن عباس رضي الله عنهما روايت کوي د نبي ﷺ نه په معنی دهغې سره، هغه وئيلی دي: وو چه ځان به ئې نه پټ کولو د بولو نه، او وئيلی دي ابو معاويه نه به لرې کيدلو د بولو نه.

**تشريح**: ۲: ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ ﴾ ددې سند مدار په مجاهد باندې دې، د مجاهد دوه شاګردان دی، په اول روايت کښې اعمش دې او په دې روايت کښې منصور دې د دواړو په روايتونه کښې فرق دا دې چه د اعمش په روايت کښې د مجاهد او ابن عباس رضي الله عنهما ترمينځه د طاؤس واسطه موجود ده او د منصور روايت بلا واسطه ده، اوس دا سوال دې چه کوم طريق صحيح دې بالواسطه او که بلا واسطه. د ابن حبان رحمه الله رائې دا ده چه دواړه طريق صحيح دی، او په ظاهر کښې د مصنف رحمه الله رائې هم دا معلوميږی، ددې صورت به دا وی چه مجاهد ته به په واسطه د طاؤس سره روايت رارسيدلې وی روستو به علو سند حاصل شوې وی چه براه راست ئې د ابن عباس رضي الله عنهما نه واوريدلو يا ددې برعکس.

هم دغه شان امام بخاری رحمه الله هم ددې حديث په دواړو طريقو سره تخريج کړې دې، په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې ليکلې دی چه ددې نه معلومه شوه چه د امام بخاری رحمه الله په نزد دواړه سندونه په واسطې او بغير د واسطې نه صحيح دی زه وايم چه په ظاهر کښې خو هم دغه شان ده څه چه حافظ رحمه الله فرمائی خو امام ترمذی رحمه الله په کتاب العلل کښې د امام بخاری رحمه الله رائې دا نقل کړې ده چه **رواية الاعمش اصح**. او خپله د امام ترمذی رحمه الله رائې هم دا ده څنګه چه هغوی په جامع ترمذی کښې واضح کړې ده. **والله أعلم بالصواب**

﴿ قَالَ « كَانَ لاَ يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهِ » ﴾ ظاهره دا ده چه د قال ضمير راجع دې د منصور طرف ته، ځکه چه د منصور روايت د اعمش په مقابله کښې بيانولې شی او هم دا صاحب منهل هم ليکلې دی، خو په بذل کښې حضرت د ضمير مرجع جرير منلې دې، د اعمش په روايت کښې من البول مطلقا دې عام ددې نه که د انسان بول وی او که د حيوان بول وی، ماکول اللحم وی او که غير ماکول اللحم وی ټولو ته شامل دې، او د منصور په دې روايت کښې د من بوله د اضافت د وجې نه خاص د انسان بول مراد دی.

﴿ وَقَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ « يَسْتَنْزِهُ » ﴾ په ظاهر کښې دا معلوميږی چه ابومعاويه د منصور نه روايت کوی ځکه مصنف رحمه الله د منصور د سند نه لاندې دا بيان کړې دې، خو داسې نه ده بلکه ددې تعلق د روايت اعمش سره دې لکه څنګه چه حضرت په بذل کښې ليکلې دی ځکه چه د بخاری وغيره کتب صحاح نه هم دا معلوميږی لهذا د مصنف رحمه الله دپاره انسب دا وه چه د ابومعاويه رحمه الله الفاظ ئې د اعمش د روايت نه لاندې بيان کړې وې.

([۱]): صحيح البخاري/الطهارة ٥٥(۲۱٦)، الادب ٤٩(٦۰٥٥)، سنن النسائي/الجنائز ۱۱٦(۲۰۷۰)، (تحفة الأشراف: ٦٤۲٤)(صحيح)

[۲۲]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ابْنِ حَسَنَةَ، قَالَ: انْطَلَقْتُ أَنَا وَعَمْرُو بْنُ الْعَاصِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَخَرَجَ وَمَعَهُ دَرَقَةٌ ثُمَّ اسْتَتَرَ بِهَا ثُمَّ بَالَ، فَقُلْنَا: انْظُرُوا إِلَيْهِ، يَبُولُ كَمَا تَبُولُ الْمَرْأَةُ، فَسَمِعَ ذَلِكَ، فَقَالَ: "أَلَمْ تَعْلَمُوا مَا لَقِيَ صَاحِبُ بَنِي إِسْرَائِيلَ؟ كَانُوا إِذَا أَصَابَهُمُ الْبَوْلُ قَطَعُوا مَا أَصَابَهُ الْبَوْلُ مِنْهُمْ، فَنَهَاهُمْ، فَعُذِّبَ فِي قَبْرِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَنْصُورٌ: عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: جِلْدِ أَحَدِهِمْ. وَقَالَ عَاصِمٌ: عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: جَسَدِ أَحَدِهِمْ.

**ترجمه**: عبد الرحمن بن حسنة وايي: چه لاړم زه او عمرو بن العاص پيغمبر ﷺ ته نو هغه راووتلو او د هغه سره ډال وو بيا ئې ځان پناه کړو په هغې، بيا ئې بولي اوکړي، نو مونږ اووئيل: اوګورئ متيازري کوي لکه څنګه چه ښځه متيازې کوي، نو واوريدل هغه دا، نو وئې وئيل: ايا تاسو ته علم نشته د هغه څه چه د بني اسرائيلو صاحب ورسره مخ شوې وو، وو کله چه به ورسيدلې هغوی ته متيازې نو هغوی به پرې کړو هغه ځائې چه بولي به ورته رسيدلې وي، نو ده هغوی منع کړل نو عذاب ورته ورکړی شو په قبر کښې.ابوداؤد وائی: منصور د ابو وائل نه، هغوی دابو موسی نه، اموسی د رسول الله ﷺ نه په دې حديث کښې په متيازو لګيدو سره دخپلې څرمن کټ کولو روايت کړې دې، اوعاصم د ابووائل نه، هغوی د ابوموسی نه او ابو موسی د رسول الله ﷺ نه دخپل جسم کټ کولو ذکرکړې دې.

**تشريح**: قوله :﴿ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ابنِ حَسَنَةَ ﴾ حضرت عبدالرحمن بن حسنه ﵁ فرمائی چه زه او عمرو بن العاص ﵁ د رسول الله ﷺ خدمت ته لاړو نو مونږ اوکتل چه هغوی تشريف راوړی ﴿ وَمَعَهُ دَرَقَةٌ ﴾ او هغوی سره يو ډهال وو ([2]) رسول الله ﷺ د بول کولو دپاره هغه خپلې مخې ته پرده کړو چه د چا نظر پرې پرينوځی ﴿ ثم بال ﴾ او بيا رسول الله ﷺ قضاء حاجت اوکړو لکه چه د مسند احمد په روايت کښې دی چه دوی دواړو رسول الله ﷺ هم دغه شان په بولو کولو باندې اوليدلو نو وې وئيل ﴿ انْظُرُوا إِلَيْهِ يَبُولُ كَمَا تَبُولُ الْمَرْأَةُ ﴾ اوګورئ رسول الله ﷺ تها څنګه بول کوی لکه څنګه چه زنانه کوی.

په دې تشبيه کښې دوه احتمالونه دی يا د پردې په قائمولو کښې تشبيه ده او يا په ناسته باندې متيازې کولو کښې ځکه چه د جاهليت په زمانه کښې صرف د زنانو عادت په ناسته د متيازو کولو وو، سړو به په ولاړه متيازې کولې، پس د ابن ماجه په يو روايت کښې دی ﴿ وكان شان العرب البول قائما ﴾ او په ناسته باندې متيازې کول به ئې د سړی توب خلاف ګڼرلې، او دا هم احتمال دې چه تشبيه په دواړو خبرو کښې وی ددې حديث نه دوه خبرې معلومې شوې اول دا چه د قضاء حاجت نه مخکښې د پردې انتظام کول او دويم دا چه متيازې په ناسته کول.

---

[1]: سنن النسائي/الطهارة ٢٦ (٣٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٦ (٣٤٦)، (تحفة الأشراف: ٩٦٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٦٧٤) (صحيح)

[2]، کوم چه د دشمن د حملې نه د بچ کيدو دپاره د څرمنې يوه ټکړه وی،

## د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:

د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت خو ظاهر دې د مصنف رحمه الله غرض په ترجمة الباب سره لکه چه مخکښې تير شو په متيازې کولو کښې احتياط ثابتول دی، او ښکاره خبره ده چه هغه په ناسته متيازو کولو کښې دې نه په قائماً کښې.

ځان پوهه کړه چه دې دواړو صحابه کرامو رضي الله عنهما چه کومه واقعه د متيازو نقل کړې ده په دې کښې ظاهره دا ده چه دې حضراتو دې وخته پورې اسلام قبول کړې وو، او دا هم احتمال دې چه د اسلام نه مخکښې واقعه وی اوس وړاندې د دوی دا وئيل چه ﴿ انظروا اليه﴾ په دې کښې هم دوه احتمالات دی چه دا وينا به د هغوی تنقيدا او اعتراضا وی او يا تعجبا، که دا واقعه د اسلام قبلولو نه روسته وی نو بيا خو دا وينا د تعجب د وجې نه ده، او که قبل الاسلام وی نو اعتراضا هم کيدې شی.

## د حديث الباب ترجمه او تشريح:

﴿ قوله أَلَمْ تَعْلَمُوا مَا لَقِيَ الخ ﴾ رسول الله ﷺ ددې دواړو کسانو خبره واوريدله اګرچه هغوی د اورولو دپاره نه وه کړې، بهر حال رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه تاسو ته معلومه نه ده چه په بنی اسرائيل کښې حکم شرعی دا وو چه کوم څيز په متيازو سره ناپاک شی دهغې د وينځلو په ځائې پرې کول ضروری دی، صرف په وينځلو سره به نه پاکيدلو، خو يو اسرائيلی سړی خلق په دې حکم شرعی باندې د عمل کولو نه منع کړل او وې وئيل چه هيڅ ضرورت نشته ددې تکلف، او هغه د خپل شريعت په حکم کښې بې پرواهی اوکړه نو په دې باندې رسول الله ﷺ فرمائی چه په دې مذکوره سړی باندې چه څه تير شو هغه تاسو ته معلومه نه ده؟ وړاندې دهغې بيان دې ﴿ فَعُذِّبَ فِي قَبْرِهِ ﴾ يعنی هغه سړې په عذاب قبر باندې اخته شو، حاصل ددې خبرې دا دې چه ستاسو دواړو زما په دې فعل باندې اظهار تعجب کول يا تنقيد کول برابر دی ددې عمل نه د منع کولو سره، حال دا چه حکم شرعی هم دا دې چه متيازې دې په ناسته او په احتياط سره اوکړې شی نو اوس چه تاسو ما ددې حکم شرعی نه منع کوئ نو تاسو خپله سوچ اوکړئ چه ستاسو انجام به څه وی.

ځان پوهه کړه چه پورته په حديث کښې چه کوم لفظ د صاحب راغلې دې ددې نه مراد هم هغه دې دې کومه چه اوس مونږ بيان کړو يعنی په بنو اسرائيل کښې يو سړې او په دې صورت کښې دعبارت مطلب واضح دې خو علامه عينی رحمه الله د صاحب بنی اسرائيل مصداق موسی عليه السلام ګرځولې دې ځکه چه هر نبی د خپل قوم صاحب وی نو ظاهره ده چه د بنی اسرائيلو صاحب موسی عليه السلام شو اوس که ددې نه مراد موسی عليه السلام وی لکه چه د عينی رائې ده نو د عبارت صحيح مطلب به په تکلف سره راويستلې شی، لهذا د ﴿ فنهاهم ﴾ ضمير کوم چه صاحب طرف ته راجع دې دهغې تقدير د عبارت به داسې وی ﴿ فنهاهم عن التهاون فی امر البول ﴾ يعنی موسی عليه السلام بنی اسرائيل د متيازو په باره کښې د بې احتياطئ نه منع کړل په دې باندې د هغوی خبره بعضو اومنله او بعض او نه منله ﴿ فعذب فی قبره ای من لم ينته ﴾ څوک چه د خپل حرکت نه منع نه شو هغه ته عذاب قبر ورکړې شو. نو د عذب نائب فاعل به

مقدر منل غواړي، او په اول صورت کښې د عذب نائب فاعل صاحب بنی اسرائیل وو، والله تعالی اعلم. حضرت سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه د عینی قول بې ځایه تکلف دې.

## د ما اصابه البول مصداق کښې د علماء کرامو اختلاف :

﴿ قوله :قَطَعُوا مَا أَصَابَهُ الْبَوْلُ ﴾ دلته يو بحث دا دې چه د ﴿ قَطَعُوا مَا أَصَابَهُ الْبَوْلُ ﴾ نه څه مراد دي؟ ددې نه صرف کپړه وغيره مراد ده او که بدن هم شامل دې، په دې کښې د علماء کرامو دواړه اقوال دی، يو جماعت وائی چه ددې نه مراد صرف کپړه وغيره ده او بدن په دې کښې داخل نه دې ځکه چه هغه تکليف ما لا يطاق دې او ﴿ لا يكلف الله نفسا الا وسعها الآية ﴾ او يو جماعت وائی چه ددې نه مراد عام دې د بدن څرمن هم په دې کښې داخل ده او دا حکم د اصرواغلال يعنی د احکام شاقه د قبيل نه دې، کوم چه په شريعت موسوی کښې وو او بنی اسرائيل دهغې مکلف وو چه دهغې طرف ته په دې آيت کريمه کښې ﴿ ويضع عنهم اصرهم والاغلال التي كانت عليهم ﴾ کښې اشاره ده او بحمد الله په شريعت محمديه کښې دا اصرو اغلال او احکام شاقه نشته دې.

د رواياتو الفاظ په دې سلسله کښې مختلف دی، په بعض کښې ثوب وارد دې، او په بعض کښې جلد احدهم دې، او په بعض کښې جسد احدهم دې او په بعض کښې مبهم د ما اصابه البول په لفظ سره دې، هره يوه ډله د خپل خپل مسلک پيش نظر توجيه او تاويل کوی، که د ثوب لفظ دې نو بيا خو د چا هم اختلاف نشته هم دغه شان که مبهم ﴿ ما اصابه البول ﴾ راغلې دې نو خو په کوم روايت کښې چه ﴿ جلد احدهم ﴾ دې هغه د يو فريق خلاف دې او هغوی ددې تاويل دا کوی چه د جلد نه مراد د بدن څرمن نه ده بلکه د ځناور څرمن مراد ده کوم چه اغوستلې شی يعنی پوستين، خو په دې تاويل باندې به اشکال دا کولې شی چه په يو روايت کښې صفا د ﴿ جسد احدهم ﴾ لفظ وارد دې، هغوی ددې جواب دا ورکړې دې چه دا به روايت بالمعنی وی راوی د جلد نه جلد انسان ګڼړلې دې او بيا ئې د خپل فهم په اعتبار سره په لفظ جسد سره هغه نقل کړو. والله تعالی اعلم.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ مَنْصُورٌ الخ ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله بعض روايات تعليقا ذکر فرمائی او مقصود په دې سره الفاظ مختلفه لره بيانول دی او ددې تعليقاتو ذکر کولو نه دا خبره هم معلومه شوه چه دا روايت چه څنګه د عبدالرحمن بن حسنه رضی الله عنه نه روايت کړې شوې دې هم دغه شان د ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه هم روايت دې بيا په دې کښې د راويانو اختلاف دې، بعض د ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه مرفوعا نقل کړې دې او بعضو موقوفا . ددې اختلاف رواة نور وضاحت داسې کيدې شی چه پورته حديث د ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه هم مروی دې چه دهغې راوی ابووائل دې، بيا د ابووائل په شاګردانو کښې اختلاف دې منصور دا روايت موقوفا نقل کړې دې او عاصم دا مرفوعا نقل کړې دې.

چرته چه تعليقات راځی هلته يو سوال دا کيږی چه دا روايات به موصولا چرته ملاويږی؟ پس حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه د منصور روايت موصولا په مسلم کښې موجود

دي، او د عاصم د روايت په باره کښې ئې ليکلي دی چه هغه موصولا په يو کتاب کښې هم ملاؤ نه شو، والله اعلم.... په ابوداؤد کښې تعليقات په کثرت سره دی هم دغه شان په صحيح بخاری کښې هم، په صحيح مسلم کښې کم دی او په نسائی شريف کښې ډير کم دی.

## بَابُ الْبَوْلِ قَائِمًا

### باب دې په بيان د بولو کې په ولاړه

د مخکښې باب د لاندې مونږ دا خبره بيان کړه چه په دې باب کښې مصنف رحمه الله د متيازو نه ځان ساتل او په متيازو کښې احتياط کول ثابتولو سره هم دهغې په ضمن کښې بول جالسا هم ثابت کړل، پس ﴿ انْظُرُوا إِلَيْهِ يَبُولُ كَمَا تَبُولُ الْمَرْأَةُ ﴾ ددې صفا دليل دې چه هر کله بول جالسا ثابت شو اوداهم ثابته شوه چه درسول الله ﷺ عادت مستمره دبول جالسا وونو اوس ددې ځائې نه مصنف رحمه الله باب البول قائما منعقد کولو سره دا بيانول غواړی چه د رسول الله ﷺ نه کله کله بول قائما هم ثابت دی لکه چه ددې حديث نه ثابتيږی دا خو ده د احقر رائې، او زمونږ حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل چه مصنف رحمه الله حنبلی دې، د حنابله مسلک او دلائل ډير په اهتمام سره بيانوی تردې چه په بعض ځايونو کښې ئې داسې اوکړل چه د جمهور مسلک او د هغوی دليل ئې بالکل هم نه دې بيان کړې بلکه صرف د حنابله مذهب ئې ثابت کړې دې، پس ددې په مثال کښې به حضرت شيخ رحمه الله دا باب هم پيش کولو چه اوګورئ مصنف رحمه الله صرف د مذهب حنابله په حمايت کښې د بول قائما باب قائمولو سره د هغوی دليل ذکر کړې دې، والله أعلم.

**بول قائما کښې مذاهب ائمه :**

ځان پوهه کړه چه مسئلة الباب اختلافی ده، د احنافو او د شوافعو په نزد بول قائما مطلقا مکروه دی، او د حنابله او مالکيانو په نزد د يو قيد سره بغير د کراهت نه جائز دی هغه دا چه د رشاش البول وغيره نه په امن وی، پس د فقه حنبلی په مشهور کتاب نيل المآرب کښې ددې قيد تصريح ده يعنی په دې شرط چه د رشاش البول او د کشف عورة ويره نه وی او په مغنی کښې ليکلي شوي دی چه د حنابله په نزد بول قائما خلاف مستحب دی، بعض حضراتو د امام احمد رحمه الله مذهب د مطلقا جواز ليکلي دې هغه صحيح نه ده، البته د بعض تابعينو لکه سعيد بن المسيب او عروة بن الزبير رضي الله عنه په نزد بول قائما مطلقا بغير د کراهت نه جائز دی.

اوس دا خبره چه دا کراهت تنزيهی دې او که تحريمی؟ جواب دا دې چه دا کراهت تنزيهی دې او د ادب خلاف ده حرام نه دی، بعض حضراتو دا ليکلي دی چه چونکه دا د نصاری طريقه ده او په دې کښې د هغوی سره تشبه لازميږی نو که دې ته کراهت تحريمی اووئيلې شی نو دا به صحيح وی.

[۲۳]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، وَهَذَا لَفْظُ حَفْصٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: "أَتَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبَاطَةَ قَوْمٍ، فَبَالَ قَائِمًا ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مُسَدَّدٌ: قَالَ: فَذَهَبْتُ أَتَبَاعَدُ، فَدَعَانِي حَتَّى كُنْتُ عِنْدَ عَقِبِهِ.

**ترجمه**: د حذیفة رضی الله عنه نه روایت دې هغه وائي: راغی رسول الله ﷺ ډیران د یو قوم ته، نو بول ئې اوکړل په ولاړه بیائې راوغوښتلي اوبه نو مسح ئې اوکړه په خپلو دواړو موزو باندې.

**تشریح**: ۱: ﴿ عَنْ حُذَيْفَةَ رضی الله تعالى عنه ﴾ په دې باب کښې مصنف رحمه الله صرف یو حدیث د حذیفه رضی الله عنه بیان فرمائیلې دې، چه په هغې کښې د بول قائما تصریح ده، او چونکه دا د جمهورو د مسلک خلاف دې په دې وجه د جواب حاجت دې، د جمهورو د طرف نه کلي طور ددې درې جوابونه کړې شوې دی.

۱: دا چه بول قائما منسوخ دی دا قول منقول دې د ابن شاهین رحمه الله او ابوعوانه رضی الله عنه نه.

۲: لبیان الجواز، ۳: لاجل العذر...

بیا ددې عذر په تفصیل کښې مختلف اقوال دی:

۱: لوجع کان فی ما بضه کما فی روایة ابی هریرة عند البیهقی، یعنی د رسول الله ﷺ په کونډئ کښې درد وو، چه دهغې د وجې نه ناسته ګرانه وه،

۲: للاستشفاء عن وجع الصلب دا د امام شافعي رحمه الله نه منقول دی چه ددې مطلب دا دې چه د عربو عادت وو چه هغوی به په وجع الصلب (د ملا په درد) کښې بول قائما مفید ګڼړل.

۳: للامن من خروج الریح : ددې تشریح دا ده چه د رسول الله ﷺ عادت شریفه د قضاء حاجت په وخت د تباعد وو، خو په دې موقعه باندې د څه مجبورئ د وجې نه رسول الله ﷺ تباعد اونکړې شو بلکه خلقو ته نزدې ئې په آبادئ کښې استنجاء اوکړه، اوس که په ناسته باندې متیازې اوکړې شی نو هغه مظنه ده د خروج ریح په خلاف د قیام چه په دې کښې خروج نادر دې، دا توجیه د ابوعبدالله المازری رحمه الله او قاضی عیاض رحمه الله نه منقول ده، هر دواړه د شراح مسلم نه دی،

۴: لعدم وجدان مکان طاهر للقعود یعنی په کوم ځائې کښې چه رسول الله ﷺ متیازې کولې هغه ځائې ددې قابل نه وو چه په هغې کښې ناسته اوکړې شی، قاله ابن حبان...

۵: لخشیة انحدار البول دا توجیه د امام طحاوی رحمه الله نه منقول ده یعنی هغه ځائې داسې وو چه که هلته په ناسته متیازې کړې شوې وې نو د متیازو خپل طرف ته د راواپس کیدو خطره وه، په دې وجه رسول الله ﷺ په ولاړه متیازې اوفرمائیلې چه بل طرف ته لاړې شی.

---

(): صحیح البخاري/الوضوء ٦٠ (٢٢٤)، ٦١ (٢٢٥)، ٦٢ (٢٢٦)، المظالم ٢٧ (٢٤٧١)، صحیح مسلم/الطهارة ٢٢ (٢٧٣)، سنن الترمذي/الطهارة ٩ (١٣)، سنن النسائي/الطهارة ١٧ (١٨)، ٢٤ (٢٦، ٢٧، ٢٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٣ (٣٠٥)، (تحفة الأشراف: ٣٣٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٩٤)، سنن الدارمي/الطهارة (٩/٦٩٥) (صحیح)

﴿ قوله قَالَ فَذَهَبْتُ أَتَبَاعَدُ ﴾ یعنی حذیفه رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته نزدې د استنجاء اوبه کیخودلو سره لرې تلو چه هغوی ځانله ځائ کښې متیازې اوکړې خو چونکه هلته د پردې ضرورت وو په دې وجه رسول الله ﷺ هغوی د تلو نه منع کړو او خپل ځان سره ئې د نزدې اودریدلو حکم اوفرمائیلو چه د خلقو نه پرده راشی.

**بول قائما په باره کښې د احادیثو تعارض او د هغې توجیه :**

ځان پوهه کړه چه د بول قائما په سلسله کښې روایات مختلف دی لکه چه د ترمذی او نسائی نه معلومیږی او امام نسائی رحمه الله د دفع تعارض دپاره متعدد ابواب هم قائم فرمائیلی دی، ترمذی او نسائی په دې مقام کښې کتل پکار دی دهغې نه به مسئله واضحه شی ځکه چه امام ابوداؤد رحمه الله په دې مسئله کښې اختلافات روایات ته تعرض نه دی کړې، بهر حال د خلاصې په طور مونږ دلته ذکر کوو چه په ترمذی وغیره کښې د عائشې رضي الله عنها روایت دې : ﴿ من حدثكم ان رسول الله ﷺ بال قائما فلا تصدقوه ﴾ یعنی عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ د بول قائما نفی فرمائی او تردې فرمائی چه که یو سړې داسې بیان اوکړی نو د هغه تصدیق دې اونکړې شی، حال دا چه د روایت الباب یعنی حدیث حذیفه رضي الله عنه نه د هغوی بول قائما ثابتیږی، ددې تعارض ډیر جوابونه ورکړې شوې دی،

یو دا چه د عائشې رضي الله عنها غرض مطلقا نفی نه ده بلکه د هغوی مراد نفی د عادت ده لهذا یو ځل په ولاړه متیازې کول ددې منافی نه دی،

دویم جواب دا ورکړې شوې دې چه د هغوی مراد نفی د بیت او منزل په اعتبار سره ده او د حذیفه رضي الله عنه حدیث د خارج البیت سره متعلق دې،

دریم جواب دا دې چه عائشه رضي الله عنها د خپل علم په اعتبار سره نفی فرمائی.

په دې حدیث باندې یو اشکال دا دې چه د رسول الله ﷺ عادت شریفه د قضاء حاجت په وخت د ابعاد وو، او د لته هغوی داسې نه دی فرمائیلې؟

ددې جواب دا دې چه قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه ممکنه ده چه په امور مسلمین کښې د اشتغال په وجه باندې د رسول الله ﷺ مجلس ډیر اوږد شوې وی او د متیازو تقاضه ئې پیدا شوې وی نو ددې مجبورئ په بناء باندې رسول الله ﷺ لرې تشریف نه وی اوړلې هم په دې وجه امام نسائی رحمه الله په دې حدیث باندې باب تړلې دې الرخصة فی ترک الابعاد عند الحاجة.

**د حاء تحویل تشریح :**

﴿ قوله ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ ﴾ په سنن ابوداؤد کښې دا حاء د تحویل په اول ځل راغلې ده، په دې وجه ددې د وضاحت ضرورت دې، دا د محدثینو یو خاص اصطلاح ده چه کله د یو حدیث دوه یا د دوؤ نه زیات سندونه وی کوم چه په شروع کښې مختلف وی او وړاندې تلو سره یو شی نو هلته حضرات مصنفین د اختصار دپاره داسې کوی چه د اول سند کومه حصه چه غیر مشترک ده صرف هم هغه لیکی او دهغې نه پس حاء د تحویل لیکلو سره دویم سند شروع کولو سره هغه تر اخیره پورې لیکی چه په هغې کښې د دواړو سندونو مشترکه حصه هم راځی. داسې اختصار په دې صورت کښې پیدا شو چه کومه حصه

مشترک وه هغه صرف یو ځل ذکر شوه، هر یو سند که پوره لیکلي شوي وي نو ښکاره ده چه په هغې کښې به تکرار او طوالت راغلي وې نو اوس دلته دا کتل وی چه په سند ثانی کښې د سند مشترک حصه د کوم راوی نه شروع کیږی په دې کښې بعض وخت غلطی هم کیږی او دې راوی ته ملتقی السندین وائی.

د دې ضروری وضاحت نه پس ځان پوهول پکار دی چه په دې کښې اختلاف دې چه دا لفظ حاء مهمله دې او که خاء معجمه، په دې کښې دواړه اقوال دی، که خاء معجمه وی نو بیا په دې کښې دوه اقوال دی، اول دا چه دا مخفف دې د الی آخره یعنی الی آخر السند دویم قول دا دې چه دا مخفف دې د وبسند آخر ، او که حاء مهمله وی نو دا د څه مخفف دې په دې کښې څلور اقوال دی، ۱: مخفف دې د صح نه، ۲: مخفف دې د الحدیث نه، ۳: مخفف دې د الحائل نه، ۴: مخفف دې د التحویل نه، بیا یو بل اختلاف دلته دا دې چه دا لفظ به څنګه لوستلي شی؟ جواب دا دې چه مغاربه چه کله دلته راورسی نو دا التحویل لولی او مشارقه چه مونږ هم پکښې داخل یو دا حاء د حروف تهجی په شان لولی.

دلته دواړه سندونه په سلیمان باندې یو ځائې کیږی، یعنی شعبه او ابوعوانه دواړه دا حدیث د سلیمان نه روایت کوی، د سلیمان نه د سند مشترک حصه شروع کیږی نو سلیمان ملتقی السندین شو، ﴿ سلیمان ﴾ دا سلیمان بن مهران دې، مشهور دې په اعمش سره، ﴿ ابوعوانة ﴾ دا کنیت دې نوم د هغوی وضاح بن عبدالله دې ﴿ ابو وائل ﴾ د هغوی نوم شقیق بن سلمه دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَبُولُ بِاللَّيْلِ فِي الإِنَاءِ ثُمَّ يَضَعُهُ عِنْدَهُ

**باب دې په بیان د سړي کې چې متیازې کوي دشپې په لوښې کې بیا ئی دې د ځان سره**

**د ترجمة الباب غرض:**

د استنجاء آداب شروع دی په دې سلسله کښې یو ادب دا تیر شوې دې چه د رسول الله ﷺ عادت شریفه د بول و براز په وخت د تباعد اختیارولو وو خو ددې ځائې نه مصنف رحمه الله دا بیانوی چه د عذر د وجې نه کله کله د رسول الله ﷺ نه ددې خلاف هم ثابت دی یا دې داسې اوونیلې شی چه د مصنف رحمه الله غرض ددې باب نه بول فی الاناء لره ثابتول دی، ممکنه ده چه چاته دا شبهه پیدا شی چه په لوښی کښې متیازې کول صحیح نه دی، خو د ضرورت او د عذر احکام چونکه جدا وی، لهذا ضرورة او شرعا دا جائز کړې شو امام نسائی رحمه الله هم په دې باندې ترجمه قائم کړې ده بلکه دوه ابواب ئې منعقد کړې دی یو البول فی الاناء او دویم البول فی الطست.... په دې کښې په ظاهره تکرار معلومیږی ددې توجیه مونږ په الفیض السمائی کښې کړې ده.

د حدیث الباب نه معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ د لرګی یوه پیاله وه چه په هغې کښې به رسول الله ﷺ کله کله د حاجت او ضرورت په وخت د شپې متیازې کولې او هغه به ئې د خپل کټ د لاندې کیخودله او سحر به ئې بیا د خپل خادم په ذریعه باندې تویولې.

[۲۴]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ حُكَيْمَةَ بِنْتِ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ، عَنْ أُمِّهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: "كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدَحٌ مِنْ عِيدَانٍ تَحْتَ سَرِيرِهِ يَبُولُ فِيهِ بِاللَّيْلِ".

**ترجمه**: حکیمه بنت اُمیمه لور د رُقیقه، هغه روایت کوي د خپلې مور نه، هغې وئیلی دي: وه د نبي ﷺ لپاره یوه پیاله د لرګي نه لاندې د کټ د هغه نه، چه متیازې به ئې کولې په هغې کښې د شپې

**تشریح**: ﴿ قَدَحٌ مِنْ عَيْدَانٍ الخ ﴾ دا لفظ عیدان بفتح العین وبکسر العین دواړو طریقو سره راځي، که بالفتح وی نو جمع ده د عیدانة او عیدانه وائی د کهجورې تنې ته، او مطلب به دا وی چه دا تنه خالی کولو سره پیاله جوړه کړې شوې وه، او که بالکسر وی نو بیا جمع ده د عود په معنی د لرګی نو مطلب به دا وی چه رسول الله ﷺ سره د لرګی پیاله وه مشهور بالکسر دې، علامه سندی رحمه الله فرمائی چه بالکسر اګرچه مشهور دې خو معنٰی غلط دې، ځکه چه کله د څو لرګو نه پیاله جوړه شی نو په هغې کښې به رقیق څیز نه ایساریږی، لکه اوبه او متیازې وغیره، بعضو د جمع دا توجیه کړې ده چه د عیدان جمع راوړلې شوې ده دهغې د اجزاء په اعتبار سره، دا مطلب نه دې چه د څو لرګو په یو ځائې کولو سره جوړ کړې شوې وو په دې صورت کښې به د علامه سندهی رحمه الله اشکال نه واردیږی.

﴿ قوله: يَبُولُ فِيهِ بِاللَّيْلِ ﴾ دلته بعض شارحینو لیکلی دی چه د باللیل نه معلومه شوه چه د ورځې داسې کول مناسب نه دی الا لضرورة، او دا ئې هم لیکلې دی چه ظاهره دا ده چه داسې به رسول الله ﷺ د یخنئ په زمانه کښې کول، دویمه خبره حافظ عراقی رحمه الله دا لیکلې ده چه دا د هغه زمانې خبره ده په کومه زمانه کښې چه د بیوت الخلاء انتظام نه وو، هغه وخت به رسول الله ﷺ داسې کول ځکه چه د شپې په تباعد اختیارولو کښې د مشقت راتلل ښکاره دی، او که بیت الخلاء په کور کښې موجود وی نو بیا دهغې حاجت نشته خو ظاهره دا ده چه د بیت الخلاء د موجودیدو باوجود هم په هغې کښې دَدَه ګنجائش کیدل ښکار دی ځکه چه شپه مطلقا محل مشقت دې. (قاله صاحب المنهل)

## د رسول الله ﷺ د فضلات د طهارت مسئله:

حدیث الباب ابوداؤد او نسائی کښې خو صرف هم دومره خبره ده خو په بعض نورو کتب حدیث لکه بیهقی دارقطنی مستدرک حاکم وغیره کښې په دې حدیث کښې یو بل زیادت وارد دې چه یو ځل رسول الله ﷺ خپلې خادمې ام ایمن رضی الله عنها ته اوفرمائیل چه په دې پیاله کښې چه څه دی هغه تونې کړه، هغې عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ هغه خو ما اوڅکلې، نو په دې باندې رسول الله ﷺ هیڅ نکیر او نه فرمائیلو بلکه دا ئې اوفرمائیل چه ﴿ لن تشتکی بطنک ﴾ اوس به ته کله هم د خیټې په بیمارئ کښې اخته نه شې، ددې حدیث نه بعض علماء کرامو د رسول الله ﷺ د فضلات (بول وبراز) په طهارت باندې استدلال کړې دې

(): سنن النسائي/الطهارة ۲۸ (۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۸۲) (حسن صحيح)

کومه چه يو اختلافي مسئله ده، احقر د حضرت شيخ رحمه الله په ارشاد باندې ددې مسئلې تحقيق کړې دې او يو مضمون مې ليکلې دې چه په هغې کښې د مذاهب اربعه عبارتونه ليکلې شوې دی، تقريبا په ټولو مذاهب اربعه کښې ماته ددې د طهارت قول ملاؤ شو، دا مضمون طبع کيدو سره د شيم الحبيب په اخير کښې شامل کړې شوې دې، بعض اهل حديث په دې باندې غصه کيږي چه دا څه د واهياتو نه ډکه خبرې دی؟ بول وبراز هم پاک وی؟ خو د چا په غصه کيږي باندې څه کيږي چه هر کله منقول دی

احقر عرض کوی چه که د رسول الله ﷺ د فضلات طهارت تسليم کړې شی نو بيا خو په دې کښې د رسول الله ﷺ عظمت او علو شان ښکاره دې، خو که غير طاهر ورته اووئيلې شی نو بيا په بل طريق باندې د هغوی علو شان ثابتيږی هغه داسې چه د نورو انسانانو په شان د هغوی د بول وبراز د ناپاک کيدو باوجود رسول الله ﷺ ته دومره ترقي ورکړې شوه چه د ټولو اسمانونو نه پورته لاړو سبحان الله! څه عجيب شان دې (د رسول الله ﷺ) او بله دا چه په دې کښې د الله پاک قدرت او وسعت عطاء ښکاره ده.

**د حديث الباب د بعض احاديثو سره تعارض او د هغې جواب:**

دلته شارحينو دوه اشکالونه کړی دی.

**اول** دا چه حديث الباب معارض دې د هغه حديث چه په هغې کښې راځی ﴿ الملائكة لا تدخل بيتا فيه بول ﴾ کوم چه د مصنف ابن ابی شيبة روايت دې من حديث ابن عمر رضي الله عنهما، بل دا چه د طبرانی په روايت کښې دی کوم چه حضرت په بذل کښې ليکلې دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دې ﴿ لا ينقع بول فى طست فى البيت ﴾ چه په يو لوښی کښې دې متيازې کولو سره په کور کښې کينخودلې شی؟ جواب دا دې چه په حديث اول کښې مراد کثرت نجاست فی البيت دې يعنی کور لره د نجاست او ګندګۍ نه پاک ساتل پکار دی، او په دويم حديث مراد طول مکث دې چه په لوښی کښې متيازې جمع کولو سره هم هلته پريخودلې شی، او که د شپې متيازې کولو سره د سحر په وخت توئې کړې شی نو دا په ممانعت کښې داخل نه ده، دويم جواب حضرت په بذل کښې دا ورکړې دې چه که داسې اووئيلې شی چه بول فی الاناء والا روايت کوم چه په دې باب کښې ذکر دې کيدې شی چه دا د ابتدائی زمانې واقعه وی، د رسول الله ﷺ عادت مستمره نه وی، او دا د ممانعت والا روايات روستنی وی، لهذا هيڅ تعارض به پاتې نه شی خو په دې جواب باندې به دا اشکال راشی چه د شمائل په روايت کښې دی، ﴿ دعا بطست ليبول فيه ﴾ يعنی رسول الله ﷺ په خپل مرض الوفات کښې د متيازو دپاره لوښې طلب کړو، خو ددې جواب دا کيدې شی چه دا د يو خاص عذر د حالت واقعه ده عام حال نه دې. والله تعالى اعلم

دويم اشکال شراحو په دې مقام باندې دا کړې دې چه ﴿ قدح من عيدان ﴾ والا روايت دهغه حديث خلاف دې چه په هغې کښې راغلې دی ﴿ اكرموا عمتكم النخلة فانها خلقت من فضلة طينة ابيكم آدم عليه السلام ﴾ يعنی په دې حديث کښې د کهجورې اونې ته د انسان ترور وئيلې شوې ده او دا چه انسان له پکار دی چه د خپلې ترور يعنی کهجورې احترام

او کړی او وړاندې د عمه کیدو وجه په حدیث کښې دا بیان کړې شوه چه د کومې خاورې نه د ادم علیه السلام بدن جوړ کړې شوې وو هم د هغه خاورې او باقی پاتې مادې نه د نخلة تخلیق اوشو لهذا دا زمونږ د پلار (ادم علیه السلام) خور شوه؟ ددې تعارض جواب دا دې چه دا د عمه والا روایت بالاتفاق ضعیف دې بلکه ابن الجوزی رحمه الله دا په موضوعاتو کښې شمار کړې دې. او که د حدیث صحت تسلیم کړې شی نو بیا به دا وئیلې شی چه نخلة لره د پیالې جوړولو نه پس به په هغې باندې د نخلة اطلاق نه کیږی د هینت کذائیه د بدلیدو د وجې نه، لهذا د حدیث خلاف رانغلو

## بَابُ الْمَوَاضِعِ الَّتِي نَهَى النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم عَنِ الْبَوْلِ فِيهَا

### باب دې په بیان د هغه ځایونو کښې چې رسول الله صلی الله علیه منع کړې ده د متیازو کولو نه په هغې کې

د کتاب په شروع کښې یو باب تیر شوې دې باب الرجل یتبوأ لبوله چه د متیازو دپاره مناسب ځائې لټول پکار دی دا باب د هغې مقابل دې، د حدیث الباب نه معلومیږی چه په داسې ځائې کښې چه هلته سورې وی او خلق کینې پاسی هلته استنجاء کول ممنوع دی. او هم دغه شان په روانه لار باندې په کومې چه خلق ځی راځی.

| |
|---|
| [۲۵]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اتَّقُوا اللَّاعِنَيْنِ، قَالُوا: وَمَا اللَّاعِنَانِ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: الَّذِي يَتَخَلَّى فِي طَرِيقِ النَّاسِ أَوْ ظِلِّهِمْ". |

**ترجمه**: د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې. یقیناً رسول الله صلی الله علیه وسلم وئیلی دی. خان اوساتئ د دوه هغه شیانو نه چه سبب د لعنت ګرځي، نو هغوی اووئیل لاعنان څه شی دی اې د الله رسوله! هغه اووئیل هغه کس چه قضاء حاجت کوي په لار دخلکو کښې اویاپه سورې دهغوی کښې

### د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:

په حدیث کښې لفظ تخلی راغلې دې چه دهغې تفسیر حضرت په بذل کښې او هم دغه شان امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې په تغوط سره کړې دې یعنی لوئې بول (دکې متیازې) نو بیا د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت څنګه دې په ترجمة الباب کښې خو د بول ذکر دې؟ جواب دا دې چه د ترجمې اثبات په طریقه د قیاس دې یعنی مصنف رحمه الله بول لره په تخلی او تغوط باندې قیاس کوی، ددې نه غوره جواب دا دې چه داسې اووئیلې شی چه تخلی د خپل مفهوم په اعتبار سره عام ده تغوط او بول دواړو ته شامل ده، او مصنف رحمه الله په خپل ترجمه کښې د بول تخصیص هم دې عموم ته د اشارې کولو دپاره کړې دې چه بول هم د حدیث په مفهوم کښې داخل دی فلا حاجة الی القیاس. ګویا د مصنف رحمه الله رائې د عموم شوه په خلاف د امام نووی چه هغوی د تخلی تفسیر صرف په تغوط سره کړې دې لکه چه په منهل کښې دی.

(): صحیح مسلم/الطهارة ۲۰ (۲۶۹)، (تحفة الأشراف: ۱۳۹۷۸)، وقد أخرجه: حم (۲/۳۷۲) (صحیح)

﴿ قوله: اتَّقُوا اللاَّعِنَيْنِ ﴾ په لاعن کښې دوه احتمالونه دی، یا دا اسم فاعل په خپله معنی کښې دې یا په معنی د ملعون دې، ځکه چه ډیر کرته فاعل د مفعول په معنی کښې راځی لکه چه وئیلې شی کاتم یعنی مکتوم هم دغه شان دلته لاعن په معنی د ملعون دې، او بهر حال مضاف مقدر دې یعنی اتقوا فعل اللاعنین... ځکه چه د ذات لاعن نه بچ کیدل مقصود نه دی بلکه د هغه فعل نه بچ کیدل دی او مطلب دا دې چه اې خلقو! د هغه دوؤ کارونو نه بچ شئ د کومو کونکی چه ملعون دی، خلق په هغوی باندې لعنت کوی او خیرې ورته کوی، او که لاعن په خپله معنی واخستلې شی نو هغه په دې لحاظ سره چه دا دوه کسان چونکه په خپل اختیار سره داسې کار کوی چه په هغې باندې لعنت مرتب کیږی نو گویا هغوی خپله په خپل ځان باندې لعنت کوی.

وړاندې د لاعنین بیان دې ﴿ الَّذِی یَتَخَلَّی فِی طَرِیقِ النَّاسِ أَوْ ظِلِّهِمْ ﴾ یعنی صحابه کرامو رضی الله عنهم تپوس اوکړو یا رسول الله ﷺ! لاعنین څوک دی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل یو هغه سړې چه د خلقو په لاره کښې بول و براز کوی، او دویم هغه سړې چه د خلقو د (ناستې په ځائې یعنی) سورو کښې بول وبراز کوی، د طریق او د ظل اضافت د ناس طرف ته ددې بیان دپاره شوې دې چه د لارې نه مراد داسې لاره ده چه د خلقو پرې تړ راتړ جاری وی، او که یو سړک او لاره غیر آباد وی د هغه ځائې نه د خلقو تلل راتلل منقطع شوې وی نو هغه ددې حکم نه خارج دی، په هغې کښې علت د ممانعت یعنی د خلقو اذیت نه شی موندلې، علی هذا القیاس د سورې حکم دې چه د کوم سورې نه خلق انتفاع اخلی هغه مراد دې مطلق سورې نه دې مراد ځکه چه په دې کښې هیڅ تاذی نشته، او شارحینو لیکلې دی چه د اشتراک علت د وجې نه هم ددې ظل په حکم کښې د نمر لګیدو ځائې (پیتاوې) هم داخل دې، یعنی هغه ځائې چرته چه نمر لګی او خلق هلته د یخنۍ نه د بچ کیدو دپاره کینی.

[۲۶]() حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُوَیْدٍ الرَّمْلِیُّ، وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَبُو حَفْصٍ، وَحَدِیثُهُ أَتَمُّ، أَنَّ سَعِیدَ بْنَ الْحَکَمِ حَدَّثَهُمْ، أَخْبَرَنَا نَافِعُ بْنُ یَزِیدَ، حَدَّثَنِی حَیْوَةُ بْنُ شُرَیْحٍ، أَنَّ أَبَا سَعِیدٍ الْحِمْیَرِیَّ حَدَّثَهُ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ: "اتَّقُوا الْمَلَاعِنَ الثَّلَاثَةَ: الْبَرَازَ فِی الْمَوَارِدِ، وَقَارِعَةِ الطَّرِیقِ، وَالظِّلِّ".

**ترجمه**: د معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی چه رسول الله ﷺ وئیلی دی: ځان بچ کړئ د ملاعن ثلاثو نه. متیازې کول په ګودرونو کښې، اوپه عامه لار کښې، او په سورې کښې.

**تشریح**: ﴿ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ الخ اتَّقُوا الْمَلَاعِنَ الثَّلَاثَ ﴾ ملاعن جمع د ملعن ده یا د ملعنة، او په دواړو صورتونو کښې یا مصدر میمی دی یا ظرف مکان دې په معنی د مواضع اللعن، بله دا چه ملعنة د سبب لعن په معنی کښې هم راځی، په یو صورت کښې به مطلب دا وی چه د لعنتونو نه بچ شئ، او په بل صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه د مواضع لعن نه بچ شئ، او په یو صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه د اسباب لعن نه بچ شئ چه درې دی، ۱: البزار فی الْمَوَارِدِ ۲: و البزار فی قَارِعَةِ الطَّرِیقِ ۳: والبزار فی الظِّلِّ.

(): سنن ابن ماجه/الطهارة ۲۱ (۳۲۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۷۰) (حسن)

په موارد کښې درې احتمالونه دی. ۱: یا ددې نه مراد مناهل الماء دی یعنی د اوبو د څینو ګودرونه، یا ددې نه مراد طرق الماء دی یعنی هغه لارې چه په یو څینه تیرې شوې وی، یا ددې نه مراد مطلق د خلقو د مجالسو او د ناسې ولاړې او د تلو راتلو ځایونه مراد دی. د قارعة الطریق نه مراد وسط الطریق دې یعنی په موارد کښې بول وبراز کول، د لارې په مینځ کښې،یاپه سوری کښې، دلته فعل خو یو دې بول و براز خو د مختلفو ځایونو په اعتبار سره دې ته درې وئیلې شوې دی، ګویا د درې ځایونو په اعتبار سره درې فعلونه شو.

په دې باب کښې مصنف رحمه الله دوه احادیث ذکر کړی دی، اول حدیث د ابوهریره رضي الله عنه دې چه دهغې تخریج امام مسلم رحمه الله هم فرمائیلې دې او دا حدیث د سند په اعتبار سره قوی دې، غالبا هم په دې وجه مصنف رحمه الله دا مقدم فرمائیلې دې او حدیث ثانی د معاذ بن جبل رضي الله عنه دې دا د ابوداؤد نه علاوه په ابنِ ماجه کښې دې او سندا ضعیف دې ځکه چه ددې په سند کښې یو راوی دې ابوسعید الحمیری، وئیلې شوې دی چه هغه مجهول دې، بله دا چه د هغه سماع د معاذ بن جبل رضي الله عنه نه ثابت نه ده په دې وجه منقطع شو.

**فائده** : اوس مونږ بیان اوکړو چه حدیث اول سندا قوی دې عام طور سره د مصنفینو رحمهم الله طرز هم دا دې چه هغوی حدیث قوی اول ذکر کوی او ضعیف روستو راوړی، خو د امام ترمذی رحمه الله طرز ددې برعکس دې هغوی عام طور سره غریب او ضعیف اول ذکر کړی او قوی روستو راوړی بلکه ډیر کرته احادیث قویه پریږدی او په غریب او ضعیف باندې اکتفاء کوی، په ظاهر کښې ددې وجه دا ده چه په حدیث قوی باندې خو کلام کولو ته حاجت نشته هغه خو مفروغ عنه دې، او حدیث ضعیف چونکه تنبیه ته محتاج دې په دې وجه هغوی ددې ذکر لره زیات اهم ګڼړی خلقو لره دهغې د ضعف نه د خبرولو دپاره. والله تعالی أعلم.

## بَابٌ فِي الْبَوْلِ فِي الْمُسْتَحَمِّ

### باب دې په د بولو کولو کښې په غسل خانه (حمام) کښې

مستحم د حمیم نه اخستلې شوې دې چه دهغې معنی ګرامې اوبه دی پس د مستحم معنی د ماء حمیم د استعمال د ځائې شوه ددې نه پس ددې اطلاق په غسل خانه باندې شروع شو که په هغې کښې د ماء حمیم استعمال وی یا د ماء بارد، او بعض علماء کرامو فرمائیلې دی چه لفظ حمیم د اضداد د قبیل نه دې، ددې اطلاق په ماء حار او بارد دواړو باندې کیږی، مستحم، مغتسل، حمام درې واړه یو معنی لری، وراندې په ابواب المساجد کښې یو حدیث راروان دې چه په هغې کښې لفظ حمام ذکر شوې دې ﴿ الارض کلها مسجد الا الحمام والمقبرة ﴾ او نن صبا په حجاز کښې لفظ حمام زیات رائج او مستعمل دې.

[۲۷]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ أَحْمَدُ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ،

(): سنن الترمذي/الطهارة ۱۷ (۲۱)، سنن النسائي/الطهارة ۳۲ (۳٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲ (۳۰٤)، (تحفة الأشراف: ۹٦٤۸)، وقد أخرجه:حم (٥/٥٦) (صحيح)

أَخْبَرَنَا أَشْعَثُ، وَقَالَ الْحَسَنُ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي مُسْتَحَمِّهِ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ"، قَالَ أَحْمَدُ: ثُمَّ يَتَوَضَّأُ فِيهِ، فَإِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ.

**ترجمه**: د عبد الله بن مغفل رضی الله عنه نه روایت دې هغه وائی، وئیلی دي رسول الله ﷺ: متیازې دې نه کوي يو ستاسو نه په غسل خانه کښې چه بیا غسل کوي په هغې کښې، وئیلی دي احمد: چه بیا اودس کوي په هغې کښې ځکه چه عامه وسوسه ددې نه ده.

**په لفظ یغتسل کښې وجوه اعراب**:

١ ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ الخ قوله ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ ﴾ دلته ﴿ ثم ﴾ د استبعاد دپاره دې يعنی دا خبره د عقل مند نه بعید ده چه چرته غسل اوکړی هم هلته متیازې اوکړی. د یغتسل په اعراب کښې دوه احتمالونه دی. ١: رفع: په دې وجه چه دا خبر دې د مبتداء محذوف یعنی ثم هو یغتسل فیه.. ٢ نصب: په تقدیر د ان سره، خو علامه قرطبی رحمه الله ددې نه انکار کړې دې هغوی فرمائی چه د ثم نه پس ان مقدر نه وی خو ابن مالک رحمه الله فرمائی چه ثم کله د واؤ په معنی واخستلې شی نو ان مقدر کیدې شی په دې باندې امام نووی رحمه الله فرمائی که ثم د واؤ په معنی کښې واخلو نو مطلب به دا وی چه ممانعت د دواړو د جمع کولو د وجې نه دې هر يو کار بیل بیل کیدلې شی حال دا چه صرف متیازې کول هم په غسل خانه کښې منع دی که د غسل نه مخکښې ئې اوکړی او که روستو د امام نووی رحمه الله ددې اعتراض جواب ابن هشام رحمه الله دا ورکړې دې چه د ابن مالک رحمه الله مراد دا دې چه ثم ته به د واؤ حکم ورکړو په تقدیر د ان کښ، دا مطلب نه دې چه دا به دهغې په معنی اخلو چه هغه اعتراض وارد شی کوم چه نووی کړې دې. او ابن دقیق العید رحمه الله يو بله خبره فرمائیلې ده چه دا وئیل هم صحیح دی چه په حدیث کښې د جمع کولو نه منع کړې شوې ده، اوس پاتې شوه دا خبره چه صرف د متیازو کولو نه هم منع ده ددې جواب دا دې چه دا ضروری خو نه ده چه ټولې خبرې دې د يو حدیث نه معلومې شی د جمع بین الغسل والبول حکم ددې حدیث نه معلومیږی او د بول منفردا حکم د بل حدیث نه معلومیږی لکه چه هم په دې باب کښې وړاندې راروان دې.

خان پوهه کړه چه د شارحینو او فقهاء کرامو په دې کښې اختلاف دې چه په کومه غسل خانه کښې متیازې کول ممنوع دی پس د جمهورو رائې دا ده چه ددې نه مراد رخوه زمکه مراد ده یعنی هغه غسل خانه چه دهغې زمکه کچه وی ځکه چه په هغې کښې به ناپاکه او ګنده اوبه جمع کیږی او که په غسل خانه کښې ئې پوخ فرش وی یا ئې کانړې کیخودلې وی نو بیا هیڅ باک نشته، او د امام نووی رحمه الله رائې ددې برعکس ده هغوی فرمائی چه ممانعت په هغه وخت کښې دې چه کله په غسل خانه کښې پوخ فرش وی او که نرمه زمکه وی نو هیڅ باک نشته ځکه چه نرمه زمکه به متیازې او اوبه جذب کړی هغه به دننه ځی. په خلاف د کانړی او پوخ فرش چه په هغې باندې اوبه اولویږی نو دهغې نه به داړې وهی چه په هغې سره به وسوسې پیدا کیږی. والله تعالی أعلم.

احقر وائی ددې دواړو قولونو په مینځ کښې د جمع (تطبیق) کولو صورت دا دې چه په یو غسل خانه کښې دې هم متیازې اونکړې شی چه په دواړو اقوالو باندې عمل اوشی او د ظاهر الفاظ حدیث د رعایت تقاضا هم دا ده خو دا څیز د آدابو د قبیلې نه دې، لهذا په غسل خانه کښې متیازو کولو ته مطلقا ناجائز او حرام وئیل به غلو وی کومه چه مذموم ده، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې په صاحب عون باندې رد کولو سره هم ددې تردید فرمائیلې دې او د عبدالله بن المبارک رحمه الله قول کوم چه په ترمذی کښې منقول دې ﴿ قال ابن المبارک قد وسع فی البول فی المغتسل اذا جری فیه الماء ﴾ حضرت ددې تائید فرمائیلې دې

﴿ قوله: فَإِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ ﴾ په مصنف ابن ابی شیبه کښې د انس رضی الله عنه نه روایت دې ﴿ انما نهی عن البول فی المغتسل مخافة اللمم ﴾ چه د بول فی المغتسل ممانعت د لیونتوب د ویرې نه دې او په حدیث الباب کښې ددې وجه وساوس وئیلې شوې ده؟ جواب دا دې چه په دواړو کښې هیڅ تعارض نشته وسوسه هم یو قسم جنون دې، والجنون فنون.

**تشریح سند**: ﴿ قوله احمد الخ ﴾ په دې سند کښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان دی یو احمد او یو حسن بن علی، د دواړو په بیان کړې شوې سند کښې لږ فرق دې، دلته مصنف رحمه الله هغه فرق بیانوی چه څا څنګه سند بیان کړو، پس فرمائی چه د عبدالرزاق نه چه کوم مخکښې سند دې هغه امام احمد رحمه الله داسې بیان کړې دې: قَالَ أَحْمَدُ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ أَخْبَرَنِي أَشْعَثُ او د مصنف رحمه الله دویم استاد یعنی حسن بن علی داسې اوفرمائیل عَنْ أَشْعَثَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ..... اوس په دې کښې دوه فرقونه شو یو دا چه د احمد په روایت کښې د اخبار تصریح ده او حسن روایت په طریق د عنعنه بیان کړې دې په ځائې د اخبرنی ئې عن اشعث اوویلو دویم فرق دا چه د احمد په کلام کښې اشعث غیر منسوب واقع شوې دې او د حسن په کلام کښې د نسبت سره پس هغوی اووئیل اشعث بن عبدالله، په بذل کښې حضرت صرف هم دا دوه فرقونه بیان کړی دی، دلته یو دریم فرق هم راوتلې شی چه دهغې طرف ته زمونږ حضرت شیخ رحمه الله د بذل په حاشیه کښې اشاره کړې ده هغه دا چه د احمد په روایت کښې د عبدالرزاق او اشعث ترمینځه د معمر واسطه ده په خلاف د حسن بن علی د روایت چه هغوی د معمر واسطه نه ده ذکر کړې په ظاهر کښې خو هم دغه شان ده باقی په یقین سره هیڅ نه شی وئیلې چه د حسن په روایت کښې د معمر واسطه شته او که نه، په دې وجه د کتب حدیث طرف ته مراجعت او د طرق حدیث د تتبع حاجت دې بغیر دهغې نه فیصله ممکن نه ده، والله تعالی اعلم بالصواب.

[۲۸]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ حُمَيْدٍ الْحِمْيَرِيِّ وَهُوَ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ: لَقِيتُ رَجُلًا صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا صَحِبَهُ أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَمْتَشِطَ أَحَدُنَا كُلَّ يَوْمٍ أَوْ يَبُولَ فِي مُغْتَسَلِهِ".

[1]: سنن النسائي/الطهارة ۱۴۷ (۲۳۹)، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۵٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۰/٤، ۱۱۱، ۳٦۹/۵) (صحيح)

**ترجمه:** حمید بن عبدا لحمیري نه روایت دي چه هغه ابن عبد الرحمن دی، وایي: زما ملاقات اوشو د یو سړي سره چه د رسول الله ﷺ صحبت ئې کړی وو لکه څرنګه چه ورسره ابوهریره صحبت کړی وو، هغه اووئیل چه منع کړي ده رسول الله ﷺ چه سرګمنز کړي یو کس زمونږ نه هره ورځ، او یا متیازې اوکړي په ځائې د غسل کښې.

**تشریح:** قوله :﴿ لَقِيتُ رَجُلاً الخ ﴾ دا رجل مبهم صحابی رضی الله عنه دې او د صحابی په مجهول کیدو سره په روایت باندې هیڅ اثر نه پریوځی ځکه چه ټول صحابه کرام رضی الله عنهم عدول دی، ددې رجل مبهم په تعین کښې شارحینو درې احتمالات لیکلي دي:

۱: عبدالله بن سرجس رضی الله عنه، ۲: حکم بن عمرو الغفاری رضی الله عنه ۳: عبدالله بن مغفل رضی الله عنه، د سند دا الفاظ هم دغه شان وړاندې د باب الوضوء بفضل طهور المراءة نه په وړاندې باب کښې راروان دی هلته یو زیادت دې ﴿ لقیت رجلا صحب النبی ﷺ اربع سنین کما صحبه ابوهریره رضی الله عنه ﴾ ددې نه معلومه شوه چه تشبیه د صحبت په موده کښې ده.

د باب په دې دویم حدیث کښې دوه ادبونه ذکر شوي دی یو دا چه په مغتسل کښې دې متیازې اونکړې شی، دویم دا چه هره ورځ دې امتشاط یعنی ګومنځ اونکړې شی، علماء کرامو لیکلي دی چه په دې سره ویښته اوڅی حال دا چه د ګیرې د غټولو حکم دې دویمه دا چه دا د باب زینت نه دې کوم چه د شهامت رجال خلاف دې، زینت خو د زنانو شان دې، قال الله تعالی : أَوَمَنْ يُنَشَّأُ فِي الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ الاية.

ابن العربی د امتشاط په باره کښې درې خبرې لیکلي دی هغوی فرمائی چه ﴿موالاته تصنع وترکه تدلیس واغبابه سنة ﴾ یعنی په کثرت سره ګومنځ کول دا سراسر تصنع ده او دا مطلق ترک کول خلقو ته دهوکه ورکول دی چه مونږ ډیر زاهدان او د خپل نفس نه بې خبر یو، او په مینځ کښې یوه ورځ پریخودلو سره ګومنځول سنت دی، پس په یو روایت کښې دی ﴿ نهی عن الترجل الا غبا ﴾ دا روایت به په ابوداؤد کښې وړاندې راشی. بل دا چه په اغباب کښې یو قسم سادګی ده چه دهغې تعلق د ایمان سره دې ﴿ البذاذة من الایمان ﴾.

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْبَوْلِ فِي الْجُحْرِ

### باب دې په بیان د منع کې د متیازو نه په سوړه کې

[۲۹][1] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجِسَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يُبَالَ فِي الْجُحْرِ"، قَالَ: قَالُوا لِقَتَادَةَ: مَا يُكْرَهُ مِنَ الْبَوْلِ فِي الْجُحْرِ؟ قَالَ: كَانَ يُقَالُ: إِنَّهَا مَسَاكِنُ الْجِنِّ.

**ترجمه:** د عبد الله بن سرجس نه روایت دې، چه یقیناً رسول الله ﷺ منع کړي ده د متیازو کولو نه په سوړه کښې، هلکو اووئیل قتاده ته، په سوړه کښې متیازې ولې مکروه دي؟

---

[1]: سنن النسائي/الطهارة ۳۰ (۳٤)، (تحفة الأشراف: ۵۳۲۲)، مسند احمد (۸۲/۵) (ضعيف) (ضعيف أبي داود: ۸ والإرواء: ۵۵، وتراجع الألباني: ۱۳۱)

هغه اووئيل: وو چه دا به وئيل كيدل چه هغه د پيريانو د اوسيدو ځايونه دي.

**تشريح:** د دې آدابو نه دا ده چه په يو سوری كښې متيازې اونكړې شی لفظ جحر بضم الجيم وسكون الحاء، چه دهغې معنى د ثقب او د سوړې ده، پس په حديث الباب كښې د عبدالله بن سرجس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ددې نه منع فرمائيلې ده چه په سوړه كښې متيازې اوكړې شی.

﴿ قوله قَالَ قَالُوا لِقَتَادَةَ رضى الله تعالى عنه ﴾ د قال ضمير راجع دې د قتاده شاګرد طرف ته كوم چه په دې سند كښې هشام دې، هشام وائی چه د قتاده رضي الله عنه شاګردانو د هغوی نه تپوس اوكړو چه په سوړه كښې د متيازو كولو نه ممانعت ولې دې؟ هغوی جواب وركړو چه ددې وجه دا بيانولې شی چه دا سوړې چه كومې وی دا مساكن الجن دی د جن نه مراد عام دی، هر هغه څيز چه د نظر نه پټ وی كه هغه جنات وی او كه څه ضرری څيز لكه مار لړم وغيره حشرات الارض، ځكه چه جن ماخوذ دې د اجتنان نه چه دهغې معنى د پټيدو ده، اوس په سوړه كښې په متيازې كولو كښې دوه احتمالات دی يو خپل ذات ته د ضرر رسولو يا هغه څيز ته د ضرر رسيدو كوم چه په سوړه كښې وی، غرض دا چه د ضرر نه خالی نه دې

**نحوی تحقيق:** ﴿ مَا يُكْرَهُ مِنَ الْبَوْلِ ﴾ كښې دوه احتمالونه دی ړومبی احتمال يا خو ما موصوله ده او يكره دهغې صله ده او د ﴿ من البول ﴾ بيان دې موصول سره د صله نه مبتدا او ماذا سببه ددې خبر محذوف دې اوس به ترجمه دا وی چه هغه څيز مكروه دې يعنى په سوړه كښې متيازې كول ددې سبب څه دې،

دويم احتمال دا دې چه ما استفهاميه وی د ﴿ لم ﴾ په معنى كښې په دې صورت كښې به من زائده وی او بول به د يكره نائب فاعل وی، يعنى لم يكره البول فى الجحر.. په سوړه كښې متيازې كول ولې مكروه دی؟ په دې صورت كښې به په عبارت كښې هيڅ هم محذوف منلو ته ضرورت نه وی او ﴿ انها مساكن الجن ﴾ كښې ضمير مونث يا خو جحر ته راجع دې په تاويل د فرجه او يا دې داسې اووئيلې شی چه د جحر نه اجحار مفهوم كيږی دهغې طرف ته راجع دې ځكه چه مفرد په جمع باندې او جمع په مفرد باندې دلالت كوی.

دلته شارحينو ددې حديث په تائيد كښې يو واقعه ليكلې ده هغه دا چه سعد بن عبادة الخزرجی رضي الله عنه يو ځل په سوړه كښې متيازې اوكړې پس ناڅاپه بيهوشه كيدو سره راپريوتلو او وفات شو، غيبی آواز راغلو كوم چه اوريدونكو واوريدلو ع

نحن قتلنا سيد الخزرج سعد بن عبادة فرميناه بسهم فلم يخطئ فؤاده

د رسول الله ﷺ دا تعليمات چه يو طرف ته زمونږ د شريعت په جامعيت باندې دلالت كوی نو بل طرف ته د رسول الله ﷺ په غايت شفقت او محبت او امت سره د همدردئ خبر وركوی، صلى الله عليه وسلم شرف وكرم.

# بَاب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ

**باب دې په بيان د هغې کې چې سړى يې وايي کله چې راوځي د بيت الخلاء نه**

د بيت الخلاء نه د بهر راتلو د دعاء بيان، د داخليدو په د وخت د دعاء لوستلو باب ډير مخکښې تير شوې دې، مصنف رحمه الله په دې دوه ابوابو کښې فصل ولې اوکړو، متصلا ئې د يو بل نه پس ولې ذکر نه کړل لکه څنګه چه د قياس تقاضه ده، دلته يو سوال پيدا کيږي، دا خبره يو شارح هم نه ده کړې، زما په خيال دې کښې حکمت دا کيدې شي چه په دې کښې د تذکير او د ياداشت فائده ده يعنې تيره شوې خبره کومه چه څو ورځې مخکښې لوستلې شوې وه دهغې په دې باب کښې دوباره تکرار اوکړې شي چه په هغې سره په سابق علم کښې تازګي پيدا شي کوم چه په حفظ کښې معين دې او ښکاره ده چه په يو ځائې کښې ذکر کولو سره دا فائده نه حاصليږي

[۳۰]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ النَّاقِدُ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْغَائِطِ، قَالَ: غُفْرَانَكَ".

**ترجمه:** ابو برده وائي چه ماته عائشې رضي الله عنها حديث بيان کړې دې چه يقيناً نبي ﷺ وو چه کله به وتلو د بيت الخلاء نه نو وئيل به ئې (غفرانکَ) اې الله زه بخښنه غواړم تا نه.

**تشريح:** قوله :﴿ حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ ﴾ په دې باب کښې مصنف رحمه الله يو حديث بيان فرمائيلې دې هغه دا چه رسول الله ﷺ به چه کله د بيت الخلاء نه بهر تشريف راوړلو نو ﴿ غفرانک ﴾ به ئې لوستلو. په بل حديث کښې ددې نه علاوه نورې دعاګانې هم راغلې دی، پس په يو روايت کښې دی : ﴿ الحمد لله الذى اذهب عن الاذى وعافانى ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ الحمد لله الذى اذهب عنى ما يوذينى وابقالى ما ينفعنى ﴾ غوره دا ده چه دواړه دعاګانې يو ځائې اولوستلې شی

(**په غفرانک کښې وجه د نصب**): په ﴿ غفرانک ﴾ کښې دوه احتمالونه دی يو د مفعول مطلق کيدو او د مفعول به کيدو تقدير د عبارت به داسې وی ﴿ اغفر غفرانک يا اسئلک غفرانک ﴾ اې الله زه ستا بخښنه غواړم

**د دعاء ماثور ددې مقام سره مناسبت کښې توجيهات** :

دلته يو مشهور سوال دې چه ددې دعاء دې مقام سره څه مناسبت دې؟ حضرات علماء کرامو ددې مختلف توجيهات بيان فرمائيلی دی،

۱ : يو دا چه رسول الله ﷺ به هر وخت په ذکر کښې مشغول وو لکه چه په تير باب کښې تير شو خو په بيت الخلاء کښې چونکه ذکر کول جائز نه دی په دې وجه به ئې مجبورا ذکر کښې

(): سنن الترمذي/الطهارة ٥ (٧)، سنن النسائي/الكبرى (٩٩٠٧)، اليوم والليلة (٧٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠ (٣٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٩٤)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة (٧٠٧/١٧) (صحيح)

انقطاع راتله نو دا انقطاع به ئې تقصير ګڼرلو او استغفار به ئې فرمائيلو.
۲. دويم قول دا دې چه اګر که رسول الله ﷺ به په دې حالت کښې ذکر لساني ترک کولو خو ذکر قلبي به ترې نه په دې وخت کښې هم بې اختياره صادر کيدلو کوم چه به رسول الله ﷺ د کمال ادب خلاف ګڼرلو سره به ئې روستو استغفار کولو.
۳. يو دريمه توجيه دا کړې شوې ده چه د قضاء حاجت نه د فراغت په وخت د نعمت غذا د تکميل وخت دې، اول الله پاک د خوراک څکاک نعمت عطاء اوفرمائيلو بيا ئې هغه په سهولت سره د حلق نه تير کړو ګيني ډير کرته تالو هم بند شي بيا د معدې هغه خوراک لره قبلول او دهغې هضم کيدل، او د هضم کيدو نه پس د کار څيز په بدن کښې پاتې کيدل او د ټولو نه په اخير کښې فضله په عافيت سره د بدن نه بهر راتلل کومه چه آخرى مرحله ده، غرض دا چه دا د نعمت غذا د تکميل وخت دې چه دهغې حق او شکر زمونږ نه نۀ شي ادا کيدلې په دې تقصير باندې رسول الله ﷺ امت ته د استغفار تعليم اوفرمائيلو يو توجيه دا هم کړې شوې ده چه د بدن چه کله کومه فضله اوځي هغه نجاست حسيه دې په دې سره د رسول الله ﷺ ذهن نجاست معنويه يعنى د معاصي طرف ته منتقل شو په دې باندې به هغوى استغفار فرمائيلو، وئيلې شي الشئ بالشئ يذكروا الكلام الى الكلام ينجر.
په بعض شروحو کښې ددې دعاء د اصل په سلسله کښې يو بله خبره ليکلې ده هغه دا چه سيدنا ادام عليه السلام چه کله د آسمان نه زمکې ته راکوز کړې شو نو هغوى ته د قضاء حاجت ضرورت راپيښ شو، او هغوى ته رائحه کريهه محسوس شوه نو د هغوى خيال راغلو چه دا زما د تقصير اکل شجره اثر دې، په دې باندې هغوى فورا ﴿ غفرانک ﴾ اولوستل، نو د هغه وخت نه دا د بابا ادم عليه السلام سنت راروان دې.

## بَابُ كَرَاهِيَةِ مَسِّ الذَّكَرِ بِالْيَمِينِ فِي الِاسْتِبْرَاءِ

### باب دې په بيان د مکروه والې د ښي لاس د ذکر سره په وخت د ځان پاکولو کې

د دې ټولو آدابو نه يو ادب دا هم دې چه د استنجاء په وخت مس ذکر باليمين نه دې کيدل پکار، په حديث الباب کښې دوه آداب ذکر شوې دى يو د استنجاء باليمين ممانعت او دويم د مس ذکر باليمين ممانعت، يعنى په ښى لاس دې نه استنجاء اوکړې شى او نه دې په هغې سره مس ذکر اوکړې شى، د استنجاء باليمين حکم خو په تيرو ابوابو کښې راغلې دې، دلته مقصود مس ذکر باليمين دې په حديث الباب کښې د مس ذکر باليمين ممانعت مطلقا دې، په ترجمة الباب کښې مصنف رحمه الله دا د استنجاء سره مقيد کړې دې يعنى د استنجاء قيد ئې ذکر کړې دى نه کوى، د امام بخارى رحمه الله رائې هم دا ده هغوى هم په ترجمة الباب کښې د استنجاء قيد ذکر فرمائيلې دې او د علامه عينى او نووى رائې دا ده چه ممانعت مطلقا دې د استنجاء په وخت هم او بغير دهغې نه هم په دې باب کښې مصنف رحمه الله درې احاديث ذکر کړې دى.

[۳۱]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا بَالَ أَحَدُكُمْ، فَلَا يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ، وَإِذَا أَتَى الْخَلَاءَ، فَلَا يَتَمَسَّحْ بِيَمِينِهِ، وَإِذَا شَرِبَ، فَلَا يَشْرَبْ نَفَسًا وَاحِدًا"

**ترجمه**: عبد الله بن ابي قتادة نه روايت دي، هغه روايت کوي د خپل پلار نه، هغه وئيلي دي، چه وئيلی دي رسول الله ﷺ: کله چه متيازي کوي يو کس ستاسو نه نو نه دې مسه کوي خپل ذکر په ښي لاس، او کله چه راشي بيت الخلاء ته نو استنجاء دي نه کوي په ښي لاس، او کله چه څکل کوي نو څکل دي نه کوي په يوې ساه باندي.

**تشريح**: ۱: ﴿قوله عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ : إِذَا بَالَ أَحَدُكُمْ فَلاَ يَمَسَّ الخ﴾ په دې مقام باندې شارحينو ته يو اشکال راغلې دې کوم چه په بذل کښې حضرت په تفصيل سره نقل فرمائيلې دې، هغه دا چه په دې حديث کښې د مس ذکر باليمين او د استنجاء بالمين دواړو ممانعت کړې شوې دې چه دهغې مطلب دا دې چه د استنجاء په وخت ښې لاس مطلقا نه دی استعمالول پکار، حال دا چه د استنجاء بالحجر په وخت د دواړو لاسونو استعمال ضروری دې چه په يو لاس کښې لوټه اخستلو سره استنجاء اوکړې شی او په دويم لاس کښې امساک ذکر وی يعنی ذکر لره نيولو سره په لوټه باندې بار بار کيخودلې شی تر دې چه هغه مقام خشک شی، اوس که استنجاء باليسار کوی يعنی په ګس لاس کښې لوټه نيسی نو مس ذکر باليمن به کوی کوم چه ممنوع دې، او که د مس ذکر باليمن نه بچ کيدو سره امساک ذکر په ښی لاس کوی نو په ښی لاس کښې به لوټه نيسی په دې سره به استنجاء باليمن لازميږی، غرض دا چه د احد المحذورين ارتکاب به ضرور لازميږی د دواړو نه بچ کيدل ګران دی نو په حديث باندې د عمل څه شکل دې.

## د استنجاء بالحجر بعد البول په کيفيت کښې د فقهاء کرامو اختلاف:

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه علامه خطابی رحمه الله ددې يو عجيبه حال بيان کړې دې هغه دا چه استنجاء کونکې سړې به يو ديوال يا يو غټ کاڼی ته نزدې تللو سره په ګس لاس باندې ذکر نيولو سره مسلسل لګوی تر دې چه اوچ شی نو په دې صورت کښې به مس ذکر باليمين نه محفوظ وی، حافظ رحمه الله فرمائی چه دا هيئت هيئت منکره دې او هر ځائې او هره موقعه باندې به ديوال او لوئې کاڼې د کوم ځائې نه راوړی، لهذا دا هيڅ حل نه شو، علامه طيبی رحمه الله يو دويم حل راويستلو چه د استنجاء باليمين ممانعت بعد الغائط دې نه بعد البول، لهذا استنجاء بعد البول په ښی لاس سره جائز دې په حديث کښې ددې ممانعت نشته، ددې صورت به دا وی چه د استنجاء دپاره لوټه په ښی لاس کښې اونيسی او په ګس لاس باندې ذکر نيولو سره په هغې باندې کيږدی، حافظ رحمه الله دا جواب هم رد کړې دې چه د

(): صحيح البخاري/الوضوء ۱۸ (۱۵۳)، ۱۹ (۱۵۴)، الأشربة ۲۵ (۵۶۳۰)، صحيح مسلم/الطهارة ۱۸ (۲۶۷)، سنن الترمذي/الطهارة ۱۱ (۱۵)، سنن النسائي/الطهارة ۲۳ (۲٤، ۲۵)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۵ (۳۱۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۰۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۶۷۵، ۳۰۰، ۳۱۰)، سنن الدارمي/الطهارة (۷۰۰/۱۳) (صحيح)

طیبی رحمه الله دا قول چه د استنجاء بالیمین ممانعت بعد الغائط دي نه بعد البول دا صحیح نه دي (۱) بلکه د جمهورو په نزد دا ممانعت عام دي بیا حافظ رحمه الله خپله ددې حل بیان فرمائیلي دي او دا ئي لیکلي دی چه د استنجاء بالحجر صحیح طریقه هغه ده کومه چه امام الحرمین او امام غزالی وغیره لیکلي ده هغه دا چه په ښی لاس سره لوټه اونیسی او په ګس لاس باندې دې ذکر اونیسی او بار بار دې په لوټه باندې رږدی تردې چه مقام خشک شی او د استنجاء بالیمین نه هم محفوظ وی ځکه چه صرف په ښی لاس کښې لوټه اخستل بغیر د حرکت نه استنجاء بالیمین نه شی وئیلي کیدې، دا خو هم داسې ده لکه چه د استنجاء بالماء په وخت په ښی لاس سره په ذکر باندې اوبه اچولي شی. هغه وخت په ښی لاس کښې اوبه وی او دلته په ښی لاس کښې کاڼړې (لوټه) ده. خو دا ده که ښی لاس ته حرکت هم ورکړی نو بیا به دې ته استنجاء بالیمین وئیلي شی، امام نووی رحمه الله هم په شرح د مسلم کښې هم دا صورت لیکلي دې، زمونږ بعض فقهاء کرامو هم د استنجاء بالحجر هم دا شکل لیکلي دې.

خو حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې دې ټولو ځیزونو ته تکلف محض وئیلي دې او فرمائی چه دا نظریه چه په استنجاء بالحجر کښې دواړه لاسونه استعمالیږی صحیح نه ده، بلکه په یو لاس سره استنجاء کیدې شی، لهذا په ګس لاس کښې لوټه اخستلو سره بغیر د استعانة بالمین دې استنجاء اوکړې شی لکه چه نن صبا عام طور رواج دې، اصل کښې دا حضرات امام الحرمین او امام غزالی رحمهما الله وغیره د دواړو لاسونو استعمال په دې وجه ضروری ګڼړی چه راس ذکر ملوث نه شی او هلته متیازې خورې نه شی، که په یو لاس باندې استنجاء اوکړې شی نو ددې شکل به دا وی چه په یو لاس کښې لوټه اخستلو سره هغه په یو ځل د راس ذکر سره مس کړې شی چه په هغې سره به متیازې خورېږی حال دا چه مقصود تطهیر دې تلویث نه دې، اوس بغیر د تلویث نه د مقصود د حصول اصل شکل دا دې چه په یو لاس کښې دې لوټه واخستلې شی او په بل لاس سره دې ذکر اونیولې شی او لږ لږ دې په کاڼړې پورې اولګولې شی په دې کښې به تلویث نه لازمیږی کوم چه عین مقصود دې خو حضرت سهارنپوری رحمه الله وړاندې تلو سره ددې جواب ورکړې دې چه د تلویث ذکر احتمال په حجر کښې دې، کلوخ یعنی کچه لوټه کښې د دې احتمال نشته ځکه چه هغه فورا متیازې جذب کوی، او ا خو که کچه لوټه ملاؤ نه شی بلکه کاڼړې وی نو د تلویث نه د بچ کیدو شکل دا کیدې شی چه د یو په ځائې دې دوه درې کاڼړی په احتیاط سره استعمال کړی تردې چه مقام اوچ شی، په دې صورت کښې به هم تلویث نه لازمیږی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

---

[۱] خو سیاق حدیث هم دې لره مشعر دې کومه خبره چه امام طیبی رحمه الله کړې ده، ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی ﴿ اذا بال احدکم فلا یمس ذکره ﴾ دا خو وړه استنجاء شوه، په دې کښې د مس ذکر بالیمین نه منع فرمائی او وړاندې فرمائی ﴿ اذا اتي الخلاء فلا یتمسح بیمینه ﴾ دا لویه استنجاء ده او په دې کښې د استنجاء بالیمین ممانعت کولې شی. فتامل)

اوس کتل دا دی چه زمونږ په شریعت کښې څومره باریکیانې دی، سبحان الله چه هر کله په مسائل جزئیه کښې د تحقیق او تدقیق دا حال دې نو د احکاماتو او عقائدو اصول به ئې څومره پاخهٔ او مضبوط وی الحمد لله الذی هدانا للاسلام وما کنا لنهتدی لولا ان هدانا الله.

﴿ قوله وَإِذَا شَرِبَ فَلاَ يَشْرَبْ نَفَسًا وَاحِدًا ﴾ [1] په دې کښې په یو ساه د اوبو څکلو نه منع کړې شوې ده ځکه چه مسلسل په یو ساه باندی څکل د معدې دپاره د بوجهٔ سبب دې او په ښه طریقې سره مړخ هم نه حاصلیږی، بله دا چه په یو ساه څکل د بې صبرئ او د حرص علامت دې، په دې حدیث کښې خو د اوبو څکلو صرف هم دا یو ادب بیان کړې شو بدې، او ددې حدیث په بعض طرقو کښې یو بل ادب هم ذکر شوې دې هغه دا چه ﴿ واذا شرب احدکم فلا یتنفس فی الاناء ﴾ پس حاصل دا شو چه اوبه دې په یو ساه او نه څکلې شی بلکه په دوه یا درې ساګانو دې اوڅکلې شی، او دویم ادب دا دې چه په مینځ کښې د ساه اخستلو په وخت دې خوله د لوښی نه جدا کړې شی په لوښی کښې دې ساه وانخستلې شی،

دلته یو سوال دا کیدې شی چه د حدیث په دواړو جملو کښې ﴿ اذا بال احدکم الخ ﴾ او ﴿ اذا شرب الخ ﴾ کښې څه مناسبت دې؟ جواب دا دې کوم چه غالبًا د حضرت ګنګهوی په تقریر بخاری یعنی لامع الدراری کښې ذکر شوې دې چه په یو جمله کښې د ادخال ماء ادب بیان کړې شوې دې او په یو کښې د اخراج ماء ادب، حضرت ښه مناسبت بیان کړې دې.

[۳۲]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ آدَمَ بْنِ سُلَيْمَانَ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو أَيُّوبَ يَعْنِي الْإِفْرِيقِيَّ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، وَمَعْبَدٍ، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ الْخُزَاعِيِّ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي حَفْصَةُ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْعَلُ يَمِينَهُ لِطَعَامِهِ وَشَرَابِهِ وَثِيَابِهِ، وَيَجْعَلُ شِمَالَهُ لِمَا سِوَى ذَلِكَ".

**ترجمه**: حدیث بیان کړی دی حفصې د رسول الله ﷺ بي بي، یقینًا نبي ﷺ وو چه خاص کړی ئې وو ښې لاس د خوراک او څکاک او د جامو دپاره، او چپ لاس ئې خاص کړی وو د نورو کارونو دپاره.

**تشریح**: ۲: ﴿ حَدَّثَتْنِي حَفْصَةُ الخ كَانَ يَجْعَلُ يَمِينَهُ ﴾ رسول الله ﷺ به ښې لاس استعمالولو د خوراک څکاک دپاره ﴿ وثیابه ﴾ یعنی رسول الله ﷺ چه به چاته کپړې ورکولې نو په ښی لاس سره به ئې ورکولې، یا مطلب دا دې چه کله به ئې کپړې اغوستلې نو ابتداء بالیمین به ئې فرمائیله او د ویستلو په وخت به ئې ابتداء بالیسار فرمائیله، امام نووی رحمه الله فرمائی چه قاعده کلیه دا ده چه کوم څیز د باب زینت او تشریف نه وی په هغې کښې دې ښې لاس استعمال کړې شی او کوم امور چه ددې خلاف وی هلته دې ګس لاس استعمال کړې شی.

---

[1]) واورد الشيخ في البذل علي المصنف بانه غير سياق الحديث، والحديث مخرج في الصحيحين وغيرهما بلفظ واذا شرب فلا يتنفس في الاناء قلت قال المنذري اخرجه الستة مطولا ومختصرا وهذا يزيل الاعتراض المذكور والله تعالي اعلم)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۹٤)، مسند احمد (۲۸۸/٦) (صحيح)

﴿ قوله أَبُو أَيُّوبَ – يَعْنِي الإِفْرِيقِيَّ ﴾ د دوی په تعین کښې اختلاف دې، صاحب د غاية المقصود ليکلې دی چه دا عبدالرحمن بن زياد بن الغم الافريقی دې په ظاهر کښې دوی ددې تعين په دې وجه اوکړو چه په الافريقی سره زيات مشهور هم هغه دې خو حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ددې ترديد فرمائيلې دې او ليکلې ئې دی چه دا عبدالله بن علی افريقی دې، حضرت شيخ رحمه الله په هامش بذل کښې فرمائی چه د ابن رسلان په شرحه کښې هم دوی ته عبدالله بن علی وئيلې شوې دې، لهذا هم دا د حضرت سهارنپوری رحمه الله تحقيق صحيح دې.

[۳۳](1) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنِي عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَتْ يَدُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيُمْنَى لِطُهُورِهِ وَطَعَامِهِ، وَكَانَتْ يَدُهُ الْيُسْرَى لِخَلَائِهِ، وَمَا كَانَ مِنْ أَذًى".

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلې دی: وو لاس د رسول الله صلى الله عليه وسلم ښي د صفايې او د طعام دپاره، او وو چپ لاس د هغه د بيت الخلاء دپاره، او د نورو هغه دپاره په کومو کښې چې ګندګی وی.

[۳۴](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې، هغه روايت کوې د نبي صلى الله عليه وسلم نه په معنی ددې سره.

**تشريح:** ۴: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ قوله : بِمَعْنَاهُ ﴾ يعنی مضمون هم هغه دې کوم چه د اول حديث دې خو سند بدل شو، اوس چه هر کله مضمون يو دې نو دا حديث ئې ولې راوړې دې؟ جواب دا دې چه د اول حديث د تائيد دپاره، او د بوې بلې فائدې دپاره هم هغه دا چه ددې سند نه معلومه شوه چه په اول سند کښې د ابراهيم او عائشې رضي الله عنها ترمينځه د ترک واسطې د وجې نه انقطاع ده او په دې سند کښې هغه واسطه موجود ده نو په دې دويم سند سره د هغه اول سند انقطاع معلومه شوه.

د ترجمة الباب د دويم حديث راويان ﴿ المصيصی ﴾ دا نسبت دې د منصيصه طرف ته کوم چه په شام کښې يو ښار دې، ﴿ ابن ابی زائدة ﴾ يحيی بن زکريا بن ابی زائدة دا نسبت الی الجد دې، په دريم حديث کښې دا دی، ﴿ ابو توبة ﴾ نوم ئې ربيع بن نافع ﴿ ابن ابی عروبة ﴾ اسمه سعيد، ﴿ ابی معشر ﴾ هو زياد بن کليب.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۱۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ۳۱ (۱۶۸)، الصلاة ۴۷ (۴۲۶)، الجنائز ۱۰ (۱۲۵۵)، الأطعمة ۵ (۵۳۸۰)، اللباس ۳۸ (۵۸۵۴)، اللباس ۷۷ (۵۹۲۶)، صحيح مسلم/الطهارة ۱۹ (۲۶۸)، سنن الترمذي/الجمعة ۷۵ (۶۰۸)، سنن النسائي/الطهارة ۹۰ (۱۱۲)، وفي الزينة برقم: (۵۰۶۲)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۴۲ (۴۰۱)، مسند احمد (۱۷۰/۶، ۲۶۵) (صحيح) (وأبو معشر هو زياد بن كليب)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۴۳)، مسند احمد (۲۶۵/۶) (صحيح)

# باب الاستتار في الخلاء

## باب دې په بیان د ځان پټولو کې په بیت الخلاء کې

د اداب استنجاء د ټولو نه اول باب ﴿ باب التخلی عند قضاء الحاجة ﴾ مخکښې تیر شوې دې، ددې باب او د مخکښې باب په غرض کښې څه فرق دې، جواب دا دې چه د تخلی په معنی کښې یواځې والې اختبارول د پردې نظم کول د هغه دپاره لازم نه دی په دې باب کښې دا بیانول غواړی چه سره د تخلی او یواځې والی اختیارولو د تستر خیال ساتل هم ضروری دی. ځکه چه تخلی بغیر د تستر نه او تستر بغیر د تخلی نه ممکن دې، او که یو سړې په کور کښې دننه پرده اچولو سره قضاء حاجت اوکړی نو تستر خو اوشو خو تخلی او تباعد عن الناس اونشو. او که یو سړې د یواځې والی اختیارولو دپاره ځنګل ته لاړ شی او قضاء حاجت کوی او هلته رسیدو سره بغیر د څه پردې نه قضاء حاجت کوی نو هلته تخلی خو بیا موندلې شوه خو تستر اونشو پس که څوک په داسې حالت کښې هلته اورسیدو نو یقینا بې پردګی به وی.

[۳۵]([1]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ ثَوْرٍ، عَنِ الْحُصَيْنِ الْحُبْرَانِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ اكْتَحَلَ فَلْيُوتِرْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ مَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، وَمَنْ أَكَلَ فَمَا تَخَلَّلَ فَلْيَلْفِظْ، وَمَا لَاكَ بِلِسَانِهِ فَلْيَبْتَلِعْ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ، وَمَنْ أَتَى الْغَائِطَ فَلْيَسْتَتِرْ، فَإِنْ لَمْ يَجِدْ إِلَّا أَنْ يَجْمَعَ كَثِيبًا مِنْ رَمْلٍ فَلْيَسْتَدْبِرْهُ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَلْعَبُ بِمَقَاعِدِ بَنِي آدَمَ، مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ ثَوْرٍ، قَالَ حُصَيْنٌ الْحِمْيَرِيُّ: وَرَوَاهُ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ الصَّبَّاحِ، عَنْ ثَوْرٍ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ الْخَيْرِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو سَعِيدٍ الْخَيْرِ هُوَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه**: د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې، هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي، هغه وئیلی دی: څوک چه رانجه لګوي نو وتر دې ولګوي، چا چه داسې اوکړو نو یقینًا هغه ښه اوکړه، او چاچې داسې اونه کړه نو په هغه څه حرج نشته، او چا چه استنجا کوله نو طاق دې اوکړي، چاچې داسې اوکړه نو ښه ئې اوکړه، او چا چه داسې اونه کړه نو په هغه حرج نشته، او چاچې خوراک کولو نو هغه چه د غاښونو په مینځ کښې پاتې شي نو هغه دې وغورځوي، او هغه چه راؤباسی په ژبه نو هغه دې تیر کړي، چاچې داسې اوکړه نو ښه ئې اوکړه او چا چه داسې اونه کړه نو څه حرج نشته، او څوک چه راغې ډک اودس ماتي ته نو ځان دې پټ کړي، که څه ئې نه موندل مګر دا چه راجمع کړي یوه ټوپنی د شګو نو هغې ته دې شاه واړوي، یقینًا شیطان لوبې کوي په مقعدونو د انسانانو باندې، چا چه اوکړو نو ښه ئې اوکړو او چاچې اونه کړه نو څه حرج نشته.ابوداؤد وائی: دا ابو عاصم د ثور نه روایت کړې دې، په هغې

---

[1]: سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٣ (٣٣٨)، الطب ٦ (٣٤٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٣٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضو ٢٦ (١٦٢)، صحيح مسلم/الطهارة ٨ (٢٣٧) سنن النسائي/الطهارة ٧٢ (٨٨)، موطا امام مالك/الطهارة ١(٢)، مسند احمد (٢/٢٣٦، ٢٣٧، ٣٠٨، ٤٠١، ٣٧١)، سنن الدارمي/الطهارة ٥ (٦٨٩) (ضعيف)

كنبي (دحصين حيراني په ځائې) حصين حميري دې، او عبدالملك بن صباح هم دا د ثور نه روايت كړې دې په هغې كښې (د ابوسعيد په ځائې) د ابوسعيد الخير ذكردې، ابوداؤد وائي: ابوسعيد الخير د نبی کریم ﷺ د اصحابو څخه دې.

**تشریح:** قوله :﴿ مَنِ اكْتَحَلَ فَلْيُوتِرْ الخ ﴾ په اكتحال كښې د ايتار دوه صورتونه كيدې شی، يو دا چه د وتر رعايت د هرې سترګې په اعتبار سره وی په هره يوه سترګه كښې دې درې درې سلايانې اولګوی او هم دا قول زيات اصح دې، د شمائل ترمذی په روايت كښې ددې تصريح ده،

او دويم صورت دا چه د دواړو د مجموعې په لحاظ سره وتر وی مثلاً په ښئ سترګه كښې درې كرته او په ګسه كښې دوه كرته نو مجموعه به وتر شی. حضرت په بذل كښې هم دا دوه صورتونه ليكلی دی

او حضرت شيخ رحمه الله په حاشيه د بذل كښې د شراح حديث حافظ ابن حجر، ملا علی قاری او علامه مناوی رحمهم الله نه د اكتحال دريم صورت هم ليكلې دې چه اول دې په هر سترګه كښې دوه دوه او يو سلائی په دواړو كښې مشترك راښكلې شی، رواه ابن عدی فی الكامل عن انس مرفوعا ابن سيرين رحمه الله هم دا صورت خوښ كړې دې.

قوله :﴿ وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ الخ ﴾ د استنجاء دوه تفسيرونه كړې شوې دی يو استنجاء بالجمار يعنی بالاحجار دويم تبخر يعنی جامو ته رنګ وركول، منقول دی چه د امام مالك رحمه الله رائې اول دا وه چه په حديث كښې د استجمار نه مراد تبخر دې، خو روستو ئې رائې بدله شوه چه ددې نه مراد استنجاء بالحجر ده، شارح ابن رسلان رحمه الله ددې تفسير په بخور الميت سره كړې ده او هغوی د استنجاء بالحجر مراد كولو نفی هم كړې دې

**حديث الباب په عدد احجار كښې د احنافو دليل او په دې باندې بحث :**

﴿ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ ﴾ په تيرو بابونو كښې چه يو طرف ته د استنجاء احكام بيان كړې شوې وو نو يو بحث د عدد احجار هم تير شوې وو چه د شوافعو په نزد د عدد ثلاثه كيدل ضروری دی، په خلاف د احنافو، دا حديث د احنافو دليل دې چه ايتار بالثلاث غير ضروری دې.

ابن رسلان ددې جواب دا وركړې دې چه د استجمار نه مراد تبخر دې، او امام بيهقی رحمه الله په معرفة السنن والاثار كښې د شوافعو د طرف نه ددې دوه جوابونه كړې دی، ۱: دا حديث ضعيف دې ددې حديث راوی حصين الحبرانی ضعيف دې، ۲: د ايتار نه مراد ما فوق الثلاث دې يعنی د نفی حرج تعلق د ما فوق الثلاث سره دې ګينې ايتار بالثلاث خو لكه چه څنګه په نورو احاديثو كښې معلوميږی ضروری دې، زمونږ د طرف نه علامه زيلعی رحمه الله د امام بيهقی رحمه الله جواب اول داسې رد كړې دې چه ددې حديث ابن حبان په خپل صحيح كښې داسې تخريج كړې دې، او صحيح ابن حبان د صحت په اعتبار سره اوچت كتاب دې، په طبقه اولی كښې ددی شمير دې، لهذا دا حديث كم از كم حسن منل پكار دی او د جواب ثانی په باره كښې هغوی فرمائی چه اول خو دا تحكم دې، او دويمه دا چه دا خپله د

شوافعو د مسلک خلاف دي ځکه چه د شوافعو مسلک دا دې چه که په دريو سره د مقام انقاء اوشي نو د څلورو او پنځو استعمال نه واجب دې او نه مستحب، او که په دريو سره د مقام انقاء نه کيږي نو بيا دهغې نه د زائد استعمال نه صرف مستحب بلکه واجب دې او د بيهقي ددې توجيه تقاضا دا ده چه په تثليث باندې دې زيادت مطلقا مستحب وی حال دا چه داسې نه ده.

بله دا چه ددې حديث نه يوه مسئله اصوليه مستفاد کيږي هغه دا چه امر د مطلق وجوب دپاره راځي ځکه چه که د وجوب دپاره نه وې بلکه د استحباب دپاره وې نو بيا د ﴿مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لاَ فَلاَ حَرَجَ ﴾ د ذکر کولو حاجت نه وو.

﴿ قوله وَمَنْ أَكَلَ فَمَا تَخَلَّلَ الخ ﴾ دا څيز د آداب اکل نه دې چه انسان کله د خوراک نه فارغ شی نو د خوراک کوم ذرات چه ئې په ژبې سره ويستلې وی هغه تيرول پکار دی بهر غورزول نه دی پکار په دې کښې د خوراک ناقدری ده او کومې د خوراک ذرې چه ئې د غاښونو د مينځ نه د خلال په ذريعه راويستلې وی نو هغه تيرول نه دی پکار ځکه چه په دې کښې د وينې د ګډون خطره ده، ﴿ وَمَنْ لاَ فَلاَ حَرَج ﴾ دا په دې صورت کښې ده چه کله ددې ذره طعام په وينې کښې د ملوث کيدو ظن غالب نه وی او که دهغې د تلويث ظن غالب وی نو په دې صورت کښې د حرج نفی مراد نه ده بلکه په دې صورت کښې په تيرولو کښې يقينا حرج دې.

﴿ قوله وَمَنْ أَتَى الْغَائِطَ فَلْيَسْتَتِرْ الخ ﴾ د ترجمة الباب مطابقت هم ددې جزء سره دې او هم دا مقصود بالذکر دې، باقی حديث تبعا ذکر کړې شوې دې، او ددې جملې مطلب دا دې چه کوم سړې د قضاء حاجت دپاره لاړ شی نو هغه له پکار دی چه پرده اوکړی. ﴿ بِمَقَاعِدِ بَنِي آدَمَ ﴾ دا مقاعد جمع ده د مقعد او د مقعدة، او ددې په مطلب کښې دوه احتمالونه دی يا ددې نه مراد اسفل بدن يعنی شرمګاه ده يا دا په معنی د محل قعود دې، که مراد ترې نه اسفل بدن دی نو باء به د پاره د الصاق وی او که دويمه معنی مراد وی نو دا باء به په معنی د فی وی، په يو صورت کښې به مطلب دا وی چه د قضاء حاجت په وخت کښې که تستر اونکړې نو شيطانان د خلقو د شرمګاهونو سره لوبې کوی او مسخرې کوی ځکه چه د مسخرو عادت وی، او په دويم صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه شياطين د قضاء حاجت په ځائې کښې لوبې کوی.

﴿ وَمَنْ لاَ فَلاَ حَرَج ﴾ دا نفی د حرج مطلقا نه ده بلکه په هغه صورت کښې ده چه کله هغه ته څوک ګوری نه او بې پردګی نه وی او که بغير د استتار نه بې پردګی وی نو بيا ددې دوه صورتونه دی، يو دا چه ترک استتار د څۀ مجبورئ د وجې نه وی نو په دې صورت کښې به ګناه د کتونکو وی، او که ترک استتار د خپل اختيار نه بغير د څه مجبورئ د وجې نه وی نو په دې صورت کښې به د بې پردګئ وبال په هغه باندې وی. هکذا قالوا.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ عَنْ ثَوْرٍ الخ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله ددې ځائې نه د ثور د شاګردانو اختلاف بيانوی، هغه دا چه د عيسی په روايت کښې ﴿ عن الحصين الحبرانی ﴾

واقع شوي دي او د ابو عاصم په روايت کښې په ځائې د الحبرانی الحميری دي، خو دا اختلاف صرف لفظی دې ځکه چه حمير لويه قبيله ده او حبران دهغې يو شاخ دې ﴿ ورواه عبدالملک بن الصباح عن ثور ﴾ دا د ثور بن يزيد دريم شاګرد دې د دوی په الفاظو کښې يو دريم تغير دې هغه دا چه په سند کښې د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه نه مخکښې چه کوم راوی ذکر شوې دې هغه ته ئی په ځائې د ابوسعيد هغوی ابوسعيد اليخر وئيلې دې حال دا چه دا دوه راويان بيل بيل دی ځکه چه په اول سند کښې چه کوم ابوسعيد راغلې دې هغه ابوسعيد الحبرانی دې هغه ته الخير نه شی وئيلې، او دا دويم ابوسعيد کوم ته چه ابوسعيد الخير وئيلې شی دا حبرانی نه دې بلکه انماری دې، دا اختلاف حقيقی دې اول صرف لفظی وو.

## د راوی په تعين کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله او د علامه عينی رحمه الله د رائې اختلاف

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ أَبُو سَعِيدِ الْخَيْرُ الخ ﴾ مصنف رحمه الله فرمائی چه په اول سند کښې چه کوم ابوسعيد راغلې دې په هغوی کښې او په ابوسعيد الخير کښې ډير لوئې فرق دې، هغه بيل دې او هغه تابعی وو دا صحابی دې خو مصنف رحمه الله دا فيصله نه ده فرمائيلې چه صحيح خبره څه ده دلته څه کيدل پکار دی؟ ابوسعيد يا ابوسعيد الخير پس په دې کښې حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله تحقيق دا نقل فرمائيلې دې چه دلته ابوسعيد الحبرانی دې کوم چه قطعا تابعی دې او چا چه د هغوی صفت الخير ذکر کړې دې د هغه نه غلطی شوې ده، ابوسعيد الخير دويم راوی دې هغه دلته مراد نه دې خو دا دې واضحه وی چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ددې راوی په باره کښې چه څه تحقيق فرمائيلې دې او دا چه دلته صحيح ابوسعيد الحبرانی دې نه ابوسعيد الخير دا صرف د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې ده، علامه عينی رحمه الله ددې سره متفق نه دې، پس حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې ليکلې دی چه علامه عينی رحمه الله د ډيرو رواياتو په بناء چه په هغې کښې د الخير تصريح راغلې ده دا رائې قائم کړې ده چه صحيح په دې سند کښې ابوالخير دې لکه چه عبدالملک بن الصباح په خپل روايت کښې وئيلې دی.

يو څيز قابل تنبيه دلته دا هم دې چه دا ابوسعيد الخير صحابی دې د دوی د نوم په ضبط کښې اختلاف دې، بعضو دا په ابوسعيد ياء سره ليکلې دې او بعضو ابوسعد بغير د ياء نه.

# بَابُ مَا يُنْهَى عَنْهُ أَنْ يُسْتَنْجَى بِهِ

## باب دې په بيان د هغې کې چې منع ترينه شوې ده چې په هغې استنجاء وکړی شي

يعنی د هغه څيزونو بيان چه په هغې سره استنجاء کول منع دی، د دې څيزونو بيان اګرچه په تيرو ابوابو کښې راغلې دې خو هلته قصدا نه وو بلکه د نورو ابوابو په ضمن کښې وو، اوس دلته مستقل باب راوړی، په دې باب کښې مصنف رحمه الله روايات هم متعدد ذکر کړی دی او په هغې باندې کلام هم اوږد او تفصيل طلب دې.

[۳۶]() حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ يَعْنِي ابْنَ فَضَالَةَ الْمِصْرِيَّ، عَنْ عَيَّاشِ بْنِ عَبَّاسٍ الْقِتْبَانِيِّ، أَنَّ شِيَيْمَ بْنَ بَيْتَانَ أَخْبَرَهُ، عَنْ شَيْبَانَ الْقِتْبَانِيِّ، قَالَ: إِنَّ مَسْلَمَةَ بْنَ مُخَلَّدٍ اسْتَعْمَلَ رُوَيْفِعَ بْنَ ثَابِتٍ عَلَى أَسْفَلِ الْأَرْضِ، قَالَ شَيْبَانُ: فَسِرْنَا مَعَهُ مِنْ كَوْمِ شَرِيكٍ إِلَى عَلْقَمَاءَ، أَوْ مِنْ عَلْقَمَاءَ إِلَى كَوْمِ شَرِيكٍ يُرِيدُ عَلْقَامَ. فَقَالَ رُوَيْفِعٌ: إِنْ كَانَ أَحَدُنَا فِي زَمَنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَيَأْخُذُ نِضْوَ أَخِيهِ عَلَى أَنَّ لَهُ النِّصْفَ مِمَّا يَغْنَمُ وَلَنَا النِّصْفُ. وَإِنْ كَانَ أَحَدُنَا لَيَطِيرُ، لَهُ النَّصْلُ وَالرِّيشُ وَلِلْآخَرِ الْقِدْحُ، ثُمَّ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا رُوَيْفِعُ، لَعَلَّ الْحَيَاةَ سَتَطُولُ بِكَ بَعْدِي، فَأَخْبِرِ النَّاسَ أَنَّهُ مَنْ عَقَدَ لِحْيَتَهُ أَوْ تَقَلَّدَ وَتَرًا أَوِ اسْتَنْجَى بِرَجِيعِ دَابَّةٍ أَوْ عَظْمٍ، فَإِنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُ بَرِيءٌ".

**ترجمه**: شيبان قتباني وئيلى دي يقيناً مسلمه بن مخلد عامل مقرر کړو رويفع بن ثابت په لاندې حصه د ځمکې، وئيلى دي شيبان: مونږ روان شو د هغه سره د ځائې د شريک نه علقماء ته، او يا د علقماء نه ځائې د شريک ته، مراديې علقمام وو، نو اووئيل رويفع: يقيناً وو زمونږ نه په زمانه رسول الله ﷺ کښې چه اخستو ئې اوښه د ورور خپل په دې شرط چه د هغه به نيمه وي د فائدې نه، او نيمه به زمونږ وي، اګر رسيده به يو زمونږ ته لاستې د تورې او ورې (وژغنې) او بل ته غشى، بيا وفرمايل رسول الله ﷺ: اې رويفعه! کيدې شي چه ستا ژوند اوږد شي زما نه وروسته، نو خلکو ته خبر ورکړه يقيناً چاچې ګيره غوټه کړه، او يايې غوټه کړو تار په څټ د څاروي کښې، او يايې استنجاء اوکړه په غوشايانو ... ه، او يا په هډوکې سره، بيشکه محمد ﷺ د هغه نه برى دى.

**تشريح**: په دې باب کښې مصنف رحمه الله چه کوم حديث راوړې دې په هغې کښې يو څيز راوى د اصل حديث بيانولو نه مخکښې تمهيدا بيان کړې دې چه په هغې سره روايت اوږد شوې دې، د مصنف رحمه الله په نزد چه کوم روايت مقصود بالبيان دې هغه په اخر کښې راروان دې ﴿فاخبر الناس ان من عقد الخ﴾ راوى د روايت حديث نه مخکښې چه کوم مضمون په طور د تمهيد بيان کړې دې، تاسو اول دهغې په مطلب باندې ځان پوهه کړئ.

## مضمون روايت:

شيبان راوى د رويفع بن ثابت رضي الله عنه نه روايت کوى. دا رويفع رضي الله عنه هم هغه دې کوم چه د مصر والي مسلمه بن مخلد د اسفل ارض مصر عامل جوړ کړې وو، شيبان وائى چه د يو ځل واقعه ده چه مونږ د رويفع رضي الله عنه سره په سفر کښې وو، د سفر ابتداء د کوم شريک نه اوشوه او علقمه ته لا رسيدو کښې وو، او روان وو علقام ته يا د علقما[2] نه روان وو او کوم شريک ته رسيدو کښې وو او تلل مو بهر حال علقام ته وو، غرض دا چه ددې سفر ترمينځه رويفع رضي الله عنه ماته د اسلام د ابتداء د زمانې حال بيانول شروع کړل، او شيبان ته ئې خطاب کولو سره اووئيل چه زمونږ د رسول الله ﷺ سره د شروع زمانه د معاش په تنګسيا کښې داسې تيره شوې ده چه که په مونږ کښې به يو تن په سفر جهاد ته تلو نو خپل ځان سره د

---

[1]: سنن النسائي/الزينة ١٢ (٥٠٧٠)، (تحفة الأشراف: ٨٦٥١، ٣٦١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٨/٤، ١٠٩) (صحيح)

[2]) دا شک د راوى دې)

سورلئ نه کیدو په سبب به ئې بل دینی زور نه سورلی په کرایه باندې اخستله، او سورلئ به څنګه وه؟ کمزورې اوښ او معامله به هم د سورلي کونکی سره داسې اوشوه چه څه مال غنیمت حاصل شی په هغې کښې به نیم زمونږ وی او نیم ستا او بیا به ئې وړاندې تلو سره وئیل چه ډیر کرته به داسې کیدل چه په مال غنیمت کښې به زمونږ په حصه کښې ډیر معمولی شان څیز حاصلیدو. یعنی صرف یو غشې چه په هغې کښې به درې اجزاء وو، نصل، ریش او قدح. یو ته به نصل او ریش ورکړې شو او دویم ته به قدح ورکړې شو.

﴿ قوله لیطیرله ﴾ ددې معنی ده په حصه کښې راتلل، وئیلې شی ﴿ طار لفلان النصف ولفلان الثلث ای حصل له فی القسمة ﴾ یعنی د فلانی په حصه کښې نیم راغلو او د فلانی په حصه کښې ثلث. ﴿ النصل والریش ﴾ نصل وائی د غشی څوکې ته څنګه چه د چړې پلکې وی هم دغه شان د غشی دپاره څوکه وی چه هغې ته په عربئ کښې نصل وائی، او ریش وئیلې شی د غشی وزر ته، او د هر غشی دوه وزرې وی، ﴿ وللاخر القدح ﴾ دا په کسرد قاف او سکون دال سره دې د غشی شاته حصه چه په هغې کښې د غشی څوکه او وزرې لګیږی، او دا د لرګی وی لکه په چاقو کښې چه شاته د لرګی لاسکې وی، او ددې لفظ ترجمه داسې هم کولې شي بې څوکې او بې وزرې غشې.

شیبان وائی چه ددې تمهیدی مضمون نه پس بیا رویفع رضی الله عنه ماته هغه اصل حدیث بیان کړو کوم چه بیانول مقصود وو، هغوی فرمائی چه ماته رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو اې رویفع! کیدې شی چه ته به زما نه پس ډیرې مودې پورې ژوندې ئې، که زما نه روستو د ژوندی پاتې کیدو نوبت دې راغلو ﴿ فاخبر الناس الخ ﴾ دلته هغه اصل حدیث شروع کیږی چه دهغې حاصل به روستو بیانولې شی.

رویفع بن ثابت د حدیث د بیانولو نه مخکښې دا تمهید ولې کیخودلو؟ په دې سره د هغوی څه غرض دې معلومیدل پکار دی، هغه دا چه په دې سره خپل قدیم الاسلام کیدل ثابتوی چه زه الحمد لله قدیم الاسلام صحابی یم د اسلام ابتدائی دور زما د سترګو وړاندې تیر شوې دې، داسې خبره راوی څکه ذکر کوی چه بیا سامع په غور سره د هغه خبره واوری او د هغوی په خبره باندې اعتماد اوکړی، د استاذ او شاګرد ترمینځه اعتقاد او اعتماد ضروری دې ګینې فائده ترې نه نهٔ حاصلیږی دا هم داسې ده لکه چه تاسو په مشکوة کښې لوستلې دی، سیدنا معاذ بن جبل رضی الله عنه د اصل حدیث د بیانولو نه مخکښې فرمائی ﴿کنت ردف النبی ﷺ ﴾ ددې هم دا فائده ده چه د رسول الله ﷺ سره خپل خصوصیت بیانول او قرب ثابتول او ښکاره ده چه راوی چه څومره رسول الله ﷺ ته نزدې وی هم هغه هومره به ئې حدیث ښه اوریدلې وی.

**د اجاره فاسده مذکوره فی الحدیث توجیه او په دې کښې اختلاف علماء :**

په دې تمهیدی مضمون کښې یو فقهی مسئله راغله هغه دا چه که یو سړې سورلئ په جهاد کښې څان سره په دې طریقه کرایه باندې واخلی چه ماته څه په مال غنیمت کښې حاصل شو هغه به نیم زما او نیم ستا وی نو آیا دا صورت د اجارې جائز دې؟ د جمهورو په نزد جائز نه

دي ځکه چه اول خو دا هم معلومه نه ده چه مال غنيمت به حاصليږي او که نه او بيا که حاصل شي نو دا معلومه نه ده چه څومره به حاصليږي، غرض دا چه په دې اجاره کښې اجرت مجهول دې، د جهالت اجرت د وجې نه به اجاره فاسده شي د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه مسلک هم دا دې، خو د امام احمد او امام اوزاعی وغيره بعض علماء کرامو په نزد دا اجاره صحيح ده، پس امام ابوداؤد حنبلی دا مسئله د اجارې په کتاب الجهاد کښې مستقل ترجمة الباب قائمولو سره بيان کړې ده خو هلته ئې دا حديث نه دې ذکر کړې، بل يو حديث ئې ذکر فرمائيلې دې، چه کله تاسو هلته اورسيږئ نو انشاء الله معلوم به شي درته، د جمهورو د طرف نه ددې دوه جوابونه ورکړې شوې دی، علامه انور شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه په داسې اجاره کښې د قمار معنی موندلې شی کوم چه په شروع کښې جائز وه او روستو منسوخ شوه، لهذا د اجارې دا نوع به هم منسوخ وی د حضرت گنگوهی په تقرير ابوداؤد کښې داسې دی چه فی الواقع دا معامله اجاره نه وه، بلکه د مجازاة الحسنة بالحسنة د قبيل نه وه ﴿ هل جزاء الاحسان الا الاحسان ﴾ يعنی ورکونکی خو به سورلی مفت ورکوله، خو د ورکونکی په ذهن کښې به دا وه چه موږ ته په غنيمت کښې څه حاصل شی په هغې کښې به د سورلئ د مالک هم څه حصه راوباسو، خو دې صحابی دا ذهنی تصور او اراده په وخت د حکايت داسې بيان کړو چه دهغې نه معلوميږی چه دا په ظاهر کښې د اجارې شکل وو.

﴿ قوله لَعَلَّ الْحَيَاةَ سَتَطُولُ بِكَ بَعْدِی الخ ﴾ لعل ترجی يعنی توقع او اميد او تحقيق دواړو دپاره کيدې شی، که د تحقيق دپاره وی نو دا جمله د اخبار بالمغيب د قبيلې نه ده، بهر حال هم دغه شان اوشوه څنګه چه رسول الله ﷺ فرمائيلې وو، پس سيدنا رويفع رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه پس تر ډيرې مودې پورې ژوندې وو، د امير معاويه رضی الله عنه زمانه ئې بيا موندله او په ۵۲ يا ۵۳ کښې ئې په افريقه کښې وفات اوشو او دا آخری صحابی دې کوم چه هلته وفات شوې دې

﴿ مَنْ عَقَدَ لِحْيَتَهُ الخ ﴾ يعنی کوم سړې چه ګيرې له غوټې ورکوی، د غوټو ورکولو ډيرې معنی بيان کړې شوې دی، يو دا چه ګيره تاوهل او هغه ګلګوټې ګلګوټې کول (يعنی ګيره د زنې لاندې کول چه وړه ښکاری)، رسول الله ﷺ ددې نه منع فرمائيلی ده چه دا د سنت خلاف ده مسنون طريقه تسريح لحيه ده يعنی د ګيرې ويښته نيغ ساتل او بعضو وئيلې دی چه په زمانه د جاهليت کښې به متکبرين کفار چه کله جنګ له تلل نو ګيرو له به ئې غوټې ورکولې ددې نه رسول الله ﷺ منع اوفرمائيله چه په دې کښې تشبه بالنساء ده، او بعضو وئيلې دی چه دا د عجميانو عادت وو، او چونکه په دې کښې تغير خلقت دې په دې وجه ددې نه منع فرمائيلې شوې ده او بعضو وئيلې دی چه د کفار عرب عادت دا وو چه د چا به يو ښځه وه هغه به په خپله ګيره کښې يوه غوټه کوله، او که دوه به وې نو دوه غوټې به ئې ورکولې

﴿ قوله تَقَلَّدَ وَتَرًا ﴾ وتر وائی هغه نيغ لرګی ته، کوم چه په لينده او غشی کښې تړلې

شي، اهل جاهليت به د خپلو ماشومانو او اسونو په غاړه کښې د بد نظر نه د بچ کولو دپاره او د دفع کولو د آفتونو دپاره په دغه لړګی کښې تعويذونه وغيره اچول، ددې عقيدې سره که داسې مو اونکړل نو بيا هغه محفوظ نه پاتې کيږی ګويا هغه ئې موثر بالذات ګنړل، او بعضو وئيلې دی چه دا په تعليق اجرا په دی باندې محمول دې، يعنی په تانت وغيره کښې ګهونګرو او ټلئ وغيره د ښارو په غاړه کښې اچول او د جرس نه په حديث کښې منع راغلې ده، دې ته مزمار الشيطان وئيلې شوې دې.

﴿ قوله اسْتَنْجَى بِرَجِيعِ دَابَّةٍ الخ ﴾ د مصنف رحمه الله غرض د حديث صرف دا حصه بيانول دی ﴿ فَإِنَّ مُحَمَّدًا -صلى الله عليه وسلم- مِنْهُ بَرِيءٌ ﴾ چه څوک داسې کوی رسول الله ﷺ د هغه نه براءت او د بيزارئ اعلان فرمائی، په حديث کښې دا مبالغه فی الوعيد د زجر او توبيخ دپاره ده حقيقت مراد نه دې ځکه چه د براءت په ظاهر کښې مطلب دا دې چه زما ددې سره هيڅ تعلق نشته، او دا ډير سخت وعيد دې.

## په مسئله مترجم بها کښې مذاهب ائمة :

په ترجمة الباب کښې چې کومه مسئله ذکر شوې ده په دې کښې چه کوم اختلاف دې هغه په تيرو ابوابو کښې بيان شوې دې چه دهغې خلاصه دا ده چه د شوافعو او حنابله په نزد د ما يستنجی به طاهر کيدل ضروری دی، د احنافو او مالکيانو په نزد طاهر کيدل ضروری نه دی، او د اهل ظواهرو په نزد احجار متعين دی او يو مذهب دلته د ابن جرير طبری رحمه الله دې چه شاذ دې د هغوی په نزد استنجاء په هر طاهراو نجس څيزباندې بغيرد کراهت نه جائز ده.

شوافعو او حنابله په حديث الباب سره استدلال کړې دې چه استنجاء بشئ نجس صحيح نه ده غير معتبر او کالعدم دې احناف وائی چه نهی په فساد د منهی عنه باندې دلالت نه کوی، لهذا ددې حديث مقتضی دا نه ده چه په شئ نجس سره د استنجاء تحقق نه کيږی بلکه نهی صرف په ممانعت او کراهت باندې دلالت کوی،[1] شوافعو د دارقطنی يو روايت پيش کړې دې چه په هغې کښې دی ﴿ انهما لا يطهران ﴾ (په عظم او رجيع دواړو سره طهارت نه حاصليږی) دارقطنی وائی ﴿ اسناده صحيح ﴾ علامه زيلعی رحمه الله ددې جواب په نصب الرايه کښې دا ورکړې دې چه ددې په سند کښې سلمة بن رجاء الکوفی راوی دې کوم چه متکلم فيه او ضعيف دې، احقر وائی چه د ﴿ لا يطهران ﴾ مطلب دا هم کيدې شی چه ددې څيزونو نه طهارت بغير د تکلف نه نه شی حاصليدې، بلکه ډير په احتياط سره که په دې سره استنجاء اوکړې شی نو بيا د مقام انقاء کيدې شی خو چونکه ددې څيزونو په ذريعه د مقام انقاء چه مقصودی ده په سهولت سره نه شی حاصليدې په دې وجه وئيلې شوې دی چه ﴿ انهما لا يطهران ﴾...

[1] ) مسئله اصوليه مشهوره ده: النهي عن الأفعال الشرعية يقتضي تقريرها، لکه صوم د يوم النحر چه په دې باندې نهی وارد شوې ده اوحرام دی، که ددې باوجو څوک په دې ورځ روژه اونيسی نو شرعا به د روژې تحقق کيږی.

**د استنجاء بالحجر مطهر محل کیدو کښې د علماء کرامو اختلاف:**

حضرت سهارنپوری رحمه الله دلته يو تحقيق بيان فرمائيلې دې چه دهغې خلاصه دا ده چه په اصل کښې د استنجاء په حقيقت کښې اختلاف دې چه هغه مطهر محل ده او که صرف مخفف نجاست، شوافع وائی چه هغه مطهر محل او مزيل نجاست ده مگر هله چه د عدد ثلاث تحقق وی لکه چه په حديث کښې ددې عدد تصريح ده، او رجيع او عظم چونکه خپله ناپاک دی په دې وجه که په هغې باندې استنجاء اوکړې شی نو مقام نه پاکيږی، لکه چه د دارقطنی په روايت کښې تير شو ﴿انهما لا يطهران﴾، ددې د تقابل نه معلوميږی چه په حجر سره طهارت حاصليږی، او احناف وائی چه استنجاء بالحجر صرف مقلل نجاست ده مطهر محل نه ده، خو الله پاک زمونږ د ضعف رعايت کولو سره سره ددې چه مقام نه دې پاک شوې دې ته د طهارت حکم ورکړې دې، اګرچه في الواقع پاک شوې نه دې هم دا وجه ده که يو سړی صرف په استنجاء بالحجر باندې اکتفاء کړې وی او داسې سړې په ماء قليل کښې داخل نه شی نو د ددې مقام د نجاست واپس کيدو سره به هغه اوبه نجس شی، بهر حال زمونږ په نزد استنجاء که بالحجر وی او که بالروث والرجيع وی دواړه مطهر محل نه دی، صرف د طهارت محل حکم ورکولې شی، لهذا د دارقطنی روايت زمونږ مخالف پاتې نه شو، انتهى ما في البذل.

خو احقر عرض کوی چه امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې ددې خبرې تصريح کړې ده چه د هغوی په نزد هم په استنجاء بالحجر سره مقام نه پاکيږی، بلکه صرف د عفو او د عدم مواخذه درجه ده، خو د حنابله په نزد دواړه روايتونه دی، طهارت محل او عدم طهارت څنګه چې چه په مغنی کښې دی، کيدې شی چه د شوافعو په نزد هم دواړه اقوال وی.

[۳۷]() حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مُفَضَّلٌ، عَنْ عَيَّاشٍ، أَنَّ شِيَيْمَ بْنَ بَيْتَانَ أَخْبَرَهُ بِهَذَا الْحَدِيثِ أَيْضًا، عَنْ أَبِي سَالِمٍ الْجَيْشَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، يَذْكُرُ ذَلِكَ وَهُوَ مَعَهُ مُرَابِطٌ بِحِصْنِ بَابِ أَلْيُونَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: حِصْنُ أَلْيُونَ بِالْفِسْطَاطِ عَلَى جَبَلٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَهُوَ شَيْبَانُ بْنُ أُمَيَّةَ يُكْنَى أَبَا حُذَيْفَةَ.

**ترجمه**: د عبد الله بن عمرو نه روايت دې، ذکريې کړو دا حديث، کله چه هغه دهغه سره په باب اليون کښې مرابط وو (دهغې محاصره ئې کړې وه)، وئيلی دي ابوداود: قلعه د اليون په فسطاط کښې ده په غره باندې، وئيلی دي ابوادود: او هغه شيبان أُمية دی کنيه ئې اباحذيفه دی.

**تشريح**: ۲: ﴿حدثنا يزيد بن خالد الخ﴾ د مصنف رحمه الله غرض په دې سره د هغه حديث سابق طريق ثانی بيانول دی، پس په اول سند کښې شييم روايت کولو د شيبان نه، او شيبان د رويفع نه، او په دې سند کښې شييم روايت کوی په ځائې د شيبان د ابوسالم الجيشانی نه، او ابوسالم جيشانی روايت کوی د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه، د ﴿ايضا﴾ مطلب هم دا دې چه څنګه شييم دا روايت کوی د شيبان نه، هم دغه شان روايت کوی د ابوسالم

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۸٦٥١، ۳٦١٦) (صحيح)

جيشاني نه، نو ګویا دا حدیث د دوه صحابه کرامو نه روایت شوي دي، یو د سیدنا رویفع رضي الله عنه نه، او بل د سیدنا عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما. ﴿ یذکر ذلک وهو معه ﴾ یعني بیانولو به عبدالله بن عمر بن العاص دا حدیث په داسې حالت کښې چه ابو سالم هغوی سره حصن باب الیون کښې څوکئ ورکوله. ﴿ الیون ﴾ د مصر قدیم نوم دې، او مسلمانانو ددی د فتح کولو نه پس ددې نوم فسطاط شو، او نن صبا د مصر سره مشهور دې.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ حِصْنُ أَلْيُونَ عَلَى جَبَلٍ بِالْفُسْطَاطِ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه حصن الیون کوم ځائې کښې چه په ولاړه باندې څوکئ ورکولې کیده، ځان پوهه کړه چه الیون په یاء سره دې، او البون باء موحده سره هم راځی هغه یو دویم ښار دې په یمن کښې. هغه دلته مراد نه دې.

[۳۸] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ: "نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَتَمَسَّحَ بِعَظْمٍ أَوْ بَعْرٍ".

**ترجمه:** جابر بن عبد الله وايي: مونږ منع کړي یو رسول الله صلی الله ﷺ د دېنه چه استنجاء اوکړو او په هډوکي او یا په پچه.

[۳۹] (۲) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي عَمْرٍو السَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "قَدِمَ وَفْدُ الْجِنِّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا مُحَمَّدُ، انْهَ أُمَّتَكَ أَنْ يَسْتَنْجُوا بِعَظْمٍ أَوْ رَوْثَةٍ أَوْ حُمَمَةٍ، فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى جَعَلَ لَنَا فِيهَا رِزْقًا، قَالَ: فَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ".

**ترجمه:** روایت دی د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه، هغه وائی راغی وفد (ټولګی) د پیریانو رسول الله ﷺ ته نو هغوی اووئیل: اې محمد! منع کړه ته خپل امت د استنجاء کولو نه په هډوکي او په غوشایانو او په سکرو باندې، یقینا الله تعالی ګرځولی دی زمونږ لپاره په دې کښې رزق، نو منع اوکړه رسول الله ﷺ د دېنه.

**تشریح:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الدَّيْلَمِيِّ الخ ﴾ د دیلمی نوم فیروز دې، لهذا دا عبدالله بن فیروز الدیلمی شو تابعی دې وقیل له صحبة دا د ضحاک بن فیروز الدیلمی رور دې، ﴿ قدم وفد الجن ﴾ یعنی یو ځل د جناتو وفد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو او هغوی رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه تاسو خپل امت ددې خبرې نه منع کړئ چه هغوی په هډوکی یا سپیاکو یا کوئلې سره استنجاء اوکړی ځکه چه الله پاک په دې څیزونو کښې زمونږ روزی کیخودلې ده، پس رسول الله ﷺ ددې نه منع اوفرمائیله. وفد جمع ده د وافد، وفد وئیلې شی د هغه منتخب خلقو ته کوم چه د یو ښار نه بل ښار ته په څه مسئله باندې د خبرو اترو دپاره د امیرانو سره ملاویږی.

(۱): صحیح مسلم/الطهارة ۱۷ (۲۶۳)، (تحفة الأشراف: ۲۷۰۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۴۳، ۳۸٤) (صحیح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۳٤۹) (صحیح)

شارحينو ليکلي دي دا د نصيبين جنات وو، نصيبين يو ښار دې کوم چه موصل ته نزدې منبع فرات باندې واقع دې، دلته جنات په کثرت سره دی، او ددې ځائې جنات سادات الجن بللې شی، او په قرآن کريم کښې چه دا راغلی دی چه ﴿ واذا صرفنا اليک نفرا من الجن ﴾ نو په دې آيت کريمه کښې هم جن نه جن نصيبين مراد دی، بعض وائی دا اووهٔ وو، او بعض وائی دا نهه وو، دا راتلل د وفد مکې مکرمې ته د هجرت نه مخکښې شوې وو لکه چه په بذل کښې دی.

## په حديث الباب کښې اختصار:

په يو روايت کښې دی رسول اللهﷺ اوفرمائيل: اتانی داعی الجن فذهبت معه... يعنی يو ځل د رسول اللهﷺ په خدمت کښې د جناتو وفد حاضر شو، رسول اللهﷺ ددې وفد سره هغوی ته تشريف يوړو او د هغوی خپل مينځ کښې جنګونه او اختلافات ئې فيصله کړل په آخره کښې جناتو هغوی نه د زاد درخواست هم اوکړو، پس په حديث کښې راځی ﴿ فسالوه الزاد فقال لکم کل عظم الحديث ﴾ يعنی رسول اللهﷺ د هغوی په درخواست باندې توښه ورکړه او وې فرمائيل چه په کوم هډوکی باندې هم تاسو تير شئ نو په هغې باندې به دهغې نه زياته غوښه وينئ کومه چه په هغې باندې مخکښې وه. په دې باندې هغوی رسول اللهﷺ ته درخواست اوکړو چه ښه هر کله دا خبره ده نو تاسو خپل امت په هډوکی وغيره باندې د استنجاء کولو نه منع کړئ، پس رسول اللهﷺ منع اوفرمائيله، لکه چه په حديث الباب کښې دی، ددې نه معلومه شوه چه حديث الباب مختصر دې، پوره واقعه هغه شان ده کومه چه پورته ذکر شوه.

ځان پوهه کړه چه د جناتو وفدونه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې څو کرته راغلل مشهوره ده چه د ليلة الجن واقعه شپږ کرته پيښه شوی، درې کرته قبل الهجرت او درې کرته بعد الهجرت ددې بيان به په باب الوضوء بالنبيذ کښې راشی ﴿ قوله جعل الله لنا فيها رزقا الخ ﴾ د رزق نه مراد صرف طعام او خوراک نه دې بلکه قابل انتفاع څيز، اوس انتفاع چه هر څنګه وی لهذا د کوئلې نه به اشکال ختم شی، ځکه چه ضروری نه ده چه کوئله اوخوری بلکه مقصود انتفاع ده هر څنګه چه وی، هم دغه شان به د روث په باره کښې وئيلې شی، او بعضو وئيلې دی چه عظم د جناتو دپاره او روثة (خاشنړه) د هغوی د حيواناتو دپاره رزق دې، کيدې شی چه الله پاک څنګه په هډوکی باندې دوباره غوښه پيدا فرمائی هم دغه شان روث به هم په خپل اصلی شکل يعنی ګيا دانې طرف ته واپس کوی چه د جناتو د څاروو دپاره رزق شی لکه چه شارحينو ليکلي دی. والله اعلم بالصواب.

## د جناتو دپاره د عظم رزق کيدل او په دې کښې اختلاف روايات:

ځان پوهه کړه چه په حديث الباب کښې د هډوکی طعام الجن کيدل مطلقا ذکر شوې دی خو روايات په دې کښې مختلف دی د مسلم شريف په روايت کښې دی ﴿ لکم کل عظم ذکر اسم الله عليه ﴾ او په ترمذی کښې ددې خلاف دی ﴿ لکم کل عظم لم يذکر اسم الله عليه ﴾ يعنی په يو روايت کښې دی چه ستاسو دپاره هغه هډوکې توښه ده چه په هغې د الله پاک نوم

اخستلې شوې وی، او په يو روايت کښې دی چه په هغې باندې د الله پاک نوم نه وی اخستلې شوې، بعض شارحينو دفع د تعارض داسې کړې ده چه د مسلم په روايت کښې چه په هغې کښې ذکر د اسم راغلې دې هغه د مسلمين جن دپاره دې، او د ترمذی په روايت کښې چه په هغې کښې ﴿ لم يذكر ﴾ وارد دې هغه د کفار جناتو دپاره دې، خو حضرت ګنګوهی دا جواب نه دې خوښ کړې، حضرت فرمائی چه د رسول اللهﷺ نه صرف مسلمين جناتو سوال کړې وو کفار جنات هغوی سره کوم ځائې وو، نو د رسول اللهﷺ د هغوی دپاره د بيانولو ضرورت څه دې؟ خپله د حضرت ګنګوهی رائې لکه څنګه چه په کوکب کښې ذکر ده، دا ده چه د دواړو روايتونو محل بيل بيل دې، د مسلم په روايت کښې د ذکر نه مراد ذکر عند الذبح دې، او د ترمذی په روايت کښې د لم يذکر نه مراد عند الاکل دې، او مطلب دا دې چه په کوم عظم باندې د خوړلو په وخت بسم الله او نه لوستلې شوه هغه به د ډيرې غوښې والا شی، ځکه چه د ترک بسم الله د وجې نه هغه خوراک کونکی دهغې برکت حاصل نه کړو په خلاف د هغه چا چه بسم الله لوستلې وی دهغې برکت خوراک کونکی خپله حاصل کړو هغه به د جناتو دپاره ډيرې غوښې والا نه وی، سبحان الله..... څه غوره توجيه ده! دا خبرې په شروحو کښې چرته وی..... نو اوس د دواړو احاديثو يو ځائې کولو سره مطلب دا راوتلو چه هغه هډوکې چه په کوم باندې د ذبح په وخت بسم الله لوستلې شوې وی او خوراک کونکی پرې د خوراک په وخت بسم الله نه وی لوستلې نو هغه به جنات د غوښې ډک بيا مومی، باقی دا خبره به څنګه معلوميږی چه په کوم حيوان باندې د ذبح په وخت بسم الله لوستلې شوې ده او په کوم باندې نه؟ نو ددې جواب دا دې چه ددې به رسول اللهﷺ هغوی ته څه علامت بيان کړې وی، يا داسې اووايه چه په کوم ځاروی باندې عند الذبح بسم الله نه وی لوستلې شوې د هغه ځاروی په هډوکی باندې به الله پاک بالکل غوښه نه پيدا کوی.

## بَابُ الِاسْتِنْجَاءِ بِالْحِجَارَةِ

### باب دې په بيان د استنجاء کښې په کاڼی باندې

د ترجمة الباب په غرض کښې دوه احتماله دی، ممکنه ده چه د استنجاء بالحجر ثبوت او جواز بيانول وی، او کيدې شی چه بيان عدد مقصود وی څنګه چې چه د لفظ جمع نه فهم کيږی نو ښان پوهه کړه چه د استنجاء بالحجر په ثبوت او جواز کښې خو هيڅ تردد او کلام نشته د بيشميره احاديثو نه ددې ثبوت دې، هم په دې وجه تول اهل سنت ددې د جواز قائل دی، خو شيعه ګان د استنجاء بالحجر انکار کوی، هم دغه شان يو روايت د ابن حبيب مالکیؒ دې هغه دا چه استنجاء بالحجرصرف د عادم الماء دپاره ده د واجد الماء دپاره جائز نه ده. او دويم قسم د استنجاء استنجاء بالماء ده چه دهغې باب وړاندې مستقل راروان دې، په هغې باندې به کلام هم هلته راشی، هم دغه شان جمع بين الحجر والماء کوم چه د استنجاء دريم قسم دې هغه به هم هلته بيان کړې شی.

دويم احتمال په غرض د ترجمه کښې بيان د عدد وو، پس دا مسئله د ائمه ترمينځه

اختلافي ده، کومه چه مخکښې ځو کرته تيره شوې دی، د شوافعو او حنابله په نزد دلته د عدد ثلاث کيدل ضروري دی، د احنافو او مالکيانو په نزد دلته مقصود انقاء ده د عدد ثلاث کيدل ضروري نه دی، مخکښې اګرچه اختلاف تير شوې دې خو په دلائلو باندې کلام نه وو راغلې، دلته به مونږ ددې مسئلې دليل بيانوو، پس د عائشې رضي الله عنها حديث الباب په کوم کښې چه دی چه ﴿ فانها تجزئ عنه ﴾ يعني درې کاڼرې دې يوسی ځکه هغه کافي کيږی.

[۴۰](۱) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ قُرْطٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا ذَهَبَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْغَائِطِ، فَلْيَذْهَبْ مَعَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ يَسْتَطِيبُ بِهِنَّ، فَإِنَّهَا تُجْزِءُ عَنْهُ".

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه بيشکه رسول الله ﷺ وئيلی دی: کله چه لاړ شي يو کس ستاسو نه ډک اودس ماتي ته، نو وي دې سي ځان سره درې کاڼرې چه استنجاء اوکړي په هغې سره، نو دغه کافي کيږي د ده نه.

[۴۱](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ خُزَيْمَةَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ، عَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الِاسْتِطَابَةِ، فَقَالَ: "بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ لَيْسَ فِيهَا رَجِيعٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا رَوَاهُ أَبُو أُسَامَةَ، وَابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ هِشَامٍ يَعْنِي ابْنَ عُرْوَةَ.

**ترجمه:** د خزيمة بن ثابت نه روايت دې، هغه وائي: چه سوال اوکړی شو د رسول الله ﷺ نه د استنجاء په باره کښې، نو هغه اوفرمائيل: استنجا په درې کاڼړو باندې کوئی چه هغې کښې غوشايان نه وي. وئيلي دي ابوداود: هم داسې روايت کړی دی ابو اسامه، او ابن نمير د هشام نه يعني ابن عروة.

## حديث الباب د احنافو دليل دې:

سياق کلام او لفظ حديث نه معلوميګی چه د دريو قيد احترازی نه دې، بلکه په دې وجه دې چه عام طور سره درې کافي کيږی، او هم دا خبره احناف کوی لهذا دا حديث د احنافو دليل شو، دارقطني وائي چه ددې حديث سند حسن دې.

خوابن رسلان رحمه الله چه شافعی دې، ددې حديث په خپل مسلک باندې دوه طريقو سره استدلال کوی، يو دا چه ﴿ فليذهب معه ﴾ دا د امر صيغه ده، دويم دا چه لفظ يجزئ د وجوب په معنی کښې استعماليږی، مونږ وايو چه امر که د وجوب دپاره وی خو د دريو د قيد نه احترازی نه دې، بلکه عادی دې چه عادة درې کافي دی، او دويمه خبره چه کومه هغوی ذکر کړې ده چه د اجزاء د وجوب په معنی کښې مستعمل کيږی، ددې جواب دا دې چه د طحاوی د روايت الفاظ په دې حديث کښې ﴿ فانها ستکفيه ﴾ راغلې دې..... فثبت ما قلناه.

[۱]: سنن النسائي/الطهارة ٤٠ (٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٧٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٨/٦، ١٣٣)، سنن الدارمي/الطهارة ١١ (٦٩٧) (حسن)

[۲]: سنن ابن ماجه/الطهارة ١٦ (٣١٥)، (تحفة الأشراف: ٣٥٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٣/٥، ٢١٤) (صحيح)

## د حدیث بخاری نه وجوب وعدم وجوب ایتار په سلسله کښې د فریقینو استدلال

د دې نه علاوه په دې مسئله کښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حدیث نه استدلال کولې شی کوم چه په صحیح بخاری کښې موجود دې، چه په هغې کښې دی چه رسول الله ﷺ قضاء حاجت ته د تلو په وخت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته اوفرمائیل چه ﴿ ائتنی بثلثة احجار ﴾ په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه ما اولټول خو صرف دوه کاڼړی ملاؤ شو، دریم ملاؤ نه شو نو دهغې په ځائې ما روثة اوچته کړه، نو رسول الله ﷺ هغه دوه کاڼړی خو واخستل او روثه ئې اوغورځوله، او وې فرمائیل ﴿ هذا رکس ﴾ ځان پوهه کړه چه ددې حدیث نه فریقین استدلال کوی، شوافع خو د عدد ثلاث په قید سره چه رسول الله ﷺ فرمائیلي وو چه درې کاڼړی راوړه، او احناف په دې طریقه چه په دې موقعه باندې رسول الله ﷺ په ظاهر کښې په حجرین باندې اکتفاء اوفرمائیله، شوافع داسې وائی چه په دې حدیث کښې داسې نشته چه په حجرین باندې ئې اکتفاء اوفرمائیله، بلکه کیدې شی چه یو حجر رسول الله ﷺ ته دهغې په ځوا کښې ملاؤ شوې وی، مونږ وایو چه که رسول الله ﷺ سره کاڼړې وې نو رسول الله ﷺ په شروع کښې د دریو قید ولې لګولو، پس ظاهره ده چه په دې موقع باندې رسول الله ﷺ په دوه کاڼړو باندې اکتفاء اوفرمائیله بله دا چه که د حجر ثالث کیدل ضروری وې نو رسول الله ﷺ به دوباره طلب فرمائیلې وې، دا خبره امام طحاوی رحمه الله فرمائیلې ده.

په دې باندې علامه سندهی دا اشکال کړې دې، اګرچه هغه حنفی دې چه چونکه د امر سابق لا تراوسه پورې تعمیل نه وو شوې، په دې وجه د امر جدید حاجت نه وو، لهذا ددې وخته پورې د رسول الله ﷺ سابق طلب باقی وو، دا خبره د هغوی په ځائې ده خو سوال دا دې چه د ایتاء ثالث تحقق خو کیدل پکار دی که طلب سابق باقی وی او که نه، او حافظ ابن حجر رحمه الله د شوافعو د طرف نه ددې دویم جواب کړې دې هغوی فرمائی ﴿ وغفل الطحاوی رحمه الله عما اخرجه احمد فی مسنده ﴾ او بیا هغوی د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه هم دا حدیث ذکر کړې دې چه په هغې کښې دا زیادت دې ﴿ ائتنی بحجر ﴾ یعنی رسول الله ﷺ دوه کاڼړی اخستلو سره اوفرمائیل چه یو کاڼړې بل راوړه نو ګویا حافظ په امام طحاوی رحمه الله باندې الزام اولګولو چه هغوی د مسند احمد په روایت باندې نه دی خبر شوی، حال دا چه په هغې کښې د حجر ثالث طلب موجود دې، زمونږ د طرف نه علامه زیلعی رحمه الله په نصب الرایه کښې د مسند احمد په دې حدیث باندې بحث کولو سره فرمائیلې دی چه دا زیادت منقطع دې، ځکه چه دا حدیث ابواسحق د علقمه نه روایت کوی، حال دا چه د ابواسحاق سماع د علقمه نه ثابت نه ده چه دهغې اقرار خپله امام بیهقی رحمه الله ته دې، خو هغوی دلته سکوت کړې دې په بل ځائې کښې هغوی په دې اقرار کړې دې، او زه دا هم وایم چه په دې حدیث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه باندې امام ترمذی او امام نسائی رحمهما الله باب الاستنجاء بالحجرین ترجمه قائم کړې ده، چه دهغې صفا مطلب دا دې چه ددې دواړو په نزد په دې حدیث کښې استنجاء بالحجرین ذکر کړې شوې دې او هغه زیادت کوم چه حافظ رحمه الله بیان فرمائیلې دې

هغه دې دواړو حضراتو هم نه دې تسلیم کړې، آیا حافظ صاحب رحمه الله به دلته هم وائی چه غفل الامام الترمذی والامام النسائی.

قوله ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ كَذَا رَوَاهُ أَبُو أُسَامَةَ الخ ﴾ د مصنف رحمه الله په غرض کښې دوه اقوال دی، حضرت په بذل کښې دا لیکلې دی چه ددې حدیث په سند کښې اختلاف دې، بعضو هشام بن عروه او عمرو بن خزیمة ترمینځه د یو راوی واسطه ذکر کړې ده چه د هغه نوم عبدالرحمن بن سعد ښکاره چه چه د بیهقی په روایت کښې دی نو اوس مصنف رحمه الله دا فرمائی چه اکثر راویانو دا سند هم دغه شان بیان کړې ده کوم چه پورته ذکر شوې دې، یعنی بغیر د واسطې د عبدالرحمن نه او صاحب منهل یو بل غرض لیکلې دې چه دا حدیث سفیان بن عیینة هم د هشام نه روایت کړې دې خو هغوی شیخ هشام ابووجزه مقرر کړې دې، په ځائې د عمرو بن خزیمه، نو مصنف رحمه الله فرمائی چه ابومعاویه دا حدیث د هشام نه نقل کړې دې هم دغه شان ابواسامه او ابن نمیر هم دا روایت کړې دې یعنی د هشام بن عروه استاذ عمرو بن خزیمة ته وئیلې دې نه ابووجزه لره لکه چه سفیان بن عیینه رحمه الله کړې دی، لهذا د سفیان روایت وهم دې. ([1])

شرح السند : ﴿ عَنْ أَبِي حَازِمٍ ﴾ د دوی نوم سلمه بن دینار دې ﴿ مُسْلِمِ بْنِ قُرْطٍ ﴾ دا راوی ضعیف دې ﴿ ابومعاویة ﴾ د دوی نوم محمد بن حازم دې ﴿ عمارة بن خزیمة ﴾ صاحب منهل عمارة په کسرې د عین سره لیکلې دې خو دا وهم دې صحیح بضم العین دې، په ظاهر کښې هغوی ته وهم د یو بل نوم نه شوې دې هغه دا چه هغه صحابی دې ﴿ ابی بن عمارة ﴾ دا عمارة البتة بکسر العین دې والله اعلم.

قوله ﴿ خزیمة بن ثابت ﴾ دا مشهور صحابی دې، ذو الشهادتین د دوی لقب دې کوم چه د یو خاص واقعې د وجې نه دی ([2]) دا واقعه به د ابوداؤد په کتاب القضاء کښې راشی چه د هغې په اخر کښې دی ﴿ من شهد له خزیمة فهو حسبه ﴾.

---

[1]) صاحب منهل چه کوم غرض بیان کړې دې، هغه احقر ته اقرب الی کلام المصنف رحمه الله معلومیږی، چه دهغې تقریر زیات واضح دې، هغه دا چه مصنف رحمه الله د هشام د شاګردانو اختلاف بیانوی او هغه دلته په کتاب کښې درې دی، ابومعاویه، ابواسامه، ابن نمیر.. دا درې واړه دا روایت د هشام نه په یو طریقه روایت کوی، او د هشام څلورم شاګرد سفیان بن عیینة دې هغه نې بل شان روایت کوی، په دې تقریر کښې تقابل غوره دې)

[2]) دا واقعه د شراء فرس سره متعلق ده کوم چه رسول الله ﷺ د یو اعرابی نه اخستلې وو خو د معاملې د طې کیدو نه پس هغه د بیع نه انکار اوکړو او د هغه نه نې د شاهد مطالبه اوکړه، په دې باندې خزیمه رضی الله عنه کوم چه په اصل واقعه کښې موجود هم نه وو، د رسول الله ﷺ تصدیق نې اوکړو رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو چه ته تصدیق څنګه کوې هغوی عرض اوکړو ستاسو د ارشاد د وجې نه په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د همیشه دپاره د هغه یواځې شهادت کول به کافی وی،

# بَابٌ فِي الِاسْتِبْرَاءِ

## باب دې په بيان د ځان پاکولو کښې (استنجاء)

## د يوې سلسله متعدد تراجم ابواب او د هغې خپل مينځ کښې فرق:

صاحب غاية المقصود دا ترجمه په استنجاء بالحجر باندې محمول کړې ده خو په دې باندې به دا اشکال واردېږی چه د استنجاء بالحجر باب خو اوس تير شوې دې او حضرت سهارنپوری رحمه الله دا په استنجاء بالماء باندې محمول فرمائيلې دې، په دې باندې به هم اشکال وی چه ددې نه وړاندې باب د استنجاء بالماء راروان دې او ددې نه علاوه يو اشکال دا دې چه باب الاستبراء په شروع کښې تير شوې دې، نو دلته په دې باب کښې څه مقصود دې؟ او په دې استبراء او تير باب د استبراء کښې څه فرق دې؟ په يو طريقه هم دا خبره نه جوړېږی، خو الحمد لله حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ددې ټولو ابوابو د مقاصدو او اغراضو داسې توضيح کړې ده چه ټول اختلافات ختمېږی هغه دا چه په ماقبل کښې چه کومه استبراء من البول راغلې دې دهغې نه مراد مطلق توقی عن البول دې، يعنی متيازې په احتياط سره کول که دهغې تعلق د بدن د څۀ حصې سره وی او که د کپړې سره وی، او که د خپلو متيازو سره وی او که د بل، او دلته د استبراء نه مراد استنجاء بالماء ده. خو مقصود دا دې چه استنجاء بالماء لازم نه ده ځنګه چه د حديث الباب نه ثابتېږی، اوس چه هر کله دا خبره ثابته شوه چه استنجاء بالماء غير لازم ده نو په دې سره شبه کيدې شوه چه کيدې شی مسنون هم نه وی او دا چه ددې هيڅ اهميت نشته نو دهغې د دفع کولو دپاره ئې بل باب قائم کړو، باب فی الاستنجاء بالماء او دهغې نه ئې استنجاء بالماء ثابت کړه، په باب فی الاستبراء کښې د استنجاء بالماء د لزوم نفی ده. او په راروان باب سره د استنجاء بالماء ثبوت دې. اوس د ټولو تراجمو غرض واضح شو، او د تکرار اشکال هم ختم شو.

[۳۲](۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَخَلَفُ بْنُ هِشَامٍ الْمُقْرِءُ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يَحْيَى التَّوْأَمُ. ح وحَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا أَبُو يَعْقُوبَ التَّوْأَمُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: بَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ عُمَرُ خَلْفَهُ بِكُوزٍ مِنْ مَاءٍ، فَقَالَ: مَا هَذَا يَا عُمَرُ؟ فَقَالَ: هَذَا مَاءٌ تَتَوَضَّأُ بِهِ، قَالَ: "مَا أُمِرْتُ كُلَّمَا بُلْتُ أَنْ أَتَوَضَّأَ، وَلَوْ فَعَلْتُ لَكَانَتْ سُنَّةً".

**ترجمه**: د عائشې رضی الله عنها نه روايت دې، هغې وائی: متيازې اوکړې رسول الله صلی الله عليه وسلم، نو ودريدو عمر وروسته د هغه نه په يوه لوټه (کوزه) د اوبو، نو اووئيل هغه دا څه شی دی اې عمره! نو هغه اووئيل: دا اوبه دې چه اودس اوکړې ته په دې، نو هغه اووئيل: ماته امر نه دی شوی چه هر کله زه متيازې کوم نو اودس اوکړم، او که چيرې مې اوکړو نو دا به واجبه طريقه شي.

**تشريح**: قوله: ﴿فَقَالَ مَا هَذَا يَا عُمَرُ﴾ دا خبره مونږ بيان کړه چه په دې باب سره د مصنف رحمه الله غرض استنجاء بالماء بيانول دی، يعنی دا چه هغه ضروری نه ده

(۱): سنن ابن ماجه/الطهارة ۲۰ (۳۲۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۵/۶) (ضعيف)

**د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت:**

خو په حدیث الباب کښې خو د استنجاء ذکر نشته، جواب دا دې چه د ﴿ تتوضاء به ﴾ په تفسیر کښې د شارحینو دوه اقوال دی، د حافظ عراقی رحمه الله رائې دا ده چه ددې نه وضوء شرعی مراد دې، او د بعض حضراتو رائې دا ده چه په هغې کښې امام ابوداؤد او امام ابن ماجه رحمهما الله هم دې، چه دلته د طهارت نه مراد استنجاء بالماء مراد ده نو مطلب دا شو چه عمر رضی الله عنه چه کومې اوبه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوړې وې نو هغه ئې د استنجاء دپاره راوړې وې نو په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه زه ددې خبرې مامور نه یم چه همیشه دې د متیازو نه پس استنجاء بالماء اوکړم.

**سره د اتحاد سند د حاء تحویل راوړلو مقصد:**

د دې حدیث په سند کښې حاء د تحویل واقع شوې ده، په اول سند کښې د مصنف رحمه الله استاذ قتیبه وغیره دې، او په دویم کښې عمرو بن عون، او بیا ددې دواړو استاذ په دواړو سندونو کښې یو دې یعنی ابویعقوب چه د هغوی نوم عبدالله بن یحیی دې، لهذا په دواړو سندونو کښې د مشائخ او راویانو په اعتبار هیڅ فرق نشته دواړه سندونه د رجالو په اعتبار سره بالکل یو دی، لهذا د تحویل هیڅ موقع نشته، خو چونکه د دواړو په سند کښې د تعبیر فرق موجود دې، صرف ددې فرق د وجې نه ئې حاء د تحویل راوړې ده او هغه د تعبیر فرق دا دې چه په اول سند کښې قتیبه وغیره د خپل استاذ نوم عبدالله بن یحیی ذکر کړې دې، او عمرو بن عون په ځائې د نوم کنیت ابویعقوب ذکر کړې دې، دویم فرق دا دې چه په اول سند کښې حدثنا عبدالله دې او دلته اخبرنا پس هم ددې فرق د ښکاره کولو دپاره مصنف رحمه الله حاء د تحویل راوړې ده، دا د غایة اهتمام او احتیاط خبره ده.

## بَابٌ فِي الِاسْتِنْجَاءِ بِالْمَاءِ

باب دې په بیان د استنجاء کولو کښې په اوبو باندې

**د استنجاء اقسام او د هغې ثبوت او حکم شرعی:**

غرض الباب: په دې باب باندې څه کلام په مخکښې باب کښې راغلې دې، ددې باب د منعقد کولو او د استنجاء بالماء ثابتولو یو غرض دا دې چه بعض علماء کرامو استنجاء بالماء ګنړلې ده، لکه چه د ابن حبیب مالکی رحمه الله نه منقول دی، هغوی وائی چه اوبه د څکلو څیز دې ځنګه چه تاسو په دوډئ سره استنجاء نه شې کولې کوم چه د خوراک څیز دې نو په اوبه سره ولې کوئ هغه د څکلو څیز دې، جواب دا دې چه دا قیاس مع الفارق دې، د اوبو په باره کښې تصریح ده چه هغه مطهر دی، نو ځنګه چه هغه د څکلو څیز دې، تطهیر هم ددې په تخلیق سره مقصود دې، د الله پاک ارشاد دې ﴿ وانزلنا من السمآء ماءا طهورا ﴾ الآیة لهذا اوبو لره په خبز باندې قیاس کول صحیح نه دی، بلکه دا چه د بعض صحابه کرامو نه روایت دې لکه عبدالله بن عمر، عبدالله بن زبیر رضی الله عنهم چه هغوی به استنجاء بالماء نه کوله، او په مصنف ابن ابی شیبة کښې دی چه سیدنا حذیفه رضی الله عنه هم ددې قائل نه وو، پس هغوی اوفرمائیل ﴿ اذا لا یزال النتن بیدی ﴾ چه که زه بعد الغائط استنجاء بالماء اوکړم نو زما د

لاس نه به بدبو نه زائله کيږي نو د داسې اقوال رد کولو دپاره مصنف رحمه الله باب الاستنجاء بالماء تړلې دې، او د حديث الباب نه ثې ثابته کړه چه د رسول الله ﷺ نه استنجاء بالماء ثابت ده، بلکه دا چه ابن التين د امام مالک رحمه الله نه نقل کړې دی چه د رسول الله ﷺ نه استنجاء بالماء ثابت نه ده پس په موطاء کښې دی چه ﴿قال يحيى سئل مالک عن غسل الفرج من البول والغائط هل جاء فيه اثر فقال بلغني ان بعض من مضى كانوا يتوضؤون من الغائط﴾ خو دا خبره صحيح نه ده، د صحيحين د روايت نه د رسول الله ﷺ استنجاء بالماء ثابت ده مونږ د باب الاستنجاء بالاحجار په شروع کښې دا خبره بيان کړې وه چه د استنجاء بالحجر ثبوت د رواياتو کثيره نه دې او هم دې ته نزدې نزدې د استنجاء بالمآء ثبوت هم دې.

دريم قسم د استنجاء دې استنجاء بالحجر والماء يعنى حجر او ماء دواړه جمع کول، ددې ثبوت د رواياتو نه زيات مشهور نه دې، چه کوم روايات صحيح دی په هغې کښې صراحت نشته او کوم چه صريح دی هغه زيات صحيح نه دی بلکه ضعيف دی، په مجمع الزوائد وغيره کښې دی ځنګه چه په معارف السنن کښې ليکلې شوې دی، د مولانا عبدالحئ لکهنوی رحمه الله رائې دا ده چه جمع بين الحجر والماء پس د غائط نه د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه ثابت ده، او بعد البول نه ده ثابت. خو د عمر رضي الله عنه په باره کښې منقول دی، لکه د طبرانی په يو روايت کښې دی چه هغوی به جمع بين الحجر والماء بعد البول فرمائيله. (ذکره مولانا عبدالحئ فى مقدمة الهداية)

[۴۳][1] حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ يَعْنِي الْوَاسِطِيَّ، عَنْ خَالِدٍ يَعْنِي الْحَذَّاءَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ حَائِطًا وَمَعَهُ غُلَامٌ مَعَهُ مِيضَأَةٌ وَهُوَ أَصْغَرُنَا، فَوَضَعَهَا عِنْدَ السِّدْرَةِ، فَقَضَى حَاجَتَهُ، فَخَرَجَ عَلَيْنَا وَقَدِ اسْتَنْجَى بِالْمَاءِ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې، چه بيشکه رسول الله ﷺ داخل شو يو باغ ته، او د هغه سره يو غلام چه د هغه سره د اودس کولو لوښی وو، او هغه ورکوټی وو په مونږ کښې نو هغه ئې کېخودله د سدرې (د بيرې د اونې) په خوا کښې، نو رسول الله ﷺ خپل حاجت پوره کړو، نو راووتلو مونږ ته او هغه استنجاء کړې وه په اوبو باندې.

**تشريح**: قوله :﴿ وَمَعَهُ غُلَامٌ مَعَهُ مِيضَأَةٌ الخ ﴾ د غلام اطلاق د فطام نه واخله تر د اووۀ کالو پورې کيږي، دويم قول دا دې چه د پيدائش نه واخله تر بلوغ پورې، علامه زمخشری رحمه الله فرمائی حد التحاء يعنى د ګيرې د راوتلو پورې.

(**غلام څوک وو؟**): په بعضو رواياتو کښې دی ﴿ غلامنا ﴾ او په بعض کښې دی ﴿ غلام من الانصار ﴾ ددې غلام په تعيين کښې اختلاف دې، د امام بخاری رحمه الله سياق دې ته اشاره کوی چه دا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې، خو وړاندې په روايت کښې راځی چه ﴿ وهو

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ١٥ (١٥٠)، ١٦ (١٥١)، ١٧ (١٥٢)، ٥٦ (٢١٧)، الصلاة ٩٣ (٥٠٠)، صحيح مسلم/الطهارة ٢١ (٢٧٠، ٢٧١)، سنن النسائي/الطهارة ٤١ (٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧١/٣) (صحيح)

اصغرنا﴾، په دې صورت کښې عبدالله بن مسعود ﷛ مراد اخستل مشکل دی هغه په کبار صحابه کرامو کښې دې، سیدنا انس ﷛ کوم چه د حدیث راوی دې د هغوی نه مشر دې، او وئیلې شوې دی چه ددې نه مراد جابر بن عبدالله دې څنګه چه د مسلم د روایت نه معلومیږی او دا هم وئیلی شوی دی چه کیدې شی حضرت ابوهریره ﷛ وی. بهرحال دا ټول دحضور ﷺ خادمان دی. او دا هم احتمال دې چه د دوی نه علاوه بل څوک انصاری صحابی وی ﴿ میضاة ﴾ یعنی د اودس لوښې چه په هغې کښې د اودس په اندازه اوبه راشي، ﴿ قوله وقد استنجی بالماء ﴾ دا لفظ استنجاء بالماء کښې صریح دې او هم ددې سره د ترجمة الباب مطابقت دې.

[۴۴]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِي أَهْلِ قُبَاءٍ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا سورة التوبة آية ۱۰۸، قَالَ: كَانُوا يَسْتَنْجُونَ بِالْمَاءِ، فَنَزَلَتْ فِيهِمْ هَذِهِ الْآيَةُ".

**ترجمه:** د ابوهریره ﷛ نه روایت دې، هغه روایت کوي د رسول الله ﷺ نه، هغوی ﷺ فرمائیلی دی: نازل شوی دی دا ایت په اهل قباء کښې (په دې کښې څه سړي دي چه خوښوي چه ښه پاک شي) هغه اووئیل: وو هغوی چه استنجاء ئې کوله په اوبو، نو نازل شو د هغوی په باره کښې دا ایت.

**تشریح:** قوله :﴿ نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ الخ ﴾ قباء مدینې ته نزدې یو مشهوره آبادی ده، اول هغه د مدینې په اطرافو کښې وه خو اوس د مدینې ابادی هلته رسیدلې ده قباء منصرف او غیر منصرف دواړو طریقو سره لوستلې شوې دې، که په تاویل د بقعاء کیخودلې شی نو د علمیت او تانیث د وجې نه به غیر منصرف وی، او که په تاویل د مکان واخستلې شی نو بیا به منصرف وی، آیت کریمه ﴿ فیه رجال ﴾ کښې ضمیر مسجد قباء ته راجع دې، په مدینه منوره کښې د ټولو نه اول دا مسجد جوړ کړې شوې وو، او ددې نه پس مسجد نبوی ﷺ، ددې مسجد ډیر فضائل په احادیثو کښې راغلی دی، رسول الله ﷺ به د هر پیر په ورځ هلته تشریف اوړلو او په هغې کښې به ئې دوه رکعته کول په یو روایت کښې دی چه په مسجد قباء کښې د دوه رکعتو د لوستلو ثواب د یوې عمرې کولو دې، په صحیحین وغیره کتب صحاح کښې ددې مسجد د فضائلو په باره کښې ابواب موجود دی.

قوله :﴿ كَانُوا يَسْتَنْجُونَ بِالْمَاءِ ﴾ معلومه شوه چه په آیت کریمه کښې د طهارت نه استنجاء بالماء مراد ده، په یو روایت کښې دی چه کله دا آیت کریمه نازل شو نو رسول الله ﷺ قباء ته تشریف یوړو او د هغوی نه ئې تپوس اوفرمائیلو چه هغه څه څیز دې چه دهغې په وجه باندې الله پاک د طهارت په باره کښې ستاسو تعریف کړې دې نو هغه خلقو اووئیل چه مونږ اهل کتاب اولیدل چه هغوی د استنجاء نه پس خپل مقعد وینځی، نو د هغوی په اتباع کښې مونږ هم داسې اوکړل.

(): سنن الترمذي/التفسير ۱۰ (۳۱۰۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۲۸ (۳۵۷)، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۰۹) (صحيح)

### په استنجاء کښې د جمع بين الحجر والماء ثبوت :

او په مسند بزار (۱) کښې دی څنګه چه تفسير جلالين کښې دی: ﴿ انا نتبع الحجارة الماء ﴾ چه مونږ د استنجاء بالحجر نه پس استنجاء بالماء کوو، په دې باندې رسول الله ﷺ ﴿ وهو ذلک فعليکموه ﴾ يعنی او ! هم په دې باندې ستاسو تعريف کړې شوې دې لهذا دا لازم اونيسئ، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ليکلي دی چه ظاهره دا ده چه هغوی به استنجاء بالحجر والماء دواړه کول، او د حضرت تائيد د پورته روايت نه کيږی، خو امام نووی رحمه الله ددې انکار کړې دې هغوی فرمائی چه ددې خلقو جمع بين الحجر والماء ثابت نه ده، اوس نزدې په جمع بين الحجر والماء کښې دا کلام تير شو.

## بَابُ الرَّجُلِ يُدَلِّكُ يَدَهُ بِالْأَرْضِ إِذَا اسْتَنْجَى

### باب دې په بيان د سړي کې چې مږي خپل لاس په ځمکه کله چې استنجاء وکړي

يعنی د استنجاء نه پس لاس په زمکه باندې مږل چه رائحه کريهه او آثار نجاست بالکل زائل شی، په عوامو کښې مشهوره ده چه په خاورو کښې لاس وهل د غريبئ سبب دې، ددې حديث نه ددې خبرې ترديد کيږی چه دا بې اصله خبره ده پس په حديث الباب کښې دی ﴿ ثم مسح يده على الارض ﴾

[۴۵](۲) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ وَهَذَا لَفْظُهُ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي الْمُخَرِّمِيَّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ، أَتَيْتُهُ بِمَاءٍ فِي تَوْرٍ أَوْ رَكْوَةٍ، فَاسْتَنْجَى"، قَالَ أَبُو دَاوُد فِي حَدِيثِ وَكِيعٍ: ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ، ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِإِنَاءٍ آخَرَ، فَتَوَضَّأَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ الْأَسْوَدِ بْنِ عَامِرٍ أَتَمُّ.

**ترجمه**: د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دې، هغه وائی: وو نبي ﷺ کله چه به راتلو بيت الخلاء ته نو راوړولې به ما هغه ته اوبه په يو لوښي کښې (چې جوړ وو د زيړو نه او يا د کانړي نه) او په يو لوښي کښې (چې هغه جوړ وو د لرګي نه) نو استنجاء ئې اوکړه. وئيلی دی ابو داود: په حديث د وکيع کښې، بيا ئې مسح کړو خپل لاس په ځمکه باندې بيا راتلل اوکړه ما هغه ته په يو لوښي بل باندې نو اودس ئې اوکړو. وئيلی دي ابوداود: او حديث د اسود بن عامر هغه ډير اتم دی.

**تشريح**: قوله :﴿ عن ابی هريرة رضی الله عنه الخ ﴾ سيدنا ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چه کله به رسول الله ﷺ بيت الخلاء ته تشريف يوړلو نو ما به هغوی ته په يو لوښی کښې اوبه راوړلې، په هغې سره به ئې استنجاء کوله او بيا به ئې لاس په زمکه باندې مږلو بيا به ما په بل لوښی کښې اوبه راوړلې په هغې باندې به رسول الله ﷺ اودس فرمائيلو ﴿ تور ﴾ وئيلې شی هغه

(۱) او مولانا عبدالحئ صاحب په حاشيه د موطاء کښې د صحيح ابن خزيمه حوالې سره په دې باندې اضافه فرمائيلې ده)

(۲): سنن ابن ماجه/الطهارة ۲۹ (۳۵۸)، ۶۱ (۴۷۳)، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۸۶)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة (۷۰۳/۱۵)، مسند احمد (۳۱۱/۲، ۴۵۴) (حسن)

لوښي ته کوم چه د پیتلو یا د کاڼړي وي، او ﴿ رکوۃ ﴾ وائي هغه وړوکي لوښي ته کوم چه د څرمنې وي، ددې حدیث نه دٌې دا شبه اونکړې شي چه د استنجاء نه په پاتې شوې اوبو باندې اودس کول مکروه دي یا خلاف اولی دي، بلکه په بل لوښي کښې به اوبه په دې وجه راوړلې شوې چه باقي اوبه د دواړو کارونو دپاره کافي نه وي، ګینې د رسول اللهﷺ نه د یو لوښي نه استنجاء او اودس کول او غسل کول ثابت دي، لکه چه حضرت په بذل کښې لیکلي دي.

**ایا د استنجاء نه پس د لاس نه رائحه کریهه لرې کول د طهارت دپاره ضروري دي؟**

**قوله :﴿ ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ عَلَى الأَرْضِ ﴾** حضرت سهارنپوري په بذل کښې د حضرت ګنګوهي د تقریر نه په دې مقام باندې د یوې مسئلې تحقیق کړې دې هغه دا چه په لاس سره د ازاله نجاست نه پس په دې کښې چه کومه رائحة کریهه باقي پاتې شي، دهغې زائل کول ضروري دي یا غیر ضروري، بله دا چه ددې رائحې حقیقت څه دې په دې کښې حضرت دوه اقواله لیکلې دي، د یو جماعت فقهاؤ رائې دا ده چه ددې ازاله ضروري ده الا ما شق زواله... او دویم جماعت دا وائي چه په لاس سره یا بدن سره د عین نجاست په زوال سره ازاله ضروري ده الا ماشق زواله، او دویم جماعت دا وائي چه په لاس سره یا بدن سره د عین نجاست په زوال سره لاس او بدن پاکیږي، د طهارت تحقق د رائحه کریهه په زوال باندې موقوف نه دې، اوس په دې کښې د هرې یوې رائې یو مقصد دې، کوم خلق چه وائي، ازاله ضروري ده هغوی وائي چه ددې رائحه کریهه حقیقت په اصل کښې د نجاست هغه اجزاء صغار نه دې کوم چه پټ او غیر مرئي دې په دې وجه ددې ازاله ضروري ده، بل جماعت دا وائي چه دا اجزاء د نجاست نه دي بلکه د مصاحبت بالنجاست اثر دې څکه چه لږ ساعت دپاره نجاست په لاس باندې لګیدلې دې، چه په دې سره لاس متاثره شو نو دا ددې ملګرتیا اثر دې، عین نجاست نه دې، لهذا ددې ازاله ضروري نه ده..... **والله سبحانه وتعالی اعلم.**

**شرح السند : قوله : ﴿ وَهَذَا لَفْظُهُ ﴾** ضمیر د شریک طرف ته راجع نه دې، بلکه د اسود طرف ته راجع دې، دلته دوه سندونه دي،د یو ابتداء په ابراهیم سره ده،د دویم د محمد بن عبدالله سره، دا دواړه د مصنفؒ استاذان دي، بیا په اول سند کښې شیخ الشیخ اسود دې، او په دویم کښې وکیع، بیا دا دواړه یعنی اسود او وکیع روایت کوي د شریک نه، لهذا شریک ملتقی السندین شو نو مطلب دا شو چه دا الفاظ د اسود دي د وکیع نه دي، دلته شریک کوم چه ملتقی السندین دې په دواړو ځایونو کښې ذکر شوې دې، په اول سند کښې هم او په دویم کښې هم، ملتقی السندین لره کله صرف په دویم سند کښې بیانوي، او کله په دواړو کښې نو دلته په اول سند کښې شریک لره حذف کول هم صحیح دي، څکه چه په دویم سند کښې خو هغه هسې هم راروان دې ښه څان پوهه کړه.

**قوله :﴿ المعنى ﴾** تقدير د عبارت دې ﴿ **معنى حديثهما واحد** ﴾ یعنی اسود او وکیع دواړه ددې حدیث راویان دي، مضمون دواړو یو بیان کړو، خو په الفاظو کښې لږ فرق دې ﴿ **قوله عن المغيرة** ﴾ د حضرت سهارنپوریؒ تحقیق په بذل کښې دا دې چه په لفظ المغيرة باندې

دلته سند نه دی کیدل پکار، پس د حضرت مولانا احمد علی محدث سهارنپوری رحمه الله په قلمی نسخه کښې نشته، او هم دغه شان دا روایت په نسائی او ابن ماجه کښې هم دي په دي دواړو کتابونو کښې دا نوم نشته، ددې نه علاوه طبرانی تصریح کړې ده چه دا حدیث د ابوزرعه نه د ابراهیم بن جریر نه علاوه بل چا نه دې روایت کړې، لهذا په دې سند کښې د ابراهیم نه پس صرف عن ابی زرعة کیدل پکار دی، په مینځ کښې ﴿عن المغیرة﴾ غلط دې، او په دې هم ځان پوهه کړه چه ابراهیم د ابوزرعه تره دې نو ګویا تر د وراره نه روایت کوی، لهذا دا روایت روایة الاکابر عن الاصاغر د قبیل نه دې.

## بَابُ السِّوَاكِ

### باب دې په بیان د مسواک کښې

### د ابوابو مناسبت او ترتیب :

د آداب استنجاء ابواب چه تقریبا دویشت (۲۲) شو دهغې د بیان د فراغت نه پس اوس مصنف رحمه الله اصل مقصد یعنی اودس بیانوی، ګویا د اودس ابتداء په باب السواک سره کوی، او د فرضیت وضوء باب باب فرض الوضوء وړاندې راروان دې، چه په هغې کښې مصنف رحمه الله ﴿لا تقبل صلوة بغیر طهور﴾ حدیث راوړې دې، اوس سوال دا دې چه د وضوء د باب قائمولو نه مخکښې ئې د سواک باب ولې قائم کړو؟ پس کیدې شی چه په دې سره دې خبرې ته اشاره وی چه مسواک په اجزاء د اودس کښې نه دې، پس د امام ابوحنیفه رحمه الله نه منقول دی ﴿انه من سنن الدین﴾ یا دې خبرې طرف ته اشاره ده چه مسواک په اودس باندې مقدم کول پکار دی، اصل کښې په دې کښې اختلاف دې چه د مسواک ابتداء د اودس شروع کولو نه مخکښې پکار ده، چه تسمیة علی الوضوء په پاکې خُلې سره اوکړې شی یا دا د اودس شروع کولو نه پس د مضمضې په وخت کښې اوکړې شی، دواړه اقوال دی.

### د مسواک د مباحث اربعه تفصیلی بیان :

دلته څو بحثونه دی:

۱: د سواک معنی لغوی او عرفی او ماخذ اشتقاق،

۲: ددې حکم من حیث الوجوب والسنیة،

۳: مسواک صرف د اودس په سنتو کښې دې یا که سنن صلوة او وضو دواړه دې،

۴: د مسواک فضائل او خواص.

### بحث اول : د سواک لغوی معنی او تحقیق:

سواک په کسرې د سین سره ما یدلک به الاسنان یعنی هغه لرګې وغیره چه په هغې باندې غاښونه وغیره اومږلې شی، ساک یسوک سوکا..... نه ماخوذ دې، چه دهغې معنی په سواک سره د مږلو ده، او د لفظ سواک استعمال په معنی مصدری او آله یعنی مسواک په دواړو کښې وی، چه کله آله مراد وی نو دهغې جمع به سوک راځی، لکه د کتاب جمع چه کتب راځی چه سواک ماخوذ دې ﴿تساوکت الابل﴾ نه، او دا هغه وخت وئیلې شی چه کله اوښ د

ضعف د وجې نه ډير رو او په نرم چال باندې روان وي، پس په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه مسواک په نرمئ سره کول پکار دي،

**(اصطلاحي معنی):**

او په اصطلاح د فقهاء کرامو کښې د سواک معنی ده لرګي يا يو پيره کپړه وغيره په غاښونو کښې استعمالول چه د غاښونو ګندګی او زيړوالی ختم شي غوره دا ده چه مسواک د ترخې اونې وي، او ليکلې شوې دي چه غوره د اراک يعنی د کيکر دې، ددې نه پس درجه د زيتون ده، او فقهاء کرامو ليکلې دي چه د زنانو دپاره علک يعنی دنداسه د مسواک قائم مقام ده.

**بحث ثاني : دمسواک حکم واجب يا مسنون:**

ځان پوهه کړه چه مسواک د شوافعو او حنابله په نزد په سنن وضوء او سنن صلوة دواړو کښې دې مستقلا ، او د احنافو په نزد د مشهور قول په بناء صرف په سنن وضو کښې دې نه په سنن صلوة کښې، خو يو قول زمونږ په نزد دا دې چه د مانځه په وخت هم مستحب دې، لکه چه شيخ ابن الهمام ليکلې دي چه په پنځو وختونو کښې مستحب دې:

۱ : عند اصفرار الاسنان، ۲: عند تغير الرائحة يعنی چه کله په خوله کښې څه قسم بوئی پيدا شي، ۳: عند القيام من النوم، ۴: عند القيام الی الصلوة، ۵: عند الوضوء.

پس ددې قول په بناء باندې به زمونږ او د شوافعو ترمينځه فرق دا شي چه زمونږ په نزد موکد يعنی سنت دې د اودس په وخت او غير موکد يعنی مستحب دې د مانځه په وخت، او د شوافعو په نزد د مانځه په وخت هم موکد دې، او د کتب مالکيه نه معلوميږی چه د هغوی په نزد هم د سنن وضوء نه دې، خو د هغوی په نزد لږ تفصيل دې هغه دا چه که د اودس او مانځه په مينځ کښې زيات فصل شوې وی نو بيا په دې صورت کښې عند الصلوة هم سنت دې، زه وايم چه مونږ او تاسو له هم دغه شان کول پکار دي چه که د يو سړی اودس د مخکښې نه شته، او د هغه د تجديد وضوء اراده نشته نو د مانځهٔ نه مخکښې دې صرف مسواک اوکړی، څکه چه زمونږ په نزد هم يو قول د استحباب عند الصلوة دې، او د مالکيانو په نزد خو ددې تصريح شته هم.

**په بحث ثالث کښې د علماء کرامو مقصد او مستدل :**

په فتح الملهم شرح مسلم کښې په دې سلسله کښې يو نفيس تحقيق فرمائيلې دې، هغه دا چه په دې کښې د اختلاف او بحث مستدل دحديث الفاظ دی کوم چه په هغې کښې وارد دی، پس په دې سلسله کښې څلور قسمه روايتونه دی :

۱: عند کل وضوء ۲: مع کل وضوء ۳: عند کل صلوة ۴: مع کل صلوة.... [1]

---

[1] پس د ابوهريره رضي الله عنه هغه حديث کوم چه په دې باب کښې ذکر شوې دې، او دا روايت په مسلم کښې هم دې، په دې کښې دی (عند کل صلوة) او (عند کل وضوء) يا (مع کل وضوء) دا الفاظ په نسائی، مسند احمد ، بيهقی، طحاوی او طبرانی کښې موجود دی، هم دغه شان د صحيح......٦

حاصل دا چه د صلوٰة او اودس دواړو سره په احاديثو کښې د سواک ذکر راغلې دې او بيا دواړه کښې صورتونه دی، په لفظ د عند او په لفظ د مع سره، پس څان پوهه کړه چه د لفظ مع مدلول اتصال او معيت دې په خلاف د عند چه هغه په اتصال او قرب دواړو باندې صادق راځی، د اتصال دپاره ضروری نه ده، څنګه چه د شيخ الرضی د کلام نه فهميږی، ددې نه پس تاسو څان پوهه کړئ چه د صلوٰة سره مشهور رواياتو کښې لفظ عند راغلې دې، او په اودس کښې لفظ عند او لفظ مع دواړه په کثرت سره راغلی دی، لهذا کوم مسواک چه د اودس په وخت کيږی په دې باندې د عند کل وضوء او مع کل وضوء دواړه روايتونه صادقيږی، هم دغه شان ﴿ عند كل صلوة ﴾ هم هلته صادقيږی، څکه چه د عند مقتضی صرف مقارنت او اتصال نه دې بلکه قرب باندې هم صادقيږی، خو ﴿ مع كل صلوة ﴾ هلته نه صادقيږی، ددې جواب دا دې چه دا لفظ اګرچه د بخاری په يو روايت کښې وارد دې خو خلاف مشهور دې، پس حافظ ددې شاذ د کيدو طرف ته اشاره کړې ده حاصل دا چه کوم لفظ زمونږ خلاف کيدې شی هم هغه شاذ دې، دهغې نه علاوه باقی درې واړه روايات زمونږ د مسلک موافق دی، د پورته تقرير نه دا هم واضحه شوه چه ﴿ عند كل صلوة ﴾ والا روايت کښې احنافو ته د مضاف محذوف منلو ضرورت نشته لکه چه بعض ئې کوی، اوس په دې تقرير سره ټول روايات مجتمع او متفق کيږی.

**بحث رابع د مسواک فضائل او خواص :**

د دې د فضيلت دپاره دا حديث کافی دې چه ﴿ السواک مطهرة للفم ومرضاة للرب ﴾ چه په مسواک سره د خولې پاکوالې او نظافت او د الله پاک رضا حاصليږی، دا روايت خو د نسائی شريف دې، وذكره البخاری تعليقا... او بل روايت کوم چه په مسند احمد وغيره کښې دې، په هغې کښې دی ﴿ صلوة بسواک افضل من سبعين صلوة بغير سواک ﴾ يعنی هغه يو مونځ چه په مسواک کولو سره اولوستلې شی د هغه اويا مونځونو نه غوره دې کوم چه بغير مسواک نه لوستلې شوې وی، ابن قيم رحمه الله ددې غير معمولی فضيلت ډير په ښه طريقه توجيه فرمائيلې ده هغوی ليکی چه مسواک کولو سره مونځ کول په اهتمام باندې دلالت کوی، او د الله پاک د بنده نه اهتمام في العبادة مطلوب دې، کثرت عمل مطلوب نه دې، پس د الله پاک ارشاد دې ﴿ الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا الاية ﴾ هغوی فرمائی چه ﴿ احسن عملا ﴾ فرمائيلې شوې دې، اکثرُ عملاً ئې نه دې فرمائيلې پس هغه دوه رکعته چه په مسواک سره دی هغه احسن دې، اګرچه اکثر نه دې، او هغه اويا مونځونه چه بغير د مسواک نه کړې شوې دی، اګرچه اکثر دی خو احسن نه دی.

---

ك..... بخاری په کتاب الصوم کښې تعليقا ﴿ عند كل وضوء ﴾ لفظ راغلې دې، خو د بخاری په کتاب الجمعة کښې ﴿ مع كل صلوة ﴾ راغلی دې چه دهغې شاذ کيدو ته حافظ رحمه الله اشاره کړې ده، او د ابن حبان په يو روايت کښې راغلی دی ﴿ مع الوضوء عند كل صلوة ﴾ او دا لفظ د احنافو د توجيه عين مطابق دې څکه چه ددې نه معلوميږی چه مسواک به د اودس سره وی هلته عند كل صلوة هم دې،

دويمه خبره يعنى خواص، پس ملا على قارى رحمه الله د بعض علماء كرامو نه د مسواک اويا فوائد نقل كړى دى، او وړاندې ليكى ﴿ ادناها تذكر الشهادتين عند الموت بخلاف الافيون ﴾ يعنى ادنى فائده د مسواک د مرګ په وخت د كلمه شهادت ياد راتلل دى په خلاف د افيون چه په هغې كښې اويا ضررونه دى، ادنى مضرت ئې هيريدل د كلمې دى په وخت د مرګ، حضرت شيخ رحمه الله فرمائى چه دا خبره علامه شامى رحمه الله هم ليكلې ده، خو هغوى په ځائې د ادناها اعلاها تذكر الشهادتين ليكلې دې، بله دا چه هغوى ددې په مقابله كښې د افيون ذكر نه دې كړې.

[۳۶]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَرْفَعُهُ، قَالَ: "لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ لَأَمَرْتُهُمْ بِتَأْخِيرِ الْعِشَاءِ، وَبِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ".

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، رسول الله ﷺ فرمائيلى دى: كه چيرې نه وى دا خبره چه زه به سختي اوكړم په مومنانو نو خامخا ما به حكم كړى وى په تاخير د ماسخوتن مونځ، او په مسواک استعمالو د هر مونځ دپاره.

**د حديث شرح :**

قوله:﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَرْفَعُهُ قَالَ لَوْلاَ أَنْ أَشُقَّ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ﴾ يعنى كه ما د مسلمانانو په حق كښې مشقت نه محسوس كولې، او زما په مشقت كښې د اچولو ويره نه وې، نو ما به د دوى دپاره مسواک د هر مانځه دپاره ضرورى كړې وې خو چونكه د مشقت ويره وه په دې وجه مې حكم ايجابى ورنكړو، او هم دغه شان به مې دوى ته حكم كړې وې د تاخير عشاء، خو چونكه په دې كښې هم ويره د مشقت وه په دې وجه مې ددې حكم هم ورنكړو.

دلته په عبارت كښې لفظ ﴿ مخافة ﴾ مقدر دې ځنګه چه د پورته ذكر شوې ترجمې نه معلوميږى يعنى ﴿ لولا مخافة ان اشق على المومنين ﴾ ګينې اشكال به لازم شى. لولا دلالت كوى په انتفاء د ثانى باندې په سبب د وجود د اول ﴿ لولا على لهلک عمر ﴾ نو اشكال دا دې چه دلته ثانى يعنى د امر بالسواک انتفاء خو ده، خو وجود اول يعنى مشقت چرته دې؟ خو چه كله مو مضاف محذوف اومنلو نو معلومه شوه چه امر اول دلته مشقت نه دې بلكه مخافة مشقت دې پس هغه موجود دې فانتفى الاشكال.

## د عشاء په مستحب وخت كښې اختلاف :

﴿ قوله وبتاخير العشاء ﴾ ددې نه معلومه شوه چه تاخير عشاء اولى دې، د فقهاء كرامو په نزد دا څيز مختلف فيه دې بعض تعجيل غوره ګڼړى او بعض تاخير، د شوافعو او مالكيانو نه د افضليت تعجيل او افضليت تاخير دواړه روايتونه دى خو د شوافعو ظاهر مذهب د افضليت تعجيل دې لكه چه ابن دقيق العيد فرمائيلې دى، او د احنافو په نزد د مشهور

(): صحيح مسلم/الطهارة ۱۵ (۲۵۲)، سنن النسائي/الطهارة ۷ (۷)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۷ (۲۸۷)، موطا امام مالك/الطهارة ۳۲ (۱۱٤)، (تحفة الأشراف: ۱۳٦۷۳)، وقد أخرجه: خ/الجمعة ۸ (۸۸۷)، التمني ۹ (۷۲٤۰)، سنن الترمذي/الطهارة ۱۸(۲۲)، حم (۲/۲٤۵، ۲۵۰، ۳۹۹، ٤۰۰، ٤٦۰، ۵۱۷، ۵۳۱)، سنن الدارمي/الطهارة ۱۸ (۷۱۰) (صحيح)

قول په بناء باندې مطلقا تاخير مستحب دې، لکه چه په نور الايضاح کښې هم دی، په دې باندې امام طحاوی رحمه الله ليکی چه وئيلې شوې دی چه استحباب تاخير د يخنئ په زمانه کښې دې، او د ګرمئ په زمانه کښې تعجيل افضل دې په ګرمئ کښې د شپې د ورې کيدو د وجې نه د تاخير په صورت کښې د قلت جماعت ويره ده، ددې د مزيد تحقيق محل ابواب المواقيت دې.

د دې حديث نه دوه اصولی مسئلې مستفاد کيږی يو دا چه امر د مطلق ايجاب دپاره دې څنګه چه احناف وائی، ځکه چه که د استحباب دپاره وې نو دهغې نفی دلته کوم ده، امر استحبابی خو اوس هم دې.

## د رسول الله ﷺ په حق کښې جواز اجتهاد:

دويمه مسئله دا چه د رسول الله ﷺ دپاره اجتهاد فی الاحکام جائز وواوکه نه، په دې کښې ځلور اقوال دی، ۱: جواز مطلقا ۲: عدم جواز مطلقا، ۳: جواز په جنګونو کښې او په دنياوی امور کښې رائې ورکول، يعنی غزواتو او جنګی امورو او نور د مشورو په خبرو کښې هغوی ته حق د اجتهاد وو، د حلال او حرام په مسائلو کښې ورته د اجتهاد حق نه وو. ۴: التوقف، يعنی ددې په باره کښې هيڅ فيصله نه شی کيدې، اصح قول اول دې يعنی مطلقا جواز احکام او غير احکام ټولو کښې ذکره شيخنا فی هامش البذل عن ابن رسلان.

[۴۷]() حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي، لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ"، قَالَ أَبُو سَلَمَةَ: فَرَأَيْتُ زَيْدًا يَجْلِسُ فِي الْمَسْجِدِ وَإِنَّ السِّوَاكَ مِنْ أُذُنِهِ مَوْضِعَ الْقَلَمِ مِنْ أُذُنِ الْكَاتِبِ، فَكُلَّمَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ اسْتَاكَ.

**ترجمه:** د زيد بن خالد الجهني نه روايت دې، هغه وائی: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه چه وئيل ئې: که چيرې نه وی دا چه زه به سختې اوکړم په خپل امت باندې، نو خامخا ما به امر کړی وی په مسواک باندې د هر مانځه په وخت کښې، وئيلی دي ابو سلمة: نو ما اوليدلو زيد چه ناست وو په مسجد کښې دمونځ دپاره، او مسواک دهغه په غوږ کښې وو په ځائې د قلم باندې په غوږ د کاتب کښې، نو هرکله چه به پاڅيدلو مانځه ته نو مسواک به ئې استعمالولو بيا به ئې د غوږ په ځائې باندې اېښودو

**تشريح:** ﴿ قَالَ أَبُو سَلَمَةَ فَرَأَيْتُ زَيْدًا يَجْلِسُ فِي الْمَسْجِدِ الخ ﴾ ابو سلمه رحمه الله فرمائی چه ما زيد بن خالد جهنی رضی الله عنه اوليدو چه کوم وخت هغوی د مانځه په انتظار کښې ناست وو نو مسواک به د هغوی په غوږ کښې داسې پروت وو لکه د ليکونکی په غوږ کښې چه قلم کيخودلې شی، لکه چه تاسو به ليدلې وی بعض مستريان او ترکانران وغيره کوم چه په غوږ کښې شاته پنسل ږدی چه چرته ئې ضرورت پيښ شی په هغې خط راکاږی او بيا ئې هم هلته کيږدی، نو دغه شان چه به زيد بن خالد جهنی رضی الله عنه مانځه ته اودريدلو نو د غوږ نه به ئې

(): سنن الترمذي/الطهارة ١٨ (٢٣)، (تحفة الأشراف: ٣٧٦٦)، مسند احمد (١١٦٧٤) (صحيح)

مسواک راواخستلو او مسواک به ئې اوکړو.
د دې حدیث نه د شوافعو وغیره د مسلک تائید کیږی، پس ددې جواب ښکاره دې چه د سیاق کلام او الفاظ حدیث نه معلومیږی چه دا طرز صرف هم ددې صحابی وو، ځکه چه ټولو صحابه کرامو داسې کړې وې نو په روایاتو کښې به ددې ذکر وې، ددې نه علاوه ابوسلمه به دا ولې وئیل چه ﴿ فرایت زیدا ﴾ بلکه داسې به ئې وئیل ﴿ فرایت الصحابة ﴾.

[۳۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: قُلْتُ: أَرَأَيْتَ تَوَضُّؤَ ابْنِ عُمَرَ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا وَغَيْرَ طَاهِرٍ، عَمَّ ذَاكَ؟ فَقَالَ: حَدَّثَتْنِيهِ أَسْمَاءُ بِنْتُ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ، أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ حَنْظَلَةَ بْنِ أَبِي عَامِرٍ حَدَّثَهَا، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمِرَ بِالْوُضُوءِ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا وَغَيْرَ طَاهِرٍ، فَلَمَّا شَقَّ ذَلِكَ عَلَيْهِ، أُمِرَ بِالسِّوَاكِ لِكُلِّ صَلَاةٍ"، فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَرَى أَنَّ بِهِ قُوَّةً، فَكَانَ لَا يَدَعُ الْوُضُوءَ لِكُلِّ صَلَاةٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ رَوَاهُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ اللهِ.

**ترجمه**: د عبدالله بن عبد الله بن عمر نه روایت دې، هغه وئیلی دی: ایا ته خبر په اودس د ابن عمر د هر مانځه لپاره چه هغه به طاهر وو، او که غیر طاهر به وو، عم ئې کړو دغه، نو وئې وئیل: بیان کړی دی ماته دهغې اسماء بنت زید بن الخطاب، بیشکه عبد الله بن حنظلة بن أبي عامر ورته بیان کړی دی، بیشکه رسول الله ﷺ امر کړی دی د هر مانځه دپاره، که پاک وې او که پاک نه وې، هرکله چه سخته شوه دغه په ده باندې، نو امرېې اوکړو په مسواک د هر مانځه دپاره، نو وو ابن عمر چه دا خیال ئې وو چه په دې سره قوت دی، نو وو چه نه ئې پریخودلو اودس د هر مانځه دپاره.

**تشریح**: قوله: ﴿ عن عبدالله بن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما قال الخ ﴾ د قال ضمیر عبدالله ته راجع نه دې بلکه د هغوی شاګرد محمد بن یحیی طرف ته راجع دې.

**مضمون حدیث** : مطلب دا دې چه محمد بن یحیی وائی چه ما تپوس اوکړو د خپل استاذ عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د ځوئی نه چه د هغه نوم هم عبدالله دې چه دا راته بیان کړئ چه ستاسو والد محترم عبدالله بن عمر رضی الله عنهما به د هر مانځه دپاره اودس ولې کولو؟ که اول ئې اودس وی او که نه وی، نو هغوی ددې جواب دا ورکړو، چه دهغې حاصل دا دې چه په یو حدیث کښې دی چه دهغې راوی عبدالله بن حنظله رضی الله عنه دې چه رسول الله ﷺ په شروع کښې په هرحال کښې د وضو لکل صلوة مامور وو، که د اول نه په اودس کښې وی او که نه وی، چونکه ددې حکم په تعمیل کښې رسول الله ﷺ ته مشقت وو، نو الله پاک د هغوی په رعایت کولو کښې دا حکم منسوخ اوفرمائیلو، او په ځائې د ﴿ وضوء لکل صلوة ﴾ ئې د ﴿ سواک لکل صلوة ﴾ حکم اوفرمائیلو. غرض دا چه ددې حدیث نه دا خبره معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ دپاره اصل حکم د ﴿ وضوء لکل صلوة ﴾ وو نو عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دا سوچ اوکړو چه حکم اصلی دا دې، او زما دپاره په دې عمل باندې هیڅ مشکل نشته نو په دې وجه به

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۲۴۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۵/۵)، سنن الدارمي/الطهارة ۳ (۶۸۴) (حسن)

هغوی د هر مانځه په وخت اودس کولودا خبره د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ځوئی عبدالله بن عبدالله بن عمر په خپل استنباط او گمان باندې اوکړه چه کیدې شی زما د والد صاحب دا طرز عمل په دې وجه باندې وی.

خو زه وایم چه د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ددې طرز عمل وجه او مقصد هغه دې کوم چه خپله د هغوی نه نقل کړې شوې دې کوم چه په باب الرجل یجدد الوضوء من غیر حدث کښې راروان دې چه په هغې کښې دا دی چه ابن عمر رضی الله عنهما یو ځل د یو سړی مخکښې تجدید وضو اوفرمائیلو په دې باندې هغه سړی د هغوی نه تپوس اوکړو چه تاسو د هر مانځه دپاره اودس ولې کوئ؟ نو په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغوی به فرمائیل چه ﴿من توضاء علی طهر کتب له عشر حسنات﴾ یعنی کوم انسان چه سره د اودسه بیا اودس کوی نو د هغه دپاره لسو نیکو بلکه د لسو اودسونو ثواب لیکلې شی

قوله:﴿ قال ابوداؤد ابراهیم بن سعید الخ ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د محمد بن اسحاق د شاگردانو اختلاف بیانوی په مخکښې سند کښې د محمد بن اسحق شاگرد احمد بن خالد وو. بل شاگرد د هغوی مصنف رحمه الله فرمائی چه ابراهیم بن سعد دې، هغوی هم دا حدیث د محمد بن اسحاق نه روایت کړې دې، د دواړو په سند کښې فرق دا دې چه د احمد بن خالد د روایت نه معلومیږی چه د محمد بن یحیی نه دا تپوس د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما هغه ځوئی کړې وو چه د هغه نوم عبدالله دې، او د ابراهیم بن سعد د روایت نه معلومیږی چه د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د بل ځوئی عبیدالله نه ئې کړې وو، حضرت په بذل کښې لیکلې دی ﴿ ویمکن ان یکون الروایة عنهما ویحتمل ان یکون ذکر احدهما وهما ﴾ یعنی کیدې شی چه دا سوال سائل د دواړو نه کړې وی چه په دوی کښې ئې د یو نه کړې وو، خو راویانو ته صحیح یاد نه دې، یو د یو نوم ذکر کړې دې او بل د بل.

## بَابٌ كَيْفَ يَسْتَاكُ

### باب دې په بیان د کیفیت د استعمال د مسواک کې

یعنی د مسواک طریقه او ددې کیفیت څه کیدل پکار دی، په کتب فقه کښې ددې ځیزونو تفصیل موجود دې، او دا تفصیلات هم د هغوی د لیکلو دی. لهذا تفصیل خو دې هلته اوکتلې شی مختصرا داسې ده لکه څنگه چه د حدیث الباب نه معلومه شوه چه د مسواک تعلق صرف د اسنان سره نه دې بلکه په ژبه باندې هم کول پکار دی. بله دا چه د مسواک په لاس کښې د نیولو طریقه هم مخصوص ده کومه چه فقهاء کرامو بیان کړې ده، او دا چه مسواک په طول کښې یو لیشت اوپه پلن والی کښې د گوتې د پیړوالی برابر وی ثلاثا بثلاث وی یعنی درې کرته په درې ځله اوبو باندې بیل بیل اوکړې شی وغیره امور چه په هغې باندې مستقل کتابونه لیکلې شوې دی. پس علامه طحاوی رحمه الله هم د مسواک په باره کښې یو تصنیف فرمائیلې دې.

[۴۹] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ مُسَدَّدٌ، قَالَ: "أَتَيْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْتَحْمِلُهُ، فَرَأَيْتُهُ يَسْتَاكُ عَلَى لِسَانِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ سُلَيْمَانُ: قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَسْتَاكُ، وَقَدْ وَضَعَ السِّوَاكَ عَلَى طَرَفِ لِسَانِهِ وَهُوَ يَقُولُ: آهْ آهْ يَعْنِي يَتَهَوَّعُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مُسَدَّدٌ: فَكَانَ حَدِيثًا طَوِيلًا، وَلَكِنِّي اخْتَصَرْتُهُ.

**ترجمه:** وئيلي دي ابو موسی مونږ راغلو رسول الله ﷺ ته طلب د سورلئ کولو مونږ د هغه نه نو ما اوليدلو چه مسواک ئې استعمالولو په خپله ژبه. وئيلی دي ابوداود: دسليمان په روايت کښې دی چه: زه داخل شوم په پيغمبر ﷺ باندې او هغه مسواک وهلو، او يقينًا هغه ايخودلی وو مسواک په غاړې د ژبې، او هغه وئيله: آه، آه، يعنې قيئ ئې کوله. وئيلی دي ابوداود: وئيلی دي مسدد: دا اوږد حديث وو خو ما مختصر کړو.

**تشريح:** قوله:﴿ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ مُسَدَّدٌ قَالَ أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- نَسْتَحْمِلُهُ الخ ﴾ ددې حديث راوی ابوبرده رضی الله عنه دې کوم چه د خپل پلار يعنی ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه روايت کوی، هغوی فرمائی چه مونږ يو ځل د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د استحمال يعنی سورلئ طلب کولو دپاره راغلو نو په دې موقع باندې ما اوکتل چه هغوی په خپله ژبه مبارکه باندې مسواک فرمائيلو.

قوله:﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ سُلَيْمَانُ الخ ﴾ په دې سند کښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان دی، مسدد اوسليمان، مخکښې الفاظ د مسدد وو، اوس ددې ځائې نه د مسدد الفاظ بيانوی، ددې دواړو په روايت کښې چه کوم ښکاره فرق دې هغه دا دې چه د مسدد په روايت کښې استحمال يعنی د سورلئ د طلب کولو ذکر دې، او د سليمان روايت ددې زيادت نه خالی دې، بل دا چه په دې روايت کښې يو بل زيادت دې هغه دا چه د مسواک په وخت به د رسول الله ﷺ د خولې مبارکې نه يو آواز راتلو هغه ئې نقل کړې دې، هغه دا چه اُه اُه وو د ﴿يَتَهَوَّعُ﴾ معنی د يتقيئ ده يعنی څنګه چه د قی کولو په وخت آواز راوځی هم دغه شان آواز ښکاره کيدلو، او د بخاری په يو روايت کښې لفظ اع اع دې، او د نسائی په روايت کښې دی ﴿وهو يقول عاعا ﴾ مقصود د ټولو حکايت صوت دې، او چونکه دا ټومره الفاظ چه په رواياتو کښې راغلی دی متقارب المخرج دی په دې وجه دا هيڅ تعارض نه دې.

### د ابوداؤد په روايت کښې وهم او د هغې صحيح تحقيق:

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په دې مقام باندې دلته يو تحقيق فرمائيلې دې چه دهغې حاصل دا دې چه د ابوداؤد په دې روايت کښې وهم او خلط واقع شوې دې لکه چه د حديث په نورو کتابونو کښې د کتلو نه معلوميږی هغه دا چه حديث الباب په بخاری، مسلم او نسائی کښې هم موجود دې خو په هغې کښې د ذکر سواک سره استحمال يعنی د سورلئ طلب نه دې ذکر شوې، خو د صحيحين او دغه شان د نسائی په

¹): صحيح البخاري/الوضوء ۷۳ (۲۴۴)، صحيح مسلم/الطهارة ۱۵ (۲۵۴)، سنن النسائي/الطهارة ۳ (۳)، (تحفة الأشراف: ۹۱۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۴۱۷) (صحيح)

یو بل روایت دي کوم چه د نسائی په شروع کښې دې چه په هغې کښې د مسواک سره استعمال یعنی د طلب عمل ذکر دې، د چه دهغې مضمون دا دې چه سیدنا ابوموسی اشعری رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې روان اوم نو ما سره د قبیله اشعر دوه سړی نور شو، کوم چه ما سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، چه کله مونږ هلنه اورسیدو نو او مو کتل چه رسول الله ﷺ مسواک فرمائی، نو کوم سړی چه ماسره تلي وو هغوی د رسول الله ﷺ نه د عمل فرمائش اوکړو، یعنی ددې چه هغوی دې د څه عامل جوړولو سره هغوی ته سرکاری ملازمت ورکړې شی، دا روایت د نسائی شریف بالکل په شروع کښې دې او هغه روایت په کوم کښې چه استحمال ذکر کړې شوې دې په هغې کښې د مسواک ذکر نشته، د استحمال والا روایت دا دې کوم چه په صحیحینو کښې موجود دې چه رسول الله ﷺ د غزوه تبوک په سفر کښې چه کله تشریف اوړلو نو په لاره کښې څه خلق د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هغوی د سورلئ د ضرورت اظهار اوکړو چه مونږ ته د سورلئ ضرورت دې، خو هغه وخت رسول الله ﷺ د هغوی مطالبه کول بده اوګنړله،او رسول الله ﷺ خفه شو او وئې فرمائیل والله لا أحملکم، چه په خدائې قسم زه تاته سورلی نه درکوم.

راوی وائی چه بیا روستو رسول الله ﷺ هغوی راطلب کړل او سورلی ئې ورته ورکړه، چه په هغې باندې هغوی عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ! تاسو خو قسم خوړلې وو، مطلب دا چه زمونږ په رعایت کښې تاسو حانث نه شئ، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿وما انا حملتکم ولکن الله حملکم﴾ سورلی درکونکې زه نه یم بلکه الله پاک دې، په دې قصه کښې چرته هم د مسواک ذکر نشته، زمونږ د حضرت سهارنپوری رحمه الله اشکال هم دا دې چه د استحمال والا روایت کښې په نورو کتابونو کښې دمسواک ذکر نشته لهذا د ابوداؤد په روایت کښې د سواک سره د استحمال ذکر خلط بین الروایتین دې باقی زما په نزد دا وهم د مصنف رحمه الله نه دې، بلکه که وی نو د مسدد دې، ځکه چه مصنف رحمه الله تصریح کړې ده چه د مسدد د روایت الفاظ دا دی، د سلیمان د روایت الفاظ دا دی چه دهغې نه معلومیږی چه مصنف رحمه الله ته خو هر څه په ښه طریقه محفوظ وو چه د کوم استاذ نه هغوی ته څنګه روایت رارسیدلې وو هغوی هم هغه شان نقل کړو. فالعهدة فی هذا الوهم علی مسدد لا علی المصنف.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَسْتَاكُ بِسِوَاكِ غَيْرِهِ

### باب دې په بیان د سړي کښې چه استعمالوي د بل چا مسواک

مصنف رحمه الله د مسواک بعض آداب او احکام بیانوی، دلته دا بیانوی چه د بل چا مسواک استعمالولې شی او که نه؟ د حدیث الباب نه معلومیږی چه کولې شی، باقی اصولی خبره دا ده چه د ملک غیر استعمال د هغه په اجازت سره کیدې شی که هغه اجازت دلالة وی او که صراحة وی، غرض دا چه د جمهورو په نزد هیڅ کراهت شرعی نشته، حکیم ترمذی رحمه الله به دا مکروه ګنړله، په بعض کتب فتاوی کښې لیکلې شوې دی چه دا خبره چه مشهوره بین العوام ده چه په درې څیزونو کښې شرکت نشته. ۱: مشط (ګومنځ) ۲: میل (یعنی د رانجو

سلائي، ۳ مسواک. نو دا صحیح نه ده، خو که طبعي کراهت وي نو هغه بیله خبره ده نو په دې ترجمې سره د حکیم ترمذي رحمه الله د رائې رد کولې شي هم دغه شان د ابراهیم نخعي رحمه الله نه نجاست بزاق مروي دې یعنې د انسان لاړې د بهر راتلو نه پس نجس دی نو په دې سره دا وهم هم کیږي چه کیدې شي چه د بل مسواک هم جائز نه وي. په دې وجه ئې په دې ترجمې سره دا خبره هم رد کړه.

[۵۰]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَنُّ وَعِنْدَهُ رَجُلَانِ، أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ، فَأُوحِيَ إِلَيْهِ فِي فَضْلِ السِّوَاكِ أَنْ كَبِّرْ أَعْطِ السِّوَاكَ أَكْبَرَهُمَا"، قَالَ أَحْمَدُ هُوَ ابْنُ حَزْمٍ: قَالَ لَنَا أَبُو سَعِيدٍ هُوَ ابْنُ الْأَعْرَابِيِّ، هَذَا مِمَّا تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْمَدِينَةِ.

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې، هغې وئیلی دی. وو رسول الله ﷺ چه مسواک ئې وهلو او د هغه سره دوه کسان وو، یو د بل نه مشر وو، نو وحی اوکړه ورته الله په فضیلت د مسواک کښې، چه ورکړه مسواک غټ ددې دواړو ته.

**مضمون حدیث**: ﴿عن عائشة قالت الخ﴾ سیده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه د یو ځل واقعه ده رسول الله ﷺ مسواک فرمائیلو، او هغوی سره دوه کسان حاضر وو چه په هغوی کښې یو په عمر کښې وړوکې وو او دویم غټ وو، پس رسول الله ﷺ د مسواک نه د فارغ کیدو نه پس دا خپل مسواک په هغه دواړو کښې چه کوم وړوکې وو هغه ته د ورکولو اراده اوفرمائیله، راوی وائي چه هم په دې وخت کښې په رسول الله ﷺ باندې د مسواک د فضیلت په باره کښې وحی راغله چه ابتداء بالاکبر اوکړئ، یعنې په دوی کښې چه کوم لوئې دې اول ئې هغه ته ورکړئ، په ظاهر کښې د رسول الله ﷺ مسواک ورکول بل ته ددې دپاره وو چه هغه هم دا استعمال کړي لهذا په ترجمة الباب سره د حدیث مطابقت معلوم شو.

اوس دا چه رسول الله ﷺ اصغر ته د ورکړې اراده ولې اوفرمائیله پس ددې به ظاهري څه وجه وي مثلا دا چه هم هغه به رسول الله ﷺ ته اقرب وو یا بله څه وجه وي مثلا د رسول الله ﷺ ښي طرف ته به وو د ابتداء بالاکبر کومه وحی چه رسول الله ﷺ ته راغله دهغې نه راوی دا استنباط اوکړو چه ددې وحی غرض د مسواک فضیلت بیانول دی هم په دې وجه هغه اوونیل ﴿فاوحي اليه في فضل السواک﴾ دا د راوی الفاظ دی.

## د تقسیم په وخت ضابطه الیمین فالایمن ده یا الاکبر فالاکبر؟:

اوس دلته یو سوال واردیږي هغه دا چه ددې حدیث نه خو مستفاد کیږي چه په تقسیم کښې ابتداء بالاکبر کیدل پکار دی، الاکبر فالاکبر حال دا چه په کتاب الاشربة کښې د روایت نه معلومیږي چه ابتداء بالایمن کیدل پکار دی، الأیمن فالأیمن چه دهغې واقعه دا ده چه یو ځل رسول الله ﷺ پئ اوڅکل. سیدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه زه د هغوی ګس طرف ته اوم او خالد بن الولید رضي الله عنه د هغوی ښي طرف ته وو نو رسول الله ﷺ د پیو څکلو نه پس ماته

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۱۳۲) (صحیح)): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۱۳۲) (صحیح)

اوفرمائیل چه حق خو دا ستا دي خو که ته اجازت راکړې نو زه به دا خالد ته ورکړم په دې باندې ما عرض اوکړو چه زه ستاسو جوټه مبارکه په چا باندې نه شم قربانولې، ددې نه علماء کرامو د تقسیم ضابطه الایمن فالایمن راویستلې ده بلکه د بخاري په یو روایت کښې خپله د رسول اللهﷺ نه د الایمن فالایمن تصریح ثابت ده ددې جواب شارح ابن رسلان دا ورکوی چه د الایمن فالایمن ضابطه هغه وخت چلیږی چه کله حاضرین مرتب فی الجلوس وی، په بعضو باندې ایمن صادقیږی او په بعضو باندې ایسر، او که غیر مرتب فی الجلوس وی مثلا ټول په یو طرف کښې وی نو هلته به هغه قاعده چلیږی کومه چه ددې حدیث نه مستفاد کیږی الاکبر فالاکبر ماشاء الله ښه توجیه ده ګویا ددې توجیه حاصل دا شو چه هغوی دواړه مرتب فی الجلوس نه وو، خو ددې یو جواب دا هم کیدې شی چه ممکنه ده دلته هم هغوی مرتب فی الجلوس وی یمینا ویسارا، او رسول اللهﷺ به هم ددې ضابطې په بناء اصغر ته د ورکولو اراده فرمائیلې وی چه هغه ایمن وو خو دلته یو خصوصیت مقام او عارض په وجه باندې رسول اللهﷺ ته دهغې خلاف د تقسیم کولو حکم اوفرمائیلې شو، یعنی د ابتداء بالاکبر، او عارض هم هغه دې چه دهغې طرف ته راوی اشاره کوی یعنی د مسواک په فضیلت باندې تنبیه کول، د عوارضو د وجې نه په احکامو کښې تغیر پیدا کیږی، نو اصل قاعده هم دا شوه ﴿الایمن فالایمن﴾ خو په دې خاص واقعه کښې ددې قاعدې مخالفت په یو عارض باندې مبنی دې

**د ابوداؤد او مسلم په روایت کښې د تعارض دفع کول:**

دلته په بذل کښې یو اشکال او جواب سره تعرض کړې شوې دې هغه دا چه بالکل هم ددې قسم واقعه د ابن عمرؓ د حدیث نه په مسلم شریف کښې هم ده چه دهغې الفاظ دي ﴿ارانی فی المنام﴾ رسول اللهﷺ فرمائی چه ما رسول اللهﷺ په خوب کښې اولیدو او بیا ئې بعینه هم دا واقعه ذکر اوفرمائیله کومه چه د عائشېؓ په حدیث الباب کښې ده، د ابن عمرؓ د حدیث نه معلومیږی چه دا واقعه په خوب کښې پېښه شوې وه هم په دې وجه امام مسلمؒ په ابواب الرؤیا کښې ذکر کړې وه او د حدیث عائشېؓ نه په ظاهر کښې معلومیږی چه دا واقعه په بیداریٔ کښې راپیښه شوې وه. ددې دوه جوابونه کیدې شی یو دا چه کیدې شی دواړو ځایونو کښې راپیښه شوې وی، په بیداریٔ کښې هم او په خوب کښې هم صورت حال به دا راغلې وی چه اول رسول اللهﷺ ته دا واقعه په خوب کښې راپیښه شوه، خو رسول اللهﷺ چاته ذکر نه کړه او بیا هم دا واقعه په بیداریٔ کښې راپیښه شوه، په دې باندې رسول اللهﷺ ته خپل هغه خوب رایاد شو نو رسول اللهﷺ ددې خوب تذکره اوفرمائیله، سیده عائشهؓ روایت کوی د بیداریٔ والا واقعه او ابن عمرؓ روایت فرمائی د خوب والا واقعه لهذا هیڅ تعارض نشته، خو په دې جواب کښې به د تکرار وحی اشکال وی چه په یو معامله کښې دوه کرته وحی ولې اوشوه، په دې وجه غوره دویم جواب دې هغه دا چه د ابن عمرؓ په حدیث کښې خو د خوب تصریح ده او په دې حدیث د عائشېؓ کښې د بیداریٔ هیڅ تصریح نشته نو مونږ دا حدیث عائشهؓ هم د

خوب په قصه باندې ولې محمول نه کړو یعنی دا چه هغه هم د خوب واقعه بیان فرمائی، او قرینه به په دې باندې د ابن عمر رضي الله عنهما روایت وی چه په هغې کښې د خوب تصریح ده. والله اعلم بالصواب

[۵۱]([1]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يَبْدَأُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ؟ قَالَتْ: "بِالسِّوَاكِ". ([2])

**ترجمه**: مقدام بن بن شریح روایت کوي د خپل پلار نه، هغه وائی، ما اووئیله عائشې ته په کوم شي به رسول الله صلی الله علیه وسلم شروع کوله کله چه به کورته داخل شو؟ هغې ووئیل: په مسواک سره.

## بَابُ غَسْلِ السِّوَاكِ

### باب دې په بیان د وینځلو د مسواک

### د ترجمة الباب غرض:

په دې باب کښې دوه احتماله دی یا خو دا د ماقبل سره متعلق او د هغې تکمله ده نو بیا خو به د دې مطلب دا وی چه انسان له پکار دی چه کله د بل مسواک کوی نو اول دې هغه اووینځی، دویم احتمال دا دې چه دا باب مستقل دې ماقبل سره متعلق نه دې نو په دې صورت کښې به د ترجمې مطلب داوی چه کله مسواک شروع کوی نو اول دې هغه اووینځی، هم دغه شان دې په مینځ کښې هم وینځی بلکه چه کله په آخر کښې فارغ شی نو هم د اینځلو نه پس دې مسواک ږدی.

[۵۲]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيدٍ الْكُوفِيُّ الْحَاسِبُ، حَدَّثَنِي كَثِيرٌ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "كَانَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاكُ فَيُعْطِينِي السِّوَاكَ لِأَغْسِلَهُ، فَأَبْدَأُ بِهِ فَأَسْتَاكُ، ثُمَّ أَغْسِلُهُ وَأَدْفَعُهُ إِلَيْهِ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې، هغې وئیلی دی: وو نبي صلی الله علیه وسلم یتساک چه مسواک ئې وهلو، نو راکولو به ئې ماته مسواک دې لپاره چه زه ئې اووینځم، نو مابه شروع اوکړه په هغی به مې مسواک کولو، بیا به مې وینځلو او ورېه مې کړو هغه ته.

### مضمون حدیث:

قوله: ﴿ عن عائشة ﴾ سیده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله مسواک کولو نو په مینځ کښې یا د فراغت نه پس به ئې ماته مسواک راکولو چه زه هغه اووینځم او د وینځلو نه پس ئې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورکړم یا د فارغ کیدو په وجه ئې اوچت کیږدم، نو هغه فرمائی چه ما د دې مسواک د وینځلو نه مخکښې خپله هغه استعمالولو یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لعاب

[1]: صحيح مسلم/الطهارة ١٥ (٢٥٣)، سنن النسائي/الطهارة ٨ (٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧ (٢٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٦١٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢/٦، ١١٠، ١٨٢، ١٨٨) (صحيح)

[2]: دا حدیث مبارک د بیروت په نسخه کښې دلته موجود دې ځکه دلته اولیکلې شو، او زمونږ د پاکستان او هندوستان په نسخو کښې د دې نمبر د حدیث نمبر ۵۸ نه پس دې هلته به هم ذکرشی (م)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٥٧٠) (حسن)

مبارک نه د محطوظ کیدلو (خوند اخستلو) دپاره، دهغې نه پس به مې هغه اووینځلو او بیا به مې رسول الله ﷺ ته ورکولو یعنی فورا که دا د مسواک ورکول په مینځ کښې وو یا په بل وخت کښې که دا ورکول پس د فراغت نه وو، د حدیث مطابقت د ترجمة الباب سره ښکاره دې، ادب هم دا دې چه مسواک د وینځلو نه پس شروع کړې شي.

## ایا د زوجې په ذمه خدمت زوج واجب دې؟:

﴿قوله لاغسله﴾ د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې د ابن رسلان رحمه الله نه نقل کوی چه ددې حدیث نه معلومه شوه چه د ښځې په ذمه د زوج خدمت دې هغوی فرمائی خو د امام شافعی رحمه الله مذهب دا دې چه د زنانه په ذمه د خاوند خدمت واجب نه دې ځکه چه د عقد تعلق د استمتاع بالوطی سره دې نه د خدمت سره، او د احنافو مذهب دا دې چه په زنانه باندې د زوج خدمت قضاءً خو واجب نه دې خو دیانةً واجب دې پس که هغه خدمت نه کوی نو په داسې صورت کښې زمونږ په نزد په خاوند باندې دهغې دپاره صرف سپوره ډوډۍ بغیر د ترکارۍ نه واجب ده، ترکاری ورکول واجب نه دی، په شامی کښې ددې تصریح ده (چه څنګه کوی هغه شان به ریبی) او هم دا مذهب بعینه د حنابله دې چه په مغنی کښې دی، خو د مالکیانو مذهب دا دې چه معمولی او سپک شان خدمت خو واجب دې لکه عجن او کنس اوړه اغږل، او جارو وهل وغیره، دون الغزل والطحن یعنی سخت خدمت لکه جولاګری او میچن تاوهل پرې واجب نه دی، او بعض مالکیانو دا تفصیل بیان کړې دې چه زوجې په درې قسمه دی، ډیرې اعلی د اوچت خاندان والا په درې باندې هیڅ قسم خدمت واجب نه دې او متوسطه په دې باندې معمولی خدمات واجب دی لکه ډوډۍ مخې ته ږدل، اوبه ورکول، بستره خورول خو د تطبخ او تکنس په شان کارونه پرې واجب نه دی، کومه زنانه چه د ادنی او کمې درجې وی په هغې باندې تطبخ او تکنس په شان خدمات خو واجب دی خو په کوم کښې چه زیات مشقت وی لکه عزل او طحن هغه په دې باندې هم واجب نه دی.

## بَابُ السِّوَاكِ مِنَ الْفِطْرَةِ

### باب دې په بیان ددې کې چې مسواک د فطرت نه دی

[۵۳]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ شَيْبَةَ، عَنْ طَلْقِ بْنِ حَبِيبٍ، عَنِ ابْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ: قَصُّ الشَّارِبِ، وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ، وَالسِّوَاكُ، وَالِاسْتِنْشَاقُ بِالْمَاءِ، وَقَصُّ الْأَظْفَارِ، وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ، وَنَتْفُ الْإِبِطِ، وَحَلْقُ الْعَانَةِ، وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ يَعْنِي الِاسْتِنْجَاءَ بِالْمَاءِ". قَالَ زَكَرِيَّا: قَالَ مُصْعَبٌ: وَنَسِيتُ الْعَاشِرَةَ، إِلَّا أَنْ تَكُونَ الْمَضْمَضَةَ.

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې، هغې وئیلی دي، چه رسول الله ﷺ وئیلی دی: چه لس شیان دې د فطرت نه، لنډول د بریتو، او پریخودل د ګیرې، او مسواک، او استنشاق په اوبو، او کټ کول د نوکانو، او وینځل د هغه ځایونو د بندونو نه چه خیرې په کښې جمع

(): صحيح مسلم/الطهارة ١٦ (٢٦١)، سنن الترمذي/الأدب ١٤ (٢٧٥٧)، سنن النسائي/الزينة ١ (٥٠٤٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨ (٢٩٣)، (تحفة الأشراف: ١٦١٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٧/٦) (صحيح)

کېږي، ویستل د ویختانو د تخرګونو، او خرول د زیر ناف ویختان، او استنجاء کول په اوبو باندې، وائي زکریا وئیلی دي مصعب ما هېر کړې دې لسمه مګر دا چه هغه به مضمضه وې.

**تشریح:** دې ترجمې باندې ځان پوهه کړئ چه بلفظ الحدیث ده، د ترجمة الباب په غرض کښې یا خو داسې بیان کړئ چه د مسواک اهمیت او فضیلت بیانول مقصود دی یا دا چه حکم شرعی بیانول مقصود دی یعنی سنت دې واجب یا فرض نه دې.

۱. ﴿ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلی الله علیه وسلم : عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ الخ ﴾ عشر په ترکیب کښې یا خو د موصوف محذوف صفت دې یعنی حصال عشر من الفطرة، د دې مضاف الیه محذوف دې، عشر خصال.

## د فطرة په تفسیر کښې د شارحینو اقوال :

د فطرة په تفسیر کښې اختلاف دې، یا ددې نه مراد دین دې چه په قرآن کریم کښې دی ﴿فطرة الله التی فطر الناس علیها الایة ﴾ په دې آیت کریمه کښې د فطرة نه مراد دین دې د امام صاحب رحمه الله نه هم داسې نقل دی، چه مسواک من سنة الدین دې. د اودس یا مانځه سره خاص نه دې چه مخکښې تیر شوې دی، یا د فطرة نه مراد فطرة سلیمة او طبع سلیم دې یعنی لس څیزونه د صاحب فطرة سلیمه خصلتونه دی، کوم خلق چه سلیم الطبع وی د هغوی د عادتونو او خصلتونو نه دا خبره ده او د اصحاب فطرة سلیمه اولین مصداق خو حضرات انبیاء علیهم السلام دی چه د هغوی د مزاج او طبیعت سلامتی او اعتدال د اعلی درجې وی د هغوی په دې کښې هیڅ څوک برابر نه شی کیدې ثم الاقرب فالاقرب او یو قول دا دې چه ددې نه مراد سنت ابراهیمی دې پس د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه آیت کریمه ﴿ وَإِذِ ابْتَلَى إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ ﴾ کښې د کلمات نه مراد هم دا خصال فطرت دی کوم چه په حدیث کښې ذکر شوې دی.

زه وایم په دې سره ددې خصال فطرت د فضیلت او اهمیت اندازه لګولې کیدې شی چه الله پاک سیدنا ابراهیم علیه السلام ته د نبوت مقدره د ورکولو نه مخکښې ددې خصالو مکلف کړو او چه کله د هغوی د طرف نه تعمیل او تکمیل اوشو نو بیا هغوی ته نبوت ورکړې شو، او د علم نه مقصود عمل دې، لهذا مونږ ټولو له هم په خپل پوره ژوند کښې ددې خصال فطرت اهتمام کول پکار دی.

## د خصال فطرت حکم :

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې خصلتونو کښې اکثر داسې دی کوم چه د علماء کرامو په نزد واجب نه دی او بعض داسې دی چه دهغې په وجوب او سنیت کښې اختلاف دې لکه ختان، ابن العربی په شرح د موطاء کښې لیکلې دی چه زما په نزد دا خصال خمسه کوم چه د ابوهریره رضی الله عنه په حدیث کښې ذکر شوې دی (کوم چه زمونږ په نزد مخکښې راروان دی)، ټول په ټوله واجب دی، ځکه چه که یو سړې دا اختیار نه کړی نو دهغې شکل او صورت د انسانانو په شان باقی نه پاتې کیږی، خو په دې باندې

ابوشامه رحمه الله د هغوی تعقب کړي دي چه په کومو څیزونو سره مقصود اصلاح هیئت او نظافت وی هلته د امر ایجابی حاجت نه وی، بلکه صرف د شارع علیه السلام د طرف نه هغي طرف ته توجه ورکول کافی ده.

**حدیث عائشة عشر من الفطرة سره د جامعیت نه امام بخاری رحمه الله دا ولې وانخستلو؟**

دا حدیث هم دغه شان یعنی بلفظ ﴿عشر من الفطرة﴾ په مسلم کښې هم راغلې دې خو امام بخاری رحمه الله دا حدیث نه دې اخستلې، امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې د ابوهریره رضي الله عنه حدیث اخستلې دې ﴿الْفِطْرَةُ خَمْسٌ الْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَنَتْفُ الْإِبْطِ وَقَصُّ الشَّارِبِ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ﴾ خو ظاهره دا ده چه ددې روایت عائشه رضي الله عنها فائده زیاته ده چه په دې کښې په څائې د پنځو خصلتونو لس خصلتونه ذکر کړې شوې دی، نو بیا څه وجه ده چه امام بخاری رحمه الله دا نه دې اخستلې؟ علامه زیلعی رحمه الله ددې وجه دا بیان فرمائیلې ده چه په دې حدیث کښې دوه علتونه دی یو دا چه په دې سند کښې مصعب بن شیبه راوی دې کوم چه متکلم فیه دې، دویم علت دا چه په دې سند کښې اضطراب دې ځکه چه دا حدیث مصعب دَ طلق بن حبیب نه مسندا نقل کوی، او سلیمان تیمی دا طلق بن حبیب نه مرسلا نقل کړې دې، هم ددې دوه علتونو د وجې نه امام بخاری رحمه الله ددې تخریج نه دې فرمائیلې د طلق دا حدیث مرسل په نسائی شریف کښې دې، هغوی دا حدیث په دواړو طریقو سره ذکر کړې دې مسندا او مرسلا، هم دغه شان امام ابوداؤد وړاندې تلو سره دَ طلق دا حدیث مرسل تعلیقا ذکر فرمائیلې دې چه وړاندې ددې باب په آخر کښې راځی.

**د خصال فطرة په تعداد کښې د روایاتو اختلاف او د هغې توجیه:**

دلته یو سوال دا پیدا شو چه د ابوهریره رضي الله عنه په روایت کښې دی ﴿خمس من الفطرة﴾ او د عائشې رضي الله عنها په روایت کښې دی ﴿عشر من الفطرة﴾ او په بعض روایاتو کښې د دریو ذکر دې، پس د بخاری په یو روایت کښې صرف درې ذکر دی ﴿حَلْقُ الْعَانَةِ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ وَقَصُّ الشَّارِبِ﴾ اول جواب دا دې چه ذکر القلیل لا ینافی الکثیر او په نورو الفاظو کښې داسې بیان کړه مفهوم العدد لیس بحجة... یعنی چرته چه لسو نه کم بیان کړې شوې دی بلکه خپله په لسو کښې هم انحصار مقصود نه دې او مطلب دا دې چه بعض د خصال فطرة نه دومره دی، هر څائې کښې بعض مراد دی که دهغې سره د لسو عدد ذکر شوې وی او که نه وی یا د پنځو یا د دریو، د لفظ الفطرة نه چه مخکښې کوم من دې هغه هم دې طرف ته مشیر دې، خو که هر څائې کښې حصر مقصود وې نو بیا به یقینا تعارض وې، باقی رسول الله صلی الله علیه وسلم د موقعې او حاجت مطابق دا خصلتونه بیان کړی دی چرته چه ئې د دریو خصلتونو ذکر کول مناسب اوګڼړل هلته به ئې درې او چرته چه ددې نه زیات بیانول مناسب وو هلته ئې دهغې نه زیات بیان اوفرمائیل، د فصحاو او بلغاو په کلام کښې ددې تولو څیزونو رعایت وی، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه به زیات فصیح او بلیغ څوک وی، دویم جواب دا ورکړې شوې دې چه مقصود اګرچه حصر دې خو په شروع کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د دریو علم ورکړې شو نو هغوی درې بیان کړل بیا ورته د نورو (۲)دوو علم ورکړې شو نو پنځه ئې بیان کړل او بیا د

هغوی په علم کښې نوره اضافه اوشوه نو لس ئې بیان اوفرمائیل. دریم جواب دا ورکړې شوې دې چه د دریو او پنځو حصر حقیقی نه دې بلکه حصر ادعائی دې د مبالغې دپاره چه په دې حدیث کښې دی ﴿ الدین النصیحة، الحج عرفة ﴾ نو چرته ئې چه د کومو خصلتونو د بیان زائد ضرورت اوګڼړلو رسول الله ﷺ هلته هم هغه په حصر سره بیان کړل په دې ځان پوهه کړئ چه بس حصال فطرة هم دا دی.

حافظ رحمه الله فرمائی چه ابن العربی ذکر کړې دی چه مختلف روایاتو لره جمع کولو سره خصال فطرت(۳۰) دیر شو ته رسیږی، په دې باندې حافظ اشکال کړې دې چه که د دوی مراد دا وی چه خاص د لفظ فطرة اطلاق سره (۳۰) دیر شو خصال راغلی دی نو بیا خو داسې نه ده او که مراد مطلق خصال وی نو بیا په دیرشو کښې هم انحصار نشته بلکه ددی نه به ډیر زیات شی.

## قص الشارب کښې د روایات مختلفه توجیه او مذاهب ائمة :

﴿ قوله قص الشارب ﴾ د شارب په باره کښې یوځو الفاظ راغلی دی لفظ قص، لفظ جز او لفظ احفاء او د نسائی په یو روایت کښې په لفظ د حلق هم راغلې دې، د ټولو نه کمه درجه د قص ده چه دهغې معنی ده غټ غټ پرې کول،دا په اصل کښې د مقص ځخه دې چه ددې معنی مقراض یعنی قینچی ده لکه چه په قاموس کښې دی یعنی په قینچئ سره غټ غټ پریکول.ددې نه زیاته درجه د احفاء ده یعنی مبالغه فی القص باریک پرې کول، ددی نه هم زیاته درجه د حلق ده، په چاړهٔ باندې بالکل ختمول، د تطبیق یو شکل خو دا شو چه مختلف درجات بیان کړې شو ادنی دا ده، اوسط دا ده او اعلی دا ده، بعضو تطبیق بین الروایات داسې اوکړو چه په قص کښې دننه لره شان مبالغه اوکړئ هم هغه به احفاء شی او هم دې احفاء لره چا مبالغه کولو سره په حلق باندې تعبیر کړو، دا خو جواب دې د الفاظو د روایات د اختلاف، پاتې شوه دا خبره چه فقهاء کرام ځه فرمائی.

پس خلاصه ددې اختلاف دا ده چه راجح زمونږ او د امام احمد رحمه الله په نزد احفاء یعنی مبالغه فی القص ده، لکه چه په طحاوی وغیره کښې دی او په درمختار کښې دی چه حلق شارب بدعت دې، او وئیلې شوې دی چه سنت دې، پس امام طحاوی رحمه الله فرمائی ﴿القص حسن والحلق سنة وهو احسن من القص ﴾ او هغوی بیا دا زمونږ د ائمه ثلاثه یعنی امام صاحب او صاحبین درې وارو طرف ته منسوب کړې ده او اثرم رحمه الله فرمائی چه ما امام احمد رحمه الله اولیدو چه هغوی به احفاء شدید کوله او فرمائیل به ئې ﴿ انه اولی من القص ﴾ د امام شافعی رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد راجح قص دې پس ابن حجر مکی شافعی رحمه الله فرمائی چه دومره دې پرې کړې شی چه د پورته شونډې سور والې ښکاره شی او بالکل د ویخ نه دې ویښته نه اوباسی، امام نووی رحمه الله هم د احفاء نه منع کړې ده هم دغه شان د امام مالک رحمه الله نه منقول دی چه احفاء زما په نزد مثله ده بله دا چه ځوک د بریتو احفاء کوی هغه دې اوهلې شی د حلق په باره کښې هغوی فرمائیلې دی چه دا بدعت دې.

﴿ قوله اعفاء اللحیة ﴾ ارسال لحیة یعنی ګیره پریخودل او اوږدول، اتخاذ لحیة په

مذاهب اربعه کښې واجب ده او په دې کښې د مشرکینو او مجوسو مخالفت دې چه په بعض روایاتو کښې ددې تصریح ده ددې نه معلومه شوه چه د رسول اللهﷺ ګیره ساتل تشریعا وو صرف عادة نه وو چه بعض ګمراهان وائی او په حدیث کښې خو تصریح ده چه اعفاء لحیة د فطرت نه ده.

او د فطرت معنی مخکښې تیره شوې ده د ټولو انبیاء سابقین سنت یا د ابراهیمؑ سنت او رسول اللهﷺ ته ددې انبیاؤ د سیرت د اتباع حکم کړې شوې دې د الله پاک ارشاد دې: ﴿ فبهداهم اقتده الاية ﴾ او ګیره خرول په ټولو مذاهب اربعه کښې حرام دی، صاحب منهل کوم چه د علماء ازهر نه دې هغوی په منهل کښې د ټولو مذاهبو د معتبر کتابونو عبارتونه نقل کړی کوم چه د حلق لحیة په حرام کیدو باندې دلالت کوی او اوګورئ! هغوی دا مسئله په جامعه اظهر کښې لیکله چه د هغه ځائې ډیر علماء کرام په دې کښې غیر محتاط دی، فجزاه الله احسن الجزاء.

## د اعفاء لحیة او مقدار لحیة حد شرعی:

دلته یو مسئله دا ده چه د ګیرې شرعی مقدار څه دې، جواب دا دې چه د جمهورو په نزد چه په هغوی کښې ائمه ثلاثه هم دی ددې مقدار د قبضې په اندازه دې چه دهغې ماخذ فعل ابن عمرؓ دې، هغوی به د قبضې نه زیاته وهله چه امام بخاریؒ دا په کتاب اللباس کښې تعلیقا ذکر کړې دې او امام محمدؒ په موطاء محمد کښې دا ذکر کولو سره فرمائیلې دی ﴿ به ناخذ ﴾ اوس دا چه د ما زاد علی القبضة حکم څۀ دې؟ پس ځان پوهه کړه چه د جمهور علماء کرامو او ائمة ثلاثو یو روایت دا دی چه ما زاد علی القبضة دې پرې کړې شی، او دا پرې کول زمونږ په نزد د یو قول په بناء صرف جائز او مشروع دی او د یو قول په بناء واجب دی شوافع د مطلقا اعفاء قائل دی، د اخذ ما زاد قائل نه دی چه ابن رسلان د شوافعو مذهب بیان کړې دې، بلکه دا چه هغوی وئیلې دی چه عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده والا حدیث انه علیه السلام کان یاخذ من اطراف لحیته ضعیف دې او په فروعو د حنابله او مالکیه کښې لیکلې شوې دی چه زیادت فی الطول یعنی د ګیرې طول فاحش د تشوية الخلقة یعنی د صورت د خراب والی باعث دې او لیکلې ئې دی چه په حدیث کښې د اعفاء نه مقصود مطلق اعفاء نه ده بلکه د مجوسو او هنودو په شان د پرې کولو نه منع کول مقصود دی.

قوله: ﴿ السواک ﴾ ددې پوره حدیث په ذکر کولو سره هم دا جزء مقصود بالذات دې په صحیح بخاری کښې چه په کوم باب کښې اوږد حدیث راشی نو کله چه په حدیث هغه لفظ راشی کوم چه مقصود بالذکر وی نو هلته به د کتاب غاړې ته تاسو د حاشیه لیکونکو لیکل اووینئ فیه الترجمة نو دغه شان مونږ هم په دې لفظ السواک باندې وئیلې شو چه فیه الترجمة.

## مضمضه او استنشاق په حکم کښې اختلاف ائمة:

﴿ قوله الاستنشاق بالماء ﴾ ددې مقابل یعنی مضمضه وړاندې راځی د مضمضه او استنشاق په حکم کښې اختلاف دې د شوافعو او مالکیانو په نزد دواړه په غسل او اودس کښې

سنت دی او د حنابله په نزد دواړه واجب دی او یو قول دا دې چه مضمضه سنت او استنشاق واجب دې پس په ترمذی کښې دی امام احمد رحمه الله فرمائی ﴿ الاستنشاق اوکد من المضمضة ﴾ غالبا ددې وجه دا ده چه په ابوداؤد کښې د لقیط بن صبرة رضی الله عنه حدیث مرفوع دې ﴿ وبالغ فی الاستنشاق الا ان تکونه صائما ﴾ او د احنافو په نزد فرق دې په اودس کښې دواړه سنت دی او په غسل کښې دواړه واجب دی، او په دې کښې د فرق وجه دې په شرح وقایه کښې اوکتلې شی، ظاهری وجه دا ده چه په قرآن کریم کښې په آیت وضوء کښې صرف د غسل وجه حکم ذکر شوې دې، مضمضه او استنشاق د دې نه خارج دی ځکه چه وجه وائی ﴿ ما تقع به المواجهة ﴾ یعنی د خبرو او د خطاب په وخت چه کوم څیز مخې ته وی او د داخل فم او انف حال دا نه دې، په خلاف د غسل چه په دې کښې د مبالغة فی التطهیر حکم دې پس ارشاد دې ﴿ فان کنتم جنبا فاطهروا الایة ﴾ یعنی که تاسو جنب ئې نو حتی الامکان د ټول بدن طهارت حاصل کړئ، او د داخل انف او فم تطهیر په حد امکان کښې داخل دې، لهذا ددې وینځل به هم ضروری وی.

قوله: ﴿ قص الاظفار ﴾ او په بعض روایاتو کښې د ﴿ تقلیم الاظفار ﴾ لفظ دې، علماء کرامو لیکلې دی، چه تقلیم اظفار چه هر څنګه اوکړې شی اصل سنت به ادا شی، په دې کښې څه خاص ترتیب نشته، خو بعض فقهاء کرامو ددې یو خاص ترتیب لیکلې دې هغه دا چه ابتداء دې د ښی لاس په مسبحه باندې اوکړې شی بیا وسطی بیا بنصر او خنصر او بیا ابهام، ددې نه پس دې د ګس لاس شروع د خنصر نه اوکړې شی مسلسل تر ابهام پورې، او د بعض رائې دا ده چه د ښی لاس د مسبحه نه دې شروع اوکړې شی تر د خنصر پورې او ابهام دې پریخودلې شی، بیا دې د ګس لاس د خنصر نه تر ابهام یسری پورې او بیا په اخره کښې د ښی لاس ابهام چه شروع هم د ښی نه اوشی او اختتام هم په ښی اوشی، او په رجلین کښې ترتیب دا دې چه د تقلیم ابتداء دې د ښئ خپې د خنصر نه اوکړې شی او مسلسل کولو سره دې د ګسې خپې د خنصر پورې نوکونه واخلې.

بعض محدثین لکه حافظ ابن حجر رحمه الله او ابن دقیق العید وغیره د تقلیم اظفار ددې کیفیت مخصوصه د استحباب انکار کړې دې ځکه چه ددې ثبوت په روایاتو کښې نشته او هغوی دا هم وائی چه ددې د اولویت او افضلیت اعتقاد هم غلط دې، ځکه چه استحباب هم یو حکم شرعی دې کوم چه دلیل ته محتاج دې.

د حضرت شیخ رحمه الله په حاشیه د بذل کښې دی چه په طحاوی کښې لیکلې شوې دی چه د جمعې د مانځه نه مخکښې تقلیم الاظفار مستحب دې، بلکه دا چه د بیهقی په یو روایت کښې دی ﴿ کان علیه الصلوٰة والسلام یقلم اظفاره ویقص شاربه قبل الجمعة ﴾ (جمع الوسائل) احقر وائی چه د علامه سیوطی رحمه الله یو رساله ده نور اللمعة فی خصائص الجمعة چه په دوی کښې هغوی د جمعې د ورځې سل خصوصیات ذکر کړې دی په هغې کښې په یو روایت کښې دی چه د جمعې په ورځ په نوکونو اخستلو کښې شفاء ده.

قوله:﴿ غسل البراجم ﴾ براجم د برجمة جمع ده په معنی د عقود الاصابع یعنی د ګوتو جوړونه

او غوټې او ددې خصوصیت په دې وجه دې چه دلته د رو کیدو د وجې نه خیرې اینخلی، لهذا د دې تعاهد او خبر اخستل پکار دی، علماء کرامو لیکلې دی چه د بدن هغه ټول ځایونه چرته چه خوله او خیرې جمع کیږی هغه ټول په دې حکم کښې داخل دی لکه اصول فخذین او ابطین، د غوږونو دننه حصه او سوری وغیره، بله دا چه دا یو مستقل سنت دې د اودس سره خاص نه دې.

قوله:﴿ نتف الابط ﴾ یعنی د ترخونو ویښته ویستل، ددې نه معلومه شوه چه اصل په ابط کښې نتف دې حلق اګرچه جائز دې ځکه چه مقصود ازاله شعر دې هغه په دې سره هم حاصلیږی، خو اولا هغه دې کوم چه په حدیث کښې راغلې دې، که څوک د شروع نه ددې عادت واخلی نو بیا ورته په ویستو کښې تکلیف نه وی، خو یو کرته دوه د استعمال حدید د وجې نه د جرړو د مضبوط والی د وجې نه په نتف کښې تکلیف وی

**د امام شافعی رحمه الله واقعه :**

نقل دی چه یو ځل یونس بن عبدالاعلی د امام شافعی رحمه الله په خدمت کښې حاضر شو ، هغه وخت هغوی سره حلاق ناست وو چه حلق ابط ئې کولو نو امام شافعی رحمه الله د هغوی په لیدو باندې اوفرمائیل ﴿ علمت ان السنة النتف ولکن لا اقوی علی الوجع ﴾ چه ماته معلومه ده چه سنت نتف دې خو په هغې کښې چه کوم تکلیف وی زه هغه نه شم برداشت کولې، ګویا د هغوی د طرف نه د نتف نه اختیارولو معذرت وو، معلومه شوه چه علماء کرامو لره د مستحباتو هم رعایت کول پکار دی ځکه چه هغوی د عوامو دپاره مقتدی وی، بغیر د څه عذر او خاص وجې نه ترک د مستحب هم نه دی کیدل پکار . والله الموفق

﴿قوله حلق العانة﴾ د نامې نه لاندې ویښته صفا کول، د عانة په تفسیر کښې درې اقوال دی

۱ : د نامه نه لاندې ویښته،

۲ : هغه حصه چه په هغې باندې ویښته راوځی کوم ته چه سپُغز(پیړو) وائی،

۳ : د ابو العباس بن سریج نه نقل دی چه د عانة نه مراد هغه ویښته دی کوم چه د دُبر (د ذک اودس ماتی ځائ) د حلقې نه ګیر چاپیره وی خو دا قول شاذ دې پس حکم هم دا دې چه دا ویښته هم صفا کول پکار دی، او بعض فقهاء کرامو لیکلې دی چه د زنانو دپاره د حلق په ځائې نتف العانة غوره دې.

قوله:﴿ انتقاص الماء یعنی الاستنجاء ﴾ د انتقاص الماء چه کوم تفسیر دلته ذکر شوې دې یعنی استنجاء بالماء دا د وکیع راوی د سند د طرف نه دې لکه چه د مسلم په روایت کښې دی، د استنجاء بالماء د انتقاض بالماء نه د تعبیر کولو وجه ئې دا لیکلې ده چه په اوبو کښې د قطع بول تاثیر دې چه هغه قطرات د بول منقطع کوی په دې وجه دې ته انتقاص الماء وائی ګویا د اوبو نه مراد بول او د انتقاص نه مراد ازاله ده، د انتقاص الماء په تفسیر کښې دویم قول دا دې چه ددې نه مراد انتضاح ده، پس په یو روایت کښې په ځائې د انتقاص الماء انتضاح الماء راغلې دې، د انتضاح الماء مشهوره معنی ده رش الماء بالفرج بعد الوضوء... چه د اودس نه فارغ کیدو سره د قطع وساوس دپاره شرمګاه ته مخامخ کپړه باندې اوبه

چرګاؤ کول، او بعضو د انتضاح معنی هم د استنجاء بالماء بيان کړې ده، د انتضاح مستقل باب راروان دي.

﴿ قوله الا ان تكون المضمضة ﴾ راوي وائي چه ماته لسم څيز ياد پاتې نه شو کيدې شي چه هغه مضمضه وي ددې وجې نه چه د استنشاق سره عام طور باندې مضمضه ذکر کولې شي او دلته د استنشاق ذکر خو راغلې دې خو تر اوسه پورې د مضمضې ذکر نه دې راغلې، او بعض شارحينو وئيلي دي چه کيدې شي لسم څيز ختان وي لکه چه په بل روايت کښې دي.

[٥٣]( ) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَدَاوُدُ بْنُ شَبِيبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ مُوسَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ دَاوُدُ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّ مِنَ الْفِطْرَةِ الْمَضْمَضَةَ وَالِاسْتِنْشَاقَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ إِعْفَاءَ اللِّحْيَةِ وَزَادَ وَالْخِتَانَ، قَالَ: وَالِانْتِضَاحَ، وَلَمْ يَذْكُرِ انْتِقَاصَ الْمَاءِ يَعْنِي الِاسْتِنْجَاءَ.

قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرُوِيَ نَحْوُهُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَالَ: خَمْسٌ كُلُّهَا فِي الرَّأْسِ، وَذَكَرَ فِيهَا الْفَرْقَ وَلَمْ يَذْكُرْ إِعْفَاءَ اللِّحْيَةِ.

قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرُوِيَ نَحْوُ حَدِيثِ حَمَّادٍ، عَنْ طَلْقِ بْنِ حَبِيبٍ، وَمُجَاهِدٍ، وَعَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْمُزَنِيِّ، قَوْلُهُمْ وَلَمْ يَذْكُرُوا إِعْفَاءَ اللِّحْيَةِ. وَفِي حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِيهِ وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ، وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، نَحْوُهُ، وَذَكَرَ إِعْفَاءَ اللِّحْيَةِ وَالْخِتَانَ.

**ترجمه**: د عمار بن ياسر رضي الله عنهما نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: بيشکه د فطرت نه مضمضه ده، او استنشاق دې، نو ذکر ئې کړو دهغې حديث پشان او ذکر ئې نه کړو د ګيرې پريخودل، او زيات ئې کړو سنتې کول، اووئيل هغه: اوبه شيندل په لنګ (پرتوګ) کښې، او ذکر ئې نه کړو انتقاص الماء يعني استنجاء کول په اوبو سره.

ويلي دي ابوداود: روايت کړې شوې دی ددې پشان دهغې د ابن عباس نه، او وئې وئيل پنځه شيان دي ټول په سرکښې دي، او ذکر ئې کړو په هغې کښې الفرق (يعنی ويښتان په مينځ دوه څائې کول)، او ذکر ئې نه کړو إِعْفَاءَ اللِّحْيَةِ (د ګيرې پريخودل).

او روايت شوې دی په مثل د حديث د حماد د طلق بن حبيب نه، او د مجاهد نه، او د بکر بن عبد الله المزني نه اقوال د دوی، او ذکر نه کړو دوی إِعْفَاءَ اللِّحْيَةِ (ږيره ساتل). او په حديث د محمد بن عبد الله بن ابي مريم کښې عن ابي سلمة عن ابي هريرة عن النبي ﷺ په سند سره د إِعْفَاءَ اللِّحْيَةِ (ګيره ساتل) ذکر دی. او روايت دې د ابراهيم نخعي نه په مثل د هغې، او ذکر کړې ئې دي (اعفاء اللحية و الختان) (يعنی ګيره ساتل او ختنه کول).

**تشريح**: ۲: ﴿ عن عمار بن ياسر الخ ﴾ دا ددې باب دويم حديث دې، مصنف رحمه الله په دې باب کښې باقاعده صرف د دوه احاديثو تخريج فرمائيلې دې، او باقی ډير روايات ئې تعليقا ذکر کړې دی، اول حديث د عائشې رضي الله عنها دويم حديث د عمار بن ياسر رضي الله عنهما، په دواړو احاديثو کښې د خصال فطرت په تعين کښې لږ شان فرق دې، هغه دا چه په حديث ثانی کښې اعفاء

( ): حديث محمد بن عبدالله ابن مريم تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٠٠٣، ١٠٣٥٠)، وحديث موسى بن إسماعيل قد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ٨ (٢٩٤)، مسند احمد (٢٦٤/٤) (حسن)

لحية نه ده ذكر شوې بلكه دهغې په ځائې ختان ذكر دې، بل دا چه په حديث ثانى كښې انتقاص الماء مذكور نه دې ددې په ځائې الانتضاح ذكر دې، اوس د دواړو احاديثو په يو ځائې كولو باندې به خصال فطرت د لسو په ځائې يولس شى، او د انتضاح په تفسير كښې چونكه اختلاف دې پس كه هغه او انتقاض الماء يو اومنلې شى نو بيا خو به يولس وى، ګينې دولس به شى، بله دا چه وړاندې د ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كښې د يو بل خصلت ذكر را روان دې، يعنى الفرق (په ويښتو كښې لار ويستل) نو اوس مجموعه خصال فطرة دولس يا ديارلس شو.

## د ختان په حكم كښې اختلاف:

د ختان په حكم كښې اختلاف دې، د شوافعو او حنابله په نزد د رجال او نساء دواړو په حق كښې واجب دې، د احنافو په نزد په يو قول كښې واجب دې او په بل كښې سنت دې، خو داسې سنت دې چه د شعائر اسلام نه دې، او د امام مالك رحمه الله مشهور قول دا دې چه د ذكورو په حق كښې سنت او د اناثو په حق كښې مندوب دې، پس د مسند احمد په روايت كښې دى ﴿الختان سنة للرجال ومكرمة للنساء﴾.

قوله :﴿ قال موسى عن ابيه وقال داؤد عن عمار بن ياسر ﴾ ددې جملې وضاحت دا دې چه ددې حديث په سند كښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان دى موسى او داؤد، د دواړو سند سلمة بن محمد پورې خو برابر دې خو ددې نه وړاندې سندخنګه دې په دې كښې اختلاف شو هغه دا چه د موسى په روايت كښې ددې نه پس صرف ﴿ عن ابيه ﴾ دې. ددې نه پس ذكر د صحابى نشته دې ،لهذا روايت به مرسل وى،او د داؤد په روايت كښې د سلمه بن محمد نه پس عن أبيه نشته بلكه صرف عمار بن ياسر دې په دې صورت كښې به دا روايت خو مرسل نه وى ځكه چه صحابى ذكر كړې شوې دې خو منقطيع به شى ځكه چه د سلمه سماع د عمار نه ثابت نه ده، حاصل دا دې چه د موسى روايت مرسل دې او د داؤد روايت منقطع دې.

## په تشريح د سند كښې دوه اقوال:

حضرت سهارنپورى رحمه الله په بذل كښې ددې مقام داسې تشريح كړې ده، خو حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې ليكلې دى چه ابن رسلان د شارح أبوداؤد رائې دا ده چه د عمار ذكر خو د دواړو په سند كښې دې، خو ﴿ عن ابيه ﴾ اضافه صرف د موسى په روايت كښې ده د داؤد په روايت كښې نشته دى، د موسى سند داسې دې ﴿عن سلمة بن محمد عن ابيه عمار ﴾ او د داؤد سند داسې دې ﴿ عن سلمة بن محمد عن عمار ﴾ ددې تشريح مطابق به د موسى په روايت كښې هيڅ اشكال نه وى، هغه به مرفوع متصل وى مرسل به نه وى، او د داؤد په روايت كښې به البته د مخكښې په شان منقطع وى، احقر عرض كوى چه حضرت په بذل كښې د سلمه بن محمد په ترجمه كښې چه كوم د تهذيب التهذيب عبارت نقل كړې دې نو هغه د ابن رسلان د تشريح زيات موافق دې، ښه ځان پوهه كړه.

## د قال ابوداؤد تشريح:

﴿ قال ابوداؤد : روى نحوه عن ابن عباس ﴾ اوس ددې ځائې نه مصنف رحمه الله بعض روايات

تعليقا بيانوي، او مقصود ددې تعليقاتو په ذکر کولو سره د خصال فطرة په تعين کښې چه د رواياتو کوم اختلاف دې چه هغه مخې ته راشي، په دې تعليقاتو کښې د ټولو نه مخکښې د ابن عباس حديث موقوف دې چه دهغې پوره الفاظ مصنف رحمه الله دلته نه دی ذکر فرمائيلي، پوره الفاظ دهغه په تفسير ابن کثير کښې په حواله د مصنف عبدالرزاق داسې دی ﴿ وقال خَمسٌ فِي الرَّأْسِ , وَخَمسٌ فِي الْجَسَدِ , فِي الرَّأْسِ : السِّوَاكُ , وَالِاسْتِنْشَاقُ , وَالْمَضْمَضَةُ , وَقَصُّ الشَّارِبِ , وَفَرْقُ الرَّأْسِ , وَفِي الْجَسَدِ خَمسَةٌ : تَقْلِيمُ الأَظْفَارِ , وَحَلْقُ الْعَانَةِ , وَالْخِتَانُ , وَالِاسْتِنْجَاءُ مِنَ الْغَائِطِ , وَالْبَوْلِ , وَنَتْفُ الإِبِطِ ﴾ (كذا فی نسخة الشاملة من المترجم) يعنی په لسو څيزونو کښې د پنځو تعلق د سر سره دې او هغه پنځه هم هغه دی کوم چه پورته ذکر شوې او د باقی پنځو تعلق د سر نه علاوه د باقی بدن سره دې خو ابن عباس رضی الله عنهما د اعفاء لحية په ځائې د فرق ذکر کړې دی، فرق مقابل دې د سدل چه دهغې مطلب دا دې چه د سر د ويښتو دوه حصې کول او بيا پکښې لاره ويستل، ددې تفصيل به په کتاب اللباس کښې راځی.

﴿ قال ابوداؤد و روی نحو حديث حماد الخ ﴾ دلته د حماد نه هغه حماد مراد دې کوم چه د حديث عمار رضی الله عنه په سند کښې دې کوم چه پورته ذکر شوې دې دا درې تعليقات دی يو د طلق بن حبيب، دويم د مجاهد، دريم د بکر بن عبدالله المزنی. ﴿ قولهم ﴾ يعنی ددې خلقو روايات ئې مرفوعا نه دی ذکر کړی بلکه موقوفا ئې بيان کړې دی، ﴿ ولم يذکر اعفاء اللحية ﴾ او په دې درې واړو رواياتو کښې د اعفاء اللحية ذکر نشته څنګه چه د ابن عباس رضی الله عنهما په روايت کښې نه وو، وړاندې فرمائی چه بيشکه د ابوهريره رضی الله عنه په حديث مرفوع کښې اعفاء لحية ذکر دې.

﴿ قوله وعن ابراهيم النخعی نحوه ﴾ دا څلورم اثر دې، مصنف رحمه الله فرمائی چه په دې کښې هم اعفاء لحية مذکور ده.

## د روايات الباب تعين او د هغې خلاصه :

پس حاصل دا شو چه مصنف رحمه الله اولا په دې باب کښې حديث د عائشې او عمار رضی الله عنهما ذکر کړې دې، ددې نه پس ئې د ابن عباس رضی الله عنهما حديث موقوف تعليقا راوړې دې بيا ئې ددې نه پس حديث د ابوهريره رضی الله عنه مرفوعا تعليقا ذکر فرمائيلي دې او بيا ئې ددې نه پس اثر د نخعی راوړې دې، اوس په دې مجموعه کښې درې احاديث خو مرفوع شو او يو حديث موقوف يعنی د ابن عباس رضی الله عنهما او څلور آثار د تابعينو، ټول اتۀ روايتونه شو، چه په هغې کښې په څلورو کښې اعفاء لحية ذکر ده او په باقی څلورو کښې نه ده ذکر، او په دې ټولو روايتونو کښې د خصال فطرة مجموعی تعداد په يو صورت کښې دولس او په يو صورت کښې ديارلس شو لکه چه مخکښې هم تير شو.

**فائده** : ځان پوهه کړه چه مصنف رحمه الله د طلق روايت د باب په شروع کښې مسندا ذکر فرمائيلي دې چه دهغې راوی مصعب بن شيبة دې، هغه روايت خو دې مرفوع، او دويم روايت د طلق دې کوم چه دلته تعليقا ذکر کړې شوې دې، او دا موقوف دې، مصنف رحمه الله د روايت طلق د اختلاف ذکر خو اوفرمائيلو خو په هغې کښې ئې د يو ترجيح نه هم تعرض اونکړو بلکه سکوت ئې اوفرمائيلو.

### د امام نسائی او امام ابوداؤد رحمه الله په رائې کښې اختلاف:

خو امام نسائی رحمه الله د طلق د روایت مرفوعه چه دهغې راوی مصعب دې د ذکر کولو نه پس د طلق روایت موقوفه([1]) ته چه دهغې راوی سلیمان تیمی دې. هغې ته ترجیح ورکړې ده او فرمائی ﴿ و مصعب منکر الحدیث ﴾ نو ګویا د امام نسائی او امام ابوداؤد په تحقیق کښې اختلاف شو، د مصنف رحمه الله په نزد په ظاهر کښې دواړه صحیح نه دی او د امام نسائی رحمه الله په نزد صرف روایت موقوفه خو په دې کښې امام مسلم رحمه الله د امام ابوداؤد رحمه الله سره دې ځکه چه امام مسلم رحمه الله د طلق د روایت مرفوعه په خپل صحیح مسلم کښې تخریج فرمائیلې دې، چه دهغې وجه دا ده چه مصعب د امام مسلم رحمه الله په نزد ثقة دې لکه چه د علامه زیلعی رحمه الله د کلام نه ددې باب په شروع کښې تیر شوې دی په بذل کښې هم د حضرت د کلام خلاصه هم دا ده.

## بَابُ السِّوَاكِ لِمَنْ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ

### باب دې په بیان د مسواک کې د هغه چا لپاره چې پاڅیږي د شپې

[۵۵]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، وَحُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ، يَشُوصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ".

**ترجمه**: د حذیفه نه روایت دې، یقیناً رسول الله ﷺ وو چه کله به پاڅیدلو دشپې مرله به ئې خوله خپله په مسواک باندې.

**تشریح**: ۱: ﴿ عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَشُوصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ ﴾ یشوص بمعنی یدلک یعنی خپله خوله مبارکه به ئې په مسواک باندې مرله، یا په معنی د یغسل دې او دریم تفسیر ددې یُنَقِّی (بالتشدید) د تنقیه نه، په معنی د صفا کولو یعنی رسول الله ﷺ چه به کله د شپې پاسیدلو نو د مسواک په ذریعه به ئې خپله خوله مبارکه پاکوله، دا روایت مطلق دې د مسلم په روایت کښې دی ﴿ اذا قام لیتهجد ﴾ یعنی رسول الله ﷺ چه بله کله تهجدو دپاره پاسیدو، مصنف رحمه الله چونکه ترجمه هم مطلق کیخودلې ده په دې وجه دهغې د مناسبت د وجې نه ئې حدیث هم مطلق راوړې دې د اطلاق تقاضا دا ده چه دا دې عام اوساتلې شی یعنی کوم سړې چه د شپې بیدار شی او پاسی که د هغه د مانځه اراده وی او که نه دده دپاره مسواک مستحب دې پس مخکښې ذکر شوې دی چه فقهاء کرامو هم عند القیام من النوم مسواک لره مستحب لیکلې دې

---

[1] بلکه مقطوع ځکه چه طلق تابعی دې هغوی داحدیث د خپل طرفه ذکرکړې دې د یوصحابی طرف ته ئې نه دې منسوب کړې. ففي النسائي ص ۲۷۲ ج ۲ عن المعتمر بن سليمان عن ابيه قال سمعت طلقًا يذكر عشرة من الفطرة السواك وقص الشارب الخ.

[2] صحيح البخاري/الوضوء ۷۳ (۲۴۵)، الجمعة ۸ (۸۸۹)، التهجد ۹ (۱۱۳۶)، صحيح مسلم/الطهارة ۱۵ (۲۵۵)، سنن النسائي/الطهارة ۲ (۲)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۷ (۲۸۶)، (تحفة الأشراف: ۳۳۳۶)، مسند احمد (۵/۳۸۲، ۳۹۰، ۳۹۷)، سنن الدارمي/الطهارة ۲۰ (۷۱۲) (صحيح)

[۵۶] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوضَعُ لَهُ وَضُوءُهُ وَسِوَاكُهُ، فَإِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ تَخَلَّى ثُمَّ اسْتَاكَ".

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روایت دې بیشکه نبي ﷺ وو چه کېخودلی به شوې هغه ته اوبه د اودس او مسواک، چه کله به د شپې پاڅېدلو نو قضاء حاجت به ئې اوکړو بیا به ئې مسواک استعمال کړو.

[۵۷] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أُمِّ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَرْقُدُ مِنْ لَيْلٍ وَلَا نَهَارٍ فَيَسْتَيْقِظُ، إِلَّا تَسَوَّكَ قَبْلَ أَنْ يَتَوَضَّأَ".

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روایت دې، یقیناً نبي ﷺ وو چه نه به اوده کېدو د ورځې او نه د شپې، چه رابیدار به شو مګر مسواک به ئې استعمالولو مخکښې د دېنه چه اودس اوکړي.

**تشریح**: ۳: ﴿ عن علي بن زید عن ام محمد الخ ﴾ علي بن زید د ام محمد ربیب دې، هغه د خپلې میرنئ مور ام محمد نه روایت کوی.

[۵۸] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "بِتُّ لَيْلَةً عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ مِنْ مَنَامِهِ، أَتَى طَهُورَهُ، فَأَخَذَ سِوَاكَهُ فَاسْتَاكَ، ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَاتِ: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ سورة آل عمران آية ۱۹۰ حَتَّى قَارَبَ أَنْ يَخْتِمَ السُّورَةَ أَوْ خَتَمَهَا، ثُمَّ تَوَضَّأَ فَأَتَى مُصَلَّاهُ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى فِرَاشِهِ فَنَامَ مَا شَاءَ اللهُ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَفَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى فِرَاشِهِ فَنَامَ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَفَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى فِرَاشِهِ فَنَامَ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَفَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ، كُلُّ ذَلِكَ يَسْتَاكُ وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَوْتَرَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، قَالَ: فَتَسَوَّكَ وَتَوَضَّأَ وَهُوَ يَقُولُ: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ سورة آل عمران آية ۱۹۰ حَتَّى خَتَمَ السُّورَةَ.

**ترجمه**: د عبد الله بن عباس نه روایت دې هغه وائی: ما شپه تېره کړه د نبي ﷺ سره، هرکله چه رابیدار شو د خوب خپل نه، نو راغی خپلو اوبو د اودس ته نو خپل مسواک ئې واخستلو هغه ئې اووهلو، بیا ئې ولوستل دا ایتونه (ان في خلق السماوات والارض و اختلاف الليل و النهار لآيات لأولي الالباب) تر دې چه نزدې شو چه سورت ختم کړي، او یا یې ختم کړو، بیا ئې اودس اوکړو نو راغی خپل ځائې د مانځه ته نو دوه رکعته مونځ ئې اوکړو، بیا لاړلو خپلې بسترې ته نو اوده شو څومره چه د الله خوښه وه، بیا راپاڅېدلو، نو

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٦۱۱۱)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ۱۸ (۷٤٦)، سنن النسائي/الافتتاح ۲٦۲ (۱۳۱٦)، قيام الليل ۲ (۱٦۰۲)، ۱۷ (۱٦٤۲)، ۱۸ (۱٦٥۲)، ٤۲ (۱۷۱۹)، ٤۳ (۱۷۲۱، ۱۷۲٥)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۱۲۳ (۱۱۹۰)، مسند احمد (٦/٤٤) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۱۹)، مسند احمد (٦/۱۲۱، ۱٦۰) (حسن) دون قوله: «ولا نهار»

(۳): صحيح البخاري/العلم ٤۱ (۱۱۷)، الأذان ٥۷ (٦۹۷)، ٥۹ (٦۹۹)، ۷۹ (۷۲۸)، اللباس ۷۱ (٥۹۱۹)، صحيح مسلم/المسافرين ۲٦ (۷٦۳)، سنن النسائي/الإمامة ۲۱ (۸۰۳)، ۲۲ (۸۰٥)، الغسل ۲۹ (٤٤۱)، سنن ابن ماجه/الإقامة ٤٤ (۹۷۳)، (تحفة الأشراف: ٦۲۸۷)، وراجع حديث رقم: (۱۳٥۳، ۱۳٥۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۱٥، ۲٥۲، ۲۸٥، ۲۸۷، ۳٤۱، ۳٤۷، ۳٥٤، ۳٥۷، ۳٦۰، ۳٦٥)، سنن الدارمي/الطهارة ۳ (٦۸٤) (صحيح)

وئي کړو په شان د هغې، بیا واپس شو خپلې بسترې ته، بیا راپاڅیدلو نو وئې کړو په مثل د هغې، بیا خپلې بسترې ته واپس شو نو اوده شو، بیا رابیدار شو نو وئې کړه په شان د هغې، د ټولو لپاره به ئې مسواک وهلو او مونځ به ئې کولو دوه رکعته، بیا ئې وتر اوکړل.
وئیلی دي ابوداود روایت کړی دی فُضیل عن حصین، هغه وائی چه مسواک ئې استعمال کړو او اودس ئې اوکړو، او هغه وئیل: (ان في خلقِ السماوات و الارض) تردې چه ختم ئې کړو سورت.

تشریح: ۴: ﴿ عن جده عبدالله بن عباس قال بت لیلة الخ ﴾ عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه ما یوه شپه د رسول الله ﷺ سره تیره کړه، دا د هغې شپې قصه ده چه کله رسول الله ﷺ د ابن عباس رضی الله عنهما د خاله حضرت میمونه رضی الله عنها کره وو. پس په روایاتو کښې راځی ﴿ بت عند خالتی میمونة ﴾ سیده میمونه رضی الله عنها د ابن عباس رضی الله عنهما خاله داسې ده چه د ابن عباس رضی الله عنهما مور ام الفضل بن الحارث رضی الله عنها د میمونه بنت الحارث رضی الله عنها خور ده.

سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ سره یوځائې شپه ولې تیره کړې وه؟ هغه په دې وجه چه هغوی اوغوښتل چه څنګه د رسول الله ﷺ د ورځې اعمال او عبادات مونږ ته معلوم دی چه دغه شان د هغوی د شپې معمولات استراحت او عبادت هم معلوم شی په دې وجه هغوی پوره شپه د رسول الله ﷺ سره په بیدارئ باندې تیره کړه، د غور مقام دې! د ابن عباس رضی الله عنهما دې وخت کښې عمر څه وو ډیر کم عمره وو، ځکه چه د رسول الله ﷺ د وفات په وخت د هغوی عمر تقریباً دولس کاله وو، او د هغوی د کم عمرئ باوجود د طلب علم او د تحصیل علم د شوق دا حال وو!

من طلب العلی سهرا اللیالی

﴿ قوله ثم اوتر ﴾ یعنی اوتر بثلث لکه چه په ابواب قیام اللیل کښې ددې تصریح ده، دا حدیث خو په اصل کښې د تهجدو روایت دې په دې وجه به مصنف رحمه الله دا د تهجدو په ابوابو کښې راوړی خو چونکه په دې روایت کښې د مسواک عند الوضوء ذکر وو په دې وجه مصنف رحمه الله دلته د مسواک د مناسبت د وجې نه راوړې دې.

**مبیت ابن عباس رضی الله عنهما والا روایت کښې تخلل نوم بین الرکعات:**

په دې روایت کښې د تهجد مع وتر ټول نهه رکعتونه ذکر شوې دی، بله دا چه په دې روایت کښې یو نوې شان خبره تخلل نوم بین الرکعات ذکر شوې ده یعنی دا چه رسول الله ﷺ په دې شپه کښې د تهجدو مونځ مسلسل نه دې ادا کړې بلکه د هر دوه رکعتونو نه پس به ئې خوب کولو او هر ځل به ئې اودس او مسواک کولو دغه شان ئې په ډیرو وقفو سره تهجد پوره کړل، د ابن عباس رضی الله عنهما دا حدیث په بخاری کښې د لسو ځایونو نه زیات راغلې دې او د بخاری د یو روایت نه هم نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ د هر دوه رکعتونو نه پس آرام فرمائیلې وی او بار بار ئې اودس فرمائیلې وی، لهذا دې روایت ته به د مشهورو روایاتو د خلاف کیدو د وجې نه شاذ وئیلې شی د ابوداؤد دا روایت په دې طریق او سند سره مسلم کښې هم دې هلته هم دغه شان تخلل نوم واقع شوې دې، هم په دې وجه امام نووی رحمه الله او

قاضی عیاض رحمه الله دواړو په دې روايت باندې كلام كړې دې، امام نووی رحمه الله فرمائيلي دی چه په دې روايت كښې دوه خبرې خلاف مشهور دی، يو تخلل نوم، دويم تعداد ركعات، ځكه چه د مبيت ابن عباس والا روايت كښې مشهور يولس يا ديارلس ركعتونه دی، او دلته صرف نهه ركعتونه دی، هم دغه شان دارقطنی رحمه الله چه د مسلم په كوم روايت باندې كلام كړې دې دا روايت هم په هغې كښې شامل دې او په فتح البارى كښې د حافظ د كلام نه هم دا معلوميږی، خو په بذل كښې حضرت سهارنپوری رحمه الله د امام نووی رحمه الله وغيره دا اعتراض نه دې تسليم كړې، زما په خيال كښې د شارحينو دا اشكال او نقد صحيح دې، او دا اختلاف روايت لره په تعدد واقعه باندې محمول كول په دې وجه ګران دی چه دا ټوله خبره د مبيت ابن عباس رضی الله عنهما والا حديث[1] كښې كيږی په مطلق صلوة الليل كښې نه كيږی، او ظاهره دا ده چه د مبيت ابن عباس رضی الله عنهما په قصه كښې تعدد نشته، هغه صرف يو ځل پيښه شوې ده، كما قال الحافظ رحمه الله.

حديث نه د احنافو تائيد: ځان پوهه كړه چه په دې واقعه كښې بار بار د اودس او مسواک تذكره ده خو مسواک د اودس سره ذكر دې عين قيام الى الصلوة په وخت نه دې مذكور فتامل.

﴿ قال ابوداؤد رواه ابن فضيل عن حصين الخ ﴾ حصين پورته په سند كښې راغلې دې هلته د هغوی شاګرد هشيم وو، اوس مصنف رحمه الله فرمائی چه په دې روايت كښې د حصين نه چه څنګه هشيم روايت كوی هم دغه شان محمد بن فضيل هم روايت كوی او د دواړو په روايت كښې فرق دا دې چه د هشيم په روايت كښې په شک سره راغلې وو ﴿ حتى قارب ان يختم السورة او ختمها ﴾ دلته د ابن فضيل په روايت كښې بغير د شک نه دې، ﴿ حتى ختم السورة ﴾

[۵۱]([2])حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يَبْدَأُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ؟ قَالَتْ: "بِالسِّوَاكِ". ([3])

**ترجمه:** مقدام بن بن شريح روايت كوي د خپل پلار نه، هغه وائی، ما اووئيله عائشې ته په

---

[1]) ددې حديث او قصې نه علاوه نسائی صفحه ۲۴۲ باندې په يو روايت كښې د يعلی بن مملک په حديث كښې د ام سلمه نه او هم دغه شان د حميد بن عبدالرحمن بن عوف روايت د صحابی مبهم نه دې، په دې دواړو كښې تخلل نوم بين الركعات موجود دې لهذا اوس به داسې وئيلې شی چه في نفسه د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه تخلل نوم بين ركعات التهجد احيانا ثابت دی، خو د مبيت ابن عباس رضی الله عنهما په روايت كښې صحيح عدم تخلل نوم دې، د مبيت ابن عباس رضی الله عنهما والا كوم روايات چه په سنن ابی داؤد كښې په روستو راتلونكو ابواب صلوة الليل كښې راځی، په بعضو كښې تخلل نوم دې او په بعضو كښې نشته، خو په كومو كښې چه نشته هغې ته به ترجيح په دې وجه وی چه هغه روايات د بخاری د رواياتو مطابق دی،

[2]): صحيح مسلم/الطهارة ۱۵ (۲۵۳)، سنن النسائي/الطهارة ۸ (۸)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۷ (۲۹۰)، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۴۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۲/۶، ۱۱۰، ۱۸۲، ۱۸۸) (صحيح)

[3]) دا حديث مبارک د بيروت په نسخه كښې په حديث نمبر ۵۱ كښې موجود دې ځكه هلته ليكلې شوی دې، او زمونږ د پاكستان اوهندوستان په نسخو كښې ددې نمبر دلته دې په دې وجه دلته هم ذكر كړې شو (م)

کوم شي به رسول الله ﷺ شروع کوله کله چه به کورته داخل شو؟ هغې ووئیل: په مسواک سره.
قوله :﴿عن المقدام بن شریح عن ابیه قال قلت لعائشة ﴾ د سیده عائشه رضي الله عنها نه تپوس اوکړې شو چه رسول الله ﷺ به خپلې حجرې ته تشریف راوړلو نو د ټولو نه اول به ئې څۀ کار کولو نو هغې اوفرمائیل چه د ټولو نه اول به ئې مسواک کولو.

## د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:

دا حدیث په ظاهر کښې د ترجمة الباب سره هیڅ مطابقت نه لري، ځکه چه ترجمه ده ﴿سواک لمن قام باللیل ﴾ او په دې حدیث کښې د قیام لیل هیڅ ذکر نشته، بذل کښې ئې ددې جواب لیکلې دې چه قلمی او مصری نسخو کښې دا حدیث دلته نشته، لهذا دا حدیث دلته ذکر کول د ناسخین تصرف دې، دا حدیث دلته نه دی کیدل پکار، او که ددې دلته کیدل تسلیم کړې شي چه زمونږ په نسخه کښې دی نو وئیلې کیدې شي چه مطابقت په طریق العموم دی یعنی د رسول الله ﷺ کور ته داخلیدل عام دی چه که د ورځې وی یا د شپې وی، لهذا کیدې شي چه رسول الله ﷺ د شپې بیداریدو سره کور ته داخل شوې وی نو هغه وخت چه ئې کوم مسواک کړې وی نو په دې باندې به سواک لمن قام باللیل صادق راځی. د بخاری په تراجمو کښې په بعضو موقعو باندې مطابقت په دې طریقه ثابتولې شي یعنی مطابقت بالعموم وبکل المحتمل، خو ددې توجیه صحت موقوف دې په دې خبره باندې چه د رسول الله ﷺ حالت حضر کښې د کور نه بهر شپه تیرول ثابت وی، یو دریم جواب دا هم کیدې شي چه دا مطابقت بالاولویة وی هغه په داسې طریقه چه دا د رسول الله ﷺ شان وو چه کله به هم کور ته داخلیدو نو مسواک به ئې کولو که مونځ ئې کولو یا نه نو اوس ظاهره ده چه کله د شپې بیداریږی او د مانځه اراده فرمائی نو هغه وخت به مسواک په طریقه اولی فرمائی دا جواب صاحب د غایة المقصود لیکلې دې.

# بَابُ فَرْضِ الْوُضُوءِ

## باب دې په بیان د فرضیت د اودس کې

د دې نه مخکښې په باب السواک کښې ددې باب حواله او تذکره راغلې ده، د وضوء په غسل باندې د مقدم کولو وجه ښکاره ده چه وضوء په نسبت د غسل کثیر الوقوع دې، په ترجمة الباب یعنی ﴿ فرض الوضوء ﴾ کښې د لفظونو په اعتبار سره دوه مطلبونه کیدې شي، اول د اودس د فرضیت اثبات او هم دا مقصود دې، دویم مطلب دا کیدې شي فرض الوضوء بمعنی فرائض الوضوء یعنی په اودس کښې دننه څومره څیزونه فرض دی، خو دلته دا معنی مراد نه ده.
دلته دري بحثونه دی. د فرض لغوی معنی تقدیر او تعین ده یعنی د یو څیز مقدار وغیره متعین کول، په اصطلاح د فقهاؤ کښې فرض هغه حکم ته وائی چه دهغې لزوم د دلیل قطعی نه ثابت وی، دا نه چه دهغې نفس ثبوت په دلیل قطعی سره وی ځکه چه ډیر مستحب بلکه مباح څیزونه داسې دی چه دهغې نفس ثبوت په دلیل قطعی سره دې لکه ﴿واذا حللتم فاصطادوا ﴾ وغیره وغیره،

دلته درې بحثونه دی:
۱: د اودس ماخذ اشتقاق، ۲: ابتداء مشروعیت ۳: سبب وجوب،
**بحث اول**: وضوء مشتق دې د وضاءة نه، د وضاءت معنی حسن او نظافت ده، او شرعی معنی ددې معلومه ده بیان ته محتاج نه ده.
**بحث ثانی**: د اودس فرضیت کله راغلې دې؟ د جمهورو رائې دا ده چه د اودس فرضیت د مانځه سره شوې دې، او د رسول الله ﷺ نه کله هم او هیڅ مونځ هم بغیر د اودس نه کول ثابت نه دی، نه په مکه مکرمه کښې او نه په مدینه طیبه کښې، البته ابن الجهم یو عالم دې هغه فرمائی چه په ابتداء د اسلام کښې د اودس درجه سنت وه، فرضیت ئې روستو راغلو، چه کله د اودس فرضیت د جمهورو په نزد د فرضیت صلوة سره اوشو نو اشکال به کیګی چه د اودس آیت خو مدنی دې، او د مانځه فرضیت په مکه کښې قبل الهجرة شوې وو، ددې جواب به دا ورکولې شی چه د اودس فرضیت خو هم هغه وخت شوې وو، باقی د آیت وضوء نزول روستو صرف د تاکید دپاره شوې دی، فلا اشکال.
یو بحث دلته دا دې چه د اودس سبب وجوب څه دې؟ جواب دا دې چه د شوافعو او احنافو په نزد د راجح قول په بناء باندې ددې سبب وجوب قیام الی الصلوة بشرط الحدث دې او د اهل ظواهرو په نزد سبب وجوب مطلق قیام الی الصلوة دې هم په دې وجه د هغوی په نزد د هر مانځه دپاره اودس کول ضروری دی که د اول نه حدث وی او که نه وی، د جمهورو دلیل ددې باب حدیث ثانی دې چه دهغې نه معلومیږی چه د اودس حکم د حدث په وخت دې مطلقا نه دې.

[۵۹](۱) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَقْبَلُ اللهُ عَزَّوَجَلَّ صَدَقَةً مِنْ غُلُولٍ، وَلَا صَلَاةً بِغَيْرِ طُهُورٍ".

**ترجمه**: ابو المليح دخپل پلار نه روایت کوی، هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه، چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: نه قبلوي الله عز و جل صدقه د (غلا) دمال نه، او نه مونځ بغیر د اودس نه.

**تشریح**: (راوی د حدیث): ﴿ عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: لاَ يَقْبَلُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ ﴾ ابوالمليح د خپل پلار نه روایت کوی د ابوالمليح نوم عامر یا زید دې د دوی د پلار نوم اسامه دې لهذا ددې حدیث راوی اسامه شو، په دې حدیث کښې دوه اجزاء دی د جزء اول تعلق د صدقې سره دې، د جزء ثانی تعلق د مانځه او طهارت سره دې، د مصنف رحمه الله مقصود جزء ثانی دې.

قوله: ﴿ غلول ﴾ بضم الغین دې چه دهغې مشهوره معنی په مال غنیمت کښې خیانت کول دی، او یو قول دا دې چه ددې استعمال په مطلق خیانت کښې هم کیږی، د قول اول په بناء باندې

(۱): سنن النسائي/الطهارة ۱۰۴ (۱۳۹)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۲ (۲۷۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۲)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الطهارة ۲ (۲۲٤)، مسند احمد (۵/۷٤، ۷۵)، سنن الدارمي/الطهارة ۲۱ (۷۱۳) (صحيح)

په دا سوال پيدا کيږي چه د مال غنيمت د خيانت د تخصيص وجه څه ده؟ ددې دوه جوابونه کيدې شي،

يو خو دا چه د غنيمت قيد رسول الله ﷺ د مقام د مناسبت د وجې نه لګولې دې يعنې په کومه موقع باندې چې رسول الله ﷺ دا حديث ارشاد اوفرمائيلو دهغې تقاضه هم دا وی چه د مال غنيمت حکم دې بيان کړې شی،

يا دويمه وجه دا کيدې شی، چه دا بيانول غواړی چه هر کله په مال غنيمت کښې خيانت کول حرام دی، چه په هغې کښې د انسان خپله حصه هم وی نو د بل په مال کښې خيانت کول په طريق اولی حرام دی، ګويا دا قيد احترازی نه دې بلکه اثبات الحکم بطريق الاولوية دپاره دې.

## د صحة صلوة دپاره د طهارت شرط کيدل:

﴿قوله ولا صلوة بغير طهور الخ﴾ صلوة نکره تحت النفی ده يعنی هريو مونځ که فرض وی او که نفل وی هغه بغير د طهارت نه نهٔ قبليږی، په دې کښې اختلاف دې چه د صلوة په عموم کښې صلوة جنازة او سجده د تلاوت هم داخله ده يا نه، د جمهور علماء کرامو په نزد د ائمه اربعه په نزد دواړه داخل دی، د شعبی او محمد بن جرير طبری په نزد دواړه پکښې داخل دی، او د امام بخاری رحمه الله په نزد صلوة جنازه داخل ده، سجده تلاوت داخل نه ده.

د دې حديث نه معلومه شوه چه د صحت صلوة دپاره طهارت شرط دې او د طهارت دوه قسمونه دی، طهارة عن الحدث او طهارت عن الخبث، لهذا د دواړه قسم طهارت حاصليدل به ضروری وی، په طهارة عن الحدث کښې خو د چا هم اختلاف نشته، خو په طهارت عن الخبث کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف مشهور دې، د هغوی په نزد ثوب مصلی يا بدن مصلی د نجاست نه پاکيدل په يو قول کښې سنت او په يو قول کښې واجب دی شرط د صحت نه دې، پس دا حديث په دې معامله کښې د جمهورو حجت کيدې شی او د مالکيانو خلاف ولم ار من نبه علی ذلک.

## د قبول معنی تحقيق او احاديث کښې د دې په مختلفو معنو کښې استعمال:

دلته يو څيز تحقيق طلب دا دې چه د لفظ قبول معنی حقيقی څه ده؟ او دلته ترې نه څه مراد دې، ځکه چه په يو حديث کښې دا هم راځی چه د شارب خمر مونځ نه قبليږی، حال دا چه د هغه مونځ د ټولو په نزد صحيح وی، او په يو بل روايت کښې دی ﴿لا يقبل الله صلوة حائض الا بخمار﴾ يعنی د بالغې زنانه مونځ بغير د ستر راس نه نهٔ قبليږی دلته مسئله دا ده چه د زنانه مونځ بغير د ستر راس نه بالاتفاق صحيح نه دې او حال دا چه د شارب خمر مونځ بالاتفاق صحيح دې حال دا چه عدم قبول په دواړو احاديثو کښې ذکر شوې دې، جواب دا دې چه د قبول استعمال په دوه معنو کښې کيږی.

### (د لفظ قبول دوه معانی)

۱: کون الشئ بحيث يترتب عليه الرضاء والثواب... د يو فعل داسې کيدل چه په هغې باندې رضا او ثواب مرتب شی.

۲: کون الشئ مستجمعا للشرائط والارکان د یو عمل ټولو ارکانو او شرطونو لره جامع کیدل.
اصحاب درس قبول بالمعنی الاول نه په قبول اثابة او قبول بالمعنی الثانی نه قبول اجابت سره تعبیر کوی [۱] د حافظ ابن حجر رحمه الله د کلام نه معلومیږی چه اول معنی د قبول حقیقی ده او ثانی معنی مجازی، د قبول اثابة حاصل دا دې چه د ثواب او انعام مستحق کیدل، او د قبول اجابت حاصل دې صحت، لهذا د قبول اثابت د نفی حاصل به دا وی چه دا عمل قابل ثواب و انعام نه دې اګر که صحیح شی، او د قبول اجابت د نفی مطلب به دا وی چه دا عمل بالکل صحیح نه دې پاتې له دا چه قابل انعام وی، په دې حدیث کښې ښکاره ده چه د قبول نه قبول اثابت مراد نه دې [۲] بلکه قبول اجابت مراد دې ځکه چه د ټولو علماء کرامو په دې خبره باندې اجماع ده چه مونځ بغیر د طهارت نه صحیح نه دې، اګرچه د قبول دا معنی مجازی ده خو اجماع ددې قرینة ده او په شارب خمر والا حدیث کښې د قبول نه قبول اثابت مراد دې چه د شارب خمر مونځ تر څلویښتو ورځو پورې نه قبلیږی اګر که صحیح کیږی، او د خمار والا حدیث کښې قبول اجابت مراد دې، غرض دا چه قبول خو په دواړو معنو کښې مستعمل وی خو د یوې معنې تعین به قرائنو باندې موقوف وی چه د کومې معنې قرینه وی هم هغه په اختیارولې شی.

## مسئلة فاقد الطهورین:

دلته یو مسئله بله بیانولې شی چه دهغې نوم دې مسئله فاقد الطهورین یعنی که د یو سړی سره پاکې اوبه او پاکه خاوره دواړه نه وی نو هغه به څه کوی؟ په دې حالت کښې مونځ اوکړی او که نه، مسئله ډیره مشهوره ده امام مالک رحمه الله فرمائی چه د عدم اهلیت د وجې نه به د داسې سړی نه مونځ ساقط شی، او هر کله چه ادا ساقط شی نو د قضاء هیڅ سوال نه پیدا کیږی ځکه چه وجوب قضاء خو فرع ده د وجوب ادا او د امام شافعی رحمه الله مشهور قول دا دې چه په داسې سړی باندې فی الحال بغیر د طهارت نه مونځ کول واجب دی ځکه چه هغه هم په دې باندې قادر دې او په حدیث کښې دی ﴿اذا امرتکم بشئ فافعلوا منه ما استطعتم﴾ چه کله زه تاسو ته د یو څیز د کولو حکم اوکړم نو د خپل طاقت مناسب هغه پوره کوئ او دلته په دې سړی کښې بغیر د طهارت نه د مونځ کښې استطاعت دې لهذا فی الحال دې بغیر د طهارت نه مونځ ادا کړی او روستو دې د قاعدې مطابق د طهارت سره دهغې قضاء

---

[۱] قلت وهکذا اختاره في البذل وعکسه في درس ترمذي لکنه کتب قبول الاصابة بالصاد لا الثاء.
[۲] په دې وجه چې قبول بالمعنی الاول یعنی قبول اثابة په اعتباره د مفهوم خاص دې او قبول بالمعنی الثانی یعنی نفی قبول اجابت عام دې، او د خاص نفی د عام نفی لره مستلزم نه وی، خو ددې برعکس ده نفی د عام نفی د خاص لره مستلزم وی پس که په حدیث کښې اول معنی مراد کړې شی نو ددې نه به بغیر د طهارت نه عدم صحة صلوة نه مستفاد کیږی، کوم چه د اجماع خلاف دې لهذا په حدیث کښې دویمه معنی متعین ده کومه چه عام ده نو چونکه د عام نفی مستلزم وی د خاص نفی لره نو په دې وجه ددې نه مستفاد کیږی چه بغیر د طهارت نه مونځ نه صحیح کیږی او نه موجب ثواب دې، په دې صورت کښې به د هر دوو د قبول نفی راشی، او هم دا مقصود هم دې.

اوکړي او امام احمد رحمه الله فرمائي چه هم په دې حالت کښې دې مونځ اوکړي د کوم چه په هغه کښې استطاعت دې، يعنی فی الحال ددې نه په زائد باندې د نه قادر کيدو د وجې نه به د هغه مونځ معتبر وی، او روستو ورله د قضاء راوړلو حاجت نشته په شوافعو کښې مزنی دا قول اختيار کړې دې او هم دې قول ته امام نووی رحمه الله د دليل په لحاظ قوی وئيلي دې. د احنافو په نزد ددی برعکس ده يعنی فی الحال دې د عدم اهليت د وجې نه نۀ لولي او د حصول طهارت نه پس چه کله اهليت پيدا شي نو قضاء دې راوړي.

پس حاصل دا شو چه د امام مالک رحمه الله په نزد نه ادا شته او نه قضاء، او د امام شافعي رحمه الله په نزد ادا او قضاء دواړه واجب دی، د امام احمد رحمه الله په نزد صرف ادا نه قضاء، او د احنافو په نزد قضاء دون الاداء، دې مذاهب اربعه لره زمونږ استاذ محترم مولانا اسعد الله خان صاحب رحمه الله نظم فرمائيلي دې!

مالک بھی شافعی بھی ھیں احمد بھی اور ھم

لا لا ، نعم نعم ، و نعم لا ، و لا نعم

په دې شعر کښې د حرف اول تعلق د ادا سره دې او د ثانی تعلق د قضاء سره دې. اوس د لا لا معنی دا شوه چه لا اداء ولا قضاء، او د نعم نعم مطلب شو عليه الاداء والقضاء.

**بغير د طهارت نه د مونځ کولو حکم:**

خان پوهه کړئ چه امام نووی رحمه الله فرمائي چه د امت په دې باندې اجماع ده چه قصدا بغير د طهارت نه مونځ کول حرام دی د فرض او نفل هيڅ فرق نشته، که يو سړي قصدا بغير د طهارت نه مونځ اوکړي نو هغوی وائي چه د جمهورو په نزد به لوستونکي ګنهګار وی خو د هغه تکفير به نه شي کولې او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه هغه به کافر شي، خو زه وايم چه زمونږ په نزد د تکفير مسئله مطلقا نه ده بلکه په دې صورت کښې ده چه کله په طور د استخفاف داسې کوی يعنی مونځ سپک ګنړي يا حکم شرعی سپک ګنړلو سره داسې اوکړي او که د سستی والي يا د شرم او حياء د وجې نه لکه بعض وخت په سفر وغيره کښې غسل جنابت کښې ددی ضرورت راځي نو په دې صورت کښې کفر نه لازميږي.

خان پوهه کړئ چه زمونږ پورته کوم مذهب تير شوې دې هغه د امام ابوحنيفه رحمه الله مسلک دې د امام ابويوسف رحمه الله رائې دا ده چه تشبه بالمصلين دې اختيار کړی نور تفصيل دې د کتب فقه نه معلوم کړې شي دا د شامي يا د درمختار سبق نه دې

**حديث الباب او يو جزئيه فقهيه کښې د تعارض جواب:**

**د حديث جزء اول ﴿ لا يقبل الله صدقة من غلول ﴾ د لاندې حضرت په بذل کښې يو فقهی مسئله جزئيه بيان فرمائيلي ده څکه چه دا حديث په ظاهر کښې ددې خلاف دې، مسئله فقهيه دا ده چه که د يو سړي سره د بل چا مال په ناجائز طريقه اخستلې موجود وی او هغه مال مالک يا د هغه وارثانو ته رسول ممکن نه وی نو فقهاء کرامو ليکلي دی چه د داسې مال تصدق واجب دې نه دې خپله استعمالوی او نه دې ضائع کوی بلکه هغه دې صدقه کړی او حديث دا وائي چه د مال حرام صدقه د الله پاک په نزد قبول نه ده لهذا دهغې نه بچ**

کیدل پکار دی ددې یو جواب دا کیدې شي چه په حدیث کښې د داسې حرام مال ذکر نشته کوم چه د هغه مالک ته رسول ممکن نه وی، دا یو نادر شان صورت دې نوادر مستثنی وی فلا اشکال یا دې داسې اووئیلې شی چه په حدیث کښې ممانعت د خپل طرف نه د صدقې کولو دې او د فقهاء کرامو غرض دا نه دې چه دا سړې دې د خپل طرف نه د تحصیل اجروثواب دپاره صدقه اوکړی بلکه مراد دا دې چه د مالک د طرف نه دې صدقه اوکړې شی بغیر د حصول اجر او ثواب د نیت نه.

[۶۰]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَقْبَلُ اللهُ صَلَاةَ أَحَدِكُمْ إِذَا أَحْدَثَ حَتَّى يَتَوَضَّأَ".

**ترجمه**: د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې، هغه وئیلی دي، وئیلی دي رسول الله ﷺ نه قبلوي الله مونځ د یو کس ستاسو نه کله چه بې اودسه شي تردې چه اودس اوکړي.

**تشریح**: ۲: ﴿ عن ابی هریرة.... اذا احدث حتی یتوضاء ﴾ یعنی د انسان مونځ نه صحیح کیږی چه کله هغه ته حدث لاحق شي تر څو چه ئې اودس نه وی کړې، ددې حدیث په عموم کښې دوه صورتونه داخل دی، یو دا چه د مونځ شروع کولو نه مخکښې حالت حدث وی دویم دا چه د مانځه ترمینځه ورته حدث لاحق شي په هر دواړو صورتونو کښې یو شان حکم دې چه اودس اوکړې شي بل دا چه د خپل عموم په بناء باندې ابتداء او بناء دواړه شامل دی او مسئلة البناء مختلف فیه ده، جمهور علماء کرام ددې قائل نه دی احناف ئې قائل دی، بله دا چه ددې حدیث نه معلومیږی چه وضوء لکل صلوة واجب نه دې کما هو مسلک الجمهور.

حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه دا حدیث د آیت کریمه ﴿ اذا قمتم الی الصلوة فاغسلوا وجوهکم الایة ﴾ تفسیر دې، یعنی په آیت کښې اګرچه د حدث ذکر نشته بلکه عند القیام الی الصلوة د وضوء ذکر دې، خو دا حدیث د آیت کریمه مراد بیانوی چه د قیام الی الصلوة په وخت د وضوء حکم د حدث په وخت دې هسې نه دې، احقر وائی دا حدیث په دې معنی کښې صریح دې هم چه حضرت تحریر فرمائیلې دی، باقی د باب اول حدیث ﴿ لا یقبل الله صلوة بغیر طهور ﴾ نه هم دا خبره مستفاد کیدې شي ځکه چه د تحصیل طهارة حکم مشعر دې وجود حدث لره خو که د مخکښې نه حدث نه وی نو هغه وخت طهارت حاصلول تحصیل حاصل دې.

[۶۱]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ ابْنِ عَقِيلٍ، عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ، وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ، وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ".

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ۲(۱۳۵)، الحيل ۲ (۶۹۵۴)، صحيح مسلم/الطهارة ۲ (۲۲۵)، سنن الترمذي/الطهارة ۵۶ (۷۶)، (تحفة الأشراف: ۱۴۶۹۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۸/۲) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الطهارة ۳ (۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۳ (۲۷۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۶۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۳/۱)، سنن الدارمي/الطهارة ۲۲ (۷۱۴) (حسن صحيح)

**ترجمه:** د علي ﷜ نه روایت دي، هغه وائي، وئیلي دي رسول الله ﷺ: چابي د مونځ هغه پاکوالي دی، او حرام ونکی دهغې تکبير دی، او حلالونکی دهغې سلام دی.

**تشريح:** ۳: ﴿عن علي قال قال مفتاح الصلوة الطهور﴾ په دې حديث کښې درې جملې دی په اول کښې د طهارة ذکر دې په دويم کښې د تکبير تحريمه، په دريم کښې د تسليم صلوة. خو مقصود د مصنف ﷫ اول جزء دې، په دې جمله کښې تشبيه او استعاره استعمال کړې شوې ده، هغه داسې چه حدث لره د قفل سره تشبيه ورکړې شوې ده او دهغې ضد يعنی طهارت ته مفتاح سره ګويا حدث د انسان دپاره د دخول فی الصلوة دپاره داسې مانع دې لکه څنګه چه مکان ته د داخليدو دپاره قفل (تاله) مانع وی، او څنګه چه مقفل مکان کښې بغير د مفتاح نه داخليدل ممکن نه دی، هم دغه شان په مانځه کښې بغير د طهارت نه داخليدل صحيح نه دی.

## مسئلة نيت فی الوضوء:

بله دا چه ددې حديث نه علماء احناف په يوه بله اختلافی مسئله باندې استدلال کړې دې هغه دا چه جمهور ائمه ثلاثه ﴿انما الاعمال بالنيات﴾ د وجې نه نيت لره په اودس کښې فرض منی او احناف دې سره متفق نه دی. احناف وائی چه په اودس کښې دوه حيثيتونه دی، يو د عبادت کيدو او يو د جواز صلوة د آله او مفتاح کيدو په حيثيت سره، په قاعدې د ﴿انما الاعمال بالنيات﴾ نيت ضروری دې، او مفتاح الصلوة کيدل په نيت باندې موقوف نه دی، لهذا بغير د نيت نه چه کوم اودس کولې شی هغه خو به مفتاح الصلوة وی خو موجب ثواب او عبادت به نه وی، لهذا د احنافو عمل په هر دواړو احاديثو باندې شو، د حديث اهمال لازم نه شو.

## د حديث توضيح او تشريح:

﴿قوله وتحريمها التكبير﴾ [1] ضمير راجع دې د صلوة طرف ته او د تحريم اضافت د صلوة طرف ته د ادنی ملابست د وجې نه دې، ګينې په اصل کښې د تحريم تعلق د صلوة سره نه دې بلکه د هغه افعالو سره دې کوم چه خارج صلوة کښې مباح دی او په مانځه کښې داخليدو سره حرام شی نو مطلب دا شو چه کوم امور د مانځه په حالت کښې حرام دی دهغې د تحريم سبب تکبير دې، اصل خو دهغې د تحريم سبب خپله مونځ دې خو چونکه د مانځه تحقق په تکبير سره کيږی په دې وجه د تحريم اضافت د تکبير طرف ته اوکړې شو، مراد د متکلم دا دې ﴿سبب تحريم ما حرم فی الصلوة التکبير﴾ يعنی کوم افعال چه په مانځه کښې دننه حرام دی دهغې د حرمت سبب تکبير دې، ځکه چه په تکبير سره انسان په مانځه

---

[1] تحريمها التكبير، کوم افعال چه فی حال الصلوة حرام دی دهغې د تحريم سبب دخول فی الصلوة دې ليکن چونکه دخول فی الصلوة موقوف دې په تکبير باندې، په دې وجه د تحريم نسبت تکبير طرف ته اوکړې شو، وهکذا قوله وتحليلها التسليم، نو ګويا په حديث کښې تحريم (چه مسبب دې) اووئيلې شو او سبب يعنی دخول فی الصلوة مراد واخستلې شو.

کښې داخلیږی نو ترڅو چه تکبیر بیا نه موندلې شی د صلوة تحقق به هم نه وی، لهذا تحریم افعال به هم نه شی موندلې، اصل کښې په دې حدیث کښې د مسبب د سبب دپاره استعاره کړې شوې ده، مسبب وئیلو سره کوم چه تحریم دې سبب یعنی دخول فی الصلوة مراد کړې شوې دې، مطلب دا شو چه د دخول فی الصلوة ذریعه یا طریقه صرف تکبیر دې، بغیر د تکبیر نه انسان په مانځه کښې نه شی داخلیدلې،
دویم قول ددې جملې په تشریح کښې دا دې چه تحریم په معنی د احرام، او د احرام معنی دخول فی حرمة الصلوة، په دې صورت کښې په عبارت کښې مجاز یا استعارې منلو ته ضرورت نشته او مطلب بالکل واضح دې یعنی د مانځه په حرمت کښې د دخول طریقه تکبیر دې د تکبیر په ذریعه انسان په حرمت الصلوة کښې داخلیدې شی، دا جمله په اصل کښې د جوامع الکلم نه ده رسول اللهﷺ ته چه د فصاحت او بلاغت کومه اعلی مرتبه حاصله وه دا دهغې یوه مونه ده، ﴿علی هذا القیاس﴾ وروستې جمله ﴿وتحلیلها التسلیم﴾ ددې تشریح ده، دلته هم استعاره د مسبب د سبب دپاره کړې شوې ده، خروج من الصلوة سبب تحلیل دې او تحلیل دهغې مسبب دې، پس دلته هم مسبب یعنی تحلیل وئیلو سره سبب یعنی خروج عن الصلوة مراد کړې شوې دې، پس مطلب دا شو چه د مانځه نه د بهر راتلو طریقه صرف تسلیم ده.

## په تحریمه کښې دوه مسئلې اختلافی:

﴿تحریمها التکبیر﴾ کښې دوه مسئلې دی، یو د تحریمه حکم، دویم هل یجوز الافتتاح بغیر التکبیر؟ یعنی د الله اکبر نه علاوه د بل ذکر په ذریعه هم مونځ شروع کولې شې یا نه؟
پس په دې باندې ځان پوهه کړه چه د ائمه اربعه اتفاق دې چه تحریمه فرض دې، خو بیا په دې کښې اختلاف دې چه د رکن درجه ئې ده که د شرط، د ائمه ثلاثه په نزد خو رکن دې، د امام طحاوی رحمه الله میلان هم دې طرف ته دې، او د احنافو په نزدې تحریمه شرط دې، د رکن او شرط فرق ظاهر دې چه رکن داخلی څیز وی او شرط خارجی، د احنافو دلیل آیت کریمه ﴿وذکر اسم ربه فصلی﴾ دې طریق استدلال تاسو په هدایه وغیره کښې لوستلې دې چه فاء د تعقیب دپاره ده، او آیت کریمه کښې د ذکر اسم رب نه مراد تحریمه دې چه د ذکر اسم رب نه معلومه شوه چه د ذکر اسم رب یعنی تحریمه نه پس مونځ شروع کیږی، لهذا تحریمه د مانځه نه خارج څیز دې، او دریم قول په دې مسئله کښې دا دې چه تکبیر تحریمه صرف سنت دې، لهذا دخول فی الصلوة بغیر د تکبیر نه صرف په نیت سره هم کیدې شی، ددې قائل امام زهری اوزاعی، ابن علیه او ابوبکر اصم رحمهم الله دی.
دویمه مسئله دا وه چه افتتاح صلوة بغیر د تکبیر نه صحیح ده او که نه پس په دې کښې اختلاف دې چه د ائمه ثلاثه او امام ابویوسف رحمه الله په نزد د تحریمه تحقق بغیر د تکبیر نه نه کیږی او د طرفین په نزد د هر داسې لفظ او ذکر سره مونځ شروع کول جائز دی، کوم چه خالص د الله پاک په تعظیم باندې دلالت کوی د دعاء معنی په هغې کښې نه شی موندلې، لهذا، الله اجل، الله اعظم، یا الرحمن اجل یا لا اله الا الله، سبحان الله وغیره الفاظو

سره مونځ شروع کول جائز دی، دلیل اوس پورته ذکر شوې دې ﴿ وذکر اسم ربه فصلی ﴾ معلومه شوه چه مطلق ذکر ددې دپاره کافی دې، بله دا چه د تکبیر معنی د تعظیم راځی لکه ﴿ وربک فکبیر الایة فلما راینه اکبرنه الایة ای عظمنه ﴾ پس مطلق ذکر اسم رب خو فرض شو، او خاص تکبیر یعنی الله اکبر وئیل دا د رسول اللهﷺ د مواظبت او د پورته حدیث په رنړا کښې چه کوم اخبار نه احاد دی واجب دې، او په غیر تکبیر تحریمی سره شروع کول مکروه تحریمی دی پس د کوم څیز ثبوت چه په دلیل قطعی سره دې یعنی مطلق ذکر صرف هم هغې ته دې فرض اووئیلې شی، او د کوم څیز ثبوت چه د احبار احاد نه دې یعنی تکبیر هغې ته دې واجب اووئیلې شی.

د ائمه ثلاثه بیا په دې کښې خپل مینځ کښې اختلاف دې چه د تکبیر مصداق کوم کوم الفاظ دی.، د امام مالک رحمه الله او امام احمد په نزد د تکبیر مصداق صرف الله اکبر دې، د امام شافعی رحمه الله به نزد الله اکبر او الله الاکبر یعنی معرف باللام او غیر معرف باللام دواړه دی، د امام ابویوسف رحمه الله په نزد ددې مصداق څلور الفاظ دی الله اکبر، الله الاکبر، الله کبیر، الله الکبیر، هغوی داسې فرمائی چه د الله پاک اسماؤ او صفاتو کښې د افعل او فعیل فرق نشته بلکه هلته افعل هم د فعیل په معنی کښې دی.

**تسلیم کښې دوه اختلافات دی :**

دویمه مسئله ﴿ تحلیلها التسلیم ﴾ هغه دا چه د تسلیم حکم څه دې؟ ائمه ثلاثه فرمائی چه څنګه تکبیر تحریمه فرض دې هم دغه شان تسلیم هم فرض دې، بغیر ددې نه به مونځ نه صحیح کیږی، احناف وائی چه د تسلیم د واجب درجه ده فرض نه دې جمهور په دلیل کښې دا فرمائی چه ﴿ تعریف الحاشیتین یفید الحصر ﴾ چه مسند مسند الیه چه کله دواړه معرفه وی نو د حصر فائده ورکوی، په ﴿ تحلیلها التسلیم ﴾ کښې هم مسند او مسند الیه معرفه دی، لهذا مطلب دا شو چه د مانځه نه د بهر راتلو طریقه په تسلیم کښې منحصر ده یعنی بغیر ددې نه د مانځه نه بهر راتلل صحیح نه دی، بلکه دا چه هغوی وائی چه څنګه د ﴿ تحریمها التکبیر ﴾ نه د تکبیر فرضیت ثابتیږی هم دغه شان د ﴿ تحلیلها التسلیم ﴾ نه د تسلیم فرضیت نه منئ زمونږ د طرف نه اصولی جواب دا دې چه د خبر واحد نه فرضیت نه شی ثابتیدلې باقی پاتې شوه مسئله د تحریمه نو ددې فرضیت مونږ د حدیث نه نۀ ثابتوو بلکه د آیت کریمه نه لکه څنګه چه مخکښې تیر شو.

بله دا چه یو خبره دا هم ده چه دا حدیث د خبر واحد کیدو نه علاوه د ابن عقیل راوی د وجې نه ضعیف دې، چه د هغه په باره کښې کلام مشهور دې، او دویمه خبره دا ده چه خپله د راوی حدیث علی رضی الله عنه مذهب دا نه دې، هغوی هم تسلیم لره غیر فرض منی لکه چه امام طحاوی رحمه الله فرمائیلې دی د سیدنا علی رضی الله عنه نه روایت دې ﴿ اذا رفع راسه من اخر السجدة فقد تمت صلوته ﴾ زمونږ یو مشهور دلیل هغه دې کوم چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مرفوعا نقل فرمائی ﴿ اذا قلت هذا او فعلت هذا فقد قضیت ما علیک اخرجه احمد فی مسنده ﴾ ددې حدیث نه د احنافو طریق استدلال ظاهر دې کوم چه تاسو په هدایه وغیره کښې

لوستلي دې هغوی په دې باندې دا اشکال کوی چه هغوی په ﴿اذا قلت هذا﴾ حدیث کښې زیادت د ابن مسعود رضي الله عنه د طرف نه مدرج دې د دې جواب دا دې چه ادراج خلاف اصل دې او که تسلیم هم کړې شی نو په امر غیر مدرک بالرائی کښې د صحابی قول د مرفوع په حکم کښې وی.
بیا د جمهورو په دې مسئله کښې اختلاف دې چه تسلمیتین فرض دی که تسلیمه واحده، د امام شافعی رحمه الله په نزد تسلیمه اولی فرض دې او ثانیه سنت دې، او مشهوره د امام احمد رحمه الله نه دا ده چه دواړه فرض دی، او زمونږ په نزد دوه اقوال دی یو دا چه دواړه واجب دی وقیل الاول واجب والثانی سنة امام مالک رحمه الله بالکل د تسلیم قائل هم نه دې صرف د تسیلمه واحده قائل دې. ددوی مسلک دا دې چه د امام او منفرد په حق کښې صرف یو سلام تلقاء وجهه مائلا الی الیمین فرض دې خو د مقتدی په باره کښې د هغوی په نزد په یو صورت کښې دوه او په یو صورت کښې درې سلامونه دی، اول سلام ښی طرفه، ته دویم تلقاء وجهه، او دریم سلام ګس طرف ته که ګس طرف ته څوک مصلی وی او که نه وی.
دلته د تکبیر تحریمه او تسلیم بحث قبل از وقت راغلې دې، ددې تعلق کتاب الصلوة سره دې خو چونکه دا مسئله په حدیث کښې موجود په دې وجه بیان کړې شوه، اوس چه کله اصل مقام راشی نو بیانولو ته به ضرورت نه راځی.
قوله:﴿عن سفیان﴾ د سهارنپوری رحمه الله تحقیق دا دې چه دا سفیان ثوری دې او صاحب د غایة المقصود په دې کښې تردد ظاهر کړې دې چه ثوری دې یا ابن عیینة ﴿ابن عقیل﴾ دا عبدالله بن محمد بن عقیل بن ابی طالب دې، د دوی په باره کښې کلام مشهور دی لکه څرنګه چه امام ترمذی رحمه الله هم په خپل کتاب کښې بیان فرمائیلې دی ﴿محمد بن الحنفیة﴾ دا محمد بن علی دی او حنفیه د هغوی مور ده چه دهغې نوم خوله دې د قبیله بنو حنیفه نه ده، بنو حنیفه د یمامه یو قبیله ده، سیدنا صدیق اکبر رضي الله عنه د فتنه ارتداد د وجې نه چه د اهل یمامه سره کوم قتال اوکړو او بیا ئې یمامه فتح کړه، په هغې کښې دا حنفیه یعنی د قبیله بنو حنیفه یو زنانه قید کیدو سره راغلې وه، صدیق اکبر رضي الله عنه دا علی رضي الله عنه ته هبه کړې وه، بیا د هغوی نه د هغوی ځوئې محمد بن الحنفیة پیدا شوه، علی رضي الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه که ستا نه روستو زما ځوئې پیدا شو نو زه به د هغه نوم ستاسو په نوم او د هغه کنیت ستاسو په کنیت باندې ږدم، په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته اجازت ورکړې وو، پس د هغوی نوم محمد دې لکه چه په سند کښې تصریح ده او کنیت ئې ابوالقاسم دې، رحمة الله تعالی علیه...

## بَابُ الرَّجُلِ يُجَدِّدُ الْوُضُوءَ مِنْ غَيْرِ حَدَثٍ

### باب دې په بیان د سړي کې چې نوی اودس کوې بغیر د حدث نه

### مسئلة مترجم بها کښې مذاهب ائمة:

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر ده، هغه ظاهره ده یعنی تجدید وضوء، هرمونځ په تازه اودس سره کول، ددې باب مقابل وړاندې تلو سره په لږه فاصله باندې ابواب المسح

علی الخفین نه پس متصلا راوړې دې چه دهغې الفاظ دی ﴿ باب الرجل یصلی الصلوات بوضوء واحد ﴾ د بعض علماء کرامو په نزد خو تجدید وضوء یعنی د هر مانځه دپاره مستقلا اودس کول فرض دی لکه څرنګه چه هلته به راشی د جمهور علماء ا ائمه اربعه په نزد تجدید وضوء صرف مستحب دې.

خو استحباب په کوم صورت کښې دې او کله دې په دې کښې څه تفصیل دې، امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې فرمایی چه د شوافعو په نزد استحباب تجدید کښې څلور اقوال دی، یو دا چه تجدید دهغه سړی په حق کښې مستحب دې چا چه په اول اودس سره یو مونځ کړې وی فرض یا نفل، دویم قول دا دې چه فرض مونځ ئې پرې کړې وی، دریم دا دې چه وضوء اول باندی ئې یو داسې عمل کړې وی کوم چه بغیر د طهارت نه جائز نه دی لکه مس مصحف او سجده تلاوت وغیره، څلورم قول دادې چه تخلل بالزمان وی یعنی د اول اودس او دویم اودس ترمینځه زمانه حائل وی څه فصل پکښې راغلې وی. یو اودس نه پس فورا دویم اودس کول بیکار دی، بله دا چه هغوی لیکلې دی چه د غسل تجدید مستحب نه دې او په تیمم کښې ئې دواړه روایتونه لیکلې دی، اصح دا دی چه ددې تجدید مستحب نه دې، او د احنافو په نزد تجدید د استحباب په صورت کښې دې چه یا خو اختلاف مجلس وی یا توسط العبادت بین الوضوئین وې، یعنی اول اودس سره ئې څه عبادت کړې وی، د حدیث الباب مضمون د باب السواک په ضمن کښې راغلې دې، دوباره د کلام حاجت نشته.

**فائده**: د صحیح مسلم په یو روایت کښې په کتاب الطهارت کښې د عثمانی غنی رضی الله عنه په باره کښې راغلې دی چه هغوی به هره ورځ په مختصر شان اوبو باندې غسل فرمائیلو.

[۶۲]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يَزِيدَ الْمُقْرِءُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَأَنَا لِحَدِيثِ ابْنِ يَحْيَى أَتْقَنُ، عَنْ غُطَيْفٍ، وَقَالَ مُحَمَّدٌ، عَنْ أَبِي غُطَيْفٍ الْهُذَلِيِّ، قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، فَلَمَّا نُودِيَ بِالظُّهْرِ تَوَضَّأَ فَصَلَّى، فَلَمَّا نُودِيَ بِالْعَصْرِ تَوَضَّأَ، فَقُلْتُ لَهُ: فَقَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ تَوَضَّأَ عَلَى طُهْرٍ كَتَبَ اللهُ لَهُ عَشْرَ حَسَنَاتٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا حَدِيثُ مُسَدَّدٍ، وَهُوَ أَتَمُّ.

**ترجمه**: ابوداود وئیلی دي چه زه حدیث ابن یحیی ته ډیر یقین کوم د غطیف نه، او وئیلی دي محمد: چه روایت کوي د ابو غطیف الهذلي نه، هغه وئیلی دی: ووم زه د عبد الله بن عمر سره، هرکله چه اذان اوشو د ماسپخین مانځه لپاره نو اودس ئې اوکړو او مونځ ئې اوکړو، هرکله چه اذان اوشو د مازیګر مانځه لپاره نو اودس ئې اوکړو، نو ما اووئیله هغه ته، اوس دنوی اودس کولو څه ضرورت دی نو هغه اووئیله: وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چه ویله به یې: چاچې اودس اوکړو دپاسه د پاکوالي نه نو وبه لیکي الله د هغه لپاره لس نیکۍ.

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ٤٤ (٥٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٣ (٥١٢)، (تحفة الأشراف: ٨٥٩٠) (ضعيف)

**توضیح السند :**

( **قوله ح وحدثنا مسدد الخ** ) د مصنف رحمه الله دوه استاذان دی، په اول سند کښې محمد بن یحیی، په دویم کښې مسدد، او په اول سند کښې شیخ الشیخ عبدالله بن یزید، او دویم کښې عیسی بن یونس، بیا دواړه یعنی عبدالله بن یزید او عیسی بن یونس روایت کوی د عبدالرحمن بن زیاد نه، لهذا عبدالرحمن ملتقی السندین شو دواړه سندونه په دې باندې راتلو سره یو ځائې شو. ( **عن غطیف** ) بعضو په ځائې د غطیف ابوغطیف وئیلې دې. دا راوی مجهول دې، لهذا په حدیث کښې ددې راوی د وجې نه ضعف راغلو.

## بَابٌ مَا يُنَجِّسُ الْمَاءَ

### باب دې په بیان د هغه څه کښې چې اوبه پلیتوي

### طهارة ماء ونجاست ماء کښې د ائمهٔ مذاهب :

اوس دلته ستیشن راغلو، ددې ځائې نه احکام المیاه شروع کیږی، د نجاست او طهارت ماء مسائل یعنی اوبه کله نجس کیږی او کله نه؟ کومې وی او کومې نه وی؟ د ماقبل سره ددې ربط ښکاره دې چه مصنف رحمه الله په شروع کښې فرضیت وضو بیان کړو چه کله دا خبره معلومه شوه چه اودس فرض دې نو اوس د اودس دپاره اوبه پکار دی، اوس ددې ځائې نه د پاک او ناپاک فرق بیانوی، چه معلومه شی چه په کومو اوبو باندې اودس کیدې شی، او په کومو اوبو باندې نه.

دا مسئله د معرکة الآرا مسائلو نه ده، په دې کښې ډیر اوږده اوږده بحثونه کولې شی مولانا عبدالحئی رحمه الله د طهارة ماء او د نجاسة ماء په مسئله کښې پنځلس اقوال لیکلې دی، خو مشهور په دې کښې څلور مذاهب دی کوم چه مونږ بیانوو،

(**رومبې مذهب**): اول مذهب د اهل ظواهرو دې هغوی وائی چه اوبه قلیل وی او که کثیر وی وقوع نجاست سره تر هغه وخته پورې نه ناپاکی کیږی تر څو چه اجزاء د نجاست په اجزاء ماء باندې غالب نه شی، د ظاهریه مسلک مولانا عبدالحئی او علامه عینی رحمه الله لیکلې دې او په حاشیه د کوکب کښې هم دی،

(**دویم مذهب**): دویم مذهب په دې کښې د مالکیانو دې کوم چه د ظاهریه مسلک ته زیات نزدې دې هغه دا چه ماء قلیل یا کثیر وقوع نجاست سره تر هغه وخته پورې نه ناپاک کیږی، تر څو چه د اوبو د اوصاف ثلاثه نه یو وصف متغیر نه شی، د اوبو اوصاف ثلاثه مشهور دی طعم، ریح، لون، د جمهورو او باقی ائمه ثلاثه دفرق بین القلیل والکثیر قائل دی چه قلیل په وقوع نجاست سره فورا ناپاک کیږی خو کثیر تر هغه وخته پورې نهٔ ناپاک کیږی تر څو چه یو وصف نه وی بدل شوې، بیا په ائمه ثلاثه کښې چه احناف هم پکښې دی، د دوی ترمینځه په دې خبره کښې اختلاف دې چه د قلت او کثرت معیار څه دې؟ په دې کښې شوافع او حنابله یو طرف ته دی او احناف بل طرف ته

(**دریم مذهب**): د شوافعو په نزد په قلتین باندې مدار دې کومې اوبه چه په مقدار د قلتین وی یا ددې نه زائد وی نو دا به کثیر وی او چه د قلتین نه کم وی نو هغه قلیل دی، په دې

باندې شوافع او حنابله متفق دي.

**(خلورم مذهب)**: د احنافو په نزد د قلت او کثرت په معیار کښې درې اقوال دي:

(۱) اول تحریک (۲) ثاني مساحة (۳) ثالث ظن مبتلی به.

(۱) د اول قول مطلب دا دې چه کوم حوض دومره لوئې وي چه که دهغې د يو طرف اوبو له حرکت ورکړې شي نو جانب اخر فورا حرکت اوکړي نو قليل دی او که فورا متحرک نه شي نو هغه کثير دي، بيا په دې کښې اختلاف دې چه د حرکت نه مراد حرکت بالوضوء دې يا حرکت بالغسل دواړه اقوال دي.

(۲) قول ثاني يعنی د مساحة مطلب دا دې چه په دې کښې د پيمائش اعتبار دې، چه کوم حوض يا داسې اووايه چه اوبه په خپل خوريدو کښې عشر فی عشر يعنی ده در ده، وی هغه کثير دی، او کوم چه ددې نه کم وی هغه قليل دی، مساحة والا قول کښې زمونږ په نزد نور اقوال هم شته.

(۳) قول ثالث دا دې چه په دې کښې مبتلی به رائې معتبر ده، که د مبتلی به ګمان ددې حوض په باره کښې دا دې چه ددې يو طرف ته د نجاست غورځيدو سره دويم طرف ته رسيږي نو بيا خو هغه قليل دې، او که د هغه ظن غالب وی چه د بلې غاړې پورې دهغې اثر نه رسيږی نو هغه کثير دې.

**(درې ابواب او درې مسلکونه)**: اوس ځان پوهه کړه چه دلته مصنف رحمه الله پرلپسې دوه ابواب قائم کړی دی، په اول باب کښې ئې حديث القلتين او په دويم باب کښې ئې حديث بئر بضاعه ذکر فرمائيلې دې، اول باب ګويا د شوافعو او حنابله مستدل دې، او وراندې د يو باب نه پس چه کوم دريم باب راځی دهغې په باره کښې وئيلې شی چه دهغې نه د مسلک حنفيه تائيد کيږی، د مصنف رحمه الله غرض اګر که د مسلک حنفيه تائيد نه وی خو فی الواقع هغه د احنافو په حق کښې دې لکه چه هلته به معلوم شی.

[۶۳]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَغَيْرُهُمْ، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَاءِ وَمَا يَنُوبُهُ مِنَ الدَّوَابِّ وَالسِّبَاعِ، فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ الْعَلَاءِ، وَقَالَ عُثْمَانُ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ الصَّوَابُ.

**ترجمه**: د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې، هغه وئيلی دی چه سوال اوشو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دهغه اوبو باره کښې چه راځې ورته ځاروې او درنده ګان، نو اووئيل نبي صلی الله علیه وسلم کله چه وې اوبه دوه قلې نو نه باروې پليتې (يعنی نجاست سره نه پليتيږی). او وئيلی دي ابوداود: دا لفظ د ابن العلاء دی، او وئيلی دي عثمان او حسن بن علي (عن محمد بن عباد

[1]: سنن النسائي/الطهارة ٤٣ (٥٢)، (تحفة الأشراف: ٧٢٧٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ٥٠ (٣٦٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٥ (٥١٧، ٥١٨)، سنن الدارمي/الطهارة ٥٥ (٧٥٨) (صحيح)

بن جعفر) (په ځائې د محمد بن جعفر)، وئيلي دي ابوداود: او هم دغه صحيح دی.

**تشريح: قوله: ﴿عن عبيدالله بن عبدالله بن عمر عن ابيه قال سئل الخ﴾** سيدنا عبدالله بن عمرؓ فرمائی چه رسول اللهﷺ نه د هغه اوبو په باره کښې تپوس اوکړې شو چه په هغې باندې وخت په وخت پرلپسې درندګان وغيره د اوبو څکلو دپاره راځی ددې نه مراد هغه اوبه دی چه د فلاة يعنی ځنګلو کښې په غارونو کښې دننه راجمع کيږی پس په يو روايت کښې د **﴿فی الفلاة﴾** تصريح ده، دا اوبه د دواب د څکلو د وجې نه سؤر سباع شو نو ګويا سوال د سؤر سباع په باره کښې دی چه هغه پاک دې يا ناپاک هغه استعمالولې شی يا نه؟ صحابه کرامؓ زيات تر د جهاد په سفرونو کښې وو، نو هغوی به داسې اوبه موندلې، په دې وجه دا سوال اوکړې شو، په دې باندې رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائيلو **﴿اذا كان الماء قلتين لم يحمل الخبث﴾** يعنی د کومو اوبو په باره کښې چه تاسو سؤال کوئ هغه دې اوکتلې شی چه د قلتين په اندازه دی او که نه، که د قلتين نه کم وی نو بيا خو پوهه شئ چه هغه ناپاکې دی، او که هغه قلتين وی نو پاکې دې ګويا مطلب دا شو چه قلتين دې نو کثير دې ناپاکې نه دې اوکه ددې نه کم دې نو قليل دې ناپاکې شوې لکه چه د شوافعو او حنابله مذهب دې، حديث القلتين د احنافو او مالکيانو خلاف دې لهذا ددې جوابات واورئ.

**په حديث القلتين کښې سندا ومتنا اضطراب:**

د دې حديث په سند او متن دواړو کښې اضطراب دې اول اضطراب فی السند باندې ځان پوهه کړئ دا حديث مصنفؒ په درې طرقو سره بيان کړې دې، او په هر طريق کښې اضطراب دې.

طريق اول د وليد بن کثير دې، په دې کښې د اضطراب تشريح دا ده چه اول خو د راويانو په دې کښې اختلاف دې چه د وليد شيخ څوک دې بعضو وئيلې دی چه محمد بن جعفر بن الزبير او بعضو محمد بن عباد بن جعفر بيان کړې دې هم دغه شان د وليد شيخ الشيخ کښې اضطراب دې، بعضو عبيدالله بن عبدالله ذکر کړې دې، او بعض عبدالله بن عبدالله خو مصنفؒ د وليد د شيخ الشيخ اضطراب نه دې بيان کړې دا د طريق اول اضطراب شو.

اوس پاتې شو دا سوال چه هغوی د اضطراب څه جواب ورکوی نو په دې کښې دوه جماعتونه دی، يو جماعت د دفع تعارض دپاره طريق ترجيح اختيار کړې دې، هم په دوی کښې امام ابوداؤدؒ او ابوحاتم رازی دې، پس خپله په کتاب کښې دی مصنفؒ فرمائی چه محمد بن عباد بن جعفر صحيح دی يعنی محمد بن جعفر بن الزبير غير صحيح دې او يو جماعت د دفع تعارض دپاره طريق جمع اختيار کړې ده، په هغوی کښې دارقطنی او بيهقی دی او هم د هغوی اتباع حافظ ابن حجر کړې ده، دا حضرات وائی چه دا روايت د دواړو نه دې، محمد بن جعفر بن الزبير نه هم او محمد بن عباد ابن جعفر نه هم، بيا وړاندې د وليد شيخ الشيخ په باره کښې حافظؒ فرمائی چه ابن الزبير خو روايت کوی د عبيدالله بن عبدالله نه، او محمد بن عباد روايت کوی د عبدالله بن عبدالله نه، يعنی د دواړو نه

روايت کول ثابت او محفوظ دی، او چه کله دا اختلاف ثابت او محفوظ دې نو ظاهره ده چه اضطراب نشته، د اضطراب مطلب خو دا دې چه روايت فی الواقع د يو نه روايت کړې شوې وی، خو بعض راويان يو څه وائی او بعض بل څه، او چه کله فی الواقع د دواړو نه روايت اومنلې شو، نو دواړو طريقو سره ثابت او محفوظ شو بيا اضطراب چرته پاتې شو.

زمونږ د طرف نه به جواب الجواب دا وی چه په تاسو کښې خو په دفع اضطراب کښې اضطراب واقع شو، بعض طريق جمع اختياروی او بعض طريق ترجيح، اوس د چا خبره تسليم کړې شی، لهذا تشفی اونشوه او د سند اضطراب په خپل حال باندې باقی پاتې شو، بله دا چه حافظ رحمه الله دا هم وئيلې دی چه محمد بن جعفر بن الزبير او محمد بن عباد بن جعفر دواړه ثقه دی، پس دا انتقال د ثقة نه دې د ثقة طرف ته کوم چه ضرر نه ورکوی، زمونږ وينا دا ده چه ددې دواړو ثقه کيدل بيله خبره ده زمونږ مقصود خو د راويانو اختلاف بيانول دی چه بعض راويان يو شان وائی او بعض بل شان، او دا صورت حال په عدم ضبط باندې دلالت کوی، هم په دې سره په سند کښې ضعف پيدا کيږی.

په دې حديث کښې طريق ثانی د محمد بن اسحاق ده، دوی دا حديث د محمد بن جعفر نه روايت کوی، په دې کښې اضطراب داسې دې چه دلته خو سند هم هغه شان دې کوم چه ذکر دې، او مصنف رحمه الله په دې طريق کښې هيڅ اختلاف سند نه دې بيان کړې خو مونږ ته معلومه ده چه په دې کښې هم اختلاف او اضطراب دې پس د دارقطنی په روايت کښې داسې دی ﴿ عن محمد بن اسحق عن الزهری عن عبيدالله عن أبی هريرة ﴾ او په يو طريق کښې دی ﴿ عن محمد بن اسحق عن الزهری عن سالم عن أبيه ﴾ اوګورئ اختلاف او اضطراب فی السند موندلې کيږی، بله دا چه محمد بن اسحق راوی متکلم فيه دې

د دې حديث طريق ثالث د عاصم بن المنذر دې لکه چه په کتاب کښې موجود دې، د عاصم نه روايت کونکی دوه دی، حماد بن سلمه او حماد بن زيد، حماد بن سلمه دا مرفوعا نقل کړې دې او حماد بن زيد دا موقوفا نقل کوی، د دارقطنی رائې دا ده چه د روايت مرفوعه په مقابله کښې روايت موقوفه صحيح دې، اوس د سند په درې واړو طريقو کښې اضطراب معلوم شو

## (اضطراب فی المتن)

دويم اضطراب په دې حديث کښې په اعتبار د متن دې، هغه داسې چه په حديث الباب کښې خو دی ﴿ قلتين ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ قدر قلتين او ثلاث ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ اذا بلغ الماء قلة ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ أربعين قلة ﴾ دا اضطراب فی المتن شو، چه هر کله دا صورت حال شو نو استدلال څنګه صحيح کيدې شی

## د حديث القلتين جوابات:

د حديث القلتين زمونږ د طرف نه ډير جوابونه کړې شوې دی!

۱: **مسلک الاضطراب:** (۱) یو جواب هم دا دې چه په دې کښې سندا او متنا اضطراب دې لکه چه اوس د تفصیل نه معلومه شوه.

۲: **مسلک التضعیف:** پس یو لوئې جماعت ددې تضعیف کړې دې لکه ابن عبدالبر، ابن العربی، علی بن المدینی، امام غزالی، او هم دغه شان ابن دقیق العید او ابن تیمیه، علامه زیلعی لیکلې دی چه ابن دقیق العید په کتاب الامام کښې په دې حدیث باندې تفصیلی کلام دې، او ددې تمام طرق ئې جمع کړې دی د هر یو ئې بیل بیل وضاحت کړې دې چه دهغې حاصل دا راوځی چه دا ضعیف دې، هسې دا حدیث په صحاح سته کښې په سنن اربعه کښې دې، ددې نه علاوه په صحیح ابن خزیمه، او صحیح ابن حبان او مسند احمد کښې هم دی، امام ترمذی رحمه الله خلاف عادت په دې حدیث باندې حکم د صحت یا حسن نه دې لګولې.

۳: **مسلک الإجمال:** یعنی په دې حدیث کښې اجمال دې او حدیث مجمل نه استدلال صحیح نه دې، دا جواب د امام طحاوی رحمه الله دې هغوی وائی چه قلة په څو معنو کښې استعمالیږی، ددې معنی قامة رجل، رأس جبل، هر اوچت څیز او د اوښ د قب په معنی کښې هم راځی، بله دا چه قلة د جره یعنی د منګی په معنی هم راځی، او بیا په منګی کښې هم څو قسمونه وی څه غټ وی او څه لوئې، هغوی وائی چه دلته قلة د جره په معنی کښې ده او ددې نه مراد جره کبیره ده چه دهغې مقدار دلته دوه نیم سوه او د یو قول په بناء درې سوه رطل دې او د قلتین مجموعی مقدار پنځه سوه یا شپږ سوه رطل دې، مونږ وایو چه قلة خو هر څنګه وی وړه هم او لویه هم، هغوی وائی چه د مقام هجر قلة مراد ده کومه چه په عرب کښې مشهوره ده، پس په یو روایت کښې د قلال هجر تصریح ده لکه چه د ابن عدی په کتاب الکامل کښې دی، علامه زیلعی رحمه الله جواب ورکړو چه ددې په سند کښې مغیره بن سقلاب دې کوم چه منکر الحدیث دې.

۴: **مسلک التاویل:** یعنی حدیث مؤول دې د حدیث معنی هغه نه ده کومه چه تاسو کوئ چه اوبه نۀ ناپاکیږی، بلکه د ﴿ لم یحمل الخبث ﴾ معنی ده چه ماء قلیل اګر که د دوه قلو برابر ولې نه وی هغه د نجاست متحمل نه وی، هغه نه برداشت کوی او نجس کیږی او په دې کښې د قلتین هیڅ تخصیص نشته بلکه مراد ترې نه هر قلیل اوبه دی، دا جواب صاحب هدایه اختیار کړې دې هغوی وائی چه صاحب هدایه خو حنفی دې، مونږ وایو علامه طیبی رحمه الله چه شافعی دې او مشهور شارح د مشکوة دې هغوی هم ددې معنی احتمال لیکلې دې.

۵: **مسلک المعارضة بالروایات الصحیحة:** یعنی مونږ ددې حدیث په مقابله کښې صحیح او

---

(۱) زمونږ استاذ محترم مولانا امیر احمد صاحب رحمه الله په درس ترمذی کښې په حدیث قلتین باندې کلام کولو سره فرمائیلې وو چه مونږ چه ددې حدیث کوم جوابونه ورکوو په هغې کښې به د هر جواب نه په مسلک سره تعبیر کوو، مثلا مسلک الاضطراب، مسلک الاجمال وغیره پس د هغوی په اتباع کښې مونږ هم دا طرز اختیار کړو، یغفر الله لنا ولهم)

قوي روایات ددې په خلاف کښې پیش کوو، چه دهغې په صحت کښې هیڅ کلام نشته. ۱: یو حدیث المستقیظ من النوم چه دهغې مضمون دا دې چه کله انسان د اوده کیدو نه پس پاسیږي نو د اوبو په لوښي کښې دې لاس بغیر د وینځلو نه نه داخلوي په دې کښې د لاس وینځلو ممانعت مطلقا کړې شوې دې که د هغه اوبو مقدار قلتین وي یا کم په ډیرو کورونو کښې په لوښو کښې قلتین بلکه دهغې نه هم زیاتې اوبه په دې زمانه کښې جمع وي ددې باوجود دا حکم ورکولې شي، د قلتین او ما دون القلتین هیڅ تفریق نشته. ۲: بله دا چه په یو صحیح روایت کښې دی کوم چه په ابوداؤد کښې په دریم باب کښې راروان دې چه ﴿ لا یبولن احدکم فی الماء الدائم ﴾ دا حدیث د صحیحین بلکه د ټولو صحاح ستة دې، په دې حدیث کښې په ماء راکد کښې که هغه قلتین وي او که زائد وي مطلقا د متیازو کولو نه منع کړې شوې ده، که د قلتین حکم د مادون القلتین نه مختلف وې نو دهغې طرف ته ضرور اشاره کیدل پکار وو چه خلق په تنګسیا کښې اخته نه شي.

۲: **مسلک الإلزام بإهمال بعض الحدیث** : دا حدیث په اصل کښې د سؤر سباع په باره کښې راغلې دې، لکه چه د باب په شروع کښې مونږ بیان کړې دی او د حدیث مقتضی دا ده چه سور سباع دې ناپاک وي حال دا چه شوافع دهغې د ناپاکئ قائل نه دی، لهذا د حدیث په جزئین کښې د یو إعمال او د بل إهمال لازم شو.

۷: **مسلک مخالفة الإجماع** : یعنی دا حدیث په یو لحاظ سره د اجماع خلاف دې وضاحت ددې دا دې لکه چه په طحاوي کښې دی چه یو حبشي په بئر زمزم کښې غورځیدلو سره مړ شوې وو نو هغه وخت سیدنا عبدالله بن زبیر رضی الله عنه او ابن عباس رضی الله عنهما دا فیصله فرمائیلې وه چه ددې پوره اوبه دې راویستلې شي په دې وخت کښې هلته نور صحابه کرامو هم موجود وو، چا هم په دې باندې انکار او نه فرمائیلو، او ښکاره ده چه د بئر زمزم اوبه به د قلتین نه زیاتې وې بیا هم ناپاکې شوې معلومه شوه چه قلتین هم قلیل دې، کثیر نه دې.

د شوافعو د طرف نه چا دا جواب ورکړې دې چه کیدې شي چه د نزح بئر حکم د خروج دم د وجې نه ورکړې شوې وي یعنی ددې حبشي د بدن نه به وینه بهیدلې وي، مونږ وایو هم دا خبره صحیح ده خو چه کله هغه قلتین وې نو ولې ناپاکې شوې هغوی ددې نه علاوه نور هم جوابات ورکوي، بیهقي وغیره ددې قصې په روایت باندې سندا کلام کړې دې چه منقطع دې او بعضو وئیلې دی چه خپله اهل مکه ددې واقعې نه خبر نه دی دا قصه د هغوی په نزد مشهور نه ده، اهل کوفه ته ددې خبره څنګه اوشو او حال دا چه ددې واقعې تعلق د مکې سره دې تفصیل دې په اماني الاحبار کښې اوکتلې شي.

حافظ ابن القیم رحمه الله د ابوداؤد په شرح تهذیب السنن کښې په حدیث القلتین باندې ډیر تفصیلي کلام کړې دې او په شروع کښې ئې لیکلې دی چه ددې حدیث نه استدلال کول پنځلس مقامات او منازلو لره عبور کولو باندې موقوف دی کوم چه تر اوسه پورې نۀ دی عبور شوې، پس هغوی لیکلې دی چه د اوبو په مسئله کښې عموم بلوی یعنی ابتلاء عام ده ټولو ته ددې حاجت دې او حدیث القلتین لره روایت کوونکی د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه

علاوه ځوک هم نه دی، په مشهورو روايتونو کښې صرف هم هغه ددې راوي دې، بله دا چه دا حديث د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په شاګردانو کښې سوا د عبدالله او عبيدالله نه بل ځوک نه روايت کوی، فأين سالم وأين نافع، يعنی سالم او نافع کوم چه د هغوی نه په کثرت سره روايت کونکی دی هغوی چرته لاړل، هغوی ولې دا حديث د هغوی نه نۀ روايت کوی وغيره وغيره ډير سوالونه جوابونه ئې کړی دی.

## د حديث القلتين په سلسله کښې د حضرت ګنګوهی رائې:

زمونږ حضرت ګنګوهی رحمه الله د حديث القلتين په باره کښې يو ځانله مسلک اختيار فرمائيلې دې، هغوی فرمائی چه په نجاست ماء کښې اصل د مبتلی به د رائې اعتبار دې، مولانا يحيی صاحب رحمه الله په کوکب کښې تحرير فرمائی چه کله په ترمذی شريف کښې حديث القلتين راغلو نو حضرت په خپلو شاګردانو باندې يو مختصر شان حوض اوکنستلو کوم چه طولا او عرضا تقريبا شپږ ليشتې وو او د کنستلو نه پس قلتين اوبه په هغې کښې واچولې شوې بيا دهغې د يو طرف تحريک اوکړې شو چه په هغې سره جانب آخر متحرک نه شو نو په دې باندې حضرت اوفرمائيل چه حديث القلتين زمونږ خلاف نه دې په دې وجه د هيڅ جواب کولو حاجت نشته، د حضرت ګنګوهی طبيعت د حديث د توجيهاتو طرف ته ښه چليدو په نسبت د تضعيف روايت يا د رواة طرف ته د وهم منسوب کولو، او حضرت ته د احاديثو په توجيهه کښې ډيره ملکه حاصله وه. بهر حال د حضرت ګنګوهی دا جواب دې او حضرت په دې باندې نور هم تفصيلی کلام فرمائيلې دې په کوکب کښې دې اوکتلې شی خو زمونږ د حضرت شيخ رحمه الله ميلان دې طرف ته نه وو لکه چه د حاشيه کوکب د کتلو نه معلوميږی.

[۶۴] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ أَبُو كَامِلٍ ابْنُ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْمَاءِ يَكُونُ فِي الْفَلَاةِ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه**: عبيد الله بن عبد الله بن عمر د خپل پلار نه روايت کوي، يقيناً رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوشوه په باره د اوبو کښې په دښتو کښې نو ذکر ئې کړه معنی د هغې

[۶۵] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ الْمُنْذِرِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ فَإِنَّهُ لَا يَنْجُسُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ وَقَفَهُ عَنْ عَاصِمٍ.

**ترجمه**: عبيد الله بن عبد الله بن عمر وايي: حديث بيان کړی دی ماته زما پلار، بيشکه رسول الله ﷺ وئيلی دی: کله چه وي اوبه دوه قلې نو دغه نه نجس کيږي. وئيلی دي ابوداود: حماد بن زيد موقوف روايت کړی ئې دی د عاصم نه.

(۱): سنن الترمذي/الطهارة ۵۰ (۶۷)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۷۵ (۵۱۷، ۵۱۸)، (تحفة الأشراف: ۷۳۰۵) (حسن صحيح)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۳۰۵) (صحيح)

# بَابُ مَا جَاءَ فِي بِئْرِ بُضَاعَةَ

## باب دې په بیان د کوهي د بضاعه کې

د أحكام المياه په سلسله کښې دا هغه باب ثانی دې چه په هغې کښې مصنف رحمه الله د مالکیانو مستدل ذکر فرمائیلې دې په اول باب کښې د شوافع او حنابله مستدل تیر شو

[۶۶]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّهُ قِيلَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ، وَهِيَ بِئْرٌ يُطْرَحُ فِيهَا الْحِيَضُ وَلَحْمُ الْكِلَابِ وَالنَّتْنُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمَاءُ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ بَعْضُهُمْ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ رَافِعٍ.

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه نه روایت دې، یقیناً شان دادی چه اووئیل شو رسول الله ﷺ ته، ایا مونږ اودس اوکړو د کوهي د بضاعه نه، او دا یو کوهی دی چه غورځولې شي په هغې کښې کپړې د حیض او غوښې د سپو او بدبویه شیان؟ نو اووئیل رسول الله ﷺ اوبه پاکې دې هیڅ شی ئې نه نجس کوی. وئیلی دي ابوداود: وئیلی دي بعضو دعبدالله بن رافع په ځائې عبد الرحمن بن رافع.

**تشریح**: ۱: ﴿عن أبي سعيد الخدري أنه قيل لرسول الله ﷺ الخ﴾ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړې شو چه آیا د بئر بضاعه د اوبو نه اودس کول پکار دی یا نه، حال دا چه هغه یو داسې کوهې دې چه په هغې کښې گندگئ، د حیض گنده جامې، او دغه شان مردار ځناور سپی او نور گنده څیزونه په هغې کښې اچولې شی نو په دې باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه اوبه طاهر او مطهر دی هیڅ څیز هغې لره نه نجس کوی.

**قوله**: ﴿ انتوضاء ﴾ دا صیغه د جمع متکلم او واحد مذکر حاضر دواړو سره روایت کړې شوې دې، خو اصح صیغه د متکلم ده، او صیغه د واحد حاضر خلاف اولی او طریقې د سوال نه خلاف ده د مشرانو نه داسې سوال کول مناسب نه دی ﴿ بضاعة ﴾ د باء په ضمې او کسرې سره دواړو طریقو سره منقول دې، مشهور ضمه ده دا د مدینې طیبې په کوهیانو کښې یو مشهور کوهي دې بعض وائی چه بضاعة صاحب بئر د کوهی د مالک نوم دې، او بعضو وئیلې دی چه د هغه ځائې نوم دې چرته چه دا کوهي وو، نقل دی چه رسول الله ﷺ د خپل اودس غسالة او لاړې په هغې کښې اچولې وې او رسول الله ﷺ به ددې کوهی اوبو لره مریض ته د صحت په نیت باندې د څکلو دپاره فرمائیل، ﴿ یطرح ﴾ یعنی غورځولې شی خو ددې مطلب دا نه دې چه قصدا په کښې اچولې شی او خلق داسې کوی بلکه دا دې چه ددې کوهی محل وقوع په داسې ښکته زمکه کښې وه چه د هوا او سیلاب په ذریعه به گندگئ هغې ته غورځیدلې، ځکه چه د اوبو د خرابولو دپاره هیڅ پوهه انسان نه تیاریږی، غیر مسلم هم داسې نه شی کولې پاتې لا مسلمان. شارحینو داسې لیکلې دی، حیض جمع ده د

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ٤٩ (٦٦)، سنن النسائي/المياه ١ (٣٢٧، ٣٢٨)، (تحفة الأشراف: ٤١٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥/٣، ١٦، ٣١، ٨٦) (صحيح)

حیضة بالکسر چه دهغې معنی ده د حیض (په وینه ګنده) کیږي.

**د حدیث بئر بضاعة نه د مالکیانو استدلال او د نورو ائمة ددې نه اعتذار:**

**﴿ قوله الماء طهور ولا ینجسه شئ ﴾** د اوبو په مسئله کښې د ائمه اربعه نه د ټولو نه زيات توسع د مالکیانو په نزد دې، ددې حدیث نه هغه حضرات استدلال کوی چه په حدیث کښې د ماء قلیل او کثیر هیڅ تفریق نشته، د ټولو اوبو په باره کښې داسې وئیلې شوې دی چه هغه ناپاک کیږی نه خو په دې کښې اشکال دې چه د تغیر وصف نه پس خو د هغوی په نزد هم نجس کیږی په دې وجه هغوی اووئیل چه د تغیر وصف والا شکل مستثنی دې ځکه چه په دې حدیث کښې د دارقطنی په یو روایت کښې **﴿إلا ما غلب علی ریحه أو طعمه﴾** زیادت موجود دې او اوس مطلب دا دې چه ماء قلیل وی یا کثیر ناپاک کیږی نه مګر دا چه ددې یو وصف بدل شی، دویم فریق دا وائی چه ددې حدیث نه ستاسو استدلال د دارقطنی نه د استثناء والا روایت نه بغیر ممکن نه دې او د دارقطنی راویت ضعیف دې هغه قابل استدلال نه دې.

شوافعو او حنابله د خپل مسلک د وجې نه اووئیل چه په دې حدیث کښې د اوبو نه مراد مطلق اوبه نه دی بلکه هغه اوبه مراد دی کوم چه مسئول عنه دی یعنی ماء بئر بضاعة، لهذا مطلب دا شو چه د بئر بضاعة اوبه پاکې دی **﴿ لا ینجسه شئ ﴾** او دهغې وجه دا بیانوی چه بئر بضاعه لوئې قسم کوهې وو، ددې اوبه په هیڅ حال کښې هم د قلتین نه کمې نه وې، پس هم په دې وجه رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه هیڅ خیز دا نه ناپاکوی، خو د تغیر الوصف نه پس خو بالاجماع ناپاکه کیږی په دې وجه هغه صورت خارج دې.

احنافو په دې حدیث کښې د خپل مسلک په رڼړا کښې اووئیل چه خبره خو هم دغه شان ده ځنګه چه شوافع وائی چه په دې حدیث کښې د اوبو نه د بئر بضاعة اوبه مراد دی، خو په حدیث کښې چه په دې باندې کوم د عدم تنجس حکم لګیدلې دې هغه په دې وجه نه دې چه د بئر بضاعة اوبه قلتین دی بلکه ددې وجې نه دې چه د هغه کوهی اوبه په وجه د کثرت استعمال په منزله د جاری وې او جاری اوبه په وقوع د نجاست سره پلیتیږی نه، پس شارحینو لیکلې دی چه ډیر باغونه د بنو ساعده به ددې کوهی په ذریعه خړوب کولې شو، وائی چه هغه پنځه باغونه وو، د اوبو د جاری کیدو مطلب دې دا او نه ګنړلې شی چه هغه د نهر په شان جاری وو بلکه مطلب هغه دې کوم چه پورته اولیکلې شو، ددې کوهی د اوبو جریان امام طحاوی‌رحمه‌الله د واقدی نه نقل کړې دې، هغوی دا وائی چه د واقدی قول حجت نه دې، مونږ وایو چه د واقدی قول کم از کم په تاریخ کښې حجت دې، په احکام شرعیه کښې دې نه وی او دا خبره یعنی ددې کوهی د اوبو جاری کیدل د تاریخ یعنی د تاریخ بئر بضاعة سره متعلق دی.

**حدیث بئر بضاعة په باره کښې د امام طحاوی‌رحمه‌الله رائې:**

یو خبره دلته ډیره اهم ده چه دهغې طرف ته امام طحاوی‌رحمه‌الله اشاره فرمائیلې ده، هغه دا چه د مالکیانو استدلال ددې حدیث نه هغه وخت صحیح دې چه کله په حدیث کښې دا مراد

وی چه مذکوره نجاست په دې کښې فی الحال موجود دی ځکه چه د هغوی مسلک هم دا دې چه اوبه که قلیل وی او که کثیر وی د وقوع نجاست نه پس د نجاست په هغې کښې د کیدو سره تر هغه وخته پورې په اوبو کښې تغیر نه وی پیدا شوې نه نجس کیږی او دلته داسې نشته ځکه چه دا خبره عند العقل محال ده چه په یو کوهی کښې دې دومره ډیر نجاسات واقع شی او بیا دې دهغې اوبه متغیر نه شی بلکه تغیر ضروری دې، او د تغیر نه پس اوبه د ټولو په نزد نجس کیږی، لهذا د حدیث معنی دا متعین ده چه د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم مراد دا دې چه یا رسول الله ﷺ بئر بضاعه داسې کوهې دې چه په هغې کښې داسې قسم نجاستونه پریوځی، او بیا د کثرت استعمال د وجې نه هغه ټول اوځی نو اوس ددغې نجاستونو په وتلو باندې آیا مونږ هغه پاکې اوګنړو یا ناپاکې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل نه بلکه پاکې دې اوګنړلې شی، لهذا د ﴿الماء طهور لا ینجسه شئ﴾ معنی دا شوه چه د کوهی د ناپاکه کیدلو نه پس هغه د همیشه دپاره ناپاک نه وی بلکه د إخراج نجاست نه پس پاک کیدې شی لکه چه په یو بل حدیث کښې ئې ارشاد فرمائیلې دې ﴿المؤمن لا ینجس﴾ ددې دا معنی نه ده چه مومن نه ناپاک کیږی بلکه مراد دا دې ﴿لا یبقی نجسا أی بعد التطهیر﴾ علی هذا القیاس د کوهی اوبه، دا مطلب نه دې چه ناپاک کیږی نه بلکه ناپاک باقی نه پاتې کیږی، لهذا د مالکیانو استدلال ددې حدیث نه بې محل دې هذا ما قاله الطحاوی زه وایم هم دغه شان د شافعیه چه ددې حدیث کوم عذر د خپل مسلک مطابق بیان کړې وو چه د بئر بضاعة اوبه قلتین وې په دې وجه نجس نجس نه شوې، د امام طحاوی رحمہ اللہ د پورته تقریر نه پس دا اعتذار هم هباء منثورا شو.

**(اشکال):** اوس به د امام طحاوی رحمہ اللہ په دې تقریر باندې دا اشکال وی چه که مراد دا دې چه د اخراج نجاست نه پس صحابه کرام رضی اللہ عنہم دا سوال کوی چه اوبه پاکې دی او که ناپاکې نو اوس د سوال څه خبره پاتې شوه، چه کله هر کله ترې نه نجاست ویستلې شو نو پاک شو؟

**(جواب):** جواب دا دې چه د اخراج نجاسات نه پس هم دا مقام محل د سوال دې ځکه چه د عقل او قیاس تقاضه دا ده چه کوهې که هر یو وی د یو ځل ناپاکه کیدو نه پس سره د اخراج نجاست د بیا دپاره هغه کله هم پاک نه شی ځکه چه په کوهی کښې دننه چه کومه خټه او خاوره ده او د کوهی څلورو واړو طرفونو ته چه کوم دیوالونه دی هغه یو ځل ناپاک شوی دی، د اخراج نجاست او نزح ماء باوجود هغه دیوالونه او خاوره څنګه پاک کیدې شی لهذا یو ځل کوهې ناپاک کیدو سره د همیشه دپاره ناپاک کیدل پکار دی، نو ددې خیال رسول الله ﷺ تردید اوفرمائیلو چه د قیاس تضاضا که هر څه وی خو حکم شرعی او مسئله دا ده چه که کوهې د نجاست په غورځیدلو باندې ناپاک شی نو اخراج نجاست او نزح ماء نه پس به ددې کوهی د اوبو د پاکوالی حکم کولې شی

د حدیث د پورته ذکر شوې تشریح او تقریر نه پس حدیث بئر بضاعة د احنافو د مستدل بللو مستحق دې پس علامه عینی رحمہ اللہ یو ځائې کښې لیکلې دی وعلیه عمل الحنفیة ای بعد تعین المراد، والله أعلم.

يوه خبره دا هم معلومه شوه چه دحديث الباب نه په خپل عموم باندې په ائمو كښې دچا په نزد هم استدلال نه دې كړې، بلكه هر يو امام په دې كښې دخپل مسلك مطابق قيد لګولې او استدلال يا اعتذار ئې كړې دې.

[٦٧] () حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيَّانِ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَلِيطِ بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ رَافِعٍ الْأَنْصَارِيِّ ثُمَّ الْعَدَوِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُقَالُ لَهُ: إِنَّهُ يُسْتَقَى لَكَ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ، وَهِيَ بِئْرٌ يُلْقَى فِيهَا لُحُومُ الْكِلَابِ وَالْمَحَايِضُ وَعَذِرُ النَّاسِ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وسَمِعْت قُتَيْبَةَ بْنَ سَعِيدٍ، قَالَ: سَأَلْتُ قَيِّمَ بِئْرِ بُضَاعَةَ عَنْ عُمْقِهَا. قَالَ: أَكْثَرُ مَا يَكُونُ فِيهَا الْمَاءُ إِلَى الْعَانَةِ، قُلْتُ: فَإِذَا نَقَصَ؟ قَالَ: دُونَ الْعَوْرَةِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَدَّرْتُ أَنَا بِئْرَ بُضَاعَةَ بِرِدَائِي مَدَدْتُهُ عَلَيْهَا، ثُمَّ ذَرَعْتُهُ فَإِذَا عَرْضُهَا سِتَّةُ أَذْرُعٍ، وَسَأَلْتُ الَّذِي فَتَحَ لِي بَابَ الْبُسْتَانِ، فَأَدْخَلَنِي إِلَيْهِ، هَلْ غُيِّرَ بِنَاؤُهَا عَمَّا كَانَتْ عَلَيْهِ؟ قَالَ: لَا. وَرَأَيْتُ فِيهَا مَاءً مُتَغَيِّرَ اللَّوْنِ.

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدري نه روايت دې، هغه وئيلى دى: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه او هغه ته وئيل كېده، شان دادى چه راوړلى شي اوبه ستا لپاره د كوهي د بضاعه نه، او هغه يو كوهى دى چه غورځولى شي په هغې كښې غوښې د سپو، او كپړې د حيض، او پليتې د خلقو، نو اووئيله رسول الله ﷺ: بيشكه اوبه پاكې دي نشي پليتولى هغې لره هيڅ څيز. وئيلى دي ابوداود: ما اوريدلي دي د قتيبة بن سعيدنه، هغه وئيلى دى: ما پوښتنه اوكړه د څوكيدار دكوهي د بضاعه نه د ژروالي د هغې، نو هغه اووئيل: اكثر اوبه چه په هغې كښې دي تر نامه نه لاندې پورې وي، نو ما اووئيل: نو كله چه اوبه كمې شي، نو هغه ووئيل: لاندې د عورت نه. وئيلي دي ابوداود: او ما اندازه ولګوله د بئر بضاعه په خپل څادر نو خور مې كړو په هغې باندې، بيا ما په ګزونو كړو نو دهغې سورې شپږ ګزه (لاسه) وو، او ما پوښتنه اوكړه د هغه كس نه چه ماته ئې د باغ دروازه كولاو كړه او زه ئې ورته وردننه كړم، آيا ددې بناء بدله شوه دهغې نه چه دا ورباندې جوړ شوى وو؟ نو هغه اووئيل نه، او ما په هغې كښې اوبه اوليدلې چه رنګ ئې بدل شوې وو.

**تشريح**: (راوى حديث): **قوله:** ﴿ عن عبيدالله بن عبدالله ﴾ ددې حديث په سند كښې دا راوى دې د هغه په باره كښې وئيلي شوې دى چه مجهول دې، بعضو وئيلي دى چه مستور دې، او د هغوى په نوم كښې اختلاف دې، بعضو وئيلي دى عبيدالله، او بعض وائى عبدالله، بيا د پلار په باره كښې هم دوه اقوال دى يو عبدالله او بل عبدالرحمن، دغه شان څلور اقوال شو، ۱: عبيدالله بن عبدالله، ۲: عبيدالله بن عبدالرحمن، ۳: عبدالله بن عبدالله، ٤: عبدالله بن عبدالرحمن او پنځم قول دا دې چه د هغه نوم عبد الرحمن بن رافع دې

**حديث بئر بضاعة د صحت او سقم په اعتبار سره** :

دا حديث بئر بضاعة د سنن اربعه روايت دې په صحيحين كښې نشته امام ترمذي رحمه الله دې نه

---

۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤١٤٤) (صحيح)

حسن وئيلي دي او امام احمدرحمه الله ددې تصحيح کړې ده، خو ابن القطان د مذکوره راوی د وجې نه دې حديث ته معلل وئيلي دي، او دا مخکښې بيان شوې ده چه په دې حديث کښې د دارقطني په يو روايت کښې ﴿إلا ما غلب علي ريحه أو طعمه أو لونه﴾ زيادت دې او دا هم ذکر شو چه دا زيادت ضعيف دې، ځکه چه په دې کښې رشدين بن سعد دې کوم چه متروک دې.

قوله:﴿ قال أبوداؤد وسمعت قتيبة ﴾ قتيبهرحمه الله چه د مصنفرحمه الله شيخ دې فرمائي چه ما د بئر بضاعة د نګران نه ددې کوهي د ژور والي په باره کښې تپوس اوکړو چه په دې کښې زيات نه زيات څومره اوبه وی نو هغه اووئيل ﴿ الى العانة ﴾ يعنی د نامۀ پورې او وې وئيل چه کله کمې شی نو تقريبا د کونډو پورې باقی وی.

د دې نه پس بيا امام ابوداؤدرحمه الله فرمائي چه کله زما مديني طيبې ته حاضری اوشوه نو زه هم ددې کوهي د کتلو دپاره لاړم، امام ابوداؤدرحمه الله دا اهتمام اوفرمائيلو چه د خپل څادر په ذريعه ئې دهغې عرض ناپ کړو، د ناپ کولو شکل دا بيانوی چه اول ما خپل څادر ددې کوهی په خلې باندې خور کړو، بيا چه څومره حصه په کوهی باندې وه هغه مې ناپ کړه چه په هغې سره عرض معلوم شو، کوم چه شپږ ذراع وو، او فرمائي چه ما ددې باغبان نه چا چه زه دې کوهی ته رسولې ووم سوال اوکړو چه په دې کوهی کښې څه تعميری تغير شوې دې يا که هم په هغه بناء باندې قائم دې کوم چه په عهد نبوی کښې وو؟ نو هغه اووئيل چه دا هم په هغه حال باندې دې، امام ابوداؤدرحمه الله فرمائي چه ما هغې ته په وربښکاره کيدو سره اوکتل نو دهغې اوبه مې متغير اللون بيا موندلې، په باغونو کښې چه کوم کوهيان وی په هغې کښې چونکه د اونو پاڼې غورځيږی په دې وجه د اوبو په رنګ کښې ضرور تغير راځی، په ظاهر کښې دا هم دهغې اثر وو.

دلته يو مسئله ده هغه دا چه ماء مخلوط بشئ طاهر سره طهارت جائز دې او که نه؟ ائمه ثلاثه وائي چه که اوبو سره يو پاک څيز ملاؤ شی چه په هغې سره د اوبو وصف متغير شی لکه صابون يا د خطمی اوبه نو په دې سره طهارت وضوء او غسل جائز نه دې، د احنافو په نزد جائز دې، او هم دا يو روايت د امام احمدرحمه الله نه دې پس په دې کتاب کښې په ابواب الغسل کښې يو مستقل باب ددې سلسلې راروان دې، باب فى الجنب يغسل راسه بالخطمى.

امام ابوداؤدرحمه الله او د هغوی شيخ قتيبه دواړو چه ددې کوهی د تحقيق حال کوم اهتمام فرمائيلې دې هغه په دې وجه چه دا د رسول اللهصلى الله عليه وسلم د زمانې يو مبارک کوهې وو، د مديني طيبې په مشهورو کوهيانو کښې دې او د طهارت ماء او نجاست ماء يو مسئله شرعيه ددې سره تړلې وه لهذا ددې شايان شان ددې سره معامله اوکړې شوه

او دا هم بيانول غواړی چه هغه يو لوئې کوهې وو چه په هغې کښې اوبه ډيرې وې، په ظاهر کښې دا وئيل غواړی چه د قلتين نه کمې نه وې هم په دې وجه رسول اللهصلى الله عليه وسلم دهغې د عدم نجاست حکم اوفرمائيلو، مونږ وايو چه د هغه کوهی د اوبو د کثرت نه مونږ انکار نه کوو سره د کثرت نه خبره هم هغه ده کومه چه احناف کوی ماءه كان جاريا فى البساتين... او په اصل کښې د هغه کوهی د عدم تنجس هم دا وجه ده

# بَابُ الْمَاءِ لاَ يُجْنِبُ

## باب دې په بيان د دې کې چې اوبه نه نجس کيږي

### د ترجمة الباب تشريح او د هغې غرض :

دا ترجمة بلفظ الحديث ده، وړاندې په حديث کښې هم دا الفاظ راروان دي، د احقر رائې دا ده چه چونکه د نجاست دوه قسمونه دی، حسيه او معنويه، نو په تيرو دوؤ ابوابو کښې د هغه اوبو ذکر وو کومې چه د نجاست حسيه نه متاثر شوې وی او دلته د هغه اوبو حکم بيانوی کوم چه د نجاست معنويه نه متاثر شوې وی، د نجاست معنويه نه مراد حدث او جنابت دې يعنی هغه اوبه چه دهغې په ذريعه حدث اصغر يا د حدث اکبر ازاله کړې شوې وی هغه اوبه ناپاکې دی که پاکې، او تاسو ته معلومه ده چه داسې اوبو ته په اصطلاح د فقهاء کرامو کښې ماء مستعمل وئيلې شی نو ګويا د مصنف رحمه الله غرض په دې باب کښې د ماء مستعمل حکم بيانول دی.

### په ماء مستعمل کښې مذاهب ائمة :

د ماء مستعمل مسئله اختلافی ده، د امام مالک رحمه الله مشهور قول دا دې چه طاهر او مطهر دی، د امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله راجح قول دا دې چه طاهر دی مطهر نه دی، او د احنافو په نزد درې روايتونه دی مشهور او راجح هم دا دې چه طاهر دی او مطهر نه دی دا د امام صاحب او امام محمد رحمه الله روايت دې، او بل روايت د امام صاحب د کوم راوی چه امام ابويوسف رحمه الله او حسن بن زياد رحمه الله دې هغه دا دې چه نجس دی، خو د حسن بن زياد نه نجاست غليظه او د ابويوسف رحمه الله نه نجاست خفيفه منقول دی.

[٦٨] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: اغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَفْنَةٍ، فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَتَوَضَّأَ مِنْهَا أَوْ يَغْتَسِلَ، فَقَالَتْ لَهُ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْمَاءَ لاَ يُجْنِبُ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې هغه وائی چه غسل اوکړو بعضو بيبيانو د نبي صلى الله عليه وسلم په يوه لويه کاسه کښې، نو نبي صلى الله عليه وسلم راغی چه اودس اوکړي دهغې نه او يا غسل اوکړي، نو هغې ورته اووئيل: اې د الله رسوله! زه جنابت کښې وم، نو اووئيل رسول الله صلى الله عليه وسلم: بيشکه اوبه نه جنب کيږي.

**تشريح**: **قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي جَفْنَةٍ﴾ د بعضو نه مراد د ابن عباس رضي الله عنه ترور سيده ميمونه رضي الله عنها ده لکه چه د دارقطنی وغيره په روايت کښې دی، او چونکه دې دهغې محرم وو په دې وجه د کور خبره نقل کوی چه دهغې حاصل دا دې چه يو ځل سيده ميمونه رضي الله عنها په يو لوښی کښې په اوبو سره غسل اوفرمائيلو،

---

(١): سنن الترمذي/الطهارة ٤٨ (٦٥)، سنن النسائي/المياه (٣٢٦) بلفظ: «لا ينجسه شيء»، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٣ (٣٧٠، ٣٧١)، (تحفة الأشراف: ٦١٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٥، ٢٤٨، ٣٠٨، ٣٣٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٥٧ (٧٦١) (صحيح)

دهغې نه پس هم په دې اوبو سره د غسل یا اودس دپاره رسول اللهﷺ تشریف راوړلو، په دې باندې میمونې رضی الله عنها عرض اوکړو چه دا زما د غسل نه بچ شوې اوبه دی او ما په دې غسل د جنابت کړې دې،

مطلب ئې دا وو چه تاسو دا مه استعمالوئ، نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ ان الماء لا یجنب﴾ یعنی که جنب اوبه استعمال کړی نو کومې اوبه چه باقی پاتې شوې دی هغې ته به جنبی نه شی وئیلې هغه خو په خپل حال یعنی طهارت باندې قائمې دی.

## د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت :

اوس سوال دا دې چه د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت څنګه دې، ځکه چه په ترجمې سره خو د ماء مستعمل حکم بیانول دی نو آیا دا باقی اوبه مستعمل وې؟ جواب دا دې چه دا اوبه خو واقعی مستعمل نه وې خو رسول اللهﷺ چه کوم الفاظ ارشاد اوفرمائیل ﴿الماء لا یجنب﴾ ددې نه دا مفهوم راوځی، ځکه چه د اوبو د نه جنب کیدو څه مطلب؟ هم دا مطلب دې چه د جنابت په اثر او په جنابت کښې استعمالولو سره اوبه نه متاثر کیږی، ګویا ترجمة الباب د حدیث نه مترشح کیږی، او دا هم وئیلې شی چه کله محدث یا جنبی د اوبو په لوښی کښې لاس اوهی نو په دې لحاظ سره به هغه اوبه مستعمل شی، ځکه چه لاس وهونکی جنبی دې او دلته به هم په ظاهر کښې هم دغه شان شوې وی.(۱) چه میمونې رضی الله عنها به د غسل په شروع کښې خپل لاس په هغې کښې اچولې وی او په لاسونو کښې ښکاره ده چه د جنابت اثر وو لهذا دا اوبه مستعمل شوې، غرض دا چه د اثبات ترجمه دپاره صریح مطابقت ضروری نه دې بلکه د ترجمې طرف ته په حدیث کښې اشاره کیدل کافی دی.

**قوله :** ﴿ فی جفنة ﴾ حضرت په بذل کښې ددې توجیه داسې فرمائیلې ده ﴿أی مدخلة یدها فی جفنة ﴾ یعنی په لوښی کښې لاس داخلولو سره ئې اوبه اخستلې او د دارقطنی په روایت کښې د ﴿فی﴾ په ځائې لفظ د ﴿من﴾ دې، هغه خو بالکل صفا دې تاویل ته محتاج نه دې، حضرت چه کوم تاویل فرمائیلې دې دهغې وجه دا ده چه دلته ظرفیت حقیقی مستبعد دې ځکه چه دا خبره په فهم کښې راتلونکې نه ده چه میمونې رضی الله عنها دې په خانک کښې دننه په ناسته غسل کړې وی او بیا دې هم رسول اللهﷺ دهغې نه د اودس یا غسل اراده فرمائی دا د نظافت بالکل خلاف ده ﴿لا یجنب﴾ دا باب إفعال نه هم کیدې شی په دې صورت کښې به بضم الیاء وی، او د مجرد نه هم کیدې شی، مجرد کښې ددې مصدر د باب فتح او سمع او کرم درې واړو نه راځی.

(۱) خو ویونکې وئیلې شی چه ظاهر دا ده چه میمونې رضی الله عنها به دې لوښی کښې لاس د وینځلو نه پس ننویستلې وی د وینځلو نه مخکښې لوښی ته لاس دننه کول د هغوی د شان نه بعید دی خو د رسول اللهﷺ الفاظ ﴿إن الماء لا یجنب﴾ په واقعه باندې په ښه طریقې سره هغه وخت منطبق کیږی چه کله هغوی لاس په لوښی کښې د غسل نه مخکښې داخل کړې وی او د الفاظ نبوی د وجې نه ترجمة الباب ثابتیږی

# بَابُ الْبَوْلِ فِي الْمَاءِ الرَّاكِدِ

## باب دې په بيان د متيازو کې په ولاړو اوبو کې

[۶۹]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ فِي حَدِيثِ هِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ ثُمَّ يَغْتَسِلُ مِنْهُ".

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، چه رسول الله ﷺ وئيلی دی: متيازې دې نه کوي يو ستاسو نه په اوبو ولاړو کښې چه بيا غسل کوي دهغې نه.

### حديث الباب د احنافو واضح دليل:

دا هغه دريم باب دې چه دهغې په باره کښې مخکښې ذکر شوې وو چه په دې سره د احنافو د مسلک تائيد کيږی په حديث الباب کښې په ماء دائم کښې د متيازو کولو نه منع کړې شوې ده او دا چه متيازې کولو سره دې هغه ناپاکې نه کړې شی، اوس مونږ وايو چه اوګورئ رسول الله ﷺ مطلقا په ماء دائم کښې د متيازو کولو نه منع اوفرمائيله اوس هغه ماء دائم قلتين هم کيدې شی او دهغې نه کمې او زياتې هم د رسول الله ﷺ نه په دې کښې هيڅ تخصيص نه دې کړې شوې ابن دقيق العيد فرمائی چه دا حديث د احنافو مستدل دې، او هغوی دا هم ليکی!

امام شافعی رحمه الله دا په مادون القلتين باندې محمول کوی، امام مالک رحمه الله چونکه د ﴿ الماء طهور لا ينجسه شئ ﴾ والا روايت نه استدلال کوی او ګويا هغه د هغوی موافق دې، او ښکاره ده چه حديث الباب دهغې خلاف دې ځکه چه ددې نه معلوميږی چه اوبه نجس کيږی، په دې وجه مالکيانو ددې حديث حل دا راويستلو چه دا صرف په کراهت باندې محمول کړې شی يعنی اګرچه ناپاکې به نه شی خو کول ئې نه دی پکار، مکروه دی، شوافعو د خپل مسلک مطابق دا تاويل اوکړو چه دا حديث په هغه اوبو باندې محمول دې کومې چه ما دون القلتين وی، د قياس تقاضه خو دا وه چه د شوافعو او حنابله دواړو جواب يو وو ځکه چه دواړه د قلتين قائل دی، خو امام احمد رحمه الله دا نه دی فرمائيلې، بلکه هغوی يوه بله خبره فرمائيلې ده هغه دا چه مقدار د قلتين اګرچه په وقوع د نجاست سره نه نجس کيږی تر څو چه پکښې تغير نه وی واقع شوې، خو د انسان متيازې ددې نه مستثنی دی، يعنی د انسان د بول په وقوع سره قلتين هم ناپاکه کيږی، خو ددې نه علاوه د نورو نجاستونو حکم هم هغه دې کوم چه امام شافعی رحمه الله فرمائی چه قلتين به ناپاک نه وی او دهغې نه کم به ناپاک وی، غرض دا چه دا حديث د جمهورو په نزد مؤول او مقيد دې په خلاف د احنافو چه د هغوی خو دليل دې.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٥٢٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ٦٨ (٢٣٩)، صحيح مسلم/الطهارة ٢٨ (٢٨١، ٢٨٢)، سنن الترمذي/الطهارة ٥١ (٦٨)، سنن النسائي/الطهارة ٤٦ (٥٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٥ (٣٤٣)، مسند احمد (٣١٦/٢، ٣٤٦، ٣٦٢، ٤٦٤)، سنن الدارمي/الطهارة ٥٤ (٧٥٧) (صحيح)

## د طهارة الماء په مسئله کښې د احنافو دلائل :

بله دا چه د احنافو د مسلک تائيد د حديث المستقيظ من النوم نه هم کيږي ځکه چه دهغې حاصل هم دا دې کوم چه د حديث الباب دې چه په لوښی کښې چه کومې اوبه پرتې دی کومې چه ولاړې اوبه دی په هغې کښې دې لاس بغير د وينځلو نه داخل نه کړې شی، دلته هم د قلتين او د مادون القلتين هيڅ فرق نه دې بيان شوې، او هم دغه شان د ولوغ الکلب روايات هم مطلق دی، او دا درې واړه احاديث کوم چه د احنافو مستدل او ماخذ دې د صحت او قوة په اعتبار سره د حديث القلتين په مقابله کښې ډير اوچت دی متفق عليه دی ددې په صحت کښې هيڅ کلام نشته.

قوله:﴿ لا يبولن أحدكم ﴾ د جمهورو په نزد د بول تخصيص نشته، د غائط حکم هم دا دې بلکه نور هم زيات سخت دې، هم دغه شان فی الماء الدائم کښې ټول صورتونه داخل دی که براه راست په ماء دائم کښې متيازې اوکړی او که هغې ته نزدې اوکړی چه بهيدلو سره هغې ته راشی يا په يو لوښی کښې متيازې اوکړی او دهغې لوښی نه په هغې کښې واچوی او دا ټول ځيزونه عقلی بديهی او ښکاره دی بل څه دليل ته محتاج نه دی، خو دلته ظاهريه خپل ظاهريت ښه ښودلې دې او هغوی وئيلې دی چه دا حکم د بول سره خاص دې غائط په دې کښې داخل نه دی هم دغه شان براه راست په ماء دائم کښې متيازې کول ممنوع دی په لوښی وغيره کښې که اوکړی اوبيا ئې په دې کښې واچوی نو هيڅ باک نشته، ددې وجه صرف جمود علی الظاهر دې.

## د باب د دواړو احاديثو په مفهوم او مقتضی کښې فرق :

قوله: ﴿ ثم يغتسل فيه ﴾ ددې حديث نه معلومه شوه چه ممانعت د جمع بين الغسل والبول دې يعنی اول په ماء دائم کښې متيازې اوکړی او بيا دهغې نه غسل اوکړی، منفردا د هر يو ممانعت نه دې، پس په ماء دائم سره غسل کولو کښې باک نشته او دويم حديث کوم چه وړاندې راروان دې په هغې کښې په ځائې د ثم واؤ دې او د منه په ځائې فيه دې ﴿ ولا يغتسل فيه ﴾ په دې دويم حديث کښې د نهی تعلق د بول فی الماء الدائم او اغتسال فی الماء الدائم هر يو سره دې، يعنی په ماء دائم کښې دې نه متيازې کوی او نه دې په هغې کښې داخليدو سره غسل کوی په دواړو صورتونو کښې به اوبه ګنده کيږی.

شرح السند : ﴿ قوله فی حديث هشام ﴾ دا په دې سند کښې يو نوې لفظ راغلې دې کوم چه عام طور نه وی ددې په مطلب کښې دوه اقوال دی، د حضرت ګنګوهی په تقرير کښې دی ﴿ ای فی حديث هشام الطويل والمذکور ههنا جزء منه ﴾ يعنی احمد بن يونس وائی چه زائده ماته د هشام يو طويل حديث بيان کړې دې چه دهغې يوه حصه هغه ده کومه چه دلته ذکر کړې شوه. دويم مطلب ددې هغه دې کوم چه حضرت په بذل کښې ليکلې دې ﴿ فی حديث هشام ای من حديثه لامن حديث غيره ﴾ مطلب دا دې چه د زائده په دې حديث کښې ډير شيوخ دی د چا نه چه زائده ته دا حديث رسيدلې دې، دهغوی نه يو هشام هم دې او زائده وائی چه زه چه دلته کوم حديث بيانوم، هغه د خپل شيخ هشام نه نقل کوم، اګرچه دا حديث د نورو

شیوخو نه هم ماته رارسیدلي دي.

[۷۰]( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ وَلَا يَغْتَسِلْ فِيهِ مِنَ الْجَنَابَةِ".

**ترجمه**: د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې، هغه وئیلي دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وئیلي دي: متیازې دې نه کوي یو ستاسو نه په اوبو ولاړو کښې، او غسل دې نه کوي په هغې کښې د جنابت نه.

## بَابُ الْوُضُوءِ بِسُؤْرِ الْكَلْبِ

### باب دې په بیان د اودس کې په جوټې د سپي

### سؤر سباع کښې مذاهب ائمة :

کلب د سباع بهائم نه دې نو ګویا ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د سؤر سباع مسئله بیانول غواړي او خاص طور سره د کلب او هرة جوټه لکه چه په بل باب کښې به راشي.

د سؤر سباع په باره کښې د ائمه اربعه اختلاف دې، امام مالک رحمه الله د ټولو حیواناتو جوټې ته پاک وائي، خو د سؤر خنزیر په باره کښې د هغوی دوه اقوال دی، طاهر او غیر طاهر، د امام شافعي رحمه الله په نزد هم سؤر سباع پاک دې خو هغوی صرف د دوؤ څیزونو استثناء ذکر کړې ده خنزیر او سپې، د احنافو په نزد سؤر سباع مطلقا ناپاک دې صرف هرة دهغې نه د یو خاص وجې نه مستثنی ده چه دهغې باب وړاندې راروان دې د حنابله په نزد په سور سباع کښې دواړه اقوال دی د طهارت هم او د عدم طهارت هم.

### په حدیث الباب کښې درې اختلافي مسائل :

د دې تمهید نه پس ځان پوهه کړه چه په دې ترجمة الباب کښې درې مسئلې دی، اول دا چه سؤر کلب پاک دې یا ناپاک، دویمه دا چه په دې سره اودس جائز دې او که نه، دریم دا چه د ولوغ کلب نه پس د لوښي د پاکولو طریقه څه ده؟

پس ځان پوهه کړه چه د سپي جوټه د جمهورو علماء کرامو اود ائمه ثلاثه ؤ په نزد ناپاک ده، د مالکیانو په دې کښې اختلاف دې، مشهور قول دا دې چه سؤر کلب او خنزیر بلکه د ټولو سباع جوټه ناپاکه ده، په فیض الباری کښې دی چه ګویا د مالکیانو په نزد د سؤر سباع باب د سره شته دې نه.

هسې خو په دې کښې د مالکیانو درې اقوال دی، ۱: مطلقا ناپاک د جمهورو په مثل، ۲: مطلقا پاک دې، ۳: د کلب ماذون الاتخاذ (چه دهغې پالل جائز وی) جوټه پاکه ده او د غیر ماذون جوټه ناپاک ده، څلورم قول هغه دې کوم چه ابن الماجشون المالکي ته منسوب دې، هغوی په کلب بدوی او حضری یعنی په کلي وال او ښارئي سپي کښې فرق کوی د کلب بدوی جوټه طاهر او د حضری غیر طاهر دي.

مسئله ثانیه یعنی جواز الوضوء بسؤر الكلب، دا په اول مسئله باندې متفرع ده، جمهور

[۱]: سنن ابن ماجه/الطهارة ۲۵ (۳٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٤١٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/٤٣٣) (حسن صحيح)

علماء ائمه ثلاثه د چا په نزد چه د سپي جوټه ناپاکه ده د هغوی په نزد په دې سره اودس هم جائز نه دې،

او د امام مالک رحمه الله په نزد (۱) د یو قول په بناء باندې په دې سره اودس جائز دې، دلته دوه اقوال نور دی، امام زهري رحمه الله فرمائي: يجوز ان لم يكن غيره... چه که د سؤر کلب نه علاوه نورې اوبه وی نو بیا جائز دی،

(۲) دویم قول د سفیان ثوري رحمه الله دې هغوی فرمائي: هذا ماء وفي النفس من شئ يتوضا به وتيمم يعني هغوی فرمائي چه سؤر کلب اوبه دی خو د نفس د طرف نه په دې کښې شک دې، لهذا په دې باندې دې اودس هم اوکړي او ورسره دې تیمم هم اوکړي.

په مسئله ثالثه کښې دا اختلاف دې چه د احنافو په نزد خو ددې لوښي د پاکولو هم هغه طریقه ده کومه چه د نورو نجاستونو د پاکولو ده، او جمهور علماء ائمه ثلاثه ددې باب د روایاتو په بناء باندې دا فرمائي چه په دې کښې تسبیع کیدل پکاردي یعنی اووۀ کرته وینځل، او چونکه په یو روایت کښې کوم چه راروان دې په هغې کښې تثمین ذکر دې په دې وجه د حنابله په نزد د اووۀ کرتو په ځائي اته کرته وینځل ضروري دی، بیا چونکه د مالکیانو په نزد د سپي جوټه پاکه ده په دې وجه د هغوی په نزد د غسل إناء حکم استحبابي دې وجوبي نه دې، د باقي ائمه په نزد وجوبي دې بلکه دا چه شوافع او حنابله د تتریب یعنی یو ځل خاوره باندې د مړلو قائل دی او مالکیان ددې قائل نه دی، حاصل دا چه حضرات ائمه ثلاثه کوم چه په روایات الباب باندې د عمل قائل دی او هغه منسوخ وغیره نه مني هغوی داحادیثو د اختلاف د وجې نه خپل مینځ کښې مختلف دی ددې ټولو عمل په دې ټولو روایاتو باندې نه دې، خو حنابله د حدیث په ټولو اجزاء باندې عمل کړې دې پس هغوی صرف تسبیع نه بلکه د تثمین قائل دی، هم دغه شان د تتریب هم قائل دی، دا خو شو مسائل او د ائمه اختلافات، اوس پاتې شوه خبره د دلیل.

[۷۱](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، فِي حَدِيثِ هِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "طُهُورُ إِنَاءِ أَحَدِكُمْ إِذَا وَلَغَ فِيهِ الْكَلْبُ أَنْ يُغْسَلَ سَبْعَ مِرَارٍ، أُولَاهُنَّ بِتُرَابٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ قَالَ أَيُّوبُ، وَحَبِيبُ بْنُ الشَّهِيدِ، عَنْ مُحَمَّدٍ.

**ترجمه**: د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې، چه نبي صلی الله علیه وسلم اووئیل: پاکوالی د لوښي د یو کس ستاسو کله چه سپې خوله ووهوي په هغې کښې چه اووینځلی شي اوه ځلې اول ځل په خاورو باندې. وئیلی دي ابوداود: هم دارنګه وئیلی دي ایوب او حبیب بن الشهید عن محمد.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤٥٢٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ۳۳ (۱۷۲)، صحيح مسلم/الطهارة ۲۷ (۲۷۹)، سنن الترمذي/الطهارة ٦٨ (۹۱)، سنن النسائي/الطهارة ٥١ (٦٣)، المياه ٦ (۳۳٤)، ۷ (۳۳۸)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۳۱ (۳٦۳، ۳٦٤)، موطا امام مالك/الطهارة ٦، (۳٥)، مسند احمد (۲/۲٤٥، ۲٦٥، ۲۷۱، ۳۱٤، ۳٦۰، ٤۲٤، ٤۲۷، ٤٤۰، ٤۸۰، ٤۸۲، ٥۰۸) (صحيح)

## د احنافو د طرف نه د احادیث الباب توجیهات:

جمهور د احادیث الباب نه استدلال کوی ځکه چه دا احادیث د هغوی په موافقت کښې دی
زمونږ د طرف نه ددې ډیر جوابونه کړې شوې دی،
۱: اول دا چه په دې روایاتو کښې اضطراب دې په بعض کښې تسبیع او په بعض کښې
تثمین، او دا دواړه قسم روایتونه په صحاح کښې موجود دی او د دارقطنی په یو روایت
کښې د ابوهریره رضی الله عنه نه مرفوعا روایت کړې شوې دې په هغې کښې تخییر مذکور دې
داسې ﴿ يغسل ثلاثا أو خمسا أو سبعا ﴾ بله دا چه بعض راویانو تترتیب ذکر کړې دې او
بعضو نه، په بعض روایاتو کښې دی ﴿ أولهن بالتراب ﴾ او په بعض کښې دی ﴿ أخراهن
بالتراب ﴾ او په بعض کښې دی ﴿ إحداهن ﴾ غرض دا چه په دې روایاتو کښې اضطراب په
مختلف اعتباراتو سره موندلې شی،
۲: دویم جواب دا دې چه دا روایات دې په استحباب باندې محمول کړې شی زمونږ په نزد
هم یو قول د استحباب تسبیع دې، او مشهور جواب دا دې چه دا احادیث زمونږ په نزد
منسوخ دی، دا روایات د هغه زمانې دی چه کله په امر کلاب کښې تشدید وو تردې چه د
قتل کلاب حکم ورکړې شوې وو او روستو دا تشدید او د قتل حکم منسوخ شو، لهذا دا
دویم تشدید یعنی اووۀ کرته د وینځلو حکم هم منسوخ شو او قرینه د نسخ دا ده چه په
دارقطنی کښې د ابوهریره رضی الله عنه نه موقوفا روایت کړې شوې دی چه د ولوغ کلاب نه پس به
ئې لوښې درې کرته وینځلو پس د راوی عمل د خپل بیان کړی روایت خلاف علامت وی د
منسوخ کیدو، دا د نسخ والا جواب امام طحاوی رحمه الله په وضاحت سره بیان کړې دې.
خو په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله اعتراض کړې دې او د طحاوی جوابات ئې فردا فردا
رد کړې دی، بیا علامه عینی رحمه الله د حافظ ایرادات بیل بیل رد فرمائیلې دی، یو د مناظرې
شان شکل دې کوم چه حضرت په بذل کښې ذکر فرمائیلی دی.

د حافظ اصل اشکال په نسخ باندې دې چه د قتل کلاب حکم د هجرت په ابتداء
کښې وو،اود تسبیع وغیره روایات روستنی دی، ځکه چه دهغوی راویان سیدنا
ابوهریره رضی الله عنه متاخر الاسلام دی، په اوومه هجرئ کښې ئې اسلام قبول کړو حاصل دا چه د
قتل کلاب حکم په ابتداء د هجرت کښې وو، بیا څه ورځې پس منسوخ شوې وو، او دا د
تسبیع والا روایات د روستو زمانې دی لهذا دهغې د منسوخ کیدو څه مطلب؟

زمونږ د طرف نه جواب ورکړې شوې دې چه اولا خو تاخر اسلام نه په تاخر روایت
باندې استدلال صحیح نه دې، دویم دا چه د ابوهریره رضی الله عنه عادت لکه چه مشهور بین
المحدثین دې د ارسال وو، یعنی هغه د یو قدیم الاسلام صحابی نه حدیث اوریدلو سره
بغیر د واسطې نه هغه نقل کولو، او دغه شان روایت ته مرسل صحابی وائی نو دلته هم دا
احتمال دې چه هغوی دا روایات د یو قدیم الاسلام صحابی نه اوریدلو سره بیان کړی وی.
او فی الواقع دا روایات هم دهجرت د ابتدائی زمانې وی، او ددې تائید ددې نه هم کیږی
چه د ابوداؤد هم ددې باب په آخر کښې د عبدالله بن مغفل رضی الله عنه روایت راروان دې چه په

هغې کښې هغوی فرمائی چه رسول اللهﷺ د قتل کلاب حکم فرمائیلې وو ﴿ ثم قال مالهم ولها الخ ﴾ وئیل دا دی چه ستاسو په قول د قتل کلاب حکم په ابتداء د هجرت کښې وو، حال دا چه عبدالله بن مغفل رضی الله عنه متاخر الاسلام صحابی دې نو بیا هغوی دا څنګه نقل کړی، ظاهره دا ده چه دلته به هم دا وئیلې شی چه دا مرسل صحابی دې، د یو قدیم الاسلام صحابی نه ئې اوریدلو سره نقل کړی.

## نظر طحاوی او په دې باندې اشکال او جواب:

امام طحاوی رحمه الله په طریقه د نظر فرمائیلې دی چه اوګورئ سپې که په یو لوښی کښې بول وبراز اوکړی نو هلته تسبیع د چا په نزد هم نشته نو آیا د ولوغ کلب حکم ددې دواړو نه زیات سخت دې، چه هلته اووهٔ کرته وینځل ضروری نه دی نو دلته هم نه دی کیدل پکار، په دې باندې حافظ صاحب اووئیل چه دا قیاس دې په مقابله د نص کښې، علامه عینی رحمه الله ددې جواب ورکړو چه دا قیاس نه دې بلکه استدلال بدلالة النص دې.

قوله:﴿ قال أبوداؤد وكذلك قال ايوب الخ ﴾ ددې حدیث مدار په محمد بن سیرین باندې دې، بیا د هغوی شاګردان مختلف دی، په شروع کښې هشام راغلې وو، ددې نه پس مصنف رحمه الله دوه نور ذکر فرمائیلې دی ایوب او حبیب چه څنګه هشام اووئیل هم دغه شان دې دواړو هم اووئیل اوس سوال دا دې چه تشبیه په کومه خبره کښې ده، ځکه چه دلته د راویانو دوه اختلافات دی، یو دحدیث د موقوف اومرفوع کیدو، دویم د ﴿ اولهن بالتراب ﴾ ځکه چه بعضو وئیلی دی چه: ﴿ السابعة بالتراب ﴾ لکه څرنګه چه د قتاده په روایت کښې راروان دی، زما په نزد تشبیه په دې دویم اختلاف کښې دې.

مطلب دا شو چه د محمد بن سیرین په شاګردانو کښې چه څنګه هشام ﴿ اولهن بالتراب ﴾ نقل کړې دې هم دغه شان ایوب او حبیب هم ﴿ اولهن بالتراب ﴾ نقل کړې دې.

[۷۲](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمَانَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، جَمِيعًا عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، بِمَعْنَاهُ وَلَمْ يَرْفَعَاهُ، وَزَادَ: وَإِذَا وَلَغَ الْهِرُّ غُسِلَ مَرَّةً.

**ترجمه**: روایت دی د ابوهریره نه په معنی ددې سره، او دې دواړو نه دی مرفوع کړی، او زیات کړی ئې دی: کله چه څله اووهې پیشو په لوښې کښې نو وینځلی به شي یو ځل.

**تشریح د سند**: قوله:﴿ قوله ح وحدثنا محمد بن عبيد ﴾ دلته دوه سندونه دی اول سند کښې د مصنف رحمه الله شیخ الشیخ معتمر دې او په دویم سند کښې حماد بن زید او بیا دا دواړه روایت کوی د ایوب سختیانی رحمه الله نه لهذا ایواب مجتمع السندین شو ﴿ ولم يرفعاه ﴾ دا دې هغه دویم اختلاف یعنی معتمر او حماد د ایوب سختیانی نه دا حدیث په ځائې د مرفوعا موقوفا نقل کړې دې او دا ایوب د محمد بن سیرین دریم شاګرد دې ګویا ایوب او هشام په

(1): حديث محمد بن عبيد تفرد به أبو داود، تحفة الأشراف (١٤٤٢٦)، وحديث مسدد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ٦٨ (٩١)، تحفة الأشراف(١٤٤٢٦،١٤٤٥١)، وقد أخرجه:حم (٢/٤٨٩) (صحيح)

دي خبره باندې خو متفق دی چه هغوی په حديث کښې ﴿ اولهن بالتراب ﴾ ذکر کړې دې خو په هشام او ايوب کښې په اعتبار د رفع او وقف اختلاف دې، هشام دا روايت مرفوعا او ايوب موقوفا ذکر کړې دې.

[٧٣]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ سِيرِينَ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا وَلَغَ الْكَلْبُ فِي الْإِنَاءِ فَاغْسِلُوهُ سَبْعَ مِرَارٍ، السَّابِعَةُ بِالتُّرَابِ" قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأَمَّا أَبُو صَالِحٍ، وَأَبُو رَزِينٍ، وَالْأَعْرَجُ، وَثَابِتٌ الْأَحْنَفُ، وَهَمَّامُ بْنُ مُنَبِّهٍ، وَأَبُو السُّدِّيِّ عَبْدُ الرَّحْمَنِ، رَوَوْهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا التُّرَابَ.

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، يقيناً نبي د الله صلى الله عليه وسلم وئيلى دى. کله چه خُله اووهي سپى په لوښې کښې نو هغه ووينځئ اوه ځله، اوم ځل په خاورو.

**تشريح**: قوله ﴿ حدثنا موسى بن اسماعيل الخ ﴾ د ابن سيرين په شاګردانو کښې دا د قتادة رحمه الله روايت دې د مخکښې تير شوو شاګردانو په روايت کښې ﴿ اولهن بالتراب ﴾ او د قتادة په روايت کښې ﴿ السابعة بالتراب ﴾ دې.

﴿ قال ابوداؤد واما ابو صالح الخ ﴾ ددې ځائې نه ئې هغه راويان بيان کړى دى چه د هغوى په روايت کښې تراب مطلقا ذکر شوې نه دې ﴿ وابو السدى ﴾ ددې نه مراد والد د سدي دې چه د هغوى نوم عبدالرحمن دې او خپله د سدى نوم اسماعيل دې.

[٧٤]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو التَّيَّاحِ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنِ ابْنِ مُغَفَّلٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ، ثُمَّ قَالَ مَا لَهُمْ وَلَهَا، فَرَخَّصَ فِي كَلْبِ الصَّيْدِ، وَفِي كَلْبِ الْغَنَمِ، وَقَالَ: إِذَا وَلَغَ الْكَلْبُ فِي الْإِنَاءِ، فَاغْسِلُوهُ سَبْعَ مِرَارٍ، وَالثَّامِنَةُ عَفِّرُوهُ بِالتُّرَابِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَكَذَا قَالَ ابْنُ مُغَفَّلٍ.

**ترجمه**: د ابن مغفل نه روايت دې، چه بيشکه رسول الله صلى الله عليه وسلم امر کړى دى په وژلو د سپو باندې، بيا ئې اووئيل: څه دې دوى لره او دهغې دپاره، نو رخصت ئې ورکړو په سپې د ښکار کښې، او په سپې د ګډو کښې، او وئيلى دى. کله چه خُله اووهي سپى په لوښې کښې نو هغه اووينځئ اووه ځلې، او اتم ځل هغه اومږئ په خاورو سره.

**تشريح**: قوله ﴿ قال ابوداؤد وهکذا قال ابن مغفل ﴾ په ظاهر کښې مطلب دا دې چه عبدالله بن مغفل کوم چه ددې حديث راوى دې په کوم کښې چه تثمين ذکر دې هغه خپله هم ددې قائل دې يعنى د هغوى عمل په دې باندې دې چه اته کرته دې پاک کړې شى، په خلاف د ابوهريره رضي الله عنه چه هغه د تسبيع راوى دې خو د هغوى عمل په دې باندې نه دې لکه چه په بحث کښې تير شوې دى په بذل کښې ددې خبرې هم دا مطلب ليکلې شوې دې

(1): سنن النسائي/المياه ٧ (٣٣٨) (تحفة الأشراف: ١٤٤٩٥) (صحيح) لكن قوله: "السابعة بالتراب" شاذ

(2): صحيح مسلم/الطهارة ٢٧ (٢٨٠)، سنن النسائي/الطهارة ٥٣ (٦٧) المياه ٧ (٣٣٧، ٣٣٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣١ (٣٦٥)، الصيدا (٣٢٠٠، ٣٢٠١)، (تحفة الأشراف: ٩٦٦٥)، وقد أخرجه: حم (٨٦/٤، ٥/٥٦)، سنن الدارمي/الصيد ٢ (٢٠٤٩) (صحيح)

حضرت ناظم صاحب (مولانا اسعد الله صاحبﷺ) احتمالا يو بل مطلب بيان کړي دي هغه دا چه د قال فاعل ابن مغفل نه دي بلکه د قال ضمير راجع دي د راوی طرف ته، مطلب دا چه په دې سند کښې راوی په وخت د روايت ابن مغفل اووئيلو يعنی ابن المغفل معرف باللام ئې نه دې وئيلې، ځکه چه دا نوم په دواړو طريقو چليږي، عبدالله بن مغفل او عبدالله بن المغفل، حضرت ناظم صاحبﷺ ډير اديب وو په دې وجه د هغوی ذهن دې مطلب يعنی د الفاظو دې باريکيانو ته لاړو. والله اعلم

## باب سُؤرِ الهِرَّةِ

### باب دې په بيان د جوټې د پيشوګې

کلب او هرة (سپې او پيشو) اګرچه دواړه په سباع کښې دی خو د دواړو د سؤر په حکم کښې ډير فرق دې يو پاک او بل ناپاک، د قياس تقاضه خو دا وه چه سؤر هرة دې هم ناپاک وې، خو د يو علت په وجه باندې د نجاست حکم او نه لګولې شو، هغه علت لکه څنګه چه په حديث کښې موجود دې کثرت طواف او دوران دې، يعنی دهغې کورونو ته بار بار راتلل چه دهغې د وجې نه صون اوانی ګران وو، په داسې صورت کښې د نجاست حکم حرج لره مستلزم وو، ولا حرج فی الدين.

### په سؤر هرة کښې مذاهب ائمة :

په سؤر هرة کښې اختلاف دا دې چه د ائمه ثلاثه او امام ابويوسفﷺ په نزد طاهر بلا کراهت دې، او د طرفين په نزد طاهر مع الکراهت دې د راجح قول په بناء کراهت تنزيهی دې، دريم مسلک د بعض تابعينو لکه عطاء، طاؤس او مجاهد دې چه دا نجس دې، امام طحاویﷺ په شرح معانی الآثار کښې امام محمدﷺ د امام ابويوسفﷺ سره شمار کړې دې او په مشکل الآثار کښې ئې دامام صاحبﷺ سره شمار کړې دې او هم دا صحيح ده مشکل الآثار روستنې تاليف دې، دهغې نقل زيات صحيح دې.

[۷۵]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ حُمَيْدَةَ بِنْتِ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَكَانَتْ تَحْتَ ابْنِ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ دَخَلَ، فَسَكَبَتْ لَهُ وَضُوءًا، فَجَاءَتْ هِرَّةٌ فَشَرِبَتْ مِنْهُ فَأَصْغَى لَهَا الْإِنَاءَ حَتَّى شَرِبَتْ، قَالَتْ كَبْشَةُ: فَرَآنِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: أَتَعْجَبِينَ يَا ابْنَةَ أَخِي؟ فَقُلْتُ: نَعَمْ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ، إِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ وَالطَّوَّافَاتِ".

**ترجمه:** روايت دی د کبشه بنت کعب بن مالک نه، او وه هغه په نکاح د ابن ابي قتادة کښې، بيشکه ابو قتاده داخل شو نو هغې ورله د اودس اوبه واچولې، نو راغله پيشو، نو څکل ئې اوکړه دهغې نه، نو ورکوږ ئې کړو هغې ته لوښی ترڅو چه څکل ئې اوکړه، اووئيل

(): سنن الترمذي/الطهارة ٦٩ (٩٢)، سنن النسائي/الطهارة ٥٤ (٦٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٢ (٣٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٢١٤١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ٣(١٣)، مسند احمد (٢٩٦/٥، ٣٠٣، ٣٠٩)، سنن الدارمي/الطهارة ٥٨ (٧٦٣) (حسن صحيح)

کبشي نو زه ئې ولیدم چه ورته کتل مې، نو وئې وئیل: ایا ته تعجب کوې اې وراره؟ نو ما اووئیل: آو، نو وئې وئیل: بیشکه رسول الله ﷺ وئیلی دی: بیشکه دغه نه ده نجس، بیشکه دغه د طواف کونکو نه ده په تاسو باندې.

## مضمون حدیث :

قوله:﴿ حدثنا عبدالله بن مسلمة الخ ﴾ د حدیث الباب مضمون دا دې چه کبشه بنت کعب کومه چه د عبدالله بن ابی قتادة په نکاح کښې وه، هغوی وائی چه یو ځل زما د خاوند پلار ابوقتادة رضي الله عنه ماته راغلو ما د هغوی د اودس دپاره اوبه ورکړې هغوی په ما باندې اوبه اچولې نو ناڅاپه یو پیشو هلته راغله او هغې اوبه څکل غوښتل نو ابوقتاده رضي الله عنه د اوبو لوښې د پیشو طرف ته ښکته کړو تر دې چه هغې په سهولت سره اوبه اوڅکلې ما هغوی ته کتل نو هغوی پوهه شو او وې فرمائیل چه آیا تعجب کوې؟ ما عرض اوکړو او جی! په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې ﴿ إنها لیست بنجس ﴾ چه پیشو ناپاکه نه ده ځکه چه هغه کورونو ته په کثرت سره ځی راځی نو ګویا په کثرت سره د تلو راتلو د وجې نه چونکه دهغې نه بچ کیدل مشکل دی په دې وجه دهغې جوټه معاف کړې شوه.

قوله :﴿ إنها من الطوافین علیکم والطوافات ﴾ د طوافین او طوافات نه مراد هغه خدمت ګزار بالغ هلکان او جینکۍ دی چه دهغوی د خدمت دپاره په کور کښې کثرت سره تلل راتلل وی نو ګویا په دې حدیث کښې د هرة ددې خادمانو سره تشبیه ورکړې شوه چه څنګه د کثرت تلو راتلو په وجه ددوی نه کور کښې د داخلیدو په وخت استیذان ساقط دې دغه شان دلته په هرة کښې د کثرت طواف د وجې نه ددې د جوټې حکم ساقط کړې شو، د کثرت طواف په وجه هغه ځائې د استیذان سقوط اوشو، دلته د نجاست.

## د حدیث الباب د امام طحاوی رحمه الله د طرف نه توجیه :

دا حدیث د جمهورو مستدل دې امام طحاوی رحمه الله ددې جواب دا کړې دې چه د کوم څیز نه چه تاسو استدلال کوئ یعنی إصغاء الإناء دا دصحابی ابوقتادة رضي الله عنه فعل دې او حجت د رسول الله ﷺ قول یا فعل وی [1] او د رسول الله ﷺ ارشاد کوم چه دلته دې ﴿ إنها لیست بنجس إنها من الخ ﴾ نو کیدې شی چه ددې تعلق د سؤر سره نه وی بلکه د مماسة ثیاب وفراش سره وی یعنی په کورونو کښې چه کومې پیشوګانې اوسیږی هغه د انسانانو په بسترو کښې راشی او کینی، نو په دې کښې ددې ګنجانش ورکړې شوې دې د سؤر سره ددې تعلق نشته، او بیا وړاندې امام طحاوی رحمه الله بیان کړې دې چه ولوغ هرة والا روایت چه په هغې کښې دی چه د ولوغ هرة نه دې لوښې یو ځل یا دوه ځل وینځلې شی هغه حدیث مرفوع او متصل الاسناد دې لهذا په هغې باندې به حمل کولې شی.

---

[1] علامه زیلعی رحمه الله فرمائی چه اګرچه اصغاء الاناء د عائشې رضي الله عنها په یوحدیث کښې د رسول الله ﷺ د فعل نه هم ثابت دی لکه چه د دارقطنی په روایت کښې دی خو هغه ضعیف دې ځکه چه په یو طریق کښې عبدالله بن سعید المقبری دې او په دویم کښې واقدی او دا دواړه ضعیف دی.

او د احنافو په دلائلو کښې د ابوهریره رضی الله عنه حدیث الهرة سبع ذکر کولې شی کوم چه په مستدرک د حاکم او مسند احمد وغیره کښې دې، خو ددې په سند کښې عیسی بن المسیب دې کوم چه ضعیف دې، بله دا چه دا حدیث موقوفا او مرفوعا نقل کړې شوې دې، ابن ابی حاتم وائی چه ددې موقوف کیدل اصح دی.

## د حضرت سهارنپوری رحمه الله تحقیق:

حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې په دلائل حنفیه باندې کلام کولو سره فرمائیلې دی چه دهغې حاصل دا دې چه بعض روایات (مثلا روایت کبشه) دلالت کوی په طهارت د سؤر هرة باندې او بعض نور داسې روایات دی کوم چه دلالت کوی دهغې په نجاست باندې لکه چه دبعض تابعینو عطاء او طاؤس وغیره مسلک دې خو چونکه روایات د طهارت أقوی وو د هغه روایاتو نه کوم چه ددې په نجاست باندې دلالت کوی ﴿فنزلنا من القول بنجاستها الی القول بالکراهة﴾ یعنی د جانبین رعایت کولو سره مونږ نه خو د مطلق طهارت قائل شو او نه د مطلق نجاست بلکه درمیانی قول یعنی طهارت مع الکراهت مو اختیار کړو.[1]

## تحقیق السند:

﴿عن حمیدة﴾ دا د اسحق بن عبدالله مذکوره راوی زوجة ده ﴿عن کبشة﴾ دا د حمیده ترور او صحابیه ده، او دا حدیث د سنن اربعه روایت دې او ددې نه علاوه په صحیح ابن خزیمة او صحیح ابن حبان کښې هم موجود دې، بهر حال په صحیحینو کښې په یو کښې هم دا نشته امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن صحیح وئیلې دې، امام بخاری رحمه الله او دارقطنی رحمه الله وغیره ددې تصحیح کړې ده، خو ابن منده رحمه الله دې حدیث ته معلل وئیلې دی هغوی وائی چه ددې په سند کښې حمیده او کبشه دواړه مجهول دی خو کبشه که صحابیه ده نو دهغې جهالت ضرر نه ورکوی.

[۷۶](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ صَالِحِ بْنِ دِينَارٍ التَّمَّارِ، عَنْ أُمِّهِ، أَنَّ مَوْلَاتَهَا أَرْسَلَتْهَا بِهَرِيسَةٍ إِلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَوَجَدَتْهَا تُصَلِّي، فَأَشَارَتْ إِلَيَّ أَنْ ضَعِيهَا، فَجَاءَتْ هِرَّةٌ فَأَكَلَتْ مِنْهَا، فَلَمَّا انْصَرَفَتْ أَكَلَتْ مِنْ حَيْثُ أَكَلَتِ الْهِرَّةُ، فَقَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ، إِنَّمَا هِيَ مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ"، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَتَوَضَّأُ بِفَضْلِهَا.

**ترجمه**: د داود بن صالح بن دینار التمار نه روایت دې هغه روایت کوي د خپلې مور نه، بیشکه مولاگۍ دهغې هغې اولیږله په شېره باندې عائشې رضی الله عنها ته، نو هغه ئې بیاموندله چه مونځ ئې کولو، نو اشاره ئې اوکړه ماته چه کیږده، نو راغله پیشو خوراک ئې اوکړو

[1] په دې باندې اشکال دې چه کله تاسو خپله ددې خبرې قائل او معترف یئ چه روایات داله علي الطهارة أقوی دی نو بیا هم دې ته کتلو سره فیصله ولې نه کوئ، او سور هره لره مکروه ولې نه منئ؟ ددې جواب دا دې چه که داسې اوکړو نو دا به خلاف احتیاط وی، لهذا طریق احوط اختیار کړې شوه د جانبین رعایت به هله وی.

[2]: تفرد به أبو داود، تحفة الأشراف (۱۷۹۷۹) وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ۳۲ (۳۶۷) (صحیح)

دهغې نه، هر کله چه د مانځه نه فارغه شوه نو خوراک ئې اوکړو دهغه ځائې نه دکوم ځائې نه چه پیشو خوراک کړې وو، او وئې وئیل بیشکه رسول الله ﷺ وئیلی دی: بیشکه دا نه دې نجس، یقینًا دا د طواف کونکو نه دې په تاسو باندې، او ما لیدلی وو رسول الله ﷺ چه اودس به ئې کولو پاتې اوبو دهغې باندې.

**تشریح**: قوله:﴿ ارسلتها بهریسة الی عائشة ﴾ دا د باب دویم حدیث دې چه دهغې حاصل دا دې چه ام داؤد وائي چه زما سیده زما په ذریعه د عائشې رضي الله عنها په خدمت کښې هریسه یعنی دلیا وغیره د خوړلو څیز اولیږلو، چه کله زه هلته اورسیدم نو ما هغوی په مانځه بیا موندل، هغوی په اشارې سره دهغې د کیخودلو حکم اوفرمائیلو، ددې نه پس ناڅاپه یو پیشو راغله او دهغې نه ئې خوراک اوکړو، سیده عائشه رضي الله عنها چه کله د مانځه نه فارغه شوه نو د کوم ځائې نه چه پیشو خوراک کړې وو هغوی هم د هغه ځائې نه خوراک اوکړو او دا ئې اوفرمائیل چه ما رسول الله ﷺ ددې د جوټې نه اودس کونکې لیدلې دې.

دا حدیث هم د جمهورو مستدل دې خو ضعیف دې ځکه چه ام داؤد مجهوله ده، دویم جواب دا کیدې شی چه ممکن ده چه د بیان جواز دپاره رسول الله ﷺ داسې کړې وی، یو بل جواب دا دې کوم چه د صاحب بحر د کلام نه مستفاد کیږی هغه دا چه د سؤر هرة نه رسول الله ﷺ اودس اوفرمائیلو کیدې شی چه رسول الله ﷺ دا پیشو ددې نه مخکښې په اوبو څکلو باندې لیدلې وی، او د داسې پیشو جوټه زمونږ په نزد هم پاکه ده ځکه چه د سؤر هرة کراهت د یو قول په بناء د عدم توقی عن النجاست د وجې نه دې یعنی دا چه هغه ګنده څیز خوری په دې وجه دهغې خُله د خارجی نجاست د وجې نه ناپاک شی، او دلته علت مرتفع دې دهغې د خُله د اوبو څکلو د وجې نه پاک کیدل معلوم دی او اګرچه دا صرف یو احتمال دې، خو د احتمال وجود مانع عن الاستدلال وی.

## بَابُ الْوُضُوءِ بِفَضْلِ وَضُوءِ الْمَرْأَةِ

### باب دې په بیان د اودس کې په پاتې اوبو د ښځې

د ترجمة الباب والا مسئله اختلافی ده، یعنی کومې اوبه چه زنانه په اودس یا غسل وغیره کښې استعمال کړې وی دهغې د استعمال نه پس په لوښی کښې چه کومې اوبه باقی وی دهغې نه د سړی دپاره اودس جائز دې یا نه؟

### د فضل طهور صورتونه :

د مطلق فضل طهور درې صورتونه کیدې شی یو دا چه سړې او ښځه دواړه د یو لوښی نه اوبه واخلی یو ځائې اودس یا غسل اوکړی (په دې کښې هم هر یو دپاره د بل د فضل استعمال لازمیږی) دویم شکل دا دې چه د سړی د پاکوالی نه پس باقی اوبه ښځه استعمال کړی، دریم شکل ددې عکس دې او هم دا په ترجمة الباب کښې ذکر شوې دې یعنی د زنانه د استعمال نه پس باقی اوبه سړې استعمال کړی، امام نووی رحمه الله لیکلې دی چه اول دوه شکلونه بالاجماع جائز دی په دې کښې اختلاف نشته، اختلاف صرف په دې دریم شکل کښې دې، د امام احمد او داؤد ظاهری په نزد ناجائز دې، د جمهور علماء ائمه ثلاثه په نزد

جائز دی، حافظ ابن حجر رحمه الله د امام نووی رحمه الله په اجماع نقل کولو باندې اشکال کړې دې او هغوی د امام طحاوی رحمه الله په حوالې سره اول دوه صورتونو کښې هم اختلاف نقل کړې دې او دا چه په اول دوه صورتونو کښې اختلاف د ابوهریره رضی الله عنه او امام احمد رحمه الله طرف ته منسوب دې، یو قول دلته د امام شعبی او اوزاعی دې هغوی وائی چه صرف دحائض اود جُنب فضل طهور د سړی دپاره ناجائز دې، د غیر حائض د فضل دا حکم نه دې.

[۷۷]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ وَنَحْنُ جُنُبَانِ".

**ترجمه**: د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې، هغه وائی وم زه چه غسل کولو ما او رسول الله ﷺ د یو لوښي نه او مونږ جنب وو.

**تشریح**: قوله ﴿ عن عائشة قالت كنت أغتسل الخ ﴾ مونږ په شروع کښې وئیلي دی چه په دې مسئله کښې، درې صورتونه دیْ، په ترجمة الباب کښې صرف اختلافي شکل ذکر شوي دې یعني اول زنانه استعمال کړی دهغې نه پس سړې، خو په دې حدیث کښې په ظاهره داسې نه ده بلکه د حدیث معنی یو ځائې د غسل کولو ده.

**د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت:**

خو د ترجمة الباب سره د حدیث د مطابقت پیدا کولو دپاره تاویل داسې کیدې شی چه دلته په وقت واحد او زمان واحد کښې د غسل کولو تصریح نشته، کیدې شی چه پرلپسې غسل کول مراد وی، ځکه چه وحدت أناء وحدت زمان لره مستلزم نه دې، اوس پاتې شوه دا خبره چه په حدیث کښې خو غسل ذکر شوې دې او په ترجمة الباب کښې اودس؟ پس ددې جواب ظاهر دې چه غسل خو خپله اودس لره متضمن دې.

[۷۸]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ خَرَّبُوذَ، عَنْ أُمِّ صُبَيَّةَ الْجُهَنِيَّةِ، قَالَتْ: "اخْتَلَفَتْ يَدِي وَيَدُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْوُضُوءِ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ".

**ترجمه**: ام صُبیة الجنهنیه نه روایت دې، هغې وئیلی دی ګډوډ به ورتلل لاس زما او لاس د رسول الله ﷺ په اودس کښې د یو لوښي نه.

**تشریح**: قوله ﴿ عَنْ أُمِّ صُبَيَّةَ الْجُهَنِيَّةِ قَالَتْ الخ ﴾ ام صبیه فرمائی چه زما او د رسول الله ﷺ لاس مبارک د یو لوښي نه اودس کولو سره په هغه لوښي کښې لګیدلی وو، د اختلاف معنی د تلو راتلو ده، یعنی کله به زما لاس هغې کښې راتلو او کله د رسول الله ﷺ
په دې حدیث کښې په ظاهره یو اشکال دا کولې شی چه ام صبیه سره د رسول الله ﷺ د محرمیت څه تعلق نه وو، بیا په یو وخت یو ځائې د اودس کولو نوبت څنګه راغلو؟
بعضو جواب ورکړې دې چه کیدې شی دا واقعه دقبل الحجاب وی خو حضرت سهارنپوری

[1]: صحيح البخاري/الحيض ٦ (٢٩٩)، سنن النسائي/الغسل ٩ (٤١١)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٨٣)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٥ (٣٧٦)، مسند احمد (١٧١/٦، ٢٦٥)، سنن الدارمي/الطهارة ٦٨ (٧٧٦) (صحيح)

[2]: سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٦ (٣٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٦/٦، ٣٦٧) (حسن صحيح)

ﷺ ته دا جواب خوښ نه دي ځکه چه د حجاب نه مخکښې د زنانه د پاره د سرې مخکښې صرف د مخ ښکاره کول جائز کيدې شي، باقي بدن کوم چه په اودس کښې ښکاره شي دهغې ښکاره کول د نورو مخکښې جائز نه وو، لهذا غوره دا ده چه داسې اووئيلې شي چه اګر که دا واقعه د نزول حجاب نه پس وی خو د رسول اللهﷺ او د ام صبيه ترمينځه کيدې شي چه حجاب حائل وی اګرچه اودس ئې د يو لوښی نه کولو يا حجاب هم حائل نه وی صرف مخ ئې ترې نه اوختلې وی مخامخ نه وی ناست يا داسې اووئيلې شي چه د يو لوښی نه اودس کول او اختلاف ايدی په يو وخت کښې نه وو بلکه په بيل بيل وخت کښې وو اول يو اودس اوکړو د هغه د فارغيدو نه پس بل، ځکه چه وحدت اناء وحدت زمانه لره مستلزم نه دي، په داسې اوبو باندې هم دا خبره صادق راتلې شي چه په هغې باندې اختلاف أيدی (لاسونو) شوې دي. دا مطلب د اختلاف أيدی خلاف نه دي.

[۷۹]( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، ح وَحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: «كَانَ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ يَتَوَضَّئُونَ فِي زَمَانِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»، قَالَ مُسَدَّدٌ: «مِنَ الْإِنَاءِ الْوَاحِدِ جَمِيعًا»

د ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دی هغه وئيلی دی: وو سړی او ښځې چه اودس به ئې کولو په زمانه د رسول اللهﷺ کښې. وئيلی دی مسدد: د يو لوښې نه ټولو.

**تشريح:** قوله ﴿عن ابن عمر قال كان الرجال والنساء الخ﴾ په دې کښې هغه زنانه مراد دی کومې چه د سړو محرم او نزدې رشته دارې وی او يا دې دا اووئيلې شی چه دا واقعه د نزول حجاب نه مخکښې ده يا دا دې په معاقبت باندې محمول کړې شی يعنی د يو بل نه پس او وړاندې روستو، خو وړاندې لفظ جميعا راروان دې نو دهغې توجيه دا کيدې شي چه د دې اجتماع نه اجتماع فی الوقت نه بلکه اجتماع فی الاناء مراد ده. ﴿قوله قال مسدد من الاناء الواحد﴾ د مصنف رحمه الله په دې حديث کښې دوه استاذان دی، عبدالله بن ابی سلمة او مسدد، د عبدالله بن سلمة الفاظ دی، ﴿كان الرجال والنساء يتوضؤن فی زمان رسول اللهﷺ جميعا﴾ او د مسدد په روايت کښې د ﴿من الاناء الواحد﴾ اضافه ده. پس د لفظ جميعا تعلق د دواړو روايتونو سره دې او ﴿من الاناء الواحد﴾ صرف د مسدد په روايت کښې دې، د عبدالله بن مسلمه په روايت کښې نشته. خو داسې نه ده، ګينې د حديث په معنی کښې به خلل واقع شی غور دې اوکړې شی. نبه علينا شيخنا فی حاشية البذل.

### تحقيق السند:

﴿عن ابن خربوذ﴾ د هغوی نوم سالم دې يعنی سالم بن خربوذ، خربوذ کيجاوې يا کتې ته وئيلې شی هم په دې وجه دوی ته سالم بن السرج هم وئيلې شی، ﴿أُمّ صُبَيَّةَ﴾ ددې نوم خولة

[1]): حديث مسدد تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۱)، وحديث عبدالله بن مسلمة، آخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ۴۳ (۱۹۳)، وليس فيه: «من الإناء الواحد»، سنن النسائي/الطهارة ۵۷ (۷۱) المياه ۱۰ (۳۴۱، ۳۴۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۳۶ (۳۸۱)، موطا امام مالك/الطهارة ۳(۱۵)، مسند احمد (۲/۴، ۱۰۳)، تحفة الأشراف (۸۳۵۰) (صحيح)

بنت سعد دې ﴿قوله ح وحدثنا مسدد﴾ دلته دوه سندونه دی اول سند په مالک باندې ختم شو او دویم سند په ایوب باندې، او مالک او ایوب دواړه روایت کوی د نافع نه. لهذا نافع ملتقی السندین شو، ملتقی السندین لره صرف په سند ثانی کښې ذکر کولې شی او کله ئې په دواړو ځایونو کښې ذکر کوی، لکه چه دلته دی د عبدالله بن مسلمه والا سند عالی دې او دویم سند د مسدد والا سافل دې، په دې کښې یو واسطه زائد ده.

[۸۰] () حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كُنَّا نَتَوَضَّأُ نَحْنُ وَالنِّسَاءُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ نُدْلِي فِيهِ أَيْدِيَنَا".

**ترجمه:** د عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دی چه اودس کولو سړو او ښځو په زمانه د رسول الله ﷺ د یو لوښي نه، چه مونږ به خکته کول په هغې کښې لاسونه خپل.

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ ذَلِكَ

**باب دې په بیان د منع کیدو د دغې نه (د ښځو او د ماشوما نو د پاتې شوو اوبو نه)**

په اول باب کښې مصنف رحمه الله د جواز روایات ذکر کړی دی لکه چه د جمهور مسلک دې. په دې باب کښې ئې د منع روایات ذکر فرمائیلي دی لکه چه د ظاهریه او حنابله مذهب دې. حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه دا د مصنف رحمه الله د حنبلی کیدو علامت دې چه په اخر کښې د منع روایت ذکر کوی، ګینې د جمهورو د مسلک مطابق خو ددې برعکس کیدل پکار وو

په دې باب کښې مصنف رحمه الله دوه احادیث ذکر کړې دی چه په هغې کښې په اول حدیث کښې د سړی او ښځې د هر یو دفضل نه بل منع کړې شوې دې او په دویم حدیث کښې صرف یو شق ذکر دې او دا هم هغه دې چه په کوم ئې ترجمة قائم کړې ده، بهر حال په دې روایاتو کښې ممانعت ذکر شوې دې

اوس په روایاتو کښې تعارض پیدا شو، د جواز او عدم جواز دواړه قسم روایتونه جمع شو. د تطبیق درې صورتونه دی ترجیح، جمع بین الروایات او نسخ،

جمهور وائی چه د جواز روایات زیات صحیح دی، کوم چه د عائشه، میمونه او ام سلمه رضی الله عنهن نه روایت کړې شوې دی په صحیح مسلم وغیره کښې موجود دی، او د جواز د روایاتو د صحت ډیرو محدثینو تصریح کړې ده لکه امام بخاری، بیهقی او ابن العربی رحمهم الله وغیره، او د منع روایت یعنی د حکم بن عمرو روایت کوم نه چه امام بخاری او بیهقی ضعیف وئیلې دې، لهذا د جواز روایات راجح او د منع روایات مرجوح او ضعیف شو

دویم جواب یعنی جمع ده چه د ممانعت روایات په نهی تنزیه باندې محمول دی او د اثبات روایات په جواز باندې یعنی نه کول ئې اولی دی او کول ئې جائزدی. یا دې داسې اووئیلې شی چه د فضل نه مراد ﴿الماء المتساقط من الأعضاء﴾ دې یعنی د زنانه مستعمل اوبه [۲]

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۲۱۱) (صحيح)

[۲]: دا اګرچه یوه مشهوره توجیه ده لیکن په دې کښې زما دا اشکال دې چه که ماء مستعمل مراد دی نو بیا د ښځې په دې کښې څه تخصیص، ماء مستعمل د سړی او ښځې دواړو برابر دی

اوپه هغې سره د جمهورو په نزد اودس صحيح نه دې، يو جواب دا کړې شوې دې چه دا محمول دې په اجنبيه باندې د خوف فتنې د وجې نه.

او آخرى جواب دې د نسخې چه د منع روايات منسوخ دى او د نسخ علامت دلته موجود دې هغه دا چه رسول الله ﷺ چه په کوم وخت کښې د ميمونې رضي الله عنها په فضل غسل باندې د اودس اراده فرمائيلې وه، نو په دې باندې ميمونې رضي الله عنها عرض اوکړو، يا رسول الله ﷺ! دا زما نه پاتې شوې اوبه دى چه په په هغې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ ان الماء لا يجنب﴾ نو د ميمونې رضي الله عنها دا عرض کول چه دا زما د مستعمل اوبو باقى حصه ده، دا علامت دې ددې خبرې چه هغوى سره به ددې ممانعت څه دليل وى ځکه خو هغوى رسول الله ﷺ منع کړو نو اوس حاصل دا شو چه د منع روايات مقدم شو او د جواز موخر او موخر د مقدم دپاره ناسخ وى.

د دې مقام مناسب يو بله مسئله ده چه دهغې تعلق د شرب سره دې، هغه دا چه فقهاء کرامو ليکلې دى چه د پردئ زنانه جوټه د سړى دپاره مکروه ده او ددې عکس يعنى د سړى جوټه د زنانه دپاره مکروه نه ده، په دې شرط چه د فتنې ويره نه وى ګينې بيا به کراهت د دواړو په حق کښې شى او ددې وجه فقهاء کرامو دا ليکلې ده چه زنانه بجميع اجزائها مستور يعنى قابل حجاب ده او د زنانه په جوټه کښې به دهغې لاړې مخلوط وى مقدار يسير دې ولې نه وى، نو په دې سره به د زنانه د جزء مستور استعمال لازم شى.

[۸۱]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ عَبْدِ اللهِ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ حُمَيْدٍ الْحِمْيَرِيِّ، قَالَ: لَقِيتُ رَجُلًا صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ سِنِينَ كَمَا صَحِبَهُ أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَةُ بِفَضْلِ الرَّجُلِ، أَوْ يَغْتَسِلَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ الْمَرْأَةِ"، زَادَ مُسَدَّدٌ: وَلْيَغْتَرِفَا جَمِيعًا.

**ترجمه**: د حميد الحميري نه روايت دې هغه وائى: زه مخامخ شوم د يو سړي سره چه د رسول الله ﷺ سره ئې صحبت شوى ووځلور کاله، لکه څنګه چه ورسره د ابو هريره صحبت شوى وو، هغه اووئيل: منع کړي ده رسول الله ﷺ د دېنه چه غسل اوکړي ښځه په پاتې اوبو د سړي، او يا غسل اوکړي سړى په پاتې اوبو د ښځې. زيادت کړى دى مسدد ددې جې دواړه دې يوځائي لپې اخلي.

[۸۲]() حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ يَعْنِي الطَّيَالِسِيَّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي حَاجِبٍ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو وَهُوَ الْأَقْرَعُ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ".

**ترجمه**: حکم بن عمرو نه روايت دې چه اقرع دى، بيشکه نبي ﷺ منع کړي ده چه اودس اوکړي سړى په پاتې اوبو د ښځې.

[1]: سنن النسائي/الطهارة ١٤٧ (٢٣٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٥٤، ١٥٥٥٥) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الطهارة ٤٧ (٦٤)، سنن النسائي/المياه ١١ (٣٤٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٤ (٣٧٣)، (٣٧٤) ولفظه: «عبدالله بن سرجس»، (تحفة الأشراف: ٣٤٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٣/٤، ٦٦/٥) (صحيح)

**تشریح:** قوله :﴿ لقيت رجلا صحب الخ ﴾ دغه شان سند باب البول فی المستحم کښې تیر شوې دې او هلته مونږ د رجل مصاديق ثلاثه بيان کړي دی، لهذا دلته دوباره د بیانولو حاجت نشته، ددې روايت نه معلومه شوه چه ﴿ كما صحبه ابوهريرة ﴾ کښې تشبيه د صحبت په موده کښې ده کومه چه څلور کاله ده، د باب د دويم حديث په سند کښې دی ﴿ عن الحكم بن عمرو وهو الأقرع ﴾ دلته دا ضمير راوی دحديث حکم بن عمرو طرف ته راجع نه دې بلکه خلاف معمول د عمرو طرف ته راجع دې ځکه چه اقرع د عمرو لقب دې نه د حکم

## بَابُ الْوُضُوءِ بِمَاءِ الْبَحْرِ

### باب دې په بيان د اودس کې په اوبو د درياب

د بحر اطلاق زيات تر په بحر مالح باندې کيږي يعنى سمندر د کوم اوبه چه مالګينې وی او د نهر اطلاق زيات تر په خوږو اوبو باندې کيږي

### د ترجمة الباب غرض

د دې باب د منعقد کولو ضرورت څه دې؟ ځکه چه د سمندر او د نهر په اوبو سره جواز وضوء خو هر چا ته معلوم دې پس ددې وجه دا کيدې شی چه ددې په جواز کښې يو شبه کيدې شوه هغه دا چه په نهرونو او سمندرونو کښې دننه لوئې لوئې نجاستونه غورځيږی خصوصا په ساحلونو باندې، نو په دې سره د عدم جواز شبه کيدې شوه.یا ځکه چه په نهرونو او سمندرونو کښې بشميره ځناور پيدا کيږی او هم په هغې کښې مری نو په دې سره هم شبه کيدې شی. ددې نه علاوه دا خبره هم ده چه وضوء بماء البحر کښې د بعض سلفو اختلاف راغلې دې، لکه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما، دا حضرات ماء البحر باندې اودس ته مکروه وائي لکه چه امام ترمذی رحمه الله بيان کړی دی او ددې يوه وجه هم د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه منقول ده چه وړاندې به راشی، خو په دې مسئله کښې اوس هيڅ اختلاف باقی نه دې پاتې شوې بلکه د امت ددې په جواز باندې اتفاق دې اختلاف کونکی وفات شوی دی.

[۸۳](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ سَلَمَةَ مِنْ آلِ ابْنِ الْأَزْرَقِ، أَنَّ الْمُغِيرَةَ بْنَ أَبِي بُرْدَةَ وَهُوَ مِنْ بَنِي عَبْدِ الدَّارِ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: سَأَلَ رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّا نَرْكَبُ الْبَحْرَ وَنَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِيلَ مِنَ الْمَاءِ فَإِنْ تَوَضَّأْنَا بِهِ عَطِشْنَا، أَفَنَتَوَضَّأُ بِمَاءِ الْبَحْرِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ الْحِلُّ مَيْتَتُهُ".

**ترجمه:** مغيره بن ابي برده د ابو هريره رضي الله عنه نه اوريدلي دي چه هغه ويل. پوښتنه اوکړه يو سړي د پيغمبر صلى الله عليه وسلم نه، يقينا مونږ سفرکوو درياب کښې، اومونږ اخلو ځان سره لږې اوبه، که چيرې مونږ اودس کوو په هغې نو تږې کيږو ، آيا مونږ اودس اوکړو په اوبو د درياب؟ نو

(1): سنن الترمذي/الطهارة ٥٢ (٦٩)، سنن النسائي/الطهارة ٤٧ (٥٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٨ (٣٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٦١٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ٣(١٢)، مسند احمد (٢/٢٣٧، ٣٦١، ٣٧٨)، سنن الدارمي/الطهارة ٥٣ (٧٥٥) (صحيح)

رسول اللهﷺ اووئیل پاکي دي اوبه دهغې او حلال ده میته د هغې

**تشريح:** ﴿ عن سعید بن سلمة ﴾ ددي راوی په نوم کښې اختلاف دې، بعضو ددې عکس یعنی سلمة بن سعید وئیلي دي، او وئیلي شوي دی چه د هغوی نوم عبد الله بن سعید دې، ﴿ ان المغیرة بن ابی بردة ﴾ د هغوی په نوم کښې هم اختلاف دې بعض وائی مغیره بن عبد الله بن أبی بردة، او وئیلي شوي دی چه عبد الله بن مغیره بن ابی بردة

**قوله** :﴿ سأل رجل الخ ﴾ ددې رجل سائل په نوم کښې اختلاف دې، وئیلي شوي دی چه عبد الله، عبد، عبید، حمید بن صخر او سمعانی امام لغت والحدیث لیکلي دی چه د هغوی نوم العرکی دې،خو په دې کښې اشکال دې هغه دا چه عرکی خو ملاح ته وائی دا نوم څنګه شو دا خو لقب او وصف دې؟ مضمون دحدیث دا دې چه یو سائل د رسول اللهﷺ نه تپوس اوکړو چه یا رسول اللهﷺ! مونږ بحری سفر کوو، او په یو روایت کښې دی ﴿ للصید ﴾ یعنی د ښکار دپاره چه دهغې نه معلومه شوه چه د ښکار دپاره بحری سفر کول جائز دی په دې کښې یو حدیث د منع راغلي دې چه دهغې ذکر به وړاندې راشي. غرض دا چه سائل اووئیل چه مونږ خپل ځان سره په بحری سفر کښې خوږې اوبه په قلیل مقدار کښې ږدو، که مونږ ددې نه اودس اوکړو نو تږي به پاتې شو، نو آیا مونږ د سمندر د اوبو نه اودس اوکړو؟ رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ وهو الطهور ماؤه ﴾ یعنی د سمندر اوبه پاکي دی

## د شرح حدیث متعلق بعض ضروری توضیحات

﴿ هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ الْحِلُّ مَيْتَتُهُ ﴾ دلته دوه سوالونه دی، یو دا چه ﴿ هو الطهور ماؤه ﴾ د پوره جملې استعمالولو څه ضرورت وو؟ په جواب کښې که صرف نعم وئیلي شوي وې نو کافی وه، په دې طوالت کښې څه مصلحت دې د رسول اللهﷺ ارشادات خو جوامع الکلم وی؟

جواب دا دې چه که دلته صرف په نعم سره جواب باندې اکتفاء کړې شوې وه نو ددې تعلق به صرف دهغه صورت سره وې کوم چه په سوال کښې ذکر شوې دې، او بیا به تږې دا معلومیدلې چه په ماء البحر سره اودس هغه وخت کیدې شی چه کله خوږې اوبه قلیل وی ګینې نه حال دا چه داسې نه ده بلکه په ماء البحر سره اودس هر حال کښې جائز دې، په دې وجه رسول اللهﷺ په جواب کښې دا اسلوب اختیار اوفرمائیلو

دویم سوال دا دې چه رسول اللهﷺ په جواب کښې په سوال باندې اضافه ولې اوفرمائیله؟ سوال خو صرف د اوبو سره متعلق وو نه د طعام سره، رسول اللهﷺ د شراب سره د طعام یعنی میتة البحر حکم هم بیان اوفرمائیلو؟

جواب دا دې چه په دې سره د ماقبل مضمون تائید مقصود دې، یعنی د ماء البحر د طاهر کیدو دلیل دې، هغه داسې چه د ماء البحر په پاکیدو کښې دا کلام کیدې شی چه په دې کښې دننه خو په کثرت سره ځناور مړۀ کیږی بیا دهغې اوبه طاهر او مطهر څنګه شوې؟ نو ددې شبهې ازاله رسول اللهﷺ اوفرمائیله چه میتة البحر پاک دې په دې صورت کښې به الحل په معنی د طاهر وی، او که په معنی د حلال وی نو دې ته جواب علی اسلوب الحکیم وئیلي شی یعنی سائل اګرچه د سمندر د اوبو په باره کښې تپوس کړې وو چه که خوږې

اوبه نه وی نو د سمندر په اوبو باندې اودس کیدې شی یا نه؟ نو رسول اللهﷺ ته په دې سوال باندې دا خیال پیدا شو چه څنګه دې خلقو ته د اوبو ضرورت پیښیدې شی هم دغه شان ورته د توښې او طعام په ختمیدلو باندې په بحری سفر کښې د خوراک حاجت هم پیښیدې شی نو رسول اللهﷺ د مخکښې د هغوی د سوال نه مخکښې د طعام په باره کښې هم جواب ارشاد اوفرمائیلو چه میتة البحر حلال دې، د توښې په نه پاتې کیدو باندې دهغې نه خوراک جوړولې شئ. په جواب علی اسلوب الحکیم کښې د سوال مطابقت زیات تر ملحوظ نه وی بلکه د مخاطب حاجت او د مقام رعایت ملحوظ وی

ځان پوهه کړه چه ﴿هو الطهور ماؤه﴾ کښې مسند او مسند الیه دواړه معرفه دی، او تعریف الحاشیتین مفید د حصر وی، بیا حصر کله خو د مسند په مسند الیه کښې وی او کله ددې برعکس، دلته د مسند الیه حصر په مسند کښې دې.یعنی ماء البحر منحصر دې په طهوریت کښې، ماء البحر طهور دې غیر طهور نه دې او ددې عکس نه دې مراد. ګینې لازم به شی چه د ماء البحر نه علاوه هیڅ اوبه مطهر نه وی طهوریت به منحصر شی په ماء البحر کښې

د دې حدیث نه دوه مسئلې معلومیږی یو مسئله مترجم بها یعنی د ماء البحر حکم دا مسئله تقریبا اجماعی ده لکه چه مخکښې تیر شوې دی

**مسئلة میتة البحر کښې د احنافو او جمهورو اختلاف او د هرې ډلې دلیل:**

دویمه مسئله د میتة البحر مستفاد کیږی چه هغه حلال دې، دا مسئله مختلف فیه ده د احنافو په نزد میتة البحر په کوم باندې چه د حلت حکم لګولې شی ددې مصداق صرف سمک دې لحدیث ﴿احلت لنا المیتتان السمک والجراد﴾ او د جمهورو په نزد تقریباً ټول بحری حیوانات مراد دی پس د مالکیانو په نزد ټول قسمونه حلال دی سواء د خنزیر نه، په دې کښې د هغوی درې اقوال دی ۱: حلت ۲: حرمت ۳. توقف.

او د حنابله په نزد هم سواء د دریو نه ټول حلال دی او هغه درې دا دی ۱: تمساح، ۲: ضفدع، ۳: کوسج او د شوافعو په نزد لکه چه امام نووی لیکلې دی درې اقوال دی، اصح قول دا دې چه سواء د ضفدع نه ټول میتة البحر حلال دی، او دویم قول په شان د احنافو دې چه سوا د سمک نه ټول حرام دی او دریم قول دا دې چه د کوم میتة البحر مثال ماکول فی البر شته هغه حلال او د کوم نظیر چه غیر ماکول فی البر دې هغه حرام دی ځکه چه څومره انواع د حیواناتو په بر کښې دی هم هغه هومره په بحر کښې هم دی لهذا د هغوی په نزد د نظیر اعتبار دې چه کوم قسم ځناور په خشکئ کښې حلال دی لکه غوا، میښه، ګډه بیزه وغیره هم دغه شان هم دا قسم میتة البحر هم حلال دی او کوم قسم ځناور چه په خشکئ کښې حرام دی لکه کلب ذئب اسد وغیره نو هغه قسم میتة البحر هم حرام دې

جمهور په دې مسئله کښې د حدیث الباب نه استدلال کوی چه په دې کښې مطلقا میتة البحر حلال کړې شوې دې موږ اووئیل چه دا حدیث په خپل عموم باندې خو ستاسو په نزد هم نه دې، هر یو امام څه نه څه استثناء کړې ده لهذا دا حدیث عام مخصوص منه البعض شو نو څنګه چه تاسو حضراتو تخصیص کړې دې زمونږ په نزد هم په دې کښې تخصیص دې

بله دا چه جمهورو په دې مسئله کښې آيت کريمه ﴿ احل لكم صيد البحر ﴾ نه هم استدلال کړې دې په دې آيت کريمه کښې هم مطلق د صيد البحر حلت ذکر دې، جواب دا دې چه ستاسو استدلال ددې آيت کريمه نه مبنى دې په دې خبره باندې چه په آيت کريمه کښې د صيد نه مراد مصيد وى مونږ وايو داسې نه ده بلکه په آيت کريمه کښې صيد معنى مصدرى يعنى د اصطياد په معنى کښې مستعمل دې، مصيد ددې معنى مجازى ده کومه چه تاسو اختيار کړې ده، او مقصود په آيت کريمه کښې د محرم په حق کښې صيد البر او صيد البحر کښې فرق لره بيانول دى يعنى حالت احرام کښې اصطياد فى البحر (دريابى ښکار) جائز دې او اصطياد فى البر ناجائز، په دې آيت سره مقصود حلت لحم لره بيانول نه دى څنګه چه ستاسو خيال دې، د آيت کريمه د سياق او سباق نه د احنافو تائيد کيږى.

ځان پوهه کړه چه مسئلة الوضوء بماء البحر کښې بعض سلفو لکه عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه چه کوم کراهت منقول دې لکه چه په شروع باب کښې مونږ بيان کړى دى غالبا ددې منشاء هغه حديث مرفوع دې چه دهغې راوى خپله سيدنا عبدالله بن عمرو بن العاص دې کوم چه په ابوداؤد کتاب الجهاد کښې دى ﴿ لا يركب البحر إلاحاج أو معتمر أو غاز فى سبيل الله فإن تحت البحر نارًا أو تحت النار بحرا ﴾ پس امام ترمذى رحمه الله په جامع ترمذى کښې ليکلې دى چه عبدالله بن عمرو بن العاص د ماء البحر نه اودس مکروه ګڼړلو او دا به ئې فرمائيل چه ﴿ إنه نار ﴾ د امام ترمذى رحمه الله اشاره هم دې روايت طرف ته ده چونکه رسول الله صلى الله عليه وسلم ماء البحر ته نار فرمائيلې دې په ظاهر کښې عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما ددې نه متاثر کيدو سره د عدم جواز الوضوء بماء البحر قائل شو.

اوس پاتې شوه دا خبره چه د ﴿ ان تحت البحر نارا ﴾ څه مطلب دې؟ د بعضو رائې دا ده چه دا کلام په تشبيه باندې محمول دې مقصود ترې نه صرف د دريابى سفر خطرناکوالې بيانول دى لکه چه وئيلې شوې دى!

بدريا در منافع بيشمار است :: اگر خواهى سلامت برکنارست

او بعض وائى چه دا حديث په خپل حقيقت باندې محمول کيدې شى څکه چه جهنم د آخرې زمکې د لاندې دې او د سمندر تخصيص په ظاهر کښې په دې وجه کړې شوې دې چه په آخرت کښې به د سمندر په اوبو کښې اور لګولو سره هغه خپله جزء جهنم يعنى د جهنم خشاک جوړ کړې شى. كما قال الله تعالى : واذا البحار سجرت الآية.

د ابوداؤد ددې حديث نه معلوميږى چه دريابى سفر سوا د حج او عمرې او جهاد نه جائز نه دې حال دا چه په حديث الباب کښې چه ﴿ انا نركب البحر ﴾ دى په دې کښې بعض رواياتو کښې د ﴿للصيد﴾ زيادت دې چه دهغې نه معلوميږى چه د ښکار د پاره هم دريابى سفر جائز دې؟ ددې تعارض جواب دا دې چه د ابوداؤد دا روايت ضعيف دې بلکه ابن الجوزى رحمه الله دا په موضوعات کښې شمار کړې دې، لهذا د ښکار وغيره د پاره دريابى سفر کول جائز دى.

## د حدیث البحر درجه د قوت او ضعف په اعتبار سره :

حدیث الباب یعنی حدیث البحر د سنن اربعه صحیح ابن خزیمة او د صحیح ابن حبان روایت دې په موطاء امام مالک کښې هم دی، بهر حال په صحیحین کښې نشته امام بیهقی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله ددې حدیث تخریج په دې وجه اونکړو چه په دې کښې دوه راویان داسې دی چه د هغی په نوم کښې اختلاف دې، یو سعید بن سلمه دویم مغیره بن ابی بردة، هسې اکثرو محدثینو ددې تصحیح او تلقی بالقبول کړې دې،[1] هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله هم ددې تصحیح کړې ده کما قال الترمذی، خو په دې باندې ابن عبدالبر اشکال اوکړو چه ﴿ لوکان صحیحا عنده لأخرجه في صحیحه ﴾ حافظ فرمائی چه د ابن عبد البر دا اشکال غلط دې ځکه چه د امام بخاری رحمه الله په نزد د یو حدیث د صحیح کیدو نه دا نه لازمیږی چه هغوی دې هغې لره په خپل صحیح کښې هم راوړی ځکه چه هغوی د استیعاب قصد نه دې کړې چه کوم حدیث هم د هغوی په نزد صحیح وی هغوی دې په خپل صحیح کښې ذکر کړی.

بیا ځان پوهه کړه چه د حدیث الباب امام شافعی رحمه الله ډیر اهمیت بیان کړې دې او فرمائی چه ﴿ انه نصف علم الطهارة ﴾ چه دهغې وجه ښکاره ده چه دنیا په دوؤ حصو کښې تقسیم ده، بر او بحر په دې حدیث کښې د بحر د پاکوالی او ناپاکوالی ټول مسائل راغلل

## بَابُ الْوُضُوءِ بِالنَّبِيذِ

### باب دې په بیان د اودس کولو په نبیذ باندې

### د دې باب سره متعلق پنځه بحثونه :

دلته څو خبرې دی

١: د نبیذ تعریف په لغت او عرف کښې، ٢: ددې اقسام،

٣: ددې اقسامو احکام، ۴: د نبیذ مختلف فیه تعین،

۵: د حدیث الوضوء بالنبیذ ثبوت.

### بحث اول : د نبیذ لغوی او عرفی تعریف:

نبیذ د نبذ نه دې چه دهغې معنی ده: اچول، د فعیل صیغه ده د مفعول په معنی کښې یعنی منبوذ. دا یو قسم شربت دې کوم چه د مختلفو څیزونو، تمر، زبیب، عسل، حنطه او شعیر وغیره نه جوړیږی، خو زیات تر نبیذ د تمر وی، هم دې لره به رسول الله ﷺ څکلو، ددې طریقه دا ده چه د کوم څیز نبیذ جوړول وی مثلا کهجور یا اوسکې هغه د ماښام په وخت په اوبو کښې خوشتې کړې شی او سحر کښې چه کله په هغې کښې خوږوالې پیدا شی نو اوڅکلې شی یا سحر په اوبو کښې کیخودلې شی او ماښام اوڅکلې شی

### بحث ثانی و ثالث : د نبیذ اقسام او احکام

[1] البته ابن دقیق العید (رح) په دې حدیث باندې کلام کړې دې او دانې معلل گرځولې دې.

د احکاماتو په اعتبار سره ددې درې قسمونه دی:
(۱) اول دا چه کهجورې د لږ ساعت دپاره په اوبو کښې خوشتې کړې شی، او بیا راویستلې شی چه د خوږ والی اثر لا په اوبو کښې نه وی راغلې،
(۲) دویم قسم دا دې چه دومره ساعت په اوبو کښې کیخودلې شی چه په دې اوبو کښې تغیر راشی حدت او تیزی، زګ او نشه پیدا شی،
(۳) او دریم صورت دا دې چه دومره ساعت په اوبو کښې خوشتې کړې شی چه په اوبو کښې صرف خوږ والې پیدا شی او هیڅ قسم تغیر تیزی یا زګ پکښې پیدا نه شی،
په قسم اول باندې اودس بالاتفاق جائز دې ځکه چه فی الواقع عرفا هغه نبیذ نه دې صرف لغةً نبیذ دې، او قسم ثانی په کوم کښې چه نشه پیدا شی په دې سره اودس بالاتفاق ناجائز دې، او قسم ثالث کوم چه درمیانه دې په هغې کښې اختلاف دې، د ائمه ثلاثه او امام ابویوسف رحمه الله په نزد په هغې سره اودس کول جائز نه دی او د امام صاحب قول دې چه په دې سره اودس جائز دې، د امام محمد رحمه الله مسلک دا دې چه په داسې نبیذ سره دې اودس هم اوکړې شی او تیمم دې هم اوکړې شی.

**بحث رابع : د نبیذ مختلف فیه تعین:**

بیا ځان پوهه کړه چه نبیذ د مختلفو څیزونو نه جوړولې شی لکه چه مخکښې تیر شو، خو د علماء کرامو اختلاف صرف په نبیذ تمر کښې دې، د تمر نه علاوه چه د نورو څیزونو نه کوم نبیذ جوړولې شی دهغې نه اودس بالاتفاق جائز نه دې، ځکه چه د وضوء بالنبیذ جواز د امام صاحب په نزد خلاف قیاس د حدیث په بناء دې، او کوم حکم چه خلاف قیاس د حدیث نه ثابت شی هغه په خپل مورد باندې منحصر وی، بل څیز په هغې باندې قیاس کول صحیح نه دی، بله دا چه امام صاحب رحمه الله کوم چه د وضوء بالنبیذ د جواز قائل دې هغه په هغه وخت کښې دې چه کله ماء مطلق نه وی اود ماء مطلق د وجود په وخت هغه هم د جواز قائل نه دې، خو د امام اوزاعی رحمه الله په نزد سره د ماء مطلق د موجودګئ په نبیذ سره اودس کول جائز دی.

دا دې هم واضحه وی چه امام صاحب رحمه الله په ابتداء کښې د نبیذ نه په اودس کولو قائل وو، بیا روستو د جمهور د مسلک طرف ته د هغوی رجوع هم ثابته ده، لهذا اوس فتوی په دې قول اخیر باندې ده هم دا امام طحاوی هم اختیار فرمائیلې دې.

**بحث خامس : دحدیث الوضوء بالنبیذ ثبوت:**

اوس پاتې شوه مسئله د دلائلو پس ځان پوهه کړه چه د امام صاحب رحمه الله استدلال د حدیث الباب یعنی دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حدیث نه دې کوم چه په لیلة الجن کښې راپیښ شوې وو، چه په هغې کښې دی چه رسول الله ﷺ د نبیذ په باره کښې اوفرمائیل **﴿ تمرة طیبة وماء طهور ﴾** او بیا ئې په هغې باندې اودس اوفرمائیلو.

[۸۴]() حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي فَزَارَةَ، عَنْ أَبِي زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ لَيْلَةَ الْجِنِّ: "مَا فِي إِدَاوَتِكَ؟ قَالَ: نَبِيذٌ. قَالَ: تَمْرَةٌ طَيِّبَةٌ وَمَاءٌ طَهُورٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَقَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ: عَنْ أَبِي زَيْدٍ أَوْ زَيْدٍ كَذَا، قَالَ شَرِيكٌ: وَلَمْ يَذْكُرْ هَنَّادٌ لَيْلَةَ الْجِنِّ.

**ترجمه**: د عبد الله مسعود رضي الله عنه نه روایت دې بیشکه نبي ﷺ اووئیل هغه ته په شپه د جن، ستا په دې لوښې کښې څه دي؟ نو هغه اووئیل نبیذ، هغه اووئیل قجوره ښه ده او اوبه پاکې دي

**تشريح**: جمهور علماء کرام ددې حدیث په تضعیف پسې لګیدلې دی، احناف د امام صاحب رحمه الله د طرف نه د جمهورو د اعتراضاتو په جواب پسې دی او په دې سره بحث اوږدیږی، خو چونکه د امام صاحب رحمه الله رجوع په دې مسئله کښې ثابت ده او بیا د جمهورو سره کیدل ئې منقول دی نو بیا په دلائلو باندې کلام او بحث کولو ته حاجت نشته، صاحب د بحر الرائق هم لیکلي دی، خو چونکه دا خبره یقیني ده چه شروع کښې امام صاحب په دې باندې د اودس د جواز قائل وو نو سوال واردیږی چه آخر د کوم دلیل په بناء قائل وو او په کومه درجه کښې ددې دلیل ثبوت دې دا معلومیدل پکار دی، په دې وجه دا بحث بیانول ته حاجت وی پس په دلائلو باندې حضرت په بذل کښې کلام فرمائیلې دې او حدیث الباب کوم چه د امام صاحب رحمه الله مستدل وو دا ئې ثابت منلې دې او په دې باندې ئې د جمهور محدثینو د طرف نه چه کوم اعتراضات کولې شی دهغې جوابات ئې ورکړې دی لهذا مونږ هم په دې باندې څه کلام کوو

پس ځان پوهه کړه چه حدیث الوضوء بالنبیذ کوم چه مصنف رحمه الله په دې باب کښې ذکر کړې دې دا د سنن ثلاثه ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه روایت دې هم دغه شان طحاوی او مسند احمد کښې هم موجود دې، شیخین او امام نسائی ددې تخریج نه دې فرمائیلې جمهور محدثینو په دې باندې دریو طریقو سره کلام کړې دې

اشکال ۱ ددې حدیث په سند کښې ابوزید راوی دې کوم چه په اتفاق د محدثینو مجهول دې، پس ابن عبدالبر رحمه الله د هغوی په مجهول کیدو باندې اتفاق نقل کړې دې امام ترمذی رحمه الله هم دغه شان نقل فرمائیلې دی چه دا مجهول دې، د حدیث نبیذ نه علاوه بل یو حدیث هم د هغه نه نۀ دې روایت کړې شوې؟

**جواب** علامه عینی رحمه الله ددې اعتراض جواب دا ورکړې دې چه ابن العربی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث د ابوزید نه راوی مذکور فی السند ابوفزاره نه علاوه ابو روق هم روایت کوی. علامه عینی وائی چه هر کله د ابوزید نه روایت کونکی دوه شو نو بیا ابوزید د حد جهالت نه خارج شو ،ځکه چه مجهول العین هغه ته وائی من لم یرو عنه الا واحد) بیا علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث د ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت کونکې صرف ابوزید نه دې بلکه

(): سنن الترمذي/الطهارة ٦٥ (٨٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٧ (٣٨٤)، (تحفة الأشراف: ٩٦٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٢/١) (ضعيف)

د ابوزید نه علاوه یو جماعت هم دا د هغوی نه روایت کوی او عینی اربعة عشر رجلا یعنی څوارلس راویان سره د کتب حدیث د حوالې داسې شمار کړی دی کوم چه دا حدیث د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کوی، د هغه څوارلسو راویانو بیان په بذل المجهود کښې موجود دې هلته کتلې شی. دا د اول اشکال جواب شو

اشکال ۲ دویم اشکال ددې حضراتو په دې حدیث باندې دا دې چه دا حدیث د اخبار احاد نه دې کوم چه د کتاب الله د اطلاق خلاف دې ځکه چه کتاب الله کښې خو دا دی چه که ماء مطلق بیا نه مومئ نو تیمم اوکړئ او ظاهره ده چه نبیذ ماء مطلق نه دی بلکه ماء مقید دی لهذا تیمم کول پکار دی. د اودس دپاره ماء مطلق ضروری دی؟

**جواب** : ددې اشکال جواب حضرت په بذل کښې دا ورکړې دې چه چونکه د وضوء بالنبیذ بعض اکابر صحابه کرام رضی الله عنهم قائل وو لکه علی، ابن مسعود. ابن عمر او ابن عباس رضی الله عنهم لهذا دې حدیث ته د عمل صحابه او تلقی بالقبول د وجې نه د حدیث مشهور درجه ورکړې کیدې شی، او په داسې قسم حدیث سره اطلاق دکتاب الله کښې ترمیم او تخصیص جائز دې

اشکال ۳ دریم اشکال په دې حدیث باندې د جمهورو د طرف نه دادې چه په صحیح مسلم او خپله په سنن ابوداؤد کښې په یو روایت کښې دا دی چه علقمه د خپل استاذ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه په لیلة الجن کښې ستاسو نه یو تن د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو نو هغوی جواب ورکړو ﴿ ما کان معه منا أحد ﴾ امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې فرمائی چه دا حدیث صریح دلیل دې ددې خبرې چه د وضوء بالنبیذ هغه حدیث کوم چه په سنن ابوداؤد وغیره کښې موجود دې هغه باطل دې او دهغې هیڅ اصل نشته؟

**جواب** : زمونږ د طرف نه ددې دا جواب کړې شوې دې ننچه د لیلة الجن واقعه لکه چه مشهوره ده څو کرته راپیښه شوې ده، د جناتو وفدونه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې په مختلفو زمانو کښې شپږ کرته حاضر شوې دی لکه چه په آکام المرجان فی احکام الجان کښې لیکلې شوې دی، اول ځل خاص په مکه کښې، هغه وخت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره نه وو، دویم ځل هم په مکه کښې په مقام جحون باندې چه یو غونډئ ده، په دریم ځل د مکې په یو بل مقام کښې، څلورم ځل په مدینه منوره بقیع الغرقد کښې، په دې درې وارو کرتو کښې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو، او پنځم ځل د مدینې طیبې نه بهر، دې ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره زبیر بن العوام رضی الله عنه وو او شپږم ځل په بعض سفرونو کښې، دې وخت کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بلال بن الحارث رضی الله عنه وو (دا هغه بلال نه دې کوم چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم موذن دې هغه خو بلال بن رباح رضی الله عنه دې)

د دې دریم اشکال نور هم جوابونه کړې شوی دی مثلا دا چه ﴿ ما کان معه منا احد ای غیری ﴾ یعنی زما نه علاوه څوک هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره نه وو یا مراد دا دې چه خاص په مقام د تعلیم کښې چرته چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د جناتو مقدمې فیصله کړې وې هلته د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره څوک هم نه وو ځکه چه منقول دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم جناتو ته د ورتللو نه مخکښې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په لاره کښې یو ځائې کښې اودرولو سره کینولې وو چه ته

هم دلته اوسيږه وړاندي مه راځه او په دې خائې کښې رسول اللهﷺ د هغوی د حفاظت په غرض باندې حصار جوړ کړې وو پس دوی هم هلته ناست وو او رسول اللهﷺ سحر ته نزدې نزدې د جناتو نه واپس تشريف راوړلو، هغه وخت چونکه د مانځه وخت شوې وو په دې وجه رسول اللهﷺ د هغوی نه تپوس اوفرمائيلو چه په حديث الباب کښې دی ﴿ ما فی اداوتک؟ ﴾ دا د مشهور ايراداتو جوابات دی حاصل دا چه حديث ثابت دې لهذا وضوء بالنبيذ جائز دې. ...

## په وضوء بالنبيذ کښې د امام محمدؒ رائې:

په دې مسئله کښې د امام محمدؒ رائې دا ده چه جمع بين الوضوء والتيمم دې اوکړې هغوی فرمائی چه آيت تيمم خو متعين دې چه مدنی دې او د ليلة الجن واقعه په مکه کښې هم پيښه شوې وه او په مدينه کښې هم، د ليلة الجن واقعه که مکی وې نو دغه آيت کريمه به ناسخ منلې شوې وې ځکه چه آيت کريمه روستنې دې مدنی دې خو چونکه ليلة الجن خپله په مدينه کښې هم پيښه شوې ده، په دې وجه په يقين سره نه شی وئيلې چه د آيت کريمه نزول موخر دې په دې وجه د عبد الله بن مسعودؓ د حديث په منسوخ کيدو کښې تردد راغلو په دې وجه د احتياط تقاضه داده چه وضوء بالنبيذ او تيمم دواړه دې اوکړې شی.

[۸۵](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ دَاوُدَ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قُلْتُ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ: "مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْجِنِّ؟ فَقَالَ: مَا كَانَ مَعَهُ مِنَّا أَحَدٌ".

**ترجمه:** د علقمه نه روايت دې هغه وائی ما عبد الله بن مسعود ته اووئيل: په تاسو کښې څوک وو د رسول اللهﷺ سره په شپه د جن کښې؟ نو هغه اووئيل: نه وو د هغه سره زمونږ نه هيڅ څوک.

**تشريح:** ۲: ﴿ ما کان معه منا احد ﴾ د مصنفؒ د طرز عمل نه معلوميږی چه اګرچه هغوی د وضوء بالنبيذ باب تړلې دې خو هغوی ددې قائل نه دی او نه هغوی حديث الوضوء بالنبيذ لره ثابت منی، غالبا هم په دې وجه هغوی مسلسل څو څيزونه داسې ذکر کړې دی کوم چه دهغې خلاف دی مثلا يو خو هم دا حديث دې ﴿ ما کان معه منا احد ﴾ او بيا وړاندې تلو سره ئې د عطاء بن ابی رباحؒ مسلک ذکر کړې دې. ﴿ انه کره الوضوء باللبن والنبيذ ﴾ ددې نه پس ئې اثر د ابو العاليه ذکر کړو دا ابو العاليه په کبار تابعينو کښې دې بلکه محضرم دې زمانه د جاهليت ئې او د اسلام دواړه ئې موندلې دی، د رسول اللهﷺ د وفات نه روستو ئې اسلام قبول کړو هغوی نه چا د اغتسال بالنبيذ مسئله اوتپوسله چه که د يو سړی سره ماء مطلق نه وی نو هغه په نبيذ سره غسل کولې شی او که نه؟ نو هغوی جواب ورکړو چه نه شی کولې.

(1): صحيح مسلم/الصلاة ۳۳ (۴۵۰)، سنن الترمذي/تفسير القرآن ۴۶ (۳۲۵۸)، (تحفة الأشراف: ۹۴۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۴۳۶) (صحيح)

[۸٦]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، "أَنَّهُ كَرِهَ الْوُضُوءَ بِاللَّبَنِ وَالنَّبِيذِ، وَقَالَ: إِنَّ التَّيَمُّمَ أَعْجَبُ إِلَيَّ مِنْهُ".

**ترجمه**: د عطاء نه روایت دي چه هغه مکروه ګنړلی دی اودس کول په شودو او په نبیذ، او وئیلي دي: چه تیمم ډیر خوښ دی ماته دهغې نه.

[۸۷]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا أَبُو خَلْدَةَ، قَالَ: "سَأَلْتُ أَبَا الْعَالِيَةِ عَنْ رَجُلٍ أَصَابَتْهُ جَنَابَةٌ وَلَيْسَ عِنْدَهُ مَاءٌ وَعِنْدَهُ نَبِيذٌ، أَيَغْتَسِلُ بِهِ؟ قَالَ: لَا".

**ترجمه**: ابو خلده وایي: چه ما تپوس اوکړو د ابو العالیه نه، د یو سړي په باره کښې چه جنابت ورته رسیدلی وي او د هغه سره اوبه نه وي، او د هغه سره نبیذ وی آیا په هغې به غسل کوي؟ نو هغه اووئیل نه.

### د اغتسال بالنبیذ حکم :

خو ځان پوهه کړه چه مسئله د اغتسال بالنبیذ خپله زمونږ د مشائخو ترمینځه مختلف فیه ده، د امام صاحب رحمه الله نه خو په دې مسئله کښې هیڅ تصریح نه ده روایت کړې شوې د امام صاحب رحمه الله د طرف نه بعضو مشائخو جواز او بعض عدم جواز نقل فرمائیلي دې، دویمه خبره دا ده چه امام ابوداؤد رحمه الله اثر د ابوالعالیه دلته پوره نه دې ذکر کړې، د هغوی پوره روایت په دارقطنی کښې موجود دې کوم چه حضرت په بذل کښې نقل فرمائیلي دې او په هغې کښې دا زیادت دې چه کله ابوالعالیه د غسل بالنبیذ انکار اوکړو نو سائل هغوی ته د لیلة الجن واقعه وریاده کړه ځکه چه دهغې نه جواز معلومیږی نو په دې باندې ابوالعالیه اوفرمائیل : ﴿ انبذتکم هذه الخبیثة انما کان ذلک زبیبا وماء ﴾ ددې نه د ابوالعالیه صحیح مسلک معلوم شو هغه دا چه هغوی چه کوم د غسل بالنبیذ انکار فرمائیلي وو ددې نه هغه نبیذ مراد وو کوم چه نجس او خبیث یعنی مسکر وی د داسې قسم نبیذ نه د جواز هیڅ څوک هم قائل نه دی.

## بَاب أَيُصَلِّي الرَّجُلُ وَهُوَ حَاقِنٌ

### باب دې په بیان ددې کښې چې ایا سړی به مونځ کوي چې اودس ماتی ورغلی وي

د دې کتاب ابواب او مضامین ډیر مرتب دی، په ترمذی شریف کښې خو ډیر ابواب بې محل راشی، خو په ابوداؤد کښې دا باب هم بې محل شان دې، یا خو دې دا په مکروهات صلوة کښې وې او لا تر اوسه پورې مکروهات صلوة نه دی شروع شوې، یا په ابواب الاستنجاء کښې کیدل پکار وو کوم چه مخکښې تیر شوی دی.

### د مسئلة مترجم بها حکم او اختلاف ائمة :

حاقن وئیلې شی حابس البول ته یعنی چاته چه د متیازو تقاضا وی خو هغه منع کړې وی او

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٠٦٢) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٦٤٠) (صحيح)

ددې بالمقابل لفظ د حاقب دې یعنی حابس الغائط چاته چه د لوئې استنجاء حاجت وی او هغه منع کړې وی دا هم هغه مسئله ده د کومې نه چه فقهاء کرامو په صلوة عند مدافعة الاخبثين سره تعبير فرمائيلې دې، په دې صورت کښې مونځ شروع کول بالاتفاق مکروه تحريمي دی، بلکه د مالکيانو په نزد خو بعض صورتونو کښې د مونځ اعاده واجبيږی، د هغوی په نزد په دې مسئله کښې څه تفصيل دې کوم چه صاحب منهل ذکر کړې دې، په اوجز کښې د ابن عبدالبر رحمه الله نه نقل کړې شوې دی چه که يو سړې په دې حالت کښې مونځ اوکړی نو د امام مالک رحمه الله يو روايت دې چه ﴿ يعيد فی الوقت ﴾ يعنی په وخت کښې دننه دننه ئې اعاده ضروری ده او که وخت تير شو نو بيا خير دې مونځ ئې کيږی.

دويم صورت دا دې چه د مونځ شروع کولو په وخت خو مدافعت يعنی د استنجاء تقاضه نه وه خو د مونځ شروع کولو نه پس تقاضا پيدا شوه ددې صورت هم دا حکم دې چه هغه لره مونځ قطع کول پکار دی خو که قطع ئې نه کړو نو مونځ به ئې صحيح شی، د امام ترمذی رحمه الله د کلام نه معلوميږی چه د بعض علماء کرامو په نزد په دې دواړو صورتونو کښې لږ شان فرق دې هغه دا چه د مدافعت اخبثين په وخت شروع خو دې مطلقا نه کوی، خو د شروع کولو نه پس که مدافعت وی نو په مونځ قطع کولو کښې دې تندی نه کوی تر څو پورې چه ددې حالت زياته تقاضا نه وی.

د دې نه پس خان پوهول پکار دی چه په دې حالت کښې د مونځ نه د منع کولو د ممانعت علت څه دې؟ په دې کښې اختلاف دې کوم چه ابن العربی رحمه الله په شرح د ترمذی کښې بيان کړې دې، هغوی ليکی د بعضو په نزد علت منع شغل بال دې يعنی د زړه توجه او خيال به ئې ټول د استنجاء طرف ته وی په دې وجه کراهت دې او د امام احمد رحمه الله نه نقل دی هغوی فرمائی چه علت د منع انتقال حدث دې يعنی د متيازو د خپل مستقر او معدن نه منتقل کيدل دی، اګرچه خروج ئې نه وی شوې خو د خپل ځائې نه ئې انتقال شوې دې ګويا دا مذکوره سړې د نجاست بارونکې شو او حمل نجاست مفسد صلوة دې، لکه چه يو سړې په شيشه کښې متيازې واخلی او د مانځه په وخت ئې په جيب کښې کيږدی او کوم نجاست چه په خپل معدن او مستقر کښې وی نو اګرچه هغه په مانځه کښې د مونځ ګزار سره دې خو هغه معاف دې (د دې علت تقاضه دا ده چه د مانځه اعاده واجب کيدل پکار دی، پس د امام احمد رحمه الله په نزد د منئ د خپل محل نه منتقل کيدل سبب د غسل دې اګرچه په خارج کښې ددې ظهور نه وی شوې) او مالکيان وائی کوم چه په بعض صورتونو کښې د مونځ د اعادې کولو قائل دی لکه چه په بيان د مذاهبو کښې تير شوې دی چه د سختې تقاضې په وخت به ئې سړې په سختئ سره بندوی او دا به مفضی شی د عمل کثير طرف ته، او عمل کثير مفسد د صلوة دې.

.........

[۸۸]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْأَرْقَمِ، أَنَّهُ خَرَجَ حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا وَمَعَهُ النَّاسُ وَهُوَ يَؤُمُّهُمْ، فَلَمَّا كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ أَقَامَ الصَّلَاةَ صَلَاةَ الصُّبْحِ، ثُمَّ قَالَ: لِيَتَقَدَّمْ أَحَدُكُمْ وَذَهَبَ إِلَى الْخَلَاءِ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَذْهَبَ الْخَلَاءَ وَقَامَتِ الصَّلَاةُ، فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى وُهَيْبُ بْنُ خَالِدٍ، وَشُعَيْبُ بْنُ إِسْحَاقَ، وَأَبُو ضَمْرَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَجُلٍ حَدَّثَهُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَرْقَمَ، وَالْأَكْثَرُ الَّذِينَ رَوَوْهُ عَنْ هِشَامٍ، قَالُوا كَمَا قَالَ زُهَيْرٌ.

**ترجمه**: د عبد الله بن الارقم نه روايت دې، بيشکه هغه راووتلو د حج په نيت، او يا د عمري په نيت او د هغه سره خلق وو، او هغه ورته امامت کولو، هر کله چه يوه ورځ شوه نو مونځ ئې اودرولو، د سحر مونځ، بيا ئې اووئيل: يو کس دې ستاسو نه مخکښې شي او خپله لاړو بيت الخلاء ته، بيشکه ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه هغه به ويل: کله چه اراده اوکړي يو ستاسو نه چه لاړ شي بيت الخلاء ته او مونځ اودريږي، نو شروع دې اوکړي په بيت الخلاء. ابوداؤد وائي: وهيب بن خالد، شعيب بن اسحاق او ابو ضمره هم دا حديث دهشام بن عروه نه روايت کړې دې، هشام دخپل پلار عروه نه، او عروه د يو مبهم (نامعلوم) سړي نه، اوهغه د عبدالله بن ارقم رضي الله عنه نه بيان کړې دې، ليکن د هشام نه د روايت کونکو اکثريت دهغه نه همدغسې روايت کړې دې څرنګه چه زبير روايت کړې دې (يعنى د عَن رَجلٍ اضافه ئې نه ده کړې).

### مضمون حديث:

د حديث الباب حاصل د ادې چه عروه رحمه الله فرمائى عبدالله بن ارقم رضي الله عنه صحابى يو ځل سفر حج يا عمرې ته روان وو، هغوى سره ډېر ملګرى په دې سفر کښې شريک شو، په لار کښې به د مانځه امامت هم هغوى فرمائيلو، عروة رحمه الله فرمائى چه د يوې ورځې خبره ده چه د سحر د مانځه وخت وو هغوى د مانځه دپاره تکبير شروع کړو او د اقامت د شروع کولو نه پس ئې اوفرمائيل چه په حاضرينو کښې دې څوک وړاندې راتلو سره امامت اوکړى، او خپله ئې د استنجاء دپاره تشريف يوړو، وړاندې په روايت کښې دى ﴿ فانى سمعت الخ ﴾ په دې کښې دوه احتمالات دى يا خو هغوى هم په دې وخت د تلو نه مخکښې دا حديث واورلو او دا هم احتمال دې چه د واپس راتلو نه پس به ئې اورولې وى، د حديث مضمون دا دې چه د کوم سړي اراده د استنجاء دپاره د تلو وى او بل طرف ته مونځ اودريږى نو هغه له پکار دى چه استنجاء مقدم کړى.

### د اختلاف فى السند تشريح او توجيه:

﴿ قال ابوداؤد روى وهيب بن خالد الخ ﴾ د مصنف رحمه الله غرض د هشام د شاګردانو اختلاف بيانول دى هغه اختلاف دا دې چه عروه دا واقعه د عبدالله بن ارقم رضي الله عنه نه براه راست بيانوى

---

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ۱۰۸ (۱۴۲)، سنن النسائي/الإمامة ۵۱ (۸۵۱)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۱۴ (۶۱۶)، (تحفة الأشراف: ۵۱۴۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ صلاة السفر ۱۷ (۴۹)، مسند احمد (۴/۳۵)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۳۷ (۱۴۶۷) (صحيح)

او که په مینځ کښې ئې څه واسطه شته؟ پس د زهیر روایت کوم چه په شروع کښې راغلو هغه بغیر د واسطې نه دې، او په کومو روایتونو کښې چه مصنف رحمه الله حواله ورکوې یعنی وهیب، شعیب او ابوضمره ددې درې وارو په روایت کښې د عروه او صحابی ترمینځه د یو رجل مبهم واسطه ده، ددې اختلاف د ذکر کولو نه پس منصف رحمه الله فرمائی چه د هشام اکثر شاګردانو هم دغه شان روایت کړې دې څنګه چه زهیر یعنی بغیر د واسطې نه لهذا هم هغه راجح دې

حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې لیکلې دی چه هم دا رائې د امام ترمذی رحمه الله ده هغوی هم د عدم واسطې روایت ته ترجیح ورکړې ده او حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې د تهذیب به حوالې سره لیکلې دی چه امام ترمذی رحمه الله په العلل المفرد کښې لیکلې دی چه امام بخاری رحمه الله د واسطې روایت لره ترجیح ورکړې ده.

اوس که دواړه روایتونه صحیح وی نو د تطبیق شکل به څه وی؟ نو په دې صورت کښې حضرت په بذل کښې دا لیکلې دی چه کیدې شی چه په دې سفر کښې عروه د عبدالله بن ارقم رضی الله عنه سره نه وو او ددې واقعې روایت هغوی ته بالواسطه رسیدلې وی او ددې نه پس د عروه رحمه الله ملاقات د عبدالله بن ارقم رضی الله عنه سره شوې وی او د هغوی نه ئې براه راست هم واقعه اوریدلې وی خو حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې د اوجز په حوالې سره لیکلې دی چه د مصنف عبدالرزاق د روابت نه د عروه په دې سفر کښې یو ځائې کیدل معلومیږی لهذا دا توجیه دې اوکړې شی چه عروه ورسره اګرچه په سفر کښې ملګرې وو خو خاص په دې موقع باندې موجود نه وو په دې وجه ئې اول بالواسطه واوریدل او په دویم ځل ئې بغیر د واسطې نه.

[۸۹]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى الْمَعْنَى، قَالُوا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي حَزْرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ ابْنُ عِيسَى فِي حَدِيثِهِ: ابْنُ أَبِي بَكْرٍ، ثُمَّ اتَّفَقُوا أَخُو الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ عَائِشَةَ فَجِيءَ بِطَعَامِهَا، فَقَامَ الْقَاسِمُ يُصَلِّي، فَقَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يُصَلَّى بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ وَلَا وَهُوَ يُدَافِعُهُ الْأَخْبَثَانِ".

**ترجمه**: بیان کړې دی عبد الله بن محمد ، هغه وئیلی دي وو مونږ د عائشې سره نو راوړلی شو طعام د هغې. نو پاڅیدلو قاسم چه مونځ ئې کولو، نو هغې ورته اووئیل چه ما اوریدلي دي د رسول الله ﷺ نه چه وئیل یې مونځ به نه شې کیدې کله چه دوډۍ موجود وی. او نه په داسې حال کښې چه هغه لره دوه ناخوښه څیزونو (ډک او تش اودس ماتې) زور ورکړې وی.

## د سند وضاحت

قوله ﴿ قال ابن عیسی فی حدیثه ابن ابی بکر الخ ﴾ په دې حدیث کښې د مصنف رحمه الله درې استاذان دی چه په هغوی کښې یو استاذ یعنی ابن عیسی د عبدالله بن محمد کوم چه په

(): صحیح مسلم/المساجد ۱۶ (۵۶۰)، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۶۹، ۱۶۲۸۸)، مسند احمد (۶/۴۳، ۵۴) (صحیح)

سند کښې ذکر شوې دې د هغوی صفت ابن ابی بکر بیان کړو په خلاف د دوه استاذانو احمد بن حنبل او مسدد چه هغوی ورته صرف عبدالله بن محمد اووئیل، خو د عبدالله بن محمد بل صفت اخو القاسم بن محمد ټولو بیان کړې دې

ځان پوهه کړه چه عبدالله بن محمد دوه دی یو عبدالله بن ابی بکر او دویم عبدالله بن محمد بن عبدالرحمن بن ابی بکر قاسم په دې دواړو کښې د رومبی حقیقی رور دې د دواړو د نسب سلسله دې د نقشې نه فهم کړې شی!




اوس چه کوم راوی صرف عبدالله بن محمد وئیلې دې په دې کښې دوه احتمالونه وو، یا خو به نقشه کښې ذکر شوې ښی طرف والا عبدالله وی یا ګس طرف والا، یو د ابوبکر نمسې او بل کړوسې دې، اوس چه کوم راوی د ابن ابوبکر د صفت اضافه اوکړه نو هغه ګویا د ښی طرف والا تعیین اوکړو او وړاندې تلو سره د مصنف رحمه الله ټولو استاذانو بل صفت یعنی اخو القاسم بیان کړې دې ددې صفت هم تقاضا دا ده چه دا عبدالله بن محمد بن ابی بکر وی.

خو د صحیح مسلم د روایت نه معلومیږی چه عبدالله بن محمد ګس طرف والا دی یعنی عبدالله بن محمد بن عبدالرحمن بن ابی بکر او حافظ په تهذیب کښې لیکلې دی چه محفوظ هم هغه دې کوم چه د مسلم په سند کښې دې، اوس که دا خبره وی نو بیا به هغوی ته اخو القاسم بن محمد وئیل مجازا وی ځکه چه دا عبدالله د قاسم حقیقی رور نه دې بلکه تره ځوئې ئې دې یعنی د ترهٔ د خوی خوئې

## مضمون حدیث :

وړاندې د حدیث مضمون دا دې چه عبدالله بن محمد وائی زه او قاسم دواړه خپلې ترور عائشې رضی الله عنها کره وو، لږ ساعت پس دودئ راغله نو په ځائې ددې چه قاسم د خوراک طرف ته متوجه شوې وې فوراً اودریدلو او د مونځ نیت ئې اوتړلو ګویا د خوراک نه ئې اعراض اوکړو. په دې باندې عائشې رضی الله عنها هغوی ته تنبیها اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه هغوی فرمائیل چه کله خوراک کیخودلې شی نو مونځ نه دی شروع کول

پکار، او نه د مدافعة الاخبثين په وخت کښې کول پکار دی، په دې حدیث کښې دوه اجزاء دی، د عائشې رضي الله عنها مقصود جزء اول دې یعنی ﴿ لا یصلی بخضرة الطعام ﴾ او د مصنف رحمه الله مقصود جزء ثاني دې لکه چه ظاهره ده.

دلته دا سوال پیدا کیږی چه حضرت قاسم رحمه الله داسې ولې اوکړل؟ جواب دا دې چه د ابوداؤد په دې روایت کښې خو اختصار دې، صحیح صورت حال د مسلم شریف د روایت نه معلومیږی چه دهغې خلاصه دا ده چه د عائشې رضي الله عنها ورارهٔ عبدالله خو فصیح اللسان وو، صفا خبرې به ئې کولې، او دا قاسم غیر فصیح وو، د هغوی خبرې صفا او مزیدارې نه وې، پس د مسلم په روایت کښې دی ﴿ وکان القاسم رجلا لحانة ﴾ یعنی د هغوی په کلام کښې لحن ډیر موندلې شو، لحانة بروزن علامة، تآء په دې کښې د تآنیث نه ده بلکه د مبالغې دپاره ده لکه د علامة په شان، سیده عائشه رضي الله عنها خپله هم ډیره فصیح اللسان وه نو هغوی قاسم ته تنبیه اوکړه چه ﴿ ما لک لا تتحدث کما یتحدث ابن اخی هذا ﴾ یعنی په تا باندې څه چل دې ته داسې صفا خبرې ولې نه کوې لکه زما دا بل ورارهٔ چه ئې کوی او ددې دپاسه ئې قاسم ته د هغه په مور باندې پیغور ورکړو ځکه چه هغه په اصل کښې ام ولد وه، په دې باندې هغه خفه شو او د عائشې رضي الله عنها په ډوډئ لیدلو باندې ئې د مانځه نیت اوتړلو چه هر کله ته مونږ سره داسې معامله کوې نو مونږ به هم ستا ډوډئ نه خورو. په دې باندې عائشې رضي الله عنها هغه حدیث واورولو کوم چه دلته په کتاب کښې مذکور دی

## لا یصلی بحضرة الطعام شرح او فقهی مسئله

د دې حدیث جزء اول یعنی د طعام دحاضریدو په وخت مونځ نه کول. دا مشهور حدیث دې کوم چه په مختلفو الفاظو سره روایت کړې شوې دې، په بعض روایتونو کښې داسې دی ﴿اذا حضر العِشاء والعَشاء فابدؤا بالعَشاء ﴾ په دې باندې فقهی حیثیت سره کلام دا دې چه که یو سړې د خوراک د حاضریدلو باوجود اول مونځ اوکړی نو د جمهور علماء کرامو او د ائمه اربعه په نزد به د هغه مونځ صحیح وی، او د اهل ظواهر په نزد به صحیح نه وی، علامه شوکانی رحمه الله د امام احمد مذهب هم داسې لیکلې دې چه مونځ به ئې صحیح نه وی، خو حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی چه ﴿ النقل عن احمد لیس بصحیح ﴾ بلکه هغوی په دې مسئله کښې د جمهورو ملګری دی لکه چه په مغنی وغیره کښې تصریح ده. د جمهور علماء کرامو په نزد په دې حدیث کښې نهی د تنزیه دپاره ده او د ظاهریه په نزد د تحریم دپاره ده. بله دا چه د جمهور په نزد د تقدیم طعام حکم هغه وخت دې چه کله د مانځه په وخت کښې ګنجائش وی او که وخت تنګ وی نو بیا د مانځه تقدیم واجب دې، پس د ابوداؤد په کتاب الاطعمة کښې حدیث د جابر رضي الله عنه راروان دې ﴿ لا تؤخر الصلوة لطعام ولا لغیره﴾ دا حدیث هم په دې صورت باندې محمول دې، یعنی چه کله وخت تنګ وی، زمونږ په دې تقریر سره د دواړو احادیثو تعارض هم ختمیږی، یو بل جواب هم شته هغه دا چه حدیث د جابر رضي الله عنه ضعیف دې او د تقدیم طعام والا روایت صحیح او متفق علیه دې.
بله دا چه علامه شوکانی رحمه الله په دې حدیث باندې لیکی چه ظاهر ددې حدیث نه

اطلاق معلومیږی خو امام غزالی رحمه الله د فساد طعام د ویرې قید لګولې دې یعنی که د طعام په تاخیر کښې د طعام د خرابوالی ویره وی نو بیا خو د تقدیم حکم دې ګڼلې نه دې، او شوافعو په دې کښې د احتیاج قید لګولې دې، یعنی که سخته لوږه ده نو بیا خو د تقدیم حکم دې ګڼلې نه دې. او امام مالک رحمه الله دا د طعام قلیل سره مقید کړې دې یعنی که څوک صرف دوه څلور نمړئ خوری د هغه دپاره تقدیم عشاء دې زه وایم شوکانی د مالکیانو مذهب هم دا لیکلې دې، خو حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې لیکلی دی چه الشرح الکبیر او دسوقی (کوم چه د مالکیانو د کتابونو نه دی) کښې لیکلی دی چه امام مالک رحمه الله د تقدیم عشاء حدیث بالکل اختیار کړې نه دې د عمل اهل مدینه د وجې نه، پس هغوی د تقدیم عشاء قائل نه دی خو په الشرح الکبیر کښې لیکلې شوې دی چه د صائم دپاره مستحب ده چه هغه د غروب نه پس د صلوٰة مغرب نه مخکښې په څو کهجورو سره روژه ماته کړی او بیا دې باقاعده تعشی د ماښام د مانځه نه پس اوکړی بله دا چه علامه دسوقی لیکی چه بعض مالکیانو د تقدیم عشاء والا حدیث په اکل خفیف (لکه د څو کهجورو دانې یا اوسکو) باندې محمول کړې دې او احنافو دا په شغل بال سره مقید کړې دې. لکه چه د امام طحاوی رحمه الله په مشکل الاثار کښې دی یعنی که د تقدیم صلوٰة په صورت کښې ویره وی چه توجه او خیال به په خوراک کښې وی نو بیا دا حکم دې ځکه چه انسان په ظاهر کښې په خوراک کښې مشغول وی او زړه ئې په مانځه کښې مشغول وی دا غوره ده ددې نه چه په ظاهره په مانځه کښې ولاړ وی او زړه ئې د خوراک طرف ته متوجه وی، د امام صاحب رحمه الله نه منقول دی ﴿ لان یکون طعامی کلها صلوة احب الی من ان تکون صلوتی کلها طعاما ﴾ او ابن العربی دا حدیث په صائم باندې محمول کړې دې چه صرف د هغه دپاره د تقدیم عشاء حکم دې

[۹۰]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا ابْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ شُرَيْحٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ أَبِي حَيٍّ الْمُؤَذِّنِ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلَاثٌ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَفْعَلَهُنَّ: لَا يَؤُمُّ رَجُلٌ قَوْمًا فَيَخُصُّ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ دُونَهُمْ فَإِنْ فَعَلَ فَقَدْ خَانَهُمْ، وَلَا يَنْظُرُ فِي قَعْرِ بَيْتٍ قَبْلَ أَنْ يَسْتَأْذِنَ فَإِنْ فَعَلَ فَقَدْ دَخَلَ، وَلَا يُصَلِّي وَهُوَ حَقِنٌ حَتَّى يَتَخَفَّفَ".

**ترجمه**: د ثوبان نه روایت دې هغه وائی چه وئیلی دي رسول الله ﷺ درې کارونه دې چه د هیچا لپاره جائز نه دې چه هغه اوکړي امامت دې نه کوي سړی یو قوم ته چه خاص کوي خپل نفس په دعاء کښې بغیر د هغوی نه. که چېرې داسې ئې اوکړه نو خیانت ئې ورسره اوکړو. او نه دې ګورې دننه د کور ته مخکښې د اجازت نه. که چېرې داسې ئې اوکړه نو هغه ورته داخل شو. او مونځ دې نه کوي په داسې حالت کښې چه متیازو تینګ کړی وي تر دې چه ځان سپک کړي

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ۱۴۸ (۳۵۷)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۳۱ (۹۲۳)، (تحفة الأشراف: ۲۰۸۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸۰/۵) (ضعیف)

**تشریح** قوله ﴿ عن ثوبان ﴾ په دې حدیث کښې درې خبرې اوکړې شوې خو دلته د حدیث صرف دریم جزء ﴿ولا یصلی وهو حقن﴾ مقصود بالذات دې. په دې دریم جزء باندې خو کلام راغلې دې

**د ابن القیم رحمه الله په دې حدیث باندې نقد او د هغې جواب**

په دې حدیث کښې دوه اجزاء دی ﴿ لَا يَؤُمُّ رَجُلٌ قَوْمًا فَيَخُصُّ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ دُونَهُمْ ﴾ یعنی که یو سړې خلقو ته مونځ ورکوی نو هغه امام له پکار دی چه دعاء دې د ځان دپاره نه خاص کوی بلکه مقتدیان دې هم په دعاء کښې شامل کړی ګینې دا به خیانت وی ابن قیم رحمه الله دې حدیث ته وهم وئیلې دې او ددې وجه دا بیانوی چه د رسول الله ﷺ نه چه کومې دعاګانې منقول دی هغه اکثر په صیغه د افراد دی او په افراد کښې په ظاهره تخصیص دې او په دې حدیث کښې هغې ته خیانت وئیلې شوې دې، بله دا چه هغوی وړاندې تلو سره دا وئیلې دی چه که دا حدیث صحیح اومنلې شی نو صرف په دعاء قنوت باندې به محمول وی ځکه چه په دې کښې د جمع صیغې راغلې دی ﴿ الهم اهدنا فیمن هدیت الخ ﴾ د حضرت ګنګوهی رحمه الله په تقریر کښې دا لیکلې شوې دی چه په دې حدیث کښې د تخصیص نه مراد دا دې چه د دې دعاء د نورو نه نفی اوکړی لکه چه یو اعرابی دعاء کړې وه ﴿ اللهم ارحمنی ومحمدا ولا ترحم معنا أحدا ﴾ پس په دې صورت کښې به د روایت د تغلیط صورت نه پیښیږی پس لفظ دونهم کوم چه په حدیث کښې ذکر شوې دې ددې نه دهغې تائید کیږی چه دون د نفی دپاره راځی دویم جزء په حدیث کښې دا دې ﴿ وَلَا يَنْظُرُ فِي قَعْرِ بَيْتٍ قَبْلَ أَنْ يَسْتَأْذِنَ ﴾ یعنی د چا د کور دروازې ته رسیدلو سره دې د استیذان نه مخکښې د کور دننه حال نه ګوری یعنی بهر اودریدلو سره دننه کتل نه دی پکار، او که چا داسې اوکړل نو یقینا هغه هم داسې اوکړل لکه چه څوک بغیر د اجازت نه د چا کور ته داخل شی، ددې سلسلې بعض نور روایات به په کتاب الادب باب الاستیذان کښې راشی، په بعض روایاتو کښې تصریح ده چه که څوک د چا د کور نه بهر اودریدلو سره د هغه په کور کښې دننه اوګوری او د کور مالک د هغه سترګه ړنده کړی نو د هغه دا جنایت معاف دې، پس د امام شافعی او احمد په نزد به په دې صورت کښې ضمان واجب نه وی او د احنافو او د مالکیانو په نزد به واجب وی خو غالبا ددې حدیث په بناء باندې به ګناه نه وی

[۹۰]( ) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ السُّلَمِيُّ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا ثَوْرٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ شُرَيْحٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ أَبِي حَيٍّ الْمُؤَذِّنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يُصَلِّيَ وَهُوَ حَقِنٌ حَتَّى يَتَخَفَّفَ، ثُمَّ سَاقَ نَحْوَهُ عَلَى هَذَا اللَّفْظِ، قَالَ: وَلَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَؤُمَّ قَوْمًا إِلَّا بِإِذْنِهِمْ وَلَا يَخْتَصَّ نَفْسَهُ بِدَعْوَةٍ دُونَهُمْ، فَإِنْ فَعَلَ فَقَدْ خَانَهُمْ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: هَذَا مِنْ سُنَنِ أَهْلِ الشَّامِ لَمْ يُشْرِكْهُمْ فِيهَا أَحَدٌ.

( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٨٧٩) (صحيح)

**ترجمه**: د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې، چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دی، نه دي جائز د سړي لپاره چه ایمان لري په الله او په ورځ د آخرت باندې چه امامت اوکړي د یو قوم په داسې حالت کښې چه ډکې یا تشې متیازې زور ورکړې وی ترڅو پورې چه هغه (ځان فارغ کولو سره) سپک شوې نه وی، بیا راوی دغسې په دې الفاظو سره ورپسې حدیث بیان کړې دې، په هغې کښې دی چه نه دي جائز د سړي لپاره چه ایمان لري په الله او په ورځ د آخرت باندې چه امامت اوکړي د یو قوم دهغوی داجازت نه بغیر، او جائز نه دی چه خاص کړی ځان خپل په دعاء سره بغیر د هغوی نه، که چېرې دا کارې اوکړو نو خیانت ئې اوکړه د هغوی سره وئیلی دي ابوداود: دا د طریقو د اهل الشام نه دی د هغوی سره په دې کښې هېڅوک شریک نه دی.

**تشریح**: قوله ﴿ قال أبوداؤد: هَذَا مِنْ سُنَنِ أَهْلِ الشَّامِ ﴾ دلته مصنف رحمه الله د حدیث الباب په سند کښې چه کومه لطیفه ده هغه بیانوی هغه دا چه حدیث ثوبان او حدیث ابوهریره رضی الله عنه ددې دواړو د سندونو ټول راویان ټول په ټول شامیان دی، غیر شامی په کښې څوک هم نشته، حضرت په بذل کښې لیکلی دی چه آو هم دغه شان ده، خو په حدیث ثانی کښې به ابوهریره رضی الله عنه مستثنی کول غواړی ځکه چه هغه شامی نه دې.

## بَابُ مَا يُجْزِءُ مِنَ الْمَاءِ فِي الْوُضُوءِ

### باب دې په بیان د هغه مقدار کې چې کافیږي د اوبو نه په اودس کې

د تیرو ابوابو نه دا خو معلومه شوه چه په کومو اوبو سره اودس کیدلې شی او په کومو باندې نه کیږی اوس ددې ځائې نه دا بیانول غواړی چه په څومره اوبو باندې اودس کول پکار دی، د اکثرو احادیثو نه معلومیږی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به تقریبا په یو صاع اوبو سره غسل او یو مد اوبو سره اودس فرمائیلو، په یو روایت کښې ﴿ ثلثی مد ﴾ یعنی یو ثلث کم یو مد هم راغلې دې او په یو روایت کښې نصف مد هم راغلې دې خو هغه روایت ضعیف دې کما فی البذل.

د جمهورو په نزد د اودس یا غسل دپاره ختمی طور د اوبو مقدار متعین نه دې چه په دې کښې دې کمې زیاتې جائز نه وی بلکه ددې بنیاد اصل کښې په دې باندې چه څومره اوبه د ټول بدن د لوندولو دپاره او په اودس کښې د اودس د اندامونو د لوندلو دپاره کافی شی بس هم هغه مقدار ضروری دې ابتداء ددې هیڅ مقدار متعین نه دې، په اودس کښې دوه ارکان دی غسل او مسح، د غسل حقیقت اسالة الماء دې یعنی دومره اوبه بهیول چه په هغې سره تقاطر راشی. ددې حقیقت غسل مونډلې کیدل ضروری دی او هم دا ددې معیار دې خو ددې سره سره غوره دا ده چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه کوم مقدار منقول دې دهغې متابعت اوکړې شی.

فقهاء کرامو کلی طور سره دا خبره لیکلې ده چه څومره اوبه بغیر د اسراف او تقتیر نه کافی شی هم هغه دې استعمال کړې شی اسراف او تقتیر دواړه مکروه دی، غرض دا چه مسئله تقریبا اجماعی ده، خو د ابن شعبان مالکی رحمه الله خلاف په دې کښې مشهور دې هغوی داسې وائی چه کوم مقدار په حدیث کښې راغلې دې دهغې نه کم جائز نه دې، حضرت شیخ په اوجز کښې لیکلې دی چه ابن قدامه حنبلی رحمه الله چه په مغنی کښې په دې مسئله کښې د

احنافو کوم اختلاف لیکلې دې هغه صحیح نه دې بلکه د احنافو مسلک په دې کښې هم هغه دې کوم چه د جمهور علماء کرامو دې، پس علامه شامی لیکلی دی چه کوم زمونږ په نزد ظاهر الروایة دې هغه دا دې چه د غسل دپاره ادنی مقدار یو صاع او د اودس دپاره یو مد دې ددې مطلب دا دې چه دا مقدار د مسنون اقل درجه ده، مقدار جائز مراد نه دې.

**د صاع او مد د مقدار بحث او په دې کښې اختلاف د علماؤ او دلائل د فریقینو:**

دلته د صاع او د مد د مقدار په سلسله کښې یو مشهور بحث دې کوم چه د حدیث شارحین او فقهاء ټول بیانوي صاع او مد دا دواړه مشهورې پیمانې دی، په دې خو د ټولو اتفاق دې چه یو صاع د څلورو مد برابر وی خو من حیث الوزن په مقدار د مُد کښې اختلاف دې، د ائمه ثلاثه او امام ابویوسف رحمه الله په نزد یو مد د رطل او ثلث رطل وی، لهذا یو صاع پنځه رطل اود دریمې حصې د رطل برابر شو، اود طرفینو په نزد د یو مد مقدار دوه رطل دې لهذا صاع اته رطله شو، د جمهورو صاع صاع حجازی او زمونږ صاع ته صاع عراقی وائی او صاع عراقی ته صاع حجاجی هم وائی ځکه چه نقل دی چه کله صاع عمر مفقود شو نو حجاج بن یوسف دهغې معلومات اوکړو، هغه به ددې خبرې په اهل عراق باندې احسان هم ضباتلو او په خپله خطبه کښې به ئې وئیل ﴿ یا أهل العراق یا اهل الشقاق والنفاق ومساوی الاخلاق الم اخرج لکم صاع عمر ﴾ او دا ظاهره ده چه صاع د عمر رضی الله عنه به د رسول الله ﷺ د صاع موافق وی.

زمونږ علماء کرام فرمائی چه صاع عراقی کوم چه اته رطله دې د رسول الله ﷺ د صاع مطابق دې، د جمهورو دعوی دا ده چه صاع حجازی د رسول الله ﷺ د صاع موافق دې اوس د فریقینو دلائل واورئ! جمهورو په خپل مسلک باندې خو دلائل قائم کړی دی.

**دلیل اول**: دا دې چه د صحیحین د روایت نه معلومیږی چه یو فرق (کوم چه د یوې لوئې پیمانې نوم دې) مساوی وی د درې صاع،[1] او دا خبره د مخکښې نه مشهوره ده چه یو فرق د شپاړسو رطل وی لهذا شپاړس چه په دریو تقسیم کړې شی نو پنځه او یو ثلث به وی، پس معلومه شوه چه صاع پنځه رطله او ثلث رطل وی.

زمونږ د طرف نه جواب دا دې چه دا خبره یقینی نه ده چه یو فرق د شپاړسو رطل برابر وی او نه د یو حدیث نه ثابت دی، او که هغوی اووائی چه دا د بعض اهل لغت د قول نه ثابت دی نو مونږ به وایو چه د اهل لغت قول په ئمه احناف باندې حجت نه دې ﴿لأنهم قدوة فی اللغة ایضا﴾ هم دغه شان مونږ دا هم نه منو چه یو فرق مساوی دې د درې صاع، بلکه زمونږ په نزد دا خبره محل نظر ده، ظاهره دا ده چه دا د راوی استنباط دې چونکه د راوی په ذهن کښې دا خبره وه چه درې صاع د یو فرق برابر وی نو هغه روایت بالمعنی کولو سره د

[1] ) ځکه چه په حدیث فدیه کښې راغلی دی چه په شپږو مسکینانو باندې دې دودئ اوخوړلې شی، هر مسکین ته نصف صاع لهذا ټول درې صاع شو، او په بل روایت کښې دی چه په شپږو مسکینانو دې یو فرق تقسیم کړې شی د دواړو احادیثو دیوځائې کولو نه نتیجه راوخی چه یو فرق مساوی دې د درې صاع)

صاع په ځانې لفظ فرق ذکر کړې دې.

**دليل ثاني**: جمهور علماء کرامو د امام ابويوسف رحمه الله د رجوع دقصې نه استدلال کړې دې چه امام ابويوسف رحمه الله يو ځل د حج دپاره تشريف يوړو نو مدينې طيبې ته حاضر شو او د اهل مدينه نه ئې د مقدار صاع تحقيق اوفرمائيلو او د ددې په باره کښې ئې د هغوی نه تپوس اوکړو نو هغوی اووئيل چه ﴿ صاعنا صاع النبي ﷺ ﴾ يعنی مونږ سره چه کوم صاع دې هم دا د رسول الله ﷺ صاع دې، امام ابويوسف رحمه الله ترې نه تپوس اوکړو چه ﴿ ما حجتکم فيه ﴾ دې باره کښې ستاسو څه دليل دې؟ نو هغوی ورته اووئيل چه ﴿ نأتيک بالحجة غدا ﴾ يعنی دليل به درته مونږ صبا له پيش کړو پس په بله ورځ د هغوی په خدمت کښې د مهاجرينو د اولاد نه پنځوس شيوخ هر يو د هغوی نه ځان سره صاع راوړو او حاضر شو، ﴿وهو يخبر عن أبيه أو عن أمه أن هذا صاع النبي ﷺ ﴾ يعنی په هغوی کښې هر يو دا خبر ورکولو، چا د خپل پلار په حوالې سره، چا د خپل ترۀ په حوالې سره چا د خپلې مور په حوالې سره چه هم دا صاع وو د رسول الله ﷺ، پس امام ابويوسف رحمه الله هغه ناپ کړو نو هغه پنځه رطله او ثلث رطل وو په دې باندې امام ابويوسف رحمه الله د امام صاحب قول ترک کړو ﴿أخرجه البيهقي بسنده ﴾ دا هم وئيلې شوې دی چه په دې موقع باندې امام مالک رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله سره مناظره اوکړه هم دهغې صيعان په بناء باندې کوم چه دې حضراتو يعنی اهل مدينه راوړې وو.

د دې جواب اولا خو دا دې چه د قواعد محدثين په رڼا کښې ددې قصې نه استدلال کول صحيح نه دی ځکه چه دا په مجاهيل باندې مشتمل ده، خمسون شيخا من ابناء المهاجرين والانصار څوک دی؟ دا ټول مجهول دی، دويمه دا چه دا واقعه که هم په دې هيئة کذائيه سره کومه چه بيان کړې شوه ثابت وې نو په عوامو او خواصو کښې به مشهوره وه، حال دا چه امام محمد رحمه الله نه خو ددې قصې ذکر کړې دې چه په هغې کښې د امام ابويوسف رحمه الله رجوع ذکر کيږی او نه هغوی په دې مسئله کښې د امام ابويوسف رحمه الله اختلاف بيان کړې دې چه دهغې نه معلوميږی چه امام ابويوسف رحمه الله په دې مسئله کښې د طرفين ملګرې دې، يو جواب دا کړې شوې دې چه دا اختلاف صرف لفظی دې ځکه چه امام ابويوسف رحمه الله هغه صاع لره کوم چه ابناء مهاجرين راوړې وو په کوم رطل سره وزن کړو نو هغه رطل مدنی وو، او د اهل مدينه رطل د اهل بغداد وعراق د رطل نه زيات وی ځکه چه رطل مدنی ديرش استار وی او رطل بغدادی شل استار وی په دې حساب [1] او لحاظ سره پنځه رطله او ثلث رطل او اته رطله د دواړو مقدار برابريږی، د دلائلو دا ټول تفصيلی بحث حضرت په بذل المجهود کښې کتاب الغسل ته رسيدو سره ډير په تفصيل سره کړې دې،

---

[1] يعنی يو صاع اته رطله وی په دې طريقه چه هر رطل د شلو استار وی او پنځه رطله او ثلث رطل وی په دې طريقه چه هر رطل ديرش استاره وی اتو له که په شلو کښې ضرب ورکړی شی نو هم هغه عدد به راوځی کوم چه پنځو او ثلث لره په ديرشو کښې ضرب ورکولو سره راوځی يعنی يو سل او شپيتۀ استار)

مونږ دا په طور د خلاصې هم د هغه ځائې نه اخستلې دې، د امام ابویوسف رحمه الله د مسلک او د هغوی د رجوع په باره کښې چه څه وئیلې شوې دی هغه قول د ابن الهمام رحمه الله نه منقول دی، د هغوی په نزد راجح او اصل هم دا ده چه امام ابویوسف رحمه الله په دې مسئله کښې د جمهورو سره نه دې بلکه د امام صاحب سره دې. والله تعالى أعلم بالصواب.

**دلیل ثالث**: امام طحاوی رحمه الله د جمهورو د طرف نه دا دلیل پیش کړې دې چه عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما او رسول الله ﷺ به د یو لوښی کوم ته چه فرق وائی، دهغې نه به مو غسل کولو او د مخکښې نه معلومه ده چه فرق د درې صاع برابر وی نو ددې نه ثابته شوه چه د رسول الله ﷺ او د عائشې رضی الله عنها د هر یو د غسل د اوبو مقدار یو صاع او نصف صاع دې، او په دویم روایت کښې دا ثابت دی چه رسول الله ﷺ به په اته رطله باندې غسل فرمائیلو، نو ددې دواړو احادیثو د یو ځائې کولو نه نتیجه راوتله چه یو نیم صاع برابر وی د اتو رطلو، چه دهغې نه معلومه شوه چه د یو صاع مقدار پنځه رطله او ثلث رطل دې.

زمونږ د طرف نه جواب دا دې چه د فرق د درې صاع برابر کیدل څه تحقیقی خبره نه ده، دویم جواب هغه دې کوم چه امام طحاوی رحمه الله ورکړې دې چه عائشې رضی الله عنها خو دا فرمائیلې دی چه مونږ دواړو به د داسې لوښی نه غسل فرمائیلو کوم چه په اندازه د فرق وو خو هغوی دا نه ده بیان کړې چه هغه لوښې کوم ته چه فرق وائی ډک به وو یا به دهغې نه کم وو کیدې شی چه هغه ډک نه وو مثلا پاؤ (څلورمه حصه) کم وی او یا برابر وی د دوؤ صاع نو اوس دا حدیث د هغه احادیثو موافق شو چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ به په یو صاع اوبو باندې غسل فرمائیلو.

**د احنافو تفسیر په اتو سره واقع دې**: د احنافو استدلال د هغه روایتونو نه دې په کوم کښې چه د هغوی د مسلک تصریح ده یعنی د مد تفسیر په رطلین سره او د صاع تفسیر په اتو رطلو سره واقع دې. پس امام طحاوی رحمه الله د عائشې رضی الله عنها نه په سند جید سره نقل فرمائیلې دی ﴿قالت كان النبى ﷺ يغتسل بمثل هذا﴾ او د یو لوښی طرف ته ئې اشاره اوفرمائیله، مجاهد رحمه الله وائی چه ما د هغه لوښی اندازه اولګوله نو هغه اته رطله وو یا نهه یا لس، غرض دا چه اته رطله خو یقینا وو په چاکښې هغه هیڅ تردد نه فرمائی.

او په نسائی کښې د موسی الجهنی نه روایت دې، هغوی فرمائی چه مجاهد رحمه الله ته یو پیاله راوړلې شوه هغوی وائی چه ما دهغې اندازه اولګوله نو هغه اته رطله وه مجاهد اووئیل چه ماته عائشې رضی الله عنها بیان اوکړو چه رسول الله ﷺ به په دې سره غسل فرمائیلو په دې کښې زمونږ د مذهب تصریح ده.

بله دا چه دارقطنی په دوؤ طریقو سره د انس رضی الله عنه دا حدیث نقل فرمائیلې دې چه ﴿كان رسول الله ﷺ يتوضا برطلين ويغتسل بالصاع ثمانية أرطال﴾ دې روایت ته اګرچه دراقطنی ضعیف وئیلې دې خو په تعدد طرق سره ددې د ضعف انجبار کیږی.

**فائده اولی**: د حضرت ګنګوهی رحمه الله په تقریر کښې دی چه چونکه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې صاع عراقی هم رائج وو (کوم چه د صاع حجازی نه لوئې وی) په دې وجه په صدقة

الفطر کښې احوط دا ده چه د صاع عراقي لحاظ اوکړې شي په عرف الشذي کښې هم لیکلې شوې دي چه صاع عراقي او حجازي دواړه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې موندلې کیدل، روایات صحیحه په دې باندې دال دي.

**فائده ثانیه** : د صاع او د مد بحث او تحقیق په اهتمام سره حضرات فقهاء او محدثین په دې وجه کوي چه دا دواړه معیار شرعي یعني شرعي پیمانې دي، ډیر احکام شرعیه دې سره تړلې دي لکه صدقة الفطر او فدیه او کفارات هم دغه شان د اودس او د غسل د اوبو مقدار کما لا یخفی.

[۹۳](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ وَيَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَبَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ سَمِعْتُ صَفِيَّةَ.

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې، بیشکه نبي ﷺ وو چه غسل به ئې کولو په یوه صاع (پیمانه) باندې او اودس به ئې کولو په مد (څلورمه حصه د پیمانې).

## شرح السند :

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ أَبَانُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ صَفِيَّةَ ﴾ یعنی د قتادة نه روایت کونکي دوه دي، یو همام کوم چه پورته په سند کښې ذکر شو او دویم ابان، د دواړو په الفاظو کښې فرق دې، د همام روایت کښې قتادة عن صفیة او د ابان په روایت کښې په ځائې د عن صفیة ﴿سمعت صفیة ﴾ دې، په دې اختلاف باندې د تنبیه یو وجه دا هم کیدې شي چه د قتادة شمار په مدلسینو کښې دې او پورته چه کوم روایت راغلې دې هغه په ﴿ عن ﴾ سره دې او د مدلس عنعنه معتبر نه وي، په دویم طریق کښې چونکه د سماع تصریح ده په دې وجه مصنف رحمه الله دویم طریق ذکر کولو سره دا کمې ختم کړې دې، اوس په دې کښې د انقطاع شک پاتې نه شو.

[۹۴](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ وَيَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ".

**ترجمه**: د جابر رضي الله عنه نه روایت دې هغه وئیلي دي: وو رسول الله ﷺ چه غسل به ئې کولو په یوه پیمانه (صاع) او اودس به ئې کولو په څلورمه حصه د پیمانې (مد).

[۹۵](3) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ حَبِيبٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبَّادَ بْنَ تَمِيمٍ، عَنْ جَدَّتِهِ وَهِيَ أُمُّ عُمَارَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَأُتِيَ بِإِنَاءٍ فِيهِ مَاءٌ قَدْرُ ثُلُثَيِ الْمُدِّ".

---

(1): سنن النسائي/المياه ۱۳ (۳۴۸)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱ (۲۶۸)، تحفة الأشراف(۱۷۸۵٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ٤۸ (۲۰۱)، صحيح مسلم/الحيض ۱۰ (۳۲۶)، سنن الترمذي/الطهارة ٤۲ (٥٦)، مسند احمد (۱۲۱/٦) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۲٤۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الغسل ۳ (۲٥۲)، سنن النسائي/الطهارة ۱٤٤ (۲۳۱)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱ (۲٦۹)، مسند احمد (۲۷۰/۳) (صحيح)

(3): سنن النسائي/الطهارة ٥۹ (۷٤) (تحفة الأشراف: ۱۸۳۳٦) (صحيح)

**ترجمه**: د ام عمارة نه روایت دې، بیشکه نبي ﷺ اودس اوکړو نو راوړې شو ورته يو لوښې د اوبو په اندازه د دوؤ ثلثو د مد.

**تشریح**: قوله :﴿ عَبَّادَ بْنَ تَمِيمٍ عَنْ جَدَّتِهِ ﴾ دلته دویمه نسخه ﴿ عن جدتی ﴾ ده او په دې صورت کښې به د جدة نه جدة حبیب مراد وی، ځکه چه متکلم هم هغه خپله دې او زمونږ نسخه چه په هغې کښې ﴿ عن جدته ﴾ دې دهغې ضمیر د عباد طرف ته راجع دې په دې صورت کښې به جدة عباد مراد وی، حضرت په بذل کښې په دویمه نسخه باندې کلام کولو سره دا لیکلي دی چه زه په دې خبره کښې تحقیق ته او نه رسیدم چه آیا دا واقعی د حبیب نیا ده. والله تعالی اعلم، دا ام عماره ده لکه چه په کتاب کښې ذکر شوې دی د هغوی په نوم کښې هم اختلاف دې، وئیلې شوې دی چه دهغې نوم نسیبه دې (بالتصغیر) او وئیلې شوې دی چه نسیبه ده په وزن د سفینه، او دریم قول دا دې چه دهغې نو لسینة بضم اللام دې په ځائې د نون.

[۹۵]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَبْرٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ بِإِنَاءٍ يَسَعُ رَطْلَيْنِ وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ شَرِيكٍ، قَالَ: عَنْ ابْنِ جَبْرِ بْنِ عَتِيكٍ، قَالَ: وَرَوَاهُ سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عِيسَى، حَدَّثَنِي جَبْرُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَبْرٍ، سَمِعْتُ أَنَسًا، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: يَتَوَضَّأُ بِمَكُّوكٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ رَطْلَيْنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وسَمِعْت أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: الصَّاعُ خَمْسَةُ أَرْطَالٍ وَهُوَ صَاعُ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، وَهُوَ صَاعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه**: د انس رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دی: وو نبي ﷺ چه اودس به ئې کولو په يو لوښې چه ځایدې په هغې کښې دوه رطله، او غسل به ئې کولو په پیمانه وئیلی دې ابوداود: روایت کړې دی ددې یحیی بن آدم د شریک نه، هغه وائی: روایت کړې دې د ابن جبر بن عتیک، هغه وائی: روایت کړې دی سفیان د عبد الله بن عیسی نه، حدیث بیان کړې دی ماته جبر بن عبد الله. وئیلی دې ابوداود: او روایت کړې دی شعبه، هغه وائی: حدیث بیان کړې دې ماته عبد الله بن عبد الله بن جبر، ما اوریدلې دې د انس نه مګر فرق دا دې چه هغه وئیلی دې: اودس به ئې کولو په يو مکوک باندې، او ذکر د رطلینو ئې نه دی کړې. وئیلی دې ابوداود: ما اوریدلې دې د احمد بن حنبل نه، چه هغه وئیل چه صاع پنځه رطله دی، او هغه صاع د ابن ابي ذئب دی، او هم دا صاع د نبي ﷺ دی.

**تشریح**: قوله :﴿ يَتَوَضَّأُ بِإِنَاءٍ يَسَعُ رَطْلَيْنِ ﴾ ددې نه په ظاهر کښې د احنافو تائید کیږی ځکه چه د انس رضی الله عنه په دویم روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ به په مد سره اودس کولو او په دې کښې دی چه په رطلین سره به ئې اودس فرمائیلو

قوله :﴿ قوله يَتَوَضَّأُ بِمَكُّوكٍ ﴾ مکوک صاع او نصف صاع یعنی یونیم صاع ته وائی خو شارحینو لیکلي دی چه دلته د مکوک نه مراد مد دې.

(): تفرد بهذا اللفظ أبوداود و سنن الترمذي/الصلاة ۶۰۹ ولفظه : يجزئ في الوضوء رطلان من ماء (تحفة الأشراف: ۹۶۲) (ضعيف)

قوله :﴿ قَالَ وَرَوَاهُ سُفْيَانُ.... حَدَّثَنِي جَبْرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ ﴾ د سفيان دا روايت د شعبه اود شريک د روايت نه خلاف دي، د هغوی دواړو په روايتونو کښې عبدالله بن جبر وو، سفيان په ځائې ددې جبر بن عبدالله اووئيل، د دوی دواړو په روايت کښې ﴿ عبدالله بن جبر ﴾ وو، په اصل کښې دا راوی عبدالله بن عبدالله بن جبر دې، بعضو د نسبت الى الجد په اعتبار سره عبدالله بن جبر اووئيلو، او بعضو راويانو په ځائې د جبر جابر وئيلې دی لکه چه د مسلم شريف په بعض رواياتو کښې دی، امام نووی رحمه الله ليکی چه دا دواړه صحيح دی، جابر او جبر دواړه وئيلې شی.

قوله :﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَسَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ الخ ﴾ دلته ئې د صاع مقدار پنځه رطله بيان کړې دې او د امام احمد رحمه الله هم دا مقوله په أبواب الغسل کښې په باب فی مقدار الماء الذی يجزئ به الغسل کښې راروانه ده، هلته د پنځه رطله سره ثلث رطل هم مذکور دې، دلته مصنف رحمه الله کسر حذف کړې دې.

## بَابُ الإِسْرَافِ فِي الْوَضُوءِ

### باب دې په بيان د اسراف کې په اوبو کې

د اسراف فی الوضوء دوه صورتونه کيدې شی يا د تکثير ماء د وجې نه چه زياتې اوبه بغير د ضرورت نه اوبهيولې شی يا په تثليث باندې زيادت يعنی اعضاء د درې کرتو نه زيات وينځلې شی، بهر حال چه هر صورت وی اسراف بالاتفاق مکروه دې اګر که يو سړې په حوض يا جاری نهر باندې اودس کوی بيا هم دا اسراف دې پس په ابن ماجه کښې يو روايت دې چه دهغې تخريج امام احمد رحمه الله هم کړې دې چه يو ځل رسول الله ﷺ په سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه باندې ورتير شو او هغوی په اودس کښې اوبه زياتې استعمالولې نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ ما هذا السرف يا سعد ﴾ اې سعد دا اسراف ولې کوې؟ هغوی عرض اوکړو ﴿ افی الوضوء سرف يا رسول الله ﴾ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ نعم وان کنت علی نهر جار ﴾...

[٩٦]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ أَبِي نَعَامَةَ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مُغَفَّلٍ، سَمِعَ ابْنَهُ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْقَصْرَ الأَبْيَضَ عَنْ يَمِينِ الْجَنَّةِ إِذَا دَخَلْتُهَا، فَقَالَ: أَيْ بُنَيَّ، سَلِ اللَّهَ الْجَنَّةَ وَتَعَوَّذْ بِهِ مِنَ النَّارِ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّهُ سَيَكُونُ فِي هَذِهِ الأُمَّةِ قَوْمٌ يَعْتَدُونَ فِي الطَّهُورِ وَالدُّعَاءِ".

**ترجمه:** د ابو نعامه نه روايت دې، چه يقيناً عبد الله بن مغفل اوريدلې دې د خپل ځوی نه وئيل يې: اې الله زه سوال کوم ستانه د سپينې ماڼۍ نبې طرف د جنت ته کله چه ورته داخل شم، نو وئې وئيل: اې ځويه! سوال کوه د الله نه د جنت، او پناه غواړه د هغه پورې د اور نه، يقيناً ما اوريدلې دې د رسول الله ﷺ نه هغه ويل: شان دادی چه وې به په دې امت کښې يو قوم چه زياتی به کوې پاکوالې او دعاء کښې.

[1]: سنن ابن ماجه/الدعاء ١٢ (٣٨٦٤)، (تحفة الأشراف: ٩٦٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٦/٤) (صحيح)

**تشریح:** د حدیث الباب مضمون دا دی چه یو ځل عبدالله بن مغفل ﷺ د خپل ځوئی نه واوریدل د چا نوم چه یزید دې لکه چه په بعض روایاتو کښې ددې تصریح ده چه هغوی داسې دعاء کوله ﴿ اللهم إنی أساءلک القصر الأبیض الخ ﴾ چه اې الله چه کله زه جنت ته لاړ شم نو د سپین رنګ محل کوم چه د جنت په ښی طرف کښې وی ستا نه دهغې سوال کوم، نو په دې باندې د هغوی پلار اوفرمائیل : اې ځویه ! الله پاک نه دمطلق جنت سوال کوه، اود مطلق جهنم نه پناه غواړه، یعنی دا قیدونه مه لګوه، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی چه په دې امت کښې به داسې خلق پیدا کیږی ﴿ يَعْتَدُونَ فِي الطُّهُورِ وَالدُّعَاءِ ﴾ کوم چه به په دعاء او اودس کښې د حد نه تجاوز کوی.

په دې حدیث کښې دوه اجزاء دی، اول اعتداء فی الطهور، ثانی اعتداء فی الدعاء، د صحابی ﷺ غرض جزء ثانی دې او د مصنف ﷺ غرض جزء اول لره بیانول دی، بهر حال په دې حدیث کښې د اعتداء فی الطهور نه منع کړې شوې ده چه دهغې نه مصنف ﷺ د اسراف فی الوضوء کراهت مستنبط کړې دې لکه چه ظاهره ده.

## د اعتداء فی الدعاء په تفسیر کښې اقوال :

اوس دا چه د اعتداء فی الدعاء نه څه مراد دې؟ یعنی په دعا کښې تجاوز عن الحد څه څیز دې؟ جواب دا دې چه علماء کرامو ددې ډیر صورتونه لیکلې دی یو دا چه په اعتبار د جهر بلیغ یعنی زیات په زور سره دعا کول او چغې وهل یا په اعتبار د قیود زائده چه د الله پاک نه د خپلو حاجتونو د سوال کولو په وخت په هغې کښې قسم قسم شرطونه لګول ځکه چه دا د حاجت مند سائل د شان خلاف ده، او دریم شکل دا دې چه د دعاء په الفاظو او کلماتو کښې د سجع رعایت اوکړې شی په مسجع الفاظو سره دعا اوکړې شی، ظاهره ده چه دا څیز د خشوع منافی دې او یو قول دا دې چه ددې نه مراد غیر ماثور دعاګانې دی.

په دې باندې به دا اشکال وی چه د رسول الله ﷺ اکثر دعاګانې مسجع دی؟ ددې جواب دا دې چه د رسول الله ﷺ په کلام کښې د سجع موندلې کیدل بالقصد نه وو، بلکه کمال فصاحت وبلاغت کوم چه رسول الله ﷺ ته فطری طور ورکړې شوې وو دهغې په وجه باندې مسجع الفاظ او عبارتونه بغیر د تکلف نه په ژبه مبارکه باندې راتلل، او د ممانعت تعلق د تصنع او تکلف سره دې نه ددې سره.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د شارحینو په دې کښې اختلاف دې چه د صحابی دې ځوئی په خپله دعاء کښې څه زیادت کړې وو چه په هغې باندې د هغه پلار هغه لره اوټوکلو څوک څه لیکی او څوک څه، لکه چه په بذل کښې موجود دی خو د حضرت سهارنپوری ﷺ رائې دا ده چه د موجوده دعاء په مضمون کښې هیڅ تجاوز عن الحد نشته خو د هغه په طرز دعاء باندې د هغه صحابی ویره پیدا شوه چه هغه چرته په دې کښې تجاوز عن الحد اونکړی، په دې وجه د مخکښې نه ئې د بندولو دپاره هغه ته تنبیه ورکړه، حضرت لیکلې دی چه د قصر ابیض عن یمین الجنة په سوال کښې داسې څه د اشکال خبره کوم ته چه تجاوز عن الحد اووئیلې شی نشته، د حدیث په جزء اول یعنی اعتداء فی

الطهور په سلسله کښې حضرت الاستاذ مولانا محمد اسعد الله صاحب رحمه الله د خپل بذل په حاشیه کښې لیکلې دي چه اسراف فی الوضوء که په ماء مباح یا مملوک کښې وی نو مکروه تحریمی دی او که په مال وقف کښې وی لکه د مدارسو د حمام وغیره اوبه نو هغه حرام دی، عام طور سره طالبان چونکه د مدرسې د انتظام د لاندې ورکړې شوې اوبو کښې بې احتیاطی کوی، په دې وجه ناظم صاحب رحمه الله د طالبانو مخکښې خاص طور سره دا خبره اوفرمائیله.

## بَابٌ فِي إِسْبَاغِ الْوُضُوءِ

### باب دې په بیان د مکمل کولو د اودس کې

د اسباغ معنی د اکمال ده د الله پاک ارشاد دې ﴿ واسبغ علیکم نعمه ظاهرة وباطنة﴾ او اکمال وضوء دا دې چه اودس د خپلو آدابو او مستحباتو د رعایت سره اوکړې شی، په صحیح بخاری کښې د ابن عمر رضي الله عنهما نه د اسباغ تفسیر په إنقاء سره مروی دې یعنی اعضاء لره په ښه طریقه باندې مږل او وینځل.

**د اسباغ وضوء انواع ثلاثه او اطالة الغرة والتحجیل تشریح او تحقیق:**

مولانا شاه محمد اسحق نه په بعض حواشی کښې منقول دی چه د اسباغ وضوء درې قسمونه او درجې دی په درجاتو کښې اوله درجه فرض، دویمه سنت او دریمه مستحب ده،

۱: ټول اندامونه د اودس یو ځل بالاستیعاب وینځل اسباغ په دې معنی فرض ده،

۲: تثلیث غسل یعنی هر اندام لره درې کرته وینځل او یو ځل د پوره سر بالاستیعاب مسح کول، دا سنت ده،

۳: د تثلیث غسل سره اطالة الغرة والتحجیل کول لکه چه ابوهریره رضي الله عنه به کول، د اسباغ دا نوع مستحب دې.

ځان پوهه کړه چه غرة وائی هغه سپین والی ته کوم چه د اس په تندی کښې وی او دلته د اطالة الغرة نه مراد دا دې چه د مخ وینځلو په وخت د تندی سره د مقدم راس څه حصه هم شامل کړې شی، او د اطالة التحجیل مطلب دا دې چه د یدین او رجلین د وینځلو په وخت حد مفروض یعنی د مرفقین او کعبین نه تجاوز اوکړې شی او پورته حصه هم لږه وینځلې شی، اصل کښې دا اخستلې شوې دې د فرس محجل نه، محجل هغه اس ته وائی د کوم چه دواړه لاسونه او دواړه خپې د کونډو پورې سپینې وی، او په اودس کښې د مقدار مفروض نه تجاوز کولو ته اطالة الغرة والتحجیل نه تعبیر کول په ظاهر کښې ددې نکتې په بناء دی چه د قیامت په ورځ باندې به دا د اودس اندامونه روښانه او چمکدار وی، په غرة او تحجیل کښې هم د رڼړا معنی ده، ډیر ښکلې تعبیر دې.

ځان پوهه کړه چه اسباغ بالمعنی الثالث یعنی اطالة الغرة والتحجیل مختلف فیه دې جمهور علماء ائمه ثلاثه خو ددې د استحباب قائل دی، پس علامه شامی رحمه الله او طحطاوی دا په مندوبات وضوء کښې شمار کړې دې، هم دغه شان امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې د ابوهریره رضي الله عنه دحدیث ﴿ من استطاع منکم ان یطیل غرته فلیفعل ﴾ د لاندې دا

اطالة مستحب ليکلې ده او د حنابله په نزد ددې د استحباب تصريح په نيل المارب کښې موجود ده خلاصه دا چه د ائمه ثلاثه په نزد مستحب ده خو مالکيان ددې قائل نه دی هغوی دې ته مکروه وائی، هغوی وائی چه ددې اطالة نه مراد ادامة او تجديد وضوء دې يعنی هميشه باوضو اوسيدل او تازه اودس کول دی.

امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې ليکلې دی چه د حديث په شارحينو کښې ابن بطال مالکی او قاضی عياض مالکی رحمهما الله چه دا دعوی کړې ده چه د علماء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه فوق المرفق والکعب وينځل مستحب نه دی، دا دعوی د هغوی باطل ده زه وايم چه هم دغه شان د طحاوی په شرح معانی أمانی الاحبار کښې د علامه مناوی رحمه الله نه نقل کړې دی چه ائمه ثلاثه يعنی احناف مالکيان او حنابله د اطالة الغرة والتحجيل د استحباب قائل نه دی، د علامه مناوی رحمه الله دا خبره خلاف تحقيق ده څکه چه مونږ اوس د کتابونو په حوالې سره د احنافو او د حنابله او هم دغه شان د شوافعو په نزد ددې استحباب نقل کړې دی.

د امام نووی رحمه الله رائې دا ده چه په اودس کښې اطالة الغرة والتحجيل د رسول الله ﷺ او د ابوهريره رضی الله عنه نه ثابت دې، خو ابن القيم رحمه الله ليکلې دی چه د رسول الله ﷺ نه زيادة علی محل الفرض عملا ثابت نه دې، البته ابوهريره رضی الله عنه به داسې کول. (١)

[٩٧]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى قَوْمًا وَأَعْقَابُهُمْ تَلُوحُ، فَقَالَ: "وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ، أَسْبِغُوا الْوُضُوءَ".

**ترجمه:** دعبد الله بن عمرو نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ اوليدلو يو قوم او پوندو د هغوی چمک ئې کولو، نو وئې وئيل: تباهي ده د پوندو لپاره د اور نه، مکمل کړئ اودس.

**تشريح:** قوله: ﴿عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو الخ﴾ په دې باب کښې مصنف رحمه الله صرف يو حديث ذکر کړې دې د عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما، چه رسول الله ﷺ بعض صحابه کرام رضی الله عنهم اوليدل

---

(١) خان پوهه کړه چه اطالة الغرة والتحجيل کوم چه په حديث کښې راغلې دې کوم چه صاحب مشکوة د ابوهريره رضی الله عنه نه مرفوعا نقل کړې دی دهغې الفاظ دا دی ﴿إِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوءِ فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يُطِيلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ﴾ (متفق عليه) او دهغې په حاشيه کښې ئې ليکلې دی چه ددې حديث آخری جمله يعنی ﴿فمن استطاع الخ﴾ د ابوهريره رضی الله عنه د طرف نه مدرج ده، د اکثر حفاظ حديث رائې هم دا ده اګرچه بعضو ددې په مرفوع او موقوف کيدو کښې هم تردد ښکاره کړې دې، حاصل دا چه دلته دوه څيزونه دی يو ددې امت د اودس په برکت باندې د قيامت په ورځ اغر او محجل کيدل، دويم د اودس په مينځ کښې اطالة الغرة والتحجيل کول، پس امر اول د رسول الله ﷺ د کلام نه ثابت دې، او امر ثانی د رسول الله ﷺ نه مختلف فيه دې، بعض ددې قائل دی او بعض منکر، او د ابوهريره رضی الله عنه په باره کښې دا ثابت او مشهور دی چه هغوی به داسې کول.

(): صحيح مسلم/الطهارة ٩ (٢٤١)، سنن النسائي/الطهارة ٨٩ (١١١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٥ (٤٥٠)، مسند احمد (١٩٣/٢، ٢٠١، ٢٠٥، ٢١١، ٢٢٦)، (تحفة الأشراف: ٨٩٣٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العلم ٣ (٦٠)، ٣٠ (٩٦)، بدون: "اسبغوا..."، (صحيح)

چا چه هم هغه وخت اودس کړې وو چه د هغوی د پوندو څه حصه د اوچیدو د وجې نه پړقیدله یعنی محسوس کیدله نو رسول الله ﷺ هغوی ته دا وعید واورلو، ﴿ویل للاعقاب من النار﴾ یعنی تباهی ده ددې پوندو دپاره د اور نه، او بیا ئې اوفرمائیل چه اودس کامل او مکمل کوئ.

## مضمون حدیث :

په دې حدیث کښې اصل کښې اختصار دې روایت مفصله په مسلم وغیره کښې دې چه رسول الله ﷺ په یو سفر کښې وو، په تلو تلو چه کله منزل ته نزدې اورسیدلو نو په قافله کښې څه صحابه کرام رضی الله عنهم نزدې چینې ته په تنذئ باندې وړاندې لاړل، او هلته تلو سره ئې خپل ضرورتونه پوره کړل، او په هغه چینه باندې هغوی زر زر اودس اوکړو چه په هغوی کښې د بعضو د پوندو څه حصه اوچه پاتې شوه او هغه خلق په خپل خیال کښې د اودس نه فارغیدو سره لکه چه تیار شو لږ ساعت پس باقی قافله چه په کښې رسول الله ﷺ هم وو هغه چینې ته راورسیدله نو هغه وخت رسول الله ﷺ ددې خلقو په باره کښې دا اوفرمائیل کوم چه په حدیث الباب کښې ذکر شوې دی.

د حدیث مطابقت د ترجمة الباب سره ښکاره دې او د کوم اسباغ ذکر چه په حدیث کښې دې هغه د اسباغ په اقسام ثلاثه کښې هغه قسم دې کوم چه فرض دې ځکه چه دې خلقو رجلین یوځل هم بالاستیعاب وینځلې نه وې حال دا چه یو ځل بالاستیعاب وینځل فرض دی.

قوله :﴿ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ ﴾ په دې کښې دوه اقوال دی یو دا چه د اعقاب نه مراد اصحاب الاعقاب دی، دویم دا چه اعقاب مراد دی چه دهغې مطلب دا شو چه تکلیف به صرف پوندو ته رسولې شی، چه دهغې په وجه هغه ده کومه چه په بل حدیث کښې راغلې ده چه د اودس اندامونه به اور نه مسح کوی او چونکه دې اندامونو ته د اودس اوبه نه دی ور رسیدلې په دې وجه به دا اور مسح کوی.

قوله :﴿ وَيْلٌ ﴾ ددې په تفسیر کښې څو اقوال دی وئیلې شوی دی چه ددې معنی د رسوائۍ ده او وئیلې شوې دی چه د هلاکت ده، او یو قول دا دې چه ددې معنی د خسران یعنی خسارې ده، او صحیح ابن حبان کښې یو مرفوع روایت دې چه په هغې کښې دی ﴿ویل واد فی جهنم﴾ یعنی وَيْلٌ په جهنم کښې د یوې طبقې نوم دې،چونکه دا حدیث دې په دې وجه هم دې ته به اصح تفسیر وئیلې شی.

او په دې سره یو بل اشکال هم ختم شو هغه دا چه دلته وئیل په ترکیب کښې مبتداء واقع کیږی حال دا چه نکره ده، اشکال په دې وجه رفع شو چه د روایت مرفوعه نه معلومه شوه چه دا خو په جهنم کښې د یو خاص طبقې نوم دې لهذا د علمیت په بناء باندې معرفه شو، اوبعضو داجواب کړې دې چه په جمله دعائیه کښې واقع کیدونکې مبتداء نکره کیدې شی.

## بَابُ الْوُضُوءِ فِي آنِيَةِ الصُّفْرِ

### باب دې په بيان داودس کې په لوښو د زيړو (پيتل) کې

خان پوهه کړه چه دې ترجمې لره ليدو سره په ذهن کښې دا خبره راغله چه د اتباع رسول او د حب رسول ﷺ مقتضى دا ده چه د محبوب هر ادا ته دې اوکتلې شي، چه رسول الله ﷺ به اودس څنګه کولو، اودس به ئې په څومره اوبو باندې کولو، په څنګه لوښى باندې به ئې کولو، د حضرات محدثين د حب رسول ﷺ نه څوک انکار کولې شي، دويمه خبره دا ده چه د احکام شرعيه مدار په نقل باندې دې، د هر حکم ثبوت که هغه اهم وى او که معمولى وى محتاج د نقل دې او د ټولو نقولو منبع و ماخذ د رسول الله ﷺ ذات ګرامى دې، د محدثينو دا تراجم ابواب هم ددې حقيقت مظهر دى امام بخارى رحمه الله هم په 'اوانئ وضوء يعنى د کومو لوښو نه چه اودس کول ثابت دى په دې باندې يو باب دوه منعقد کړى دى، خو په بخارى کښې په آنية الصفر باندې څه مستقل باب نشته اګرچه د بخارى شريف په حديث کښې دا لفظ ذکر کړې شوې دې، خو امام ابن ماجه رحمه الله د امام ابوداؤد په شان په آنية الصفر باندې باب تړلې دې دهغې په حاشيه کښې شاه عبدالغنى صاحب مجددى رحمه الله فرمائى چه بعض فقهاء کرامو نه چه د تانبې او پيتلو په لوښى کښې د اودس کولو کراهت منقول دې، کيدې شى د هغوى مراد کراهت تنزيهى وى ځکه چه د خاورې د لوښى استعمال اقرب الى التواضع دې، او حديث په بيان جواز باندې محمول دې، بيا وراندې شاه صاحب ليکى، چه ماته په يو روايت کښې هم ددې تصريح نه ده ملاؤ شوې چه رسول الله ﷺ به د خاورو په لوښى باندې اودس فرمائيلو، صرف امام غزالى رحمه الله په احياء کښې ليکلې دى چه د رسول الله ﷺ د خاورې يو لوټه وه چه په هغې باندې به ئې اودس فرمائيلو خو حافظ عراقى د احياء العلوم په تخريج کښې ليکلې دى چه ماته ددې اصل نه دې ملاؤ شوې

### د صفر او شبه لغوى تحقيق او د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت:

د صفر په ترجمه کښې اختلاف دې، د حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې دى چه د حضرت ګنګوهى نه تپوس اوکړې شو چه د صفر ترجمه په غياث اللغات کښې په سيلور سره کړې شوې ده، او په غاية الاوطار ترجمه در مختار کښې ددې ترجمه په پيتل سره کړې شوې ده نو حضرت ددې جواب دا فرمائيلې دې لکه چه په فتاوى رشيديه کښې دى چه د صاحب غاية الاوطار قول صحيح دې

| [۹۸]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنِي صَاحِبٌ لِي، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَوْرٍ مِنْ شَبَهٍ". |
|---|

**ترجمه:** عائشې رضي الله عنها وئيلى دى: وم چه غسل کولو ما او رسول الله ﷺ په لوښې کښې د تامبې نه

**تشريح:** اوس دا خبره چه په آنية الصفر کښې اودس کول څنګه دى نو د باب په دويم حديث

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۳٤٤) (ضعيف)

کښې تصریح ده چه رسول الله ﷺ په آنیة الصفر کښې اودس فرمائیلې دې، او د باب په اول حدیث کښې ﴿ فی تور من شبه ﴾ لفظ دې شبه پیتل ته وائی نو ګویا د اول حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت من حیث المعنی دې او د حدیث ثانی د ترجمې سره مطابقت لفظا او معنًی دواړو طریقو سره دې.

بهر حال د صحاح ددې احادیثو نه چه په هغې کښې بعض په بخاری کښې راغلی دی، په آنیة الصفر کښې اودس کول د رسول الله ﷺ نه ثابت شو خو د غیر صحاح په بعض روایتونو کښې د اودس فی آنیة الصفر کراهت معلومیږی، لکه چه په مصنف ابن ابی شیبة کښې دی، بله دا چه د ابن عمر رضی الله عنهما نه منقول دی چه هغوی به په آنیة الصفر اوبه نه څکلې او نه به ئې پرې اودس کولو، هم دغه شان ابن رسلان د امام غزالی رحمه الله نه ددې کراهت نقل کړې دې، د مصنف ابن ابی شیبة په روایت کښې دی چه ﴿ انه علیه السلام کرهه ﴾ چه رسول الله ﷺ به د پیتلو لوښی استعمال بد ګنړلو.

خو د جواز روایات د صحاح دی او اصح او ارجح دی، کیدې شی چه د مصنف رحمه الله غرض په دې باب سره هم هغه روایاتو طرف ته اشاره ده او په هغې باندې رد وی او د جمع بین الروایات شکل دا دې چه د کراهت روایات په زهد او په ترک د تنعّم (عیش اوراحت) پریښودلو باندې محمول کړې شی، اوبعضو وئیلی دی چه کراهت په دې وجه دې چه داسې قیمتی لوښو استعمالولو کښې د فقیرانو او غریبانانو خلقو زړه ماتیږی بعضو دا وجه بیان کړې ده چه د تانبې پیتلو په لوښی کښې اوبه که ډیر ساعته پورې پاتې شی نو په هغې کښې تغیر راځی، او دا هم وئیلې شوې دی چه پیتل چونکه په رنګ کښې د ذهب سره مشابه دې په دې وجه کراهت دې هسې مسئله هم هغه ده کومه چه ابن قدامه رحمه الله په مغنی کښې لیکلې ده چه د سرو سپینو زرو نه علاوه، د تانبې پیتل وغیره او هم دغه شان یاقوت او نور قیمتی کانړو نه جوړ شوی لوښی استعمالول جائز دی، خو د امام شافعی رحمه الله یو قول دا دې چه کوم لوښی چه د ډیر قیمتی جواهراتو نه جوړ کړې شوې وی دهغې استعمال ناجائز دې.

او په دې هم پوهه شئ چه د سرو او سپینو زرو د لوښو استعمال صرف د سړو دپاره ناجائز نه دې بلکه دښځو دپاره هم ناجائز دې، دښځو دپاره صرف د کالو استعمال جائز دې.

## شرح السند :

قوله :﴿ اخبرنی صاحب لی ﴾ او ددې نه په وړاندې سند کښې دی ﴿ عن رجل ﴾ غرض دا چه دواړه ځایونو کښې په سند کښې راوی مبهم دې ددې نه مراد شعبه دې لکه چه حافظ په تهذیب کښې لیکلې دی او حضرت دا خبره په بذل کښې اخستلې ده، بله دا چه په اول او دویم سند کښې یو فرق دا دې چه په اول سند کښې هشام براه راست د عائشې رضی الله عنها نه روایت کوی، او په دویم سند کښې د هشام او عائشې رضی الله عنها ترمینځه عروه رحمه الله دې، اول سند منقطع شو ځکه چه هشام د عائشې رضی الله عنها زمانه نه ده موندلې.

[۹۹](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّ إِسْحَاقَ بْنَ مَنْصُورٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِنَحْوِهِ.

**ترجمه**: عائشه رضي الله عنها روايت کوي د رسول الله ﷺ نه په مثل د هغې.

[۱۰۰](٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ وَسَهْلُ بْنُ حَمَّادٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: "جَاءَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْرَجْنَا لَهُ مَاءً فِي تَوْرٍ مِنْ صُفْرٍ فَتَوَضَّأَ".

**ترجمه**: د عبد الله بن زيد نه روايت دي، هغه وائي: راغي مونږ ته رسول الله ﷺ مونږ هغه ته اوبه راويستې په يو لوښي د زيړو کښې نو اودس ئې اوکړو.

## بَابُ التَّسْمِيَةِ عَلَى الْوُضُوءِ

### باب دې په بيان د بسم الله کې په اودس باندې

ادعيه او اذکار وضوء دوه قسمه دی، يو هغه چه په ابتداء د اودس کښې لوستلې شي، او دويم هغه چه بعد الفراغ عن الوضوء دی، چه دهغې باب به روستو راشي، او څه دعاګاني هغه دی کومې چه د اودس په وخت کښې په هر هر اندام باندې لوستلې شی ددې ټولو بيان به انشاء الله هم هلته په وړاندې باب کښې راشي.

### مسئلة الباب کښې د ائمه اربعه د مذاهبو تحقيق:

د تسمية عند الوضوء په حکم کښې اختلاف دي، د احنافو په نزد سنت يا مستحب دواړه اقوال دی اکثرو سنت ليکلې دې او صاحب هدايه استحباب ليکلې دې، علامه عينی رحمه الله يو روايت د امام صاحب رحمه الله نه د عدم استحباب هم نقل کړې دې خو علامه شامی رحمه الله وغيره فقهاء کرامو دا خبره نه ده ذکر کړې، په احنافو کښې ابن الهمام رحمه الله د وجوب تسمية قائل دې خو دا د هغوی خپل تحقيق دې چه دهغې اعتبار نشته، پس د هغوی معروف شاګرد قاسم بن قطلوبغا فرمائی ﴿ ابحاث شيخنا إذا خالفت المنقول لا تعتبر ﴾ او د شوافعو په نزد تسمية عند الوضوء سنت ده [٣] لکه چه د هغوی په کتابونو کښې تصريح کړې شوې

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٣٤٤) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/الوضوء ٤٥ (١٩٧)، صحيح مسلم/الطهارة ٧ (٢٣٥)، سنن الترمذي/الطهارة ٢٤ (٣٢)، سنن النسائي/الطهارة ٨٠ (٩٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦١ (٤٧١)، (تحفة الأشراف: ٥٣٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٨، ٣٩) (صحيح)

(٣) ابن العربي فرمائی چه امام شافعی رحمه الله سره د استحباب تسميه هيڅ دليل نشته، بلکه دا چه هغوی د امام احمد رحمه الله نه نقل کړی دی چه په دې سلسله کښې هيڅ حديث صحيح نشته، هم دغه شان حافظ منذری رحمه الله هم ليکلې دی چه د احاديث تسميه سندونه مستقيم نه دی، او په معارف السنن کښې د شاه ولی الله رحمه الله په حوالې سره ليکلې شوې دی چه په کتب حديث کښې د رسول الله ﷺ نه چه کوم احاديث فعليه راغلی دی چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ د اودس تفصيلات بيان کړې شوې دی، او صحابه کرامو خلقو ته دهغې تعليم ورکولو په هغې کښې چرته هم د تسميه ذکر نشته، پس اوس حاصل دا شو چه د اودس په سلسله کښې په احاديث کثيره صحيحه فعليه کښې خو د تسميه ذکر نشته خو په احاديث قوليه کښې ددې ذکر دې خو هغه ضعيف دی، غالبا هم دا وجه ده چه د امام صاحب رحمه الله نه هم په يو روايت کښې په دې سلسله کښې عدم استحباب منقول دې.

ده، د مالکیانو په نزد مشهور او تحقیقي قول لکه چه علامه دسوقي لیکلي دی چه تسمیة علی الوضوء د فضائل یعني مستحباتو نه ده، د غیر مشروع او مکروه کیدو هغوی تردید کړې دې، لهذا ابن العربي چه په شرح د ترمذي کښې د امام مالکرحمه الله طرف د تسمیه عدم استحباب منسوب کړې دې هغه خلاف تحقیق یا کم از کم قول مرجوع دې. د امام احمدرحمه الله په نزد لکه چه په کتب حنابله نیل المآرب وغیره کښې ددې تصریح ده چه تسمیة علی الوضوء واجب عند التذکر ده یعني نسیانا معاف ده هم دا مذهب د اسحق بن راهویه دې لهذا که څوک عمدا ترک د تسمیه کوی نو اودس به ئې صحیح نه وی، او د ظاهریه په نزد د تذکر قید نشته مطلقا فرض ده، د حنابله مذهب مشهور په نزد د شارحینو هم دا دې کوم چه د اسحق بن راهویه دې، خو په مغني کښې د تسمیة سنت کیدل اظهر الروایتین عن احمد لیکلي دې، بله دا چه د امام احمدرحمه الله په نزد په اودس، غسل او تیمم درې واړو کښې تسمیه واجب ده، خلاصه دا چه په دې کښې پنځه اقوال دی:

۱: د احنافو په نزد سنت یا مستحب. ۲: د شوافعو په نزد سنت.

۳: د مالکیانو په نزد مستحب د راجح او د مشهور قول په بناء.

۴: د حنابله په نزد واجب عند التذکر بغیر ددې نه اودس صحیح نه دې.

۵: د ظاهریه په نزد مطلقا واجب.

[۱۰۱](1) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَا وُضُوءَ لَهُ، وَلَا وُضُوءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللهِ تَعَالَى عَلَيْهِ".

**ترجمه**: د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې هغه وائی، وئیلی دي رسول الله صلی الله علیه وسلم: نشته مونځ د هغه چا چه اودس ئې نه وي، او نشته دی اودس د هغه چا چه د الله نوم په هغې یاد نه کړي.

[۱۰۲](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ الدَّرَاوَرْدِيِّ، قَالَ: وَذَكَرَ رَبِيعَةُ، أَنَّ تَفْسِيرَ حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا وُضُوءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ"، أَنَّهُ الَّذِي يَتَوَضَّأُ وَيَغْتَسِلُ، وَلَا يَنْوِي وُضُوءًا لِلصَّلَاةِ وَلَا غُسْلًا لِلْجَنَابَةِ.

**ترجمه**: ذکر کړی دی ربیعه چه تفسیر د حدیث د نبي صلی الله علیه وسلم (لا وضوءَ لمن لم یذکر اسم الله علیه) دا هغه کس دی چه اودس کوي او غسل کوي، او نیت نه کوي د اودس لپاره د مونځ او نه د غسل د جنابت.

**تشریح**: اوس دا چه د تسمیة علی الوضوء الفاظ څه دی؟ شیخ ابن الهمام لیکلي دی چه ددې الفاظ چه د سلفو نه منقول دی او بعضو وئیلي دی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه منقول دی هغه ﴿بسم الله العظیم والحمد لله علی دین الإسلام﴾ دی او علامه عینیرحمه الله د طبرانی په حواله مرفوعا ﴿بسم الله والحمد لله﴾ لیکلي دی.

---

(1): سنن ابن ماجه/الطهارة ٤١ (٣٩٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٧٦)، ت الطهارة ٢٠ (٢٥)، سنن النسائي/الطهارة ٦٢ (٧٨)، مسند احمد (٤١٨/٢) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٦٣٥) (صحيح)

## د جمهورو د طرف نه د حديث الباب جواب :

حديث الباب د تسميه په وجوب باندې دلالت کوی لکه چه د ظاهريه او حنابله (او ابن الهمام) مسلک دې، د جمهورو د طرف نه ددې ډير جوابونه کړې شوې دی يو کلی جواب هغه دې کوم چه ابن العربی د امام احمد رحمه الله نه نقل کړې دې ﴿ لم يصح فی هذا الباب شئ ﴾ پس په حديث الباب کښې يعقوب بن سلمة غير قوی دې هغوی د خپل پلار نه روايت کوی د هغوی د خپل پلار نه سماع ثابت نه ده، او هم دغه شان د هغوی د پلار سماع د ابوهريره رضی الله عنه نه ثابته نه ده، لهذا دا حديث ضعيف او منقطع شو، دويم جواب دا ورکړې شوې دې چه په دې احاديثو کښې د کمال نفی ده او د کمال نفی په دې وجه مراد کوو چه د دلائلو خپل مينځ کښې تعارض رانشی، بله دا چه ابن سيد الناس رحمه الله په شرح د ترمذی کښې ليکلې دی چه په بعض رواياتو کښې د نفی کمال تصريح ده يعنی ﴿ لا وضوء کاملا ﴾ راغلې دې، دريم جواب دا ورکړې شوې دې لکه چه امام ابوداؤد رحمه الله هم په دې باب کښې د ربيعة الرائی نه نقل کړی دی چه د تسمية نه مراد نيت دې او د جمهورو په نزد نيت ضروری دې، څلورم جواب قاضی ابوبکر باقلانی کړې دې چه دا قسم الفاظ يعنی ﴿ لا وضوء ﴾ او ﴿لا صلوة ﴾ مجمل دی، ځکه چه دا کله د نفی د ذات او صحت دپاره راځی او کله د نفی کمال دپاره، واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال.

## په دې مسئله کښې د جمهورو دلائل :

جمهور علماء کرامو په عدم وجوب تسمية عند الوضوء باندې دهغه حديث نه استدلال کړې دې کوم چه په دارقطنی او بيهقی وغيره کښې د ډيرو صحابه کرامو، ابن عمر، ابن مسعود او ابوهريره رضی الله عنهم نه مرفوعا روايت کړې شوې دې ﴿ من توضأ وذکر اسم الله عليه کان طهورا لجميع بدنه ومن توضأ ولم يذکر اسم الله کان طهورا لأعضاء وضوئه﴾ يعنی څوک چه بسم الله ونيلو سره اودس اوکړی په دې سره د ټول بدن طهارت حاصليږی، او څوک چه ئې بغير د بسم الله نه لوستلو نه اوکړی نو په دې سره صرف د اودس اندامونه پاکيږی، دلته د طهارت نه مراد طهارت عن الذنوب دې، طهارت عن الحدث نه دې ځکه چه حدث متجزی کيږی نه، ددې حديث نه معلومه شوه چه بغير د تسميه نه اودس خو کيږی خو ثواب کم دې.

دا روايات اگرچه ضعيف دی په هر يو کښې يو نه يو راوی ضعيف دې، خو رومبئ خبره خو دا ده چه احاديث کوم چه دال دی په وجوب باندې هغه کوم قوی دی لهذا د دواړو طرفونو احاديث ضعيف شو، دويمه خبره دا ده چه دا روايات اگرچه بانفرادها ضعيف وی، خو د کثرت طرق په وجه اعتضاد اوتقويت راځی، لهذا داسې به وئيلې شی چه دا احاديث قرينه ده په دې خبره باندې چه په کومو رواياتو کښې چه بغير د تسميه نه د اودس نفی ده هغه نفی په نفی دکمال باندې محمول ده.

امام بيهقی رحمه الله د جمهورو د طرف نه دهغه حديث نه استدلال کړې دې چه په هغې کښې دی ﴿ لا تتم صلوة أحدکم حتی يسبغ الوضوء کما أمره الله ﴾ يعنی د سړی مونځ تر هغه وخته پورې نه مکمل کيږی چه ترڅو هغه داسې اودس او نه کړی څنگه چه الله پاک حکم

کړې دي، او د ﴿ أمره الله ﴾ نه د اودس آیت طرف ته اشاره ده او په آیت وضوء کښې چرته هم تسمیه نه ده ذکر شوې.

امام طحاوی رحمه الله په عدم وجوب باندې د رد السلام بالتیمم حدیث نه استدلال کړې دې چه دهغې مضمون ﴿ باب في الرجل یرد السلام وهو یبول ﴾ د لاندې تیر شوې دې چه رسول الله ﷺ د سلام جواب بغیر د اودس نه په دې وجه ورنکړو چه سلام ذکر دې، او ذکر رسول الله ﷺ بغیر د اودس نه مکروه اوګنړلو لهذا دا به منلې کیږی چه کم از کم رسول الله ﷺ چه په دې موقع باندې کوم اودس فرمائیلې وو هغه بغیر د تسمیه نه وو، لهذا تسمیة عند الوضوء ضروری نه ده.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُدْخِلُ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ قَبْلَ أَنْ يَغْسِلَهَا

**باب دې په بیان د سړي کې چې لاس د ننه کوي په لوښې کې مخکښې د وینځلو نه**

[۱۰۳] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنَ اللَّيْلِ، فَلَا يَغْمِسْ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ".

**ترجمه**: د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې هغه وائی، وئیلی دي رسول الله ﷺ: کله چه پاڅیږي یو کس ستاسو نه دشپې، نو نه دې منډي لاس خپل په لوښې کښې تردې چه وینځي هغه درې ځله. ځکه چه دا نه پوهیږي چه د ده لاس شپه چېرته تېره کړې ده.

**تشریح**: قوله:﴿ عن أبی هریرة الخ ﴾ رسول الله ﷺ ارشاد فرمائی چه کله یو سړې د شپې پاڅیږی نو ترڅو چه خپل لاسونه درې کرته او نه وینځی نو هغه دې په اوبو کښې نه غوپه کوی ﴿ فإنه لا یدری این باتت یده ﴾ ځکه چه هغه ته پته نشته چه د هغه لاس چرته شپه تیره کړه، پاک ځائې یا ناپاک ځائې کښې.

دلته یو طالب علمانه اشکال دې، هغه دا چه ﴿ أین باتت یده ﴾ جمله استفهامیه ده، کوم چه صدارت د کلام غواړی او دلته داسې نه ده بلکه په ترکیب کښې مفعول واقع شوې دې؟

جواب دا دې چه دلته لفظ ﴿ أین ﴾ د مطلق ظرف په معنی کښې مجردا عن معنی الاستفهام استعمالیږی، او ترجمه دا ده چه اوده کیدونکې نه پوهیږی د بدن په هغه حصه او ځائې چه چرته د هغه لاس شپه تیره کړې ده ګویا ﴿ أین ﴾ د ﴿ موضع ﴾ په معنی کښې دی یا دا اوونیلې شی چه دا جمله په طور د سوال نه ده بلکه حکایت عن السوال دې چه که د خوب نه پاسیدونکې نه تپوس اوکړې شی چه د هغه لاس چرته لګیدلې دې، نو هغه به ددې جواب ورنکړې شی، او تقدیر د عبارت دا دې ﴿ فإنه لا یدری جواب أین باتت یده ﴾.

---

(¹): صحیح مسلم/الطهارة ٢٦ (٢٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٠٩، ١٢٥١٦)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الوضوء ٢٦ (١٦٢)، سنن الترمذي/الطهارة ١٩ (٢٤)، سنن النسائي/الطهارة ١ (١)، الغسل ٢٩ (٤٤٠) سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٠ (٣٩٣)، موطا امام مالك/الطهارة ٢(٩)، مسند احمد (٢/٢٤١، ٢٥٣)، سنن الدارمي/الطهارة ٧٨ (٧٩٣) (صحیح)

## حدیث نه متعلق مباحث اربعه :

په دې حدیث کښې څو بحثونه دی:

۱: اول دا چه دا نهې د تنزیه دپاره ده یا د تحریم دپاره،

۲: دویم بحث دا دې چه که یو سړې قبل الغسل لاسونه په اوبو کښې داخل کړی نو ددې اوبو څه حکم دې. طاهر دې که نجس؟

۳: دریم بحث دا دې چه علت نهې او سبب حدیث څه څیز دې؟

۴: څلورم بحث دا دې چه په دې حدیث کښې چه ابتداء د غسل الیدین حکم دې، آیا دا د احکام المیاه د قبیل نه دې یا د سنن الوضوء د قبیل نه؟

## بحث اول : نهی تنزیهی ده که تحریمی؟:

د جمهورو اود ائمه ثلاثه په نزد دا نهې د تنزیه دپاره ده که استیقاظ د ورځې وی یا د شپې، اود امام احمدرحمه الله او داؤد ظاهری رحمه الله په نزد په نوم اللیل کښې د تحریم دپاره ده، او نوم النهار کښې د تنزیه دپاره دې، حسن بصری رحمه الله فرمائی چه مطلق د تحریم دپاره ده که د ورځې وی یا د شپې، د امام احمدرحمه الله استناد د باب د حدیث اول نه دې چه په هغې کښې د ﴿ من اللیل ﴾ قید موجود دې او د حسن بصری رحمه الله استناد دهغه روایت نه دې چه په هغې کښې مطلق استیقاظ من النوم مذکور دې د لیل قید نشته لکه چه د باب حدیث ثالث کښې دی.

## بحث ثانی : ددغه لاس وهلو اوبو حکم:

دجمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه په نزد اوبه ناپاک دی مطلقا، او اسحق بن راهویه، حسن بصری او محمد بن جریر طبری رحمه الله په نزد نوم اللیل کښې نجس کیږی، او هم دا یو روایت د امام احمد دې، پس ابن قدامة د امام احمدرحمه الله نه نقل کړی دی هغوی فرمائی: ﴿اعجب إلی أن یهریقه ﴾

د اسحاق بن راهویه رحمه الله وغیره استدلال د هغه روایت نه دې په کوم کښې چه د اراقة ماء حکم دې، کوم چه ابن عدی روایت کړې دې خو هغوی خپله دا وائی چه دا روایت منکر او غیر محفوظ دې، او جمهور دا وائی چه کوم حکم په احتمال باندې بناء وی هغه د وجوب دپاره نه شی کیدې لهذا د غسل یدین حکم ته وجوبی نه شی وئیلې کیدې او دویمه خبره دا ده چه قاعده ده ﴿ الیقین لا یزول إلا بمثله ﴾ او دلته د اوبو طهارت د مخکښې نه یقینی وو، او د یدین نجاست صرف محتمل او مشکوک دې، لهذا په شک سره به یقینی څیز نه زائل کیږی.

## بحث ثالث : د نهی علت او سبب:

د جمهورو په نزد سبب د نهی احتمال نجاست دې د امام شافعی رحمه الله نه روایت دې چه د اهل حجاز عادت استنجاء بالحجر باندې د اکتفاء کولو وو، او ددې خلقو مزاج او ملک حار وی، د اوده کیدو نه پس پرې خوله راځی، او دهغې په وجه محل د استنجاء لوند شی چه په هغې سره د نجاست د واپس کیدو احتمال دې، او کیدې شی چه د اودهٔ کیدونکی لاس په حالت نوم کښې مقام استنجاء ته رسیدلې وی، بله دا چه چونکه د جمهورو په نزد

دا حکم د احتمال نجاست په بناء دې په دې وجه حکم به هم په دې علت باندې دائر وی، لهذا کله هم چه په لاسونو باندې د نجاست احتمال وی اګر که اودهٔ کیدو سره پاسیدلې وی یا نه بیا به هم دا حکم وی چه بغیر د وینځلو نه دې لاس په لوښی کښې او نه وهلې شی، او د بعض علماء کرامو په نزد چه په هغوی کښې قاضی ابوالولید باجی هم دې دا نهی د تنظیف دپاره ده ځکه چه د اودهٔ کیدونکو لاس داسې ځایونو ته رسیږی کوم چه د خیری او د خولو ځایونه دی مثلا په پوزه کښې دننه او ترخ وغیره، لهذا په داسې صورت کښې د وینځلو نه مخکښې دا لاسونه په اوبو کښې وهل د نظافت خلاف دی دریم قول په دې کښې دا دې چه دا حکم تعبدی دې، ددې قول نسبت د امام مالک رحمه الله طرف ته کولې شی، بله دا چه د ابن القیم رحمه الله او ابن دقیق العید نه هم دغه شان منقول دی، خو دا صحیح نه ده، ځکه چه په حدیث کښې ددې حکم تعلیل ذکر شوې دې لهذا دا حکم معلل شو نه تعبدی.

په دې اختلاف باندې به ثمره دا مرتب کیږی چه کوم حضرات وائی چه دا حکم تعبدی دې، د هغوی په نزد به د غسل یدین حکم په هر حال کښې وی، او د چا په نزد چه حکم معلل دې د احتمال نجاست سره لکه چه د جمهورو رائې ده، نو دهغې تقاضه دا ده چه د عدم احتمال نجاست په شکل کښې د غسل یدین حکم نه وی، مثلا څوک د اودهٔ کیدو نه مخکښې په خپلو لاسونو باندې کپړه واچوی یا دستانې واچوی او بیا اودهٔ شی نو چونکه په دې صورت کښې احتمال نجاست نشته، په دې وجه به د غسل الیدین حکم هم نه مرتب کیږی اګرچه اولی په دې وخت کښې هم دا ده چه اول وینځلې شی.

**بحث رابع : د اودس په شروع کښې د غسل یدین بحث :**

په دې حدیث کښې چه د ادخال یدین فی الاناء نه مخکښې د غسل یدین حکم ورکړې شوې دې، آیا دا هم هغه غسل یدین دې کوم چه په ابتداء وضوء کښې دې کوم چه فقهاء کرام په سنن وضوء کښې شمار کوی، یا که دهغې نه علاوه دې؟ جواب دا دې چه په دې کښې دواړه اقوال دی، د فقهاء کرامو د طرز نه معلومیږی چه دا هم هغه غسل یدین دې کوم چه د اودس په ابتداء کښې مسنون دې خو علامه سندی په دې محمل باندې اشکال کړې دې، هغوی وائی چه ددې تعلق د سنن وضوء سره نه دې بلکه د احکام المیاه سره دې، یعنی مقصد دا دې چه په کورونو کښې چه په لوښو کښې کومې اوبه ډکې کړې شوې پرتې وی کومې چه په اودس، غسل او نورو ضروریاتو کښې استعمالیږی، دهغې د پاک ساتلو اهتمام پکار دې، مثلا د خوب نه چه پاسی نو بغیر د وینځلو نه دې لاس په هغې کښې نه دننه کوی چه د استعمال دپاره اوبه پاکې ملاؤ شی، او هم دا رائې ده د ابن رشد رحمه الله، هغوی هم په بدایة المجتهد کښې په دې حدیث باندې بحث فرمائیلې دې، احقر وائی چه ددې تائید ددې نه هم کیږی چه د اودس په ابتداء کښې غسل یدین خو په هر حال کښې مستحب دې، د اودهٔ کیدو نه پس پاسیدو سره مقید نه دې او په دې حدیث کښې د ستیقاظ من النوم قید دې.

حاصل دا چه سیاق دحدیث ددې خبره متقاضی دې چه ددې حکم تعلق د مطلق اوبو سره اومنلې شی د اودس سره دې دا خاص نه کړې شی خو د مصنف رحمه الله د طرز عمل نه

معلومیږي چه هغوی دا حدیث د سنن وضوء سره متعلق کړې دي په دې وجه ئې د ابواب وضوء په مینځ کښې راوړې دې احکام المیاه او د هغې ابواب مخکښې تیر شوي دي.

## یو خاص اشکال او د هغې جواب:

دلته یو سوال دا دې چه حضرت شیخ رحمه الله فرمائي چه زما استاد حضرت مولانا خلیل احمد صاحب سهارنپوری رحمه الله د خپل استاذ محترم مولانا شاه عبدالغنی صاحب رحمه الله نه دا سوال اوفرمائیلو چه په حدیث کښې د اودهٔ کیدو نه پس پاسیدو سره د غسل یدین حکم ورکړې شوې دې صرف د احتمال نجاست په وجه باندې چه معلومه نه ده چه لاس به کومو کومو ځایونو کښې لګیدلي وی، کیدې شي چه شرمګاه او محل استنجاء ته رسیدلي وی، چه هر کله دا خبره ده نو بیا د پاجامې او لنګ هغه حصه کومه چه د شرمګاه سره متصل وی، د اوده کیدو نه پس د هغې د وینځلو حکم په طریقه اولی پکار دی حال دا چه په حدیث کښې د هغې د وینځلو حکم نه دې راغلې؟

ددې جواب حضرت شیخ صاحب رحمه الله دا فرمائیلي دي چه په ظاهر ددې وجه دا ده چه د اوبو نجاست متعدی دې، او که اوبه ناپاک یا مشکوک وی نو کوم څیز باندې چه هم اولګیږی هغه ټول څیزونه به مشکوک او ناپاک شي په خلاف د کپړې چه د هغې د نجاست اثر بل څیز ته نه منتقل کیږی، هم په دې وجه فقهاء کرامو فرمائیلي دی چه ﴿طهارة الماء أوكد﴾ یعنی د اوبو د پاکوالی مسئله زیاته اهم ده، یو فرق بل هم دې چه په غسل یدین کښې هیڅ ګران والې (حرج) نشته، او د پاجامې ښختګ بار بار وینځلو کښې حرج دې، او حرج په شریعت کښې مدفوع دې.

[۱۰۴]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَعْنِي بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا، وَلَمْ يَذْكُرْ أَبَا رَزِينٍ.

**ترجمه:** د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې مرفوعاً یعني دا حدیث، هغه وائی: دوه ځله او یا درې ځله، او ابو رزین ئې نه دی ذکر کړې.

**تشریح:** قوله: ﴿قَالَ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا﴾ مصنف رحمه الله د اعمش د شاګردانو اختلاف بیانوی په اول روایت کښې شاګرد ابومعاویه وو، په دې کښې عیسی بن یونس دې، په اول روایت کښې ثلاث مرات دې بغیر د شک نه، په دویم روایت کښې مرتین او قال ثلاثا په شک سره دې ظاهر هم دا ده چه دا ﴿او﴾ د شک دپاره نه دې، بلکه د متکلم یعنی د نبی علیه السلام په کلام کښې دې، لهذا دا به هم دغه شان لوستلې شي ﴿مرتين او قال ثلاثا﴾ او دویم احتمال دا دې چه ﴿او﴾ د راوی شک نه وی بلکه متکلم یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په کلام کښې وی. په دې صورت کښې به د ﴿او﴾ نه پس ﴿قال﴾ نه شي لوستلې، د ﴿أو﴾ نه پس قَالَ هلته لوستلې شي چرته چه شک د راوی وی.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٤٥٣)، مسند احمد (٢/٢٥٣) (صحيح)

[۱۰۵]( ) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ فَلَا يُدْخِلْ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ، أَوْ أَيْنَ كَانَتْ تَطُوفُ يَدُهُ".

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې هغه وائي: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه چه هغه به ويل: كله چه بيدار شي يو كس ستاسو نه د خوب خپل نه، نو نه دې ننباسي لاس خپل په لوښي كښې تردې چه وينځي هغه درې ځل، بيشكه يو ستاسو نه نه پوهيږي چه چېرته شپه تېره كړې ده لاس د هغه، او يا كوم ځائې كښې ګرځيدو راګرځيدو لاس د هغه.

**تشريح**: قوله :﴿ اذا استيقظ احدكم الخ ﴾ په دې روايت كښې د نوم اضافه ده، سوال دا واردېږي چه د استيقاظ نه پس ددې قيد څه ضرورت وو، بيدارى خو وى د خوب نه؟

جواب دا دې چه د استيقاظ استعمال او اطلاق كله كله په افاقة من الغشى باندې هم كيږي، دويم سوال دا دې چه ﴿ نومه ﴾ كښې د ضمير د اضافت څه ضرورت وو ﴿ من النوم ﴾ به ئې وئيلي وې، ځكه چه هر سړې د خپل خوب نه بيدارېږي؟

جواب دا دې چه په دې كښې اشاره ده دې خبرې ته چه متكلم په دې حكم كښې داخل نه دې مخاطب مراد دې، او هم په دې وجه ئې احدكم هم ذكر كړې دې چه ددې حكم نه د متكلم خارجيدل معلوم شي.

## بَابُ صِفَةِ وُضُوءِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم

### باب دې په بيان د طريقې د اودس د نبي ﷺ كې

د دې باب نه د مصنف رحمه الله غرض د اودس تفصيلى كيفيت بيانول دى او دا چه د رسول الله ﷺ نه څنګه څنګه اودس كول ثابت دى، دا باب غالبًا د كتاب الطهارة د ټولو نه اوږد باب دې، په دې كښې مصنف رحمه الله د نهه صحابه كرامو رضي الله عنهم روايات ذكر فرمائيلې دى چه د هغې نه معلومېږى چه مصنف رحمه الله د بيان وضوء سخت اهتمام كوى، او دا خبره ده هم د اهتمام لائقه، د رواياتو كتلو نه معلومېږى چه صحابه كرامو رضي الله عنهم ته خپل مينځ كښې د تعليم وضوء ډير اهتمام وو.

[۱۰۶]( ) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ حُمْرَانَ بْنِ أَبَانَ مَوْلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، قَالَ: رَأَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ تَوَضَّأَ فَأَفْرَغَ عَلَى يَدَيْهِ ثَلَاثًا فَغَسَلَهُمَا، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، وَغَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى إِلَى الْمِرْفَقِ ثَلَاثًا ثُمَّ الْيُسْرَى مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ، ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَهُ الْيُمْنَى ثَلَاثًا ثُمَّ الْيُسْرَى مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٥٨) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الوضوء ٢٤ (١٥٩)، ٢٨ (١٦٤)، الصوم ٤٧ (١٩٣٤)، صحيح مسلم/الطهارة ٣ (٢٢٦)، سنن النسائي/الطهارة ٦٨ (٨٤)، موطا امام مالك/الطهارة ٦ (٢٩)، (تحفة الأشراف: ٩٧٩٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ٦ (٢٨٥)، مسند احمد (١/٧٢)، سنن الدارمي/الطهارة ٢٧ (٧٢٠) (صحيح)

تَوَضَّأَ مِثْلَ وُضُوئِي هٰذَا، ثُمَّ قَالَ: "مَنْ تَوَضَّأَ مِثْلَ وُضُوئِي هٰذَا ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ لَا يُحَدِّثُ فِيهِمَا نَفْسَهُ، غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ".

**ترجمه**: حمران وائي چه ما اوليدلو عثمان بن عفان چه اودس ئي اوکړو نو اوبه ئي واړولې په دواړو لاسونو باندې درې ځله نو وئې وينځل دواړه، بيا ئي مضمضه اوکړه او پوزه ئي سونړ کړه، بيا ئې مخ اووينځلو درې ځله، او وئې وينځلو خپل ښې لاس تر څنګل پورې درې ځله، بيا چپ لاس دهغې پشان، بيا ئې مسح د رأس اوکړه، بيا ئې وينځله ښې خپه خپله درې ځله، بيا ګسه خپه درې ځله پشان د هغې، بيا اووئيله رسول الله ﷺ اودس اوکړه پشان د اودس زما چه دادې، بيا ئې اووئيل: چا چه اودس اوکړو پشان د اودس زما چه دادې، بيا ئې مونځ اوکړو دوه رکعاته چه د ځان سره ئې په هغې کښې خبرې نه وې کړي، نو الله به ورته مخکنې ګناهونه اوبخښي.

**مسانيد عثمان رضي الله عنه:**

﴿عَنْ حُمْرَانَ بْنِ أَبَانَ مَوْلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ رَأَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ الخ﴾ د ټولو نه اول مصنف رحمه الله په دې سلسله کښې مسانيد عثمان رضي الله عنه بيان کړې دی ددې نه پس مسانيد علی رضي الله عنه، ددې دواړو روايتونه مصنف رحمه الله مفصلا ذکر کړې دی د اودس اکثر مسائل او اختلافات ائمه هم په دې دوؤ روايتونو کښې راغلی دی، ﴿قوله فافرغ على يديه ثلاثا﴾ د ظاهر لفظ نه معلوميږی چه دواړه لاسونه ئي يوځائې وينځل، او په ډيرو روايتونو کښې داسې راغلې دی چه ﴿افرغ بيده اليمنى على اليسرى﴾ چه دهغې مطلب په ظاهر کښې تقديم اليمنى على اليسرى دې [1] يعنې اول ئې ښې لاس وينځلو او بيا ئې په هغې سره په ګس لاس باندې اوبه واچولې، په دې صورت کښې به غسل يدين على التعاقب وی ابن دقيق العيد ليکی چه په دې دواړو صورتونو کښې کوم صورت افضل دې د فقهاء کرامو په دې کښې اختلاف دې.

په ابتداء د اودس کښې غسل يدين د جمهورو په نزد سنت دی، او اهل ظاهر ددې د وجوب قائل دی، د اودس په ابتداء کښې د غسل يدين ذکر په احاديث مرفوعه فعليه کښې خو په کثرت سره راغلې دې، لکه چه په احاديث الباب کښې به تاسو اوګورئ. په دې سلسله

[1] خکه چه په ګس لاس باندې د اوبو اچولو دپاره چه کله ښې لاس په اوبو کښې داخل کړې شو نو ښکاره ده چه په دې صورت کښې ښې لاس مخکښې وينځلې شو، او که دلته د ادخال يد فی الاناء په ځائې اصغاء اناء والی صورت واخستلې شی نو بيا تقديم اليسرى على اليمنى لازميږی چه دهغې څوک هم قائل نه دی، ددې نه هم معلومه شوه چه په اودس کښې د اوبو د استعمال دوه طريقې دی، ادخال يد فی الاناء، او اصغاء اناء، اول صورت په حوض يا لوښې لوښی کښې چليږی او دويم په وړوکی لوښی کښې، ددې نه علاوه ابن رسلان شارح د ابوداؤد ليکلې دی چه اول صورت کښې اوبه د متوضی نه ښی طرف ته کيدل پکار دی، او په دويم صورت کښې ګس طرف ته. سبحان الله! زمونږ شريعت څومره جامع دې چه په دې کښې د هر څيز طريقه او تفصيل موجود دې، لکه چه په يو حديث کښې دی ﴿ليلها ونهارها سواء﴾

کښې حدیث قولی شته یا نه؟
علامه انور شاه کشمیری رحمه الله لیکلي دی چه ماته په دې مسئله کښې هیڅ قولی حدیث یاد نه دې، او حدیث الاستیقاظ من النوم د غسل یدین په سلسله کښې اگرچه قولی حدیث دې، خو دا حدیث د سنن وضوء نه منلو کښې د علماء کرامو اختلاف دې چه دهغې بحث ددې نه په مخکښې باب کښې تیر شوې دې.
قوله :﴿ ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ﴾ د مضمضه لغوی معنی ده ﴿ تحریک الماء فی الفم ﴾ یا مطلق تحریک، پس وئیلې شی ﴿ مضمض النعاس فی عینیه ای تحرک ﴾ یعنی د فلانی سرې په سترګو کښې خوب تاویرې، او د جمهور فقهاء کرامو په نزد ددې حقیقت ﴿ ادخال الماء فی الفم ﴾ دې، بیا د فقهاء کرامو په دې کښې اختلاف دې چه د مضمضې دپاره په خُله کښې د اوبو د اخستلو نه پس إدارة الماء هم شرط دې یا نه، جمهور علماء کرام ددې قائل نه دی، بعض قائل دی، هم دغه شان په خُله کښې د اوبو اچولو نه پس دهغې مج یعنی بهر تویول هم د جمهورو په نزد ضروری نه دی، بلکه که دا تیرې کړی نو د مضمضه تحقق به راشی، خو بعض فقهاء کرام ددې د وجوب قائل دی.
د ترتیب تقاضا دا ده چه د مضمضه نه پس د استنشاق ذکر وې، پس په بعض نسخو کښې د ﴿ استنثر ﴾ په ځائې ﴿ استنشق ﴾ دې لکه چه په حاشیه باندې د نسخې علامت جوړولو سره لیکلې شوې دی، او دلته مراد دا دې ﴿ استنثر ای بعد الاستنشاق ﴾ ځکه چه ذکر استنثار مستلزم دې استنشاق لره د جمهورو رائې دا ده چه په دواړو کښې فرق دې، استنشاق وائی ادخال الماء فی الانف ته او استنثار ددې ضد دې خو په دې کښې د ابن العربی او ابن قتیبه اختلاف دې هغوی وائی چه د استنثار معنی هم د استنشاق ده، امام نووی رحمه الله فرمائی چه صحیح د جمهورو قول دې، خو احقر وائی چه په مُغْرِب او المصباح المنیر دواړو کښې د استنثار تفسیر په استنشاق سره کړې شوې دې.

### د مضمضه او استنشاق په حکم کښې اختلاف د علماؤ:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه د مضمضه او استنشاق په حکم کښې اختلاف دې، د امام مالک او امام شافعی په نزد په اودس او غسل دواړو کښې سنت ده او هم دا مذهب دې د حسن بصری اودامام زهوی رحمهما الله، او د امام احمد رحمه الله د مشهور قول په بناء دا دواړه په دواړو کښې فرض دی او د داؤد ظاهری په نزد استنشاق په اودس او غسل دواړو کښې واجب دې، او مضمضه په دواړو کښې سنت ده، او هم دا یو روایت د امام احمد رحمه الله دې، او دریم روایت د امام احمد رحمه الله په مثل د جمهور دې، او د احنافو په نزد په اودس او غسل کښې فرق دې، په اودس کښې دواړه سنت او غسل جنابت کښې دواړه واجب دی، د مضمضه او استنشاق دا اختلافات سره د دلائلو نه په باب السواک من الفطرة کښې تیر شوې دې.

### د مضمضه او استنشاق په کیفیت کښې د ائمه وُ مذاهب:

ځان پوهه کړه چه دلته یو اختلاف بل دې یعنی د مضمضه او استنشاق طریقه او کیفیت، پس امام ترمذی رحمه الله په دې سلسله کښې دوه ابواب قائم کړی دی یو د مضمضه او

استنشاق د حکم د بیان دپاره او دویم باب مستقلا د بیان کیفیت دپاره، اختلاف په دې کښې دا دې چه په مضمضه او استنشاق کښې وصل اولی دې یا که فصل؟ [۱] بله دا چه دواړه دې په یو اوبو سره اوکړې شی او که د دواړو دپاره بیلې بیلې اوبه واخستلې شی.

امام نووی رحمه الله فرمائی چه زمونږ په نزد په دې مسئله کښې پنځه اقوال دی چه هغه په خپلو الفاظو کښې د حفظ د سهولت دپاره داسې تعبیر کوم.

اول قول: الوصل بثلاث غرفات: یعنی په یو لپه کښې اوبه اخستلو سره دهغې په بعض حصې سره مضمضه او بعض سره استنشاق اوکړې شی، بیا دې هم دغه شان په دویم او دریم ځل اوکړې شی،

دویم قول: الوصل بغرفة واحدة: یعنی په یو لپه کښې اوبه اخستلو سره اول مضمضه او بیا هم په هغه اوبو سره استنشاق، او هم دغه شان دې په دې پاتې شوې اوبو باندې دویم او دریم ځل اوکړې شی، ګویا د وصل دوه طریقې شوې، په درې لپو باندې، او په یو لپه باندې، بیا د فصل درې صورتونه دی:

۱: فصل په یوه لپه: چه دهغې مطلب دا دې چه په یوې لپې سره اول درې کرته مسلسل مضمضه اوکړې شی او بیا په باقی اوبو سره درې کرته مسلسل استنشاق اوکړې شی.

۲: فصل په دوه لپو باندې: یعنی د یوې لپې اوبو نه دې اول درې کرته مضمضه اوکړې شی، بیا دې په دویمې لپې سره درې کرته استنشاق اوکړې شی،

۳: فصل په شپږو لپو باندې: یعنی درې لپې دې اول د مضمضه دپاره، او بیا درې لپې درې کرته د استنشاق دپاره، څنګه چه زمونږ علاقو کښې کیږی او مونږ او تاسو ئې کوو، خو د شوافعو په نزد په دې پنځو صورتونو کښې اول صورت یعنی الوصل بثلاث غرفات زیات اولی دې کما قال النووی.

ځان پوهه کړه چه د احنافو په نزد د وصل هغه صورت خو جائز دې چه په هغې کښې د ماء مستعمل استعمال نه لازمیږی، او په کوم صورت کښې چه د ماء مستعمل استعمال لازمیږی هغه صورت ناجائز دې مثلا که یو سړې په یوې غرفې سره مخکښې مضمضه او بیا هم په دې باقی اوبو سره استنشاق اوکړی نو دا به جائز وی خو که په یو لپه کښې اوبه واخلی نو په هغې باندې د استنشاق کولو نه پس به هم په هغه اوبو باندې دوباره استنشاق یا مضمضه کول صحیح نه وی، ځکه چه یو ځل استنشاق کولو نه پس په لپه کښې باقی پاتې اوبه مستعمل ګرځی، لکه چه ظاهره ده.

قوله: ﴿ وَغَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى إِلَى الْمِرْفَقِ ﴾ دا غایت د جمهورو علماء کرامو چه په هغوی کښې ائمه اربعه دی، په نزد په مغیا کښې داخل دې په دې کښې د امام زفر او داؤد ظاهری

---

[۱] د فصل مطلب دا دې چه د مضمضه د فراغت نه پس استنشاق اوکړې شی او د وصل مطلب دا دې چه دواړه یو ځائې اوکړې شی دا مسئله امام ابوداؤد رحمه الله وراندې په یو مستقل باب کښې ذکر کړې ده، باب الفرق بین المضمضة والاستنشاق)

اختلاف مشهور دې، هغوی وائی غایت د مغیا نه خارج دې، او بعضو د امام مالکرحمه الله نه هم په دې کښې اختلاف نقل کړې دې، خو دا صحیح نه ده.

**د غایت دوه قسمونه دی غایت اسقاط او غایت امتداد :**

غایت کله په مغیا کښې داخل وی او کله خارج، په باب الصوم یعنی آیت کریمه ﴿ ثم أتموا الصیام الی اللیل ﴾ کښې خارج دې او په باب الوضوء کښې داخل دې، قاعده ددې دا لیکلې ده چه د غایت دوه قسمونه دی، غایت الاسقاط او غایت الامتداد، په اول کښې غایة په مغیا کښې داخل وی، او په ثانی کښې خارج. غایت الاسقاط هغې ته وائی چه غایت د مغیا د جنس نه وی کما فی الوضوء ځکه چه د ید اطلاق د ګوتو نه واخله تر ترخونو پورې کیږی، او دلته یعنی ﴿ فاغسلوا وجوهکم وایدیکم الی المرافق ﴾ کښې ذکر غایت مافوق المرفق ته د حکم غسل نه د ساقط کولو دپاره دې، که غایت نه ذکر کیدو نو غسل ید به تر إبط پورې ضروری وې هم په دې وجه ددې غایت نوم غایت الاسقاط کیخودلې شو چه د ما بعد الغائط د ساقطولو دپاره دې هم دې لره صاحب هدایة فرمائی ﴿ اذ لولاها لاستوعبت الوظیفة الکل ﴾ او غایت الامتدادهغې ته وائی کوم چه د حکم د اوږدولو او خورولو دپاره ذکر کړې شی او دا هلته وی کوم ځائې چه غایت د مغیا د جنس نه نهٔ وی لکه ﴿ ثم أتموا الصیام إلی اللیل ﴾ کښ، ځکه چه د روژې د ابتداء د اول نهار نه کیږی، او د صوم لغوی معنی د مطلق امساک ده که هغه د یو ساعت دپاره ولې نه وی، پس هلته چه د الی اللیل، کوم غایت ذکر کړې شوې دې هغه د امتداد دپاره دې چه د امساک حکم د ورځې د آخر پورې اوشی، دلته که غایت نه وو ذکر شوې نو دا به لازمیدل چه د صوم تحقق أمساک ساعة سره هم حاصل شی، حال دا چه داسې نه ده.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه په اودس کښې دا اختلاف په مرفقین او کعبین دواړو کښې دې، او په دې کښې هم اختلاف دې چه په اودس کښې د کعب نه څه مراد دې؟ د جمهور علماء او د ائمه اربعه په نزد کعب نوم دی د ﴿ العظمان الناتیان بین الساق والقدم ﴾ او په هر رجل کښې دوه کعب وی، په دې مسئله کښې د روافض اختلاف دې هغوی وائی چه هر رجل کښې یو کعب وی عند معقد الشراک (یعنی دخپې شاته حصه کښې دتسمې د تړلو ځائې) هغوی په اودس کښې هم ددې قائل دی چه خپې دې تر معقد الشراک پورې وینځلې شی.

دلته د حافظ ابن حجررحمه الله نه یو وهم اوشو هغه دا چه هغوی د امام محمدرحمه الله طرف دا قول منسوب کړې دې، حال دا چه دا صحیح نه ده، علامه عینیرحمه الله دا رد کړې ده، غالبا حافظ ته مغالطه د باب الحج د یوې مسئلې نه شوې دې هغه دا چه په حدیث کښې دی ﴿ اذا لم یجد النعلین فلیلبس الخفین ولیقطعهما أسفل من الکعبین ﴾، امام محمدرحمه الله په دې مسئله کښې فرمائی چه دلته د کعب نه مراد معقد الشراک دې نه باب وضوء کښې.

**په مسح رَأس کښې مباحث اربعه :**

﴿ قوله ثُمَّ مَسَحَ رَأسَهُ ﴾ ځان پوهه کړه چه په مسح د سر کښې څلور بحثونه دی، اول مقدار مفروض، ثانی تثلیث مسح، ثالث د مسح رأس دپاره د ماء جدید اخستل، رابع کیفیت

مسح یعنې د مسح طریقه څه ده.

## بحث اول مقدار مفروض:

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د فقهاء کرامو په دې کښې دیارلس اقوال دی، مشهور په هغې کښې درې دی.

۱: د احنافو په نزد څلورمه حصه د سر یا مقدار د دریو ګوتو د لاس د ګوتو نه.

۲: د شوافعو په نزد په دې کښې دوه اقوال دی، یو ادنی ما یطلق علیه اسم المسح یعنې کم از کم هغه مقدار چه په هغې باندې د مسح اطلاق کیدې شی، اګرچه یو ویښته ولې نه وی، دویم قول دا دې چه کم از کم ثلاث شعرات.

۳: د امام مالک او احمد رحمهما الله په نزد د مشهور قول په بناء استیعاب د سر واجب دې، او د امام احمد رحمه الله دویم قول دا دې چه د بعض سر مسح کافی ده او دا دوه اقوال د هغوی په نزد د سړو په حق کښې دی، او د زنانو دپاره د مقدم رأس مسح کول کافی دی، هم دغه شان د مالکیانو په نزد نور هم اقوال دی، پس د بعض مالکیانو په نزد مسح الثلثین ده او د بعض په نزد مسح الثلث ده.

د احنافو دلیل د مغیره بن شعبه رضی الله عنه حدیث دې کوم چه په مسلم او ابوداؤد وغیره کښې دې چه په هغې کښې دی ﴿ ومسح علی ناصیته ﴾ بله دا چه د انس رضی الله عنه په حدیث کوم چه په ابوداؤد کښې دې چه په هغې کښې د ﴿ مسح مقدم رأسه ﴾ لفظ دې ابن الهمام رحمه الله فرمائی چه مقدم راس او ناصیه او ربع راس دا ټول یو دی، بله دا چه په ﴿ وامسحوا برؤسکم ﴾ کښې باء د تبعیض دپاره ده، شوافع فرمائی چه په آیت وضوء کښې مسح راس مطلقا مذکور دې، ﴿ والمطلق یجری علی اطلاقه ﴾ ددې جواب اصولینو دا ورکړې دې چه آیت وضوء د مسح راس په باره کښې مطلق نه دې بلکه مجمل دې، او په مجمل باندې د عمل دپاره د مجمل یعنې د متکلم د طرف نه بیان ضروری دې، بغیر د بیان نه په هغې باندې عمل ممکن نه دې، او د رسول الله ﷺ عمل یعنې مسح علی الناصیة ددې مجمل بیان دې، لهذا مسح علی الناصیة به فرض وی، پاتې شوه دا خبره چه دې ته مطلق ولې نه شو وئیلې ددې جواب دا دې چه د مطلق علامت دا دې چه دهغې په افرادو کښې چه کوم فرد هم چه مکلف اختیار کړی نو مامور به دې ادا کونکې اوګنړی، او دلته داسې نه ده، ځکه چه د مطلق مسح راس څو افراد دی، مسح علی الکل، مسح علی الثلثین، مسح علی النصف، مسح علی الثلث، مسح علی الربع، مسح علی الخمس، مسح علی السدس وغیره وغیره نو ګورئ که یو سړې د مطلق په دې افرادو کښې د شروع څلور اختیار کړی نو صرف د مامور به ادا کونکې نه ستاسو په نزد دې او نه زمونږ په نزد بلکه هغه په دې صورتونو کښې مامور به مع شئ زائد لره ادا کونکې دې ﴿ فلم توجد علامة المطلق فثبت ما قلناه ﴾

**د موالکو او حنابله دلیل:** مالکیان او حنابله فرمائی چه په قرآن کریم کښې د مسح راس حکم دې ﴿ واسم الراس حقیقة فی العضو کله ﴾ یعنې راس نوم دې د پوره اندام، بله دا چه هغوی وائی چه په ﴿ وامسحوا برؤسکم ﴾ کښې باء د تبعیض دپاره نه ده بلکه زائده ده، ابن

القیم الحنبلی رحمه الله فرمائی چه د رسول الله ﷺ نه یو ځل هم دا ثابت نه دی چه هغوی د بعضې سر په مسح باندې اکتفاء کړې وی، او داسې خو شوې ده چه صرف په ناصیه باندې مسح کولو سره ئې د باقی مسح تکمیل په مسح علی العمامة باندې فرمائیلې ده.

## بحث ثانی تثلیث مسح :

د جمهور علماء ائمه ثلاثه په نزد په مسح راس کښې توحید دې، تثلیث مستحب نه دې، د امام شافعی رحمه الله او عطاء رحمه الله په نزد تثلیث مستحب دې، او ابن العربی د ابن سیرین مذهب دا نقل کړې دې چه د هغوی په نزد مسح د سر دوه کرته ده، یو ځل فرض او یو ځل سنت.

**د شوافعو دلائل**:د شوافعو استدلال د هغه روایاتو منجمله نه دې چه په هغې کښې راځی (توضاء ثلاثا ثلاثا) هغوی وائی چه ددې روایاتو نه په ظاهره معلومیږی چه ټول اعضاء په دې کښې داخل دی، بل د عثمان او علی رضي الله عنهما بعض روایات کوم چه په ابوداؤد کښې وړاندې راروان دی په هغې کښې د تثلیث مسح تصریح ده، بله دا چه هغوی قیاس کوی راس لره په باقی اندامونو باندې.

**د جمهورو دلائل**: د جمهورو استدلال د روایت مفصله نه دې، جمهور وائی چه روایات مفصله قاضی دی په روایات مجمله باندې او د روایات مفصله صحیحه نه توحید د مسح معلومیږی او په کومو روایاتو مفصلو کښې چه په مسح د سر کښې تثلیث ذکر شوې دې هغه متکلم فیه او ضعیف دی، پس امام ابوداؤد رحمه الله وړاندې تلو سره فرمائی چه د عثمان رضي الله عنه احادیث صحیحه په دې خبره باندې دال دی چه مسح د سر صرف یو ځل ده، معلومه شوه چه د عثمان رضي الله عنه په کومو دوه روایتونو کښې چه تثلیث مسح ذکر شوې ده هغه ضعیف دی، ځکه چه په هغې کښې د یو په سند کښې عبدالرحمن بن وردان دې، او د دویم په سند کښې عامر بن شقیق دې وهما ضعیفان کما حققه شیخ شیخنا فی البذل، علامه شوکانی رحمه الله فرمائی د انصاف خبره دا ده چه د تثلیث مسح احادیث درجې د اعتبار ته نه دی رسیدلی، هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله هم د تثلیث مسح په روایاتو باندې کلام کړې دې هغوی فرمائی ( ولو صح فمحمول علی الاستیعاب لانها مسحات مستقلات ) یعنی اول خو د تثلیث روایات صحیح نه دی او که صحیح اومنلې شی نو هغه موؤل دی، یعنی هلته د تثلیث نه مراد درې کرته مستقلا مسح کل نه دی بلکه مقصود استیعاب راس دې، په یو مشهور حدیث کښې دا دی چه یو ځل رسول الله ﷺ اودس اوفرمائیلو چه په هغې کښې یو ځل مسح راس ذکر ده، د اودس پوره کولو نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل ( من زاد علی هذا فقد اساء وظلم ) حافظ وائی چه دا روایت په توحید مسح باندې قوی دلیل دې، د احنافو د طرف نه دویم تاویل دا دې چه محمول دې په مسح بماء واحد باندې، او تثلیث المسح بماء واحد یو روایت کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم منقول دی په خلاف د امام شافعی رحمه الله چه هغوی د تثلیث مسح بثلاثة میاه قائل دی، بله دا چه د شوافعو مسح د سر قیاس کول په باقی اندامونو باندې قیاس کول دی مع الفارق، ځکه چه د مسح بناء په تخفیف باندې ده په خلاف د غسل، بیا څنګه یو په بل باندې قیاس کیدې شی.

## بحث ثالث تجدید ماء :

د مسح راس دپاره نوې اوبه اخستل د احنافو په نزد سنت دی او د شوافعو او حنابله په نزد نوې اوبه اخستل واجب دی، په دې باندې به مونږ کلام وراندې تلو سره د عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه د روایت د لاندې کوو.

## بحث رابع کیفیت مسح :

د جمهورو علماء اربعه ؤ په نزد به مسح راس ابتداء د مقدم راس نه کیږی او وکیع بن الجراح رحمه الله فرمائی لکه چه په ترمذی کښې دی چه ددې ابتداء به د موخر راس نه کیږی، په دې باندې ابن عربی په شرح د ترمذی کښې فرمائی ﴿ لا نعلم احدا قال به غیره ﴾ چه د وکیع بن الجراح نه علاوه بل چا دا قول اختیار کړې وی زمونږ په علم کښې نشته، حضرت شیخ په حاشیه د کوکب کښې فرمائی چه د علامه عینی رحمه الله دا قول د حسن بن صالح [1] نه هم منقول دې، او دریم قول هغه دې کوم چه د حسن بصری رحمه الله نه منقول دې، البدایة من الهامة یعنی د مسح راس ابتداء به د وسط راس نه کیږی په داسی طریقه چه په وسط راس [2] باندې لاس کیخودلو سره هغه د مقدم راس طرف ته راوړی. او بیا دې واپس کولو سره د سټ طرف ته بوځی، ددې مسئلې دلائل به د عبدالله بن زید بن عاصم په حدیث کښې راشی.

**فائده** : ځان پوهه کړه چه صاحب منیة او صاحب محیط د مسح راس یو خاص طریقه لیکلې ده هغه دا چه د مسح راس په وخت دې سباحتین او ابهامین د سر نه جدا کیخودلې شی چه په سباحتین سره د باطن اذنین او په ابهامین سره په ظاهر اذنین باندې مسح اوکړې شی. بله دا چه د مسح په ابتداء چه کله دواړه لاسونه د مخکښې حصې نه شاته حصې ته بوځی نو په دې وخت کښې دې کفین هم د سر نه جدا اوساتی، صرف د دواړه لاسونو دې درې ګوتې یو ځائې کړی او په هغې سره دې د سر په پورته حصه باندې مسح اوکړې شی، او بیا چه کله د استیعاب راس په قصد سره دواړه لاسونه د شانه مخې ته راولی نو هغه وخت دې کفین په مسح کښې استعمال کړی، چه د سر د پورته حصې مسح په ګوتو سره او د جانبین مسح په کفین سره اوشی. دا خاص ترکیب دې حضراتو په دې وجه بیان کړو چه که دواړه لاسونه په سر باندې کیږدی او د وړاندې نه ئې روستو او د روستو نه وړاندې طرف ته راولی نو په دې کښې به د لاسونو د لوند والی دوباره استعمال اوشی ګویا د ماء مستعمل استعمال به لازم شی، خو محقق ابن الهمام رحمه الله د مسح ددې خاص شکل تردید کړې دې چه ددې ثبوت په هیڅ روایت کښې نشته، بلا وجه تکلف دې، ځکه چه په لاسونو باندې چه کوم لوندوالې دې دهغې په تکرار استعمال کښې هیڅ قباحت نشته، اوبه تر هغه وخته پورې مستعمل کیږی نه ترڅو چه د اندام نه منفصل نه شی.

[1] دوی ته حسن بن حی هم وائی دا نسبت الی الجد دې، اصل کښې دا نوم داسې دې حسن بن صالح بن صالح بن حی.

[2] غالبا ددې ماخذ هغه روایت دې کوم چه وړاندې د ربیع بنت معوذ بن عفراء په حدیث کښې راروان دې چه دهغې الفاظ داسې دی نمسح الراس کله من قرن الشعر کل ناحیة لمنصب الشعر الحدیث)

قوله :﴿ ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَهُ الْيُمْنَى ﴾ په وظیفه رجلین کښې اختلاف دې. جمهور علماء کرام ائمه اربعه د غسل قائل دی، او بعض خلق د مسح رجلین قائل دی، ددې دپاره مصنف رحمه الله وړاندې تلو سره مستقل ترجمه (باب غسل الرجل) قائم کړې دې، تفصیل به هلته راشی.

قوله :﴿ لاَ يُحَدِّثُ فِيهِمَا نَفْسَه ﴾ یعنی کوم سرې چه په پورته ذکر کړې شوې طریقه باندې اودس کولو نه پس دوه رکعته داسې اوکړی چه په هغې کښې د خپل نفس سره خبرې نه کوی نو د هغه تیر ټول ګناهونه به معاف شی.

په دې حدیث کښې د وسوسو نفی ده، دلته یو اختلاف خو دا دې چه د کومو وسوسو نفی مراد ده د وساوس اختیاریه یا که د مطلق وساوس، ځکه چه وساوس په دوه قسمه باندې وی اختیاری او غیر اختیاری اکثر شارحین چه په هغوی کښې امام نووی رحمه الله او قاضی عیاض رحمه الله هم دی، فرمائی چه د وساوس اختیاریه نفی مراد ده ځکه چه وساوس غیر اختیاریه کومو ته چه خطرات وئیلې شی هغه دې امت ته معاف دی ﴿ان الله تجاوز عن امتی ما وسوست به صدروها مالم تعمل او تتكلم به ﴾ بله دا چه د مطلق وسوسو راتلل د انسان په اختیار کښې نه دی، په دې باندې انسان قادر هم نه دې، ﴿ لا يكلف الله نفسا الا وسعها ﴾،

دویم قول په دې کښې هغه دې کوم چه قاضی عیاض رحمه الله د بعض علماء کرامو نه نقل کړې دې، هغه دا چه په دې حدیث کښې د مطلق وساوس نفی مراد ده، پاتې شوه دا خبره چه دا څیز غیر اختیاری دې، نو ددې جواب دا دې چه دا حدیث د باب تکلیف او وعید نه نهٔ دې باب وعد او ترتب ثواب مخصوص نه دې، یعنی هغه فضیلت کوم چه په حدیث کښې مذکور دې، په دې دوه رکعتونو باندې به هغه وخت مرتب وی چه کله مطلقا وساوس رانشی، د خصوصی انعام او ثواب دپاره په دې قسم قید لګولو کښې هیڅ اشکال نشته.

**(دلته دکومو خیالاتو نفی مراد ده؟)**

او بل اختلاف دلته دا دې چه کوم خیالات مراد دی، صرف ما يتعلق بالدنیا که مطلقا، په دې کښې قول راجح کوم چه امام نووی او قاضی عیاض رحمهما الله اختیار کړې دې دا دې چه مطلق وساوس مراد دی، که هغه د دنیا د امورو سره متعلق وی یا د امور آخرت سره سوا د مانځه نه، او دویم قول دا دې چه ما يتعلق بامور الدنيا مراد دی، او هغه خیالات کوم چه د آخرت د امورو یا د څه دینی کار سره متعلق وی هغه په دې کښې داخل نه دی ځکه چه د حکیم ترمذی په یو روایت کښې د ﴿ بشئ من امور الدنيا ﴾ قید راغلې دې بله دا چه د عمر رضی الله عنه نه روایت دې ﴿ انی لاجهز جیشی وانا فی الصلوة ﴾ چه عمر رضی الله عنه په مانځه کښې د مشغولیدو د تجهیز جیش کوم چه د امور دین نه دی دهغې به هغوی ته په مانځه کښې خیال راتلو.[1]

---

[1] خو د عمر رضی الله عنه ددې مقولې دویم مطلب بعض علماء کرامو دا اخستلې دې چه زه په تجهیز جیش کښې مصروف یم، خو د مانځه وخت چونکه نزدې وی په دې وجه خیال او ذهن په مانځه کښې وی، دا مطلب نه دې چه په مونځ کولو کښې ئې د تجهیز جیش خیال راځی.

[۱۰۷]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ وَرْدَانَ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنِي حُمْرَانُ، قَالَ: رَأَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ تَوَضَّأَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرِ الْمَضْمَضَةَ وَالِاسْتِنْشَاقَ، وَقَالَ فِيهِ: وَمَسَحَ رَأْسَهُ ثَلَاثًا، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا، ثُمَّ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ هَكَذَا، وَقَالَ: مَنْ تَوَضَّأَ دُونَ هَذَا كَفَاهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَمْرَ الصَّلَاةِ.

**ترجمه:** حمران وائي چه ما عثمان بن عفان اوليدلو چه اودس ئې اوکړو، نو ذکر ئې کړو دهغې پشان، او ذکر ئې نه کړه مضمضه او استنشاق، او وئيلی دي په هغې کښې: او مسح د سر ئې اوکړه درې ځله، بيا ئې خپې وينځلې درې ځلې، بيا ئې اووئيل: ما ليدلی دی رسول الله ﷺ چه اودس ئې اوکړو دارنګه، او وئې وئيله: چاچې اودس اوکړو کم د دېنه نو د هغه لپاره بس دی، او ذکر ئې نه کړو مونځ.

**تشريح:** قوله ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى الخ ﴾ دا د عثمان رضی الله عنه د پورته ذکر شوي حديث طريق ثاني ده، په اول سند کښې د حمران نه روايت کونکي عطاء وو، او په دې طريق کښې د هغوی نه روايت کونکې ابو سلمة بن عبدالرحمن دي ﴿ قوله فَذَكَرَ نَحْوَهُ ﴾ د ذکر ضمير ابو سلمه ته راجع دې، کوم چه د طريق ثانی راوی دې، او د نحوه ضمير د عطاء طرف ته راجع دې کوم چه په طريق اول کښې ذکر دې، د مصنف رحمه الله غرض ابوسلمة او عطاء د دواړو روايتونو په الفاظو کښې چه کوم کمې او زيادت دې هغه بيانول دی. پس په دې روايت کښې مضمضمه او استنشاق مذکور نه دې، په اول روايت کښې مذکور وو، د ابوسلمه په روايت کښې ﴿ مسح ثلاثا ﴾ دې د عطاء په روايت کښې ﴿ مسح راسه ﴾ مطلقا دي دريم فرق دا دې چه د ابوسلمه په روايت کښې غسل رجلين مجملا ذکر کړې دې، او د عطاء په روايت کښې دواړه بيل بيل ذکر کړې شوې دی، او څلورم فرق دا دې چه د عطاء په روايت کښې په ځائې د ﴿ من توضاء دون هذا کفاه ﴾ دې. او پنځم فرق دا دې چه په اول روايت کښې ﴿ ثم صلی رکعتين الخ ﴾ مذکور وو په دې دويم روايت کښې دا نشته، دا هغه پنځه فرقونه دی کوم چه مصنف رحمه الله خپله ددې دوه روايتونو ترمينځه بيان فرمائيلي دی.

[۱۰۸]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ الْإِسْكَنْدَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ زِيَادٍ الْمُؤَذِّنُ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ التَّيْمِيِّ، قَالَ: سُئِلَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْوُضُوءِ، فَقَالَ: رَأَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ سُئِلَ عَنِ الْوُضُوءِ، "فَدَعَا بِمَاءٍ، فَأُتِيَ بِمِيضَأَةٍ فَأَصْغَى عَلَى يَدِهِ الْيُمْنَى، ثُمَّ أَدْخَلَهَا فِي الْمَاءِ، فَتَمَضْمَضَ ثَلَاثًا وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا وَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى ثَلَاثًا وَغَسَلَ يَدَهُ الْيُسْرَى ثَلَاثًا، ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَأَخَذَ مَاءً فَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ فَغَسَلَ بُطُونَهُمَا وَظُهُورَهُمَا مَرَّةً وَاحِدَةً ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثُمَّ قَالَ: أَيْنَ السَّائِلُونَ عَنِ الْوُضُوءِ؟ هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: أَحَادِيثُ عُثْمَانَ رضی الله عنه الصِّحَاحُ كُلُّهَا تَدُلُّ عَلَى مَسْحِ الرَّأْسِ أَنَّهُ مَرَّةً فَإِنَّهُمْ ذَكَرُوا الْوُضُوءَ ثَلَاثًا وَقَالُوا فِيهَا: وَمَسَحَ رَأْسَهُ، وَلَمْ يَذْكُرُوا عَدَدًا كَمَا ذَكَرُوا فِي غَيْرِهِ.

**ترجمه:** د عثمان بن عبد الرحمن بن التيمي نه روايت دې هغه وائی، چه سوال اوکړی شو د

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۷۹۹) (حسن صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۸۲۰) (حسن صحيح)

ابن ابي مليكه نه د اودس په باره كښې، نو هغه اووئيل: ما ليدلى دى عثمان بن عفان چه سوال ترېنه شوى وو د اودس باره كښې، نو راويې غوښتلې اوبه، نو راوړى شوه ورته د اودس لوښى نو راكوږېې كړو په ښى لاس كښې اوهغې سره ئې خپل لاس اووينځلو بيا ئې داخل كړو په اوبو كښې، نو مضمضه ئې اوكړه او پوزه ئې سونړ كړه درې ځله، او مخ ئې وينځلو درې ځله، بيا ئې ښى لاس وينځلو درې ځله، او وئې وينځلو گس لاس خپل درې ځله، بيا ئې لاس داخل كړو نو اوبه ئې راواخستې نو مسح د سر او د غوږونو ئې اوكړه، نو وئې وينځل باطن او ظاهر د دواړو يو ځل، بيا ئې خپې وينځلې، بيا ئې اووئيل: چېرته دي تپوس كونكي د اودس؟ دارنگه ما ليدلى وو رسول الله ﷺ چه اودس ئې كولو. وئيلى دي ابوداود: د عثمان صحيح احاديث ټول دليل دى چه مسح د سر يو ځل ده، ځكه هغوى اودس درې ځل ذكر كړى دى، اومسح د سر ئې مطلق ذكر كړه او دهغې عدد ئې نه دې ذكر كړې ځنگه چه نورو خلقو ذكر كړى دى په نورو ځيزونو كښې.

**تشريح:** قوله :﴿ فَأُتِيَ بِمِيضَأَةٍ الخ ﴾ دا د حديث عثمان رضي الله عنه دريم طريق دې، په دې كښې د عثمان رضي الله عنه شاگرد بدل شو په اول روايت كښې حمران وو، په دې كښې د هغوى په ځائې ابن ابى مليكة دې، چه د هغوى نو عبدالله بن عبيدالله بن أبى مليكة دې، دا نسبت الى الجد دې، ميضاة يعنى هغه لوښې چه په هغې كښې د اودس په اندازه اوبه وى.

قوله :﴿ فَأَصْغَاهَا عَلَى يَدِهِ الْيُمْنَى ﴾ يعنى په گس لاس باندې ئې دا لوښى ښكته كړو او په ښى لاس باندې ئې ترې اوبه واچولې، ددې مقتضى دا ده چه د ماء وضوء لوښې د متوضى گس طرف كيدل پكار دى، ابن رسلان رحمه الله ليكى چه كه د اودس لوښې وړوكې وى كوم چه په لاس باندې ښكته كيدې شى نو لوښې دې په گس طرف باندې كيخودلې شى چه په غسل يدين كښې ابتداء باليمين راشى او كه اوبه په لوئې ځيز كښې وى كوم چه په لاس باندې نه شى ښكته كيدې نو بيا متوضى لره ښى طرف ته كيدل پكار دى چه ښى لاس لره اول په هغې كښې دننه وينځلو سره په ښى لاس سره په گس لاس باندې اوبه واچولې شى. ﴿ فَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ ﴾ په دې حديث كښې مسح اذنين ذكر شوې دې په اول حديث كښې نه وو ذكر شوې. غالبا هغه به د راوى اختصار وى، حديث خو دواړه د عثمان رضي الله عنه دى، خو ددې طرق مختلف دى، يو حديث په متعدد طرق سره په دې وجه هم ذكر كولې شى كه چرته په مضمون يا الفاظو كښې كه د راويانو اختلاف وى نو چه هغه مخامخ راشى.

## په مسح د غوږونو كښې مسائل اختلافيه :

په مسح اذنين كښې څلور بحثونه اختلافى دى، اول وظيفه اذنين څه ده، مسح كه غسل، دويم دا چه واجب ده كه فرض، دريم دا چه د غوږونو د مسح دپاره تجديد د اوبو ضرورى دې كه نه، څلورم مستقل اندام دې كه د سر جزء دې.

**بحث اول** : د ائمه أربعه په نزد وظيفه اذنين مسح ده، او د داؤد ظاهرى او امام زهرى رحمه الله په نزد ددې وظيفه غسل دې، او د امام شعبى او امام حسن بن صالح رحمه الله په نزد ددې وظيفه مسح او غسل دواړه ده، ما اقبل من الاذنين يعنى د غوږونو هغه حصه كومه چه د مخ طرف

نه ده (کوم ته چه باطن اذنین هم وائی) ددې غسل به په غسل د وجه سره وی، او د ما ادبر من الاذنین مسح به وی په مسح اذنین سره، او څلورم قول په دې کښې د اسحق بن راهویه دې هغوی فرمائی چه د اذنین حکم دې خو مسح، خو د ما اقبل من الاذنین مسح په غسل وجه سره او د ما ادبر من الاذنین مسح به په مسح راس سره وی.

**بحث ثانی** : د جمهور علماء ائمه ثلاثه په نزد مسح اذنین سنت ده، او د امام احمد رحمه الله په نزد واجب ده.

**بحث ثالث** : د امام شافعی (۱)، امام مالک او امام احمد رحمهم الله درې واړو په نزد د مسح اذنین دپاره تجدید ماء مسنون دې، او د احنافو په نزد مسنون دا ده چه مسح اذنین دې بماء الراس وی، پس حافظ ابن القیم رحمه الله فرمائی چه د رسول الله ﷺ نه د مسح اذنین دپاره تجدید ماء ثابت نه دې (۲)، هم دغه شان ددې باب آخری حدیث الاذنان من الراس زمونږ دلیل دې، او هغه حضرات ددې حدیث جواب دا ورکوی چه ددې حدیث مرفوع کیدل ثابت نه دی لکه چه ددې تفصیل به د هغه حدیث د لاندې په آخر باب کښې راشي، او بعضو ددې جواب دا ورکړې دې چه د ﴿ الاذنان من الراس ﴾ مطلب دا دې چه ﴿ انهما ممسوحان مغسولان ﴾ یعنی د سر په شان غوږ هم په اعضاء ممسوحه کښې دې او دا مطلب نه دې چه دا د سر جزء دې لهذا د تجدید ماء ضرورت نشته. (قاله ابن عبدالبر فی الکافی) او حدیث د تکفیر الوضوء هم د احنافو دلیل دې، امام نسائی په دې باندې قائم کړې دې: باب مسح الأذنین مع الراس وما یستدل به علی انهما من الراس.

سوال دا دې چه د احنافو په نزد تجدید د ماء مستحب هم دې که نه دې؟ په دې کښې زمونږ د فقهاء کرامو اختلاف دې، په مراقی الفلاح کښې خو ئې مستحب لیکلې دې (۳)او په فتح القدیر کښې ئې ﴿ لا یستحب ﴾ لیکلې دې او هم دا د علامه شامی رحمه الله تحقیق هم دې او هم

---

(۱) د امام شافعی رحمه الله دا مسلک په متن د ابو شجاع او دهغې په شرح او په انوار ساطعه صفحه ۱۰۵ کښې هم دغه شان لیکلې دې، او د امام مالک رحمه الله دا مسلک په انوار ساطعه صفحه ۱۸۰، په ارشاد السالک او کتاب الکافی صفحه ۱۴۱ د ابن عبدالبر رحمه الله کښې لیکلې دې او د امام احمد رحمه الله دا مذهب په الروض المربع او انوار ساطعه صفحه ۲۴۲ کښې لیکلې شوی دې)

(۲) خو د متن ابوشجاع په حاشیه کښې په حواله د حاکم یو حدیث نقل کړې دې چه په هغې کښې تصریح ده چه رسول الله ﷺ د مسح اذنین دپاره نوې اوبه واخستلې، ونصه هکذا روي الحاکم من حدیث عبدالله بن زید في صفة وضوئه ﷺ انه توضاء ومسح اذنیه بماء غیر الماء الذي مسح به الراس قال الحافظ الذهبي صحیح)

(۳) ځان پوهه کړه چه څنګه صاحب د مراقی الفلاح د مسح اذنین دپاره تجدید د اوبو لره مستحب لیکلې دې هم دغه شان صاحب د در مختار د کلام نه هم استحباب مفهوم کیږی خو علامه شامی رحمه الله په دې باندې تفصیلی بحث کړې دې خلاصه ددې خبره دا ده چه په متون احناف کښې مسح اذنین بماء الراس د سنت کیدو تصریح ده او هم دا هغوی د صاحب هدایه او صاحب البدائع نه هم نقل کړې ده او بیا وراندې تلو سره لیکی چه کله دا ثابته شوه چه سنت عدم تجدید دې نو بیا تجدید ماء نه مستحب څنګه ونیلې کیدې شي، خلاف سنت کار مستحب څنګه کیدې شی زه وایم چه هم دا وجه ده چه زمونږ حضرت ګنګوهی رحمه الله دې ته صرف مباح ونیلې دی)

دا رائې د حضرت گنگوهي رحمه الله ده، پس په کوکب کښې ددې په باره کښې ﴿ لا باس به ﴾ ليکلې شوې دې.

**بحث رابع : آيا غوږونه د سر په حکم کښې داخل دي؟**

د ائمه ثلاثه په نزد ﴿ الاذنان من الراس ﴾ او د امام شافعي رحمه الله په نزد ﴿ عضوان مستقلان ﴾ او د داوٗد ظاهري رحمه الله اود امام زهري رحمه الله په نزد ﴿ الاذنان من الوجه ﴾ يعنی اذنين د مخ جزء دې.

امام شافعي رحمه الله په دليل کښې دا فرمائي چه رسول الله ﷺ د اذنين دپاره نوې اوبه اخستلې دی، لهذا هغه مستقل اندام شو او حديث ﴿ الاذنان من الراس ﴾ مرفوعا ثابت نه منی. ، وائی چه دا موقوف دې، لکه چه ددې تفصيل به د باب په آخری حديث کښې راشی، او امام مالک او امام احمد فرمائی چه اګر که هغه د راس جزء دې، خو تجديد ماء د مسح اذنين دپاره په دې وجه دی چه د رسول الله ﷺ نه ثابت دی، او داوٗد ظاهري او امام زهري رحمه الله په دليل کښې دا پيش کوی چه د رسول الله ﷺ نه په سجده کښې دا دعاء ثابت ده ﴿ سجد وجهي للذی خلقه وشق سمعه وبصره ﴾ په دې حديث کښې د سمع او د بصر اضافت د مخ طرف ته کړې شوې دې، لهذا سمع او بصر د مخ اجزاء شو. (هکذا فی المنهل)

قوله: ﴿ فَغَسَلَ بُطُونَهُمَا وَظُهُورَهُمَا مَرَّةً ﴾ دلته د غسل نه مراد مسح ده، ځکه چه دا جمله تفسير دې د ﴿ فمسح براسه واذنيه ﴾ او د غسل اطلاق په مسح باندې ثابت دې، لهذا داوٗد ظاهري او امام زهري رحمه الله په دې لفظ سره په خپل مسلک باندې استدلال نه شی کولې، او دويمه وجه دا هم ده چه ددې دواړو په نزد غسل اذنين خو په مخ سره وی نه چه د مسح رأس په وخت، او دلته ذکر شروع دې د مسح راس.

**تثليث مسح سره متعلق د امام ابوداوٗد رحمه الله رائې :**

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ أَحَادِيثُ عُثْمَانَ – رضی الله عنه – الصِّحَاحُ كُلُّهَا تَدُلُّ عَلَى مَسْحِ الرَّأْسِ أَنَّهُ مَرَّةً فَإِنَّهُمْ ذَكَرُوا الْوُضُوءَ ثَلاَثًا وَقَالُوا فِيهَا وَمَسَحَ رَأْسَهُ ﴾ چونکه په ماقبل کښې د حديث عثمان په يو طريق کښې ﴿ ومسح راسه ثلاثا ﴾ راغلې وو، دلته مصنف رحمه الله په هغې باندې تنبيه فرمائی هغه دا چه د عثمان رضی الله عنه نه چه څومره صحيح احاديث د اودس په باره کښې روايت کړې شوې دی، هغه ټول په دې خبره باندې دلالت کوی چه مسح د راس يو ځل ده لهذا د عثمان رضی الله عنه په کومو رواياتو کښې چه ددې خلاف وی هغه به غير صحيح وی.

قوله :﴿ فَإِنَّهُمْ ذَكَرُوا الْوُضُوءَ الخ ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله خپله دعوی ثابتوی، د مصنف رحمه الله دعوی دا ده چه د عثمان رضی الله عنه ټول احاديث صحيحه په مسح باندې دال دی، اوس دلته سوال پيدا کيږی چه دا څنګه؟ حال دا چه د هغوی اکثر احاديث د سر د مسح په باره کښې مطلق دی، د مرة قيد پکښې نشته جواب، دا په دې وجه چه کله راوی د باقی اندامونو سره بالتفصيل ﴿ ثلاثا ثلاثا ﴾ وائی او چه کله هغه مسح راس ته راورسيږی نو صرف ﴿ مسح راسه ﴾ وائی پس که مسح راس هم درې کرته وی نو دلته به ئې هم ثلاثا وئيلې ﴿ السکوت فی محل البيان يفيد الحصر ﴾ ددې نه معلومه شوه چه مسح راس يو ځل ده.

**خبرداري**: د عثمان رضي الله عنه يو تير شوې روايت او په يو راتلونكي روايت كښې ﴿ مسح راسه ثلاثا﴾ تصريح ده، په دې بناء باندې بعض شراح حديث ته د مصنف رحمه الله په دعوې باندې قوى اشكال دې، بيا ددې اشكال هغوى خپله جواب وركړې دې چه د مصنف رحمه الله مراد په ﴿ كلها﴾ سره ﴿ أكثرها ﴾ دې وللاكثر حكم الكل... حافظ رحمه الله يو بل جواب دا وركړې دې چه مراد د تولو احاديثو نه ددې دوه طريق نه علاوه دى، دا دواړه طريق مستثنى دى، حضرت سهارنپورى رحمه الله په بذل كښې ليكلي دى چه د مصنف رحمه الله په دعوى باندې دا اشكال به هغه وخت صحيح وو چه كله دا دواړه طريق صحيح وې حال دا چه داسې نه ده بلكه په هر طريق كښې يو راوى ضعيف موجود دې، په يو كښې عبدالرحمن بن وردان او په دويم كښې عامر بن شقيق، فلا اشكال غرض دا چه دا اشكال هغه وخت صحيح وو چه كله د مصنف رحمه الله دعوى عام وې د صحاح قيد پكښې نه وې يا دواړه روايتونه في نفسه صحيح وې

[۱۰۹]() حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللهِ يَعْنِي ابْنَ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ، أَنَّ عُثْمَانَ، دَعَا بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ، فَأَفْرَغَ بِيَدِهِ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى، ثُمَّ غَسَلَهُمَا إِلَى الْكُوعَيْنِ، قَالَ: ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ ثَلَاثًا، وَذَكَرَ الْوُضُوءَ ثَلَاثًا، قَالَ: وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ، وَقَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مِثْلَ مَا رَأَيْتُمُونِي تَوَضَّأْتُ. ثُمَّ سَاقَ نَحْوَ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ وَأَتَمَّ.

**ترجمه**: يقيناً عثمان اوبه راؤغوښتلې او اودس ئې اوكړو، نو راواړولې په ښي لاس باندې په كس لاس، بيا ئې دواړه لاسونه اووينځل د مړوندونو پورې، بيا ئې مضمضه او استنشاق اوكړو درې ځله، او ذكر ئې كړو اودس درې ځله، هغه اووئيل: مسح ئې اوكړه په خپل سر باندې، بيا ئې خپې وينځلې، او وئې وئيل: ما ليدلې دى رسول الله صلى الله عليه وسلم چه اودس ئې اوكړو په مثل دهغې چه تاسو زه وليدم او اودس مې اوكړو، بيا سوق ئې د حديث اوكړو پشان د حديث د زهري او دهغه حديث نه ئې مكمل بيان اوكړو

[۱۱۰]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ عَامِرِ بْنِ شَقِيقِ بْنِ جَمْرَةَ، عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ، "غَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا وَمَسَحَ رَأْسَهُ ثَلَاثًا، ثُمَّ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ هَذَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، قَالَ: تَوَضَّأَ ثَلَاثًا فَقَطْ.

**ترجمه**: شقيق بن سلمة وائي چه ما عثمان بن عفان اوليدلو چه وئې وينځلې خپلې څنګلې درې ځله، او مسح د سر ئې اوكړه درې ځله، بيا ئې اووئيله ما ليدلې وو رسول الله صلى الله عليه وسلم چه كړې دى دا. وائي ابوداود: روايت كړى دى وكيع د اسرائيل نه، هغه وئيلى دى: په هغې كښې صرف توضا ثلاثا دې

**تشريح**: قوله :﴿ وَمَسَحَ رَأْسَهُ ثَلَاثًا ﴾ په دې باندې كلام اوس تير شوې دې، ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ وَكِيعٌ عَنْ إِسْرَائِيلَ قَالَ تَوَضَّأَ ثَلَاثًا فَقَطْ ﴾ د مصنف رحمه الله غرض ددې لفظ مذكور يعنى ﴿ وَمَسَحَ

[1]) انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۸٤۷) (حسن صحيح)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۸۱۰) (منكر)

رَأسَهُ ثَلاثًا ﴾ تضعيف دي، او هغه داسې لفظ مذکور لره د اسرائيل نه نقل کونکې په دې سند کښې يحيى بن ادم دې، مصنف رحمه الله فرمائی چه دا حديث وکيع د اسرائيل نه د يحيى بن ادم خلاف نتقل کړو، د وکيع په روايت کښې لفظ مذکور نشته بلکه هغه روايت مجمل دې، په دې کښې صرف ﴿ توضاء ثلاثا ﴾ دې او د وکيع روايت د يحيى د روايت نه راجح دې ځکه چه وکيع د يحيى نه اقوى دې، او دويم په دې وجه هم چه د يحيى روايت د عثمان رضي الله عنه د احاديث صحيحه خلاف دې، لکه چه مصنف رحمه الله مخکښې دا خبره بيان کړې ده، زمونږ ددې تشريح نه دا هم معلومه شوه چه دا لفظ په متن کښې قط په سکون د طاء سره دې په معنى د فقط، او په تشديد د طاء سره نه دې، لکه څنګه چه په کتاب کښې ليکلې شوې دی دا د کاتب غلطي ده.

[۱۱۱](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، قَالَ: أَتَانَا عَلِيٌّ رضي الله عنه وَقَدْ صَلَّى، فَدَعَا بِطَهُورٍ، فَقُلْنَا: مَا يَصْنَعُ بِالطَّهُورِ، وَقَدْ صَلَّى؟ مَا يُرِيدُ إِلَّا لِيُعَلِّمَنَا، فَأُتِيَ بِإِنَاءٍ فِيهِ مَاءٌ وَطَسْتٍ فَأَفْرَغَ مِنَ الْإِنَاءِ عَلَى يَمِينِهِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ ثَلَاثًا، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا، فَمَضْمَضَ وَنَثَرَ مِنَ الْكَفِّ الَّذِي يَأْخُذُ فِيهِ، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى ثَلَاثًا وَغَسَلَ يَدَهُ الشِّمَالَ ثَلَاثًا، ثُمَّ جَعَلَ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ فَمَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً وَاحِدَةً، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَهُ الْيُمْنَى ثَلَاثًا وَرِجْلَهُ الشِّمَالَ ثَلَاثًا، ثُمَّ قَالَ: "مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَعْلَمَ وُضُوءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهُوَ هَذَا".

**ترجمه:** عبد خير وائي چه علي رضي الله عنه مونږ ته راغی او مونځ ئې کړی وو، نو د اودس لوښی ئې راوغوښتلو، نو مونږ اووئيل چه په لوښې څه کوي او هغه خو مونځ کړی دی، کيدې شی د هغه اراده نه وه مګر دا چه تعليم راکړې مونږ ته، نو راوړی شو ورته يو لوښې چه اوبه پکښې وې، او د زيړو يو لوښی، نو اوبه ئې راواړولې د لوښې نه په ښي لاس، نو لاسونه ئې درې ځل وينځل، بيا ئې مضمضه اوکړه او استنثار ئې اوکړو درې ځله، نو مضمضه ئې اوکړه د هغه ورغوي نه چه اوبه ئې اخستې په هغې کښې، بيا ئې مخ وينځلو درې ځله، بيا ئې وينځلو خپل ښې لاس درې ځل، او چپ لاس ئې درې ځل وينځلو، بيا ئې لاس ختته کړو په لوښې کښې نو مسح ئې اوکړه د سر يو ځل، بيا ئې ښې خپه وينځله درې ځله او چپه خپه درې ځله، بيا ئې اووئيل: د چا چه خوښه وي چه زده کړي اودس د رسول الله صلی الله علیه وسلم نو هغه دادی.

## مسانيد علی رضي الله عنه :

قوله :﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ الخ ﴾ اوسه پورې د عثمان رضي الله عنه روايات بيانيدل، اوس ددې ځائې نه د سيدنا علی رضي الله عنه د رواياتو سلسله شروع کيږی، مصنف رحمه الله د حديث عثمان په شان حديث علی هم په ډيرو طرقو سره ذکر کړې دې، دا مونږ هم په شروع کښې وئيلې دی چه په دې باب کښې مصنف رحمه الله د نهو صحابه کرامو د رواياتو تخريج کړې دې، او هغه دا دی، سيدنا عثمان، سيدنا علی، عبد الله بن زيد بن عاصم، مقدام بن معديکرب، معاويه بن ابی

(۱): سنن النسائي/الطهارة ٧٤ (٩١)، ٧٥ (٩٢)، ٧٦ (٩٣)، ٧٧ (٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٠٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ٣٧ (٤٨)، مسند احمد (١٢٢/١)، سنن الدارمي/الطهارة ٣١ (٧٢٨) (صحيح)

سفیان، ربیع بنت معوذ بن عفراء، جد طلحه، عبدالله بن عباس، ابوامامه رضی الله عنهم، چونکه د اودس اکثر مسائل سره د اختلافاتو او دلائلو تول تیر شو، په دې وجه اوس وړاندې د مصنف رحمه الله طرز عمل دا دی چه د کومو صحابه کرامو روایات اخستل دی په هغوی کښې ئې هر یو پوره ذکر نه کړو بلکه په کوم کښې چه کومه نوې خبره راغله خاص طور سره ئې هم هغه واخستله، لهذا اوس به مونږ هم په راتلونکو روایاتو کښې چه کوم خبره قابل کلام وی هم هغه به اخلو.

قوله :﴿ عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ ﴾ دا په مخضرمینو کښې دې چا چه د جاهلیت اود اسلام دواړه زمانه موندلې ده، خو اسلام ئې د رسول الله ﷺ د وفات نه پس قبول کړې دې، هم داسې انسان ته مخضرم وائی، د علی رضی الله عنه په شاګردانو کښې دې، دوی کافی عمر موندلې دې، په بذل کښې لیکلې شوې دی چه یو سړی د هغوی نه تپوس اوکړو چه ﴿ کم اتی علیک؟ ﴾ ستاسو څو کاله عمر دې؟ نو هغوی اوفرمائیل ﴿ عشرون ومائة سنة ﴾ یعنی شپږ شلې کاله، امام ترمذی رحمه الله د علی رضی الله عنه حدیث د عبد خیر او ابوحیه دواړو طریقو سره ذکر کړې دې، او امام ابوداؤد رحمه الله دا حدیث د عبد خیر، ابوحیه، زر بن حبیش، عبدالرحمن بن ابی لیلی او ابن عباس رضی الله عنهما په پنځو طرقو سره ذکر کړې دې.

قوله :﴿ وَقَدْ صَلَّى ﴾ دا مونځ د سحر مونځ وو لکه چه په وړاندې روایت کښې راځی، دا واقعه د مقام رحبه ده، کومه چه په کوفه کښې د یوې محلې نوم دې، د سیدنا علی رضی الله عنه دارالخلافه کوفه وه، د هم هغه ځائې دا واقعه ده.

**په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د تعلیم وضوء اهتمام :**

د روایت مفهوم دا دې چه عبد خیر رحمه الله فرمائی چه یو ځل سیدنا علی رضی الله عنه د سحر د مانځه نه چه فارغ شو نو مونږ ته یعنی زمونږ محلې ته ئې تشریف راوړلو او په مونږ باندې ئې د اودس دپاره اوبه راوغوښتلې، مونږ په زړه کښې سوچ اوکړو چه دوی په اوبو څه کوی مونځ خو ئې ادا کړې دې، ﴿ مَا يُرِيدُ إِلاَّ أَنْ يُعَلِّمَنَا ﴾ یعنی معلومیږی چه مقصود اودس کول نه دی بلکه د اودس د طریقې تعلیم کول دی، پس په یو لوښی کښې د اودس اوبه راوړلې شوې، او دهغې نه علاوه د اودس د غساله دپاره یو طشت راوړلې شو، بیا وړاندې د علی رضی الله عنه د اودس کولو تفصیل ذکر شوې دې.

د دې نه معلومه شوه چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په ژوند کښې د اودس د تعلیم او خلقو ته د طریقې د ښودلو یو خاص اهتمام وو، مونږ خلق دا معمولی څیز ګنړو، زمونږ د ډیرو طالبانو حال دا دې چه هغوی د فقهې غټ کتابونه تر دې چه مشکوة او دوره حدیث هر څه اولولی دهغې باوجود هغوی ته د اودس صحیح او مسنون طریقه نه ورځی، طالبانو لره د خپلو استاذانو نه د اودس طریقه زده کول پکار دی، ابوداؤد باب غسل الجنابة کښې به یو روایت راشی چه په هغې کښې دا دی چه د ابن عباس رضی الله عنهما عادت شریفه دا وو چه کله به ئې غسل جنابت کولو نو غسل یدین به ئې اووهٔ کرته کولو، د هغوی شاګرد شعبه بن دینار فرمائی چه یو ځل هغوی لاسونه وینځل زه هم ورته مخامخ ناست اوم د وینځلو تعداد ترې

نه هیر شو ، ما نه ئې تپوس اوکړو چه ما څو کرته لاسونه وینځل، ما اووئیل ﴿ لا ادری ﴾ هغوی اوفرمائیل ﴿ لا ام لک وما منعک ان تدری ﴾ یعنی هلاک شې ولې درته نه ده معلومه، د ابن عباس رضي الله عنهما مقصد دا وو چه شاګرد کوم چه د خپل استاذ په خدمت کښې اوسیږی هغه هم ددې دپاره چه د هغوی نه د مسائلو خبرې زده کړی، دین حاصل کړی، صرف خدمت خو مقصود نه دې، دې وخت کښې زه هم دا وایم چه کشرانو لره د مشرانو نه، شاګردانو لره د استاذانو نه دا ټول څیزونه زده کول پکار دی، هر کار په زده کولو سره راځی.

قوله :﴿ فَمَضْمَضَ وَنَثَرَ مِنَ الْكَفِّ الَّذِی یَأْخُذُ فِیهِ ﴾ ددې روایت نه معلومیږی چه مضمضه او استنثار ئې په یو لاس باندې اوکړل، حال دا چه مضمضه په ښی لاس سره او استنشاق په ګس لاس سره وی، جواب دا دې چه دلته د ﴿ نثر ﴾ نه مراد استنشاق دې، ددې دوه قرینې دی، یو دا چه د مضمضه نه پس استنشاق وی نه استنثار ، دویمه قرینه دا ده چه دلته ﴿ من الکف ﴾ دې او د کف نه استنشاق کیږی نه استنثار، استنثار په اطراف اصابع سره کیږی، بلکه داچه مخکښې تیرشو چه د ابن قتیبه وغیره په نزد استنثار د استنشاق په معنی کښې دې.

[۱۱۲]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَلْقَمَةَ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، قَالَ: صَلَّى عَلِيٌّ رضي الله عنه الْغَدَاةَ ثُمَّ دَخَلَ الرَّحْبَةَ فَدَعَا بِمَاءٍ فَأَتَاهُ الْغُلَامُ بِإِنَاءٍ فِيهِ مَاءٌ وَطَسْتٍ، قَالَ: فَأَخَذَ الْإِنَاءَ بِيَدِهِ الْيُمْنَى فَأَفْرَغَ عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى وَغَسَلَ كَفَّيْهِ ثَلَاثًا، ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى فِي الْإِنَاءِ فَمَضْمَضَ ثَلَاثًا وَاسْتَنْشَقَ ثَلَاثًا، ثُمَّ سَاقَ قَرِيبًا مِنْ حَدِيثِ أَبِي عَوَانَةَ، قَالَ: ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ مُقَدَّمَهُ وَمُؤَخَّرَهُ مَرَّةً، ثُمَّ سَاقَ الْحَدِيثَ نَحْوَهُ.

**ترجمه**: د عبد خیر نه روایت دې هغه وائی: چه مونځ اوکړو علي رضي الله عنه د سحر ، بیا داخل شو رحبې ته نو راوېې غوښتلې اوبه نو غلام ورته راوړو یو لوښی چه اوبه پکښې وې او یو لوښی د زیرو ، هغه وائی: نو راوایې خستې اوبه په خپل ښې لاس نو راتوی کړې په خپل چپ لاس، او دواړه ورغوي ئې اووینځل درې ځل، بیا ئې ښې لاس داخل کړو په لوښې کښې نو مضمضه ئې اوکړه درې ځله او استنشاق ئې اوکړو درې ځله، بیا ئې سوق د حدیث اوکړو نزدې حدیث د ابوعوانه ته، هغه وائی: بیا ئې مسح اوکړه مخکښې او وروسته حصه د سر یو ځل، بیا ئې سوق د حدیث اوکړو پشان د هغې.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ قوله ثُمَّ سَاقَ قَرِيبًا مِنْ حَدِيثِ أَبِي عَوَانَةَ ﴾ د ساق ضمیر د زائده طرف ته راجع دې په اصل کښې ددې حدیث بنیاد په خالد بن علقمه باندې دې، بیا د علقمه متعدد شاګردان دی، اول ابوعوانة راغلې وو، او دلته د هغوی شاګراد زائده دې مصنف رحمه الله فرمائی زائده راوی حدیث داسې بیان کړو چه څنګه ابوعوانة کړې وو.

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۰۳) (صحیح)

[۱۳]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنِي شُعْبَةُ، قَالَ: سَمِعْتُ مَالِكَ بْنَ عُرْفُطَةَ، سَمِعْتُ عَبْدَ خَيْرٍ، قَالَ: رَأَيْتُ عَلِيًّا رضي الله عنه أُتِيَ بِكُرْسِيٍّ فَقَعَدَ عَلَيْهِ، ثُمَّ أُتِيَ بِكُوزٍ مِنْ مَاءٍ فَغَسَلَ يَدَيْهِ ثَلَاثًا، ثُمَّ تَمَضْمَضَ مَعَ الِاسْتِنْشَاقِ بِمَاءٍ وَاحِدٍ، وَذَكَرَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه:** عبد خير وائي چه ما اوليدلو علي رضي الله عنه، چه راوړی شوه هغه ته يوه کرسي نو کيناستلو په هغې، بيا راوړی شوه ورته يوه کوزه د اوبو نو لاسونه ئې درې ځل اووينځل، بيا ئې مضمضه اوکړه سره د استنشاق نه په يوځل اوبو، او ذکر ئې کړو حديث.

## سند حديث کښې وهم د شعبه:

قوله: ﴿ حَدَّثَنِي شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ مَالِكَ بْنَ عُرْفُطَةَ ﴾ شعبه د خالد دريم شاګرد دې، خو د هغوی نه غلطۍ دا اوشو [۲] چه هغوی د خپل استاذ د نوم خالد بن علقمه په ځائې مالک بن عرفطه بيان کړې دې، د شعبه دا روايت په نسائی کښې هم دغه شان دې، امام نسائی رحمه الله د خپل عادت مستمره مطابق فرمائی ﴿ قال ابو عبدالرحمن هذا خطاء والصواب خالد بن علقمة ﴾، او امام ترمذی رحمه الله هم په جامع ترمذی کښې په دې باندې تنبيه فرمائيلې ده او هغوی هم ليکلې دی چه ابوعوانة کوم چه د خالد بل شاګرد دې، د هغوی نه دا لفظ په دواړو طريقو سره روايت دې ﴿عن خالد عن علقمة﴾ هم او ﴿ عن مالک بن عرفطة ﴾ هم، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ليکلې دی چه ابوعوانة به په شروع کښې د خپل استاذ نوم صحيح ذکر کړې وو، يعنی خالد بن علقمة، بيا چه کله هغوی ته چا داسې اووئيل چه شعبه خو په ځائې د مالک بن عرفطه وائی نو هغوی د شعبه په اتباع کښې مالک بن عرفطه وئيل شروع کړل، او دا ئې اووئيل ﴿ شعبة اعلم منی ﴾. د ابوداؤد په دې روايت کښې ابوعوانة د خپل استاذ نوم صحيح ذکر کړو، چه د هغې نه معلوميږی چه هغوی د خپلې رجوع نه رجوع اوکړه. [۳]

قوله: ﴿ قَالَ رَأَيْتُ عَلِيًّا – رضی الله عنه – أُتِيَ بِكُرْسِيٍّ فَقَعَدَ عَلَيْهِ ﴾ ددې حديث نه معلومه شوه چه د کرسئ رواج د صحابه کرامو رضي الله عنهم د زمانې نه وو، بلکه د مسلم شريف په روايت کښې کوم چه په کتاب الجمعه کښې دې، په دې کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په کرسئ باندې د کيناستلو تصريح ده ﴿ فاتی بکرسی، حسبت قوائمه حديدا، فقعد عليه رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ يعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم دپاره يو کرسئ راوړلې شوه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغې کيناستلو، راوی وائی

---

[۱]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۰۳) (صحيح)

[۲] دلته شيخ احمد محمد شاکر په حاشيه د ترمذی کښې يو قوی اشکال کړې دې هغه دا چه دا څنګه کيدې شی چه يو انسان ته دې د خپل استاذ نوم هم صحيح ياد نه وی دا خو سخت قسم غفلت دې، کوم چه د شعبه په شان راوی حديث او امام حديث نه مستبعد دې لهذا کيدې شی چه دا مالک بن عرفطه بل خوک راوی وی د چا نه چه شعبه روايت کوی، احقر وائی چه د هغوی دا اشکال خو په خپل ځائې صحيح دې خو ټول محدثين په وهم د شعبه باندې متفق دی، بلکه دا چه د مالک بن عرفطه په نوم يو راوی هم په کتب د اسماء الرجال کښې نه ملاويږی والله اعلم بالصواب)

[۳] قال الحافظ في التقريب في ترجمة خالد بن علقمة وكان شعبة يهم في اسمه واسم ابيه فيقول مالك بن عرفطة ورجع ابوعوانة اليه ثم رجع عنه اهـ)

زه ګمان کوم چه دهغې خپې د اوسپنې وې، او په هغې باندې هم تفریع کیدلې شي چه: کرسئ استعمال د زهد خلاف نه دې، او بیا د کرسئ ثبوت خپله په قرآن کریم کښې هم دې ﴿وسع کرسیه السموات والارض﴾ (الایة)

قوله :﴿ ثُمَّ تَمَضْمَضَ مَعَ الاِسْتِنْشَاقِ بِمَاءٍ وَاحِدٍ ﴾ په دې روایت کښې د مضمضه او استنشاق ترمینځه وصل فهم کیږي، د شوافعو په نزد خو هم دا اولی ده، د احنافو د طرف نه ددې جواب دا دې چه دا د علي ﷺ هم هغه حدیث دے کوم چه د پورته نه راروان دې، په اول طرق کښې په یو طریق کښې هم داسې نه دي راغلي، صرف د شعبه په طریق کښې داسې دي، او اوس معلومه شوه چه د شعبه نه دلته یوه بله خطاء هم شوې ده، پس ددې ثبوت هم دغه شان دې، اکثر راویانو چه څنګه نقل کړې دې هغې لره به په دې باندې ترجیح وي، لهذا دا لفظ شاذ او مرجوع شو، او که صحیح اومنلې شي نو په بیان جواز باندې محمول کیدې شي.

[۱۱۳] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا رَبِيعَةُ الْكِنَانِيُّ، عَنِ الْمِنْهَالِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ، أَنَّهُ سَمِعَ عَلِيًّا رضي الله عنه وَسُئِلَ عَنْ وُضُوءِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، وَقَالَ: وَمَسَحَ عَلَى رَأْسِهِ حَتَّى لَمَّا يَقْطُرْ وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا، ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا كَانَ وُضُوءُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه**: زر حبیش د علي ﷺ نه اوریدلي دي، چه کله پوښتنه ترینه اوشوه د اودس د رسول الله ﷺ، نو ذکریې کړو حدیث، وئې وئیل: او مسح ئې اوکړه په خپل سر چه لا اوبه ترینه اونه بهیدې، او وئې وینځلې دواړه خپې درې ځله، بیا ئې اووئیل: دارنګه وو اودس د رسول الله ﷺ.

**د لفظ حدیث "حتی لما یقطر" تشریح:**

﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ قوله وَمَسَحَ عَلَى رَأْسِهِ حَتَّى لَمَّا يَقْطُرْ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ به د خپل سر مسح (بار بار) کوله تر دې چه (نزدې وه چه اوبه اوسسیږي) خو او نه سسیدې، ددې عبارت چه موئږ کومه ترجمه اوکړه اول خو په دې وجه چه حتی د غایت دپاره راځي او غایت هلته ذکر کولې شي چرته چه امتداد وي، دویم په دې وجه چه د ﴿ لما ﴾ استعمال د داسې څیز په نفی کښې کولې شي کوم چه متوقع الحصول وي، دا مطلب خو هغه دې کوم چه د ظاهر الفاظو مطابق او متبادر الی الذهن دې.

خو چونکه د احادیث صحیحه نه توحید مسح ثابتیږي نه تثلیث، په دې وجه ددې عبارت تاویل به کولې شي چه ﴿ حتی ﴾ په معنی د ﴿ فاء ﴾ او ﴿ لما ﴾ په معنی د ﴿ لم ﴾ دې ای مسح راسه فلم یقطر او نفی د تقاطر به په دې باندې دال وي چه مسح ئې په خفیف طریقې سره اوکړه، څکه چه د اوبو هیڅ قطره نه ده سسیدلې، او که مسح د مبالغې او د تکرار سره اوکړې شي، خصوصا میاه جدیدة چه دهغې شوافع قائل دی نو په دې صورت کښې د تقاطر قوی امکان دې ﴿ افاده استاذنا مولانا محمد اسعد الله ﴾

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۹٤) (صحیح)

[۱۱۵] (¹) حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ الطُّوسِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا فِطْرٌ، عَنْ أَبِي فَرْوَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: رَأَيْتُ عَلِيًّا رضی الله عنه تَوَضَّأَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، وَغَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا، وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَاحِدَةً، ثُمَّ قَالَ: "هَكَذَا تَوَضَّأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: عبد الرحمن بن ابي ليلى وائي چه ما علي رضی الله عنه اوليدلو چه اودس ئې اوکړو نو وئې وينځلو مخ خپل درې ځله، او وئې وينځل دواړه څنګلې درې ځله، او مسح د سر ئې اوکړه يو ځل، بيا ئې اووئيل دارنګه اودس کړې وو رسول الله صلی الله علیه وسلم.

[۱۱۶] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو تَوْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ. ح وحَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي حَيَّةَ، قَالَ: رَأَيْتُ عَلِيًّا رضی الله عنه تَوَضَّأَ، فَذَكَرَ وُضُوءَهُ كُلَّهُ ثَلَاثًا ثَلَاثًا، قَالَ: ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّمَا أَحْبَبْتُ أَنْ أُرِيَكُمْ طُهُورَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: ابو حية وائي چه ما ليدلې دې علي رضی الله عنه چه اودس ئې اوکړو نو د هغه ټول او س ئې ذکرکړو درې درې ځله، هغه اووئيل: بيائې مسح دسر اوکړه، بيا ئې خپې اووينځلې ترګيټو پورې، بيا ئې اووئيل: بيشکه ما خوښوله دا چه وښايم تاسو ته اودس د رسول الله صلی الله علیه وسلم.

[۱۱۷] (³) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ بْنِ يَزِيدَ بْنِ رُكَانَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ الْخَوْلَانِيِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: دَخَلَ عَلَيَّ عَلِيٌّ يَعْنِي ابْنَ أَبِي طَالِبٍ وَقَدْ أَهْرَاقَ الْمَاءَ، فَدَعَا بِوَضُوءٍ فَأَتَيْنَاهُ بِتَوْرٍ فِيهِ مَاءٌ حَتَّى وَضَعْنَاهُ بَيْنَ يَدَيْهِ، فَقَالَ: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، أَلَا أُرِيكَ كَيْفَ كَانَ يَتَوَضَّأُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قُلْتُ: بَلَى، قَالَ: "فَأَصْغَى الْإِنَاءَ عَلَى يَدِهِ فَغَسَلَهَا، ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ الْيُمْنَى فَأَفْرَغَ بِهَا عَلَى الْأُخْرَى، ثُمَّ غَسَلَ كَفَّيْهِ، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ، ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَيْهِ فِي الْإِنَاءِ جَمِيعًا فَأَخَذَ بِهِمَا حَفْنَةً مِنْ مَاءٍ فَضَرَبَ بِهَا عَلَى وَجْهِهِ، ثُمَّ أَلْقَمَ إِبْهَامَيْهِ مَا أَقْبَلَ مِنْ أُذُنَيْهِ ثُمَّ الثَّانِيَةَ ثُمَّ الثَّالِثَةَ مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ أَخَذَ بِكَفِّهِ الْيُمْنَى قَبْضَةً مِنْ مَاءٍ فَصَبَّهَا عَلَى نَاصِيَتِهِ فَتَرَكَهَا تَسْتَنُّ عَلَى وَجْهِهِ، ثُمَّ غَسَلَ ذِرَاعَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا، ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ وَظُهُورَ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَيْهِ جَمِيعًا فَأَخَذَ حَفْنَةً مِنْ مَاءٍ فَضَرَبَ بِهَا عَلَى رِجْلِهِ وَفِيهَا النَّعْلُ فَفَتَلَهَا بِهَا، ثُمَّ الْأُخْرَى مِثْلَ ذَلِكَ، قَالَ: قُلْتُ: وَفِي النَّعْلَيْنِ؟ قَالَ: وَفِي النَّعْلَيْنِ، قَالَ: قُلْتُ: وَفِي النَّعْلَيْنِ؟ قَالَ: وَفِي النَّعْلَيْنِ، قَالَ: قُلْتُ: وَفِي النَّعْلَيْنِ؟ قَالَ: وَفِي النَّعْلَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَحَدِيثُ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ شَيْبَةَ، يُشْبِهُ حَدِيثَ عَلِيٍّ لِأَنَّهُ قَالَ فِيهِ حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ بْنِ جُرَيْجٍ: وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً وَاحِدَةً، وَقَالَ ابْنُ وَهْبٍ فِيهِ: عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ ثَلَاثًا.

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې هغه وائي چه علي رضی الله عنه ماته راغې، يعني ابن ابي طالب، او هغه اودس مات کړې وو، نو راوېې غوښتلې اوبه د اودس، نو راوړو ورته مونږ يو لوښې چه اوبه پکښې وې، مونږ د هغه په مخکښې کيخودلو، نو وئې وئيل: اې ابن عباس! ايا زه تاته اونه ښايم چه څنګه اودس کولو رسول الله صلی الله علیه وسلم؟ ما ورته اووئيل: ولې نه،

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۲۲) (صحيح)

²): سنن الترمذي/الطهارة ۳۷ (۴۸)، سنن النسائي/الطهارة ۷۹ (۹۶)، ۹۳ (۱۱۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۲۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۲۰،۱۲۵، ۱۲۷، ۱۴۲، ۱۴۸) (صحيح)

³): تفرد به أبو داود، تحفة الأشراف (۱۰۱۹۸)، وحديث ابن جريج عن شيبة أخرجه: سنن النسائي/الطهارة ۷۸ (۹۵)، تحفة الأشراف (۱۰۰۷۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۸۲) (ضعيف)

هغه وائي: لوښي ئي راکوړ کړو په خپل لاس نو هغه ئې اووينځلو، بيا ئې ننويستلو ښي لاس خپل (په لوښي کښي) نو وائي روليي په هغې په بل لاس، بيا ئې ورغوي وينځل، بيا ئې مضمضه اوکړه او استنثار ئې اوکړو، بيا ئې داخل کړل دواړه لاسونه په لوښي کښي، راوايي خستلې په دواړو يوه لپه د اوبو نو مخ ته ئې واچولې، بيا ئې ننويستلې غټې ګوتې مخامخ د دواړو غوږونو ته، بيا دويم ځل بيا دريم ځل په شان د هغې، بيا ئې راواخستې په خپل ښي ورغوي کښي يو موټي اوبه نو واړولې په تندي نو پرې ئې خودلې چه رواني وي د هغه په مخ، بيا ئې دواړه لاسونه وينځل ترځنګلو پورې درې درې ځله، بيا ئې مسح اوکړه د سر او د ظاهر د غوږونو، بيا ئې دواړه لاسونه دننه کړل نو راوايي خستې يو چونګ اوبه نو وائي چولې په خپه باندې، او په هغې کښې پيزار وو نو دا خپه ئې تاو راتاو کړه په دې اوبو، بيا بله دهغې پشان، هغه وائي: چه ما اووئيله: په پيزار کښي؟ هغه اووئيل: په پيزار کښي. هغه وائي: چه ما اووئيله: په پيزار کښي؟ هغه اووئيل: په پيزار کښي. هغه وائي: چه ما اووئيل: په پيزار کښي؟ هغه اووئيل: په پيزار کښي وئيلی دي ابوداود: حديث د ابن جريج د شيبه نه مشابه دی حديث د علي سره، ځکه چه په هغې کښي حجاج بن محمد بن جريج وئيلی دی: مسح ئې اوکړه په سر باندې يو ځل، او وئيلی دي ابن وهب په هغې کښي د ابن جريج نه، او مسح ئې اوکړه په سر خپل باندې درې ځله.

**مضمون حديث او په هغې کښې بعض اشکال او جواب :**

﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ الخ قوله وَقَدْ أَهْرَاقَ الْمَاءَ ﴾ يعنی ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه يو ځل علي رضي الله عنه ماته تشريف راوړلو او هم په دې وخت کښي د متيازو نه فارغ شوي وو، او د راتلو نه پس ئې اوبه طلب کړې، پس مونږ په يو لوښي کښي هغوی ته اوبه راوړې، سيدنا علي رضي الله عنه سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما ته اوفرمائيل چه زه تاته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اودس په شان اودس اونکړم، هغوی عرض اوکړو ضرور.

دلته دوه اشکالات دی، يو خو دا چه په دې حديث کښي په متيازو د اوبو اطلاق کړې شوې دې، حال دا چه د طبرانی په يو روايت کښي دی، ﴿ لا يقول احدکم اهرقت الماء ولکن يقول ابول ﴾ يعنی يو سړې دې د متيازو دپاره ﴿ اهرقت الماء ﴾ لفظ نه استعمالوی بلکه صفا دې وائی ﴿ ابول ﴾ ددې اشکال جواب دا دې چه حديث الباب صحيح دې او د طبرانی پورته ذکر شوې حديث ضعيف دې، بلکه شارحينو خو دا ليکلي دی چه دا کنايه ده د بول نه، پس ددې نه دا خبره معلومه شوه چه متيازو وغيره لره په طريقه د کنايه ذکر کول اولی دی، ﴿ قلت وهذا کما يقال ما خرج من السبيلين ﴾.

دويم اشکال دلته دا دې چه د علي رضي الله عنه ابن عباس رضي الله عنهما ته دا فرمائيل چه آيا زه تاته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اودس په شان اودس او نه ښائم، او بيا د ابن عباس رضي الله عنهما دا فرمائيل چه او ضرور اوښايئ، آيا ابن عباس رضي الله عنهما به براه راست رسول الله صلى الله عليه وسلم په اودس کولو باندې نه وی ليدلي، ښکاره ده چه ډير کرته به ئې ليدلي وی، او صرف اودس څه چه هغوی يو ځل تو له شپه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره تيره کړې ده او د هغوی د عبادت معمولات ئې تو له شپه اوکتل،

جواب دا دې چه د علي رضي الله عنه مراد دا وو چه زه تاته د رسول الله ﷺ اودس په داسې طريقه او نه ښائم چه په نوې طريقه وي او تا به چرته نه وي ليدلې، په دې باندې هغوی اوفرمائيل چه بالکل اوښايئ، پس وړاندې چه علي رضي الله عنه د اودس کومه طريقه بيان کړه هغه ډيره نااشنا وه، په هغې کښې ډيرې خبرې د مشهورو رواياتو خلاف دی.

قوله :﴿ فَضَرَبَ بِهَا عَلَى وَجْهِهِ ﴾ يعني سيدنا علي رضي الله عنه په دواړو لاسونو کښې اوبه واخستلې او مخ باندې ئې راګزار کړې، چه هغې ته لپه راګزارل وائي، په دې کښې د اشکال خبره دا ده چه په اودس کښې مخ ته په زور سره اوبه راويشتل څه ته چه لطم وائي د ادب خلاف دی لکه چه فقهاء کرامو ليکلې دی، پس ددې جواب څه دې؟ او حد خو دا دې چه د ابن حبان په شان محدث په دې حديث باندې هم ددې لفظ د وجې نه ترجمه قايم کړې ده ﴿ باب استحباب صک الوجه بالماء ﴾ اوس مونږ بيان کړه چه په دې حديث کښې به ډير څيزونه داسې راځي چه هغه نوې دی دا هم دهغې نه ده، اوس ددې دوه جوابونه کيدې شی يا خو دې دا اووئيلې شی چه ضرب الماء کناية ده د صب الماء نه، او د ضرب متبادر معنی مراد نه ده، يا دې داسې اووئيلې شي چه دا لفظ شاذ دې، د معروف او مشهور رواياتو خلاف دې لهذا قابل عمل نه دې يا بيا آخری جواب دا هم کيدې شی چه رسول الله ﷺ د بيان جواز دپاره کله کله داسې هم کړې وی، صرف د ادب خلاف ده حرام نه ده.

**په مسح د اذنين کښې د اسحق بن راهويه مستدل او په هغې باندې کلام**

﴿ قوله ثُمَّ أَلْقَمَ إِبْهَامَيْهِ مَا أَقْبَلَ مِنْ أُذُنَيْهِ ﴾ يو بله نوې خبره دا راغله چه علي رضي الله عنه د غسل وجه سره خپلې دواړه (کټې يا غټې) ګوتې د غوږونو لقمه کړه يعني څنګه چه لقمه په غوږونو کښې داخلولې شی هم دغه شان ئې ابهامين په اذنين کښې داخل کړل، ددې مطلب دا شو چه علي رضي الله عنه د ما اقبل من الاذنين مسح په غسل وجه سره اوفرمائيله، لکه چه د اسحق بن راهويه مذهب دې د جمهورو د طرف نه به ددې جواب هم دا وی چه رسول الله ﷺ کله کله د بيان جواز دپاره داسې کړی دی، ګينې مسنون طريقه هم هغه ده کومه چه په روايات کثيره شهيره کښې راځي.

علامه شوکاني رحمه الله ليکلې دی چه دا حديث د مسح اذنين په باره کښې د حسن بن صالح او د شعبی د مسلک دليل دې، د هغوی مسلک دا دې چه د ما اقبل من الاذنين وظيفه غسل ده دا به د مخ سره وينځلې شی، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ددې ترديد کړې دې چه صرف لوندې ګوتې په غوږونو کښې داخلولو سره غسل اذنين نه ثابتيږی، بلکه مسح ثابتيږی لهذا دا حديث د اسحق بن راهويه دليل نه شو د شعبی او حسن بن صالح دپاره، د مسح اذنين اختلافات نزدې تير شو.

قوله :﴿ ثُمَّ أَخَذَ بِكَفِّهِ الْيُمْنَى قَبْضَةً مِنْ مَاءٍ فَصَبَّهَا عَلَى نَاصِيَتِهِ ﴾ دا په دې حديث کښې يو دريمه نوې خبره ده چه سيدنا علي رضي الله عنه درې کرته د غسل وجه فرمائيلو نه پس څلورم ځل په لپه کښې اوبه واخستلې او هغه ئې په تندی باندې راپريخودلې کومې چه د هغوی په مخ مبارک باندې راروانې شوې، اشکال ښکاره دې چه دا په تثليث غسل باندې زيادت دې چه

دهغې څوک هم قائل نه دی.

**د امام بخاري رحمه الله په دې حديث باندې کلام او په دې باندې د حضرت اشکال:**

د دې او د راتلونکو د ټولو اشکالاتو يو مشترک جواب دا دې چه امام بخاري رحمه الله ددې حديث تضعيف کړې دې، پس منذري وائی ﴿ وفيه مقال ﴾ امام ترمذي رحمه الله د امام بخاري رحمه الله نه ددې حديث په باره کښې سوال اوکړو نو په دې باندې هغوی ددې حديث تضعيف اوکړو. [۱]

دويم جواب ددې اشکال دا کيدې شی چه رسول الله ﷺ په خپل تندی مبارک باندې کومې اوبه واچولې نو دا د تکميل اودس دپاره نه وو بلکه دا تبريدا وو، يعنی صرف مخ نه د يخ والی دپاره، او امام نووی رحمه الله ددې جواب دا کړې دې چه کيدې شی چه د تندی پورته حصه درې کرته وينځلو سره پوره نه وی لونده شوې په دې وجه دهغې د تکميل دپاره ئې داسې اوکړل، او بعضو وئيلې دی چه دا په څلورم ځل رسول الله ﷺ په مقدم راس باندې اوبه اچولې وې دا اصل دې، د فقهاء کرامو ددې قول چه سړی له پکار دی چه د مخ د وينځلو په وخت د مقدم راس هم څه حصه اووينځی د استيعاب وجه په قصد سره.

**د حديث نه په مسح رجلين باندې استدلال او د هغې جوابات:**

قوله :﴿ فَضَرَبَ بِهَا عَلَى رِجْلِهِ وَفِيهَا النَّعْلُ ﴾ يعنی علی رضی الله عنه بغير د پيزار د ويستلو نه خپې داسې اووينځلې چه يو لپه اوبه ئې په خپو باندې واچولې او بيا ئې خپې په لاس باندې وينځلې، بيا ئې يو لپه اوبو باندې واچوله او بيا ئې خپه په لاس باندې اومږله، بيا ئې يو لپه اوبه په بله خپله باندې واچولې او هم دغه شان ئې اوکړل، دلته يو اشکال دا دې چه هره يوه خپه صرف په يوه لپه باندې وينځی سره ددې چه خپې په پيزار کښې دننه دی، د پيزار نه بهر نه دی نو په دې صورت کښې د غسل قدمين تحقق څنګه کيدې شی سره ددې چه د اوبو مقدار هم قليل دې، هم په دې وجه بعضو ددې نه په مسح د قدمينو باندې استدلال کړې دې، ددې اشکال ډير جوابونه ورکړې شوې دی، يو جواب اوس نزدې تير شو چه دا حديث ضعيف دې، دويم جواب دا دې چه د غسل رجلين په باره کښې د ابن عباس رضی الله عنهما او علی رضی الله عنه روايات مختلف دی، د بعضو نه غسل ثابتيږی او د بعض نه مسح، او حال دا دې چه دا د روايات صحيحه کثيره کوم کښې چه غسل رجلين ثابت دی، لهذا ددې روايت نه استدلال صحيح نه دې، بعض د نسخ جواب ورکړې دې چه احاديث غسل راتلو سره

---

[۱] حضرت په بذل کښې ددې حديث په تضعيف باندې اشکال کړې دې چه کله ددې حديث د سند ټول راويان ثقات دی، نو بيا ضعيف ولې دې، حضرت په بذل کښې د تضعيف والا جواب نه دې اختيار فرمائيلې بلکه د تاويل اړخ ئې اختيار کړې دې، خو احقر عرض کوی چه اهل اصولو ددې خبرې تصريح کړې ده چه ثقاهت راوة صحت حديث لره مستلزم نه دې، د صحت حديث دپاره نور هم شرطونه دی چه دهغې د مفقود کيدو باوجود د رجالو د ثقه کيدو حديث ضعيف کيدې شی، په دې حديث کښې ډيرې خبرې خلاف معهود او شاذ دی، په دې بناء باندې به دې ته ضعيف وئيل صحيح وی هسې هم حضرت امام بخاري رحمه الله ناقدين فن کښې دی.

احاديث مسح منسوخ کړل، بعض جواب کړي دي چه بيشکه ددې حديث نه مسح ثابت ده خو مسح په قدمين باندې نه وه بلکه په جوربين باندې وه، اگر که دلته جوربين نه دي ذکر شوي خو ددي نفي هم پکښې نشته.

قوله :﴿ قَالَ قُلْتُ وَفِي النَّعْلَيْنِ الخ ﴾ په دې کښې د شارحينو اختلاف راغي چه دا سوال او جواب د کومو دوه کسانو په باره کښې دې، په دې کښې دوه احتمالات دی يو دا چه دا سوال د ابن عباس رضي الله عنهما او د هغوی د شاگرد عبيدالله خولاني ترمينځه دې عبيدالله د خپل استاذ ابن عباس رضي الله عنهما نه په طور د تعجب تپوس کوی چه آيا هغوی سره د نعلينو غسل قدمين اوکړو، هغوی اوفرمائيل او، هم دغه شان ئې اوکړل، او هم دا سوال او جواب بار بار کيدو، غالبا منشاء د تعجب ده چه ددې نه د مسح رجلين شبه کيږی دويم احتمال دا دې چه دا سوال او جواب د سيدنا علي رضي الله عنه او د ابن عباس رضي الله عنهما ترمينځه دې، خو په دې صورت کښې به اشکال دا وی چه يو حديث باب في الوضوء مرتين کښې راروان دې چه دهغې راوی خپله ابن عباس رضي الله عنهما دې او په دې کښې غسل قدمين في النعلين موجود دې نو بيا چه کوم مضمون هغه خپله روايت کوی په هغې باندې تعجب ولې کولې شی، ددې اشکال نه د بچ کيدو دوه صورتونه دی يو دا چه احتمال اول دې اختيار کړې شی او يا دې دا اووئيلې شی چه ابن عباس رضي الله عنهما ته دې وخت کښې ددې مضمون روايت نه ذهول شوې وو.

## قول ابوداؤد تشريح :

قوله :﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَحَدِيثُ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ شَيْبَةَ الخ ﴾ زما په نزد دا قال ابوداؤد خصوصيت لری، مشکل او مغلق دې، توضيح ته محتاج دې، ددې حاصل دا دې [1] چه مصنف رحمه الله تر اوسه پورې د چه د علي رضي الله عنه نه چه څومره روايات ذکر کړی دی په هغې کښې يو طريق کښې ﴿ مسح راسه ثلاثا ﴾ مذکور نه دې، اوس ددې ځائې نه مصنف رحمه الله دا فرمائي چه د حديث علي رضي الله عنه يو طريق بل دې کوم چه تر اوسه پورې په کتاب کښې نه دې راغلې يعنی طريق ابن جريج دا دلته تعليقا ذکر فرمائي او دې فرمائي چه د ابن جريج چه کوم طريق دې هغه مختلف فيه دی، د ابن جريج بعض شاگردانو د هغوی نه ﴿ مسح براسه مرة ﴾ ذکر کړې دې، او دا شاگرد حجاج بن محمد دې، او د هغوی بعض شاگردانو د هغوی نه مسح براسه ثلاثا

[1] مصنف رحمه الله د علي رضي الله عنه د حديث مختلف طرق او اسانيد سره په ما قبل کښې ذکر فرمائيلي دي، خو په دې کښې د ابن جريج په طريق سره هيڅ روايت نه دې راغلې، نسائي او بيهقي ددې تخريج کړې دې، مصنف رحمه الله تعليقا دا روايت دلته ذکر کړې دې خو په طرق ابن جريج کښې د هغوی د شاگردانو اختلاف دې هغه دا چه حجاج بن محمد ددې نه مسح راس مرة ذکر کړې دې، او ابن وهب د هغوی نه مسح راس ثلاثا ذکر کړې دې، مصنف رحمه الله فرمائي چونکه اوسه پورې څومره احاديث چه د علي رضي الله عنه بيان شو په هغې کښې مسح د سر يو خل ده، په دې وجه د حجاج روايت ته به ترجيح ورکولې شی، د ابن وهب په روايت باندې، لهذا حديث علي کښې صحيح او راجح مسح راس مرة شو نه ثلاثا. لکه څنگه چه په حديث د عثمان کښې هم داسې دی چه صحيح مسح راس هم مرة دی، کما تقدم التصريح بذلك عن المصنف رحمه الله، ددې حاشيه نه مقصود صرف مزيد توضيح مقام دې)

ذکر کړي ده او دا شاګرد د هغوی ابن وهب دي، اوس مصنف رحمه الله دلته دا وائی چه د ابن جریج په دې دوه طریقو کښې چه د حجاج بن محمد چه کوم طریق دې چه په هغې کښې ﴿مسح براسه مرة ﴾ مذکور دې دا د علی رضی الله عنه د تیرو روایاتو مطابق دې، ځکه چه تر اوسه پورې چه د علی رضی الله عنه خومره روایات راغلی دی په هغې کښې هم توحید مسح ذکر شوې ده، لهذا د حجاج بن محمد روایت به راجح وی د ابن وهب د روایت نه.

ځان پوهه کړه چه د حجاج بن محمد په طریق کښې د ابن جریج استاذ نور دی او د ابن وهب په طریق کښې د ابن جریج استاذ بل دې د حجاج بن محمد سند داسې دې ﴿عن حجاج بن محمد عن ابن جریج عن شیبة عن ابی جعفر عن ابیه عن جده عن علی ﴾ او د ابن وهب په شان ﴿عن ابن وهب عن ابن جریج عن محمد بن علی بن حسین عن ابیه عن جده عن علی ﴾ د حجاج د روایت امام نسائی رحمه الله تخریج کړې دې او د ابن وهب د روایت بیهقی کړې دې لکه چه حضرت په بذل کښې لیکلی دی، او د ابوداؤد د سیدنا علی رضی الله عنه تیر شوې روایاتونه په توحید مسح کښې حدیث د ابن جریج عن شیبة مشابه دی او دا حدیث ابن جریج عن محمد بن علی مخالف دی ځکه چه حدیث ابن جریج عن محمد بن علی کښې تثلیث مسح مذکور دې.

زمونږ ددې تقریر نه معلومه شوه چه د مصنف رحمه الله په دې کلام کښې حدیث ابن جریج عن شیبة چه دهغې راوی حجاج بن محمد دې هغه مشبه دې، او تیر روایاتونه د علی مشبه به او وجه د تشبیه توحید مسح دې، او دا وجه شبه حدیث ابن جریج عن محمد علی کښې کوم چه مصنف رحمه الله ذکر کړې دې، نه موندلې کیږی په دې وجه هغه مرجوح دې.

[۱۱۸] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ وَهُوَ جَدُّ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ: هَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تُرِيَنِي كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ؟ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ زَيْدٍ: نَعَمْ، "فَدَعَا بِوَضُوءٍ، فَأَفْرَغَ عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، ثُمَّ غَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ، ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ بِيَدَيْهِ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ، بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلَى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتَّى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي بَدَأَ مِنْهُ، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ".

**ترجمه:** عمرو بن یحیی المازني د خپل پلار نه روایت کوي، هغه اووئیله عبد الله بن زید بن عاصم ته او هغه نیکه عمرو بن یحیی المازني دی: ایا ته کولی شي چه وښای مونږ ته څرنګه وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چه اودس ئي کولو؟ نو اووئیل عبد الله بن زید: هو، نو راویې غوښتلې اوبه د اودس نو توی کړې په دواړو لاسونو نو وئې وینځل، بیا ئې مضمضه او استنثار اوکړل، بیائې مخ درې ځله وینځلو، بیا ئې لاسونه وینځل دوه دوه ځل ترڅنګلو پورې، بیا ئې مسح اوکړه د سر په خپلو لاسونو، مخکښې او وروسته ئې بوتله شروع ئې اوکړه د مخکښې حصې د سر نه دواړه ئې بوتلل تر څټ پورې، بیا ئې دواړه واپس کړل

(۱): صحیح البخاري/الوضوء ۳۸ (۱۸۵)، ۳۹ (۱۸۶)، ٤۱ (۱۹۱)، ٤۲ (۱۹۲)، ٤٥ (۱۹۷)، صحیح مسلم/الطهارة ۷ (۲۳۵)، سنن الترمذي/الطهارة ۲۲ (۲۸)، ۲٤ (۳۲)، ۳٦ (٤۷)، سنن النسائي/الطهارة ۸۰ (۹۷)، ۸۱ (۹۸)، ۸۲ (۹۹)، (تحفة الأشراف: ۵۳۰۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ۱ (۱)، مسند احمد (۳۸/٤، ۳۹، سنن الدارمي/الطهارة ۲۸ (۷۲۱) (صحیح)

ترديٍ چه هغه خائې ته ئې واپس کړل د کوم نه چه ئې شروع کړې وه، بيا ئې خپې وينځلې

## ۳ : مسانيد عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه :

قوله :﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ ﴾ ددې خائې نه د عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه د مسانيدو شروع کيږي.

## عبدالله بن زيد نه د سوال کونکي سړي د تعين په باره کښې اختلافات روايات :

قوله :﴿ أَنَّهُ قَالَ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ – وَهُوَ جَدُّ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِي ﴾ يعنى عمرو بن يحيى روايت کوى د خپل پلار يحيى نه چه يحيى د عبدالله بن زيد نه سوال کړې دې، سوال وړاندې دا ذکر دې ﴿ هل تستطيع ان تريني الخ ﴾ آيا تاسو ماته د رسول الله ﷺ د اودس طريقه ښودلې شئ.

د ابوداؤد ددې روايت نه معلوميږى چه د عبدالله بن زيد نه د اودس طريقه معلومولو والا يحيي دې په دې سلسله کښې روايات مختلف دى په دې حديث کښې يو مشهور بحث خو دا دې چه سائل څوک دې؟ او دويم بحث دا دې چه ﴿ وهو جد عمرو بن يحيى ﴾ کښې ضمير کوم طرف ته راجع دې او د عمر بن يحيى نيکهٔ چاته وئيلې کيدې شى؟

اول جواب دا دې چه د ابوداؤد ددې روايت نه معلوميږى چه سائل يحيى دې، اود مؤطا د امام محمد رحمه الله د روايت نه معلوميږى چه دا سائل د يحيى نيکهٔ يعنى ابوالحسن دې، او د بخارى د روايت نه معلوميږى چه سائل د يحيى تره عمرو بن ابى الحسن دې، بلکه دا چه د بخارى په يو روايت کښې دى ﴿ ان رجلا قال لعبدالله ﴾ دې يعنى سائل رجل مبهم دې ددې تعين نشته، په دې باندې د پوهيدلو دپاره د عمرو بن يحيى سلسله نسب معلوميدل ضرورى دى او هغه داسې ده :




حافظ ابن حجر رحمه الله چونکه د بخارى شارح دې، په دې وجه هغوى ددې مختلفو روايتونو ترمينځه جمع کولو سره د بخارى روايت ته اصل وئيلې دې، هغوى فرمائى چه ددې روايات مختلفه توجيه دا کيدې شى چه يو مجلس چه په هغې کښې ابوالحسن او عمرو بن ابى الحسن او يحيى درې واړه موجود وو، په دې مجلس کښې عمر د عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه نه تپوس اوکړو، لهذا د عمرو د طرف نه د سوال نسبت خو حقيقى دې، او د ابوالحسن طرف ته په دې حيثيت سره دې چه هغوى په مجلس کښې مشر وو، او د يحيى طرف ته نسبت په دې وجه کړې شوې دې چه هغوى د سوال په وخت په مجلس کښې موجود وو.

**د ابوداؤد په روايت کښې يو وهم او دهغې تحقيق او تصحيح :**

د دويم بحث تحقيق دا دې چه د ابوداؤد ددې روايت نه معلوميږی چه ﴿ هو ﴾ ضمير د عبدالله بن زيد طرف ته راجع دې چه دهغې مطلب دا شو چه عبدالله بن زيد بن عاصم د عمرو بن يحيی نيکه دې حال دا چه دا د حقيقت بالکل خلاف ده د هغوی نيکه خو عماره دې لکه څنګه چه په نقشه کښې ذکر شوې دې، دا هم معلوميدل پکار دی چه د موطاء امام مالک رحمه الله د روايت الفاظ بعينه دغه شان دی لهذا دا اشکال به هلته هم وی، تحقيق په دې مسئله کښې دا دې چه اصل کښې په دې روايت کښې د يو راوی نه وهم واقع شوې دې، (۱) د اصل روايت الفاظ هغه دی کوم چه په بخاری شريف کښې دی ﴿ ان رجلا قال لعبدالله بن زيد وهو جد عمرو بن يحيی ﴾ په دې روايت سره اشکال ختميږی، هغه داسې چه دلته په دې روايت کښې د عبدالله بن زيد صحابی د چا سره رشته نه شی بيان کيدلې بلکه په سند کښې چه کوم رجل مبهم ذکر کړې شوې دې يعنی سائل د هغه تعين مقصود دې چه هغه رجل سائل د عمرو بن يحيی نيکۀ دې، او د سائل تحقيق زمونږ په نزد دلته د حافظ د کلام نه مخکښې تير شوې دې چه هغه عمرو بن ابی الحسن دې، او عمرو بن ابی الحسن د عمرو بن يحيی اګرچه نيکه نه دې خو د نيکۀ رور خو ئې دې لکه چه د نقشې نه ښکاره کيږی، فالحمد لله د بخاری ددې روايت نه صحيح صورت حال معلوم شو، د سند پورته ذکر کړې شوې تحقيق حضرت په بذل کښې هم دغه شان ليکلې دې او هم دغه شان په الفيض السمائی کښې هم ذکر کړې شوې دې.

قوله :﴿ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ ﴾ يعنی په دواړو لاسونو سره ئې د سر مسح اوکړه، او د مسح په وخت ئې د لاسونو ادبار او اقبال اوکړو، د اقبال معنی ده توجه الی القبل يعنی د شانه مخې طرف ته لاس راوړل، او د ادبار معنی ده توجه الی الدبر يعنی د وړاندې نه شا طرف ته راوستل، او ﴿ بهما ﴾ کښې باء د تعديه دپاره ده لهذا ترجمه به دا وی چه دواړه لاسونه ئې مخې طرف ته راوستل او دواړه لاسونه ئې يوړل شاته طرف ته، په وړاندې جمله کښې هم د داسې إقبال او إدبار ترتيب موجود دې.

**په کيفيت مسح راس کښې دليل جمهور :**

قوله :﴿ بداء بمقدم راسه ﴾ يعنی د مسح راس شروع ئې د سر د وړاندې حصې نه اوکړه، د سر په وړاندې حصه باندې ئې دواړه لاسونه کيخودلو سره هغه شاته طرف ته يوړل. دا خو ادبار شو ﴿ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتَّى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِی بَدَأَ مِنْهُ ﴾ دا اقبال شو، په دې حديث کښې ددې

---

(۱) د شراح موطاء دا خيال دې چه دا وهم خپله د امام مالک رحمه الله نه شوې دې، امام مالک رحمه الله ددې سند راوی دې هغوی چه کله هم دا روايت نقل کړې دې هم دغه شان ئې نقل کړې دې، پس د ابوداؤد ددې روايت په سند کښې هم امام مالک رحمه الله دې او بعض اکابر محدثين علماء رجال کښې په دې روايت باندې اعتماد کولو سره په غلطئ کښې اخته شو، پس هغوی د هو ضمير عبدالله بن زيد رضی الله عنه ته راجع کړو او دا ئې اووئيل چه عبدالله بن زيد د عمرو بن يحيی نيکه دې حال دا چه فی الواقع نه ئې د پلار پلار دې او نه د مور پلار)

خبرې تصریح ده چه د مسح راس ابتداء به د مقدم راس نه وی لکه چه د جمهورو مسلک دې، بله دا چه د تفسیر راوی نه معلومه شوه چه لفظ ﴿ اقبل بهما ﴾ اګرچه په ذکر کښې مقدم دې، خو په وجود کښې هغه موخر دې، او ادبر اګرچه لفظا موخر دې خو وجودا مقدم دې، او په دې کښې من حیث العربیة هیڅ اشکال نشته، ځکه چه واؤ د ترتیب دپاره نه راځی، او دلته اقبال او ادبار په واؤ سره ذکر کړې شوی دې، مونږ په شروع کښې بیان کړې وو چه په مسح د سر کښې څلور بحثونه دی او په هغې کښې یو بحث د کیفیت مسح وو.

امام ترمذی رحمه الله د مسح راس د کیفیت په سلسله کښې دوه ابواب قائم کړی دی یو باب د مسلک جمهور یعنی بدایة بمقدم الراس ئې بیان اوفرمائیلو، او په دویم باب کښې ئې مستقلا بدایة بموخر الراس بیان کړو، او په دې دویم باب کښې هغوی ربیع بنت معوذ بنت عفراء رضی الله عنهما والا روایت ذکر فرمائیلې دې کوم چه وړاندې په ابوداؤد کښې راروان دې چه دهغې الفاظ دادی ﴿ مسح براسه مرتین یبداء بموخر راسه ﴾ دا حدیث د ربیع د وکیع بن الجراح رحمه الله د مسلک دلیل دې، او د جمهورو دلیل د عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه دا حدیث دې، امام ترمذی رحمه الله فرمائی حدیث عبدالله بن زید بن عاصم اصح، لهذا حدیث د ربیع کوم چه د جمهورو خلاف دې هغه مرجوح او ضعیف دې، په ظاهر کښې هغه روایت په غلط فهمئ باندې بناء دې، د روایت اصل الفاظ ﴿ فاقبل بهما وادبر ﴾ وو، اقبال چونکه اول ذکر شوې دې او ادبار روستو په دې وجه یو راوی به دا ګڼړلې وی چه څنګه اقبال لفظا مقدم دې کیدې شی چه وجودا به هم مقدم وی، ددې غلط فهمئ د وجې نه دا روایت دغه شان نقل کړو، ﴿ یبداء بموخر راسه ﴾ که دا روایت صحیح اومنلې شی نو داسې به وئیلې شی چه ممکنه ده رسول الله صلی الله علیه وسلم څه وخت د مسح ابتداء په موخر الراس سره فرمائیلې وی د بیان جواز دپاره.

بله دا چه په دې حدیث د ربیع کښې یو څیز بل قابل اشکال دې یعنی مسح براسه مرتین دا هم په ظاهر کښې هم هغه غلط فهمی ده چه راوی اقبال او ادبار دواړه مستقل شمیر کولو سره مرتین اووئیل، حال دا چه په اقبال او ادبار سره مقصود تکرار نه دې بلکه استیعاب راس مقصود دې لهذا په دې حدیث کښې دوه وهمونه پیدا شو.

[۱۱۹] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ يَفْعَلُ ذَلِكَ ثَلَاثًا، ثُمَّ ذَكَرَ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ترجمه: عبدالله بن زید بن عاصم روایت کړې دہی ددې حدیث، هغه وائی نو مضمضه ئې اوکړه او استنشاق ئې اوکړو د یو ورغوې نه، کول به ئې دا درې ځل، بیا ئې ذکر کړو پشان دهغې.

**تشریح:** قوله ﴿ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ ﴾ په دې کښې دوه احتمالات دی، یا خو دا

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۳۰۸) (صحیح)

چه په دې سره مقصود تخصيص د کف دې، يعنى په کوم لاس سره ئې چه مضمضه کړې وه هم په هغې سره ئې استنشاق اوکړو يعنى کف يمنى په خلاف د استنثار چه هغه په گس لاس سره وى، دويم احتمال دا دې چه وحدت ماء لره بيانول دى چه په يو لپه کښې ئې اوبه واخستلې او هم په هغې باندې ئې مضمضه او استنشاق دواړه اوکړل يعنى وصل بين المضمضة والاستنشاق ئې اوکړو، او دا زمونږ په نزد هم جائز دى اگر که خلاف اولى دى، په دې باندې تفصيلى کلام د باب د اول حديث د لاندې تير شوې دى.

[۳۰]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، أَنَّ حَبَّانَ بْنَ وَاسِعٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللهِ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ الْمَازِنِيَّ يَذْكُرُ: "أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ وُضُوءَهُ، وَقَالَ: وَمَسَحَ رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ، وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ حَتَّى أَنْقَاهُمَا".

**ترجمه**: عبد الله بن زيد بن عاصم المازني ذکر کوى، چه بيشکه ده ليدلى دى رسول الله ﷺ نو د هغه اودس ئې بيان کړو، وئې وئيل چه رسول الله ﷺ مسح اوکړه په سر په اوبو چه د لاس نه نه وې پاتې شوې (يعنى تازه اوبو سره) او خپې ئې وينځلې تردې چه پاکې ئې کړې.

## د مسح راس دپاره د تجديد ماء بحث:

قوله :﴿ وَمَسَحَ رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ ﴾ يعنى مسح د سر ئې په ماء جديد سره اوکړه، په لاس باندې بچ شوې لوندوالى سره نه، د مسح راس دپاره تجديد ماء ضرورى دې يا نه؟ د باب په حديث اول کښې اختلاف تير شو د شوافعو او حنابله په نزد تجديد ماء ضرورى دې، د احنافو په نزد ضرورى نه دې صرف سنت دې روايات حديثيه دواړه قسمه دى، بعض نه تجديد ماء ثابت دې او د بعض نه نۀ، د احنافو مسلک سره خو په دې کښې يو هم خلاف نه دې زمونږ په نزد خو دواړه جائز دى، خو په دې کښې يو قسم روايات يعنى په کوم کښې چه تجديد ماء نشته هغه د شوافعو خلاف دې، امام نووى رحمه الله فرمائى چه دهغې حاصل دا دې چه ددې تجديد ماء والا روايت نه په دې خبره باندې استدلال کول صحيح نه دى چه په باقى لوندوالى باندې مسح د سر جائز نه ده، ځکه چه په دې حديث سره د مسح سر دپاره د تجديد ماء صرف ثبوت ملاويږى او ددې ضرورى او شرط کيدل نه معلوميږى نفس فعل په لزوم باندې دلالت نه کوى، د امام نووى رحمه الله دا خبره د قاعدې او انصاف ده د هغوى د وينا مطلب دا دې چه د تجديد ماء والا روايات د احنافو خلاف نه دى.

خان پوهه کړه چه دحديث الباب يعنى دعبد الله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه د حديث راوى حبان بن واسع دې او بيا د هغوى نه روايت کونکې يو خو عمرو بن الحارث دې لکه څنگه چه دلته په کتاب کښې دى، او دويم ابن لهيعه دې امام ترمذى رحمه الله دواړه طرق ذکر کړې دى، او ددې دواړو د روايتونو الفاظ مختلف دى د عمرو بن الحارث د روايت الفاظ خو ستاسو مخې ته دى يعنى ﴿ بماء غير فضل يديه ﴾ او د ابن لهيعه د روايت الفاظ داسې دى ﴿ بماء غبر فضل يديه ﴾ غبر په معنى د بقى دماضى صيغه ده، او ﴿ فضل يديه ﴾ د ﴿ ما غبر ﴾ نه بدل واقع

(): صحيح مسلم/الطهارة ۷(۲۳۶)، سنن الترمذي/الطهارة ۲۷ (۳۵) مختصراً (تحفة الأشراف: ۵۳۰۷) (صحيح)

شوي دي ددې روايت مطلب دا دې چه رسول اللهﷺ د سر مسح د باقي پاتې کيدونکې ترئ نه اوکړه، صرف د يوې نقطې په فرق سره مضمون برعکس شو، اوس د احنافو دپاره خو په دې کښې د اشکال هيڅ خبره نشته ځکه چه زمونږ په نزد دواړو طريقو سره جائز ده خو دا د ابن لهيعه والا روايت د شوافعو خلاف دې، امام ترمذي رحمه الله ددې جواب دا اوکړو چه د عمرو بن الحارث روايت اصح دې او ابن لهيعه ضعيف دې، خو ځان پوهه کړه چه د ابن لهيعه د روايت هم معنی يو بل حديث په ابوداؤد کښې وړاندې راروان دې يعنی حديث ربيع بنت معوذ رضي الله عنها چه دهغې الفاظ دا دی ﴿مسح براسه من فضل ماء كان في يده﴾ کوم چه د احنافو صريح دليل دې، او په کوم روايت کښې چه تجديد د ماء ذکر دې اول خو هغه زمونږ خلاف نه دې مونږ په خپله د سنيت تجديد ماء قائل يو، او بعض احنافو ددې په باره کښې فرمائيلې دی چه د تجديد والا روايت په هغه صورت باندې محمول دې چه کله په لاس باندې تروالې باقی نه وی پاتې شوې،اوددې بالمقابل د شوافعو د طرف نه امام بيهقی رحمه الله د فضل ماء والا روايت توجيه دا کړې ده چه رسول اللهﷺ د سر د مسح دپاره په لاس کښې اوبه واخستلې، او بيا ئې هغه پريخودلې، د پريخودلو نه پس چه کوم لوندوالې په لاسونو باقي پاتې شو په هغې باندې ئې د سر مسح اوفرمائيله، سبحان الله ډير مناسب جواب دې.

### غسل رجلين کښې د تثليث قيد شته که نه؟

قوله :﴿وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ حَتَّى أَنْقَاهُمَا﴾ اوسه پورې په رواياتو کښې د غسل رجلين په باره کښې د ثلاثا لفظ راتلو، او دلته ددې په ځائې د ﴿حتى انقاهما﴾ لفظ راغلې دې، يعنی دواړه خپې ئې وينځلې تردې چه هغه ئې بالکل صفا کړې، ددې نه په ظاهر کښې معلوميږی چه په غسل رجلين کښې د تثليث قيد نشته، بلکه هلته مقصود انقاء ده هر څومره خله کښې چه حاصله شی، پس د مالکيانو په نزد يو قول هم دا دې، او ددې لفظ نه په ظاهر کښې د هغوی تائيد کيږی خو چونکه په اکثر رواياتو کښې ثلاثا راغلې دې په دې وجه جمهورو هم دا اختيار فرمائيلې دې، دويم قول د مالکيانو په نزد هم د جمهورو په شان دې

[۱۲۱]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا حَرِيزٌ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَيْسَرَةَ الْحَضْرَمِيُّ، سَمِعْتُ الْمِقْدَامَ بْنَ مَعْدِي كَرِبَ الْكِنْدِيَّ، قَالَ: "أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَضُوءٍ فَتَوَضَّأَ، فَغَسَلَ كَفَّيْهِ ثَلَاثًا، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ ثَلَاثًا، وَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، ثُمَّ غَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا، ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ ظَاهِرِهِمَا وَبَاطِنِهِمَا".

**ترجمه**: مقدام بن معديکرب الکندي وايې چه راوړی شوې رسول اللهﷺ ته اوبه د اودس نو اودس ئې اوکړو نو وئې وينځل دواړه ورغوې درې ځل، بيا ئې مضمضه او استنشاق اوکړو درې ځل، او مخ ئې وينځلو درې ځله، بيا ئې وينځل دواړه متې درې درې ځل، بيا ئې مسح اوکړه په سر باندې او په دواړو غوږونو ظاهر د دواړو او باطن د دواړو.

(): تفرد به أبو داود: (تحفة الأشراف: ۱۱۵۷۳)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۲ (٤٤٢) (صحيح)

## مسانید د مقدام بن معدیکرب :

قوله :﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ ﴾ اوس ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د مقدام بن معدیکرب مسانید بیانوی کوم چه ددې باب د روایاتو په اعتبار سره څلورم صحابی دې.

قوله :﴿ قوله ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ ﴾ په دې حدیث کښې مضمضه او استنشاق د غسل وجه او یدین نه پس راغلې دې کوم چه د ترتیب مسنون خلاف دې خو دلته د ابوداؤد نسخې مختلف دی، په بعض نسخو کښې داحدیث د ترتیب مسنون مطابق دې (کما فی نسخة مکتبة الشاملة) لکه څنګه چه حضرت په بذل کښې لیکلې دی، بهر حال که مونږ د خپلې نسخې د ترتیب اعتبار اوکړو نو دا به اووئیلې شی چه دا روایت شاذ دې او د روایات صحیحه شهیره خلاف دې، لهذا هغه روایات به راجح او دا به مرجوح وی او عمل په راجح باندې وی نه په مرجوح باندې، یا به هغه په بیان جواز باندې محمول کولې شی کیدې شی چه رسول الله ﷺ کله کله د بیان جواز دپاره د ترتیب مسنون خلاف کړې وی، په دې وجه چه په اعضاء وضوء کښې ترتیب د احنافو او مالکیانو په نزد واجب نه دې، خو د شوافعو او حنابله په نزد واجب دې، هغه حضرات دا د مذهب د خلاف کیدو په وجه باندې په جواز باندې نه شی محمول کولې، د هغوی په نزد ددې حدیث مرجوح او شاذ کیدل متعین دی.

## ترتیب فی الوضوء کښې مذاهب ائمة او د هغوی دلائل :

شوافع او حنابله د وجوب ترتیب په باره کښې فرمائی چه رسول الله ﷺ همیشه اودس هم په هغه ترتیب سره کړې دې کوم چه په احادیثو کښې مذکور دې کله ئې هم دهغې خلاف نه دې کړې، که چرته دا ترتیب واجب نه وې نو کله خو به ئې د بیان جواز دپاره ترک کړې وې، لکه څنګه چه تثلیث صرف سنت دې، رسول الله ﷺ د بیان جواز دپاره تثلیث کله کله پریخودلې دې.

بله دا چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې ﴿ ابداء بما بداء الله به ﴾ اګرچه دا حدیث د کتاب الحج دې خو حکم خو به عام وی، لهذا کوم ترتیب چه په قرآن کریم کښې مذکور دې هم دهغې اختیارول به ضروری وی.

بله دا چه په آیت وضوء کښې د اعضاء مغسوله په مینځ کښې عضوء ممسوح ذکر کړې شوې دې، داسې ئې اونکړل چه اعضاء مغسوله ئې ټول یو طرف ته ذکر کړې وی او عضو ممسوح بیل، نو د متجانسین ترمینځه خلاف جنس لره ذکر کول دا یو خاص نکتې او فائدې لره متقاضی دی، ګینې بغیر د فائدې او نکتې نه عرب خلق د متجانسین ترمینځه تفریق نه کوی ﴿ تفریق المتناجسین لا یرتکبه العرب الا لفائدة..... او نکته دلته وجوب طرف ته اشاره کول دی.

زمونږ د طرف نه ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا صحیح ده چه رسول الله ﷺ اودس همیشه مرتبًا فرمائیلې دې، د ترتیب خلاف ئې کله هم نه دې کړې، خو مجرد فعل په وجوب باندې دلالت نه کوی، او دا احادیث په کومو کښې چه د اعضاء وضوء ترمینځه چه کوم لفظ ثم مذکور دې (کوم چه په ترتیب باندې دال دې) هغه د راوی لفظ دې د رسول الله ﷺ په کلام کښې نشته، چه ددې نه په ترتیب باندې استدلال اوکړې شی، پس زیات نه

زيات دومره وئيلي شو چه رسول الله ﷺ اودس مرتبا فرمائيلي دي او مجرد فعل وجوب لره مقتضي نه دی، اول خو دا وئيل صحيح نه دی چه رسول الله ﷺ هميشه په يو ترتيب سره اودس کړې دې، دا زير بحث حديث ددې دپاره شاهد عدل دې

بله دا چه په آيت کريمه کښې اعضاء وضوء اګرچه په يو خاص ترتيب سره ذکر کړې دی، خو هلته په تعبير کښې حرف واؤ دې په اعضاء وضوء کښې د يو په بل باندې عطف کړې شوې دې هغه د واؤ په ذريعه سره دې چه د مطلق جمع دپاره راځي، خو فاء د آيت وضوء په شروع کښې راوړلې شوې ده ﴿ اذا قمتم الى الصلوة فاغسلوا الاية ﴾ چه دهغې تعلق مجموع وضوء سره دې، يعنی دا چه د وضوء تحقق اراده قيام الى الصلوة نه پس کيدل پکار دی نو په دې فاء سره قيام الى الصلوة او د اودس ترمينځه ترتيب مستفاد کيږی، په خپل مينځ کښې د اودس د اعضاء د ترتيب سره ددې هيڅ تعلق نشته.

پاتې شوه خبره د تفريق المتجانسين نو دا ضروری نه ده چه ددې نکته دې هم هغه وی کومه چه تاسو بيانوئ بلکه ددې نکته زمونږ په نزد هغه ده کومه چه علامه زمخشری ذکر کړې ده هغه دا چه مسح راس لره په غسل رجلين باندې مقدم کولو کښې اشاره او تنبيه ده ددې خبرې طرف ته چه په غسل رجلين کښې دې اوبه کمې استعمال کړې شی، ځکه چه د عامو خلقو عادت دې چه هغوی په خپو باندې زياتې اوبه بهيوی، څومره چه په لوښی کښې بچ کيږی، ټولې بغير د ضرورت نه په خپو پاندې اوبهيوی، لهذا په آيت کريمه کښې د غسل رجلين د ذکر کولو نه مخکښې مسح د سر ذکر کړې شوه ګويا د تقليل ماء طرف ته اشاره اوکړې شوه، په مسح کښې ظاهره دا چه اوبه ډيرې کمې خرچ کيږی، الحمد لله ددې ځائې پورې د باب په درې څلورو احاديثو کښې تقريبا ټول مسائل وضوء اختلافی وغير اختلافي راغلل، يو مسئلې دوه نورې زمونږ په ذهن کښې داسې راځی چه دهغې مونږ دلته ذکر مناسب ګڼړو.

۱: نيت د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد په طهارت صغری او کبری دواړو کښې ضروری او شرط دې او د احنافو په نذز صرف سنت يا مستحب دې د احنافو دليل په دې سلسله کښې د ﴿ مفتاح الصلوة الطهور ﴾ د لاندې تير شو.

۲: ﴿ موالاة فی الوضوء : اوس راياد شو چه په دې سلسله کښې خو په کتاب کښې مستقل باب راروان دې چه دهغې عنوان دې باب فی تفريق الوضوء،، لهذا په دې باندې کلام به هم هلته اوکړې شی.

## دلک فی الوضوء کښې د مسلک مالکيه تحقيق:

۳: دلک : د مالکيانو په نزد په اودس او غسل دواړو کښې دلک يعنی امرار اليد علی الاعضاء واجب دې علامه دسوتی مالکی رحمه الله د الشرح الکبير په حاشيه کښې ليکی چه د غسل تحقق بغير د دلک يعنی امرار اليد نه کيدې نه شی، د هغوی د کلام نه معلوميږی چه دوه څيزونه بيل بيل دی اوبه بهيول او غسل، بغير د امرار اليد نه غسل نه شی وئيلې کيدې بلکه هغه افاضة الماء دې او مامور به په اودس کښې غسل دې نه افاضة الماء، پس که د

هغوی په نزد چا په نهر یا حوض کښې اولامبل او دلک ئې اونکړو نو طهارت به ورته نه حاصلیږی، په خلاف د ائمه ثلاثه چه د هغوی په نزد به حاصل شی.

ابن عبدالبر رحمه الله په کتاب الکافی کښې هم دا قول د امام مالک رحمه الله مشهور مذهب لیکلې دې، او بل قول هغوی د امام مالک رحمه الله دا لیکلې دې چه که یو سړې په اوبو کښې اولامبی او تر ډیر وخته پورې په هغې کښې ولاړ وی نو دا به هم کافی شی اگرچه امرار الید علی الجسد بیا نه موندلې شی.

## د ائمة اربعه په نزد د فرائض وضوء تعداد:

صاوی په حاشیة د جلالین کښې د آیت وضوء د لاندې لیکلې دی چه فرائض د اودس د احنافو په نزد صرف څلور دی کوم چه په آیت وضوء کښې ذکر شوې دی یعنی غسل اعضاء ثلاثه او مسح راس، او د شوافعو په نزد فرائض د اودس شپږ دی، څلور خو هم هغه فرائض قرآنیه (یعنی کوم چه آیت وضوء کښې ذکر شوې دی) او دوه دهغې نه علاوه نیت او ترتیب، او د مالکیانو په نزد د اودس فرائض اووهٔ دی، څلور قرآنی، نیت، مولاة او دلک (صاوی) زه وائم چه د حنابله په نزد هم اووهٔ فرض دی د مالکیانو په شان، فرق دا دې چه د مالکیانو په نزد اووم څیز دلک دې، د حنابله په نزد ددې په ځائې ترتیب دې. (کما فی زاد المستقنع للحنابلة)

[۱۲۲] (۱) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، وَيَعْقُوبُ بْنُ كَعْبٍ الْأَنْطَاكِيُّ، لَفْظُهُ قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ حَرِيزِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ، فَلَمَّا بَلَغَ مَسْحَ رَأْسِهِ وَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى مُقَدَّمِ رَأْسِهِ فَأَمَرَّهُمَا حَتَّى بَلَغَ الْقَفَا ثُمَّ رَدَّهُمَا إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي بَدَأَ مِنْهُ"، قَالَ مَحْمُودٌ: قَالَ: أَخْبَرَنِي حَرِيزٌ.

**ترجمه**: مقدام بن معدیکرب وایې: ما رسول الله ﷺ ولیده چه اودس ئې اوکړو، هر کله چه د سر مسح کولو ته اورسیدو نو کېښودل ئې دواړه ورغوي په مخکښې حصه د سر، نو دواړه ئې راکش کړل پرې تردې چه څټ ته ورسیدو، بیا ئې واپس کړل هغې ځائې ته د کوم ځائې نه چه ئې شروع کړې وه، وئیلی دې محمود: هغه ویل: خبر راکړې دی ماته حریز.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ قوله فَلَمَّا بَلَغَ مَسْحَ رَأْسِهِ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ چه کله په اودس کولو کښې د سر مسح کولو ته اورسیدلو نو مسح ئې داسې اوکړه کومه چه وړاندې ذکر شوې ده، دلته لفظ مسح مصدر دې فعل ماضی نه دې او منصوب دې بناء بر مفعولیت، په دې جمله کښې د بنده په نزد دوه احتمالات دی، اول دا چه دا د صحابی راوی حدیث الفاظ دی، په دې صورت کښې به دا اصل روایت وی بغیر د اختصار نه، کوم چه مصنف رحمه الله پوره پوره ذکر کړو، دویم احتمال دا دې چه ددې جملې قائل مصنف رحمه الله دې یعنی مصنف رحمه الله فرمائی چه مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه چه کله روایت بیانولو سره مسح راس ته اورسیدلو نو داسې ئې ذکر کړو ﴿ وضع کفیه علی مقدم راسه ﴾ ددې مطلب مقتضی دا ده چه مصنف رحمه الله د روایت په ذکر کولو کښې اختصار کړې دې، او د حدیث د شروع حصه ئې

(۱) سنن ابن ماجه الطهارة ۵۲ (۴۴۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۷۲) (صحیح)

ترک کړه ځکه چه په دې کښې هيڅ نوې خبره نشته، او مصنف رحمه الله په دې رواياتو کښې صرف هم دا زيادات بيانول غواړي کوم چه د شروع په روايات مفصله کښې نشته، باقي احتمال اول راجح دې د مراجعت الى الكتب نه هم دا معلوميږي.

قوله: ﴿ وَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى مُقَدَّمِ رَأْسِهِ فَأَمَرَّهُمَا حَتَّى بَلَغَ الْقَفَا ﴾ هم دغه شان لفظ وړاندې تلو سره د جد طلحه په روايت کښې هم راروان دې، چه دهغې الفاظ داسې دی ﴿ يمسح راسه مرة واحدة حتى بلغ القذال وهو اول القفاء ﴾

## مسح رقبة کښې اختلاف ائمة :

په دې لفظ سره بعض علماء کرامو په مسح الرقبة باندې استدلال کړې دې کوم چه مختلف فيه مسئله ده، پس ابن قدامة په مغنى کښې هم ددې حديث نه استدلال کولو سره مسح رقبه لره مستحب ليکلې دې کوم چه د امام احمد رحمه الله روايت دې او د احنافو په کتابونو کښې مسح رقبة لره په مستحباتو او اداب وضوء کښې شمار کړې دې، او د امام شافعی رحمه الله قول قديم هم دا دې خو امام نووی رحمه الله ليکلې دی چه مسح رقبه بدعت دې لم يثبت عن الشافعی، نورو علماء کرامو د امام نووی رحمه الله تعاقب کولو سره وئيلې دی چه د هغوی دا خبره صحيح نه ده، ځکه چه بغوی او رويانی کوم چه د ائمه شافعيه نه دې، هغوی ددې د استحباب قائل دی، البته ﴿ مسح الرقبة امان من الغل يوم القيامة ﴾ حديث ضعيف دې او امام نووی رحمه الله دې ته موضوعی وئيلې دې، په دې مسئله باندې د مولانا عبدالحی رحمه الله لکهنوی يو مستقل رسالة تحفة الطلبة فى مسح الرقبة په نوم باندې ده، خو د مسح الحلقوم څوک هم قائل نه دې حافظ ابن القيم رحمه الله فرمائی لکه څنګه چه په منهل کښې دی د رسول الله ﷺ نه په مسح د عنق کښې قطعا څه حديث نه دې ثابت.

[۱۳۳](۱) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، وَهِشَامُ بْنُ خَالِدٍ الْمَعْنَى، قَالاَ: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، بِهَذَا الإِسْنَادِ، قَالَ: وَمَسَحَ بِأُذُنَيْهِ ظَاهِرِهِمَا وَبَاطِنِهِمَا، زَادَ هِشَامٌ: وَأَدْخَلَ أَصَابِعَهُ فِي صِمَاخِ أُذُنَيْهِ.

**ترجمه**: بيان کړی دی وليد په دې سند سره، هغه وائی: مسح ئې کړل دواړه غوږونه ظاهر او باطن د دواړو. زيادت کړی دی هشام: داخل ئې کړې ګوتې خپلې په سورو د غوږونو کښې.

**تشريح**: قوله: ﴿ حدثنا محمود بن خالد ﴾ دا د مقدام بن معديكرب د حديث يو بل طريق دې، دا مصنف رحمه الله په دې وجه راوړې دې چه په دې کښې يو نوې څيز دا دې ﴿ وَأَدْخَلَ أَصَابِعَهُ فِي صِمَاخِ أُذُنَيْهِ ﴾ اصابع لفظ اګرچه جمع ده خو ددې نه مافوق الواحد مراد دې، پس د ربيع بنت معوذ په روايت کښې وړاندې راروان دی ﴿ فادخل اصابعه فى جحرى اذنيه ﴾ او د اصبعين نه مراد سباحتين دی لکه چه باب الوضوء ثلاثا ثلاثا کښې راځی، حاصل دا چه د ظاهر اذنين مسح په ابهامين سره او د باطن اذنين مسح په سباحتين سره کيدل پکار دی.

دلته يو څيز بل دې کوم چه فهقاء کرام بيل ذکر کوی هغه دا چه يو خو باطن اذنين دې،

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۷۲) (صحيح)

دويم صماخ اذنين، د شروح حديث نه خو په دې دواړو كښې هيڅ فرق نشته، پس د ربيع رضي الله عنها په روايت كښې د ﴿ فادخل اصبعيه في جحرى اذنيه ﴾ شرح حضرت په بذل كښې د اصبعين تفسير سباحتين او د جحرين تفسير صماخين سره فرمائيلې ده. او د بعض فقهاء كرامو د كلام نه معلوميږي چه د باطن اذنين مسح سباحتين سره، او صماخ اذنين كښې دې خنصر داخل كړې شي.

[۱۲۳]() حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَزْهَرِ الْمُغِيرَةُ بْنُ فَرْوَةَ، وَيَزِيدُ بْنُ أَبِي مَالِكٍ، "أَنَّ مُعَاوِيَةَ تَوَضَّأَ لِلنَّاسِ كَمَا رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ، فَلَمَّا بَلَغَ رَأْسَهُ، غَرَفَ غَرْفَةً مِنْ مَاءٍ فَتَلَقَّاهَا بِشِمَالِهِ حَتَّى وَضَعَهَا عَلَى وَسَطِ رَأْسِهِ حَتَّى قَطَرَ الْمَاءُ أَوْ كَادَ يَقْطُرُ، ثُمَّ مَسَحَ مِنْ مُقَدَّمِهِ إِلَى مُؤَخَّرِهِ وَمِنْ مُؤَخَّرِهِ إِلَى مُقَدَّمِهِ".

**ترجمه**: يقيناً معاويه اودس اوكړو خلقو ته لكه څرنګه ئې چه رسول الله ﷺ ليدلى وو اودس ئې كولو، هركله چه سر ته ورسيدو نو يوه لپه ئې واخسته د اوبو، نو ملګرى كړو ورسره چپ لاس، تردې چه كېخودلې په مينځ د سر، تردې چه اوبه اوبهېدې، او يا نزدې وې چه اوبهيږي، بيا ئې مسح اوكړه د مخې نه وروسته ته، او د وروسته نه مخې ته.

## ۵: مسانيد معاوية :

﴿ حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الخ قوله فَلَمَّا بَلَغَ رَأْسَهُ غَرَفَ غَرْفَةً ﴾ دا ددې باب د پنځم صحابى سيدنا معاويه رضي الله عنه حديث دې، يعنى معاويه رضي الله عنه چه به كله اودس كولو سره د سر مسح كولو ته اورسيدلو نو هغوى داسې اوكړل چه په ښى لاس كښې ئې يو لپه اوبه واخستلې او بيا ئې هغه اوبه په ښى لاس كښې واخستلې او بيا ئې هغه اوبه د سر په مينځ باندې واچولې، تر دې چه يو څاڅكې دوه څاڅكې اوبه ترې نه سسيدلو ته نزدې شو، بيا ئې په دې اوبو سره د خپل سر بالاستيعاب مسح اوكړه، ظاهره دا ده چه دا په دې حديث كښې يو نوې خبره راغله، په لپه كښې اوب اخستل د غسل دپاره وى نه د مسح دپاره.

## د حديث تشريح او مسئله اجزاء الغسل عن المسح باندې كلام :

حضرت سهارنپورى رحمه الله په بذل كښې ليكى چه په دې سلسله كښې شارحينو هيڅ نه دى ليكلى خو د حضرت ګنګوهى په تقرير كښې دا خبره ملاويږي چه غالبا رسول الله ﷺ كله كله داسې په دې وجه كړى دى چه معلومه شى چه غسل د مسح قائم مقام كيدې شى كه په ځائې د مسح غسل اوكړې شى نو هغه جائز دې او ددې عكس يعنى مسح د غسل قائم مقام نه شى كيدې، پس فقهاء كرامو هم ليكلې دى چه كه د چا په سر باندې د باران اوبه پريوځى نو د سر د مسح دپاره كافى دى كه روستو په سر باندې لاس راكاږى او كه نه، حضرت شيخ رحمه الله په حاشيه د بذل كښې د ابن قدامه حنبلى رحمه الله نه نقل كړې دى چه د حنابله په نزد په دې مسئله يعنى اجزاء الغسل عن المسح كښې دواړه روايتونه دى جواز او عدم جواز خو د

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٤٤٢) (صحيح)

عدم جواز روایت په دې صورت کښې دې چه کله امرار الید او نه موندلې شی، او که امرار الید اوموندلې شو نو بیا غسل کافی دې او ابن رسلان د امام الحرمین نه د شوافعو مسلک دا نقل کړې دې چه د هغوی په نزد د مسح په ځائې غسل معتبر دې ﴿ لان الغسل فوق المسح ﴾ خو د هغوی په نزد د کراهت او عدم کراهت دواړه روایتونه دی خو اصح عدم کراهت دې.

**یو نااشنا تحقیق:**

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه په دې حدیث کښې دی ﴿ فَتَلَقَّاهَا بِشِمَالِهِ ﴾ یعنی په ښی لاس کښې ئې چه کومې اوبه اخستې وې هغه ئې بیا په ګس لاس کښې واخستلې ددې په باره کښې په بذل کښې هیڅ نه دی لیکلې شوې، خو د حضرت ګنګوهی رحمه الله په تقریر کښې دی ﴿لئلا یذهب الماء ﴾ د حضرت ددې توجیه حاصل دا دې چه اوبو لره په ګس لاس باندې اولټه کول مراد نه دی بلکه مطلب دا دې چه په ښی لاس کښې اوبه اخستلو سره هغه په سر باندې اچولو دپاره ئې ګس لاس هم شامل کړو چه اوبه ضائع نه شی، دا هر څه چه لیکلې شوې دی دا د شارحینو رائې ده زما په فهم کښې دا راځی چه دلته د غسل راس تحقق نشته لکه چه دا ټول حضرات فرمائی ځکه د رسول الله ﷺ عادت شریفه د اتخاذ شعر وو هغوی ذوجمه وو. بله دا چه رسول الله ﷺ به په خپل سر مبارک کښې تیل هم په کثرت سره استعمالول، نو اوس ښکاره ده چه د غوړو ویښتو په یو لپه اوبو سره څنګه غسل کیدې شی، بلکه زما په نزد یوه لپه اوبه هم پوره نه وې ځکه چه د ښی لاس نه ئې چه کله اوبه ګس لاس ته منتقل کړې نو ظاهره ده چه په دې انتقال کښې به هغه اوبه د یو لپې په مقدار هم نه وی پاتې شوې بلکه کیدې شی چه دا تقلیب الماء د تقلیل الماء دپاره وی، ځکه چه د سر وینځل خو مقصود نه وو په دې وجه د اوبو د کمولو دپاره اوبه د ښی لاس نه ګس لاس ته منتقل کړې شوې. هذا ما عندی.

[۱۳۵] (1) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، بِهَذَا الإِسْنَادِ، قَالَ: فَتَوَضَّأَ ثَلاَثًا ثَلاَثًا، وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ بِغَيْرِ عَدَدٍ.

**ترجمه:** ولید وائی: اودس ئې اوکړو درې درې ځله او وئې وینځلې دواړه خپې په غیر د عدد نه.

**تشریح:** قوله: ﴿ وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ بِغَيْرِ عَدَدٍ ﴾ دلته جار مجرور یعنی ﴿ بغیر عدد ﴾ د غسل سره متعلق نه دې ګینې بیا خو به مطلب دا وی چه خپې ئې وینځلې بیشماره ځله، حال دا چه دا خبره مراد نه ده، بلکه دا جار مجرور د قال سره متعلق دې یعنی راوی ﴿ غسل رجلیه ﴾ مطلقا وئیلې دی بغیر د ذکر د عدد نه، د غسل رجلین نه پس ئې عدد ذکر نه کړو، په خلاف د نورو اندامونو چه په دې کښې ئې ثلاثا ثلاثا اووې، نو دا مطلب شو ددې جملې، باقی په دې مسئله کښې اختلاف مخکښې ذکر شوې دې چه د مالکیه په نزد یو روایت غسل رجلین کښې د تثلیث قید نشته، دا د هغوی دلیل کیدې شی

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۴۳) (صحيح)

[۱۳۶] () حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِينَا، فَحَدَّثَتْنَا أَنَّهُ قَالَ: اسْكُبِي لِي وَضُوءًا، فَذَكَرَتْ وُضُوءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ فِيهِ: "فَغَسَلَ كَفَّيْهِ ثَلَاثًا، وَوَضَّأَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، وَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مَرَّةً، وَوَضَّأَ يَدَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا، وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّتَيْنِ بِمُؤَخَّرِ رَأْسِهِ ثُمَّ بِمُقَدَّمِهِ وَبِأُذُنَيْهِ كِلْتَيْهِمَا ظُهُورِهِمَا وَبُطُونِهِمَا، وَوَضَّأَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا مَعْنَى حَدِيثِ مُسَدَّدٍ.

**ترجمه**: د ربیع نه روایت دې هغه وائی: وو رسول الله ﷺ چه مونږ ته به راتلو، نو بیان اوکړو تا مونږ ته بیشکه هغه به ویل: واچوه زما لپاره اوبه د اودس، نو ذکر ئې کړو اودس د رسول الله ﷺ وئې وئیل په هغې کښې چه: اوئې وینځل دواړه لاسونه درې ځل، او وئې وینځه مخ درې ځل، او مضمضه او استنشاق ئې اوکړو یو ځل، او لاسونه ئې وینځل درې درې ځل، او مسح ئې اوکړه په سر باندې دوه ځل په وروستنی حصه د سر، بیا په مخکنی حصه د سر بیا ئې مسح اوکړه د دواړو غوږونو په ظاهر او باطن باندې، او وئې وینځلې خپې درې درې ځله. وئیلی دي ابوداود: او دا معنی د حدیث د مسدد ده.

**مسانید رُبَيِّع بِنْت مُعَوِّذ ابْنِ عَفْرَاء** رضی الله عنهم :

﴿ حدثنا مسدد الخ قوله — عَن رُبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د ربیع بنت معوذ بن عفراء رضی الله عنها روایات بیانوی.

**د ربیع رضی الله عنها د نیا عفراء بعض حالات** :

ځان پوهه کړه چه د ربیع رضی الله عنها والد ماجد معوذ رضی الله عنه هم صحابی دې او عفراء رضی الله عنها د معوذ د مور نوم دې دا نسبت الی الام دې دا هم صحابیه ده او د معوذ د پلار نوم حارث بن رفاعه دې، معوذ رضی الله عنه مشهور صحابی دې په قاتلین ابوجهل کښې د دوی شمار کیږی، په جنګ بدر کښې شهید شو د هغوی بل رور د چا نوم چه معاذ رضی الله عنه دې هغوی هم په قتل ابوجهل کښې د خپل رور سره شریک وو، دا عفراء رضی الله عنها ډیره مبارکه زنانه ده، په بذل کښې لیکلې شوې دی چه دا اول د حارث بن رفاعه په نکاح کښې وه، د حارث نه دهغې درې ځامن پیدا شو، معاذ، معوذ او عوف، بیا د حارث نه پس هغې د بکیر بن یالیل سره واده اوکړو نو څلور هلکان ئې د هغه نه پیدا شو، ایاس، عاقل، خالد، عامر ټول اووه ځامن شو. لیکلې ئې دی چه دا اووه واړه په جنګ بدر کښې شریک شوې دی، دا خصوصیت بل یو صحابی یا صحابیه ته هم نه دې حاصل شوې. د معوذ او عفراء رضی الله عنهما متعلق دا ټولې خبرې او حالات ضمنا راغلل، په دې حدیث کښې ددې دواړو هیڅ دخل نشته، دې حدیث لره روایت کونکې خو ربیع صحابیه رضی الله عنها ده.

زما والد صاحب رحمه الله به فرمائیل چه یو ځل حضرت جی مولانا محمد الیاس رحمه الله زما نوم عاقل اوریدلو سره فرمائیلې وو چه عاقل څه وی، عقیل کیدل پکار دی، په ظاهر د

(): سنن الترمذي/الطهارة ۳۳ (٤۳) (بقوله في الباب)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۳۹ (۳۹۰)، ۵۲ (٤٤۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۳٦۰) (حسن)

حضرت منشاء دا وه چه عقیل خو د صحابي نوم دې کوم چه د سیدنا علی رضی الله عنه رور وو، نو د صحابي په نوم باندې نوم کیخودل پکار دی، کیدې شی چه د حضرت په ذهن کښې نه وه چه عاقل هم د یو صحابي نوم دې، عاقل بن بکیر بن یالیل رضی الله عنه او که نسبت الی الام اوکړې شی نو عاقل بن عفراء رضی الله عنهما.

د ربیع رضی الله عنها په حدیث کښې دوه خبرې خلاف معهود دی، پس د مضمضه او استنشاق ذکر د غسل وجه نه پس دې ﴿مسح براسه مرتین﴾ بله دا چه د سر مسح د شاته طرف نه ذکر شوې ده، په دې باندې مونږ کلام د عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه په روایت کښې کړې دې دلته دهغې د اعادې ضرورت نشته.

[۱۲۷](۱) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ عَقِيلٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، يُغَيِّرُ بَعْضَ مَعَانِي بِشْرٍ، قَالَ فِيهِ وَتَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا.

**ترجمه:** ابن عقیل دا حدیث روایت کړی دی، چه تغیر ئې ورکړی دی بعضي معانیو دحدیث د بشر ته، په هغې کښې دی چه: مضمضه ئې اوکړه او استنثار ئې اوکړو درې خله.

**تشریح:** قوله: ﴿حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الخ - يُغَيِّرُ بَعْضَ مَعَانِي بِشْرٍ﴾ د ﴿يغير﴾ ضمیر د سفیان طرف ته راجع دې، یعنی سفیان د حدیث په مضمون کښې لږ شان تغیر پیدا کړو، بعینه هم هغه مضمون ئې ذکر نه کړو کوم چه بشر ذکر کړې وو، حدیث د ربیع رضی الله عنها مصنف رحمه الله په متعدد طرق سره ذکر کړې دې او د ټولو مدار په عبدالله بن محمد بن عقیل باندې دې، پس په اول سند کښې د هغوی شاګرد بشر بن المفضل وو، او په دې دویم سند کښې سفیان دې، او وړاندې په دریم سند کښې ئې شاګرد ابن عجلان راځی، د مصنف رحمه الله غرض د ابن عقیل د شاګردانو په روایاتو کښې چه کوم فرق دې هغه بیانول دی.

[۱۲۸](۲) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ عِنْدَهَا، فَمَسَحَ الرَّأْسَ كُلَّهُ مِنْ قَرْنِ الشَّعْرِ كُلِّ نَاحِيَةٍ لِمُنْصَبِّ الشَّعْرِ لَا يُحَرِّكُ الشَّعْرَ عَنْ هَيْئَتِهِ".

**ترجمه:** د ربیع نه روایت دې، بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس اوکړو دهغې سره نو مسح ئې کړو سر ټول، د بره سر نه د هر طرف نه، د لاندې د سر پورې، چه نه به ئې خوزول ویخته د خپل هیئت نه.

**تشریح:** قوله: ﴿حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الخ - قوله فَمَسَحَ الرَّأْسَ كُلَّهُ مِنْ قَرْنِ الشَّعْرِ﴾ دا په حدیث د ربیع کښې د ابن عجلان طریق دې په دې کښې د مسح راس یو نوې شکل ذکر شوې دې، د سیدنا عثمان رضی الله عنه د حدیث د لاندې د مسح راس مباحث اربعه په ضمن کښې مونږ ددې حدیث حواله ورکړې ده.

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۳۷) (شاذ)
(۲): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۱۵۸۴۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۹/۶، ۳۶۰) (حسن)

## د الفاظ متن شرح او د هغې حل :

دلته نسخې مختلف دی، زمونږ په نسخه کښې دی ﴿ من قرن الشعر ﴾ او په يو نسخه کښې دی ﴿ من فرق الشعر ﴾ او په يو کښې دی ﴿ من فوق الشعر ﴾ په دې کښې زياته صحيح د قرن او فرق نسخه معلوميږی، او مطلب دا دې چه د مسح راس ابتداء د سر د مينځ نه لګه چه د باب په شروع کښې تير شوې دی چه دا د حسن بصری رحمه الله مذهب دې چه د مسح راس ابتداء دې د وسط راس نه اوکړې شی ﴿ لمنصب الشعر ﴾ کښې لام د الی په معنی دې ﴿ ای الی منصب الشعر ﴾ او منصب په معنی د محل انصاب، د انصاب معنی ښکته کيدل يعنی د سر د کومې حصې د ويښتو رخ چه کوم طرف ته وو په هم هغه طرف ئې د هغه حصې مسح اوکړه، چه د سر د مسح په وجه باندې وران او منتشر نه شی.

د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه يو سړی تپوس اوکړو چه زنانه او هغه سړې د چا چه ويښته اوږدهٔ وی هغه به مسح څنګه کوی؟ نو هغوی اوفرمائيل چه که غواړی نو دغه شان دې کوی څنګه چه د ربيع بنت معوذ رضی الله عنها په روايت کښې راغلی دی، بهر حال د مسح طريقه دا طريقه جائز ده، او په ظاهر کښې د بيان جواز دپاره رسول الله ﷺ داسې کړې دی، اصل کښې زمونږ په دين او شريعت کښې ډير سهولتونه دی، خو هم هغه سهولتونه اختيار کيدلې شی کوم چه منقول او ثابت دی د خپل طرف نه نهٔ.

[۱۲۹](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بَكْرٌ يَعْنِي ابْنَ مُضَرَ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، أَنَّ رُبَيِّعَ بِنْتَ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ أَخْبَرَتْهُ، قَالَتْ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ، قَالَتْ: فَمَسَحَ رَأْسَهُ وَمَسَحَ مَا أَقْبَلَ مِنْهُ وَمَا أَدْبَرَ وَصُدْغَيْهِ وَأُذُنَيْهِ مَرَّةً وَاحِدَةً".

**ترجمه**: ربيع بنت عفراء وايې: ما رسول الله ﷺ اوليدلو چه اودس ئې کولو، هغې اووئيل مسح ئې اوکړه د سر او مسح ئې اوکړه د مخکښنې حصې او د وروستنۍ حصې، او د څنړو او د غوږونو يو ځل.

**تشريح**: قوله ﴿ وَصُدْغَيْهِ وَأُذُنَيْهِ ﴾ د صدغ دوه تفسيرونه کړې شوې دی، يو ﴿ مابين الاذنين والعين ﴾ څه ته چه د غوږونو پوستکئ وائی، او دويم تفسير ددې ﴿ ما بين الاذن والناصية ﴾ يعنی د سر هغه حصه کومه چه د غوږ او تندی ترمينځه ده، د معنی اول په اعتبار سره صدغ په حد د وجه کښې داخله ده، او د معنی ثانی په اعتبار سره د حد وجه نه خارج او حد راس کښې داخل ده، بله دا چه د صدغ اطلاق په هغه ويښتو باندې هم کيږی کوم چه په هغه ځائې باندې راشی يعنی زلفې، د صدغين مسح رسول الله ﷺ د تکميل راس او د راس د استيعاب دپاره اوفرمائيله.

(١): سنن الترمذي/الطهارة ٢٦ (٣٤) (تحفة الأشراف: ١٥٨٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٩/٦) (حسن)

[۱۳۰]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ عَقِيلٍ، عَنِ الرُّبَيِّعِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ بِرَأْسِهِ مِنْ فَضْلِ مَاءٍ كَانَ فِي يَدِهِ".

**ترجمه:** د ربيع نه روايت دې، بيشكه نبي ﷺ مسح اوكړه په سر باندې د زياتي هغې اوبو نه چه د ده په لاس كښې وې.

**تشريح:** قوله ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ — قوله مَسَحَ بِرَأْسِهِ مِنْ فَضْلِ مَاءٍ كَانَ فِي يَدِهِ ﴾ په دې باندې بحث د عبدالله بن زيد بن عاصم رضي الله عنه په حديث كښې تير شوې دې، چرته چه دا راغلي وو ﴿ ومسح راسه بماء غير فضل يديه ﴾

[۱۳۱]() حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ، فَأَدْخَلَ إِصْبَعَيْهِ فِي جُحْرَيْ أُذُنَيْهِ".

**ترجمه:** د ربيع نه روايت دې، بيشكه نبي ﷺ اودس اوكړو، نو دواړه ګوتې ئې په سوړو د غوږونو كښې داخل كړې.

[۱۳۲]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ رَأْسَهُ مَرَّةً وَاحِدَةً حَتَّى بَلَغَ الْقَذَالَ وَهُوَ أَوَّلُ الْقَفَا"، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: مَسَحَ رَأْسَهُ مِنْ مُقَدَّمِهِ إِلَى مُؤَخَّرِهِ حَتَّى أَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ تَحْتِ أُذُنَيْهِ، قَالَ مُسَدَّدٌ: فَحَدَّثْتُ بِهِ يَحْيَى فَأَنْكَرَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وسَمِعْت أَحْمَدَ يَقُولُ: إِنَّ ابْنَ عُيَيْنَةَ زَعَمُوا أَنَّهُ كَانَ يُنْكِرُهُ وَيَقُولُ: إِيشْ هَذَا طَلْحَةُ؟ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ.

**ترجمه:** نيكه د طلحه وايي: چه ما رسول الله ﷺ اوليدلو چه مسح ئې كړو سر يو ځل ترديې چه د څټ اول سر ته ورسيدو. او وئيلي دي مسدد: مسح ئې كړو سره د مخې نه تر اخير پورې تر دې چه لاسونه ئې د غوږونو د لاندې حصې نه ويستل. وئيلي دي مسدد: ما بيان اوكړو ددې يحيى ته نو هغه انكار اوكړو. وئيلي دي ابوداود: ما اوريدلي دي د احمد نه چه هغه ويل: بيشكه دوى ګمان كړى دى چه ابن عيينه ناشنا به ئې ګڼرلو، او وئيل به ئې څه شى؟ طلحه عن ابيه عند جده.

### مسند جد طلحه:

قوله ﴿ عَنْ جَدِّهِ ﴾ دا د اووم صحابي جد طلحه رضي الله عنه حديث شروع كيږي. دا روايت سندا ضعيف دې ځكه چه ليث بن ابى سليم ضعيف دې، د طلحه بن مصرف پلار د چا نه چه هغه روايت كوى وئيلې شوې دى چه هغه مجهول دې په ﴿ عن جده ﴾ كښې ضمير د طلحه طرف ته راجع دې، د جد طلحه په نوم كښې اختلاف دې، وئيلي شوې دى كعب بن عمرو وقيل

[1]: انظر حديث رقم (١٢٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٤١) (حسن)

[2]: انظر حديث رقم (١٢٦) وراجع: سنن الترمذي/ الطهارة ٥٢ (٣٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٢ (٤٤١)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٣٩) (حسن)

[3]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١١١٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٨١/٣) (ضعيف)

عمرو بن كعب او بعض علماء كرام د هغوى په صحابى كيدو كښې كلام كوى.
قوله :﴿ حَتَّى بَلَغَ الْقَذَالَ – وَهُوَ أَوَّلُ الْقَفَا ﴾ ددې نه بعض علماء كرامو د مسح رقبه په استحباب باندې استدلال كړې دې لكه څنګه چه په دې باندې تفصيلى كلام د مقدام بن معديكرب په حديث ۴ كښې تير شوې دې.
قوله :﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَسَمِعْتُ أَحْمَدَ يَقُولُ الخ ﴾ په دې حديث باندې چه كوم كلام دې هغه مصنف رحمه الله بيان فرمائى، دلته چه كومه جمله ده په هغې كښې د تركيب نحوى په اعتبار سره اغلاق دې، يا دا اووايه چه په دې كښې تعقيد لفظى دې چه دهغې وجه دا ده چه په كلام كښې تقدم او تاخر دې، اصل عبارت داسې كيدل پكار دى ﴿ قَالَ أَحْمَدُ زَعَمُوا أَنَّ ابْنَ عُيَيْنَةَ كَانَ يُنْكِرُهُ ﴾ امام احمد رحمه الله فرمائى چه علماء كرام داسې وائى چه سفيان بن عيينه رحمه الله به ددې حديث انكار كولو ﴿ وَيَقُولُ أَيْشٍ هَذَا ﴾ دا لفظ د اى شئ مخفف دې، سفيان بن عيينه رحمه الله چه په دې حديث باندې كوم كلام كړې دې دا دهغې بيان دې ﴿ أَيْشٍ هَذَا ﴾ په هذا كښې اشاره ده د سند دهغې ټكړې طرف ته كومه چه خپله په عبارت كښې ذكر شوې ده ﴿طلحة بن مصرف عن ابيه عن جده ﴾ ګويا د ابن عيينه رحمه الله اشكال په دې سند باندې دې، اوس چه كوم حديث هم په دې سند باندې روايت كړې شى په هغې باندې به اشكال وى، د اشكال سبب په دې سند كښې څه دې؟ په شرح كښې ليكلې دى چه هغه د طلحه د پلار مجهول كيدل دى لكه چه مونږ مخكښې دا خبره كړې ده چه د طلحه پلار مجهول دې، او يو وجه دا هم كيدې شى چه سفيان بن عيينه ته د جد طلحه په صحابى كيدو كښې تردد دې، ددې نه پس مصنف رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما حديث ذكر كړې دې چه په هغې كښې څه نوې خبره نشته.

[۱۳۳]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ كُلَّهُ ثَلَاثًا ثَلَاثًا، قَالَ: وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ مَسْحَةً وَاحِدَةً".

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې، هغه وليده رسول الله صلى الله عليه وسلم چه اودس ئې كولو، نو پوره حديث ئې ذكر كړو، ټول درې درې ځله، هغه وائى: مسح ئې اوكړه د سر او د غوږونو يو ځل.

[۱۳۴]([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَقُتَيْبَةُ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ سِنَانِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، وَذَكَرَ وُضُوءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ الْمَاقَيْنِ، قَالَ: وَقَالَ: الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ"، قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ: يَقُولُهَا أَبُو أُمَامَةَ، قَالَ

---

[1]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۵۵۷۹)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ۲۸ (۳٦)، ۳۲ (٤۲)، سنن النسائي/الطهارة ۸٤ (۱۰۱)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٤۳ (٤۰٤)، ۵۲ (٤۳۹) (ضعيف جداً)

[2]: سنن الترمذي/الطهارة ۲۹ (۳۷)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۳ (٤٤٤)، (تحفة الأشراف: ٤۸۸۷)، وقد أخرجه: حم (۲۵۸/۵، ۲٦٤) (ضعيف)

قُتَيْبَةُ: قَالَ حَمَّادٌ: لَا أَدْرِي هُوَ مِنْ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ مِنْ أَبِي أُمَامَةَ يَعْنِي قِصَّةَ الْأُذُنَيْنِ. قَالَ قُتَيْبَةُ: عَنْ سِنَانٍ أَبِي رَبِيعَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ ابْنُ رَبِيعَةَ كُنْيَتُهُ أَبُو رَبِيعَةَ.

**ترجمه**: د ابو امامه نه روايت دې، هغه ذکر کړو اودس د نبي ﷺ، هغه اووئيل: وو رسول الله ﷺ چه مسح کول به ئې د سترګو ګوټونه، هغه وائي: چه وئيلی دی رسول الله ﷺ: غوږونه د سر نه دې. وئيلی دي سليمان بن حرب: وئيل به هم دا ابو امامه، وئيلی دي قتيبة: وئيلی دي حماد، زه نه پوهيږم چه هغه د قول د نبي ﷺ دی او که د ابو امامة دی، يعني خبره د اذنينو، وئيلی دي قتيبة د سنان ابي ربيعة نه، وئيلی دي ابوداود: او هغه ابن ربيعه دی او کنيه ئې ابو ربيعه ده.

### مسند ابو امامة:

قوله :﴿ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ ﴾ دا ددې باب آخری حديث دې چه دهغې راوی ابو امامه ﷺ دې په دې کښې اختلاف دې چه دا ابوأمامه کوم يو دې؟ ځکه چه ابو امامه دوه دی يو خو ابو امامه الباهلی د چا نوم چه صدی بن عجلان دې. کوم چه بالاتفاق صحابی دې بل ابوامامه الانصاری د چا نوم چه سعد بن حنيف دې، د دوی صحابی کيدل مختلف فيه دی، بعض ورته تابعی وائی او بعض صحابی، دا حديث په مشکوة شريف کښې هم دې، او د مشکوة په آخر کښې د الاکمال په نوم باندې يو رساله ملحق ده کوم چه د صاحب مشکوة تصنيف دې، په هغې کښې هغوی په مشکوة کښې چه څومره راويان راغلی دی د ټولو مختصر حال ئې ذکر کړې دې، غرض دا چه صاحب مشکوة هغوی ته ابو امامة الانصاری وئيلې دې يعنی سعد بن حنيف ملا علی قاری رحمه الله د صاحب مشکوة د رائې ليکلو نه پس ليکلې دی چه کيدې شی ابو امامة الباهلی مراد وی، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ليکلې دی چه د امام احمد رحمه الله په نزد دا ابوامامة الباهلی دې ځکه چه دا حديث هغوی په مسند احمد کښې د ابو امامة الباهلی په مسانيدو کښې ذکر فرمائيلې دې، حضرت دا هم ليکلې دی چه د تهذيب التهذيب او الاصابة د کتلو نه معلوميږی چه د حافظ ميلان هم دې طرف ته دې کومه چه د امام احمد رحمه الله رائې ده.

قوله ﴿ يَمْسَحُ الْمَأْقَيْنِ ﴾ دا په دې حديث کښې يوه نوې خبره راغله کومه چه تراوسه پورې په يو حديث کښې هم نه وه راغلې او د مسند احمد په روايت کښې دی ﴿ يتعاهد الماقين ﴾ ماق وئيلې شی د سترګې غارې ته چه په هغې کښې اکثر خيری جمع کيږی، هم په دې وجه رسول الله ﷺ به د مخ مبارک د وينځلو په وخت د سترګو ددې حصې تعاهد يعنی خبر هم اخستلو، هسې نه چه هلته اوبه او نه رسيږی. لهذا متوضی له پکار دی چه د مخ د وينځلو په وخت ددې خيال ساتی، سترګې دې په ښه طريقه اومږی.

هم ددې مشابه يو لفظ بل راځی يعنی ﴿ موق ﴾ پس په ﴿ باب المسح على الخفين ﴾ کښې يو حديث راروان دې چه دهغې الفاظ دا دی ﴿ ويمسح على عمامته وموقيه ﴾ دلته د موقين نه مراد خفين دی، موقين د خفين د يو نوع نوم دې.

**دا حدیث د احنافو مستدل دې او د شوافع خلاف دې:**

﴿ قوله قَالَ وَقَالَ « الأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ »﴾ په دې کښې اختلاف دې چه ﴿ الأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ ﴾ د چا قول دې د رسول الله ﷺ او که د صحابی رضی الله عنه؟ بعض علماء کرامو د قال اول د ضمیر مرجع شهر بن حوشب ګرځولې ده او د قال ثانی مرجع ئې ابوامامه رضی الله عنه، په دې صورت کښې به دا مقوله وی د صحابی، او بعض علماء کرامو د قال اول مرجع ابو امامه رضی الله عنه او د قال ثانی مرجع رسول الله ﷺ منلې ده، په دې صورت کښې به دا جمله مرفوع وی، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې لیکلې دی چه د سنن ابن ماجه د روایت نه صفا معلومیږی چه دا د رسول الله ﷺ قول دې، زه وایم چه په دې کښې هیڅ شک نشته چه دا لفظ مرفوعا او موقوفا دواړو طریقو سره روایت شوې دې، او بعضی راویانو په وخت د روایت د تردد اظهار کړې دې لکه چه د ابوداؤد په روایت کښې دی، اوس به ترجیح چاته ورکولې شی په دې کښې علماء کرام مختلف دی، علامه عینی رحمه الله فرمائی د قاعدې خبره دا ده چه کله رفع او وقف کښې د راویانو اختلاف وی نو رفع ته ترجیح ورکول پکار دی ځکه چه د رافع سره زیادت د علم دې او هم دا رائې د ابن دقیق العید او د حافظ منذری رحمهما الله معلومیږی، خو د حافظ تحقیق دا دې چه دا لفظ مدرج دې پس هغوی په التلخیص الجیر کښې لیکی : وقد بینت انه مدرج... او هم دا رائې د امام دارقطنی او ابن العربی رحمهما الله ده. لکه چه په حاشیه د بذل کښې دی، ځان پوهه کړه چه ددې حدیث په بناء باندې احناف د مسح اذنین دپاره د تجدید ماء قائل نه دی او چونکه امام شافعی رحمه الله اذنین عضوین مستقلین منی او دهغې دپاره د تجدید ماء قائل دی هغوی ددې حدیث دا جواب ورکوی چه دا جمله په دې حدیث کښې مدرج ده مرفوعا ثابت نه ده، د هغوی د طرف نه ددې یو بله توجیه د مسح اذنین په مباحثو کښې مخکښې تیره شوې ده.

﴿ قوله قَالَ قُتَيْبَةُ عَنْ سِنَانٍ أَبِی رَبِيعَةَ ﴾ سنان په ترکیب کښې مبدل منه او ابی ربیعه د هغه نه بدل واقع دې، سنان د راوی نوم دې او ابو ربیعه کنیت دې، لهذا د سنان او ابو ربیعه دواړو مصداق یو سړې شو، بله دا چه د سنان د پلار نوم ربیعه دې لهذا هغوی ته سنان بن ربیعه وئیلې کیدې شی، د مصنف رحمه الله په دې سند کښې دوه استاذان دی، سلیمان بن حرب او قتیبه بن سعید، مصنف رحمه الله فرمائی چه زما استاذ سلیمان په وخت د روایت ﴿عن سنان بن ربیعه ﴾ اووئیلو، او قتیبه ﴿ عن سنان بن ربیعه ﴾ اووئیلو، په یو صورت کښې راوی سره د هغه د پلار نوم ذکر شو او په بل صورت کښې د پلار د نوم په ځائې د هغه خپل نوم او کنیت ذکر شو، لهذا په دواړو الفاظو کښې هیڅ تعارض نشته

باب صفة الوضوء....... پوره شو چه په هغې کښې تقریبا ټول مسائل د اودس سره د اختلافاتو راغلل، فالحمد لله علی ذلک.

# بَابُ الْوُضُوءِ ثَلاَثًا ثَلاَثًا

## باب دې په بيان د اودس کې درې درې ځل

مصنف رحمه الله دلته مسلسل درې بابونه قائم کړې دی اول باب ﴿ الوضوء ثلثا ﴾ دویم باب ﴿ الوضوء مرتين ﴾ او دریم باب ﴿ الوضوء مرة مرة ﴾ هم دغه شان درې بابونه امام ترمذی رحمه الله هم قائم کړې دی خو هغوی یو څلورم باب هم قائم کړې دې ﴿ باب فی الوضوء مرة ومرتين وثلثا ﴾ يعنى درې واړه صورتونه ئې په يو ترجمه کښې جمع کړل، په دې باندې اشکال پیدا شو چه ددې څلورم باب نه کومه نوې خبره معلومه شوه، دا خو د اول دریو مجموعه شوه، ددې جواب دا دې چه د امام ترمذی رحمه الله غرض دا دې چه د ځانله ځانله مختلفو رواياتو نه په درې قسمه اودس ثابت دې، او په څلورم باب سره ئې دا ثابته کړه چه بعض روایات داسې هم دی چه په هغې کښې په یو وخت درې واړه صورتونه د یو حدیث نه ثابت دی، پس ددې څلورم باب په ضمن کښې امام ترمذی رحمه الله هم دا قسم حدیث راوړې دې، بیا يو پنځم باب هم هغوی قائم کړې دې باب فی من توضاء بعض وضوئه مرتين وبعضه ثلثا یعنی په یو اودس کښې بعض اندامونه دوه کرته او بعض درې کرته وینځل ثابت دی.

[۳۵]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عَائِشَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، كَيْفَ الطُّهُورُ؟ "فَدَعَا بِمَاءٍ فِي إِنَاءٍ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ ثَلَاثًا، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، ثُمَّ غَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا، ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ فَأَدْخَلَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَّاحَتَيْنِ فِي أُذُنَيْهِ وَمَسَحَ بِإِبْهَامَيْهِ عَلَى ظَاهِرِ أُذُنَيْهِ بَاطِنَ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا الْوُضُوءُ، فَمَنْ زَادَ عَلَى هَذَا أَوْ نَقَصَ، فَقَدْ أَسَاءَ وَظَلَمَ، أَوْ ظَلَمَ وَأَسَاءَ".

**ترجمه**: عمرو بن شعیب د خپل پلار نه روايت کوي او پلار ئې د خپل پلار نه کوي، چه بیشکه یو سړی راغی نبی ﷺ ته، وئې وئیل: اې د الله رسوله! د پاکۍ (اودس) طریقه څه ده؟ نو راوېې غوښتلې اوبه په يو لوښې کښې نو دواړه ورغوئ ئې وينځل درې ځله، بيا ئې مخ وينځلو درې ځل، بيا ئې دواړه څنګلې وينځلې درې ځل، بيا ئې مسح اوکړه په سر باندې، داخل ئې کړې دواړه سبابې ګوتې په غوږونو کښې، او مسح ئې اوکړه په غټو ګوتو ظاهر طرف د غوږونو، او په سبابو ګوتو باندې باطن د غوږونو، بيا ئې دواړه خپې درې درې ځل وينځلې، بيا ئې اووئيل: دارنګه دی اودس، چاچې زيات کړو په دې او یایې کم کړو نو بدیې اوکړل او ظلم ئې اوکړو، او یایې ظلم اوکړو او بدیې اوکړه.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ الخ - قوله عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ ﴾ دا يو مشهور سند دې او په دې باندې چه کوم کلام دې هغه هم مشهور دې، سلسله د نسب داسې ده عمرو بن شعيب بن محمد بن عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما، دا خو متعین ده چه د ﴿ ابیه ﴾ ضمیر د

(): سنن النسائي/الطهارة ۱۰۵ (۱۴۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۴۸ (۴۲۲)، (تحفة الأشراف: ۸۸۰۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۸۰) (حسن صحيح) (خو د أونقص جمله شاذده).

عمرو طرف ته راجع دې، خو په ﴿عن جده﴾ کښې اختلاف دې چه ددې ضمير هم د عمرو طرف ته راجع دې يا که د شعيب طرف ته؟ د جد عمرو نوم محمد دې او د جد شعيب نوم عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما دې محمد تابعی دې او عبدالله بن عمرو بن العاص مشهور صحابی دې، که ضمير د عمرو طرف ته راجع اومنلې شی نو په دې صورت کښې به روايت مسند وی د صحابی د ذکر کيدو د وجې نه او مطلب به دا وی چه شعيب روايت کوی د خپل نيکهٔ عبدالله بن عمرو بن العاص نه بعض محدثين لکه ابن حبان او ابن عدی [1] وغيره ته په دې سند باندې اشکال دې هغوی وائی چه دا سند په يو صورت کښې مرسل او په يو صورت کښې منقطع دې، منقطع په دې وجه چه د هغوی په نزد د شعيب سماع د خپل نيکهٔ نه ثابت نه ده، خو اکثر محدثين لکه امام احمد بن حنبل رحمه الله، علی بن مدينی رحمه الله، اسحق بن راهويه، امام بخاری رحمه الله او امام نووی رحمه الله دا سند حجت منی، او فرمائی چه د جده ضمير د شعيب طرف ته راجع دې، او د شعيب سماع د خپل نيکهٔ عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه ثابت ده، لهذا سند منقطع نه دې.

د امام ترمذی رحمه الله په جامع ترمذی کښې د ثبوت سماع تصريح کړې ده [2]، پس هغوی فرمائی ﴿وشعيب قد سمع من جده عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما﴾ او امام ترمذی رحمه الله دا هم فرمائی ﴿ومن ضعفه فانما ضعفه من قبل انه يحدث من صحيفة جده﴾ کومو خلقو چه د عمرو بن شعيب تضعيف کړې دې هغه په دې وجه نه چه هغه فی نفسه ضعيف دې بلکه تضعيف کونکی تضعيف په دې وجه کوی چه هغوی چه کوم حديث په دې سند سره بيانوی، يعنی ﴿عن ابيه عن جده﴾ هغه د قبيل وجاده نه دې يعنی هغوی د خپل نيکهٔ د صحيفې نه روايت کوی بغير د ثبوت سماع نه، خو جمهور دا وائی چه د هغوی د خپل نيکهٔ نه سماع ثابت ده، لهذا د صحيفې نه په نقل کولو کښې هيڅ اشکال نشته، اصل کښې خبره دا ده چه د وجاده په باره کښې مشهوره ده چه هغه از قبيل مرسل يعنی منقطع دی، خو چه کله ائمه فن د سماع د ثبوت تصريح کوی ﴿فاين الانقطاع﴾، دريم قول دلته د امام دارقطنی رحمه الله دې هغه دا چه که په سند کښې د جده مصداق عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما صراحة مذکور وی لکه چه په بعض ځايونو کښې ذکر دی نو بيا خو دا سند معتبر دې ګينې معتبر نه دې، لهذا ددې سند په باره کښې درې اقوال شو، يو قول د ابن عدی او ابن حبان او يحيی بن القطان وغيره چه حجت نه دې، او دويم قول د جمهور علماء کرامو چه په هغې کښې امام بخاری رحمه الله او د هغوی مشائخ دی چه مطلقا حجت دې، دريم قول د دارقطنی دې چه په يو صورت کښې حجت دې او په بل صورت کښې نه دې.

---

[1] هم دغه شان امام ترمذی رحمه الله د يحيی بن القطان نه نقل کړی دی چه هغوی هم دا سند حجت نه منی، او يحيی بن معين هم په دې ډله کښې شامل دې، خو هغوی دا وائی چه عمرو بن شعيب خو فی نفسه ثقه دې، خو اشکال ددې سند په نقل کولو کښې دې

[2] ترمذی ۸۲/۱ باب ما جاء في زكوة مال اليتيم

## د ابواوُد په دې روایت باندې يو اشکال او د هغې جوابات :

﴿ قوله فَمَنْ زَادَ عَلَى هَذَا أَوْ نَقَصَ الخ ﴾ په دې حديث باندې يو مشهور اشکال دې هغه دا چه نقص عن الثلاث په ډيرو احاديثو کښې د رسول اللهﷺ نه ثابت دې، خو دا چه زيادة على الثلث ثابت نه دې، نو کوم څيز چه د رسول اللهﷺ نه ثابت دې هغې ته اساءة او ظلم ولې وئيلې شوې دې.

بله دا چه ددې حديث په بناء باندې ابوحامد اسفرائنیؒ د بعض علماء کرامو نه نقل کړې دی چه د هغوی په نزد نقص عن الثلاث ناجائز دې، او هم دغه شان دارمی د بعض علماء کرامو نه نقل کړی دی چه د هغوی په نزد اودس کښې دننه زيادة على الثلاث مبطل د اودس دې لکه چه زيادة فى الصلوة مفسد صلوة دې علامه زرقانیؒ دا اختلاف په غرائب کښې شمار کړې دې.

جواب اول: بهر حال ددې اشکال جواب دا دې چه په دې حديث کښې لفظ ﴿ نقص ﴾ ثابت نه دې وهم د راوی دې، پس دا حديث نسائی، ابن ماجه او مسند احمد کښې دې، په دې ټولو کتابونو کښې په دې حديث کښې لفظ د نقص نه دې ذکر شوې صرف لفظ زاد دې، اصل جواب خو دا دې.

خو که دا لفظ ثابت اومنلې شی نو ددې تاويل به دا کولې شی چه د نقص نه مراد نقص عن مرة واحدة دې، يعنی يو ځل ئې هم اندامونه په ښه طريقه باندې او نه وينځل په دې صورت کښې د نقص اساءة او ظلم کيدل ظاهر دی، دويم تاويل دا کيدې شی چه دلته د شرط په جانب کښې دوه څيزونه ذکر شوې دی زاد او نقص هم دغه شان د جزاء په طرف کښې دوه څيزونه ذکر شوې دی، اساءة او ظلم دَ اساءة تعلق د نقص سره دې او د ظلم تعلق د زاد سره دې. په دې صورت کښې به اشکال نه واقع کيږی ځکه چه نقصان ته اساءت او زيادت ته ظلم وئيلې شوې دې، يا داسې اووايه چه مجموعه په مجموعه باندې مرتب کيږی، هر يو ته بيل بيل ظلم نه دې وئيلې شوې، يو جواب دا دې چه ظلم کلی مشکک دې، د حرام نه واخله تر خلاف اولی پورې په ټولو باندې صادق راځی.

## بَابُ الْوُضُوءِ مَرَّتَيْنِ

### باب دې په بيان د اودس کښې دوه ځل

[۱۳۶](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا زَيْدٌ يَعْنِي ابْنَ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ ثَوْبَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْفَضْلِ الْهَاشِمِيُّ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ".

**ترجمه:** د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دې، بيشکه نبي ﷺ اودس اوکړو دوه دوه ځل.

(۱): سنن الترمذي/الطهارة ۳۳ (۴۳)، (تحفة الأشراف: ۱۳۹۴۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۸۸، ۳۶٤) (حسن صحيح)

[١٣٧]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا زَيْدٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: قَالَ لَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ: أَتُحِبُّونَ أَنْ أُرِيَكُمْ كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ؟" فَدَعَا بِإِنَاءٍ فِيهِ مَاءٌ، فَاغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهِ الْيُمْنَى فَتَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ، ثُمَّ أَخَذَ أُخْرَى فَجَمَعَ بِهَا يَدَيْهِ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ، ثُمَّ أَخَذَ أُخْرَى فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُمْنَى ثُمَّ أَخَذَ أُخْرَى فَغَسَلَ بِهَا يَدَهُ الْيُسْرَى، ثُمَّ قَبَضَ قَبْضَةً مِنَ الْمَاءِ ثُمَّ نَفَضَ يَدَهُ ثُمَّ مَسَحَ بِهَا رَأْسَهُ وَأُذُنَيْهِ، ثُمَّ قَبَضَ قَبْضَةً أُخْرَى مِنَ الْمَاءِ فَرَشَّ عَلَى رِجْلِهِ الْيُمْنَى وَفِيهَا النَّعْلُ ثُمَّ مَسَحَهَا بِيَدَيْهِ يَدٍ فَوْقَ الْقَدَمِ وَيَدٍ تَحْتَ النَّعْلِ ثُمَّ صَنَعَ بِالْيُسْرَى مِثْلَ ذَلِكَ".

**ترجمه**: عطاء بن يسار نه روايت دي، اووئيل ماته ابن عباس رضي الله عنهما، ايا تاسو خوښوئ چه وښايم تاسو ته چه څنګه وو رسول الله ﷺ چه اودس ئي کولو؟ نو راوېي غوښتلو لوښې چه اوبه پکښې وي نو يوه لپه ئي راواخسته په ښي لاس باندې نو مضمضه ئي اوکړه او استنشاق ئي اوکړو، بيا ئي بله راواخسته نو دواړه لاسونه ئي يو ځائې کړل، بيا ئي يوه مخ لپه وينځلو، بيا ئي بله راواخسته نو وئې وينځلو په هغې خپل ښې لاس، بيا ئې بله راواخسته نو وئې وينځلو په هغې ګس لاس، بيا ئي لپه راواخستو بل چونګ د اوبو، بيا ئې لاس وڅنډلو، بيا ئې په هغې خپل سر او غوږونه مسح کړل، بيا ئې بل چونګ د اوبو راواخستو وائې چولې په ښې خپه باندې، او په هغې کښې پيزار وو بيا ئې مسح کړه په دواړو لاسونو يو لاس د خپې دپاسه او بل لاندې د پيزار نه، بيا ئې اوکړل په ګسه خپه باندې دهغې پشان.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الخ — قوله فَرَشَّ عَلَى رِجْلِهِ الْيُمْنَى وَفِيهَا النَّعْلُ ثُمَّ مَسَحَهَا بِيَدَيْهِ يَدٍ فَوْقَ الْقَدَمِ وَيَدٍ تَحْتَ النَّعْلِ الخ ﴾ يعنى ابن عباس رضي الله عنهما پيزار اغوستلي يو لپه اوبه په خپو باندې واچولې او د اوبو د اچولو نه پس ئې په لاسونو باندې خپې داسې اومږلې چه يو لاس ئې خو د خپې دپاسه وو او دويم لاس ئې د پيزار د لاندې وو، ددې قسم مضمون په باب صفة الوضوء کښې د سيدنا علي رضي الله عنه په حديث کښې تير شوې دې، او ددې توجيه هم هلته ذکر شوې ده.

## د حديث شرح او بيان مراد کښې اختلاف د اراء :

خو دلته يو نوې څيز کوم چه قابل اشکال راغلو هغه دا دې چه راوى وائى ﴿ يد فوق القدم ويد تحت النعل ﴾ چه يو لاس ئې د خپې دپاسه وو او دويم لاس ئې د پيزار د لاندې، دويم لاس که د خپې د لاندې وو نو بيا خو بالکل اشکال نه وو چه يو لپه اوبه ئې په خپه باندې واچولې او زر ئې خپه په دواړو لاسونو باندې لاندې باندې اومږله، خو چه کله دويم لاس د خپې په ځائې د پيزار د لاندې شي نو د خپې لاندې حصه به څنګه لونديږي؟

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ٧ (١٤٠)، سنن الترمذي/الطهارة ٣٢ (٤٢)، سنن النسائي/الطهارة ٦٤ (٨٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٣ (٤٠٣)، ٤٥ (٤١١)، مسند احمد (١/٣٣٣، ٣٣٢، ٣٣٦) سنن الدارمي/الطهارة ٢٩ (٧٢٣)، (تحفة الأشراف: ٥٩٧٨) (حسن)

د دې اشکال شارحینو ډیر جوابونه کړي دی،

(۱) **جواب**: د علامه شوکانی رحمه الله رائې دا ده چه په تحت النعل کښې د نعل نه مراد قدم دې، لهذا یو لاس په قدم دپاسه او دویم لاس د قدم نه ښکته وو.

(۲) **جواب**: علامه سیوطی رحمه الله دویم جواب اختیار کړو هغه دا چه په دې صورت کښې چه کوم روایت کښې مذکور دې د غسل قدم تحقق خو به نه وی، لهذا هغوی دا حدیث په مسح علی الخف باندې محمول کړې دې، یعنی اګرچه په دې حدیث کښې د خف ذکر نشته خو نفی هم نشته،

(۳) **دریم جواب**: هغه دې کوم چه حضرت سهارنپوری اختیار فرمائیلې دې، هغه دا چه نه خو نعل کنایه ده د قدم نه لکه چه شوکانی وئیلې دی او نه مراد دلته مسح علی الخف ده لکه چه سیوطی رحمه الله وئیلې دی، بلکه په حدیث کښې غسل رجل مذکور دې، پاتې شوه دا خبره چه هر کله دویم لاس د خپې د لاندې نه دې بلکه د څپلۍ نه لاندې دې نو ددې به څه کیږی؟ حضرت فرمائی چه دویم لاس کوم چه د پیزار د لاندې وو هغه د حمل قدم او امساک قدم دپاره وو، یعنی ښې لاس د قدم دپاسه وو، او ګس لاس کوم چه د پیزار د لاندې وو دهغې په ذریعه ئې خپه سنبال کړې وه او هم هغه لاس کوم چه په شروع کښې په خپې دپاسه وو هم په هغه لاس باندې ئې پوره قدم د پورته نه لاندې اومړلو، د مړلو نه پس ښکاره ده چه د غسل تحقق به اوشی، ید فوق القدم مطلب دا نه دې چه هغه یو لاس بس په قدم دپاسه پاتې شو بلکه په شروع کښې پورته وو د خپې د پورته حصې نه چه فارغ شو نو بیا ئې ښکته طرف ته لاس راوړلو.

خلاصه دا شوه چه یو لپه اوبه ئې په خپې باندې واچولې، او زر زر ئې په ښی لاس باندې خپه لاندې باندې اومړله په داسې طریقه چه په بل لاس باندې ئې خپه سره د پیزاره سنبال کړې وه، الحمد لله د حدیث توجیه او وضاحت ښه اوشو ګینې په حقیقت کښې دا مقام من مزال الاقدام دې، بله دا چه حضرت دا هم لیکلې دی چه د نعل باوجود په غسل قدم کښې هیڅ اشکال نشته ځکه چه دا نعل نعل عربی دې کوم چه د چپل په شکل کښې وی لاندې تلې او پورته پرې صرف دوه تسمې داسې اوګنړئ لکه نن صبا چه هوائی چپل وی، غرض دا چه بند پیزار مراد نه دې چه هغې سره د خپې وینځل تقریبا ناممکن دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

## بَابُ الْوُضُوءِ مَرَّةً مَرَّةً

باب دې په بیان د اودس کښې یو یو ځل وینځل

[۱۳۸] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِوُضُوءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَتَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً".

(۱): ؟صحيح البخاري/الوضو ۲۲ (۱۵۷)، سنن الترمذي/الطهارة ۳۲ (۴۲)، سنن النسائي/الطهارة ٦٤ (۸۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٥ (٤۱۱) (تحفة الأشراف: ۵۹۷٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۳۳، ۳۳۲، ۳۳٦) (صحيح)

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې، هغه اووئيل: ايا زه خبر نه درکوم تاسو ته د اودس د رسول الله ﷺ؟، هغه اودس اوکړو يو يو ځل.

## بَابٌ فِي الْفَرْقِ بَيْنَ الْمَضْمَضَةِ وَالِاسْتِنْشَاقِ

### باب دې په بيان د فرق کې په مابين د مضمضه او استنشاق کې

په دې مسئله کښې اختلاف او کلام په ﴿ باب صفة الوضوء ﴾ کښې تير شوې دې، د مصنف رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د احنافو او حنابله تائيد کيږي، په حديث الباب کښې د فصل بين المضمضة والاستنشاق تصريح موجود ده.

[۱۳۹](۱) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ، قَالَ: سَمِعْتُ لَيْثًا يَذْكُرُ، عَنْ طَلْحَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "دَخَلْتُ يَعْنِي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَوَضَّأُ وَالْمَاءُ يَسِيلُ مِنْ وَجْهِهِ وَلِحْيَتِهِ عَلَى صَدْرِهِ، فَرَأَيْتُهُ يَفْصِلُ بَيْنَ الْمَضْمَضَةِ وَالِاسْتِنْشَاقِ".

**ترجمه**: د طلحه نه روايت دې ، هغه وائي: زه داخل شوم (يعني) په پيغمبر ﷺ او هغه اودس کولو ، او اوبه رواني وې د هغه د مخ نه او د هغه د ږيرې نه په سينه د هغه، نو ما اوليدلو چه جدا والي ئې کولو په مينځ د مضمضه او استنشاق کښې.

## بَابٌ فِي الِاسْتِنْثَارِ

### باب دې په بيان د استنثار کې

[۱۴۰](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ، فَلْيَجْعَلْ فِي أَنْفِهِ مَاءً ثُمَّ لِيَنْثُرْ".

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ وئيلي دي: کله چه اودس کوي يو ستاسو نه نو په پوزه کښې دې اوبه واچوي بيا دې سونړ کړي.

**تشريح**: ۱: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الخ – قوله فَلْيَجْعَلْ فِي أَنْفِهِ مَاءً ثُمَّ لِيَنْثُرْ ﴾ استنثار د امام احمد او اسحق بن راهويه په نزد واجب دې، د جمهورو په نزد مستحب دې، د استنشاق او استنثار ترمينځه فرق او اختلافات وغيره په صفة الوضوء کښې تير شو.

[۱۴۱](۳) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ قَارِظٍ، عَنْ أَبِي غَطَفَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اسْتَنْثِرُوا مَرَّتَيْنِ بَالِغَتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا".

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وائی، چه وئيلی دي رسول الله ﷺ: پوزه سونړ کوئ دوه ځل پوره کوشش سره او يا درې ځله.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۲۸) (ضعيف)

(۲): صحيح البخاري/الوضوء ۲۶ (۱۶۲)، صحيح مسلم/الطهارة ۸ (۲۳۷)، سنن النسائي/الطهارة ۷۰ (۸۶)، موطا امام مالك/الطهارة ۱(۲)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۲۰)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٤ (٤٠٦)، مسند احمد (۲۴۲/۲، ۲۷۸)، سنن الدارمي/الطهارة ۳۲ (۷۳۰) (صحيح)

(۳): سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٤ (٤٠٨)، (تحفة الأشراف: ٦٥٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۸/۱) (صحيح)

[۱۴۲]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ، قَالَ: كُنْتُ وَافِدَ بَنِي الْمُنْتَفِقِ أَوْ فِي وَفْدِ بَنِي الْمُنْتَفِقِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ نُصَادِفْهُ فِي مَنْزِلِهِ وَصَادَفْنَا عَائِشَةَ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَ: فَأَمَرَتْ لَنَا بِخَزِيرَةٍ فَصُنِعَتْ لَنَا، قَالَ: وَأُتِينَا بِقِنَاعٍ وَلَمْ يَقُلْ قُتَيْبَةُ الْقِنَاعَ، وَالْقِنَاعُ الطَّبَقُ فِيهِ تَمْرٌ، ثُمَّ جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "هَلْ أَصَبْتُمْ شَيْئًا أَوْ أُمِرَ لَكُمْ بِشَيْءٍ؟ قَالَ: قُلْنَا: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: فَبَيْنَا نَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُلُوسٌ، إِذْ دَفَعَ الرَّاعِي غَنَمَهُ إِلَى الْمُرَاحِ وَمَعَهُ سَخْلَةٌ تَيْعَرُ، فَقَالَ: مَا وَلَّدْتَ يَا فُلَانُ؟ قَالَ: بَهْمَةً، قَالَ: فَاذْبَحْ لَنَا مَكَانَهَا شَاةً، ثُمَّ قَالَ: لَا تَحْسِبَنَّ، وَلَمْ يَقُلْ لَا تَحْسَبَنَّ أَنَّا مِنْ أَجْلِكَ ذَبَحْنَاهَا لَنَا غَنَمٌ مِائَةٌ لَا نُرِيدُ أَنْ تَزِيدَ، فَإِذَا وَلَّدَ الرَّاعِي بَهْمَةً ذَبَحْنَا مَكَانَهَا شَاةً، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ لِي امْرَأَةً وَإِنَّ فِي لِسَانِهَا شَيْئًا يَعْنِي الْبَذَاءَ، قَالَ: فَطَلِّقْهَا إِذًا، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ لَهَا صُحْبَةً وَلِي مِنْهَا وَلَدٌ، قَالَ: فَمُرْهَا يَقُولُ: عِظْهَا، فَإِنْ يَكُ فِيهَا خَيْرٌ فَسَتَفْعَلْ، وَلَا تَضْرِبْ ظَعِينَتَكَ كَضَرْبِكَ أُمَيَّتَكَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَخْبِرْنِي عَنِ الْوُضُوءِ، قَالَ: أَسْبِغِ الْوُضُوءَ وَخَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ وَبَالِغْ فِي الِاسْتِنْشَاقِ، إِلَّا أَنْ تَكُونَ صَائِمًا".

**ترجمه:** د لقيط بن صبره نه روايت دي، هغه وائي: زه وم راتلونكى بني المنتفق سره رسول الله ﷺ ته، هغه اووئيل: هركله چه مونږ راغلو رسول الله ﷺ ته، مونږ د هغه سره د هغه په كور كښې مخامخ نه شو، مونږ مخامخ شو د عائشې ام المؤمنين سره، هغه وائي: نو امر ئې اوكړو زمونږ لپاره په حلواء باندې نو تياره ئې كړه زمونږ دپاره، هغه وائي: راوړى شو مونږ ته قناع، او اونه ويله قتيبه قناع، او قناع د قجورى نه جوړ كړى شوى يو لوښى دى يو لوښى دى چه په هغې كښې قجورې وې، بيا راغى رسول الله ﷺ نو وئې وئيل: ايا تاسو څه شي ته ورسيدئ، او يا امر شوى دى ستاسو لپاره په څه شي؟ هغه وائي: مونږ اووئيل: هو، اې د الله رسوله! هغه وائي: مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو، چه شړلې راعي خپلې ګډې د شپې ځائې ته، او د هغه سره چيلئ بچى وو چه اوازونه ئې كول، نو وئې وئيل: څه شى ئې زيږولى دى اې فلانى؟ هغه اووئيل: ښځه بچى ئې راوړې ده، نو اووئيل هغه: حلال كړه زمونږ لپاره ددې په ځائې شاة، بيا ئې اووئيل: ته ګمان مه كوه (په كسرې د سين) او په فتحې د سين ئې اونه ويله) چه مونږ ستا د وجې نه ذبح كړه، زمونږ سل ګډې دې مونږ نه غواړو چه هغه زياتې شي كله چه راوړې بچى نو دهغې په ځائې شاة حلال كړو، هغه وائي: ما اووئيل: اې د الله رسوله! بيشكه زما ښځه ده زبان درازه ده څه څه اوكړم نو وئې وئيل: نو طلاقه ئې كړه، هغه وائي، ما اووئيل اې د الله رسوله دهغې ډيره موده ماسره اوشوه، او زما دهغې نه بچي دي، هغه اووئيل چه نصيحت ورته اوكړه، كه چېرې په هغې كښې خير وي نو هغه به ستا اطاعت كوى، او مه وهه ښځه خپله پشان د امې خپلې، نو ما اووئيله اې د الله رسوله! خبر راكړه ماته د اودس، هغه اووئيل پوره كوه اودس او خلال كوه د ګوتو د مينځونو، او مبالغه كوه په استنشاق كښې مګر دا چه ته روژه يې.

(): سنن الترمذي/الطهارة ۳۰ (۳۸)، الصوم صحيح مسلم/ ٦٩ (٧٨٨)، سنن النسائي/الطهارة ٧١ (٨٧)، ٩٢ (١١٤)، سنن ابن ماجه/ ٤٤ (٤٠٧)، ٥٤ (٤٤٨)، (تحفة الأشراف: ١١١٧٢)، ويأتي عند المؤلف برقم (٢٣٦٦) و (٣٩٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٣)، سنن الدارمي/الطهارة ٣٤ (٧٣٢) (صحيح)

**تشریح:** ۲: ﴿ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الخ - عَنْ أَبِيهِ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ قَالَ كُنْتُ وَافِدَ بَنِي الْمُنْتَفِقِ - أَوْ فِي وَفْدِ بَنِي الْمُنْتَفِقِ الخ ﴾ وفد جمع د وافد ده، دلته شک د راوی دې چه په روایت کښې د وافد لفظ دې او که د وفد، که د وافد لفظ دې نو ددې تقاضا خو ښکاره دا ده چه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې راتلونکې ځانله دا صحابی وو، او که په روایت کښې لفظ وفد دې نو ددې تقاضه دا ده چه د رسول اللهﷺ په خدمت کښې راتلونکې یو جماعت وو، چه په هغې کښې دا صحابی یعنی لقیط بن صبرهؓ هم شامل وو.

**مضمون حدیث :**

د حدیث مضمون دا دې چه لقیط بن صبرهؓ فرمائی چه یو ځل د قبیله بنی المنتفق وفد چه په هغې کښې زه هم شامل اوم، د رسول اللهﷺ په خدمت کښې مدینې منورې ته حاضر شو. مونږ د رسول اللهﷺ کور ته اورسیدو، د عائشهؓ په کور کښې هغه وخت رسول اللهﷺ نه وو، سیده عائشهؓ زمونږ میلمستیا اوکړه څنګه چې د میلمه کیدی شي لږ وخت پس رسول اللهﷺ تشریف راوړلو، هغوی د رارسیدلو سره د میلمنو نه تپوس اوکړو چه ستاسو څۀ میلمستیا هم کړې شوې ده که نه؟ مونږ عرض اوکړو جی یا رسول اللهﷺ (کړې شوې ده) وړاندې صحابی بیان کوی چه مونږ د رسول اللهﷺ په مجلس کښې ناست وو چه د رسول اللهﷺ شپونکی د هغوی ګډې بیزې واپس راوستلې، بله دا چه د شپونکی سره د چیلۍ یو بچې هم وو چه نوې پیدا شوې وو چه مې مې ئې کول (یعنی چغې ئې وهلې)

﴿ فَقَالَ مَا وَلَّدْتَ يَا فُلاَنُ قَالَ بَهْمَةً ﴾ رسول اللهﷺ د شپونکی نه تپوس اوکړو چه تا په بیزه باندې څه راوړې دی؟ شپونکی اووئیل ﴿ بهمة ﴾ بهمة وئیلې شی د بیزې بچې ته که نر وی که ښځه، خو دلته د ظاهری الفاظو په اعتبار سره ښځه مراد ده، ځکه چه که مطلق بچې مراد کړې شی نو ترجمة به دا وی چه بیزې بچې راوړې دې او دا کلام په ظاهر کښې بې فائدې دې په دې وجه مراد هم دا دې چه بیزې چه کوم بچې راوړې دې هغه ښځه یعنی انثی ده. خو د علامه سیوطیؒ رائې دا ده چه د رسول اللهﷺ سوال عن العدد دې نه عن الذکر والانثی، یعنی د رسول اللهﷺ مقصد دا وو چه بیزې یو بچې راوړې دې که دوه، شپونکی جواب ورکړو یو بچې، او هم دا خبره زیاته صحیح معلومیږی کومه چه سیوطیؒ کړې ده، د کلام د سیاق نه ددې معنی تائید کیږی.

غرض دا چه رسول اللهﷺ ددې سوال او جواب نه پس شپونکی ته اوفرمائیل چه ﴿فَاذْبَحْ لَنَا مَكَانَهَا شَاةً ﴾ یعنی د بیزې ددې بچی په بدل کښې یو بیزه ذبح کړه، او بیا ددې نه پس رسول اللهﷺ میلمنو ته خطاب کولو سره اوفرمائیل چه تاسو دا مه ګنړئ چه دا اهتمام مونږ ستاسو دپاره کوو بلکه اصل خبره دا ده چه نن صبا زمونږ په دې کنډک کښې سل بیزې

دی، مونږ نه غواړو چه په دې باندې د سلو نه اضافه اوشی (۱) پس که یوه بیزه لنګه شی نو که هغه یو بچې راوړی نو مونږ یوه بیزه ذبح کوو او که دوه بچې راوړی نو دوه بیزې ذبح کوو، غرض دا چه غواړو چه د ګډو بیزو په سلو باندې زیادت نه وی، پس دې وخت کښې دا ګډه بیزه ذبح کول هم په دې بناء باندې دی.

﴿ قوله إِنَّ لِي امْرَأَةً وَإِنَّ فِي لِسَانِهَا شَيْئًا ﴾ دې صحابی د رسول اللهﷺ سره د مانوس کیدو نه پس د خپل کور مسائل تپوس کول شروع کړل او یو خبره ئې دا اوتپوسله چه زما د ښځې د ردو بدو (بد اخلاقئ) عادت دې هر وخت بدې ردې وائی هغې سره څه اوکړم؟ رسول اللهﷺ ورته سمدست اوفرمائیل ﴿ فَطَلِّقْهَا إِذًا ﴾ چه هغې ته طلاق ورکړه، په دې اوریدلو باندې هغوی عرض اوکړو یا رسول اللهﷺ! زما هغې سره ډیر وخت شوې دې او ماته الله پاک دهغې نه اولاد هم راکړې دې، طلاق ورکولو ته مې زړه نه کیږی! په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ فمرها ﴾ دا د امر یامر نه د امر صیغه ده، او ددې تفسیر هم وړاندې راوی خپله بیان کړې دې ﴿ یقول عظها ﴾ یعنی رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه که طلاق ورکول نه غواړې نو کم از کم نصیحت ورته اوکړه، که په هغې کښې څه خیر وی نو یقینا ستا نصیحت به قبول کړی، په دې باندې هغه صحابی خاموش شو ګویا دا مشوره ئې خوښه کړه.

**په حدیث باندې یو سوال او د هغې جواب:**

دلته یو سوال دې هغه دا چه رسول اللهﷺ د طلاق مشوره دومره زر ولې ورکړه هغه خو بغض المباحات دې، جواب دا دې چه دا د طلاق مشوره امتحانا او تنبیها وه که ښځه دې خوښه نه وی او دهغې نه درته شکایت دې نو طلاق ورکړه، په دې باندې هغه اویریدلو او معذرت ئې اوکړو، رسول اللهﷺ دا کله غوښتله چه هغوی طلاق ورکړی، رسول اللهﷺ خو صرف تنبیها فرمائیلې وو، پس د رسول اللهﷺ په خبرداری باندې هغه بیدار شو ددې نه پس رسول اللهﷺ اصل او صحیح مشوره ورکړه کومه چه مقصودی وه، خبره دا ده چه د نعمت قدر هغه وخت وی کله چه هغه د لاس نه څی، سبحان الله! د رسول اللهﷺ څه د حکمت نه ډک تعلیمات دی.

قوله﴿ وَلاَ تَضْرِبْ ظَعِينَتَكَ كَضَرْبِكَ أُمَيَّتَكَ ﴾ ﴿ ظعینة ﴾ هودج اغوستلو والا زنانه ته وائی کومه چه عام طور سره حره وی، خو ددې اطلاق په مطلق زنانه باندې هم کیږی که هودج کښې وی او که نه وی امیة د امة تصغیر دې، ددې جملې مطلب دا شو چه خپله آزاده ښځه داسې مه وهئ څنګه چه وینځه وهلې شی، شارحینو لیکلې دی چه دا تشبیه د تقبیح دپاره ده، یعنی خپله آزاده ښځه هم څوک وهی، وهلې کیږی خو وینځه نه ښځه

(۱) وړاندې د ابوداؤد په کتاب الاضحیة کښې یو حدیث راروان دې ﴿ الفرع حق ﴾ چه دهغې په تفسیر کښې اختلاف دې، یو معنی د هغه حدیث دا بیان کړې شوې ده چه د ګډو بیزو عدد چه کله سل شی نو دهغې نه پس چه کوم بچې پیدا کیږی هغه دې ذبح کړې شی، دلته چه په حدیث کښې کوم صورت موجود دې هغه دې معنی ته نزدې دې فرق دادې چه فرع دا شوه چه بچې دې ذبح کړې شی او دلته غټه چیلئ مراد ده.

## د تخليل اصابع حكم او په دې كښې اختلاف:

﴿ قوله وَخَلِّلْ بَيْنَ الأَصَابِعِ ﴾ د تخليل اصابع مسئله مختلف فيه ده، د مالكيانو په نزد د اصابع يدين تخليل واجب دې او د اصابع رجلين مستحب دې، او د احنافو او شوافعو په نزد د اصابع رجلين او يدين دواړو تخليل مستحب دې الا اذا كانت الاصابع منضمة فحينئذ يحب التخليل..... او د امام احمدرحمه الله په دې كښې دوه اقوال دى يو د جمهورو په شان او هم دا د هغوى اصح قو ل دې څنګه چې چه په مغنى كښې ليكلې شوې دى، او دويم روايت د امام احمدرحمه الله نه دا دې چه تخليل اصابع مطلقا كه د يدين وى او كه د رجلين دواړه واجب دى.

﴿ وَبَالِغْ فِي الِاسْتِنْشَاقِ ﴾ دا د مسلك ظاهريه او د امام احمدرحمه الله د يو روايت دليل دې چه مضمضه او استنشاق واجب دى.

دلته يو سوال دې چه د حديث د ترجمة الباب سره څه مطابقت دې؟ په ترجمه كښې خو د استنثار ذكر دې او په حديث كښې د استنشاق، جواب دا دې چه اول خو په دې كښې اختلاف دې بعض وائى چه استنثار او استنشاق دواړه يو معنى لرى لكه چه په باب صفة الوضوء كښې په تفصيل سره تير شو، او كه دواړه مختلف اومنلې شى نو داسې به اووئيلې شى چه د ترجمة الباب اثبات په طريقه د قياس دې، دريم جواب دا هم كيدې شى چه په دې حديث كښې لفظ ﴿ اسبغ الوضوء ﴾ ذكر شوې دې، د اسباغ په عموم كښې ټول آداب او مستحبات راځى چه په هغې كښې استنثار هم داخل دې.

[١٣٣]() حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ كَثِيرٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ وَافِدِ بَنِي الْمُنْتَفِقِ، أَنَّهُ أَتَى عَائِشَةَ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، قَالَ: فَلَمْ يَنْشَبْ أَنْ جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَقَلَّعُ يَتَكَفَّأُ، وَقَالَ عَصِيدَةً: مَكَانَ خَزِيرَةٍ.

**ترجمه:** صبره چه دا وافد وو د بنى المنتفق، دا راغى عائشې ته، نو ذكر ئې كړه معنى د هغه حديث، هغه وائى: وخت تير نه شو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم راغى كلك كلك قدمونه ئې اخستل او ښې او كس اړخ ته مائل كيدو، اوائى وئيلو عصيدة په ځائې د خزيرة باندې.

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ الخ - فَلَمْ يَنْشَبْ أَنْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَتَقَلَّعُ يَتَكَفَّأُ ﴾ دا د لقيط بن صبرة د حديث دويم طريق دې، په اول طريق كښې د اسماعيل بن كثير نه روايت كونكې يحيى بن سليم وو، او دلته د هغوى نه روايت كونكې ابن جريج دې دا زيادت د ابن جريج په طريق كښې دې، په طريق سابق كښې نه دې، يعنى راوى وائى چه لږ ساعت نه وو تير شوې زمونږ كور ته په رسيدو كښې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم لږ ساعت پس تشريف راوړلو ﴿ يَتَقَلَّعُ يَتَكَفَّأُ ﴾ په دې كښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د رفتار كيفيت بيان كړې شوې دې هغه دا چه هغوى ډير په قوت سره قدم اوچتولو او وړاندې ټيت روان وو، د رسول

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١١٧٢) (صحيح)

الله ﷺ د رفتار په باره کښې هم دا راځي چه د هغوی چال تيز وو د زمکې نه به ئې خپې په قوت سره اوچتولې، او تواضعا به وړاندې ښکته کيدو سره روان وو ﴿ كانما ينحط في صبب ﴾ څنګه چې چه څوک د اوچت ځائې نه ښکته راکوزيږي.

وړاندې دويم فرق په دې روايت کښې دا دې چه د اول روايت الفاظ دا وو ﴿ فامرت لنا بخزيرة ﴾ او په دې کښې په ځائې د خزيرة ﴿ عصيدة ﴾ دې د په ترجمه تاسو داسې پوهه شئ چه غوښې والا دليه او حريره، او که بغير د غوښې نه وی نو هغې ته عصيدة وائی.

[۱۴۴]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِيهِ: إِذَا تَوَضَّأْتَ فَمَضْمِضْ.

**ترجمه:** ابن جريج ددې حديث بيان کړی دی، هغه وئيلی دي په دې کې: کله چه ته اودس کوې نو مضمضه کوه.

## بَاب تَخْلِيلِ اللِّحْيَةِ

### باب دی د خلال کولو د ګیرې

[۱۴۵]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ يَعْنِي الرَّبِيعَ بْنَ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمَلِيحِ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ زَوْرَانَ، عَنْ أَنَسٍ يَعْنِي ابْنَ مَالِكٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا تَوَضَّأَ أَخَذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَأَدْخَلَهُ تَحْتَ حَنَكِهِ فَخَلَّلَ بِهِ لِحْيَتَهُ، وَقَالَ: هَكَذَا أَمَرَنِي رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَالْوَلِيدُ بْنُ زَوْرَانَ: رَوَى عَنْهُ حَجَّاجُ بْنُ حَجَّاجٍ، وَأَبُو الْمَلِيحِ الرَّقِّيُّ.

**ترجمه:** د انس رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ وو چه کله به ئې اودس کولو، نو يو ورغوی اوبه به ئې راواخستې نو داخل به ئې کړې لاندې د زنې نه نو خلال به ئې کړه په هغې باندې ګيره، او وئې وئيل: دارنګه امر کړی دی ماته رب زما. وئيلی دي ابوداود: د وليد بن زوران نه حجاج بن حجاج او ابو المليح الرقي روايت کړی دی

**تشريح:** دلته دوه څيزونه دی يو خو وظيفه لحية يعنی په اودس کښې د ګيرې څه حکم دې، غسل يا مسح، دويمه مسئله هغه ده کومه چه مصنف رحمه الله ذکر فرمائی يعنی تخليل اللحية، حضرت شيخ ليکلی دی چه بعض شارحين ددې دوه مسئلو په بيان کښې خلط کوی په دې وجه په هره يوه باندې بيل بيل ځان پوهه کول پکار دی.

### په تخليل لحية کښې مذاهب ائمة:

په تخليل لحية کښې خو اختلاف دا دې چه د ائمة ثلاثه امام ابوحنيفه، امام شافعی او امام احمد رحمه الله په نزد په اودس کښې سنت او په غسل جنابت کښې واجب ده او د امام مالک رحمه الله نه په دې سلسله کښې ډير روايتونه دی مشهور دا دې چه تخليل لحية په اودس کښې مستحب نه دې، او په غسل کښې د هغوی نه دوه روايتونه دی، يو وجوب، دويم سنيت، او ابوثور او حسن بن صالح او د ظاهريه په نزد اودس او غسل دواړو کښې واجب دې.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۷۲) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۱۶۴۹)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۰ (۴۳۱) (صحيح)

زمونږ په نزد يو قول دا دې چه د تخليل لحية په اودس كښې سنت كيدل د امام ابويوسف رحمه الله او د جمهورو مسلک دې، او د طرفين په نزد سنت نه دې مستحب دې، بلکه تردې وئيلې شوې دی چه صرف جائز دې يعنى بدعت نه دې، او وجه ددې قول دا ده چه د تخليل لحية په سلسله كښې روايات ضعيف دی پس امام احمد او ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائی ﴿ ليس فيه شئ صحيح ﴾ يعنى په دې سلسله كښې څه صحيح حديث ثابت نه دې، خو زه وايم چه امام ترمذی رحمه الله د تخليل لحية په سلسله كښې د سيدنا عثمان بن عفان رضي الله عنه حديث ذكر فرمائيلې دې ﴿ ان النبی ﷺ كان يخلل لحيته ﴾ او هغوی ددې په باره كښې فرمائيلی ﴿هذا حديث حسن صحيح ﴾ بله دا چه دا حديث په صحيح ابن حبان او صحيح ابن خزيمة او مستدرک حاكم كښې هم موجود دې، لهذا د امام احمد او ابوحاتم رازی رحمهما الله قول محل د نظر دې، بله دا چه علامه زيلعی رحمه الله په نصب الرايه كښې د څوارلسو صحابه كرامو رضي الله عنهم نه د تخليل لحية روايات ذكر فرمائيلې دی، او امام ترمذی رحمه الله هم د وفی الباب لاندې د ډيرو صحابه كرامو رضي الله عنهم نومونه ذكر كړی دی.

څان پوهه كړه چه د تخليل لحية طريقه دا ده چه د زنې لاندې دې په ګيره كښې دننه ګوتې داخلې كړی د مسح په وخت تقاطر الماء من الاصابع شرط نه دې.

**وظيفه لحية يعنى د ګيرې حكم او په هغې كښې اختلاف:**

دويمه مسئله وظيفه لحيه ده يعنى د ګيرې حكم څه دې غسل يا مسح؟ جواب دا دې چه د لحية دوه قسمونه دی، خفيفه او كثه، لحيه خفيفه هغه ده چه په هغې كښې د مخ څرمن ښكاره كيږی دهغې حكم دا دې چه ﴿ يجب غسل ما تحتها ﴾ يعنى په داسې صورت كښې د مخ څرمن لوندول ضروری دی صرف د ګيرې لوندول كافی نه دی او كه لحية كثه (ګنړه ګيره) وی نو په دې كښې زمونږ په نزد اثنٔ اقوال دی، اصح قول ﴿ غسل جميع اللحية فرض ﴾ يعنى د مخ په څائې ټولې ګيرې لره وينځل فرض دی، خو ددې نه مراد هغه ګيره مراد ده كومه چه په مخ وی او د زنی لاندې وی، زوړنده حصه په دې كښې داخل نه ده دهغې وينځل نه ضروری دی او نه ئې مسح، په معارف السنن كښې په حواله د امام نووی رحمه الله د جمهور ائمه ثلاثه مذهب هم دا نقل كړې شوې دې.

په ګنړه ګيره كښې د اقوال ثمانيه نه زمونږ په نزد اصح قول هم دغه دې كوم چه مونږ پورته بيان كړو، باقی اووۀ اقوال مرجوح دی، هغه دادې:

(۱) مسح الكل، (۲) مسح الثلث، (۳) مسح الربع، (۴) مسح ما يلاقی البشرة، (۵) غسل الثلث، (۶)غسل الرابع (۷) عدم الغسل والمسح.

## بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْعِمَامَةِ

**باب دې په بيان د مسح كې په پټكې**

د مسح علی العمامة مسئله مشهوره او مختلف فيه بين الائمة ده، د ظاهريه او حنابله او ابوثور په نزد د مسح راس په څائې مسح علی العمامة جائز ده او كافی كيږی

څنګه چه مسح علی الخفين د غسل رجلين قائم مقام کيږي، د جمهور علماء ائمة ثلاثا په نزد صرف مسح علی العمامة کافي نه ده په دې سره د مسح فرض نه ادا کيږي.

خو دويمه مسئله دلته دا ده چه دا مسح علی العمامة نه سنت استيعاب هم حاصليدې شي او که نه؟ يعني په اندازه د فرض مسح په سر باندې اوکړې شي او د سنت استيعاب حاصلولو دپاره دې باقي مسح په عمامه باندې اوکړې شي پس د شوافعو په نزد په مسح علی العمامة سره سنت استيعاب حاصليدې شي او هم دا حکم د هغوی په نزد د ټوپۍ هم دې، پس امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې تصريح کړې ده چه مسح علی العمامة او مسح علی القلنسوة سره استيعاب حاصليږي، که لبس علی الطهارة وی يا نه وی، ددې مسئلې تصريح په کتب احناف کښې موجود نه ده خو د حضرت ګنګوهی کلام په الکوکب الدری کښې ددې د جواز طرف ته مشير دې، يعني د سنت استيعاب د تحصيل دپاره مسح علی العمامة جائز ده، مالکيان فرمائی چه مسح علی العمامة بغير د عذر نه جائز نه ده او نه په دې فرض ادا کيږي نه سنت استيعاب، خو که د څه عذر د وجې نه وی مثلا په سر کښې زخم دې يا بل څه بيماری ده زکام وغيره چه دهغې د وجې نه سر ښکاره کول او عمامه لرې کول ګران وی نو په دې صورت کښې د هغوی په نزد مسح په عمامة باندې جائز ده لکه چه مسح کولې شی په پټۍ باندې.

## د قائلين مسح علی العمامة په نزد د دې شرطونه:

دويمه خبره دا ده چه کوم خلق د مسح علی العمامة د جواز قائل دی، لکه حنابله د هغوی په نزد ددې دپاره څه شرطونه هم دی چه بغير دهغې نه مسح علی العمامة صحيح نه ده، اول دا چه لبس اعلی طهارة وی يعني د اودس او طهارت نه پس ئې عمامه وهلې وی، دويم شرط دا دې چه عمامه ساتر لجميع الراس وی، دريم شرط دا دې چه په صفت د عمائم المسلمين وی يعني څنګه چه مسلمانان عمامه تړی هم دغه شان تړلې شوې وی چه دهغې تفسير دا دې چه عمامه محنک يا شملې والا وی، څلورم شرط توقيت دې يعني څنګه مسح علی الخفين موقت ده په موده کښې دننه ئې کولې شې دهغې نه پس نه، هم دغه شان مسح علی العمامة هم.

## د حديث مسح علی العمامة توجيهات:

اوس پاتې شوه مسئله د دلائلو چه د مسح علی العمامة احاديث په صحاح ستة کښې موجود دې او که نه او په سنن اربعه کښې ددې په باره کښې مستقل ترجمة الباب هم قائم کړې شوې دې، خو امام بخاری رحمه الله په خپل صحيح کښې او امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې په دې باندې هيڅ مستقل باب نه دې تړلې، مولانا انور شاه کشميری رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله اګرچه د حديث مسح علی العمامة تخريج کړې دې، خو هغوی په دې باندې مستقل ترجمة قائم کړې نه ده عليه السلام چه دهغې نه معلوميږي چه مسح علی العمامة د هغوی په نزد ضعيف ده، هغوی فرمائی زما تجربه دا ده چه د امام بخاری رحمه الله عادت دې چه کله يو حديث د هغوی په نزد قوی وی او په هغې کښې داسې يو لفظ وی چه د هغوی پکښې تردد

وی نو په داسې موقعه باندې امام بخاری رحمه الله داسې کوی چه هغه حدیث خو ذکر کړی خو په کوم کښې ئې چه تردد وی په هغې باندې باب نه قائموی، لهذا د امام بخاری رحمه الله د عمل نه معلومیږی چه د هغوی په مسح علی العمامة په جواز کښې تردد دې.

د مسح علی العمامة د روایاتو د جمهورو د طرف نه ډیر جوابونه کړې شوې دی ١: دا احادیث معلل دی کما قاله مولانا عبدالحیٔ قلت لکن قال ابن العربی صحیحة لا غبار علیها ٢: امام محمد رحمه الله موطاء کښې فرمائی ﴿ بلغنا ان المسح علی العمامة کان ثم ترک ﴾ یعنی مسح علی العمامة په شروع کښې وه بیا منسوخ شوه، : په حدیث کښې د راوی د طرف نه اختصار واقع شوې دې په بعض صحیح روایاتو کښې د مسح علی العمامة سره مسح علی الناصیة هم ذکر شوې ده لکه چه د مغیره بن شعبه رضی الله عنه په حدیث کښې دی کوم چه هم په دې کتاب کښې په باب المسح علی الخفین کښې راځی چه دهغې الفاظ دا دی ﴿ کان یمسح علی الخفین وعلی ناصیته وعلی عمامته ﴾ بله دا چه په مسلم کښې هم دا الفاظ موجود دی، لهذا دا به وئیلې شی چه په ناصیه باندې مسح اوکړه رسول الله صلی الله علیه وسلم په طور د فرض او دهغې سره ئې په عمامه باندې اوکړه د سنت استیعاب د حصول دپاره، ۴: د عمامه نه مراد ما تحت العمامة دې، حال وئیلو سره محل مراد اخستلې شوې دې د اطلاق اسم الحال علی المحل د قبیل نه دې، پس هم د دې باب په دویم حدیث کښې د انس رضی الله عنه روایت راروان دې ﴿ فادخل یده من تحت العمامة ﴾ یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم بغیر د عمامه د کوزولو نه په عمامه کښې دننه لاس داخل کړو او د سر مبارک مسح ئې اوکړه، ۵: رسول الله صلی الله علیه وسلم به د سر د مسح کولو نه پس عمامه برابر کړې وی ﴿ فظن التسویة مسحا ﴾ چه دهغې نه کتونکی د لرې نه دا اوګنړله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مسح کوی، ۶: قاضی عیاض مالکی رحمه الله وغیره د خپل مسلک مطابق دا جواب ورکړې دې چه کیدې شی رسول الله صلی الله علیه وسلم مسح علی العمامة د یو داسې عذر د وجې نه کړې وی کوم چه د کشف راس نه مانع وو، لهذا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په عمامه باندې مسح کول په شان د مسح دې په جبیره باندې، ۷: د مسح راس ثبوت قطعی دې، لهذا هغه د اخبار احاد د وجې نه نشی ترک کولې کوم چه محتمل دی، او مسح عمامة په مسح علی الخفین باندې قیاس کول صحیح نه دی ځکه چه د مسح علی الخفین په سلسله کښې روایات حدیثیه شهرت بلکه تواتر ته رسیدلې دی، یو فرق بل هم دې هغه دا چه غسل رجلین بغیر د نزع خفین نه ممکن نه دې په خلاف د عمامه چه بغیر د نقض عمامه نه مسح کیدې شی غرض دا چه هلته حرج دې او دلته حرج نشته، او! استیعاب د سر په مسح کښې صرف سنت دې فرض نه دې، لهذا سنت په دې سره حاصلیدې شی، زمونږ د حضرت شیخ رحمه الله په نزد هم دا آخری جواب زیات صحیح دې.

[۱۴۶](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ ثَوْرٍ، عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: "بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً فَأَصَابَهُمُ الْبَرْدُ، فَلَمَّا قَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهُمْ أَنْ يَمْسَحُوا عَلَى الْعَصَائِبِ وَالتَّسَاخِينِ".

**ترجمه**: د ثوبان نه روایت دي هغه وائي: ولیږله رسول الله ﷺ یوه سریه، نو هغوی ته یخني ورسیده، هرکله چه دوی واپس شو رسول الله ﷺ ته نو امر ئې اوکړو دوی ته چه مسح اوکړي په پټکو او په موزو باندې.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ الخ قوله بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- سَرِيَّةً ﴾ یعنی رسول الله ﷺ یو ځل یو دسته (وړوکي شان لښکر) د جهاد دپاره اولیږلو، ددې اصحاب سریة په دې سفر کښې یخنی اوشوه، چه کله مدینې طیبې ته درسول الله ﷺ په خدمت کښې د هغوی واپسی اوشوه ﴿ امرهم ان يمسحوا على العصائب والتساخين ﴾ یعنی رسول الله ﷺ هغوی ته حکم اوفرمائیلو چه د خپو په ځائې مسح على الخفين او په ځائې د مسح راس مسح على العمامة اوکړي.

﴿سرية ﴾ وائي د لښکر یوې حصې ته یعنی د لښکر یوه ټکړه او حصه چه دهغې تعداد کم از کم پنځه او زیات نه زیات درې سوه وی او وئیلې شوې دی چه څلور سوه، پس وئیلې شی ﴿خير السرايا اربعمائة رجل ﴾.... عصائب جمع د عصابة ده چه دهغې نه مراد پټکې دې، او تساخین جمع د تسخان ده یا تسخین ده، هغه څیز چه په هغې باندې خپې ګرمولې شی یعنی موزې.

په شروع کښې جوابات کړې شوې دی چه ددې تعلق د مطلق احادیث مسح على العمامه سره دې او خاص ددې حدیث دوه جوابونه کړې شوې دی، شیخ ابن الهمام رحمه الله فرمائی چه ﴿مخصوص بهذه السرية ﴾ یعنی دا حکم ددې سریه سره خاص دې، علامه عینی رحمه الله فرمائی ﴿المراد ما تحت العصائب ﴾ یعنی په حدیث کښې د عصائب نه مراد ما تحت العصائب مراد دې، حال وئیلو سره محل مراد اخستې شوې دې.

[۱۴۷](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي مَعْقِلٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ قِطْرِيَّةٌ، فَأَدْخَلَ يَدَهُ مِنْ تَحْتِ الْعِمَامَةِ فَمَسَحَ مُقَدَّمَ رَأْسِهِ وَلَمْ يَنْقُضِ الْعِمَامَةَ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دې، هغه وائي: ما ولیده رسول الله ﷺ چه اودس ئې کولو او په هغه باندې قطري پټکی وو، نو داخل ئې کړو خپل لاس لاندې د پټکې نه د سر مخکنۍ حصه ئې مسح کړه او پټکی ئې کولاو نه کړو.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۰۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۷۷/۵) (صحيح)

(2): سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۹ (٥٦٤)، (تحفة الأشراف: ۱۷۲۵) (ضعيف)

## بَابُ غَسْلِ الرِّجْلَيْنِ
### باب دې په بيان د وينځلو د خپو کې

د باب اسباغ الوضوء د لاندې يو حديث تير شوې دې ﴿ ويل للاعقاب من النار ﴾ هلته مونږ بيان کړې وو چه ددې حديث نه معلوميږي چه غسل رجلين ضروري دې، او دا چه په دې باندې به مونږ کلام په باب غسل الرجل کښې کوو، پس هغه باب راغلو.

**په وظيفه د رجلين کښې مذاهب علماء :**

د وظيفه رجلين په باره کښې څلور مذهبونه مشهور دی:

۱: د ائمه اربعه په نزد د رجلين حکم غسل دې،

۲: د فرقه اماميه په نزد وظيفه رجلين مسح ده، بلکه هغوی تر دې پورې وائی چه غسل جائز نه دې،

۳: د حسن بصری، محمد بن جرير طبری، او ابو علی جبائی په نزد تخيير بين الغسل والمسح دې،

۴: د اهل ظواهرو په نزد جمع بين الغسل والمسح ضروری ده.

**(د محمد بن جرير طبری نوم والا دوه کسان دی):**

خو ځان پوهه کړه چه محمد بن جرير الطبری دوه دی، يو هم هغه د چا تفسير چه مشهور او معروف دې دا خو دې د اهل سنت والجماعت نه، او يو ابن جرير د اهل تشيع نه دې، او دا دواړه صاحب تفسير دی، د حافظ ابن القيم رحمه الله رائې دا ده چه ابن جرير طبری کوم چه د مسح رجلين قائل دې دا ابن جرير سنی نه دې بلکه ابن جرير شيعی دې، مولانا يوسف بنوری په معارف السنن کښې دا خبره ليکلو سره د ابن القيم رحمه الله د خيال تائيد نه دې فرمائيلې بلکه ليکلې ئې دی چه د ابن جرير سنی کلام هم په دې سلسله کښې موهم دې، بله دا چه قاضی ابوبکر بن العربی په شرح ترمذی کښې هم ددې ابن جرير سنی طرف ته د تخير بين الغسل والمسح قول منسوب کړې دې، حافظ ابن کثير رحمه الله دا مسئله نوره هم زيات صفا او واضحه ليکلې ده.

پاتې شوه مسئله د دلائلو پس ځان پوهه کړه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د غسل رجلين په سلسله کښې احاديث مشهوره او متواتر دی او د بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم لکه علی او ابن عباس رضی الله عنهما نه چه کوم جواز د مسح منقول دې دهغې نه رجوع هم ثابت ده، عبدالرحمن بن ابی ليلی فرمائی ﴿ اجمع اصحاب رسول الله صلی الله عليه وسلم علی غسل الرجلين ﴾ او د امام طحاوی او ابن حزم ظاهری رحمهما الله رائې دا ده چه د کومو احاديثو نه مسح رجلين مستفاد کيږی هغه منسوخ دی، او امام ترمذی رحمه الله په ﴿ ويل للاعقاب من النار ﴾ حديث نه په وجوب غسل باندې استدلال کړې دې.

**د مجوزين مسح استدلال د قراءت جر نه او د هغې جوابات :**

د مجوزين مسح استدلال په آيت وضوء کښې د ﴿ وارجلکم ﴾ د قراءت جر نه هم دې، جمهور علماء کرامو ددې ډير جوابونه کړی دی.

۱: قراءت نصب معارض دې د قراءت جر يعني که د قراءت جر تقاضا د جواز مسح رجلين ده نو د قراءت نصب تقاضا وجوب غسل الرجلين ده او دوه قراءتونه په حکم کښې د دوه مستقل آيتونو وی، لهذا غوره دا ده چه دواړه قراءتونه دې په دوه حالتونو باندې محمول کړې شی، قراءت جر دې چه دهغې تقاضه مسح ده په حالت تخفيف باندې، او قراءت نصب دې په حالت تجرد قدمين باندې.

۲: ابو علي فارسی وائی چه د مسح اطلاق غسل خفيف باندې هم کيږی پس وئيلې شی ﴿ تمسح للصلوة ای توضا ﴾

۳: علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه په قراءت نصب باندې عمل کولو سره جر هم معمول بها کيدی شی ځکه چه غسل متضمن دې مسح لره، په خلاف د قراءت جر چه په دې باندې عمل کولو سره د قراءت نصب متروک کيدل لازميږی.

۴: په ﴿ وارجلکم الی الکعبين ﴾ جر د جوار دپاره دې يعنی د ګاونډ په رعايت کښې منصوب مجرور اولوستلې شو او په حقيقت کښې دا منصوب دې، په کلام عرب کښې جر جوار يو مشهور څيز دې، وئيلې شی ﴿ عذاب يوم اليم ﴾ اليم مجرور لوستلې شی حال دا چه د عذاب د صفت کيدو د وجې نه مرفوع کيدل پکار دی، هم دغه شان ﴿ جحر ضب خرب ﴾ کښې خرب مجرور دې د جر جوار د وجې نه ګيني فی الواقع مرفوع دې، په ترکيب کښې د جحر صفت واقع شوې دې.

په دې جواب باندې فريق مخالف يو اعتراض کړې دې چه جر جوار د عطف په صورت کښې نه وی، پس تاسو چه څومره مثالونه پيش کړل هغه بغير د عطف نه دی، او دلته په آيت الوضوء کښې حرف عطف موجود دې، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا اشکال د قلت تتبع د وجې نه دې ګينې په کلام د عربو کښې جر جوار د حرف عطف سره هم راځی، د معلقه مشهور شعر دې!

فظلّ طُهاةُ اللّحمِ من بَينِ مُنضِجٍ صَفيفَ شِواءٍ اَوْ قَديرٍ مُعَجَّل[1]

د قدير عطف په صفيف باندې دې کوم چه منصوب دې، لهذا فی الواقع قدير منصوب دې خو د ګاونډ د رعايت د وجې نه په لفظ قدير باندې جر راوړلې شوې دې، اوګورئ دلته جر جوار د حرف عطف سره موجود دې.

د قدير معنی ده په کټوئ کښې پخه کړې شوې غوښه، اود صفيف شواء مطلب دې د غوښې هغه ټکړې (پوټی) چه هغه په ګرم کانړی (تبخی) باندې وريته کړې شوې وی.

۵: يو جواب دا کړې شوېدې چه ﴿ وارجلکم ﴾ کښې جر والا قراءت د ﴿ علفتها تبنا وماء باردا ﴾ د قبيل نه دې يعنی داسې دوه افعال کوم چه متقارب المعنی وی په هغې کښې د يو په ذکر باندې اکتفاء کولې شی او دويم حذف کولې شی پس په دې جمله کښې اصل

[1] د ښکار غوښې پخونکې دوه قسمه شوې بعض ئې په کټوئ کښې پخوی او بعض په ګرم کانړی باندې غوښې لره روټونکې دی.

عبارت داسې دې ﴿ علفتها تبنا وسقيتها مآء باردا ﴾ ځکه چه اوبه څکلې شی خوړلې نه شی خو چونکه اکل او شرب دا دواړه فعل متقارب المعنی دی په دې وجه د یو فعل په ذکر باندې اکتفاء اوکړې شوه، هم دغه شان په دې آیت کرمه کښې هم ده چه مسح اوکړئ د سرونو او د خپو او مراد دا دې چه مسح اوکړئ د سرونو او غسل اوکړئ د خپو ځکه چه اصل عبارت داسې دې ﴿ وامسحوا برؤسکم واغسلوا ارجلکم ﴾ ځکه چه مسح او غسل متقارب المعنی وو په دې وجه د یو په ذکر باندې اکتفاء اوکړې شوه.

[۱۴۸]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ يَدْلُكُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهِ".

**ترجمه:** د مستورد بن شداد نه روایت دې هغه وائی: ما اولیدلو رسول الله ﷺ چه کله ئې اودس کولو نو مړلې ئې ګوتې د خپو په کچه ګوته خپله.

**تشریح:** ﴿حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الخ – قوله يَدْلُكُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهِ ﴾ ددې حدیث نه مصنف رحمه الله په غسل رجلین باندې استدلال کړې دې، ځکه چه د اصابع رجلین تخلیل او دا مبالغه غسل د رجلین لره متقاضی دې، ځکه چه د مسح بناء خو په تخفیف باندې وی، هلته داسې مبالغه چرته مطلوب وی.

## بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

### باب دې په بیان د مسح کې په موزو باندی

(**ترتیب ابواب**):
مسائل د اودس او دهغې د احکامو بیان خو ختم شو اوس دغسل نمبر دې، خو مصنف رحمه الله مسح علی الخفین په غسل باندې ځکه مقدم کړه چه دا د توابع وضوء نه دې د غسل سره ددې هیڅ تعلق نشته بالاجماع د اودس سره خاص دې، بله دا چه مصنف رحمه الله مسح علی الخفین په تیمم باندې مقدم کړه ځکه چه تیمم خلیفه دې د ټول اودس او مسح علی الخفین نائب دې د اودس د جزء او جزء مقدم وی په کل باندې.

علماء کرامو لیکلې دی چه مسح علی الخفین ددې امت د خصائصو نه ده څنګه چې د رسول الله ﷺ د حدیث نه معلومیږی ﴿ صلوا فی خفافکم فان الیهود لا یصلون فی خفافهم ﴾ په روضة المحتاجین کښې لیکلې دی چه د مسح علی الخفین مشروعیت په ۹ هجری کښې په غزوه تبوک کښې شوې دې، امام نووی رحمه الله فرمائی چه په اجماع کښې چه د کومو خلقو قول معتبر کیدې شی د هغوی ټولو په دې باندې اتفاق دې چه مسح علی الخفین مطلقا جائز ده که سفر وی که حضر وی، که د څه ضرورت د وجې نه وی او که بې ضرورته وی، او په دې کښې ښځې او سړی ټول برابر دی، صرف شیعه ګانو او خوارجو ددې انکار کړې دې خو د هغوی اختلاف قابل شمار نه دې، او د امام مالک رحمه الله نه په دې سلسله کښې مختلف

(): سنن الترمذي/الطهارة ۳۰ (۴۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۴ (۴۴۶)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۵۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۹/۲) (صحیح)

روايات دی د هغوی هم مشهور مذهب هم هغه دې کوم چه د جمهورو دې، بله دا چه هغوی فرمائی چه مسح علی الخفين د بيشميره صحابه کرامو رضی الله عنهم نه منقول ده امام حسن بصری رحمه الله فرمائی: حدثنی سبعون من اصحاب رسول الله ﷺ ان رسول الله ﷺ كان يمسح على الخفين.

## د امام مالک رحمه الله د مسلک تحقيق:

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې د ابن عبد البر رحمه الله نه نقل کړې دی چه په فقهاء کرامو کښې د يو فقيه نه هم سوا د امام مالک رحمه الله نه د مسح علی الخفين انکار منقول نه دې، او روايات صحيحه د امام مالک رحمه الله نه هم دده په اثبات کښې دی، امام شافعی رحمه الله هم په کتاب الام کښې د مالکيانو په دې قول باندې نکير فرمائيلې دې بيا حافظ فرمائی چه اوس د مالکيانو دوه اقوال مشهور دی اول مطلقا د جواز، دويم د مسافر دپاره د جواز او د مقيم دپاره د عدم جواز، هغوی فرمائی چه د مدونة د عبارت مقتضی د قول ثانی دې، خو قاضی ابوالوليد باجی مالکی رحمه الله قول اول يعنی مطلقا جواز ته صحيح وئيلې دې، او علامه باجی دا هم فرمائی چه امام مالک رحمه الله به د مسح علی الخفين په باره کښې توقف کولو او عام فتوی به هغوی د جواز ورکوله.

حضرت شيخ په اوجز کښې ليکلې دی چه د امام مالک رحمه الله موطاء شاهد عدل دې په دې خبره باندې چه هغوی سفرا او حضرا د مسح علی الخفين قائل وو، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د حفاظ حديث يو جماعت دده خبرې تصريح کړې ده چه د مسح علی الخفين ثبوت متواتر دې، وئيلې شوې دی چه دده راويان د اتيا صحابه کرامو رضی الله عنهم نه زيات دی چه په هغوی کښې عشره مبشره هم داخل دی، ابن المبارک رحمه الله فرمائی چه د مسح علی الخفين په باره کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم هيڅ اختلاف نه دې منقول، او که د بعض صحابه کرامو لکه علی او ابن عباس رضی الله عنهم نه دده انکار منقول دې نو د هغوی نه دده اثبات هم منقول دې.

په اوجز کښې ليکلې دی چه امام مالک رحمه الله او هم دغه شان د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د اهل سنت والجماعت د علاماتو په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائيل ﴿ان تفضل الشخين وتحب الختنين وتمسح على الخفين﴾ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دا هم منقول دی چه ﴿ما قلت بالمسح حتى جاءنی فيه مثل ضوء النهار﴾ يعنی زه تر هغه وخته پورې د مسح علی الخفين قائل نه شوم تر څو چه په دې سلسله کښې دلائل د رڼا ورځ په شان واضح نه شو.

شيعه ګان کوم چه دده منکر دی هغوی وائی چه سيدنا علی رضی الله عنه د مسح علی الخفين قائل نه وو، چه کله د هغوی نه دې باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائيل ﴿سبق الکتاب الخفين﴾ يعنی د قرآن کريم حکم په مسح علی الخفين باندې غالب دې دده جواب دا دې چه د علی رضی الله عنه دا قول په سند متصل سره ثابت نه دې.

او خوارج وائی چه مسح علی الخفين د کتاب الله خلاف ده دده جواب ښکاره دې چه اول خو په دې سلسله کښې روايات حد تواتر ته رسيدلی دی، دده په ذريعه د کتاب الله په حکم کښې ترميم کيدلې شی، دويم دا وئيل هم غلط دی چه د کتاب الله خلاف دې ځکه چه په آيت وضوء کښې د رجلين په باره کښې دوه قراءتونه دی يو د نصب او بل د جر،

او مسح علی الخفین د قراءت جر مطابق دي.
اصل کښې بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم ته هغه وخته پورې تردد وو ترڅو چه ئې په علم کښې نه وه راغلې چه رسول الله ﷺ د نزول مائده (آیت وضوء) نه پس هم مسح علی الخفین کړې ده، چه کله هغوی ته ددې علم اوشو نو بیا ئې تردد هم ختم شو لکه چه په حدیث د جریر کښې وړاندې راغلي.
دلته یو اختلافي مسئله بله ده چه مسح علی الخفین افضل ده که غسل رجلین؟ ابن قدامه په مغنی کښې لیکلې دی چه د امام احمد رحمه الله نه روایت دې چه مسح افضل ده د غسل رجلین نه ځکه چه رسول الله ﷺ او دغه شان د هغوی صحابه کرامو رضي الله عنهم طالب فضل وو نو هر کله چه هغوی د غسل په ځائې مسح اختیار کړه نو معلومه شوه چه فضیلت هم په دې کښې دې، هغوی لیکی چه هم دا مذهب د امام شافعی او د اسحق بن راهویه دې ځکه چه درسول الله ﷺ نه روایت دې چه هغوی اوفرمائیل ﴿ان الله یحب ان یوخذ برخصه﴾ د الله پاک دا خبره خوښه ده چه د هغه رخصتونه قبول کړی شي (کذا فی المغنی) خو زه وایم چه ما په کتب شافعیه کښې اوکتل هغوی لیکلې دی چه الافضل غسل پس امام نووی رحمه الله فرمائی غسل افضل دې په دې شرط چه ترک مسح په طریقه د اعراض عن السنة نه وی او د امام مالک رحمه الله په نزد هم غسل افضل دې او د احنافو مذهب په مراقی الفلاح کښې دا لیکلې شوې دې چه که یو سړې سره د جواز مسح د اعتقاد نه مشقت برداشت کړی او موزې ویستلو سره خپلې خپې وینځی نو هغه ته به د عزیمت ثواب زیاتی ملاویږی، ځکه چه غسل په نسبت د مسح اشق او اصعب دې، او د امام شعبی رحمه الله رائې دا ده چه مسح افضل ده، ابن المنذر رحمه الله فرمائی چه دا مسئله اګرچه د علماء کرامو په مینځ کښې اختلافی ده خو زما په نزد مسح افضل ده ځکه چه اهل بدع یعنی خوارج او روافض د سنیت مسح انکار کوی، لهذا د هغوی په مخالفت کښې به مسح اختیارول اولی وی.

[۱۳۹](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي عَبَّادُ بْنُ زِيَادٍ، أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَاهُ الْمُغِيرَةَ يَقُولُ: "عَدَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا مَعَهُ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ قَبْلَ الْفَجْرِ، فَعَدَلْتُ مَعَهُ، فَأَنَاخَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَبَرَّزَ، ثُمَّ جَاءَ فَسَكَبْتُ عَلَى يَدِهِ مِنَ الْإِدَاوَةِ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ، ثُمَّ حَسَرَ عَنْ ذِرَاعَيْهِ فَضَاقَ كُمَّا جُبَّتِهِ فَأَدْخَلَ يَدَيْهِ فَأَخْرَجَهُمَا مِنْ تَحْتِ الْجُبَّةِ فَغَسَلَهُمَا إِلَى الْمِرْفَقِ، وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ، ثُمَّ تَوَضَّأَ عَلَى خُفَّيْهِ، ثُمَّ رَكِبَ، فَأَقْبَلْنَا نَسِيرُ حَتَّى نَجِدَ النَّاسَ فِي الصَّلَاةِ قَدْ قَدَّمُوا عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ فَصَلَّى بِهِمْ حِينَ كَانَ وَقْتُ الصَّلَاةِ، وَوَجَدْنَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ وَقَدْ رَكَعَ بِهِمْ رَكْعَةً مِنْ صَلَاةِ الْفَجْرِ، فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَفَّ مَعَ الْمُسْلِمِينَ فَصَلَّى وَرَاءَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ الرَّكْعَةَ الثَّانِيَةَ، ثُمَّ سَلَّمَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ، فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاتِهِ، فَفَزِعَ الْمُسْلِمُونَ

(1): صحيح البخاري/الوضوء ۳۵(۱۸۲)، ٤٨ (٢٠٣)، ٤٩ (٢٠٦)، المغازي ٨١ (٤٤٢١)، اللباس ١١ (٥٧٩٩)، صحيح مسلم/الطهارة ٢٣ (٢٧٤)، سنن النسائي/الطهارة ٦٣ (٧٩)، ٦٦ (٨٢)، ٩٦ (١٢٤)، ٩٧ (١٢٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٤ (٥٤٥)، (تحفة الأشراف: ١١٥١٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ٨ (٤١)، مسند احمد (٤/٢٤٩، ٢٥١، ٢٥٤، ٢٥٥)، سنن الدارمي/الطهارة ٤١ (٧٤٠) (صحيح)

فَأَكْثَرُوا التَّسْبِيحَ لِأَنَّهُمْ سَبَقُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّلَاةِ، فَلَمَّا سَلَّمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُمْ: قَدْ أَصَبْتُمْ، أَوْ قَدْ أَحْسَنْتُمْ".

**ترجمه:** ابو المغيره وئيلي دي : مائل شو رسول الله ﷺ او زه ورسره ووم په غزا د تبوک کښې مخکښې د سحر (فجر) نو ما هم ورسره ميلان اوکړو، نو چو کړه نبي ﷺ اوښه خپله نو قضاء حاجت ئې اوکړو، بيا راغې نو ما ورته اوبه واچولې د لوښي نه، نو دواړه ورغوي ئې وينځل، بيا ئې مخ وينځلو، بيا ئې دواړه ليچې ښکاره کړې، تنګ وو لستونړې د جبيې د هغه، دواړه لاسونه ئې داخل کړل نو راويستل لاندې د جبې نه، نو دواړه ئې اووينځل تر څنګلو پورې، او مسح ئې اوکړه په سر بيا ئې مسح اوکړه په موزو باندې، بيا سور شو، نو مونږ هم راروان شو تردې چه مونږ خلک بياموندل په مانځه کښې چه مخکښې کړی ئې وو عبد الرحمن بن عوف، نو مونځ ئې اوکړو کله چه د مانځه وقت وو او مونږ بياموندلو عبد الرحمن چه کړی وو هغوی ته يو رکعت د سحر د مونځ نه، نو پاڅيدو رسول الله ﷺ نو په صف کښې ودريدو د مسلمانانو سره وروسته د عبد الرحمن بن عوف نه په دويم رکعت کښې، بيا ئې سلام وګرځولو عبد الرحمن، نو پاڅيدو رسول الله ﷺ په مانځه کښې نو مسلمان ويريدل نو زياته تسبيح ئې اووئيله ځکه دوی د نبي ﷺ نه مخکښې شو په مانځه سره، هر کله چه سلام وګرځولو رسول الله ﷺ نو وئې وئيل دوی ته، يقيناً تاسو ورسيدئ حق ته، او يا تاسو ښه اوکړل.

### مضمون حديث :

۱: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ الخ – عَدَلَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم ﴾ د عدول نه مراد د قطار نه وتل دی، دستور په هغه وخت کښې دا وو چه د مسافرو قافله به په سفر کښې قطار ترلو سره تله، بيا به چه کوم مسافر ته د قضاء حاجت وغيره ضرورت پيښ شو نو هغه به د قطار نه وتلو دلته هم دا خبره مغيره بن شعبه ﷺ بيان فرمائی چه رسول الله ﷺ د استنجاء د ضرورت په وجه د قطار نه بهر راوتلو، هغوی فرمائی چه دا د غزوه تبوک واقعه ده د صبح صادق نه مخکښې دا کار شوې دې ﴿ فعدلت معه ﴾ يعنې چه کله هغوی د قطار نه بيل شو نو زه پوهه شوم چه هغوی د څه ضرورت د وجې نه د قطار نه بيل شوې دی لهذا د خدمت دپاره زه هم د قطار نه بيل شوم او د هغوی ملګرې شوم پس هغوی د استنجاء دپاره لرې تشريف يوړلو او بيا د استنجاء نه فارغ کيدو سره ئې تشريف راوړلو نو ما رسول الله ﷺ له اودس اوکړو او په لوښی سره مې د هغوی په اندامونو مبارکو باندې اوبه واچولې، چه کله د لاس د وينځلو وخت راغلو نو هغوی د خپلې جبې لستونړې پورته خيژول اوغوښتل، خو هغه د تنګوالی د وجې نه پورته او نه ختل په دې وجه هغوی خپل دواړه لاسونه مبارک د جبې د دننه طرف نه بهر راويستل، او چونکه هغوی په دې موقع باندې لابس خفين وو په دې وجه رسول الله ﷺ مسح علی الخفين اوفرمائيله، راوی فرمائی چه ددې نه پس د ضروورياتو د فارغ کيدو نه پس مونږ خلق په سورلئ باندې سوريدو او سره چه کوم طرف ته قافله روانه وه هغه طرف ته روان شو، چه کله د قافلې سره مونږ يو ځائې شو نو او مو کتل چه هغه خلقو د

مونځ د وخت کیدو په وجه باندې عبدالرحمن بن عوفؓ د امامت دپاره مخکښې کړې دې او زمونږ د رسیدو پورې یو رکعت شوې وو، رسول اللهﷺ په جماعت کښې شریک شو، د امام سره ئې یو رکعت ادا اوفرمائیلو او دویم رکعت ئې د امام د فارغ کیدو نه پس د قاعدې مطابق ادا اوفرمائیلو.

مونځ کونکو په دې لیدو باندې چه مونږ خلقو بل لره په امام جوړولو کښې پیش قدمی اوکړه اویریدل او بار بار ئې تسبیح وئیل شروع کړل، چه کله رسول اللهﷺ خپل مونځ پوره کولو سره سلام اوګرځولو نو خلقو ته ئې اوفرمائیل ﴿ قد اصبتم ﴾ یا ﴿ قد احسنتم﴾ یعنی تاسو چه څه اوکړل ښه مو اوکړل په دې کښې د خفګان او افسوس څه خبره نشته.

## د سنن ابوداؤد او د موطاء د روایت تعارض :

د ابوداؤد ددې روایت نه معلومیږی چه د صحابه کرامو﷢ دا تسبیح لوستل د مانځه د فراغت نه پس وو او د موطاء د روایت نه معلومیږی چه دا تسبیح لوستل هغه وخت وو چه کله رسول اللهﷺ هلته اورسیدلو، او ظاهره هم دا معلومیږی چه مونځ کونکو د رسول اللهﷺ په رارسیدلو باندې د خپل امام د متوجه کولو دپاره په مانځه کښې تسبیح لوستلې وی چه هغه شاته شی، پس په روایت کښې راځی چه عبدالرحمن بن عوفؓ د روستو کیدلو اراده فرمائیلې وه، خو د رسول اللهﷺ په اشاره باندې هغوی خپله اراده ملتوی کړه او مونځ ئې ورکړو.

دلته جمع بین الروایتن هم ممکن ده، کیدې شی چه په دواړو وختونو کښې ئې تسبیح لوستلې وی، په شروع کښې خو د امام د خبرولو دپاره، او د مونځ نه چه فارغ شو نو د اظهار افسوس او دَ خفګان په طور، والله اعلم بالصواب.

په دې قصه کښې مسح علی الخفین مذکور ده، او دا واقعه د تبوک ۹ هجری ده او سورة المائده چه په هغې کښې د غسل رجلین حکم مذکور دې دهغې نزول ډیر مخکښې په غزوۀ د بنو المصطلق ۵ یا ۴ هجری کښې شوې وو، لهذا ددې نه معلومه شوه چه د رسول اللهﷺ مسح علی الخفین فرمائیل د نزول مائده نه هم روستو دی، په دې سره د بعض صحابه کرامو﷢ تردد مرتفع کیږی چه معلومه نه ده چه د رسول اللهﷺ د نزول مائده نه پس مسح علی الخفین کړې ده او که نه؟ لکه چه وړاندې په حدیث د جریر کښې هم راځی.

## د عبدالرحمن بن عوف او د صدیق اکبر﷠ د امامت دوه مختلف قصې :

دلته یو علمی سوال دې، چه څنګه دلته د امامت عبدالرحمنؓ قصه پیښه شوه، هم دغه شان یو بله واقعه د حدیث په کتابونو کښې راځی، پس په ابوداؤد کښې هم وړاندې په ﴿باب التصفیق فی الصلوة ﴾ کښې راځی هغه دا چه یو ځل رسول اللهﷺ قبیله بنو عمرو بن عوف کښې د مصالحت دپاره تشریف یوړلو. د هغوی څه معامله پیښه شوې وه، هم په دې وخت کښې د مازیګر د مانځه وخت شو نو سیدنا بلالؓ صدیق اکبرؓ ته عرض اوکړو چه د مانځه وخت شو تاسو مونځ ورکړئ، هغوی مونځ شروع کړو، د مانځه د شروع کولو نه پس رسول اللهﷺ هم تشریف راوړلو او راتلو سره په صف کښې شامل شو، په دې باندې

خلقو تصفيق اوكړو، ډير ساعت پس صديق اكبر ﷺ متوجه شو او هغوى ته محسوس شوه چه رسول الله ﷺ تشريف راوړى دي، په دې باندې هغوى د روستو كيدو اراده اوكړه، رسول الله ﷺ په اشارې سره منع كړو، خو هغوى ايسار نه شو روستو شو بيا رسول الله ﷺ رامخكښې شو او امامت ئې اوكړو.

سوال دا دې چه دا څه خبره ده چه عبدالرحمن بن عوف ﷺ خو مونځ وركول جارى اوساتل او صديق اكبر ﷺ شاته شو، په دوى كښې د چا طرز عمل زيات مناسب دې، بعض شارحينو ليكلې دى چه په طرز عمل كښې د فرق وجه دا ده چه د عبدالرحمن بن عوف ﷺ په واقعه كښې رسول الله ﷺ مسبوق شوې وو، كه هغه شاته شوې وې او رسول الله ﷺ رامخكښې شوې وې نو په دې صورت كښې به د مانځه په ترتيب كښې خلل پيدا شوې وې ځكه چه د خلقو يو ركعت شوې وو او د رسول الله ﷺ دواړه ركعتونه باقى وو او په دويمه قصه كښې رسول الله ﷺ په شروع كښې تشريف راوړلې وو په دې كښې دا اشكال نه وو په دې وجه صديق اكبر ﷺ روستو شو.

بعض حضراتو په دې كښې دويمه نكته پيدا كړې ده هغه دا چه دلته دوه څيزونه دى، يو امتثال امر او دويم سلوك ادب، عبدالرحمن بن عوف ﷺ امتثال امر ته ترجيح وركړه، او صديق اكبر ﷺ سلوك ادب اختيار اوفرمائيلو.

د دې نه معلومه شوه چه دا چه مشهوره ده چه ﴿الامر فوق الادب﴾ دا څه متفق عليه څيز نه دې بلكه دوه بيل بيل اړخونه دى، ملا على قارى ﷫ فرمائى چه كوم طرف صديق اكبر ﷺ اختيار اوفرمائيلو يعنى سلوك ادب هغه زيات اوچت دې.

[۱۵۰]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، عَنِ التَّيْمِيِّ، حَدَّثَنَا بَكْرٌ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ ابْنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ نَاصِيَتَهُ، وَذَكَرَ فَوْقَ الْعِمَامَةِ"، قَالَ: عَنِ الْمُعْتَمِرِ، سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ ابْنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَعَلَى نَاصِيَتِهِ وَعَلَى عِمَامَتِهِ، قَالَ بَكْرٌ: وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنِ ابْنِ الْمُغِيرَةِ.

**ترجمه**: د مغيره بن شعبه ﷺ نه روايت دې، بيشكه رسول الله ﷺ اودس اوكړو او مسح ئې اوكړه په تندې، او ذكر ئې كړه دپاسه د پټكې نه، هغه وائى: روايت دى د معتمر نه ما اوريدلې دي د خپل پلار نه، چه حديث ئې بيانولو د بكر بن عبد الله نه، او هغه د حسن نه، او هغه د مغير بن بن شعبه نه، بيشكه رسول الله ﷺ وو چه مسح ئې كوله په موزو باندې، او په تندې او په پټكې. وئيلى دي بكر: بيشكه ما اوريدلې دي د مغيره نه.

**تشريح**: ۲: ﴿ح حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ الخ﴾ ددې تحويل زما په نزد څه خاص احتياج نشته، سندونه په حقيقت كښې دوه نه دى يو دې خو صرف د فرق تعبير د وجې نه مصنف ﷫ دا دوه سندونه منلې دى.

(): صحيح مسلم/الطهارة ۲۳ (۲۷۴)، سنن الترمذي/الطهارة ۷۴ (۱۰۰)، سنن النسائي/الطهارة ۸۷ (۱۰۷)، (تحفة الأشراف: ۱۱٤۹٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۵۵/٤) (صحيح)

**شرح السند :**

حاصل دا دي چه په دي حديث کښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان په دواړو سندونو کښې مسدد دې او بيا د مسدد دوه استاذان دي يحيى بن سعيد او معتمر بن سليمان، او بيا د يحيى او معتمر استاذ يو دې يعنى سليمان تيمى، خو فرق دا دې چه يحيى چه کله دا حديث د خپل استاذ نه نقل کړو نو ﴿ عن التيمى ﴾ ئې اووئيل د کوم نه چه مراد سليمان التيمى دې، او معتمر چه کله دا روايت نقل کړو نو په ځائې د ﴿ عن التيمى ﴾ ئې ﴿ سمعت ابى ﴾ اووې، دَ ابى مصداق هم سليمان التيمى دې، سليمان التيمى چونکه د معتمر والد صاحب وو په دې وجه هغوى داسې تعبير اوکړو، بيا تر اخره پورې سند يو دې ﴿ قوله قال عن المعتمر سمعت ابى ﴾ د قال ضمير مسدد ته راجع دې يعنى اووئيل مسدد د معتمر نه نقل کولو سره ﴿ سمعت ابى ﴾ او مسدد چه کله د يحيى بن سعيد نه نقل کړې وو نو ﴿ عن التيمى ﴾ ئې وئيلې وو، لکه چه مخکښې تير شو.

﴿ قوله عَنِ الْحَسَنِ عَنِ ابْنِ الْمُغِيرَةِ ﴾ ددې ابن المغيره مصداق يا خو عروه دې لکه چه په وړاندې سند کښې راځى، او يا د مغيره بل ځوئې دې چه نوم ئې حمزه دې، حسن بصرى رحمه الله دلته ﴿ عن المغيرة ﴾ مبهما ذکر فرمائيلې دې او وړاندې روايت د شعبى رحمه الله دې چه په هغې کښې ددې ابن تعين فرمائيلو سره هغوى ﴿ سمعت عروة بن المغيرة ﴾ اووې، او په بعض رواياتو کښې د حمزة بن المغيرة تصريح ده.

قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه فى نفسه دا روايت د عروه او حمزه دواړو نه روايت دې خو د بکر بن عبدالله په روايت کښې صحيح يا خو حمزة دې يا بيا مطلق ابن المغيرة بغير د تعين نه، د بکر بن عبدالله په روايت کښې د عروة تعين صحيح نه دې، حضرت سهارنپورى رحمه الله په بذل کښې ددې نه پس د تهذيب التهذيب نه د حافظ ابن حجر رحمه الله عبارتونه نقل فرمائيلو سره ثابت کړې ده چه دحافظ د کلام نه معلوميږى چه د بکر بن عبدالله رواياتو کښې هم عروه او حمزه دواړو طريقو سره راغلې دى، د بکر په روايت کښې د عروه تعين دحافظ رحمه الله په نزد وهم نه دې.

﴿ قوله قَالَ بَكْرٌ وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنَ ابْنِ الْمُغِيرَةِ ﴾ په تير شوى سند کښې د بکر او ابن المغيرة ترمينځه واسطه حسن بصرى رحمه الله وو، دلته بکر دا وائى چه ما دا حديث براه راست د ابن المغيره نه هم اوريدلې دې بغير د واسطې د حسن نه.

ځان پوهه کړه چه د يُحيى او معتمر په روايت کښې چه د سند په اعتبار سره کوم فرق دې دهغې بيان پورته راغلو، ددې داوړو په روايت کښې چه د الفاظ متن په اعتبار سره کوم فرق دې هغې باندې هم ځان پوهه کول پکار دى، هغه په دوه قسمه دې، يو دا چه د يحيى روايت کښې مسح على الخفين نه ده ذکر شوې او د معتمر په روايت کښې ذکر شوې ده، دويمه دا چه د يحيى په روايت کښې مسح على العمامة په بل انداز کښې بيان کړې شوې ده او هغه انداز هغه دې کوم کښې چه راوى ته د خپل استاذ اصل الفاظ ياد نه وى هغوى دا مضمون په خپلو الفاظو کښې ادا کوى او د معتمر په روايت کښې داسې نه ده

هغوی مسح علی العمامة د استاذ په الفاظو کښې بالجزم بیان کړې ده.

[۱۵۱]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ يَذْكُرُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَكْبِهِ وَمَعِي إِدَاوَةٌ، فَخَرَجَ لِحَاجَتِهِ، ثُمَّ أَقْبَلَ فَتَلَقَّيْتُهُ بِالْإِدَاوَةِ، فَأَفْرَغْتُ عَلَيْهِ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ وَوَجْهَهُ، ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُخْرِجَ ذِرَاعَيْهِ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ مِنْ صُوفٍ مِنْ جِبَابِ الرُّومِ ضَيِّقَةُ الْكُمَّيْنِ فَضَاقَتْ فَادَّرَعَهُمَا ادِّرَاعًا، ثُمَّ أَهْوَيْتُ إِلَى الْخُفَّيْنِ لِأَنْزِعَهُمَا، فَقَالَ لِي: دَعِ الْخُفَّيْنِ، فَإِنِّي أَدْخَلْتُ الْقَدَمَيْنِ الْخُفَّيْنِ وَهُمَا طَاهِرَتَانِ، فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا"، قَالَ أَبِي: قَالَ الشَّعْبِيُّ: شَهِدَ لِي عُرْوَةُ عَلَى أَبِيهِ، وَشَهِدَ أَبُوهُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د مغیره نه روایت دې هغه وائي: وو مونږ د رسول الله ﷺ سره په یوه قافله کښې و ماسره یو لوښې وو نو هغه لاړو خپل حاجت دپاره، بیا راغلو نو زه ورسره مخامخ شوم په لوښې، نو ما اوبه واړولې په هغه نو دواړه لاسونه او مخ ئې وینځل، بیا ئې اراده اوکړه چه دواړه لیچي راوکاږي او په هغه باندې جبه وه د وړو نه د جبو د روم نه، چه لستونړي ئې تنګ وو، نو دواړه لاسونه ئې راویستل په راویسنلو سره، بیا ما قصد اوکړو موزو ته دې لپاره چه وئې کاږم، نو وئې وئیل ماته: پرېږده موزې، بیشکه ما داخل کړي وي خپې په موزو کښې او هغه پاکې وې نو مسح ئې اوکړه په هغې دواړو. وئیلی دي زما پلار: چه وئیلی دي شعبي ګواهي اوکړه ماته عروه په خپل پلار، او ګواهي اوکړه پلار د هغه په رسول الله ﷺ باندې.

**تشریح:** ۳: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ الخ قوله فِي رَكْبِهِ ﴾ یعنی د سورو مسافرو قافله ﴿ قوله دَعِ الْخُفَّيْنِ فَإِنِّي أَدْخَلْتُ الْقَدَمَيْنِ الْخُفَّيْنِ وَهُمَا طَاهِرَتَانِ ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د مسح علی الخفین د صحت شرط دا دې چه لبس خفین په طهارت باندې وی دا مسئله اجماعی ده.

### د لبس خفین په وخت په طهارت کامله کیدو کښې اختلاف:

خو اختلاف په دې کښې دې چه په وخت د لبس خفین طهارت کامله ضروری دې او که نه؟ یعنی که د غسل قدمین نه پس موزې وینځی او دهغې نه پس د اودس تکمیل اوکړي دا صحیح ده او که نه؟ پس د جمهور په نزد د طهارت کامله کیدل په وخت د لبس شرط دي، او د احنافو په نزد د لبس خفین په وخت صرف طهارت القدمین کافی دې په دې شرط چه حدث لاحق کیدو نه مخکښې د اودس تکمیل اوکړي.

هم دغه شان که یو سړې د ترتیب مسنون مطابق اودس کوی او د یوې خپې د وینځلو نه پس موزه واچوی او د بلې خپې دوینځلو نه پس بله موزه واچوی نو د سفیان ثوری او مزنی او احنافو ﷭ په نزد دا صورت هم جائز دې د جمهور علماء کرامو په نزد جائز نه دې.

﴿ قوله قَالَ أَبِي قَالَ الشَّعْبِيُّ شَهِدَ لِي عُرْوَةُ ﴾ دا د عیسی بن یونس مقوله ده چه ماته زما پلار یونس بیان اوکړو هغوی به فرمائیل چه ماته زما استاذ شعبی بیان اوکړو چه دا حدیث ماته زما استاذ عروه په لفظ د شهادت سره بیان کړې وو او وړاندې عروه هم داسې وائي

(): انظر حدیث رقم: ۱۴۹، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۱۴) (صحیح)

چه ماته دا حديث زما پلار مغيره بن شعبة په لفظ د شهادت سره بيان کړې وو، پس ځان پوهه کړه چه حديث لره په وخت د روايت په لفظ شهادت سره بيانول ډير کرته د تقويت حديث دپاره وی.

[۱۵۳]()حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، وَعَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، أَنَّ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ، قَالَ: تَخَلَّفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ هَذِهِ الْقِصَّةَ، قَالَ: فَأَتَيْنَا النَّاسَ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ يُصَلِّي بِهِمُ الصُّبْحَ، فَلَمَّا رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَرَادَ أَنْ يَتَأَخَّرَ، فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ أَنْ يَمْضِيَ، قَالَ: فَصَلَّيْتُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلْفَهُ رَكْعَةً، فَلَمَّا سَلَّمَ، قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى الرَّكْعَةَ الَّتِي سُبِقَ بِهَا وَلَمْ يَزِدْ عَلَيْهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ، وَابْنُ الزُّبَيْرِ، وَابْنُ عُمَرَ، يَقُولُونَ: مَنْ أَدْرَكَ الْفَرْدَ مِنَ الصَّلَاةِ عَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ.

**ترجمه:** د مغيره بن شعبه نه روايت دي هغه وائي، وروسته شو رسول الله ﷺ نو ټوله قصه ئې ذکر کړه، هغه وائي: مونږ راغلو خلکو ته او عبد الرحمن بن عوف مونځ کولو دوی ته د سحر، هرکله چه ئې نبي ﷺ اوليدلو نو اراده ئې اوکړه چه وروسته شي، نو اشاره ئې اوکړه هغه ته چه پوره کړه، هغه وائي: نو مونځ اوکړو ما او نبي ﷺ وروسته دهغې نه يو رکعت، نو هرکله چه ئې سلام اوګرځولو نو پاڅيدلو نبي ﷺ نو وئې کړو هغه رکعت چه ترينه تير شوی وو، او زيادت ئې اونه کړو په هغې باندې. وئيلی دي ابوداود: ابو سعيد الخدري او ابن الزبير او ابن عمر وايي: چا چه يو رکعت بيامونډلو د مونځ نه نو په هغه باندې دوه سجدې د سهوي دي.

**تشريح:** ﴿ قال ابوداؤد.... مَنْ أَدْرَكَ الْفَرْدَ مِنَ الصَّلَاةِ عَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ ﴾ يعنی ابوسعيدخدری رضی الله عنه، عبدالله بن الزبير او د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دا مسلک دې چه کوم سړې ته د امام سره يو يا درې رکعتونه ملاؤ شوې وی نو داسې مسبوق ته د مانځه د فراغت نه پس سجده سهو کول پکار دی په شرح کنبې ئې ليکلې دی چه هم دا مذهب د عطاء، اسحق بن راهويه، طاؤس او مجاهد دې.

په ظاهره ددې وجه دا ده چه کوم سړی ته د امام سره يو يا درې رکعتونه ملاويږی نو هغه به په مانځه کښې جلوس فی غير محله کوی، پس چه کله هغه ته يو رکعت ملاؤ شی نو هم په هغه يو رکعت کښې به کينی، او په کوم صورت کښې چه ورته درې رکعتونه ملاؤ شی او صرف يو رکعت فوت شی نو هغه به هم د يو رکعت کولو نه پس فورا کينی ځکه چه د امام به هغه دويم رکعت وی، والله اعلم بالصواب.

د جمهورو په نزد دا نشته ځکه چه په دې کښې رسول الله ﷺ ته يو رکعت ملاؤ شوې وو او هغوی سجده سهوه نه وه کړې، دا د جمهورو دليل دې.

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۹۲) (صحيح)

[۱۵۳]([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ يَعْنِي ابْنَ حَفْصِ بْنِ عُمَرَ بْنِ سَعْدٍ، سَمِعَ أَبَا عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، أَنَّهُ شَهِدَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ يَسْأَلُ بِلَالًا عَنْ وُضُوءِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "كَانَ يَخْرُجُ يَقْضِي حَاجَتَهُ فَآتِيهِ بِالْمَاءِ فَيَتَوَضَّأُ، وَيَمْسَحُ عَلَى عِمَامَتِهِ وَمُوقَيْهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: هُوَ أَبُو عَبْدِ اللهِ مَوْلَى بَنِي تَيْمِ بْنِ مُرَّةَ.

**ترجمه:** د ابو عبد الرحمن سلمي نه روايت دي، هغه حاضر شو عبد الرحمن بن عوف ته چه تپوس ئي كولو د بلال نه، د اودس د رسول الله ﷺ، هغه اووئيل: نو هغه به ووتلو چه پوره كولو به ئي حاجت خپل، نو ما به ورته اوبه راوړلي نو اودس به ئي كولو، مسح به ئي كوله په پټكي اوپه دواړو مقينوباندى. وئيلى دي ابوداود: هغه ابوعبدالله دى مولى د بني تيم بن مرة.

**تشريح:** ۵: ﴿ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ الخ – قوله وَيَمْسَحُ عَلَى عِمَامَتِهِ وَمُوقَيْهِ ﴾ په دې حديث كښې مسح على الخفين او مسح على العمامة دواړه ذكر شوي دى د موقين نه مراد خفين دى، ددې نه مخكښې په باب صفة الوضوء كښې لفظ ﴿ كان يمسح على الماقين ﴾ تير شوې دې، ددې شرح هلته تيره شوې ده.

[۱۵۴]([2]) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ الدِّرْهَمِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ دَاوُدَ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، أَنَّ جَرِيرًا بَالَ ثُمَّ تَوَضَّأَ فَمَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ، وَقَالَ: "مَا يَمْنَعُنِي أَنْ أَمْسَحَ، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ؟ قَالُوا: إِنَّمَا كَانَ ذَلِكَ قَبْلَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ، قَالَ: مَا أَسْلَمْتُ إِلَّا بَعْدَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ".

**ترجمه:** د ابو زرعه نه روايت دي، بيشكه جرير اودس مات كړو، بيا اودس اوكړو نو مسح ئي اوكړه په موزو باندې، او وئيلى دي هغه: ما څه منع كوي د مسح نه او بيشكه ما ليدلى وو رسول الله ﷺ چه مسح ئي كوله، هغوى وئيلى دى: بيشكه وو دا مخكښې د نزول د سورة المائدې نه، هغه اووئيل: ما اسلام نه دى راوړى مگر وروسته د نزول د مائدې نه.

**تشريح:** ۷: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ الخ – قوله مَا يَمْنَعُنِي أَنْ أَمْسَحَ ﴾ جرير بن عبدالله رضي الله عنه چه كله مسح على الخفين اوكړه نو په دې باندې بعض خلقو دا اشكال اوكړو او دا اشكال كونكي به هم هغه حضرات وى چاته چه دا خبره معلومه نه وه چه رسول الله ﷺ نزول مائده يعنى د آيت وضوء د نزول نه پس مسح على الخفين فرمائيلې وه، پس جرير رضي الله عنه اوفرمائيل چه كله ما رسول الله ﷺ په مسح كولو باندې ليدلې وو نو بيا ئي زه ولې نه كوم، د اشكال كونكو په ذهن كښې چه كومه خبره وه هغه هغوى عرض كړه ﴿ إِنَّمَا كَانَ ذَٰلِكَ قَبْلَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ ﴾ سيدنا جرير بن عبدالله رضي الله عنه جواب وركړو ﴿ مَا أَسْلَمْتُ إِلاَّ بَعْدَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ ﴾ يعنى ما خو د نزول مائده نه پس اسلام راوړې دې، او ما رسول الله ﷺ په مسح على الخفين باندې ليدلې دې

[1]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۲۰٤۹)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الطهارة ۲۳ (۲۷۵)، سنن الترمذي/الطهارة ۷۵ (۱۰۰)، سنن النسائي/الطهارة ۸٦ (۱۰۵)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۹ (۵٦۱)، مسند احمد (۱۲/٦، ۱۳، ۱٤، ۱۵) (صحيح)

[2]: تفرد به ابوداود (تحفة الأشراف: ۳۲٤۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ۲۵ (۳۸۷)، صحيح مسلم/الطهارة ۲۲ (۲۷۲)، سنن الترمذي/الطهارة ۷۰ (۹٤)، سنن النسائي/الطهارة ۹٦ (۱۱۸)، القبلة ۲۳ (۷۷۵)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸٤ (۵٤۳)، مسند احمد (۳۵۸/٤، ۳٦۳، ۳٦٤) (حسن)

کوم چه د نزول مائده نه روستو خبره ده، دلته د مسلم په روایت کښې یو زیادت دې هغه دا چه راوی وائی ﴿ وکان یعجبهم هذا الحدیث ﴾ په اصل کښې د آیت وضوء نزول په غزوة د بنو المصطلق ۴ یا ۵ هجری کښې شوې دې او د یو قول په بناء باندې په شپږمه کښې شوې دې، او د سیدنا جریر رضی الله عنه اسلام د رمضان په میاشت کښې په لسم هجرئ کښې شوې دې

[۱۵۵]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا دَلْهَمُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ حُجَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ النَّجَاشِيَّ أَهْدَى إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُفَّيْنِ أَسْوَدَيْنِ سَاذَجَيْنِ فَلَبِسَهُمَا، ثُمَّ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَيْهِمَا"، قَالَ مُسَدَّدٌ، عَنْ دَلْهَمِ بْنِ صَالِحٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مِمَّا تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْبَصْرَةِ.

**ترجمه**: د بریده نه روایت دی: بیشکه نجاشی هدایه کړې وې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته موزې تورې ساده، نو هغه ئې واغوستلې، بیا ئې اودس اوکړو او مسح ئې اوکړه په هغې.

**تشریح**: ۷: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ الخ – قوله أَنَّ النَّجَاشِيَّ أَهْدَى الخ ﴾ نجاشی په تخفیف د جیم سره او یاء مشدد او مخفف دواړو طریقو سره منقول دې د هغوی نوم اصحمه بن بحر دې، او نجاشی لقب دې او د هر شاه حبشه لقب نجاشی وی لکه چه د فارس کسری او د شاه روم قیصر، دې نجاشی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې اسلام راوړې وو خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوې نه وو، او د اسلام په وخت هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د رسالت تصدیق کولو سره اوفرمائیل لکه چه په ابوداؤد کتاب الجنائز کښې دی ﴿ ولولا ما انا فیه من الملک لاتیته حتی احمل نعلیه ﴾ که زه د خپلې بادشاهئ په کارونو کښې مشغول نه اوم نو خامخا به د هغوی په خدمت کښې حاضر شوې اوم او د هغوی نعلین شریفین اوچتولو سره به مې فخر حاصل کړې وې.

﴿ قوله خُفَّيْنِ أَسْوَدَيْنِ سَاذَجَيْنِ ﴾ ساذج معرب دې د ساده یعنی غیر منقوش، یا مراد دا دې چه په هغې باندې ویښته نه وو صرف څرمن وه، یا دا مطلب دې چه هغه خالصې تورې وې بل رنګ پکښې شامل نه وو.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا مِمَّا تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْبَصْرَةِ ﴾ یعنی ددې حدیث ټول راویان بصری دی خو دا په اعتبار د اکثر سره صحیح دې ګڼې بعض راویان په دې کښې غیر بصری هم دی لکه دلهم بن صالح رحمه الله کوفی وو.

[۱۵۶]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ حَيٍّ هُوَ الْحَسَنُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَامِرٍ الْبَجَلِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي نُعْمٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَنَسِيتَ؟ قَالَ: بَلْ أَنْتَ نَسِيتَ، بِهَذَا أَمَرَنِي رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ".

**ترجمه**: د مغیره بن شعبه نه روایت دې بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم مسح اوکړه په موزو باندې، نو ما اووئیل: نبی علیه السلام اوفرمائیل اې د الله رسوله ایا تا هېر کړه؟ هغه اووئیل: بل

(۱): سنن الترمذي/الأدب ۵۵ (۲۸۲۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۴ (۵۴۹)، مسند احمد (۳۵۲/۵)، (تحفة الأشراف: ۱۹۵۶) (حسن)
(۲): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۱۱۵۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۲۴۶، ۲۵۳) (ضعیف)

کښې تا هېر کړه، په دې باندې امر کړی دی ماته رب زما.

**تشریح:** ۸: ﴿قوله بَلْ أَنْتَ نَسِيتَ بِهٰذَا أَمَرَنِي رَبِّي﴾ ددې دوه مطلبونه کیدې شي یو دا چه کله مغیره بن شعبة رضی الله عنه رسول الله ﷺ په مسح کولو باندې اولیدو او په دې ئې اشکال اوکړو چه آیا تاسو په هیره باندې مسح کوئ نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زما نه هیره نه ده واقع شوې بلکه ستا نه هیر دی ځکه چه مسح علی الخفین جائز ده.

دویم مطلب دا کیدې شي چه رسول الله ﷺ هغوی ته تنبیه فرمائی چه د سوال دا طریقه نه ده، مشرانو ته داسې خطاب نه دی کول پکار چه د هغوی طرف ته د نسیان نسبت اوکړې شی، یعنی ما نه غسل رجلین نه دی هیر شوې بلکه ستا نه د تپوس کولو طریقه هیره شوې ده.

## بَابُ التَّوْقِيتِ فِي الْمَسْحِ

### باب دې په بیان د وقت د مسح کې

مسئله مترجم بها مختلف فیه ده، جمهور علماء او ائمه ثلاثه د توقیت فی المسح قائل دی او امام مالک رحمه الله د مشهور قول په بناء د توقیت قائل نه دې، او هم دا مسلک د لیث بن سعد دې، هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې د عمر رضی الله عنه نه هم عدم توقیت مسح نقل کړې دې.

[۱۵۷][1] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، وَحَمَّادٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللهِ الْجَدَلِيِّ، عَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ لِلْمُسَافِرِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ، وَلِلْمُقِيمِ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، بِإِسْنَادِهِ، قَالَ فِيهِ وَلَوِ اسْتَزَدْنَاهُ لَزَادَنَا.

**ترجمه:** خزیمة بن ثابت روایت کوي د رسول الله ﷺ نه، هغه وئیلی دی: مسح د مسافر لپاره درې ورځې ده، او د مقیم لپاره یوه شپه او یوه ورځ ده. وئیلی دي ابوداود: روایت کړی دی منصور بن المعتمر د ابراهیم التیمي نه په خپل اسناد سره، وئیلی ئې دي په هغې کې: که چیرې مونږ د زیادت طلب کړی وی نو هغه به راته زیادت کړی وی.

### د توقیت فی المسح روایات:

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د توقیت مسح په سلسله کښې امام بخاری رحمه الله هیڅ روایت نه دې ذکر کړې، خو امام مسلم رحمه الله د سیدنا علی رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې چه د هغې مضمون دا دې شریح بن هانی رحمه الله فرمائی چه ما د سیده عائشه رضی الله عنها نه د مسح علی الخفین په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل د علی رضی الله عنه نه تپوس اوکړه هغه به په سفر کښې د رسول الله ﷺ سره وو، شریح وائی چه بیا مونږ د علی رضی الله عنه نه ددې په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ د مسافر دپاره درې ورځې او درې شپې او د مقیم دپاره یو ورځ او یو شپه متعین فرمائیلې ده، د صفوان بن عسال رضی الله عنه په حدیث مرفوع کښې هم دغه شان توقیت فی المسح ذکر شوې ده، د کوم تخریج چه امام ابن خزیمه رحمه الله کړې دې.

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ۷۱ (۹۵)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۶ (۵۵٤)، (تحفة الأشراف: ۳۵۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۳/۵) (صحیح)

امام ابوداؤد او امام ترمذی رحمه الله د توقیت فی المسح په باره کښې د خزیمه بن ثابت حدیث ذکر فرمائیلې دې چه دهغې مضمون هم دا دې چه د مسافر دپاره درې ورځې او درې شپې او د مقیم دپاره یوه ورځ او یوه شپه ده، امام ترمذی رحمه الله د ﴿ وفی الباب ﴾ د لاندې ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم حواله ورکړې ده، او په حاشیه د ابوداؤد کښې لیکلې شوې دی چه د توقیت فی المسح روایات د اتلسو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه روایت کړې شوې دی.

**د حدیث خزیمة تصحیح او تعضعیف کښې د محدثینو اختلاف :**

ځان پوهه کړه چه د خزیمه بن ثابت حدیث کوم چه مصنف رحمه الله د باب په شروع کښې ذکر کړې دې دهغې په تصحیح او تضعیف کښې د محدثینو سخت اختلاف دې، یو جماعت چه په هغوی کښې ابن حبان، ابن معین او ابن دقیق العید رحمهم الله هم دی ددې مطلقا تصحیح کړې ده او یو جماعت چه په هغوی کښې امام بخاری، امام بیهقی او امام نووی رحمهم الله دی ددې مطلقا تضعیف کړې دې، امام نووی رحمه الله تردې پورې وئیلې دی چه ﴿اتفقوا علی ضعفه ﴾ خو حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې اشکال کړې دې چه دا اتفاق نقل کول صحیح نه دی، او دریمه رائې د امام ترمذی رحمه الله ده، هغوی دا حدیث په دوه طریقو سره ذکر کړې دې، په طریق د نخعی، او په طریق د التیمی، د طریق اول په اعتبار سره ئې تضعیف کړې دې او د طریق ثانی په اعتبار سره ئې تصحیح کړې ده.

د امام ترمذی رحمه الله ددې تفریق مقصد دا دې چه د ابراهیم نخعی په طریق کښې انقطاع ده ځکه چه هغوی براه راست د ابو عبدالله الجدلی نه روایت کوی، حالانکه د هغه د هغوی نه سماع ثابته نه ده، او ابراهیم تیمی دا حدیث د ابوعبدالله الجدلی نه په واسطه د عمرو بن میمون روایت کړې دې په دې وجه هغه د طریق انقطاع نه محفوظ دې، هم په دې وجه امام ترمذی رحمه الله ددې تصحیح فرمائیلې ده.

او امام بخاری رحمه الله وغیره چا چه ددې مطلقا تضعیف کړې دې هغه که په طریق د تیمی وی یا په طریق د نخعی پس ددې وجه دا ده چه په دې دواړو طریقو کښې دې حدیث لره ابوعبدالله الجدلی د خزیمه بن ثابت نه روایت کوی او د امام بخاری رحمه الله رائې دا ده چه د جدلی سماع د خزیمه نه ثابته نه ده، لهذا د امام بخاری رحمه الله په نزد دا حدیث په دواړو طریقو باندې ضعیف شو.

او امام ابوداؤد رحمه الله دا حدیث اګر چه په دوه طریقو سره ذکر کړې دې خو د هغوی د کلام نه معلومیږی چه طریق النخعی والتیمی دواړو کښې هیڅ فرق نشته د دواړو سند یو دې، او حال دا چه د جامع ترمذی نه معلومیږی چه په دواړو کښې فرق دې لکه چه اوس تیر شو.

**حدیث خزیمة د چا دلیل دې؟**

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه حدیث خزیمه په طریق د نخعی خو یقینا په توقیت فی المسح کښې د جمهورو د مسلک مطابق دې خو حدیث خزیمة په طریق التیمی کښې یو د اختلاف خبره پیدا شوې ده هغه دا چه په دې یوه جمله کښې د ﴿ وَلَوِ اسْتَزَدْنَاهُ لَزَادَنَا ﴾ اضافه ده، یعنی راوی وائی چه رسول الله ﷺ اګرچه د مسح وخت مقرر کړو خو که مونږ په دې کښې زیادت

طلب کړې وې نو رسول الله ﷺ به ضرور اضافه فرمائیلې وې، ددې جملې د وجې نه دا حدیث فی الجمله د جمهورو د مسلک خلاف دې، ددې درې جوابونه دی؛ اول: دا چه په طریق تیمی کښې دا زیادت کوم چه د ابوداؤد په روایت کښې دې په سنن ترمذی کښې نشته، هلته د دواړو روایتونو الفاظ یو دی، لهذا ددې په ثبوت کښې تردد شو، دویم: دا چه حرف لو خو د نفی دپاره راځی ﴿ لو جئتنی لاکرمتک ﴾ په دې کښې د مجئ او اکرام سراسر نفی ده، دغه شان دلته هم ده چه که مونږ زیادت طلب کړې وې نو رسول الله ﷺ به زیادت فرمائیلې وې ﴿ واذ لیس فلیس ﴾ ثالث: دا چه دا ګمان د راوی دې کوم چه د حسبان او تخمین د قبیلې نه دې، فلا یعتبر.

**تنبیه**: په بذل کښې د حضرت د کلام نه معلومیږی چه امام ترمذی رحمه الله د حدیث خزیمة مطلقا تصحیح کړې ده خو مونږ پورته بیان کړه چه امام ترمذی رحمه الله صرف د یو طریق په اعتبار سره ددې تصحیح کړې ده او د دویم طریق په اعتبار سره ئې تضعیف کړې دې.

## د مسح د مودې شروع د کله نه معتبر ده:

ځان پوهه کړه چه د جمهور ائمه ثلاثه په نزد په مسح کښې توقیت دې په دې کښې اختلاف دې چه د مسح د مودې شروع به د کله نه وی، اکثر علماء او د احنافو او شوافعو په نزد د مسح د مودې ابتداء د موزې په خپو کولو نه پس چه کله بې اودسی راشی د هغه وخت نه به وی، او د امام احمد او اوزاعی رحمهما الله په نزد چه کله موزې واچوی هم د هغه وخت نه به د مسح موده شمارلې کیږی، دلته درې حالتونه دی، وخت لبس، وخت د مسح، وخت د حدث د پورته اختلاف نه معلوم شو چه د مسح د مودې شروع د مسح د وخت نه په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم نشته، خو د حسن بصری رحمه الله نه روایت دې لکه څنګه چه په شامی کښې لیکلې شوې دی.

[۱۵۸] ([1]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ الرَّبِيعِ بْنِ طَارِقٍ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ رَزِينٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ قَطَنٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ عِمَارَةَ، قَالَ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، وَكَانَ قَدْ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْقِبْلَتَيْنِ: أَنَّهُ قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: يَوْمًا؟ قَالَ: يَوْمًا، قَالَ: وَيَوْمَيْنِ؟ قَالَ: وَيَوْمَيْنِ، قَالَ: وَثَلَاثَةً؟ قَالَ: نَعَمْ، وَمَا شِئْتَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ الْمِصْرِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ رَزِينٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ عِمَارَةَ، قَالَ فِيهِ حَتَّى بَلَغَ سَبْعًا، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَعَمْ، وَمَا بَدَا لَكَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَدِ اخْتُلِفَ فِي إِسْنَادِهِ، وَلَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ، وَرَوَاهُ ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، وَيَحْيَى بْنُ إِسْحَاقَ السَّيْلَحِينِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، وَقَدِ اخْتُلِفَ فِي إِسْنَادِهِ.

**ترجمه**: د یحیی بن ایوب نه روایت دې، او وو چه مونځ ئې کړی وو د رسول الله ﷺ سره دواړو قبلو ته، هغه اووئیل: اې د الله رسوله زه مسحه اوکړم په موزو باندې؟ هغه اووئیل: او، هغه اووئیل: یوه ورځ؟ نو هغه اووئیل: یوه ورځ، بیا هغه اووئیل: او دوه ورځې؟ هغه

[1]: سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۷ (۵۵۷)، (تحفة الأشراف: ٦) (ضعيف)

اووئيل: او دوه ورځې، هغه اووئيل: درې ورځې؟ هغه وفرمايل: او او هغه چه ستا خوښه وي. وئيلى دي ابوداود: روايت کړى دى دې ابن ابي مريم المصري د يحيى بن ايوب نه، هغه د عبد الرحمن بن رزين نه، هغه د محمد بن يزيد بن ابي زياد نه، هغه د عبادة بن نُسي نه، هغه د أُبي بن عمارة نه هغه وئيلى دى: تردې چه اوو ته ورسيدو، اووئيل رسول الله ﷺ: او، او هغه چه تا ته ښکاره شي. وئيلى دي ابوداود: او اختلاف شوى دى د دې په اسناد کښې او دا قوي نه دى، او روايت کړى دى دې ابن ابي مريم، او يحيى بن اسحاق السيلحيني د يحيى بن ايوب نه، يقيناً اختلاف شوى دى په اسناد ددې کښې.

**تشريح:** ﴿ قوله عَنْ أُبَيِّ بْنِ عِمَارَةَ ﴾ دا حديث د مالکيانو دليل دې ځکه چه ددې نه عدم توقيت في المسح ثابتيږي چه تر څو غواړى مسح کولې شى، په مينځ کښې د موزو د ويستلو حاجت نشته.

**د ابى بن عماره په حديث باندې کلام او د هغې جوابات:**

خو دا حديث د ابى بن عماره بالاتفاق ضعيف دې خپله امام ابوداؤد رحمه الله ددې حديث په سند کښې سخت اختلاف او اضطراب ثابت کړې دې. امام بيهقى او دارقطنى او حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى ﴿ اسناده غير قائم ﴾ بلکه امام نووى رحمه الله خو ليکلې دى ﴿ اتفقوا على ضعفه ﴾ د امام نووى رحمه الله دا خبره دلته صحيح ده اګرچه د باب د اول حديث يعنى حديث خزيمة په باره کښې هم امام نووى رحمه الله هم دا فرمائيلې وو چه ﴿ اتفقوا على ضعفه ﴾ خو هلته د امام نووى رحمه الله خبره د منلو قابله نه ده لکه چه تفصيلا تير شو، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ﴿وبالغ الجوزقانى فذکره فى الموضوعات ﴾ زه وايم هم دغه شان ابن الجوزى رحمه الله هم دا په موضوعاتو کښې شمار کړې دې، ددې حديث په سند کښې يو راوى عبدالرحمن بن رزين دې، هغه مجهول دې، هم دغه شان د هغوى شيخ محمد بن يزيد او شيخ الشيخ ايوب بن قطن تول مجاهيل دى.

ځان پوهه کړه چه هغه حديث د ابى بن عماره چه په هغې کښې دا دى چه ترڅو پورې مسح کول غواړې هيڅ حد نشته، يو تاويل بل هم کړې شوې دې هغه دا چه مطلب دا دې چه مسح على الخفين د قاعدې او ضابطې مطابق چه کله غواړې کوه او هغه قاعده او ضابطه دا ده چه مقيم د يوې ورځې او يوې شپې او مسافر د درې ورځو او درې شپو نه پس موزې اوباسى او خپې وينځى او بيا ئې واچوى او بيا هميشه داسې کوى چه اوباسى ئې او اچوى ئې، لکه چه په يو بل حديث کښې دى ﴿ الصعيد الطيب وضوء المسلم ولو الى عشر سنين ﴾ يعنى پاکه خاوره د مسلمان سرى دپاره اودس دې اګرچه د لسو کالو پورې وى يعنى لسو کالو پورې د ضابطې او قاعدې مطابق د حاجت په وخت تيمم کولې شى، دا مطلب نه دې چه يو تيمم دې تر لسو کالو پورې باقى وى. دا توجيه خو ډيره لطيف ده خو ددې حاجت نشته ځکه چه دا حديث د ابى بن عماره بالاتفاق ضعيف دې

# بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ

## باب دې په بيان مسح کې په جورابو باندې

د جوربين تعريف او اقسام کښې تفصيل دې، او مختلف اقوال دی خو دومره خبره واضح او منقح ده چه خفين وئيلې شی د څرمنې موزو ته، او جوربين هغه موزې کومې چه د څرمنې نه علاوه د وړئ، تار يا کاټن وغيره وی.

### مسح على الجوربين کښې اختلاف ائمة:

په مسح على الجوربين کښې د ائمه اختلاف دې، د امام ابوحنيفه‌رحمه‌الله په نزد مسح على الجوربين هغه وخت جائز ده ﴿ ان كانا مجلدين او منعلين ﴾ د صاحبينو او امام احمد رحمهم‌الله په نزد که ثخينين وی نو بيا هم په هغې باندې مسح جائز ده او امام صاحب روستو هم دې قول ته رجوع فرمائيلې وه، لهذا اوس هم دا مسلک د امام ابوحنيفه‌رحمه‌الله دې، د امام مالک‌رحمه‌الله مسلک دې ﴿ ان كانا مجلدين فقط ﴾ يعنی د هغوی په نزد صرف هغه وخت جائز ده چه کله هغه مجلد وی لاندې باندې دواړو طرفونو ته چمړه لګيدلې وی، او که منعل ده يعنی څرمن صرف لاندې طرف ته لګيدلې وی يا نه مجلد وی او نه منعل بلکه ثخين وی، په دې دواړو صورتونو کښې د هغوی په نزد مسح جائز نه ده، د امام شافعی‌رحمه‌الله نه په دې سلسله کښې ډير روايتونه دی، يو د مالکيانو په شان، دويم د احنافو په شان، او دريم روايت د هغوی دا دې چه ﴿ ما يمكن متابعة المشي فيه ﴾ يعنی په کومو جورابو اچولو سره چه انسان بغير د پيزار نه يو دوه ميله بغير د تکلف نه تلې شی، او هم دا د هغوی په نزد اصح قول دې. ددې حاصل هم هغه دې کوم چه د امام احمد او صاحبينو رحمهم‌الله مسلک دې.

پس اوس خلاصه دا شوه چه ائمه ثلاثه (امام ابوحنيفه، امام شافعی، امام احمد) او صاحبينو رحمهم‌الله په نزد مسح على الجوربين جائز ده ان كانا مجلدين او منعلين او ثخينين، او د امام مالک‌رحمه‌الله په نزد ان كانا مجلدين فقط.

[۱۵۹] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ الْأَوْدِيِّ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ ثَرْوَانَ، عَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ لَا يُحَدِّثُ بِهَذَا الْحَدِيثِ، لِأَنَّ الْمَعْرُوفَ عَنِ الْمُغِيرَةِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَرُوِيَ هَذَا أَيْضًا، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ مَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ، وَلَيْسَ بِالْمُتَّصِلِ وَلَا بِالْقَوِيِّ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ: عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَابْنُ مَسْعُودٍ، وَالْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ، وَأَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، وَأَبُو أُمَامَةَ، وَسَهْلُ بْنُ سَعْدٍ، وَعَمْرُو بْنُ حُرَيْثٍ، وَرُوِيَ ذَلِكَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** د مغيره بن شعبه نه روايت دې بيشکه رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس اوکړو او مسح ئې اوکړه په جورابو باندې او په پنړو باندې. وئيلی دي ابوداود: وو عبد الرحمن بن مهدي چه

(۱): سنن الترمذي/الطهارة ۷۴ (۹۹)، سنن النسائي/الطهارة ۹۶ (۱۲۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۸ (۵۵۹)،

نه به ئې بيانولو دا حديث ځکه معلوم د مغيره نه داده مغيره نه معروف اور مشهور روايت دادې، چې نبي ﷺ مسح اوکړه په موزو باندې. وئيلى دي ابوداود: دارنګه دا روايت شوى دى د ابو موسى الاشعري نه، او هغه د نبي ﷺ نه روايت کوي چه بيشکه هغه مسح اوکړه په جورابو باندې خو ددې سند نه متصل دې او نه قوى، وئيلى دي ابوداود: او مسح ئې اوکړه په جورابو باندې علي بن ابي طالب او ابن مسعود او براء بن عازب، او انس بن مالک، او ابو امامة، او سهل بن سعد، او عمرو بن حريث، او روايت شوى دى د دغې د عمر بن الخطاب او د ابن عباس نه.

**تشريح:** ﴿ قوله وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ الخ ﴾ مطلب دا دې چه پيزار سره ئې مسح على الجوربين اوکړه، په نعلين باندې مسح کول مقصود نه دى.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ كَانَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيّ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى چه کله به عبدالرحمن بن مهدى د مغيره بن شعبه رضي الله عنه دا حديث بيانولو هغوى ته ددې په صحت کښې تردد وو، ځکه چه د مغيره بن شعبه رضي الله عنه په مشهور حديث کښې مسح على الجوربين نه دې ذکر شوې بلکه مسح على الخفين منقول دې.

خو حضرت سهارنپورى رحمه الله په بذل کښې دا اشکال کړې دې چه په دواړو احاديثو کښې تعارض څه دې، دا دواړه احاديث بيل بيل کيدې شى، يو وخت کښې رسول الله ﷺ مسح على الخفين اوفرمائيله او په بل وخت کښې ئې مسح على الجوربين اوفرمائيله مغيره بن شعبه رضي الله عنه دا دواړه روايتونه نقل کړى دى! خو که دا دواړه احاديث په يو واقعه او يو وخت باندې محمول کړې شى نو بيا خو دا خبره صحيح ده چه د مغيره بن شعبه رضي الله عنه مشهور حديث مسح على الخفين دې نه مسح على الجوربين، بيا وړاندې سهارنپورى رحمه الله ليکى چه امام ترمذى رحمه الله ددې حديث مغيره کوم چه د مسح على الجوربين په باره کښې دې تصحيح کړې ده، حال دا چه امام ترمذى رحمه الله د مغيره بن شعبه د بل حديث مسح على الخفين هم تخريج کړې دې، معلومه شوه چه د امام ترمذى رحمه الله په نزد هم دا دواړه احاديث بيل بيل دى.

## بَابٌ (بلا ترجمة)

### باب (بغير د ترجمې نه)

بعض ځل مصنفين لفظ باب بغير د ترجمې نه اوليکى چه دهغې مختلف اسباب وى کله خو د ترجمې مضمون د حديث الباب نه ښکاره کيږى نو د ظاهر کيدو د وجې نه ئې پريږدى، او کله د تشحيذ اذهان دپاره داسې کوى، دلته په دې باب باندې ترجمه المسح على النعلين کيدې شى، ځکه چه په حديث الباب کښې مسح على النعلين ذکر شوې ده، خو د مسح على النعلين په ائمه اربعه کښې څوک هم قائل نه دى، خو امام طحاوى رحمه الله د يو قوم طرف ته دا مذهب منسوب کړې دې.

[۱۶۰]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَعَبَّادُ بْنُ مُوسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ عَبَّادٌ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَوْسُ بْنُ أَبِي أَوْسٍ الثَّقَفِيُّ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى نَعْلَيْهِ وَقَدَمَيْهِ"، وَقَالَ عَبَّادٌ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى كِظَامَةَ قَوْمٍ يَعْنِي الْمِيضَأَةَ، وَلَمْ يَذْكُرْ مُسَدَّدٌ الْمِيضَأَةَ وَالْكِظَامَةَ، ثُمَّ اتَّفَقَا، فَتَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى نَعْلَيْهِ وَقَدَمَيْهِ.

**ترجمه:** اوس بن ابي اوس وايي: بيشکه رسول الله ﷺ اودس اوکړو، او مسح ئې اوکړه په پڼړو اوپه خپو باندې. او وئيلی دي عباد: ما اوليدلو رسول الله ﷺ چه راغی په يو ه کظامه د قوم باندې (يعني د اودس ځی ته) او ذکر کړی نه دی مسدد الميضأة و الکظامة، بيا اتفاق کړی دی دواړو: نو اودس ئې اوکړو او مسح ئې اوکړه په دواړو پڼړو او خپو باندې

**شرح السند:**

﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ الخ – قَالَ عَبَّادٌ قَالَ أَخْبَرَنِي ﴾ په دې حديث کښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان دی، مسدد او عباد ﴿ عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ عَنْ أَبِيه ﴾ پورې دواړه سندونه مشترک او موافق دی د ﴿ عن ابيه ﴾ نه پس د سند الفاظ څه دی په دې کښې د مسدد او عباد اختلاف شو، د عباد الفاظ خو دا دی ﴿ قَالَ أَخْبَرَنِي أَوْسُ بْنُ أَبِي أَوْسٍ الثَّقَفِيُّ ﴾ د قال ضمير د عطاء طرف ته راجع دې، يعنی اووئيل عطاء چه اخبرنی اوس بن اوس الثقفی، د عباد مقوله په ﴿ الثقفی ﴾ باندې راتلو سره ختمه شوه، پاتې شوه دا خبره چه د مسدد الفاظ څه دی؟ هغوی د ﴿ عن يعلى بن عطاء عن ابيه ﴾ نه پس سند څنګه بيان کړو؟ ددې سره مصنف رحمه الله دلته کار نه دې ساتلې، کيدې شی د مسدد په روايت کښې، ﴿ اخبرنی اوس ﴾ په ځائې ﴿ حدثنی اوس ﴾ وی يا ﴿ عن اوس بن ابی اوس ﴾ وی.

﴿ قوله أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم- تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى نَعْلَيْهِ وَقَدَمَيْهِ ﴾ دا متن د حديث دې او دا د مسدد الفاظ دی، د عباد الفاظ وړاندې راروان دی (په ظاهر کښې دا شک پيدا کيږی چه دا هم د عباد الفاظ دی، خو داسې نه ده) پس وړاندې تلو سره مصنف رحمه الله فرمائی ﴿ وَقَالَ عَبَّادٌ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم ﴾.

﴿ قوله وَلَمْ يَذْكُرْ مُسَدَّدٌ الْمِيضَأَةَ وَالْكِظَامَةَ ﴾ اوس د مسدد د روايت الفاظ دا شو، ﴿ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم- تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى نَعْلَيْهِ وَقَدَمَيْهِ ﴾ او د عباد د روايت الفاظ دا شو ﴿ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم- أَتَى كِظَامَةَ قَوْمٍ فَتَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى نَعْلَيْهِ وَقَدَمَيْهِ ﴾ حاصل دا چه د مسدد په روايت کښې د کظامة او ميضاة ذکر نشته بلکه هغه صرف د عباد په روايت کښې دې، او مسح علی النعلين و القدمين د دواړو په روايت کښې مشترک ده.

## د حديث الباب تشريح او توجيح

په دې حديث کښې مسح علی النعلين و القدمين ذکر شوې دې، دلته دوه احتمالات دی يو دا چه د مسح نه مراد غسل وی، مطلب دا دې چه د پيزار سره ئې خپې وينځلې، او په دې

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸/٤) (صحيح)

کښې هيڅ قسم د اشکال خبره نشته ځکه چه د نعلين نه مراد صرف د دوه تسمو والا چپلې دی چه دهغې د اغوستلو سره هم انسان خپې وينځلې شی، دويم احتمال دا دې چه مسح دې په خپله ظاهره معنی باندې محمول کړې شی نو په دې صورت کښې به دا وئيلې شی چه دا منسوخ ده بلکه د مسح علی القدمين ټول روايات منسوخ دی يو توجيه دا ده چه د مسح نه مراد مسح ده او د قدمين نه مراد قدمين مجردين نه دی بلکه مع الجوربين دی په دې صورت کښې به د حديث مطلب دا وی چه رسول الله ﷺ نعلين اغوستلو سره مسح علی الجوربين اوفرمائيله، آخری توجيه د امام طحاوی رحمه الله ده هغوی فرمائی ﴿ الاحاديث يفسر بعضها بعضا ﴾ او د مغيره بن شعبة او ابوموسی اشعری رضی الله عنهما په حديث کښې مسح علی جوربيه ونعليه ذکر ده لهذا دا حديث به هم په هغې باندې محمول کولې شی.

## باب كَيْفَ الْمَسْحُ

### باب دې په بيان د کيفيت د مسح کښې

مصنف رحمه الله د مسح علی الخفين کيفيت بيانول غواړی، او د کيفيت نه مراد دا دې چه مسح علی الخفين به صرف پورته طرف ته وی که نه پورته او لاندې دواړو طرفونو ته؟ مسئله مختلف فيه ده، د احنافو او حنابله په نزد صرف په ظاهر خفين يعنی پورته حصه باندې مسح ده، او د امام شافعی او امام مالک رحمهما الله په نزد به په اعلی او اسفل دواړو طرفونو باندې کولې شی، په اعلی باندې په طريق د وجوب او په اسفل باندې په طريق د سنت، د امام مالک رحمه الله په نزد مسح علی الاسفل کافی نه ده او د امام شافعی رحمه الله هم قول اصح دا دې. او دريم مذهب د امام زهری رحمه الله دې، د هغوی په نزد به مسح علی الاسفل کافی شی، ځان پوهه کړه چه يو روايت زمونږ په نزد هم د مسح علی اسفل الخفين دې خو هغه روايت مرجوح دې، کما قال الشامی.

بيا دويم اختلاف دلته دا دې چه د مسح علی الخفين مقدار واجبه څه دې؟ د احنافو په نزد مقدار ثلاثه اصابع او د امام شافعی رحمه الله په نزد ادنی ما يطلق عليه اسم المسح، او د امام مالک رحمه الله په نزد اعلی الخف (د پورته حصې) استيعاب او د امام احمد رحمه الله په نزد د مقدم الخف اکثره حصه.

[١٦١] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، قَالَ: ذَكَرَهُ أَبِي، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ"، وَقَالَ غَيْرُ مُحَمَّدٍ: عَلَى ظَهْرِ الْخُفَّيْنِ.

**ترجمه:** د مغيره بن شعبه نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ وو چه مسح ئې کوله په موزو باندې. او وئيلی دي غير د محمد نه: په شا د موزو باندې.

(١): انظر حديث رقم: ١٤٩، سنن الترمذي/الطهارة ٧٣ (٩٨)، (تحفة الأشراف: ١١٥١٢) (حسن صحيح)

[۱٦٢]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ يَعْنِي ابْنَ غِيَاثٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: "لَوْ كَانَ الدِّينُ بِالرَّأْيِ، لَكَانَ أَسْفَلُ الْخُفِّ أَوْلَى بِالْمَسْحِ مِنْ أَعْلَاهُ، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى ظَاهِرِ خُفَّيْهِ".

**ترجمه**: د علي رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وائي، كه چېرې وى دين په راى باندې نو وو به لاندې طرف د موزو اولى په مسح د اعلى طرف نه، او بيشكه ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلى وو چه مسح ئې كوله په ظاهر د موزو باندې.

**تشريح**: ۲: ﴿عَنْ عَلِيٍّ رضى الله عنه – قَالَ لَوْ كَانَ الدِّينُ بِالرَّأْيِ﴾ په دې باب كښې مصنف رحمه الله درې احاديث ذكر كړى دى، اول د مغيره بن شعبة رضي الله عنه حديث چه په هغې كښې مسح على ظاهر الخفين ذكر ده، دويم د على رضي الله عنه دا روايت چه كه د دين مدار صرف په رائې او عقل باندې وې نو په ځائې د ظاهر خفين د باطن خفين مسح به مشروع وې، دا دواړه احاديث د احنافو او د حنابله دلائل دى چه مسح صرف د خفين په پورته حصه باندې كول پكار دى.

وړاندې تلو سره مصنف رحمه الله د مغيره بن شعبه رضي الله عنه يو بل روايت بيان كړو چه دهغې راوى كاتب مغيره دې په هغې كښې ظاهر الخفين او باطن الخفين دواړه مذكور دى، هغه د شوافعو او مالكيانو دليل دې.

[۱٦٣]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنِ الْأَعْمَشِ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: مَا كُنْتُ أَرَى بَاطِنَ الْقَدَمَيْنِ إِلَّا أَحَقَّ بِالْغَسْلِ حَتَّى رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى ظَهْرِ خُفَّيْهِ.

**ترجمه**: د اعمش نه روايت دې دې حديث په اسناد دده سره، على رضي الله عنه وئيلى دى: نه يم زه چه وينم باطن د خپو مگر ډېر حقدار په وينځلو، تر دې چه اوليدلو رسول الله صلى الله عليه وسلم چه مسح ئې كوله په ظاهر د خفينو باندې.

**تشريح**: ۳: ﴿قوله قَالَ ما كُنْتُ أرَى أنَّ بَاطِنَ الْقَدَمَيْنِ الا أَحَقُّ بِالْغسل﴾ په دې جمله كښې دوه احتمالات دى اول دا چه د باطن القدمين نه مراد باطن الخفين او د غسل نه مراد مسح ده په دې صورت كښې مطلب ظاهر دى، دويم احتمال دا دې چه دا دې په ظاهر باندې كيخودلې شى د قدمين نه دې قدمين او د غسل نه دې غسل مراد واخستلى شي نو په دې صورت كښې به مطلب دا وى چه ما په اودس كښې د قدمين لاندې حصه وينځل زيات ضرورى گڼرله په نسبت د پورته حصې، خو چه كله ما رسول الله صلى الله عليه وسلم اوليدو چه هغوى صرف په ظاهر خفين باندې مسح كوى او په باطن خفين باندې نه كوى نو بيا زما دا خيال پاتې نه شو زما رائې بدله شوه.

### د سيدنا على رضي الله عنه د كلام مطلب:

ټول شراح حديث د على رضي الله عنه په دې كلام كښې باطن الخفين نه اسفل الخفين مراد اخستلې

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۰٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۹۵)، سنن الدارمي/الطهارة ٤۳ (۷٤۲) (صحيح)

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۰٤) (صحيح)

دې یعنی هغه حصه کومه چه د زمکې سره متصل وی، او د شیخ ابن الهمام رحمه الله رائې دا ده چه د باطن الخفین نه د خفین هغه دننه حصه مراد ده کومه چه د بدن سره متصل وی خو ظاهره دا ده چه بغیر د نزع خفین نه د دننه حصې مسح څنګه کیدې شی هم په دې وجه شارحینو دا مطلب نه دې اختیار کړې خو فی نفسه د شیخ ابن الهمام رحمه الله رائې په ژور نظر باندې بناء ده، او یو لحاظ سره معقول خبره ده ځکه چه په اودس او مسح علی الخفین سره مقصود ازاله د حدث ده نه ازاله د نجاست او ګردوغبار، او د حدث تعلق د بدن سره دې لهذا د خفین کومه حصه چه د بدن سره متصل وی هم هغه د مسح زیات مستحق ده.

**فائده**: د سیدنا علی رضی الله عنه دا ارشاد ګرامی چه زمونږ د دین او احکام شرع مدار په عقل باندې نه دې دا بالکل صحیح ده خو ددې مطلب دا هم نه دې چه د دین او شریعت احکام د عقل خلاف دی، فقهاء او اصولین ډیر احکاماتو لره غیر مدرک بالرائې لیکلې دی یعنی بعض احکام شرعیه داسې دی چه هغې ته زمونږ عقلونه نه رسیږی خو د خلاف عقل کیدو د قول جراءت چا هم نه دې کړې، په دې وجه الحمد لله زمونږ د شریعت ټول احکامات د عقل سلیم او د فطرت عین مطابق دی، د اصحاب عقل اولین مصداق حضرات انبیاء علیهم السلام دی ثم الامثل فالامثل.

[۱۶۳](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: لَوْ كَانَ الدِّينُ بِالرَّأْيِ لَكَانَ بَاطِنُ الْقَدَمَيْنِ أَحَقَّ بِالْمَسْحِ مِنْ ظَاهِرِهِمَا، وَقَدْ مَسَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ظَهْرِ خُفَّيْهِ، وَرَوَاهُ وَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: كُنْتُ أَرَى أَنَّ بَاطِنَ الْقَدَمَيْنِ أَحَقُّ بِالْمَسْحِ مِنْ ظَاهِرِهِمَا حَتَّى رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى ظَاهِرِهِمَا، قَالَ وَكِيعٌ: يَعْنِي الْخُفَّيْنِ، وَرَوَاهُ عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، كَمَا رَوَاهُ وَكِيعٌ، وَرَوَاهُ أَبُو السَّوْدَاءِ، عَنِ ابْنِ عَبْدِ خَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: رَأَيْتُ عَلِيًّا تَوَضَّأَ فَغَسَلَ ظَاهِرَ قَدَمَيْهِ، وَقَالَ: لَوْلَا أَنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه**: د اعمش نه روایت دې د دې حدیث، په دی کښې دې علی رضی الله عنه وئیلی دی: که چیرې وی دین په رای باندې، نو وی به باطن د خپو ډیر حقدار د ظاهر د دوارو نه، او بیشکه مسح کړې وه نبي صلی الله علیه وسلم په ظاهر د موزو باندې، او روایت کړی دی ددې وکیع د اعمش نه په خپل سند سره، هغه وئیلی دی: وم زه چه ما ګمان کولو چه باطن د خپو ډیر حقدار دی په مسح باندې د ظاهر د دوارو نه، تردې چه ما اولیدلو رسول الله صلی الله علیه وسلم چه مسح ئې کوله په ظاهر د دوارو. وئیلی دي وکیع: قصد کولې ئې موزې، او روایت کړی دی عیسی بن یونس د اعمش نه لکه چه روایت کړی دی وکیع، او روایت کړی دی ابو السوداء د ابن عبد خیر نه و هغه د خپل پلار نه، هغه وائی: اودس اوکړو نو وئې وینځل ظاهر د قدمونو، هغه اووئیل: که چیرې ما نه وی لیدلی رسول الله صلی الله علیه وسلم چه دایې کول. او حدیث ئې سوق کړو.

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۰٤) (صحیح)

[۱۶۵](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ، وَمَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ مَحْمُودٌ: أَخْبَرَنَا ثَوْرُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ، عَنْ كَاتِبِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: "وَضَّأْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفَّيْنِ وَأَسْفَلَهُمَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَبَلَغَنِي أَنَّهُ لَمْ يَسْمَعْ ثَوْرٌ هَذَا الْحَدِيثَ مِنْ رَجَاءٍ.

**ترجمه**: د مغیره بن شعبه نه روایت دي هغه وائي: نو ما اودس اوکړو د نبي ﷺ په غزا د تبوک کښې، مسح ئې اوکړه په بره طرف د موزو او په لاندې طرف د موزو. وئیلی دي ابوداود: ماته دا خبره رارسیدلي ده چه بیشکه ثور سماع نه ده کړې د رجاء نه.

**د احنافو او د حنابله د طرف نه د حدیث جوابونه:**

﴿قوله فَمَسَحَ أَعْلَى الْخُفَّيْنِ وَأَسْفَلَهُمَا﴾ دا د باب آخری حدیث دې چه په هغې کښې مسح علی خفین لاندې او باندې دواړه ذکر شوې دی کوم چه د شوافعو او مالکیانو دواړو موافق دی امام ابوداؤد رحمه الله په دې باندې کلام فرمائیلي دي هغه دا چه ثور بن یزید دا حدیث د رجاء بن حیوه نه نۀ دې اوریدلي دا حدیث منقطع دې، او امام بیهقی رحمه الله ددې حدیث په سند کښې یو بل علت بیان کړې دې هغه دا چه بعض راویانو دا حدیث د کاتب مغیره نه مرسلا نقل کړې دې، پس په ترمذی کښې عبدالله بن المبارک رحمه الله دا حدیث داسې نقل کړې دې ﴿عن ثور عن رجاء قال حدثت عن کاتب المغیرة عن النبی ﷺ﴾ په دې کښې صحابی یعنی مغیره بن شعبه رضی الله عنه نه دې ذکر شوې، او په دې حدیث کښې یو بله جرح ده هغه دا چه کاتب المغیره مجهول دې خو د ابن ماجه په روایت کښې کاتب المغیره په تعین سره ذکر شوې دې او دغه شان ﴿عن وراد کاتب المغیرة﴾ لهذا دا اشکال خو به رفع شی او نور اشکالات په خپل ځائې باندې باقی دی.

د شوافعو د طرف نه دا جواب ورکړې شوې دې چه دا حدیث اګرچه ضعیف دې خو په فضائل اعمال کښې په ضعیف حدیث باندې عمل جائز دې، په دې وجه چه شوافع د اسفل خفین مسح صرف سنت او فضیلت منی، لهذا د اشکال هیڅ خبره نشته.

**په فضائل کښې په ضعیف حدیث باندې د عمل شرطونه:**

زمونږ د طرف نه حضرت په بذل کښې د ملا علی قاری رحمه الله نه نقل کولو سره دا جواب ورکړې دې چه په ضعیف حدیث (۲) باندې عمل په فضائل اعمال کښې هغه وخت صحیح دې چه کله هغه حدیث ضعیف د یو حدیث صحیح یا حسن خلاف نه وی، بله دا چه په ضعیف حدیث باندې عمل په هغه فضائل اعمال کښې کیدې شی کوم چه د نورو دلائلو نه ثابت وی، او کوم حکم چه ابتدائی وی هلته په ضعیف حدیث باندې عمل په فضائل اعمال کښې هم صحیح نه دې، خو دا کیدې شی چه فی نفسه یو څیز ثابت دې او دهغې نور

(۱): سنن الترمذي/الطهارة ۷۲ (۹۷)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۵ (۵۵۰)، موطا امام مالك/الطهارة ۸ (۴۱)، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۳۷)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ۴۱ (۷۴۰) (ضعیف)

(۲) په دې مسئله باندې تفصیلی کلام د مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله کتاب الاجوبة الفاضلة عن الاسئلة العشرة المتکاملة کښې زما د نظر نه تیر شوې ده. هم دغه شان په انهماء السکن مقدمة اعلاء السنن کښې هم په دې باندې بحث کړې شوې دې.

فضیلت د یو ضعیف حدیث نه ثابتیږی نو بیشکه هلته ضعیف حدیث معتبر کیدې شی، او دلته دا د اسفل خف د مسح حکم په یو صحیح حدیث کښې هم نه دې ثابت صرف هم په دې ضعیف حدیث کښې ذکر شوې دې، که مونږ د اسفل خف مسح ددې حدیث په وجه باندې اومنو نو په حدیث ضعیف باندې د یو حکم شرعی بناء لازمیږی، په نورو الفاظو د حکم ابتدائی ثبوت د حدیث ضعیف نه لازمیږی.

بله دا چه په ضعیف حدیث باندې د عمل کولو دپاره یو بل قید هم لیکلې شوې دې، هغه دا چه حدیث ضعیف شدید الضعف یا موضوع نه وی، او د شدید الضعف مطلب دا دې چه دهغې په سند کښې یو راوی مهتم بالکذب یا کثیر الغلط او متروک نه وی.

## بَابٌ فِي الْاِنْتِضَاحِ

### باب دې په بیان د اوبو شیندلو کې

د انتضاح شارحینو ډیری معنی لیکلې دی، ۱: ابن رسلان فرمائی چه الانتضاح عند الجمهور رش الفرج بالماء بعد الوضوء یعنی د اودس د فراغت نه پس د وسوسو د ختمولو دپاره شرمگاه ته مخامخ په کپړې باندې د اوبه څاڅکی کول. ۲: امام نووی رحمه الله فرمائی ﴿ قال المحققون هو الاستنجاء بالماء ﴾ ۳: صب الماء علی الاعضاء، ۴: د استنجاء بالماء په وخت په شرمگاه باندې اوبه اچول چه د تقاطر بالکل انقطاع راشی.

په ترجمة الباب کښې د مصنف رحمه الله مراد په ظاهر کښې معنی اول ده او مصنف رحمه الله په دې باب کښې درې احادیث ذکر فرمائیلې دی په حدیث اول او حدیث ثالث کښې د نضح په هغه معانی مذکوره نه په ظاهر کښې اول معنی مراد ده او په حدیث ثانی کښې ظاهره دا ده چه دویمه معنی مراد ده، او د تاویل نه پس هغه هم په اوله معنی باندې محمول کولې شو، او د ترمذی په روایت کښې ﴿من حدیث ابی هریرة ﴾ مرفوعا داسې دی ﴿ جاءنی جبرئیل فقال یا محمد اذا توضات فانتضح ﴾ دلته د انتضاح درې واړه معنې بغیر د تکلف نه مراد کیدې شی، ۱: اې محمد ﷺ چه کله تاسو د اودس نه فارغ شئ نو په خپله جامه باندې د اوبو څاڅکی کوئ. ۲: چه کله تاسو د اودس اراده اوفرمایئ نو دهغې نه مخکښې استنجاء بالماء کوئ. ۳: چه کله تاسو اودس کوئ نو په اندامونو باندې ښه طریقې سره اوبه اوبهیوئ او صرف د اندمونو په مسح کولو باندې اکتفاء مه کوئ.

[۱۶۶] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ هُوَ الثَّوْرِيُّ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ الْحَكَمِ الثَّقَفِيِّ أَوِ الْحَكَمِ بْنِ سُفْيَانَ الثَّقَفِيِّ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَالَ يَتَوَضَّأُ وَيَنْتَضِحُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَافَقَ سُفْيَانَ جَمَاعَةٌ عَلَى هَذَا الْإِسْنَادِ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: الْحَكَمُ، أَوِ ابْنُ الْحَكَمِ.

**ترجمه:** د سفیان بن الحکم الثقفی نه روایت دې هغه وئیلی دی: وو رسول الله ﷺ چه کله به ئې اودس ماتی کولو نو اودس به ئې کولو او اوبه به ئې شیندلې خپل فرج باندی. وئیلی

(۱): سنن النسائی/الطهارة ۱۰۲ (۱۳٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۸ (٤٦۱)، (تحفة الأشراف: ۳٤۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۱۷۹) (صحیح)

دي ابوداود: موافقت کړی دی سفیان سره یوي ډلې په دې اسناد، او بعضو وئیلی دی: الحکم او یا ابن الحکم.

**تشریح:** ۱ قوله عَنْ سُفْيَانَ بْنِ الْحَكَمِ الثَّقَفِيِّ ﴾ (۱) ددې راوی په نوم کښې اختلاف دې بعض سفیان بن الحکم وائی او بعض حکم بن سفیان، د امام ابوحاتم رازی، علی بن المدینی او امام بخاری رحمهم الله رائې دا ده چه صحیح حکم بن سفیان دې.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَافَقَ سُفْيَانَ جَمَاعَةٌ ﴾ ددې حدیث په سند کښې چه د راویانو کوم اختلاف دې مصنف رحمه الله په دې باندې تنبیه فرمائی هغه دا چه د سند په آخر کښې چه کوم راوی دې یعنی سفیان بن حکم یا حکم بن سفیان بعض راویانو د هغه نه پس په سند کښې د ﴿ عن ابیه ﴾ اضافه کړې ده چه په روستو دواړو سندونو کښې راځی، او بعض ﴿ عن ابیه ﴾ نه دې ذکر کړې، مصنف رحمه الله فرمائی څنګه چې سفیان په دې سند کښې ﴿ عن ابیه ﴾ نه دې ذکر کړې هم دغه شان یو جماعت په دې خبره کښې د سفیان موافقت کړې دې، د جماعت مصداق چه د بیهقی د کلام کتلو نه معلومیږی کوم چه په بذل کښې ذکر شوی دې، ابو عونة روح بن القاسم، اوجریر بن عبدالحمید، کښې دې درې واړو هم چه کله دا روایت د منصور نه ذکر کړو نو د ﴿ عن ابیه ﴾ اضافه ئې نه ده کړې.

[۱۶۷](۲) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ هُوَ ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ ثَقِيفٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَالَ ثُمَّ نَضَحَ فَرْجَهُ".

**ترجمه:** د ثقیف یو سړی روایت کوي د خپل پلار نه هغه وئیلی دی: ما رسول الله ﷺ اولیدلو چه اودس ئې مات کړو بیا ئې خپل فرج باندې اوبه وشیندلې.

**تشریح:** ﴿ قوله ثَنَا سُفْيَانُ ﴾ ځان پوهه کړه چه په اول سند کښې د سفیان نه مراد سفیان ثوری دې او په دې دویم سند کښې د سفیان نه چه کوم ابن ابی نجیح نه روایت کوی، د هغه نه مراد سفیان بن عیینة دې، امام بیهقی رحمه الله فرمائی چه سفیان بن عیینة په دې سند کښې کله د ﴿ عن ابیه ﴾ اضافه کوی چه زمونږ په دې سند کښې دی، او کله اضافه نه کوی، که په دې سند کښې هم د سفیان نه مراد سفیان ثوری مراد کړې شی لکه چه په اول سند کښې سفیان ثوری مراد دې نو د کلام مضمون به مختل شی کما لا یخفی علی الفطن اللبیب.

[۱۶۸](۳) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ الْحَكَمِ، أَوِ ابْنِ الْحَكَمِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَالَ ثُمَّ تَوَضَّأَ وَنَضَحَ فَرْجَهُ".

---

[1] روي هذا اللفظ علي عشرة اوجه ذكرت في البذل عن الحافظ وغيره وحاصل ما في المقام، انهم اختلفوا في التعبير باسم هذا الراوي، فبعضهم يقولون سفيان بن الحكم بعضهم الحكم بن سفيان، وقال بعضهم علي الابهام يعني عن رجل من ثقيف والامر الثاني ان بعض الرواة يقولون بعده عن ابيه وبعضهم لا، وايضا الصحيح الحكم بن سفيان كما قال البخاري وعلي بن المديني وابوحاتم الرازي وهل للحكم صحبة؟ قال البخاري لا، قال ابوزرعة نعم)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۴۲۰) (صحيح)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۴۲۰) (صحيح)

**ترجمه:** حکم او یا ابن الحکم روایت کوي د خپل پلار نه، بیشکه رسول الله ﷺ اودس مات کړو بیا ئي اودس اوکړو او خپل عورت ته ئي اوبه وشیندلې

## باب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا تَوَضَّأَ

### باب دې په بیان دهغې کې چې سړې به څه دعا وایې کله چې اودس کوي

﴿ توضاء ﴾ په درې معنی کښې مستعمل دې ﴿ اراد الوضوء، شرع فی الوضوء، فرغ عن الوضوء﴾ دلته آخری معنی مراد ده د مصنف رحمه الله غرض د اودس په اختتام باندې چه کومه دعاء منقول ده دهغې بیانول دی، د اودس په شروع کښې چه کومه دعاء اولوستلې شی دهغې باب په شروع کښې راغلو، اوس چونکه د ابواب وضوء د بیان خاتمه کیږی په دې وجه دلته د اختتام دعاء بیان فرمائی.

ځان پوهه کړه چه د اودس دعاء ګانې دوه قسمه دی، بعض هغه کومې چه پس د فراغت نه لوستلې شی، او بعض هغه کومې چه د اودس په وخت کښې په هر هر اندام باندې لوستلې کیږی، د کومو نه چه فقهاء کرام په دعاء الاعضاء سره تعبیر کوی د بعد الفراغ دعاء یعنی شهادتین په احادیث صحیحه سره ثابت دی، د ابوداؤد ترمذی نه علاوه په مسلم کښې هم موجود ده، او د ترمذی په روایت کښې په دې دعاء کښې ﴿ اللهم اجعلنی من التوابین واجعلنی من المتطهرین ﴾ زیادت دې چه د ابوداؤد او مسلم په روایت کښې نشته، خو په دې حدیث د ترمذی کښې اضطراب دې.

په معارف السنن کښې لیکلې دی چه اذکار او ادعیه د اودس کوم چه د قوی روایاتو نه ثابت دی څلور دی درې مرفوعا ثابت دی، او یو موقوفا علی ابی سعید الخدری رضی الله عنه.

۱: بسم الله والحمد الله: دا د اودس په شروع کښې ده، علامه عینی رحمه الله دا په شرح د هدایه کښې د طبرانی په حوالې سره ذکر کړې ده «بعض فقهاء کرامو داسې لیکلې ده بسم الله العظیم والحمد لله علی دین الاسلام»

۲: هغه دعاء کومه چه په حدیث الباب کښې مذکور ده یعنی شهادتین.

۳: ﴿ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي، وَوَسِّعْ لِي فِي دَارِي، وَبَارِكْ لِي فِي رِزْقِي ﴾ رواه النسائی وابن السنی فی عمل الیوم واللیلة. ۴: ﴿ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ، أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ﴾ رواه النسائی فی عمل الیوم واللیلة.

زه وائم چه ابن السنی په عمل الیوم واللیلة کښې په اذکار وضوء باندې درې ابواب قائم کړی دی، ۱: باب التسمیة علی الوضوء ۲: ما یقول بین ظهرانی وضوئه یعنی د اودس په مینځ کښې دعاء په دې کښې هغوی صرف یو دعاء ﴿ اللهم اغفرلی ذنبی الخ ﴾ ذکر فرمائیلې ده، ۳: باب ما یقول اذا فرغ من وضوئه او په دې کښې هغوی دوه دعاګانې ذکر کړې دی، اول سبحانک اللهم.. الخ او دویم شهادتین. حافظ ابن القیم ددې څلورو نه درې ذکر کړی دی او منځنۍ ئې نه ده ذکر کړې.

## د اودس د اندامونو د دعا ګانو بحث:

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه په بعض کتابونو د احنافو او شوافعو طحطاوي په روضة المحتاجين او انوار ساطعه وغيره کښې د دعاء الاعضاء په نوم باندې د هر اندام بيله بيله دعاء ليکلې ده د روضة المحتاجين محشي ليکي چه دا دعاء ګانې په تاريخ ابن حبان وغيره کښې د رسول الله ﷺ نه په ډيرو طرقو سره منقول دی، دا روايات اګرچه ضعيف دي خو په فضائل اعمال کښې په حديث ضعيف باندې عمل جائز دې، او علامه طحطاوي رحمه الله فرمائی چه ددې دعاء ګانو په ځائې ددې چه رسول الله ﷺ ته ئې نسبت اوشي سلف صالحين ته ئې نسبت کول زيات اولی دی، بل هغوی دا هم ليکلې دی چه د حافظ ابن حجر رحمه الله نه ددې دعاګانو په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائيل چه دا مرفوعا ثابت نه دی.

زه وايم چه حافظ ابن القيم، ابن العربی، ابن دقيق العيد او امام نووی رحمهم الله په کتاب الاذکار کښې ليکلې دی چه د اودس دوران کښې راغلې دعاءګانې بې اصل دی بلکه ابن دقيق العيد رحمه الله ليکلې دی چه ﴿يجب الاقتصار على الوارد﴾ چه کومې دعاګانې د رسول الله ﷺ نه منقول دی په هغې باندې اکتفاء کول پکار دی زه وايم چه دا د ابن دقيد العيد خپله رائې ده، ګينې کوم فقهاء کرام چه قائل دی هغوی هم دا منی چه دا دعاء ګانې دې د مسنون کيدو په نيت سره او نه لوستلې شی بلکه مستحب السلف کيدو په نيت باندې، زمونږ شيخ رحمه الله په حاشيه د بذل کښې ليکی چه دې دعاګانو ته بې اصل نه شی وئيلې کيدې دا صحيح ده چه د دې په ثبوت کښې ضعف دې، مولانا عبدالحئ صاحب رحمه الله په سعايه کښې په دې دعاء ګانو باندې بحث فرمائيلې دې او د دې اصل ئې ليکلې دې، احقر عرض کوی چه د علامه طحطاوی رحمه الله خبره ډيره مناسب او معتدل ده چه دې دعاګانو ته دې مسنون او نه وئيلې شی بلکه مستحب العلماء ګڼړلو سره دې هغه اولوستلې شی.

[۱۶۹] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ يَعْنِي ابْنَ صَالِحٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُدَّامَ أَنْفُسِنَا نَتَنَاوَبُ الرِّعَايَةَ رِعَايَةَ إِبِلِنَا، فَكَانَتْ عَلَيَّ رِعَايَةُ الْإِبِلِ فَرَوَّحْتُهَا بِالْعَشِيِّ، فَأَدْرَكْتُ رَسُولَ اللهِ يَخْطُبُ النَّاسَ، فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُحْسِنُ الْوُضُوءَ، ثُمَّ يَقُومُ فَيَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ، يُقْبِلُ عَلَيْهِمَا بِقَلْبِهِ وَوَجْهِهِ، إِلَّا قَدْ أَوْجَبَ، فَقُلْتُ: بَخٍ بَخٍ، مَا أَجْوَدَ هَذِهِ. فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ الَّتِي قَبْلَهَا: يَا عُقْبَةُ أَجْوَدُ مِنْهَا، فَنَظَرْتُ، فَإِذَا هُوَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، فَقُلْتُ: مَا هِيَ يَا أَبَا حَفْصٍ؟ قَالَ: إِنَّهُ قَالَ آنِفًا قَبْلَ أَنْ تَجِيءَ: مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُحْسِنُ الْوُضُوءَ ثُمَّ يَقُولُ حِينَ يَفْرُغُ مِنْ وُضُوئِهِ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، إِلَّا فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ، يَدْخُلُ مِنْ أَيِّهَا شَاءَ"، قَالَ مُعَاوِيَةُ: وَحَدَّثَنِي رَبِيعَةُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ.

(۱): صحيح مسلم/الطهارة ٦ (٢٣٤)، سنن النسائي/الطهارة ١١١ (١٥١)، سنن الترمذي/الطهارة ٤١ (٥٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٠ (٤٧٠)، (تحفة الأشراف: ٩٩١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٦/٤، ١٥١، ١٥٣)، سنن الدارمي/الطهارة ٤٤ (٧٤٣) (صحيح)

**ترجمه:** د عقبه بن عامر نه روایت دی، هغه وائی: وو مونږ د رسول الله ﷺ سره خدمت کونکي د خپل ځان، په نمبر به مونږ کوله چوپانی (ساتل د اوښانو) نو یو ورځ وو په ما باندې نمبر د ساتلو د اوښانو، نو ما راوستلې ځانې د شپې تیرولو ته د ماښام په وخت کښې، نو ما بیاموندلو رسول الله ﷺ چه خطبه ئې ورکوله خلکو ته، نو ما واوریدل د رسول الله صلی الله علیه وسلمنه ، په تاسو کښې چې څوک اودس کوی اوښه اودس اوکړي، بیا پاسیږي نو دوه رکعاته اوکړي، متوجه وي دې دواړو ته په زړه او په مخ باندې، نو ده جنت واجب کړو په ځان باندی، نو ما اووئیل: وا وا، دا څومره ښه زیری دی، نو یو سړي اووئیل چه زما نه مخکښې وو هغه چه د دینه مخکښې وو ای عقبه ډیر ښه دی د دېنه، نو ما وکتل نو هغه عمر بن الخطاب وو، نو ما اووئیل: هغه څه شی دی ای ابو حفص! نو هغه اووئیل: هغه لګ مخکښې اووئیل ستا د راتلو نه مخکې، نشته یو کس ستاسو نه چه اودس کوي نو ښائسته اوکړي اودس، بیا ووایی چه کله فارغ شي د اودس نه: اشهد ........ زه ګواهي کوم چه نشته لائق د عبادت مګر یو الله دی چه یوازې دی او شریک نه لري، او بیشکه محمد د الله بنده دی او رسول دی. مګر کولاو به شي هغه ته د جنت اته دروازې، د کومې نه چه ئې خوښه وي داخل به شي. وئیلی دي معاویه: حدیث بیان کړی دی ماته ربیعه بن یزید، د ادریس نه او هغه د عقبه بن عامر نه.

**مضمون حدیث :**

قوله :( خُدَّامَ أَنْفُسِنَا نَتَنَاوَبُ الرِّعَايَةَ ) مضمون حدیث دا دې چه عقبة بن عامر رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د نبوت د شروع په زمانه کښې (د فتوحات نه مخکښې) خپل ځان خادمان وو هغه وخت خادمان وغیره مونږ سره نه وو، خپلې اوښې به مو په نمبر نمبر خپله څرولې د یو ځل خبره ده چه کله زما د څرولو نمبر راغلو نو زه اوښانو لره د ماښام په وخت چراګاه نه راواپس شوم نو آبادئ ته رارسیدلو سره مې اوکتل چه رسول الله ﷺ خلقو ته وعظ فرمائی، وړاندې د حدیث مضمون ښکاره دې.

قوله :( فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ ) ددې نه معلومه شوه چه د جنت اته دروازې دی، حال دا دې چه په نورو احادیثو کښې د جنت د دروازو تعداد ددې نه ډیر زیات راغلې دې، ددې دوه جوابونه دی، یو دا چه دلته ( من ) مقدر دې ( ای من ابواب الجنة الثمانية ) لکه چه د ترمذی په روایت کښې دی، دویم جواب هغه دې کوم چه په کوکب کښې لیکلې شوې دې؛ هغه دا چه دا دروازې دوه قسمه دی یو داخلی او اندرونی او دویم بیرونی یعنی صدر دروازې او پهاټک، نو دلته صدر دروازې مراد دی کیدې شی چه هغه صرف اته وی لکه چه د جهنم په باره کښې راځی چه دهغې اووه دروازې دی.

علماء کرامو ددې اته دروازو نومونه هم لیکلې دی، باب الایمان، باب الصلوة، باب الصیام، (د دې بل نوم باب الریان هم دې)، باب الصدقة، باب الکاظمین الغیظ، باب الراضین، باب الجهاد، باب التوبة، مطلب دا دې چه په چا کښې ددې اعمالو نه د کوم عمل غلبه وی هغه به هم په هغه دروازه باندې داخلیږي.

[۱۷۰]() حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يَزِيدَ الْمُقْرِءُ، عَنْ حَيْوَةَ وَهُوَ ابْنُ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي عَقِيلٍ، عَنِ ابْنِ عَمِّهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ. وَلَمْ يَذْكُرْ أَمْرَ الرِّعَايَةِ، قَالَ: عِنْدَ قَوْلِهِ: فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ، ثُمَّ رَفَعَ بَصَرَهُ إِلَى السَّمَاءِ، فَقَالَ: وَسَاقَ الْحَدِيثَ بِمَعْنَى حَدِيثِ مُعَاوِيَةَ.

**ترجمه**: عقبة بن عامر الجهني د نبي ﷺ نه روايت کوي په مثل دهغي، اوذکرئي نه کړه خبره د څرولو، هغه اووئيل په وخت دوينا دهغه کي (فأحسن الوضوء) بيا ئي اوچتې کړې سترګې خپلې اسمان ته، نو وئې وئيل: او د دحديث سوق ئي اوکړو په معنى د حديث د معاويه.

**تشريح**: ﴿ قوله ثُمَّ رَفَعَ بَصَرَهُ إِلَى السَّمَاءِ ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د اودس نه پس د شهادتين لوستلو په وخت نظر د آسمان طرف ته اوچتول پکار دی، ډيرو فقهاء کرامو ددې تصريح کړې ده.

## باب الرَّجُلِ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ

### باب دې په بيان د سړي کې چې ډېر مونځونه کوي په يو اودس

ددې باب مقابل ﴿ باب الرجل يجدد الوضوء من غيرحدث ﴾ دشروع په بابونوکښې تيرشوې دې.

### په مسئله مترجم بها کښې اقوال د علماء کرامو :

په مسئله مترجم بها کښې څلور اقوال دی بعض صحابه کرام او تابعين لکه عبدالله بن عمر، ابوموسی اشعری رضی الله عنهم، عبيده سلمانی او سعيد بن المسيب رحمهم الله نه منقول دی چه اودس د هر مانځه دپاره مطلقا واجب دې، او ظاهريه او شيعه وائی چه وضوء لکل صلوة صرف د مقيمين په حق کښې واجب دې، او ابراهيم النخعی رحمه الله فرمائی چه په يو اودس باندې صرف پنځه مونځونه لوستلې کيدې شی، ددې نه پس دوباره اودس کول پکار دی، او جمهور علماء ائمه اربعه رحمهم الله فرمائی چه په يو اودس باندې چه څومره غواړی مونځونه کولې شی تر څو چه بې اودسه شوې نه وی.

[۱۷۱]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ الْبَجَلِيِّ، قَالَ مُحَمَّدٌ هُوَ أَبُو أَسَدِ بْنُ عَمْرٍو، قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ الْوُضُوءِ، فَقَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ، وَكُنَّا نُصَلِّي الصَّلَوَاتِ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ".

**ترجمه**: محمد وائې ما تپوس اوکړو د انس بن مالک نه د اودس په باره کښې، هغه اووئيل: وو نبي ﷺ چه اودس به ئې کولو د هر مانځه دپاره، او وو مونږ چه کول به مو ډېر مونځونه په يو اودس باندې.

**تشريح**: قوله :﴿ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ الْبَجَلِيِّ ﴾ خان پوهه کړه چه عمرو بن عامر دوه دی يو البجلی او يو الانصاری، دلته د البجلی تصريح ده، او ددې بالمقابل په ترمذی کښې د الانصاری

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۹۷٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٥٠) (ضعيف)

(۲): صحيح البخاري/الطهارة ٥٤ (٢١٤)، سنن الترمذي/الطهارة ٤٤ (٦٠)، سنن النسائي/الطهارة ١٠١ (١٣١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٢ (٥٠٩)، (تحفة الأشراف: ١١١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١٣٢، ١٩٤، ٢٦٠، سنن الدارمي/الطهارة ٤٦ (٧٤٧) (صحيح)

تصریح ده خو دلته په ابوداؤد کښې وړاندې راغې هو ابو اسد بن عمرو (دا د ابو اسد کنیت نه دې بلکه په اضافی معنی کښې مراد دې) مطلب دا دې چه دا عمرو بن عامر هغه دې چه د هغوی د ځوی نوم اسد دې، ددې تقاضا هم دا ده چه دا دې بجلی وی، ځکه چه اسد د عمرو بن عامر البجلی ځوئې دې نه د انصاری.

## د راوی سند عمرو بن عامر تحقیق:

خو حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې دا تحقیق فرمائیلې دې چه دا عمرو بن عامر الانصاری دې کوم چه په ترمذی کښې هم دې بجلی نه دې، ځکه چه په تقریب التهذیب کښې د عمرو بن عامر په نوم باندې د تمیز علامت لیکلې شوې دې چه دهغې مطلب دا دې چه دا د صحاح ستة راوی نه دې، او عمرو بن عامر الانصاری باندې د جماعت علامت لیکلې شوې دې چه دهغې مطلب دا دې چه دې د صحاح ستة راوی دې، بله دا چه عمرو بن عامر بجلی د شپږمې طبقې دې او انصاری د پنځمې طبقې، د پنځمې طبقې راویان هغه وی چه یو یا دوه صحابه کرام رضی الله عنهم ئې لیدلی وی، او د طبقه سادسه راویان هغه دی چه د هغوی لقاء د یو صحابی سره هم نه وی ثابته، او دلته عمرو بن عامر داسې وائی چه ما د انس بن مالک رضی الله عنه نه تپوس اوکړو، لهذا دا عمرو بن عامر د طبقه سادسه نه شی کیدې بلکه د طبقه خامسه نه دې، او هغه الانصاری دې نه البجلی.

[۱۷۲](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ، وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: إِنِّي رَأَيْتُكَ صَنَعْتَ الْيَوْمَ شَيْئًا لَمْ تَكُنْ تَصْنَعُهُ، قَالَ: عَمْدًا صَنَعْتُهُ".

**ترجمه**: د بریده نه روایت دې هغه وائي: چه اوکړل رسول الله ﷺ په ورځ د فتح مکه پنځه مونځونه په یو اودس، او مسح ئې اوکړه په موزو، نو اوو‌ئیل هغه ته عمر: بیشکه ما اولیدلې چه ودې کړل نن ورځ داسې شی چه تا مخکښې نه وو کړی، هغه وفرمایل: قصداً مې داسې اوکړل.

**تشریح**: قوله: ﴿ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمَ الْفَتْحِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ ﴾
یعنی رسول الله ﷺ د فتح مکه په ورځ پنځه واړه مونځونه په یو اودس باندې اوفرمائیل او مسح علی الخفین ئې هم اوفرمائیله، په دې باندې سیدنا عمر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوفرمائیلو چه ما تاسو نن په داسې کار باندې اولیدئ په کوم چه مې ددې نه مخکښې نه وئ لیدلې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل ما قصدا داسې اوکړل.

ظاهره دا ده چه د سیدنا عمر رضی الله عنه مراد په دې کار سره صلوات خمسه لره په یو اودس ادا کول دی، د مسح علی الخفین متعلق تپوس نه دې ځکه چه مسح علی الخفین

(۱): صحيح مسلم/الطهارة ٢٥ (٢٧٧)، سنن الترمذي/الطهارة ٤٥ (٦١)، سنن النسائي/الطهارة ١٠١ (١٣٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٢ (٥١٠)، (تحفة الأشراف: ١٩٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٥٠، ٣٥١، ٣٥٨)، سنن الدارمي/الطهارة ٣ (٦٨٥) (صحيح)

خو به رسول الله ﷺ عام طور په سفرونو کښې کوله، رسول الله ﷺ اوفرمائيل ما قصدا داسې اوکړل چه معلومه شي چه تجديد د اودس ضروري نه دې

دلته يو سوال دې هغه دا چه رسول الله ﷺ ددې نه مخکښې د هر مانځه دپاره چه کوم اودس فرمائيلو هغه وجوبا وو که استحبابا؟ امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه په دې کښې دواړه احتمالات دی يو دا چه رسول الله ﷺ هر مانځه ته اودس په طريقه د وجوب فرمائيلو، او بيا دا وجوب د فتح مکه په ورځ باندې منسوخ شوې وی او دويم احتمال دا دې چه رسول الله ﷺ به اودس د هر مانځه دپاره په طريقه د استحباب فرمائيلو او بيا د فتح مکه په ورځ باندې رسول الله ﷺ د بيان جواز دپاره دا ترک کړې وی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه احتمال ثانی اقرب الی الصواب دې، په دې باندې علامه شوکانی رحمه الله اضافه فرمائيلې ده چه د عبدالله بن حنظله حديث (کوم چه په ابوداؤد باب السواک کښې مخکښې تير شوې دې) په هغې سره د احتمال اول تائيد کيږی، ځکه چه دهغې نه معلوميږی چه په شروع کښې په رسول الله ﷺ باندې اودس د هر مانځه دپاره واجب وو، خو د امام طحاوی رحمه الله دا وينا چه ددې نسخ د فتح مکه په ورځ اوشوه صحيح نه ده، بلکه نسخ به ددې نه مخکښې په غزوه خيبر کښې منل پکار وی لکه چه د سويد بن النعمان د حديث نه معلوميږی، چه دهغې مضمون دا دې چه هغوی فرمائی مونږ د غزوه خيبر په سفر کښې د رسول الله ﷺ سره وو چه کله هغوی مقام صهبا ته اورسيدل کوم چه خيبر ته نزدې دې نو هلته رسول الله ﷺ د مازيگر او بيا د ماښام مونځ په يو اودس باندې ادا اوفرمائيلو، او دا واقعه د فتح مکې نه يو کال مخکښې ده.

## بَابُ تَفْرِيقِ الْوُضُوءِ

### باب دې په بيان د جداوالي د اندامونو په اودس کې

د تفريق نه مراد ترک موالاة دې يعنی د اودس په اندامونو وينځلو کښې تفريق کول

### په موالاة في الوضوء کښې مذاهب ائمه :

دا خبره په مخکښې ابوابو کښې راغله چه د مالکيانو په نزد موالاة في الوضوء واجب او د اودس د صحت دپاره شرط دې، که يو سړې عمدا تفريق اوکړی نو دهغې اودس باطل دې، خو د نسيان په صورت کښې معاف دې او په کتب مالکيه کښې موالاة نه په فور سره تعبير کړې شوې دې هم دغه شان د حنابله په نزد هم موالاة فرض دې د هغوی په نزد په نسيان سره هم نه ساقط کيږی، او د احنافو په نزد موالاة صرف سنت دې، د امام شافعی رحمه الله دواړه اقوال دی، ابن رسلان رحمه الله فرمائی چه د امام شافعی رحمه الله په قول قديم کښې واجب دې او اصح الروايتين عن احمد هم دغه شان دې، او قول جديد د امام شافعی رحمه الله او روايت ثانيه د امام احمد رحمه الله هم په شان د احنافو دې. (كذا فى هامش البذل)

[۱۷۳]()(۱) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ، أَنَّهُ سَمِعَ قَتَادَةَ بْنَ دِعَامَةَ، حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، "أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ تَوَضَّأَ وَتَرَكَ عَلَى قَدَمِهِ مِثْلَ مَوْضِعِ الظُّفُرِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ارْجِعْ فَأَحْسِنْ وُضُوءَكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ بِمَعْرُوفٍ عَنْ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ، وَلَمْ يَرْوِهِ إِلَّا ابْنُ وَهْبٍ وَحْدَهُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مَعْقِلِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ الْجَزَرِيِّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، قَالَ: ارْجِعْ فَأَحْسِنْ وُضُوءَكَ.

**ترجمه**: روایت دی د انس بن مالک نه، بیشکه یو سړی راغی نبي ﷺ ته، او بیشکه اودس ئې کړی وو او پریخودی ئې وو په خپل خپه باندې په اندازې د نوک اوچ ځائې، نو اووئیل هغه ته رسول الله ﷺ: لاړ شه ښائسته اودس اوکړه. وئیلی دي ابوداود: دا حدیث معروف نه دی د جریر بن حازم نه، او روایت ئې نه دی کړی مګر ابن وهب ځانله، او روایت شوی دی د معقل بن عبید الله الجزري نه، هغه د ابو الزبیر نه، هغه د جابر نه، هغه د عمر نه، هغه د نبي ﷺ نه په مثل د هغې، هغه وئیلی دي: لاړ شه او ښائسته اودس اوکړه.

**تشریح**: قوله: ﴿ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ الخ - ارْجِعْ فَأَحْسِنْ وُضُوءَكَ ﴾ د مضمون حاصل دا دې چه یو سړی د رسول الله ﷺ مخکښې اودس اوکړو، او د هغوی د خپو څه حصه اوچه پاتې شوه نو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو ﴿ ارْجِعْ فَأَحْسِنْ وُضُوءَكَ ﴾ یعنی لاړ شه خپل اودس صحیح کړه، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې لیکی چه د احسان وضوء شکل دا دې چه څه اوچ پاتې شوې دی هغه دې تر کړې شی، پس په دې سره په غسل اعضاء کښې د تفریق جواز ثابت شو.

امام خطابی شافعی او ابن بطال مالکی رحمهما الله ددې حدیث نه په وجوب د موالاة باندې استدلال کړې دې.

## د حدیث الباب نه په وجوب د موالاة باندې استدلال صحیح نه دې:

خو امام نووی رحمه الله دهغوی استدلال رد فرمائیلې دې، چه دا استدلال کم از کم ضعیف ګینې باطل دې ځکه چه رسول الله ﷺ چه د احسان وضوء کوم حکم فرمائیلې دې دهغې دوه صورتونه کیدې شی، یو دا چه استیناف د اودس اوکړې شی، دویم دا چه څومره حصه اوچه پاتې شوې ده هغه لونده کړې شی، اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال، خو که هغوی د اودس د اعادې حکم فرمائیلې وې نو بیا خو دا استدلال صحیح وو اګرچه دې وخت کښې هم دا احتمال دې چه د اعادې حکم په طریق د استحباب وی نه په طریق د وجوب.

[۱۷۴]()(۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، وَحُمَيْدٌ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَى قَتَادَةَ.

**ترجمه**: حسن د نبي ﷺ نه روایت کړی دی په معنی قتاده سره.

(۱): سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۳۹ (۶۶۵)، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۴۶)، وحدیث عمر أخرجه: صحیح مسلم/الطهارة ۱۰ (۲۴۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۳۹ (۶۶۶) (صحیح)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۵۱۲، ۱۸۵۶۳) (صحیح)

[۱۷۵]([1]) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ بُجَيْرٍ هُوَ ابْنُ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يُصَلِّي وَفِي ظَهْرِ قَدَمِهِ لُمْعَةٌ قَدْرُ الدِّرْهَمِ لَمْ يُصِبْهَا الْمَاءُ، فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعِيدَ الْوُضُوءَ وَالصَّلَاةَ".

**ترجمه:** د خالد نه روايت دې هغه روايت کوي د بعضو صحابو د نبي ﷺ نه، بيشکه نبي ﷺ وليده يو سړی چه مونځ ئې کولو او په شا د خپې د هغه کښې چمک وو (اوچ ځای) په اندازه د يو درهم چه اوبه ورته نه وې رسيدلې نو امر ورته اوکړو نبي ﷺ چه راواپس کړي اودس او مونځ.

## د وجوب موالات د قائلينو استدلال اودهغې جواب:

تشريح: قوله :﴿ فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم- أَنْ يُعِيدَ الْوُضُوءَ وَالصَّلَاةَ ﴾ په دې حديث کښې رسول الله ﷺ د اودس د اعادې حکم فرمائيلې دې چه ددې نه په ظاهره کښې د قائلين موالاة تائيد کيږی، خو اول خو دا حديث ضعيف دې ځکه چه ددې په سند کښې بقية بن الوليد راوی دې چه کوم حجت نه دې، ابو مسهر غسانی د هغوی په باره کښې فرمائی ﴿احاديث بقية ليس بنقية فمن منها علی تقية ﴾ بله دا چه هغه مدلس دې، او دلته په طريقه د عنعنه روايت کوی، ددې نه علاوه دا هم احتمال دې چه د اودس د اعادې حکم رسول الله ﷺ په طريقه د استحباب ورکړې وی.

## موالات ته واجب نه ويونکو دلائل:

کوم حضرات چه د وجوب موالاة قائل نه دی هغوی وائی چه الله پاک په آيت وضوء کښې صرف د غسل اعضاء او مسح حکم فرمائيلې دې، په هغې کښې د موالاة چرته هم ذکر نشته، بله دا چه امام بيهقی رحمه الله د ابن عمر رضی الله عنهما يو صحيح اثر نقل کړې دې چه يو ځل هغوی په بازار کښې اودس اوکړو او صرف مخ لاسونه ئې وينځل او په سر ئې مسح اوکړه، او د جنازې د مونځ ورکولو دپاره ئې مسجد ته تشريف يوړولو، هلته رسيدو سره ئې د ټولو حاضرينو مخکښې مسح علی الخفين اوکړه سره ددې چه اوبه پرې اوچې شوې وې او په دې باندې په حاضرينو کښې چا هم نکير اونکړو.

## د احاديث الباب خلاصه :

خلاصه دا چه په دې باب کښې مصنف رحمه الله درې احاديث ذکر کړی دی، د درې وارو مضمون مشترک دې چه يو سړې د اودس کولو نه پس د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د هغوی د خپو يوه حصه د نوک برابر اوچه پاتې شوې وه، په دې درې احاديثو کښې اول او دويم حديث کښې دا دی چه رسول الله ﷺ دې سړی ته د احسان وضوء حکم اوفرمائيلو، ظاهره دا ده چه ددې دوه احاديثو نه په موالاة باندې استدلال صحيح نه دې، او په دريم حديث کښې رسول الله ﷺ د اودس د دوباره کولو حکم اوفرمائيلو، دهغې جواب مونږ ورکړې دې.

---

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳/۱) (صحيح)

## باب إذَاشَكَّ فِي الْحَدَثِ

### باب دی، چې کله شک وي په بې اودسی کې

### د نواقض وضوء ابتداء :

ځان پوهه کړه چه د تیر باب یعنی باب تفریق الوضوء پورې احکام او مسائل د اودس د مصنف رحمه الله د ترتیب مطابق پوره شو، اوس د مصنف رحمه الله مقصود نواقضو د اودس بیانول دی چه دهغې ابتداء په دې وړاندې باب (باب الوضوء من القبلة) نه کوی ګویا هغه د نواقض وضو اول باب دې، او دا باب په طور د تمهید او توطئه دې ځکه چه په شک فی الحدث کښې دواړه جهتونه دی، د ناقض کیدو هم او د نه کیدو هم، ګویا دا د ادنی درجې ناقض دې په دې وجه مصنف رحمه الله دا باب په شروع کښې راوړلو ترقی د ادنی نه اعلی طرف ته وی، ددې کتاب ابواب ډیر مهذب ومرتبت او قابل تعریف دی فلله در المصنف.

### (دحدیث لغوی او اصطلاحی معنی):

ځان پوهه کړه چه د حدث لغوی معنی د تجدد یعنی وجود بعد العدم ده، او شرعا حدث نوم دې دهغه حالت کوم چه ناقض دطهارت وی، ددې جمع احداث راځی لکه دسبب جمع اسباب.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة :

مسئلة الباب مختلف فیه دې د جمهور علماء ثلاثه مذهب دا دې چه که یو سړی ته د مخکښې نه بالیقین طهارت حاصل دې او دهغې نه پس ئې په زوال طهارت کښې تردد او شک واقع کیږی نو دا څه ضرر رسونکې نه دې، (الیقین لا یزول الا بمثله) یعنی یقینی خبرې لره یقین ختمولې شی،

### (د امام مالک مسلک)

د امام مالک رحمه الله نه په دې کښې مختلف روایتونه دی، یو د جمهورو په مثل، په دویم روایت کښې دا دی چه شک فی الحدث مطلقا ناقض دې، دریم روایت دا دې چه که خارج صلوة شک واقع شی نو بیا خو ناقض دې لهذا بغیر د اودس د اعادې نه دې مونځ شروع نه کړی، او که په مانځه کښې دننه شک راشی نو بیا ناقض نه دې او هم دا مذهب دې د حسن بصری رحمه الله

### (د امام مالک په نزد داخل صلوة او خارج صلوة په شک راتلو کښې فرق)

داخل صلوة او خارج صلوة کښې د فرق یو وجه خو دا ده چه په حدیث کښې فی الصلوة قید مذکور دې او دویمه وجه ددې دا ده چه که داخل صلوة شک فی الحدث ناقض اومنلې شی نو په دې سره ابطال د عمل لازمیږی، او دا د (لا تبطلوا اعمالکم) خلاف دې او په خارج الصلوة کښې دا خرابی نه لازمیږی لهذا هلته به شک فی الحدث لره ناقض منلې شی، خو حافظ ابن حجر رحمه الله د مالکیانو په استدلال باندې اعتراض کړې دې چه ابطال عمل خو به هغه وخت لازمیږی چه کله د شک فی الحدث په حالت کښې صحة د صلوة تسلیم کړې شی او صحة صلوة هغه وخت کیدې شی چه کله شک فی الحدث ناقض وضوء

نه وی، پس که شک فی الحدث فی الواقع ناقض نه وی نو په خارج کښې هم ورته ناقض نه دی وئیل پکار، او که فی الواقع ناقض وضوء وی نو ابطال د عمل څه شو.

[۱۷۶]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ أَبِي خَلَفٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، وَعَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ، عَنْ عَمِّهِ، قَالَ: شُكِيَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ يَجِدُ الشَّيْءَ فِي الصَّلَاةِ حَتَّى يُخَيَّلَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: "لَا يَنْفَتِلْ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا، أَوْ يَجِدَ رِيحًا".

**ترجمه:** عباد بن تمیم د خپل تره نه روایت کوي، هغه وائي: شکایت اوکړی شو پیغمبر ﷺ ته د سړي په باره کښې چه احساس اوکړي د یو شي په مانځه کښې تردې چه څه خیال راشي، نو اووئیل هغه: نه دې ځي تردې چه واوري اواز، او یا بوئی محسوس کړی مونځ دې نه ماتوی.

(**د عم مصداق**):

قوله :﴿ عَنْ عَمِّهِ ﴾ یعنی سعید بن المسیب او عباد بن تمیم دواړه روایت کوی د عم عباد نه د چا نوم چه عبدالله بن زید بن عاصم دې.

قوله :﴿ شُكِيَ إِلَى النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم- الرَّجُلُ ﴾ یعنی د رسول الله ﷺ نه د یو سړی په باره کښې تپوس اوکړې شو کوم چه د مانځه په حالت کښې څه محسوس کړی مثلاً په طریق د شک او وهم خروج ریح وغیره، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا سړي دې مونځ نه ماتوی تر څو چه ئې په خپلو غوږونو باندې د هوا آواز نه وی اوریدلې او یا ئې په پوزه باندې بدبو نه وی محسوس کړې، په غوږ او پوزه باندې محسوس کیدل چونکه ذریعه ده د حصول یقین دپاره په دې وجه رسول الله ﷺ هغه ذکر اوفرمائیله، ګیني مقصود حصول یقین دې که هغه هر څنګه حاصل شی.

په حدیث کښې د ﴿ فی الصلوة ﴾ د قید نه بعض مالکیانو استدلال کړې دې چه دا حکم یعنی شک ناقض نه کیدل د داخل الصلوة سره خاص دې که خارج الصلوة دا شک واقع شی نو بیا دا حکم نه دې.

(**شکایت کونکې څوک وو؟**):

ځان پوهه کړه چه دا لفظ ﴿ عن عمه شکی ﴾ دلته هم او دغه شان د مسلم په روایت کښې په صیغه د مجهول وارد دې او ﴿ الرجل ﴾ د نائب فاعل کیدو د وجې نه مرفوع دې، فاعل د شکایت څوک دې؟ ددې روایت نه هیڅ نه معلومیږی خو د بخاری د روایت (۲) نه اشارة او د ابن خزیمة د روایت نه صراحة معلومیږی چه فاعل هم دا عم عباد دې کوم چه په سند کښې

(۱): صحیح البخاري/الوضوء ٤ (١٣٧)، ٣٤ (١٧٧)، البیوع ٥ (٢٠٥٦)، صحیح مسلم/الطهارة ٢٦ (٣٦١)، سنن النسائي/الطهارة ١١٥ (١٦٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٤ (٥١٣)، (تحفة الأشراف: ٥٢٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩/٤، ٤٠) (صحیح)

(۲) څکه چه په بخاری کښې دا لفظ الف سره دغه شان راغلې دې عن عمه انه شکا الي رسول الله ﷺ الرجل ددې فعل معروف کیدل متعین نه دی.

مذکور دي، امام نووي رحمه الله فرمائي چه د فاعل د معلوميدو نه پس هم دا لفظ ﴿ شکی ﴾ په صيغه د معروف نه شي لوستلي کيدي، علامه عيني رحمه الله د امام نووي رحمه الله د کلام ترديد کولو سره فرمائيلي دی چه د فاعل معلوميدو نه پس دا معروف لوستلي شو، او ضمير د فاعل به راجع وی د عم عباد طرف ته ځکه چه د هغه فاعل کيدل معلوم شو، حضرت په بذل کښي ددې ټولو خبرو د نقل کولو نه پس سکوت فرمائيلي دې خو واضحه دې وی چه د امام نووي رحمه الله خبره صحيح ده او د عيني ترديد صحيح نه دې، وجه دا ده چه دا لفظ د مسلم او ابوداؤد په روايت کښې په ﴿ شکی ﴾ سره ليکلي شوې دې او په دې صورت کښي ددې مجهول لوستل متعين دی، ځکه چه د ناقص واوی د کيدو د وجې نه ﴿ شکی ﴾ فعل مجهول په يا سره او ﴿ شکا ﴾ فعل معروف الف سره ليکل ضروری دی څنګه چه ﴿ دعاوعفا ﴾ فعل معروف په الف سره ليکلي شی، او چه کله فعل مجهول وی نو په ياء سره دې اوليکلي شی لکه ﴿ دعی وعفی ﴾ هم دغه شان لفظ ﴿ شکی ﴾ هم دې خو ﴿ رمی ﴾ په فعل معروف کښې م په يا سره ليکلي شی ځکه چه دا ناقص يائی دې، خلاصه دا شوه چه د فاعل متعين کيدو نه پس به لفظ ﴿ شکی ﴾ دلته مجهول لوستلي شی نه معروف، کذا افاده العلامة السندی فی حاشية النسائی وهکذا سمعت من شيخی مولانا محمد اسعد الله رحمه الله.

[۱۷۷][1] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَوَجَدَ حَرَكَةً فِي دُبُرِهِ أَحْدَثَ أَوْلَمْ يُحْدِثْ فَأَشْكَلَ عَلَيْهِ، فَلَا يَنْصَرِفْ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا".

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله صلی الله عليه وسلم اووئيل: کله چه وي يو ستاسو نه په مانځه کښې نو بيامونډلو حرکت په خپله شرمګاه کښې، چه اودس ئې مات شوی دی او که نه دی، نو اشکال ورته پيښ شو، نه دې ځي د مانځه نه تردې چه واوري اواز او يا بيامومي باد.

## ريح القبل ناقض دې يا نه؟

قوله :﴿ فَوَجَدَ حَرَكَةً فِي دُبُرِهِ ﴾ ددې مقام سره مناسب يوه بله مسئله ده، هغه دا چه ريح القبل ناقض دې يا نه؟ مسئله مختلف فيه ده، د شوافعو او حنابله په نزد ناقض دی او د مالکيانو په نزد ناقض نه دی، او د احنافو په نزد دواړه روايتونه دی امام محمد رحمه الله فرمائي چه ناقض دی او امام کرخي رحمه الله فرمائي چه ناقض نه دی.

قوله :﴿ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا ﴾ دا خبره مونږ مخکښې هم بيان کړه چه سماع صوت او وجدان ريح کنايه ده د حصول يقين نه تر څو پورې چه د ريح د خروج يقين نه وی شوې تر هغه وخته پورې د شرمګاه په حرکت سره اودس نه باطليږي، چونکه سماع صوت او وجدان

[1]: تفرد به أبو داود، تحفة (۱۲٦۲۹)، (تحفة الأشراف: ۱۲٦۲۹)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الطهارة ۲٦ (۳٦۲)، سنن الترمذي/الطهارة ٥٦ (۷٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۷٤ (٥۱٦)، مسند احمد (٤۱٤/٤)، سنن الدارمي/الطهارة ٤۷ (۷٤۸) (صحيح)

ریح د حصول یقین ذریعه او سبب دې په دې حیثیت سره ئې هغه ذکر کړه ګینې لازمیږی چه کوم سړې اصم او اخشم [۱] وی د هغه اودس خو دې بالکل په خروج ریح سره مات نه شی.

## باب الوُضوءِ مِنَ القُبلَةِ

### باب دې په بیان د اودس کې د چپې نه

د دې ځائې نه د نواقض وضوء بیان شروع کیږی، په دې دنیا کښې په یو حالت کښې هم بقاء او دوام نشته، هر کمال لره زوال شته........ قبلة : یعنی قبلة المراءة... مراد ترې نه مس کول (لاس لګول) د زنانه دی، مس کول د زنانه ناقض د اودس دې یا نه؟ دا مسئله مختلف فیه ده، د شوافعو په نزد مطلقا ناقض ده، د احنافو په نزد مطلقا ناقض نه ده، د مالکیانو او حنابله په نزد تفصیل دې، که مس مراة په شهوت سره وی نو ناقض د اودس ده ګینې نه ده.

**په مس المراءة باندې د اودس د ماتیدو مسئله په قران کریم کښې ذکر ده او که نه؟**

اصل کښې دا مسئله په قرآن کریم کښې په آیت د تیمم ﴿ اوجَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ ﴾ کښې ذکر شوې ده، په دې کښې دوه قراءتونه دی، یو ﴿ لامستم النساء ﴾ د باب مجرد نه، دویم ﴿ لامستم النساء ﴾ د باب مفاعلت (مزید) نه، امام شافعی رحمه الله فرمائی چه لمس په خپله معنی حقیقی یعنی لمس بالید باندې محمول دې او ددې نه ثابتیږی چه مس مراءة ناقض د اودس ده، او احناف فرمائی چه د لمس نه مراد جماع ده ځکه چه رئیس المفسرین سیدنا عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ددې تفسیر په جماع سره کړې دې او علماء کرامو لیکلې دی چه د ابن عباس تفسیر په نورو باندې راجح دې، بله دا چه په دې آیت کریمه کښې دویم قراءت ﴿ لامستم ﴾ والا دې چه دهغې نه د احنافو تائید کیږی لهذا که ﴿ لمستم ﴾ والا قراءت د لمس بالید معنی ته زیات نزدې دې نو ﴿ لامستم ﴾ والا قراءت اقرب الی الجماع دې لکه چه ابوبکر جصاص رازی رحمه الله لیکلې دی.

بله دا چه احنافو آیت کریمه په کومه معنی باندې محمول کړې دې په دې کښې زیاته فائده ده ځکه چه ددې نه معلومیږی چه څنګه په حدث اصغر کښې تیمم مشروع دې هم دغه شان په حدث اکبر کښې هم مشروع دې په خلاف د شوافعو د تفسیر چه دهغې نه د جنب دپاره د تیمم حکم نه معلومیږی، بله دا چه د احنافو تائید د حدیث الباب نه هم کیږی.

بله دا چه د احنافو تائید د حدیث الباب نه هم کیږی ځکه ددې احادیثو نه هم دا ثابتیږی چه مس مرأة ناقض وضوء نه ده، د احنافو په مسلک کښې د حدیث او آیت ترمینځه راتلونکی تعارض نه سلامتی ده، او د شوافعو تفسیر د حدیث الباب معارض راځی ځکه چه شوافع حضرات د حدیث الباب د تضعیف یا تاویل پسې شوې دی لکه چه وړاندې به معلومه شی

حضرات مالکیه او حنابله ددې آیت او احادیث د تعارض رفع کولو دپاره یو بل شکل اختیار کړو هغه دا چه که مسح مراة په شهوت سره وی نو بیا خو ناقض دې ګینې نه

---

[۱] اصَم (کوڼې) او اخشم چه د بوئې اخستلو قوت ئې خراب وی)

دي، لهذا آيت کريمه کښې د لمس نه مس بالشهوت مراد دې، ځکه چه هغه ته ناقض وضوء وئيلې شوې دې او په حديث کښې د مس نه مس بغير د شهوت مراد ده په دې وجه هغه ناقض وضوء نه شوه. (قال ابوداؤد وهو مرسل).

[۱۷۸]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي رَوْقٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبَّلَهَا وَلَمْ يَتَوَضَّأْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا رَوَاهُ الْفِرْيَابِيُّ وَغَيْرُهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَهُوَ مُرْسَلٌ، إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عَائِشَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: مَاتَ إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ وَلَمْ يَبْلُغْ أَرْبَعِينَ سَنَةً، وَكَانَ يُكْنَى: أَبَا أَسْمَاءَ.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې، بېشکه نبي ﷺ خکل کړه او اودس ئې اونه کړو. وئيلې دي ابوداود: هم داسې روايت کړې فريابي. وئيلې دي ابوداود: او هغه مرسل دی، ابراهيم التيمي د عائشې نه نه دی اوريدلی. وئيلې دي ابوداود: مړ شو ابراهيم التيمي او څلويښتو کالو ته نه وو رسيدلی، او وو چه مُکنی کيده په ابو اسماء سره.

**حديث الباب باندې د مصنف رحمه الله کلام:**

ځان پوهه کړه چه د تقبيل مراءة په سلسله کښې چه د عائشې رضي الله عنها کوم حديث دې هغه مصنف رحمه الله په دوه طرقو سره ذکر فرمائيلې دې يو په طريق د ابراهيم التيمي عن عائشة، دويم په طريق د حبيب بن ثابت عن عروة، او په هر دوه طُرقو باندې مصنف رحمه الله کلام فرمائيلو سره حديث ته ضعيف وئيلې دې.

په طريق اول باندې کلام دا دې چه دا حديث منقطع دې، ځکه چه دا ابراهيم تيمی د عائشې رضي الله عنها نه روايت کوی حال دا چه د تيمی سماع د عائشې رضي الله عنها نه ثابت نه ده، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه انقطاع صرف په دې طريق کښې ده، ددې نه علاوه نور بعض طرق د انقطاع نه سالم دی، پس دا روايت په دارقطني کښې موجود دې او ددې په سند کښې د ابراهيم التيمي او عائشې رضي الله عنها دا طريق د انقطاع نه سالم دې.

[۱۷۹]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ حَبِيبٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبَّلَ امْرَأَةً مِنْ نِسَائِهِ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ"، قَالَ عُرْوَةُ: مَنْ هِيَ إِلَّا أَنْتِ، فَضَحِكَتْ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَكَذَا رَوَاهُ زَائِدَةُ، وَعَبْدُ الْحَمِيدِ الْحِمَّانِيُّ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَعْمَشِ.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه بېشکه نبي ﷺ خکل کړه يوه ښځه د خپلو بيبيانو نه، بيا ووتلو مانځه ته او اودس ئې اونه کړو. اووئيل عروه: هغه نه ده مګر ته يې؟ نو هغې وخندل. وئيلې دي ابوداود: دارنګه روايت کړې دی زائده او عبد الحميد الحماني د سليمان الاعمش نه.

**تشريح:** ۲. ﴿قوله حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ حَبِيبٍ عَنْ عُرْوَةَ﴾

---

[1]: سنن النسائي/الطهارة ۱۲۱ (۱۷۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۱۵)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ۶۳ (۸۶)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۶۹ (۵۰۲)، مسند احمد (۲۱۰/۶) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۷۱) (صحيح)

داد حديث عائشه رضي الله عنها دويم طريق دي، ددې په باره کښې مصنف رحمه الله فرمائی ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَكَذَا رَوَاهُ زَائِدَةُ وَعَبْدُ الْحَمِيدِ الْحِمَّانِيُّ عَنْ سُلَيْمَانَ الأَعْمَشِ ﴾ يعنى وكيع چه دا روايت څنګه د اعمش نه اخستلې دې هم دغه شان ئې د زائده او عبدالحميد نه نقل کړې دې، مطلب دا دې چه د وکيع په روايت کښې چه څنګه عروه غير منسوب واقع شوې دې هم دغه شان ددې دواړو په روايت کښې هم واقع شوې دې.

د دې نه پس مصنف رحمه الله دا حديث د اعمش نه په يوه بله طريقې سره ذکر کړې دې ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ - يَعْنِي ابْنَ مَغْرَاءَ - حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ ﴾ په دې کښې تصريح ده چه دا عروة عروة بن الزبير نه دې بلکه عروة المزنى دې او وړاندې تلو سره هم مصنف رحمه الله د بعض ائمه حديث کلمات نقل کولو سره هم دا ثابتوى چه دا عروة عروة المزنى دې او عروة المزنى بالاتفاق مجهول دې، لهذا په اول طريق خو دا کلام شو چه دا مرسل يعنى منقطع دې او په دې دويم طريق باندې دا کلام شو چه په دې کښې عروة المزنى دې کوم چه بالاتفاق مجهول دې، لهذا په حديث الباب کښې چه کوم د احنافو مستدل دې هغه ثابت نه دې.

[۱۸۰] () حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَخْلَدٍ الطَّالْقَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ مَغْرَاءَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، أَخْبَرَنَا أَصْحَابٌ لَنَا، عَنْ عُرْوَةَ الْمُزَنِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُد، قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ لِرَجُلٍ: احْكِ عَنِّي أَنَّ هَذَيْنِ يَعْنِي حَدِيثَ الأَعْمَشِ هَذَا، عَنْ حَبِيبٍ، وَحَدِيثَهُ بِهَذَا الإِسْنَادِ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ، أَنَّهَا تَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلاَةٍ، قَالَ يَحْيَى: احْكِ عَنِّي أَنَّهُمَا شِبْهُ لاَ شَيْءَ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَرُوِيَ عَنِ الثَّوْرِيِّ، قَالَ: مَا حَدَّثَنَا حَبِيبٌ إِلاَّ عَنْ عُرْوَةَ الْمُزَنِيِّ يَعْنِي لَمْ يُحَدِّثْهُمْ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ بِشَيْءٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد وَقَدْ رَوَى حَمْزَةُ الزَّيَّاتُ، عَنْ حَبِيبٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ حَدِيثًا صَحِيحًا.

**ترجمه**: حديث بيان کړې دى مونږ ته اعمش، خبر راکړې دى مونږ ته بعضو ملګرو زمونږ، د عروة المزنى نه، او هغه د عائشې نه په دې حديث باندې. وئيلى دي ابوداود: اووئيل يحيى بن سعيد القطان يو سړي ته چه بيان کړه زما د طرف نه دا دواړه حديثونه: يعني حديث د اعمش چه دادی په روايت د حبيب، او حديث د هغه په دې سند په باره د مستحاضه کې: چه هغه به اودس کوي د هرمانځه دپاره. وئيلى دي يحيى: حکايت اوکړه زما طرف نه چه دغه دواړه مشابه د لاشئ سره دي. وئيلى دي ابوداود: او روايت شوى دى د ثوري نه، هغه وئيلى دى: حديث نه دى بيان کړى مونږ ته حبيب د عروه المزني نه يعني حديث ئې نه دى بيان کړې دوى ته د عروة بن الزبير په هيڅ شي سره. وئيلى دي ابوداود: او په تحقيق سره روايت کړې دى حمزة الزيات د حبيب نه او هغه د عروة بن الزبير نه، او هغه د عائشې نه صحيح حديث

**تشريح**: قوله ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ لِرَجُلٍ الخ ﴾ مصنف رحمه الله فرمائى چه يحيى بن سعيد القطان يو سړى ته اووئيل (د دې سړى نه مراد على بن المدينى شيخ بخارى رحمه الله دې) چه زما د طرف نه خلقو ته اووايه چه د اعمش دا حديث (حديث الباب او هغه دويم

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۷۶۸، ۱۷۳۷۱) (صحيح)

حدیث کوم چه د مستحاضه په باره کښې دې چه په هغې کښې دی ﴿ انها تتوضاء لکل صلوة﴾ زما په نزد دا دواړه احادیث غیر معتبر او د لاء شئ په درجه کښې دی (دا بل حدیث به وړاندې په ابواب الاستحاضه کښې په ﴿ باب من قال تغتسل من طهر الی طهر ﴾ کښې راشي).

دا دواړه احادیث ولې غیر متعبر اودَ لاشئ محض په درجه کښې دی؟ ددې وجه مصنف رحمه الله وړاندې د سفیان ثوری رحمه الله نه نقل کوی ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرُوِیَ عَنِ الثَّوْرِیِّ الخ ﴾ یعنی سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه حبیب بن ثابت چه کله هم روایت کوی نو د عروة المزنی نه روایت کوی یعنی د عروه بن الزبیر نه نۀ کوی لهذا په حدیث الباب کښې چه کوم عروه دې هغه عروة المزنی شو او هغه بالاتفاق ضعیف او مجهول دی.

د مصنف رحمه الله رائې خو هم دا ده چه په حدیث الباب کښې د عروة نه عروة المزنی مراد دې خو سفیان ثوری رحمه الله چه کومه قاعده کلیه بیان کړې دې چه حبیب بن ابی ثابت د عروة بن الزبیر نه مطلقا روایت نه کوی دا قاعده کلیه مصنف رحمه الله نه منی پس فرمائی ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَقَدْ رَوَى حَمْزَةُ الزَّيَّاتُ عَنْ حَبِيبٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ حَدِيثًا صَحِيحًا ﴾ ددې سند نه معلومیږی چه حبیب کله د عروة بن الزبیر نه هم روایت کوی لهذا بالکلیه د هغوی نه د روایت نفی کول صحیح نه دی.

دلته د صاحب معارف السنن نه تسامح واقع شوې ده چه هغوی فرمائی چه د امام ابوداؤد رحمه الله په نزد د حدیث الباب په سند کښې د عروة نه مراد عروة بن الزبیر دې، په بذل المجهود کښې د حضرت هم هغه رائې ده کومه چه مونږ بیان کړه.

## د عروة نه د عروة بن الزبیر رحمه الله مراد کیدو قرائن:

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې په دې خبره باندې د نیم درځن نه زیات قرائن لیکلې دی چه دا عروه عروه بن الزبیر دې عروة المزنی نه دې، لهذا د مصنف رحمه الله خبره مونږ نه منو، هغه قرائن دا دی!

۱: عبدالرحمن بن مغراء دځا په روایت کښې چه د عروة المزنی د کیدو تصریح ده، هغه ضعیف دې، ۲: په ابن ماجه او مصنف ابن ابی شیبة کښې وکیع د عبدالرحمن بن مغراء مخالفت کړې دې او هغه ته ئې عروة بن الزبیر وئیلې دې. ۳: په دې سند کښې د عروة نه نقل کونکې اصحاب دی کومه چه د جمع صیغه ده او د کوم راوی نه چه یو جماعت نقل کوی هغه به معروف وی نه مجهول، او عروة المزنی بالاتفاق مجهول دی لهذا دا عروة عروة المزنی نه شی کیدې. ۴: عروة بن الزبیر معروف راوی دې او عروة المزنی مجهول دې، او په اکثر روایاتو کښې عروة مطلقا بغیر د نسبت نه راغلې دې، او د محدثینو په نزد د راوی غیر منسوب په باره کښې قاعده دا ده چه هغه په معروف باندې محمول وی، لهذا دا عروة عروة بن الزبیر شو نه عروة المزنی، ۵: په دې روایت کښې دی ﴿ فقلت من هی الا انت ﴾ یعنی چه کله عائشې رضی الله عنها د عروة مخکښې مجملا بیان اوکړو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپلو ازواجو کښې د یوې بی بی تقبیل اوکړو نو په دې باندې عروة اووئیل هغه څوک ده هم ته به نې کنه؟ په دې باندې هغه په خندا شوه، دا سوال او جواب قرینة ده ددې خبرې چه دا عروة

عروة بن الزبير دي ځکه چه د عروة بن الزبير او عائشي ﷞ ترمينځه بې تکلفي او سوال او جواب مشهور او معروف دي، نه د عائشي ﷞ او عروة المزني ترمينځه. ۲: د دارقطني او مسند احمد ډير روايتونه په دې باندې دلالت کوي چه دا عروة عروة بن الزبير دې، ۷: په دې سند کښې د عروة المزني نه روايت کونکي د هغوی شاګردان اصحاب دی چه مجهول دی، لهذا دا سند غير معتبر دې، غرض دا چه مسنف ﷫ چه د حديث الباب په هر دواړو طريقو باندې کوم نقد اوکړو هغه رفع شو.

## د حديث الباب په تائيد کښې نور روايات:

ددې نه علاوه هم په ډيرو روايات حديثيه بخاري وغيره کښې دی چه دهغې نه معلوميږي چه مس مراة ناقض وضوء نه دې، په يو روايت کښې دی چه عائشه ﷞ فرمائي چه زه د شپې د رسول الله ﷺ مخې ته ملاسته اوم او د هغوی د مونځ کولو دوران کښې به زما خپې د سجدې په ځايونو کښې وی ﴿ فاذا اراد ان يسجد غمزني فقبضت رجلي ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ فاذا اراد ان يوتر مسني برجله ﴾ يعنی کله چه به رسول الله ﷺ سجدې ته د تلو اراده اوفرمائيله نو زما بدن خپه وغيره به ئې مس کړل چه په هغې سره به ما خپې راټولې کړې، دلته په عين د مانځه حالت کښې مس المرءة موندلې شی، حافظ ابن حجر ﷫ ددې تاويل کړې دې چه کيدې شی مس په حائل سره وو يا دا د رسول الله ﷺ خصوصيت وی، دا ټولې خبرې هم دغه شان دی د خپل مسلک د حمايت دپاره.

## د امام بيهقي ﷫ په زعم کښې د حديث محمل:

او امام بيهقي ﷫ خو يو عجيبه خبره بيان فرمائيله ده چه حديث په اصل کښې د کتاب الصوم دې کوم چه د قبلة الصائم په باره کښې وو چه رسول الله ﷺ به په حالت صوم کښې تقبيل فرمائيلو خو د بيانونکو راويانو نه په دې کښې وهم واقع شوې دې او داسې روايت ئې کړې دې چه رسول الله ﷺ به د تقبيل نه پس د مانځه دپاره تجديد الوضوء نه فرمائيلو، حضرت سهارنپوری ﷫ فرمائي چه د امام بيهقي ﷫ بغير د دليل نه د راويانو تضعيف کول او هغوی لره په وهم اخته کيدل بيانول د ديانت خلاف دی. والله الموفق

قوله: ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَقَدْ رَوَى حَمْزَةُ الزَّيَّاتُ الخ ﴾ حضرت سهارنپوری ﷫ په بذل کښې ليکلې دی چه غالبا ددې حديث صحيح نه مراد هغه حديث دې کوم چه په ترمذی وغيره کتاب الدعوات کښې هم په دې سند سره ذکر شوې دې، چه دهغې الفاظ دا دی ﴿ اللهم عافني في جسدي وعافني في بصري واجعله الوارث مني لا اله الا الحليم الكريم سبحان رب العرش الكريم والحمد لله رب العالمين ﴾ خو د ترمذی په سند کښې د عروة بن الزبير د کيدو تصريح نشته، کيدې شی چه د امام ابوداؤد ﷫ په نزد هغه عروة بن زبير وی.

.......

# بَابُ الْوُضُوءِ مِنْ مَسِّ الذَّكَرِ

## باب دې په بيان داودس کې د مس کولو د ذکر نه

**مذاهب ائمة**:

مسئلة الباب مختلف فيه ده، د ائمه ثلاثه په نزد مس ذکر ناقض وضوء دې د امام احمد رحمه الله په نزد مطلقا او د امام شافعي رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد ﴿اذا کان المس بباطن الکف﴾ او د احنافو په نزد مطلقا ناقض نه دې، مصنف رحمه الله دلته دوه ابواب قائم کړي دی، په اول باب کښې د مس ذکر ناقض کيدل او د بل باب نه ئې ناقض نه کيدل ثابت کړې دی.

[۱۸۱](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، أَنَّهُ سَمِعَ عُرْوَةَ يَقُولُ: دَخَلْتُ عَلَى مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ فَذَكَرْنَا مَا يَكُونُ مِنْهُ الْوُضُوءُ، فَقَالَ مَرْوَانُ: وَمِنْ مَسِّ الذَّكَرِ؟ فَقَالَ عُرْوَةُ: مَا عَلِمْتُ ذَلِكَ. فَقَالَ مَرْوَانُ: أَخْبَرَتْنِي بُسْرَةُ بِنْتُ صَفْوَانَ، أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ مَسَّ ذَكَرَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ".

**ترجمه**: عبد الله بن ابي بکر نه روايت دې، بيشکه هغه اوريدلي دي د عروه نه، هغه وئيلی دی: زه داخل شوم په مروان باندې نو مونږ ذکر کړل هغه څه چه د هغې نه اودس پکار دی، نو مروان اووئيل: او د مس کولو د ذکر نه؟ نو عروه اووئيل: ماته دا پته نشته، نو مروان اووئيل: خبر راکړې دی ماته بسرة بنت صفوان چه هغې د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دی: چا چه مس کړو خپل ذکر نو اودس دې اوکړي.

**تشريح**: په دې باب کښې مصنف رحمه الله حديث د بسره بن صفوان پيش کړې دې چه په هغې کښې د مس ذکر نافض کيدل معلوميږی، زمونږ د طرف نه ددې حديث دوه جوابونه کړې شوې دی، تضعيف او تاويل يا ترجيح.

### د احنافو د طرف نه د حديث الباب جواب:

د حديث د ضعيف کيدو وجه دا ده چه په دې روايت کښې د عروة او بسرة ترمينځه يا د مروان واسطه ده يا د هغه د شرطي، مروان غير ثقة دې د هغوی روايت قابل استدلال نه دې، د حضرت ګنګوهی تقرير په الکوکب الدری کښې دي اما مروان ففسقه اظهر من الشمس وابين من الامس واما الشرطي فمجهول کما لا يخفی.

جمهورو ددې دوه جوابونه کړي دی، بعض دا وئيلي دی چه مروان حجت او قابل استدلال دې امام بخاري رحمه الله د هغوی روايات په خپل صحيح کښې اخستلې دی او بعض وائی چه دا صحيح ده چه مروان حجت نه دې خو دا روايت بغير د مروان نه هم ثابت دې، يعنی عروة براه راست د بسره نه روايت کوی پس ابن حبان رحمه الله فرمائی ومعاذ الله ان نحتج بمروان ولکن لم

(1): سنن الترمذي/الطهارة ٦١ (٨٢)، سنن النسائي/الطهارة ١١٨ (١٦٣)، الغسل ٣٠ (٤٤٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٣ (٤٧٩)، موطا امام مالك/الطهارة ١٥(٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٦/٦، ٤٠٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٥٠ (٧٥١) (صحيح)

يقنع عروة بقول مروان... يعنى عروة د مروان په قول باندې قناعت نه دې کړې بلکه هغوی براه راست د بسره نه دا مسئله تپوسلې ده، لهذا مروان ددې سند د مينځ نه اوتلو.

زمونږ د طرف نه د اولې خبرې جواب دا دې چه دا صحيح ده چه امام بخاری رحمه الله د هغوی روايت اخستلې دې، او دا په رجال بخاری کښې دې خو د بخاری په هغه رجالو کښې دې چه په هغوی باندې نقد او طعن کړې شوې دې، پس حافظ ابن حجر رحمه الله مروان په مقدمه د فتح البارى کښې په هغه فصل کښې ذکر کړې دې چه په هغې کښې د بخاری متکلم فيه راويان ذکر شوې دی، اسماعيلى فرمائى چه محدثينو په امام بخاری رحمه الله باندې د مروان د رواياتو په تخريج باندې نقد کړې دې، ددې نه علاوه دويمه خبره دا ده چه امام بخاری رحمه الله دغه روايات په متابعاتو کښې اخستلې دی کوم چه هغوی د خپل امارة نه مخکښې بيان کړی دی او د امارة نه روستو روايات ئې نه دی اخستلی، او د دويمې خبرې جواب هغه دې کوم چه خپله د امام بيهقى رحمه الله د کلام نه مستنبط دې هغوی فرمائى چه د حديث بسره تخريج شيخينو په دې وجه نه دې کړې چه په دې کښې اختلاف واقع دې چه دا روايت عروة براه راست د بسره نه روايت کوی او که په واسطه د مروان او د هغه د شرطى، معلومه شوه چه د مروان واسطه کيدل امر محقق نه دې.

امام ابوداؤد رحمه الله د مروان د واسطه کيدو روايت اخستلې دې او امام ترمذی رحمه الله دواړه طريقې ذکر کړې دی او په نسائى کښې يو روايت بغير د واسطې نه دې او يو په واسطه د مروان او يو په واسطه د حرسى (شرطى).

## حديث الوضوء من مس الذكر مووّل دې

مونږ په شروع کښې وئيلې وو چه ددې حديث دوه جوابونه دی، اول تضعيف چه دهغې بيان اوشو، دويم ترجيح يا تاويل، ددې تفصيل داسې دې چه که دا حديث صحيح تسليم کړې شى نو مونږ وايو چه زمونږ په نزد د دويم باب حديث يعنى حديث طلق راجح دې، ځکه چه هغه د رواية الرجال د قبيل نه دې، دويم په دې وجه چه دهغې په سند کښې هيڅ اختلاف او اضطراب نشته، على بن المدينى رحمه الله فرمائى ﴿هو عندى احسن من حديث بسرة﴾.

او که تاويل اوکړې شى نو ددې دروازه هم مفتوح ده، ډير تاويلونه دی:

۱: حديث د بسره په استحباب باندې محمول دې.

۲: په لغوى وضوء باندې محمول دې او دا په دې وجه چه په رواياتو کښې تعارض رانشى.

۳: محمول على ما اذا خرج من الذكر شئ لاجل المس.

۴: د مس ذکر نه مراد مس الذكر بفرج المراة دې کوم ته چه مباشرت فاحشه وائى او دا زمونږ په نزد هم ناقض وضوء دې.

۵: د مس نه مراد مس عند الاستنجاء ده، لهذا استنجاء ناقض شوه نه مس.

شوافعو په دې سلسله کښې د ابوهريره رضى الله عنه حديث هم پيش کړې دې کوم چه په دارقطنى کښې دې، چه دهغې الفاظ دا دی ﴿اذا فضى احدكم بيده الى فرجه فليتوضأ﴾.

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### باب دې په بيان د رخصت په دغې کې

ځان پوهه کړه چه د اول باب حديث يعنی حديث بسرة، او ددې باب حديث يعنی حديث طلق دواړه د سنن اربعه روايتونه دی، په صحيحين کښې د يو نه هم نه دی، خو حديث د بسره په موطاء د امام مالک، صحيح ابن خزيمة او صحيح ابن حبان درې واړو کښې دې، او حديث د طلق د سنن اربعه نه علاوه په صحيح ابن حبان، بيهقی او طحاوی کښې دې.

[۱۸۲](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ بَدْرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَدِمْنَا عَلَى نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَاءَ رَجُلٌ كَأَنَّهُ بَدَوِيٌّ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللهِ، "مَا تَرَى فِي مَسِّ الرَّجُلِ ذَكَرَهُ بَعْدَ مَا يَتَوَضَّأُ؟ فَقَالَ: هَلْ هُوَ إِلَّا مُضْغَةٌ مِنْهُ؟ أَوْ قَالَ: بَضْعَةٌ مِنْهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وشعبة، وابن عيينة، وجرير الرازي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ.

**ترجمه:** قيس بن طلق د خپل پلار نه روايت کوي، هغه وائي: چه مونږ راغلو نبي ﷺ ته، نو راغی يو سړی ګويا چه هغه بدوي وو، نو وئې وئيل: اې د الله نبي! ستا څه خيال دی په مسه کولو د ذکر د سړي کښې ذکر خپل لره پس دهغې نه چه اودس اوکړي؟ نو هغه اووئيل: نه دی هغه مګر يوه ټکړه ده د هغه نه. او يايې اووئيل: «بضعة منه» وئيلی دي ابوداود: ددې روايت کړی دی هشام بن حسان او سفيان الثوري، او شعبه، او ابن عيينة، او جرير الرازي د محمد بن جابر نه، او هغه د قيس بن طلق نه.

[۱۸۳](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَابِرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ، عَنْ أَبِيهِ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، وَقَالَ فِي الصَّلَاةِ.

**ترجمه:** قيس بن طلق د خپل پلار نه روايت کړی دی په خپل اسناد او معنی سره، هغه وئيلی دی: په مانځه کښې.

### په حديث الباب باندې د شوافعو نقد او د هغې جواب:

جمهور د حديث طلق دوه جوابونه کړې دی، اول دا چه دا ضعيف دې ځکه چه په دې کښې يو راوی دې قيس بن طلق د هغوی په باره کښې امام شافعي رحمه الله فرمائی **﴿ قد سالنا عن قيس بن طلق فلم نجد من يعرفه ﴾**.

زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه امام شافعي رحمه الله خو فرمائی چه مونږ د هغوی په باره کښې معلومات اوکړو خو معلومه راته نه شوه چه دا څوک دې؟ مونږ وايو چه کومو حضراتو محدثين کرامو ددې حديث تصحيح يا تحسين کړې دې ښکاره خبره ده چه هغوی ته به د قيس بن طلق په باره کښې معلومات حاصل وی او **﴿ من عرف ﴾** حجت دې په **﴿ من لم يعرف ﴾** باندې.

دويم جواب جمهورو ددې حديث دا ورکړې دې چه دا حديث د طلق منسوخ دې په

---

(۱): سنن الترمذي/الطهارة ٦٢ (٨٥)، سنن النسائي/الطهارة ١١٩ (١٦٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٤ (٤٨٣)، (تحفة الأشراف: ٥٠٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢/٤، ٢٣) (صحيح)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٠٢٣) (صحيح)

حدیث د ابوهریره رضي الله عنه باندي چه دهغې نه مس الذکر ناقض کیدل معلومیږی (چه دهغې الفاظ د اول باب په حدیث کښې تیر شوي دی)، ځکه چه دا حدیث طلق مقدم دې په حدیث ابو هریره رضي الله عنه باندې، ځکه چه قدوم طلق مدینې منورې ته د هجرت په اول کال شوې وو په کوم وخت کښې چه د مسجد نبوی ﷺ تاسیس کیدلو، او د ابوهریره رضي الله عنه اسلام په اووم کال د هجرت دې امام بغوی صاحب المصابیح هم دا جواب کړې دې.

زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه د دعوی نسخ ثبوت په دوه خبرو باندې موقوف دې، اول دا چه د مسجد نبوی ﷺ بناء د رسول الله ﷺ په زمانه کښې صرف یو ځل په ۱ هجری کښې شوې وه، ددې نه پس دوباره مدینې منورې ته نه دې راغلې، او حال دا دې چه دا دواړه خبرې ثابت نه دی ځکه چه د مسجد نبوی ﷺ تعمیر د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دوه کرته شوې دې لکه چه علامه نور الدین صمهودی په وفاء الوفاء کښې تصریح کړې ده، اول ځل په ۱ هجری کښې او دویم ځل د فتح خیبر ۷ هجری په موقع باندې، او دویمه خبره هم ثابت نه ده ځکه چه واقدی او ابن سعد تصریح کړې ده چه قدوم طلق په وفد بنو حنیفه کښې شوې وو، او ددې وفد قدوم په سنة الوفود ۹ هجری کښې دې ددې نه معلومه شوه چه قدوم طلق دوباره اوشو په ۱ هجری کښې او ۹ هجری کښې نو کیدې شی چه سماع طلق په دویم ځل شوې وی لهذا د نسخ دعوی ثابته نه ده، دا بحث په امانی الاحبار کښې په تفصیل سره ذکر کړې دې.

## بَابُ الْوُضُوءِ مِنْ لُحُومِ الإِبِلِ

### باب دې په بیان د اودس کې د غوښو د اوښا نو نه

**مذاهب ائمة :**

مسئله مترجم بها مختلف فیه ده د جمهور علماء ثلاثه په نزد لحم ابل ناقض د اودس نه دې، امام احمد بن حنبل رحمه الله او اسحق بن راهویه رحمه الله ددې قائل دی، په شوافعو کښې امام بیهقی رحمه الله دا اختیار کړې دې او ددې وجه هغوی دا لیکلې ده چه د امام شافعی رحمه الله نه منقول دی **( ان صح حدیث الوضوء من لحوم الابل قلت به )** یعنی که د وضوء من لحوم الابل حدیث ثابت شی نو بیا زه ددې قائل یم او په دې باندې امام بیهقی رحمه الله فرمائی چه په دې مسئله کښې دوه احادیث ثابت دی او صحیح دی، یو د سیدنا براء بن عازب رضي الله عنه حدیث کوم چه په ابوداؤد او ترمذی وغیره کښې دې، دویم د جابر بن سمره رضي الله عنه حدیث کوم چه په مسلم کښې دې، د ابن العربی او امام نووی رحمه الله میلان هم دې طرف ته دې هغوی فرمائی **( هذا المذهب اقوی وان کان الجمهور علی خلافه )** خو خلفاء اربعه او ائمه ثلاثه ددې قائل نه دی.

[۱۸۳](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الرَّازِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوُضُوءِ مِنْ

(١): سنن الترمذي/الطهارة ٦٠ (٨١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٧ (٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٨/٤)، ويأتي المؤلف برقم: (٤٩٣) (صحيح)

لُحُومِ الْإِبِلِ، فَقَالَ: تَوَضَّئُوا مِنْهَا، وَسُئِلَ عَنْ لُحُومِ الْغَنَمِ، فَقَالَ: لَا تَوَضَّئُوا مِنْهَا، وَسُئِلَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي مَبَارِكِ الْإِبِلِ، فَقَالَ: لَا تُصَلُّوا فِي مَبَارِكِ الْإِبِلِ فَإِنَّهَا مِنَ الشَّيَاطِينِ، وَسُئِلَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ، فَقَالَ: صَلُّوا فِيهَا فَإِنَّهَا بَرَكَةٌ".

**ترجمه**: د براء بن عازب نه روایت دې هغه وئیلی دي، پوښتنه اوشوه د رسول الله ﷺ نه د اودس په باره کښې د غوښو د اوښانو نه، نو هغه اووئیل: تاسو اودس کوئ دهغې نه. او سوال ترېنه اوشو د غوښو د ګډو، نو هغه اووئیل: تاسو اودس مه کوئ دهغې نه، او سوال ترېنه اوشو په ځائې د چو کولو د اوښانو کښې، نو هغه اووئیل: تاسو مونځ مه کوئ په ځائې د چو کولو د اوښانو کښې ځکه دا د شیطانانو نه دي، او سوال ترېنه اوشو په جاروګې د ګډو کښې، نو هغه اووئیل: مونځ اوکړئ په هغې کښې بیشکه په هغې کښې برکت دی.

**د جمهورو د طرف نه د حدیث جواب :**

﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ قوله سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الْوُضُوءِ مِنْ لُحُومِ الْإِبِلِ فَقَالَ « تَوَضَّئُوا مِنْهَا » ﴾ دا حدیث د حنابله وغیره دلیل دې، او مصنف رحمه الله هم حنبلی دې، د هغوی میلان هم دې طرف ته دې جمهور علماء ثلاثه کوم چه د وضوء من لحوم الابل قائل نه دی هغوی ددې حدیث دوه جوابونه کړې دی.

اول دا چه په دې احادیثو کښې د وضوء نه مراد شرعی وضوء نه دی مراد بلکه لغوی وضوء مراد دی ځکه چه په لحوم ابل کښې دسومة زائد وی او د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه منقول دی چه ﴿ لان أتوضأ من الكلمة المنتنة أحب الى من ان أتوضأ من اللقمة الطيبة ﴾ ددې نه علاوه بعض نور هم آثار صحابه رضی الله عنهم دی د کومو تخریج چه امام طحاوی رحمه الله کړې دی.

دویم جواب دا دې چه که دا حادیث په وضوء شرعی باندې محمول کړې شی نو بیا دا منسوخ دی په هغه حدیث د جابر رضی الله عنه باندې د کوم تخریج چه اصحاب السنن کړې دې، چه دهغې الفاظ دا دی ﴿ كان اخر الامرين عن رسول الله ﷺ ترک الوضوء مما مست النار ﴾

امام نووی رحمه الله وغیره په قول نسخ باندې اعتراض کړې دې چه کوم حدیث تاسو ناسخ منئ یعنی ترک الوضوء مما مست النار هغه عام دې او وضوء من لحوم الابل والا حدیث خاص دې، عام د خاص دپاره ناسخ نه شی کیدې، بلکه خاص په عام باندې راجح او مقدم وی، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه مونږ وضوء من لحوم الابل په دې حیثیت سره منسوخ نه منو چه هغه خاص دې او بل حدیث عام دې بلکه په دې حیثیت سره چه دا خاص په هغه عام افرادو کښې یو فرد دې پس کله چه عام منسوخ شو نو د ټولو افرادو سره به منسوخ وی.

خو دلته ابن القیم رحمه الله یوه خبره کړې ده چه ډیره قوی ده هغه دا چه تاسو ترک الوضوء مما مست النار والا حدیث لره ناسخ او وضوء من لحوم الابل والا حدیث منسوخ منئ، حال دا چه د وضوء من لحوم الابل والا مسئله د مما مست النار سره بالکل متعلق هم نه ده ځکه چه امام احمد رحمه الله کوم چه د وضوء من لحوم الابل قائل دې هغه ددې نه په هر حال کښې د

اودس قائل دي که لحوم الابل اور مس کړې وی او که نه وی، په لحم ابل نضیج او غیر نضیج کښې هیڅ فرق نشته، پس په کتب حنابله لکه نیل المارب وغیره کښې ددې تصریح ده.
حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ددې جواب ورکړې دې چه ﴿ان عممتم فعممنا﴾ یعنی که تاسو په دې مسئله کښې تعمیم کوئ چه په لحم ابل سره اودس په هر حال کښې واجب دې که هغه کچه وی او که پخه وی نو مونږ وایو چه څنګه په دې حدیث کښې د کچې او پخې قید نشته، دغه شان په دې کښې د خوارک قید هم نشته لهذا تاسو لره د لحم ابل د مسح کولو نه هم د اودس قائل کیدل پکار دی ﴿فما هو جوابکم فهو جوابنا﴾، احقر وائی چه دا بس هسې الزامی جواب دې په دې سره تشفی نه کیږی.
قوله :﴿لاَ تُصَلُّوا فِي مَبَارِكِ الإِبِلِ﴾ مبارک جمع د مبرک ده په وزن د جعفر یعنی د اوښانو غوژل د هغوی د تړلو ځائې، په دې باندې خو اتفاق دې چه په مبارک ابل کښې مونځ کول مکروه دی خو وراندې بیا په دې کښې اختلاف دې چه صحیح هم دې او که نه؟ د احنافو او شوافعو په نزد خو صحیح دې، او د ظاهریه او حنابله په نزد په مبارک ابل کښې مونځ صحیح نه دې او د امام مالک رحمه الله نه دوه روایتونه دی، ۱: الاعادة فی الوقت، ۲: الاعادة مطلقا، بله دا چه کوم حضرات د فساد قائل دی د هغوی په نزد فساد په هر حال کښې دې که هغه محل طاهر وی او که نه وی.
قوله :﴿فَإِنَّهَا مِنَ الشَّيَاطِينِ﴾ دا ضمیر یا خو د مبارک طرف ته راجع دې په دې صورت کښې به مضاف مقدر وی، ﴿ای فانها ماوی الشیاطین﴾، دویم احتمال دا دې چه ضمیر راجع دې د ابل طرف ته، په دې صورت کښې به لازمیږی چه ابل د شیاطینو د نسل نه وی بعضو وئیلې دی چه دا په حقیقت باندې محمول دې ﴿لتولدها من مائها﴾ او بعض وئیلې دی چه په دې کښې مقصود په نفور او شرارت کښې تشبیه ده، او بعض وئیلې دی چه شیطان دوه دی یو خو هم هغه کوم چه د جناتو د نسل نه دې او معروف دې دویم هر سرکش او شریر باندې هم د شیطان اطلاق کیږی ﴿کل عاد متمرد فهو شیطان﴾ (کما فی القاموس)
په دې کښې اختلاف دې چه په مبارک ابل کښې د مونځ نه کولو علت نهی څه دې؟ بعضو وئیلی دی چه د ارباب ابل عادت دا وی چه هغوی د اوښانو نه شاته استنجاء کوی وقیل لا ینظفها اهلها یعنی مبارک ابل لره د اوښ والا صفا نه ساتی، وقیل لنفار الابل وشرادها یعنی اوښ ډیر شریر وی ټوپونه وهی په دې کښې مونځ کونکی ته د بدنی ضرر رسیدلو ویره ده، وقیل لاجل ثقل رائحتها الکریهة یعنی د رائحه کریهة د وجې نه ممانعت دې او په کتاب الام کښې د امام شافعی رحمه الله نه منقول دی چه د کراهت وجه قرب شیطان دې څکه چه په حدیث کښې ابل ته من جنس الشیاطین وئیلې شوې دې.
قوله :﴿وَسُئِلَ عَنِ الصَّلاَةِ فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ﴾ مرابض جمع ده د مربِض په وزن د مجلس، مرابض غنم کښې بالاتفاق بغیر د کراهت نه مونځ جائز دې.
قوله :﴿فَإِنَّهَا بَرَكَةٌ﴾ بعض وئیلې دی چه غنم ته برکت په مقابله د ابل کښې اووئیلې شو

يعنی ابل يو ضرری ځناور دي په خلاف د غنم چه په هغه سره اذيت نه رسيږی، او بعضو وئيلي دی چه دا په حقيقت باندې محمول دې ځکه چه په يو روايت کښې دی ﴿ الغنم بركة ﴾ او په يو روايت کښې دی ام هانی رضي الله عنها فرمائی چه ماته رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿اتخذی غنما فان فيها بركة ﴾ بل په يو روايت کښې دی ﴿ الغنم من دواب الجنة ﴾.

**د بول ماكول اللحم د طهارت بحث :**

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د علماء کرامو يو جماعت د صلوٰة فی مرابض الغنم د حديث نه د ابوال وابعار غنم په طهارت باندې استدلال کړې دې ځکه چه مرابض غنم ددې څيزونو نه خالی نه وی او ددې باوجود رسول الله ﷺ هلته د مونځ کولو اجازت فرمائيلې دې، بيا دې حضراتو ابوال ابل هم په دې باندې قياس کړی دی بلکه ټول ماكول اللحم ځناور ئې په غنم باندې قياس کولو سره دهغې ابوال او ابعار ته طاهر وئيلي دی، پاتې شوه دا خبره چه په مبارک ابل کښې خو د مونځ کولو نه منع کړې شوې ده پس ددې وجه هلته د نجاست کيدل نه دی بلکه نور اسباب دی د اوښ شرارت وغيره کوم چه بيان کړې شو، دا قائلين د طهارت امام اوزاعی، سفيان ثوری، ابراهيم النخعی، په ائمه اربعه کښې امام مالک، امام احمد په شوافعو کښې ابن المنذر، ابن حبان او ابوسعيد اصطخری او په احنافو کښې امام محمد رحمهم الله دې.

او احناف او اکثر شوافع او جمهور علماء کرام د نجاست قائل دی، د جمهورو دليل حديث ﴿ استنزهوا من البول ﴾ دې، روه الدارقطنی والحاكم وصححه، بل حديث المرور على القبرين کوم چه متفق عليه دې چه په هغې کښې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو ﴿اما هذا فكان لا يستنزه من البول ﴾.ځان پوهه کړه چه حديث الباب وړاندې په كتاب الصلوة کښې په باب النهی عن الصلوة فی مبارک الابل کښې راځی، دلته په حديث کښې جزء اول يعنی وضوء من لحوم الابل مقصود ده او په كتاب الصلوة کښې د حديث دويم جزء مقصود دی.

## بَابُ الْوُضُوءِ مِنْ مَسِّ اللَّحْمِ النِّيءِ وَغَسْلِهِ

**باب دې په بيان د اودس کې د مسه کولو د شنې غوښې نه او وينځل د هغې**

[۱۸۵] (1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَعَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ المعنى، وَأَيُّوبُ بْنُ مُحَمَّدٍ الرَّقِّيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، أَخْبَرَنَا هِلَالُ بْنُ مَيْمُونٍ الْجُهَنِيُّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، قَالَ هِلَالٌ: لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَقَالَ أَيُّوبُ وَعَمْرٌو أُرَاهُ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِغُلَامٍ وَهُوَ يَسْلُخُ شَاةً، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَنَحَّ حَتَّى أُرِيَكَ، فَأَدْخَلَ يَدَهُ بَيْنَ الْجِلْدِ وَاللَّحْمِ فَدَحَسَ بِهَا حَتَّى تَوَارَتْ إِلَى الْإِبْطِ، ثُمَّ مَضَى فَصَلَّى لِلنَّاسِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ عَمْرٌو فِي حَدِيثِهِ يَعْنِي لَمْ يَمَسَّ مَاءً، وَقَالَ: عَنْ هِلَالِ بْنِ مَيْمُونٍ الرَّمْلِيِّ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِلَالٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مُرْسَلًا، لَمْ يَذْكُرْ أَبَا سَعِيدٍ.

[1]: سنن ابن ماجه/الذبائح ٦ (٣١٧٩)، (تحفة الأشراف: ٤١٥٨) (صحيح)

**ترجمه:** د ابو سعید ﷺ نه روایت دې، بیشکه نبي ﷺ تیر شو په یو غلام باندې او هغه خرمن ویستله د یو ګډ نه، نو هغه ته رسول الله ﷺ اووئیل: غاړې ته شه تردې چه زه وښایم تاته، نو رسول الله ﷺ خپل لاس داخل کړو په مابین د غوښه او پوستکي کښې، نو هغه ئې ښه دننه کړو ترځونو پورې، بیا لاړلو او مونځ ئې اوکړو خلکو ته او اودس ئې اونه کړو. وئیلی دي ابوداود: زیات کړی دی عمرو په خپل حدیث کښې، یعني نه ئې دې مسه کړې اوبه، او وئیلی ئې دی: د هلال بن میمون الرملي نه. وئیلی دي ابوداود: او روایت کړی دی ددې عبد الواحد بن زیاد او ابو معاویه د هلال نه، او هغه د عطاء نه او هغه د نبي ﷺ نه مرسل، ابو سعید ئې نه دی ذکر کړی.

**تشریح:** ځان پوهه کړه چه د غسله په عطف کښې دوه احتماله دی:

(۱) اول دا چه ددې عطف په الوضوء باندې دې او په الوضوء کښې الف لام د مضاف الیه په عوض کښې دی په دې صورت کښې به تقدیر د عبارت داسې وی: باب وضوء الرجل من مس اللحم النی وباب غسل الرجل ای یده من مس اللحم النی....... د ترجمة الباب مطلب دا دې چه د کچه غوښې په مسح کولو باندې اودس واجب دې یا صرف غسل ید کوم ته چه لغوی وضوء هم وائی.

(۲) دویم احتمال دا دې چه د غسله عطف په اللحم باندې اومنلې شی، په دې صورت کښې به تقدیر د عبارت داسې وی ﴿باب الوضوء من مس اللحم النی وباب الوضوء من غسل اللحم﴾ د ترجمة الباب مطلب به دا وی چه د کچه غوښې په مس کولو او دهغې د وینځلو په بیان کښ، یعنی که یو سړې کچه غوښه وینځی نو هغه به اودس کوی؟ د عطف په سلسله کښې حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې احتمال اول لیکلې دې، احتمال ثانی استاذ محترم مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله بیان فرمائیلې دې.

## د ترجمة الباب غرض:

دلته سوال دا دې چه د کچه غوښې په مسح کولو سره د جمهور علماؤ او ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم وضوء شرعی یا وضوء لغوی واجب نه دی، بیا مصنف رحمه الله ترجمة الباب ولې قائم کړو؟ جواب دا دې چه بعض تابعین لکه سعید بن المسیب نه په دې باره کښې وضوء منقول دی پس په مصنف ابن ابی شیبة کښې دی ﴿عن سعید بن المسیب انه قال من مسه یتوضاء﴾ او د حسن بصری او عطاء رحمه الله نه منقول دی انه یغسل یده نو مصنف رحمه الله په دې روایاتو باندې د رد کولو دپاره دا باب قائم کړې دې.

## مضمون الحدیث:

﴿ قوله عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- مَرَّ بِغُلاَمٍ ﴾ مضمون حدیث دا دې چه ابوسعید خدری ﷺ فرمائی چه یو خل رسول الله ﷺ د مانځه دپاره مسجد ته تشریف اوړلو، په لاره کښې په یو هلک باندې ورتیر شو چه د چیلئ د ذبح کولو نه پس ئې دهغې خرمن ویستله (د دې غلام نه مراد معاذ بن جبل ﷺ دې چه د طبرانی په روایت کښې دی) خو چونکه هغه خلق ناتجربه کار وو، خرمن ویستل ورله په ښه طریقه نه ورتلل، په دې

لیدو باندې رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائیلو ﴿ تَنَحَّ حَتَّى أُرِيَكَ ﴾ یعنی ته یو طرف ته شه چه زه درته څرمن ویستل اوښائم چه د چیلۍ څرمن څنګه ویستلې شي، پس رسول اللهﷺ ډیر په تیزئ او سرعت سره لږ ساعت کښې د څرمنې او غوښې ترمینځه په زور سره خپل لاس ورداخل کړو تردې چه د رسول اللهﷺ لاس مبارک په څرمن کښې غائب شو او په لږ ساعت کښې ئې څرمن د غوښې نه جدا کړه او وراندې ئې تشریف یوړو او په جمات کښې ئې خلقو ته مونځ ورکړو د مانځه نه مخکښې ئې نه لاس وینځلو او نه ئې اودس اوکړو.

د ترجمة الباب نه ثابته شوه چه د کچه غوښې د مس کولو نه پس نه د وضوء شرعي ضرورت شته او نه د غسل ید، سبحان الله! د رسول اللهﷺ څه اوچت شان دې! په مزاج مبارک کښې ئې څومره سادګی همت او نرتوب وو، بله دا چه د هر وخت د ضروري کارونو نه خبر وو او په هغې پوهه وو. صلی الله تعالی علیه وعلی اله وصحبه وسلم.

## بَابُ تَرْكِ الْوُضُوءِ مِنْ مَسِّ الْمَيْتَةِ

### باب دې په بیان د نه کولو داودس کې د مسه کولو مردارې نه

څنګه چه د لحم مذبوح په مس کولو سره اودس واجب نه دې هم دغه شان په مس میتة باندې هم اودس واجب نه دې، په مسئلة الباب کښې د ائمه هیڅ اختلاف نشته.

[۱۸۶](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِالسُّوقِ دَاخِلًا مِنْ بَعْضِ الْعَالِيَةِ وَالنَّاسُ كَنَفَتَيْهِ، فَمَرَّ بِجَدْيٍ أَسَكَّ مَيِّتٍ، فَتَنَاوَلَهُ فَأَخَذَ بِأُذُنِهِ، ثُمَّ قَالَ: أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنَّ هَذَا لَهُ؟" وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه**: د جابر نه روایت دې، بیشکه رسول اللهﷺ تیر شو په بازار باندې داخلیدونکی وو د بعضو اوچتو طرفونو نه، او خلک په دواړو طرفونو دهغې وو، نو تیر شو په ګډورکي چه غوږونه ئې جوخت وو، نو هغه ئې راونیولو د غوږونو نه، بیا ئې اووئیل: په تاسو کښې کوم خوښوي چه دا د هغه شي؟ او حدیث ئې بیان کړو.

**تشریح**: قوله :﴿ عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِيهِ ﴾ دا جعفر هم هغه دې جعفر صادق سره چه مشهور دې د هغوی نوم محمد دې او لقب ئې باقر دې، او دا ځوئې دې د علی بن الحسین د چا لقب چه امام زین العابدین دې کوم چه د سیدنا حسین بن علیؓ ځوئې وو.

### مضمون حدیث:

مضمون د حدیث دا دې چه یو ځل رسول اللهﷺ د مدینې عوالی ته تشریف یوړو، هغوی هلته په یو بازار باندې ورتیر شو صحابه کرامؓ د هغوی ښی او ګس طرف ته روان وو رسول اللهﷺ د چیلۍ په یو مردار بچی باندې ورتیر شو چه د هغه غوږونه واړهٔ واړهٔ وو او هغه بچی په خزله کښې پروت وو رسول اللهﷺ اودریدلو صحابه کرامؓ هم اودریدل، رسول اللهﷺ د هغه چیلۍ د بچی غوږ نیولو سره اوفرمائیل ﴿ ایکم یحب ان هذا له بدرهم ﴾

(۱): صحیح مسلم/الزهد ۱ (۲۹۵۷)، (تحفة الأشراف: ۲۶۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۶۵)، والبخاري في الأدب المفرد (۹۶۲) من حدیث جعفر (صحیح)

دا الفاظ دلته نشته د مسلم په روایت کښې دی یعنی رسول اللهﷺ صحابه کراموؓ ته اوفرمائیل چه په تاسو کښې به څوک دا په یو درهم واخلی؟ صحابه کراموؓ عرض اوکړو دا خو څوک ویړیا هم نه اخلی پاتې له دا چه قیمت باندې، نو په دې اوریدلو باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل : ﴿ فوالله للدنیا اهون علی الله من هذا علیکم ﴾ یعنی د الله پاک په نزد ټوله دنیا ددې نه هم زیاته ذلیله ده څومره چه دا د چیلئ بچې ستاسو په نزد ذلیل دې.

قوله :﴿ بِجَدْيٍ أَسَكَّ مَيِّتٍ ﴾ د جدی معنی ده د چیلنګې، د اسک اطلاق په فاقد الاذنین باندې کیږی، مقطوع الاذنین او ملتصق الاذنین (چه غوږونه ئې د سر سره بالکل یو ځائې وی) په دې درې واړو باندې راځی خو دلته صغیر الاذنین مراد دې کما قال النووی ځکه چه د سیاق کلام نه معلومیږی چه د هغه غوږونه وو او رسول اللهﷺ د هغه یو غوږ نیولې وو.

ځان پوهه کړه چه دا حدیث په اصل کښې د کتاب الزهد دې، پس امام مسلم او ترمذی دا مفصلا په کتاب الزهد کښې ذکر کړې دې، امام ابوداؤد چونکه ددې نه یو فقهی مسئله مستنبط کوله په دې وجه هغوی دلته په کتاب الطهارة کښې ذکر کړو فلله در المصنفؒ.

بسم الله الرحمن الرحیم

## بَابٌ فِي تَرْكِ الْوُضُوءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ

### باب دې په بیان د اودس نه کولو کې د هغه شي نه چې هغې ته اور رسیدلی وي

د دې باب په شروع کښې تسمیه د ابوداؤد په اکثرو نسخو کښې ده. خو یو شارح هم دې سره کار نه دې لرلې چه دا بسم الله ده ولې لیکلې ده؟ د احقر په فهم کښې دا راغله چه خطیب بغدادیؒ د سنن ابوداؤد تجزیه کولو سره ددې دوه دیرش اجزاء جوړ کړې دی چه د بخاری شریف تجزیه مشهور ده دهغې دیرش پارې دی، حضرت سهارنپوریؒ په بذل کښې ددې اهتمام فرمائیلې دې چه د هرې پارې په شروع کښې ئې د هر جزء تعین کړې دې، ددې وجې د بذل په حاشیه کښې لیکلې شوې دی اخر الجزء الاول.

نو چونکه ددې ځائې نه دویمه پاره شروع کیږی په دې وجه کیدې شی چه بعضې ناسخینو په دې مناسبت سره دلته بسم الله لیکلې وی، او که د مصنفؒ د طرف نه اومنلې شی نو ددې وجه دا کیدې شی چه مصنفؒ ته ددې کتاب د تصنیف په وخت دلته رارسیدو سره فترة واقع شوې وی بیا چه کله ددې ځائې نه د تالیف سلسله شروع شوه نو بسم الله ئې اولیکله. په بخاری کښې هم دغه شان په مینځ مینځ کښې کله کله بسم الله راشی، ددې هم د بخاری شارحین مختلف توجیهات بیانوی.

**مسئلة الباب کښې اختلاف ائمة :**

مسئله مترجم بها کښې صدر اول کښې اختلاف پاتې شوې دې بعض صحابه کرامو او تابعین لکه ابوهریره، زید بن ثابت، عبدالله بن عمرؓ، عمر بن عبدالعزیز، ابن شهاب زهری او حسن بصری رحمهم الله وغیره د ما مست النار نه د وجوب قائل وو. امام نوویؒ فرمائی چه د صدر اول نه پس اختلاف مرتفع شو او اوس د علماء کرامو په ترک د اودس باندې اجماع شوه.

**په وضوء مما مست النار کښې د مصنف رحمه الله مسلک:**

د بنده رائې کومه چه د ډیر غور نه پس قائم شوې ده دا ده چه امام ابو داؤد رحمه الله په دې مسئله کښې د جمهورو سره متفق نه دې، هغه د وضوء مما مست النار قائل دې په دې وجه هغوی ددې باب نه پس یو دویم باب قائم کړې دې ﴿باب التشدید فی ذلک﴾ په باب اول سره خو مصنف رحمه الله ددې منسوخ کیدل ثابت کړل لکه چه ددې باب د احادیثو نه معلومیږی او د ترجمه ثانیه نه دوباره وجوب د اودس ثابتوی ګویا د نسخ سابق نسخ اوشوه، چه دهغې معنی دا شوه چه په دې مسئله کښې دوه کرته نسخ واقع شوې ده.

**هغه احکام چه په هغې کښې ډیر کرته نسخ شوې ده:**

پس علماء کرامو داسې بعض احکام شمار کړې دی چه په هغې کښې تعدد د نسخ راغلې دې او یو دهغې نه وضوء مما مست النار هم دې، پس قاضی ابوبکربن العربی په شرح د ترمذی کښې فرمائی چه قبله، نکاح متعة او لحوم حمر اهلیة په دې درې واړو کښې دوه کرته نسخ واقع شوې ده، هغوی فرمائی ﴿ولا احفظ رابعا﴾ ددې دریو نه علاوه څلورم څیز زما په ذهن کښې نشته، په دې باندې علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه ابو العباس العرفی فرمائی چه څلورم حکم وضوء مما مست النار دې علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه ما دا څلور واړه یو ځائې کښې نظم کړې دی.

واربع تکرر النسخ لها ::: جاءت بها النصوص والاثار

بقبلة و متعة و حمر ::: کذا الوضوء لما تمس النار

[۱۸۷](¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكَلَ كَتِفَ شَاةٍ ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ".

**ترجمه:** ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې، بیشکه رسول الله ﷺ اوخوړو ولې د ګډ بیا ئې مونځ اوکړو او اودس ئې اونه کړو.

[۱۸۸](²) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ أَبِي صَخْرَةَ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: "ضِفْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ، فَأَمَرَ بِجَنْبٍ فَشُوِيَ، وَأَخَذَ الشَّفْرَةَ فَجَعَلَ يَحُزُّ لِي بِهَا مِنْهُ، قَالَ: فَجَاءَ بِلَالٌ فَآذَنَهُ بِالصَّلَاةِ، قَالَ: فَأَلْقَى الشَّفْرَةَ، وَقَالَ: مَا لَهُ تَرِبَتْ يَدَاهُ؟ وَقَامَ يُصَلِّي"، زَادَ الْأَنْبَارِيُّ: وَكَانَ شَارِبِي وَفَى فَقَصَّهُ لِي عَلَى سِوَاكٍ، أَوْ قَالَ: أَقُصُّهُ لَكَ عَلَى سِوَاكٍ.

**ترجمه:** د مغیره بن شعبه نه روایت دې، هغه اووئیل: زه میلمه شوم د رسول الله ﷺ یوه شپه نو امر یې اوکړو په یو طرف د ګډ باندې نو هغه وریت کړې شو، او چاړه ئې راواخسته نو

¹): صحیح مسلم/الطهارة ٢٤ (٣٥٤)، (تحفة الأشراف: ٥٩٧٩)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الوضوء ١٥ (٢٠٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٢٣ (١٨٤)، سنن ابن ماجه/للطهارة ٦٦ (٤٨٨)، موطا امام مالک/للطهارة ٥(١٩)، مسند احمد (٢٢٦/١) (صحیح)

²): * تخریج: تفرد به أبو داود، سنن الترمذي/الشمائل (١٦٧)، (تحفة الأشراف: ١١٥٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٢/٤) (صحیح)

شروع شو چه کټ کوله ئې په هغې د هغه نه، هغه وائی: راغی بلال نو خبرېې ورته ورکړو په مانځه باندې، نو هغه وائی: چاړه ئې اوغورځوله، او هغه اووئیل: څه دې هغه لره په خاورو دې ککړ شي دواړه لاسونه د هغه، او پاڅیدلو مونځ ئې کولو. زیات کړې دې انباري: او وو بریتان زما آوږده شوې نو هغه ئې ماله کټ کړل په یو مسواک. او یایې اووئیل: زه به ئې کټ کړم ستا لپاره په مسواک باندې.

**تشریح:** قوله :﴿ ضِفْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ سیدنا مغیره بن شعبة‌رضي الله عنه فرمائی چه یو ځل زه د رسول الله‌ﷺ میلمه شوم، دا روایت په شمائل ترمذی کښې هم دې، او دهغې الفاظ دی ﴿ ضفت مع النبیﷺ ﴾ چه دهغې نه معلومیږی چه دوی د رسول الله‌ﷺ میلمه نه وو بلکه د رسول الله‌ﷺ سره د بل چا ملیمه وو، حضرت شیخ‌رحمه الله به فرمائیل چه ددې توجیه دا کیدې شی چه اصل کښې خو مغیره‌رضي الله عنه د رسول الله‌ﷺ میلمه وو خو په دغه ورځ باندې رسول الله‌ﷺ د خپلو میلمنو سره بل ځائې کښې دعوت کړې شوې وو، لهذا په دواړو طریقو باندې وئیل ئې صحیح دی.

**په دوه احادیثو کښې رفع تعارض :**

قوله :﴿ وَأَخَذَ الشَّفْرَةَ ﴾ ددې نه معلومه شوه چه غوښه په چاقو باندې پرې کول صحیح دی، او د ابوداؤد په کتاب الاطعمة کښې حدیث دې ﴿ لا تقطعوا اللحم بالسكين ﴾ په دواړو کښې تعارض دې، جواب دا دې چه د کتاب الاطعمة والا حدیث ضعیف دې بلکه ابن الجوزی‌رحمه الله هغه په موضوعاتو کښې شمار کړې دې او که دا صحیح اومنلې شی نو بیا دا توجیه کیدې شی چه ممانعت په دې صورت کښې دې چه کله غوښه په چړې باندې پرې کولو سره هم په هغې سره اوخوړلې شی او که په چړې سره پرې کړې شی او بیا ئې په لاس سره خوله کښې ږدی نو جائز ده، یا دې داسې اووئیلې شی چه ددې مدار په حاجت او ضرورت باندې دې منع په هغه صورت کښې ده چه کله بغیر د ضرورت نه تکلفا استعمال کړې شی.

قوله :﴿ وَقَالَ مَا لَهُ تَرِبَتْ يَدَاهُ ﴾ تربت یداه دا جمله د تنبیه په موقع باندې استعمالولې شی ددې اصل معنی د فقر او ذلت د بددعاء ده، خو دا معنی دلته نه ده مراد.

**مضمون د حدیث :**

د حدیث مضمون دا دې چه مغیره بن شعبه‌رضي الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله‌ﷺ میلمه اوم، هغوی ورته شوې غوښه ماته په چاړهٔ باندې پرې کولو سره راکوله، هم په دې وخت کښې سیدنا بلال‌رضي الله عنه راغلو او هغوی د مانځه خبر ورکړو، د هغوی په اطلاع باندې رسول الله‌ﷺ فورا د مانځه دپاره پاسیدلو، خو تنبیها رسول الله‌ﷺ ارشاد اوفرمائیلو ﴿ تربت یداه ﴾ ځکه چه د هغوی دپاره اولی دا وه چه رسول الله‌ﷺ په میلمستیا کښې مشغول وو نو چه لږ صبر ئې کړې وې.

اوس دلته یو سوال واردیږی هغه دا چه په حدیث کښې خو دی ﴿ اذا حضر العِشاء والعَشاء فابدوا بالعَشاء ﴾ یعنی کله چه مونځ او خوراک دواړه حاضر شی نو خوراک مقدم کول پکار دی، حافظ ابن حجر‌رحمه الله فرمائی چه امام بخاری‌رحمه الله ددې حدیث نه په دې خبره

باندې استدلال کړې دی چه د تقدیم طعام حکم د غیر امام دپاره دی، د امام راتب دپاره نه دې او ابن رسلان لیکلې دی چه د تقدیم طعام والا حدیث په حالت صوم یا حالت جوع باندې محمول دې، په دې تقدیم طعام والا حدیث باندې کلام مونږ سره په ابواب الاستنجاء باب الرجل یصلی وهو حاقن کښې تیر شوې دې.

﴿ قوله وَكَانَ شَارِبِي وَفَى فَقَصَّهُ لِي عَلَى سِوَاكٍ الخ ﴾ سیدنا مغیره رضی الله عنه فرمائی چه اتفاقا په دغه ورځ باندې زما بریت غټ شوې وو نو رسول الله ﷺ زما د شونډې لاندې مسواک کیخودلو سره پورته ویختهٔ واړه کړل، یا ئې دا اوفرمائیل چه د مانځه نه پس به ئې پرې کړو.

د دې نه معلومه شوه چه کورېه لره د میلمه د مصالحو او د هغه د احوالو تفقد کول پکار دی، ګویا هر څنګه دې د هغه خدمت کوی، سبحان الله! څه ښکلې دی اخلاق نبوی ﷺ، او زمونږ د مذهب اسلام تعلیمات څومره عمده دی.

[١٨٩]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَكَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتِفًا ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ بِمِسْحٍ كَانَ تَحْتَهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى".

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې، هغه وئیلی دی: وخوړه رسول الله ﷺ ولی، بیا ئې مسح کړو لاس په تولیه چه لاندې د هغه وه بیا پاڅیدلو مونځ ئې اوکړو.

[١٩٠]([2]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْتَهَسَ مِنْ كَتِفٍ ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې، بیشکه رسول الله ﷺ خوراک ئې اوکړو د ولې د ګډ نه بیا ئې مونځ اوکړو او اودس ئې اونه کړو.

[١٩١]([3]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ الْخَثْعَمِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ يَقُولُ: "قَرَّبْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُبْزًا وَلَحْمًا فَأَكَلَ ثُمَّ دَعَا بِوَضُوءٍ فَتَوَضَّأَ بِهِ ثُمَّ صَلَّى الظُّهْرَ، ثُمَّ دَعَا بِفَضْلِ طَعَامِهِ فَأَكَلَ ثُمَّ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ".

**ترجمه**: محمد بن المنکدر وائی چه ما د جابر بن عبد الله نه اوریدلي دي، چه وئیل یې: ما وروړه نبي ﷺ ته ډوډۍ او غوښه نو وئې خوړه، نو بیا ئې د اودس اوبه وغوښتلې نو اودس ئې اوکړو، بیا ئې د ماسپخین مونځ اوکړو، بیا ئې پاتې شوی طعام وغوښتلو نو هغه ئې وخوړلو، بیا مانځه ته پاڅیدو او اودس ئې اونه کړو.

[١٩٢]([4]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ سَهْلٍ أَبُو عِمْرَانَ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كَانَ آخِرَ الْأَمْرَيْنِ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَرْكُ الْوُضُوءِ مِمَّا غَيَّرَتِ

---

[1]: سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٦ (٤٨٨)، (تحفة الأشراف: ٦١١٠) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ٦٥٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٩/١، ٣٦١) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٠٦٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأطعمة ٥٣ (٥٤٥٧)، سنن الترمذي/الطهارة ٥٩ (٨٠)، سنن النسائي/الطهارة ١٢٣ (١٨٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٦ (٤٨٩)، مسند احمد (٣٢٢/٣) (صحيح)

[4]: سنن النسائي/ الطهارة ١٢٣ (١٨٥)، (تحفة الأشراف: ٣٠٤٧) (صحيح)

النَّارُ". قَالَ أَبُودَاوُد: هَذَا اخْتِصَارٌ مِنَ الْحَدِيثِ الْأَوَّلِ.

**ترجمه**: د جابر ﷜ نه روايت دي هغه وئيلي دي وو اخير د دواړو امرينو د رسول الله ﷺ نه پريخودل دهغې نه چه تغير ورکړی وي اور وئيلي دي ابوداود دا اختصار دی د اولني حديث نه

**تشريح**: قوله :﴿ كَانَ آخِرَ الأَمْرَيْنِ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم- تَرْكُ الْوُضُوءِ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ﴾ د جابر ﷜ دا حديث په دې باره کښې صريح دې چه د رسول الله ﷺ آخري فعل ترک الوضوء مما مست النار دي پس جمهورو ددې حديث نه د وضوء مما مست النار په نسخ باندې استدلال کړی دی، امام ترمذی ﷫ په جامع ترمذی کښې ددې تصريح کړې ده.

قوله :﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا اخْتِصَارٌ مِنَ الْحَدِيثِ الأَوَّلِ ﴾ دا قال ابوداؤد لږ مهتم بالشان او وضاحت ته محتاج دې، امام ابوداؤد ﷫ فرمائي چه د جابر ﷜ دا حديث مستقل حديث نه دي بلکه د حديث سابق اختصار دې، د حديث سابق راوی هم سيدنا جابر ﷜ دې، ددې مضمون دا دې هغوی فرمائي چه يو ورځ ما د رسول الله ﷺ په خدمت کښې خبز او لحم پيش کړو رسول الله ﷺ دهغې نه لږ شان خوارک اوکړو او دهغې نه پس ئې اودس کولو سره د ماسپخين مونځ اوکړو، مونځ ئې چونکه په مينځ کښې کړې وو په دې وجه چه د مانځه نه فارغ شو نو رسول الله ﷺ باقي خوراک راطلب کړو او هغه ئې اوخوړلو. ددې نه پس ئې چه کله بل مونځ اوکړو نو دهغې دپاره رسول الله ﷺ اودس او نه فرمائيلو، امام ابوداؤد ﷫ دا بيانول غواړي چه هر کله اصل حديث دا دي چه دهغې مضمون موږ اوس بيان کړو نو هم دي له به اعتبار ورکولې شي، اوس که د اصل حديث نه د وضوء مما مست النار په نسخ باندې استدلال صحيح دې نو په دې حديث ﴿ كان اخر الامرين الخ ﴾ باندې هم صحيح دې او که په هغې سره په نسخ باندې استدلال صحيح نه دې نو په دې حديث سره هم صحيح نه دې

لهذا دا به کتل غواړي چه په اورد حديث سره دنسخ استدلال صحيح دې يا نه؟ د غور کولو نه معلوميږي چه د حديث سابق نه په نسخ باندې استدلال صحيح نه دي ځکه چه رسول الله ﷺ د تناول لحم نه پس چه د ماسپخين د مانځه دپاره کوم اودس فرمائيلې وو په هغې کښې دوه احتمالات دی يو دا چه هغه د وضوء مما مست النار د اکل د وجې نه وو، دويم احتمال دا دې چه هغه اودس کول په دې وجه وو چه د مخکښې نه رسول الله ﷺ په اودس کښې نه وو، او د وضوء مما مست النار تر دې وخته پورې حکم نه وو شوې هغه ددې قصې نه روستو شوې دې لهذا ددې احتمال ثانی په صورت کښې په نسخ باندې استدلال صحيح نه دې. واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال، خو که د سيدنا جابر ﷜ دا حديث ﴿ كان آخر الامرين الخ ﴾ مستقل حديث وې نو بيا بيشکه دهغې نه په نسخ باندې استدلال صحيح وو. دا د امام ابوداؤد ﷫ د کلام تشريح ده، امام بيهقی ﷫ هم د مصنف ﷫ د کلام هم دا مطلب فهم کړې دې او هم دا غرض ئې بيان کړې دې

په نورو الفاظو کښې ددې وضاحت داسې هم کيدې شي چه ددې دواړو احاديثو مدار په محمد بن المنکدر باندې دې، د هغوی دوه شاګردان دی، ابن جريج او شعيب بن

ابی حمزة، ابن جريج خو د محمد بن المنكدر نه اصل حديث بغير د اختصار او تغير نه نقل کړو، او شعيب بن ابی حمزة په خپله ددې حديث يو مفهوم متعين کولو سره مختصرا روايت کړو، او په مفهوم فهم کولو کښې د هغوی نه غلطی اوشوه او دا ئې اووئيل چه ﴿كان اخر الامرين من رسول الله ﷺ ترک الوضوء مما مست النار﴾.

خو د امام ابوداؤد رحمه الله دا خبره کول چه دا حديث ثانی د حديث اول اختصار دې، مونږ نه منو ځکه چه په اختصار منلو کښې راوی ته د وهم نسبت لازميږي، ځکه چه د حديث اول نه په نسخ باندې استدلال واقعی صحيح نه دې لکه چه امام ابوداؤد رحمه الله هم اوفرمائيل، حاصل دا چه حديث د جابر رضی الله عنه مستقل حديث دې اونسخ په باره کښې صريح دې، كما قال الجمهور.[1]

[١٩٣]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي كَرِيمَةَ، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: ابْنُ أَبِي كَرِيمَةَ مِنْ خِيَارِ الْمُسْلِمِينَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ ثُمَامَةَ الْمُرَادِيُّ، قَالَ: قَدِمَ عَلَيْنَا مِصْرَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَمِعْتُهُ يُحَدِّثُ فِي مَسْجِدِ مِصْرَ، قَالَ: "لَقَدْ رَأَيْتُنِي سَابِعَ سَبْعَةٍ أَوْ سَادِسَ سِتَّةٍ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَارِ رَجُلٍ، فَمَرَّ بِلَالٌ فَنَادَاهُ بِالصَّلَاةِ، فَخَرَجْنَا فَمَرَرْنَا بِرَجُلٍ وَبُرْمَتُهُ عَلَى النَّارِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَطَابَتْ بُرْمَتُكَ؟ قَالَ: نَعَمْ، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، فَتَنَاوَلَ مِنْهَا بَضْعَةً، فَلَمْ يَزَلْ يَعْلُكُهَا حَتَّى أَحْرَمَ بِالصَّلَاةِ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَيْهِ".

**ترجمه**: عبيد بن ثمامة المرادي وئيلی دی: راغی مونږ ته مصر ته عبد الله بن الحارث بن جزءِ د صحابو د رسول الله ﷺ نه، نو ما واوريدل د هغه نه چه بيان ئې کولو په مسجد د مصر کښې، هغه اووئيل: بيشکه زه وم اوم د اوو نه او يا شپږم د شپږو نه د رسول الله ﷺ سره په کور د يو سړي کښې، نو تير شو بلال نو اوازيې ورته اوکړو د مانځه دپاره، نو مونږ اووتلو نو مونږ تير شولو په يو سړي باندې او د هغه په کټوی باندې چه په اور وه، نو اووئيل هغه ته رسول الله ﷺ ايا پاکه ده ستا کټوی، نو هغه اووئيل: زما پلار او مور دې تانه قربان شي نو وائې خسته دهغې نه يوه تکړه وو هغه چه ځُله کښې ئې اړوله راړوله تر هغې چه تکبير تحريمه ئې اووئيلو د مانځه دپاره، او ما کتل هغه ته.

**مضمون حديث :**

قوله :﴿ لَقَدْ رَأَيْتُنِي سَابِعَ سَبْعَةٍ الخ ﴾ عبيد بن ثمامة المراوی فرمائی چه مصر کښې زمونږ خوا ته عبدالله بن الحارث صحابی رسول الله ﷺ تشريف راوړلو ما د هغوی نه د مصر په يو مسجد کښې واوريدل چه د يو ځل خبره ده چه د رسول الله ﷺ سره د يو صحابی په کور کښې مونږ شپږ يا اووهٔ کسان وو، په هغوی کښې يو زه اوم، په دې کښې بلال رضی الله عنه راغلو او د مانځه خبر ئې ورکړو، پس مونږ هغه طرف ته روان شو نو مونږ په يو داسې سړی باندې تير شو چه د هغه کټوئ په اور باندې پخيدله رسول الله ﷺ د هغه صحابی رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه ستا کټوئ ښه پخه شوه؟ دې صحابی عرض اوکړو جی! يا رسول الله ﷺ زما مور

[1] ) خو مصنف رحمه الله ددې فن امام دې هغوی په خپله رائې کښې متفرد هم کيدې شی هغه د نورو د رائې پابند نه دې بلکه د مصنف رحمه الله خبره قياس ته ډيره نژدې ده (ځکه چه) راويان داسې تصرفات کوی.

[2] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٢٣٣) (ضعيف)

پلار دې په تاسو باندې قربان وی، رسول الله ﷺ د هغه کټوئ نه یو بوټئ راویستله او هغه ئې په خوله مبارکه کښې کیخودله اومسجدته لاړلو، مسجدته تلوسره ئې د مانځه نیت اوکړو.

قوله :﴿ وَأَنَا أَنظُرُ إِلَيْهِ ﴾ ددې جملې دوه مطلبونه کیدې شي یو خو دا چه دا واقعه زما د سترګو لیدلې ده او لیدلې واقعه نقل کوم، دویم مطلب ئې دا هم کیدې شي چه دا تیره شوې واقعه په دې وخت زما په سترګو کښې راغله، او ددې واقعې د بیان په وخت نقشه بالکل زما په سترګو کښې راغله، دا په اصل کښې د تعلق او مینې خبره وی، او د صحابه کرامو ﷺ د محبت خو تپوس مه کوه.د دې حدیث نه هم ترک الوضوء مما مست النار ثابتیږی کوم چه په ترجمة الباب کښې ذکر شوې دې.

## بَابُ التَّشْدِيدِ فِي ذَلِكَ

### باب دې په بیان د تشدید کې په هغې کښې

[١٩٤]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ حَفْصٍ، عَنْ الْأَغَرِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْوُضُوءُ مِمَّا أَنْضَجَتِ النَّارُ".

**ترجمه**: د ابو هریره ﷺ نه روایت دې هغه وئیلی دي، چه رسول الله ﷺ وئیلی دی: اودس کول دهغې نه دي چه اور پخ کړی وي.

[١٩٥]() حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ سَعِيدِ بْنِ الْمُغِيرَةِ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى أُمِّ حَبِيبَةَ فَسَقَتْهُ قَدَحًا مِنْ سَوِيقٍ، فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَمَضْمَضَ، فَقَالَتْ: يَا ابْنَ أُخْتِي أَلَا تَوَضَّأُ، إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "تَوَضَّئُوا مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ، أَوْ قَالَ: مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: فِي حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، يَا ابْنَ أَخِي.

**ترجمه**: ابو سفیان بن سعید بن المغیره حدیث بیان کړی دی، چه بیشکه هغه داخل شو په ام حبیبه باندې نو وئې څکولو په هغه باندې یوه پیاله د ستوانو نه، نو راوایې غوښتلې اوبه نو مضمضه ئې اوکړه، نو هغې اووئیل: اې زما د خور خویه! ایا ته اودس نه کوې بیشکه نبي ﷺ وئیلی دی: تاسو اودس کوئ دهغې نه چه تغیر ورته اور ورکړی وي، او یایې اووئیل: دهغې نه چه اور مسه کړی وي. وئیلی دي ابوداود: د زهري په حدیث کښې د یا ابن اخي لفظ راغلی دی.

**تشریح**: په تیرشوی باب کښې چه دهغې ترجمه: ترک الوضوء مما مست النار،، ده دهغې حاصل دا دې چه اول په ما مست النار سره اودس واجب شوې وو روستو متروک شو یعنی ددې نسخ اوشوه، او ددې ترجمة الباب حاصل دا دې چه په دې مسئله کښې دوه کرته تشدد راغلو او بیا په ما مست النار سره اودس واجب شو ګویا د نسخ اول نسخ اوشوه، لکه ما

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٤٧٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الطهارة ٢٣ (٣٥٢)، سنن الترمذي/الطهارة ٥٨ (٧٩)، سنن النسائي/الطهارة ١٢٢ (١٧١، ١٧٢، ١٧٣، ١٧٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٥ (٤٨٥)، مسند احمد (٢/٤٥٨، ٥٠٣، ٥٢٩) (صحيح)

٢): سنن النسائي/الطهارة ١٢٢ (١٨٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٢٦، ٣٢٧) (صحيح)

چه د اول باب په شروع کښې ددې ډير ښه طريقې سره وضاحت کړې دې ددې باب په بناء باندې دا وئيلې کيدې شي چه مصنف رحمه الله د وضوء مما مست النار قائل دې لکه چه د وضوء من لحوم الابل هم قائل وو لکه د تير باب نه په مخکښې باب کښې تير شو.

قوله :﴿ أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ سَعِيدِ بْنِ الْمُغِيرَةِ حَدَّثَهُ أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى أُمِّ حَبِيبَةَ ﴾

يعنى ابوسفيان بن سعيد ام المومنين ام حبيبة بنت ابى سفيان رضي الله عنها کره تشريف يوړلو، دا په رشته کښې دهغې ترور (يعنى د مور خور) کيږي.

قوله :﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ فِي حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ يَا ابْنَ أَخِي ﴾ دې سره مصنف رحمه الله اختلاف د راويانو بيانوي، دې حديث لره د ابوسلمه نه روايت کونکی دوه دی يحيى بن ابى کثير او زهری، د يحيى بن ابى کثير په روايت کښې وه چه سيده ام حبيبة رضي الله عنها ابو سفيان بن سعيد ته ﴿ يا ابن اختى ﴾ وئيلو سره خطاب اوکړو او د زهری په روايت کښې دی چه ددې په ځائې ئې ﴿ يا ابن اخى ﴾ وئيلو سره خطاب اوکړو، ﴿ يا ابن اختى ﴾ وئيل خو د حقيقت مطابق دی ځکه چه دا دواړه خاله او خورئې دی او ﴿ يا ابن اخى ﴾ وئيل مجازا دی.

خو ځان پوهه کړه چه د طحاوي او نسائي د روايت نه معامله برعکس معلوميږی يعنى په هغې کښې د زهری په روايت کښې ﴿ يا ابن اختى ﴾ دې او د يحيى په روايت کښې ﴿ يا ابن اخى ﴾ صاحب منهل د طحاوی د روايت د وجې نه دا رائې قائم کړې ده چه د ابوداؤد په روايت کښې وهم دې صحيح هغه دی چه د نسائي او طحاوی په روايت کښې دی، خو زه وايم چه د طحاوی په شرح امانى الاحبار کښې مولانا يوسف صاحب رحمه الله دا ثابته کړې ده چه په دې کښې د راويانو اختلاف دې او د هر دواړو نه په دواړو طريقو سره روايت شوې دې

## بَابٌ فِي الْوُضُوءِ مِنَ اللَّبَنِ

### باب دې په بيان د اودس کې د شودو نه

په ترجمة الباب کښې که د اودس نه مراد وضوء لغوی وی نو بيا خو د مصنف رحمه الله غرض دهغې استحباب ثابتول دی، او که د اودس نه وضوء شرعی مراد وی نو دهغې نفی مقصود ده، ځکه چه په حديث الباب کښې دا دی چه يو ځل رسول الله صلی الله عليه وسلم پئ اوڅکل او دهغې نه پس ئې مضمضه اوفرمائيله.

ځان پوهه کړه چه د شرب لبن نه پس د مانځه نه مخکښې وضوء لغوی يعنى مضمضه د ائمه اربعه په نزد مستحب ده خو د امام احمد رحمه الله يو روايت دې چه په لبن ابل سره اودس شرعی واجب دې، ځکه چه د ابن ماجه په يو روايت کښې دی. توضوأ من البان الابل.

[١٩٦] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَمَضْمَضَ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ لَهُ دَسَمًا".

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ٥٢ (٢١١)، والأشربة ١٢ (٥٦٠٩)، صحيح مسلم/الطهارة ٢٤ (٣٥٨)، سنن الترمذي/الطهارة ٦٦ (٨٩)، سنن النسائي/الطهارة ١٢٥ (١٨٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٨ (٤٩٨)، (تحفة الأشراف: ٥٨٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٢٣، ٢٢٧، ٣٢٩، ٣٣٧، ٣٧٣) (صحيح)

**ترجمه:** د ابن عباس ﷠ نه روايت دې، بېشکه رسول الله ﷺ وڅکل شوده نو راويي غوښتلي اوبه نو مضمضه ئي اوکړه بيا ئي اوونيل: بېشکه ددې لپاره غوړوالی دی.

**مسئلة الباب کښې اختلاف:**

حافظ ابن حجر ﷫ او علامه عينی ﷫ په دې باندې اجماع نقل فرمائيلې ده چه په لبن سره وضوء شرعی واجب نه دې، خو د امام ترمذی ﷫ د کلام نه په دې کښې اختلاف معلوميږی لکه چه حضرت شيخ ﷫ په حاشيه د کوکب کښې ليکلې دی هغه دا چه په دې کښې درې مذاهب کيدې شی، يو د ائمة اربعه کوم چه پورته ذکر شوې دې، دويم مسلک د بعض صحابه کرامو ﷡ لکه ابوهريره، ابوسعيد الخدری دا حضرات ددې نه د اودس واجب کيدو قائل وو، پس منصف ابن ابی شيبة کښې ددې دواړو نه روايت دې ﴿ لا وضوء الا من اللبن ﴾ او دريم مسلک په دې کښې د ابوسلمة بن عبدالرحمن دې هغوی د استحباب هم قائل نه وو پس په مصنف ابن ابی شيبة کښې دی چه کله د هغوی نه دې باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائيل ﴿ امن شراب سائغ للشاربين؟ ﴾ آيا د داسې ښکلې څيز نه اودس کولې شی؟

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي ذَٰلِكَ

### باب دې په بيان د رخصت کې په دې کې

په دې باب سره مقصود ترک المضمضة من اللبن ثابتول دی يعنی د پيو څکلو نه پس خوله کنګالول څه ضروری نه دی پس په حديث الباب کښې دی انس ﷠ فرمائی چه رسول الله ﷺ يو ځل پئ اوڅکل د هغې نه پس ئې نه مضمضه اوفرمائيله نه ئې اودس اوکړو او نه مونځ ابن رسلان ﷫ فرمائی ﴿ واغرب ابن شاهين ﴾ يعنی ابن شاهين ﷫ يوه عجيبه خبره کړې ده چه د سيدنا انس ﷠ دا حديث د ابن عباس ﷠ د حديث کوم چه تير باب کښې وو ناسخ دې، د عجيب مطلب خو دا دې چه نسخ خو هلته وی چرته چه څوک د وجوب قائل وی، چه کله دواړه خبره بالاتفاق جائز دی نو نسخ د څه خبرې.

[١٩٧](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ الْحُبَابِ، عَنْ مُطِيعِ بْنِ رَاشِدٍ، عَنْ تَوْبَةَ الْعَنْبَرِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ: "إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا، فَلَمْ يُمَضْمِضْ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ، وَصَلَّى"، قَالَ زَيْدٌ: دَلَّنِي شُعْبَةُ عَلَى هَذَا الشَّيْخِ.

**ترجمه:** توبة العنبري د انس ﷠ اوريدلي دي چه هغه به ويل: بېشکه رسول الله ﷺ وڅکل شوده، نو مضمضه ئي اونه کړه او اودس ئي هم اونه کړو او مونځ ئي اوکړو. وئيلی دي زيد: شعبه ماته دا شيخ راوښودلو.

**تشريح:** قوله: ﴿ دَلَّنِي شُعْبَةُ عَلَى هَذَا الشَّيْخِ ﴾ ددې حديث په سند کښې د زيد بن الحباب استاذ مطيع بن راشد دې، زيد بن الحباب فرمائی چه د سماع حديث دپاره د مطيع بن راشد

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٥٨) (حسن)

متعين کول او هغه طرف ته رهنمائی زما شعبه کړې وه غالبا د زيد مقصود په دې سره د خپل شيخ توثيق دې، او دا په دوه طريقو سره واقع کيږی يو دا چه د هغوی نه په شيخ سره تعبير کوی او شيخ الفاظ د توثيق نه دی اگرچه ادنی درجه ولی نه وی، دويم دا چه د شعبه په شان لوئې محدث چه کله د هغوی رهنمائی کړې ده نو يقينا هغه به ثقة راوی وی.

## بَابُ الْوُضُوءِ مِنَ الدَّمِ

### باب دې په بيان د اودس کې د وينې نه

**په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة:**

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ده هغه اختلافی ده، د احنافو او حنابله په نزد مطلقا د بدن نه د دم سائل خروج ناقض وضوء دې که په سبيلين سره وی يا غير سبيلين سره (په دې کښې د دم تخصيص نشته بلکه مطلق نجاست دې) د شوافعو په نزد چه کوم دم خارج من السبيلين وی هغه ناقض دې او دهغې نه علاوه ناقض نه دې، امام مالک رحمه الله فرمائی چه د سبلين نه خارج کيدونکې وينه که بالکل خالصه وی بل څه نجاست وارۀ يا لوئې بول په هغې پورې لگيدلې نه وی نو ناقض نه ده، خو که دهغې سره بل څه نجاست يوځائې شوې وی نو بيله خبره ده، امام بخاری رحمه الله په صحيح بخاری کښې باب قائم کړې دې ﴿ باب من لم ير الوضوء الا من المخرجين ﴾ څان پوهه کړه چه د احنافو او د حنابله په نزد قاعده ده چه د بدن د هر يوې حصې نه وينه وتل ناقض وضوء دی او شوافع وائی چه که د نجاست خروج د غير سبيلين نه وی نو هغه ناقض نه دې، امام شافعی رحمه الله دا فرمائی چه د بدن نه ددې نجاست خروج ناقض دې که د نجاست خروج د غير سبلين نه وی ننو هغه ناقض نه دې، امام شافعی رحمه الله دا فرمائی چه د بدن نه د هغه نجاست خروج ناقض دې کوم مخرج چه معتاد يعنی د سبيلين نه وی او امام مالک رحمه الله د مخرج معتاد سره يو بل قيد هم لگوی هغه دا دې چه خروج هم معتاد وی لهذا که د يو عارض يا بيمارئ د وجې نه د سبيلين نه نجاست خارج شی نو هغه به ناقض د طهارت نه وی مثلا د يو سړی د سبيلين نه د وينې خروج اوشو يا يو کاڼړې يا چينجې وغيره خارج شو نو د هغوی په نزد ناقض وضوء نه دې ځکه چه دهغې خروج معتاد نه دې يعنی د عادت مطابق نه دې بلکه د عادت خلاف دې، هم په دې وجه د مالکيانو په نزد استحاض ناقض د وضوء نه دې اگر که هغه د احد السبيلين نه خارج کيږی خو چونکه دهغې خروج معتاد نه دې بلکه خلاف عادت د مرض د وجې نه دې په دې وجه هغه د هغوی په نزد ناقض نه دې، او د امام شافعی رحمه الله په نزد د مخرج معتاد نه د يو څيز وتل د طهارت د ماتولو دپاره کافی دی د خروج معتاد کيدل ضروری نه دی، امام بخاری رحمه الله په دې باب سره هم دغه اختلاف ته اشاره کړې ده.

مصنف رحمه الله چه په دې باب کښې کومه واقعه ذکر کړې ده دهغې نه په ظاهر کښې هم دا معلوميږی چه خروج دم من غير السبيلين ناقض وضوء نه دې.

[۱۹۸]() حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي صَدَقَةُ بْنُ يَسَارٍ، عَنْ عَقِيلِ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي فِي غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ، فَأَصَابَ رَجُلٌ امْرَأَةَ رَجُلٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَحَلَفَ أَنْ لَا أَنْتَهِي حَتَّى أُهْرِيقَ دَمًا فِي أَصْحَابِ مُحَمَّدٍ، فَخَرَجَ يَتْبَعُ أَثَرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْزِلًا، فَقَالَ: مَنْ رَجُلٌ يَكْلَؤُنَا؟ فَانْتَدَبَ رَجُلٌ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَرَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ: كُونَا بِفَمِ الشِّعْبِ، قَالَ: فَلَمَّا خَرَجَ الرَّجُلَانِ إِلَى فَمِ الشِّعْبِ، اضْطَجَعَ الْمُهَاجِرِيُّ وَقَامَ الْأَنْصَارِيُّ يُصَلِّ، وَأَتَى الرَّجُلُ، فَلَمَّا رَأَى شَخْصَهُ عَرَفَ أَنَّهُ رَبِيئَةٌ لِلْقَوْمِ، فَرَمَاهُ بِسَهْمٍ فَوَضَعَهُ فِيهِ فَنَزَعَهُ حَتَّى رَمَاهُ بِثَلَاثَةِ أَسْهُمٍ، ثُمَّ رَكَعَ وَسَجَدَ، ثُمَّ انْتَبَهَ صَاحِبُهُ، فَلَمَّا عَرَفَ أَنَّهُمْ قَدْ نَذِرُوا بِهِ هَرَبَ، وَلَمَّا رَأَى الْمُهَاجِرِيُّ مَا بِالْأَنْصَارِيِّ مِنَ الدَّمِ، قَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ، أَلَا أَنْبَهْتَنِي أَوَّلَ مَا رَمَى؟ قَالَ: كُنْتُ فِي سُورَةٍ أَقْرَؤُهَا فَلَمْ أُحِبَّ أَنْ أَقْطَعَهَا".

**ترجمه**: د جابر ﷛ نه روايت دي هغه وائي: مونږ ووتلو د رسول الله ﷺ سره غزوة ذات الرقاع کښې، نو اورسيدو يو سړي ښځې د يو سړي ته د مشرکانو نه، نو قسم ئي اوکړو چه نه به منع کيږم ترديې چه توی کړم وينه په ملګرو د محمد ﷺ کښې، نو اووتلو چه د پيغمبر تالاش ئي کولو، نو رسول الله ﷺ ځائي ونيولو په يو ځائي کښې، نو وئي وئيل: څوک دی هغه سړی چه زمونږ حفاظت او څوکيداري اوکړي؟ نو اجابت اوکړو يو سړي د مهاجرينو نه او بل سړي د انصارو نه، نو هغه وفرمايل: چه شئ تاسو په خوله ددې دره کښې. هغه وائی هرکله چه دواړه سړي اووتل خودلي دري ته، نو تکيا ولګوله مهاجر، او پاځيدلو انصاري چه مونځ ئي کولو، او راغی هغه سړی هرکله ئي چه ئي هغه اوليدلو نو پوهه شو چه دا د قوم جاسوس دی، نو وئي ويشتلو په غشي نو هغه پری اولګيدو نو هغه ئي راويستلو، ترديې چه په دربو غشويې ويشتلو، بيا ئي رکوع او سجده اوکړه، بيا رابيدار شو ملګری د هغه، هر کله چه هغه سړي ته پته ولګيده چه دوی ورباندې پوهه شو نو اوتختيدو، هرکله چه مهاجر اوليدل هغه څه چه په انصاري باندې دي د وينو نه، نو اوئی وئيل سبحان الله! ايا تا زه نه بيدارولم په اول ځل ويشتلو سره، هغه اووئيل: زه وم په سورت کښې چه لوستله مې دا مې نه وه خوښه چه هغه پرې کړم.

**مضمون حديث**:

مضمون د حديث دا دې چه جابر ﷛ فرمائی مونږ د رسول الله ﷺ سره په غزوة ذات الرقاع کښې وو يو مسلمان سړی د يو مشرک ښځه قتل کړه يو مشرک له په دې باندې غصه ورغله او هغه ددې خبرې قسم اوکړو چه ترڅو پورې ما د رسول الله ﷺ په ملګرو کښې د چا وينه نه وی توئي کړې په آرام به نه کينم، پس دا مشرک د مسلمانانو په قافله پسې شو، رسول الله ﷺ په يو منزل باندې کوز شو او د عادت مطابق رسول الله ﷺ په شپه کښې د څوکئ انتظام اوفرمائيلو، او تپوس ئې اوکړو چه د شپې به څوک څوکئ اوکړی؟ په دې باندې دوه صحابه کرام يو د مهاجرينو نه يعنی سيدنا عمار بن ياسر ﷛ او يو د انصارو نه يعنی عباد بن بشير ﷛ د رسول الله ﷺ په آواز باندې لبيک اووې، رسول الله ﷺ هغوی ته هدايت

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۴۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۴۳، ۳۵۹) (حسن)

اوکړو چه مخامخ غر ته لاړ شئ او هلته په ویخه شپه تیره کړئ پس دا دواړه صحابه کرام هلته لاړل او خپل مینځ کښې ئې دا فیصله اوکړه چه مونږ دواړه به په نمبر نمبر شپه شوګیره کوو پس د شپې په شروع کښې د عمار بن یاسر اوده کیدل او د عباد بن بشیر رضی الله عنه ویخ پاتې کیدل فیصله شو ، عباد بن بشیر د مانځه نیت اوتړلو او اودریدلو ، هغه مشرک د اول نه د هغوی په انتظار وو هغه د لرې نه دا صحابی اولیدلو نو پوهه شو چه دې چه دې ددې قافلې چوکیدار او څوکئ کونکې دې، پس په هغه باندې ئې غشې ورګزار کړو او هغوی پرې اولګیدل، دا صحابی په مانځه کښې وو په مانځه کښې ئې دا غشې د بدن نه ویستلو او وې غورځولو ، دې مشرک پرلپسې په هغوی باندې درې ځل په غشی سره حمله اوکړه آخر دې صحابی رکوع سجده اوکړه او د مانځه نه چه فارغ شو نو خپل ملګرې یعنی عمار بن یاسر رضی الله عنهما ئې بیدار کړو، چه کله دې مشرک اولیدل چه دوی دواړو خبرې اترې شروع کړې نو پوهه شو چه په ما باندې پوهه شو پس فورا د هغه ځائې نه په تیختة شو. سیدنا عمار رضی الله عنه چه کله ددې انصاری په بدن باندې وینې اولیدې نو وې فرمائیل سبحان الله! تاسو زه په شروع کښې ولې ویخ نه کړم، چه کله اول هغه په غشی باندې ګزار اوکړو نو دې انصاری صحابی سیدنا عباد بن بشیر رضی الله عنه جواب ورکړو چه ما په مانځه کښې یو سورت شروع کړې وو دهغې د پوره کولو نه بغیر مې مونځ ختمول نه غوښتل، په بعض روایاتو کښې دی چه ددې نه مراد سورة کهف دې.

### د احنافو د طرف نه د حدیث الباب جوابات :

شوافع په دې حدیث باندې استدلال کوی چه کومه وینه خارج من غیر السبیلین وی هغه ناقض وضوء نه ده او د امام بخاری رحمه الله مسلک هم دا دې پس هغوی په صحیح بخاری کښې ددې سلسلې ډیر آثار ذکر فرمائیلې دی.

د دې زمونږ د طرف نه ډیر جوابونه کړې شوې دی، اول دا چه دا حدیث ضعیف دې ددې په سند کښې عقیل بن جابر یو راوی دې چه مجهول دې هم په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا قصه تعلیقا په صیغه د تمریض ذکر کړې ده، دویم دا چه دا فعل د صحابی رضی الله عنه دې، کیدې شی چه د هغوی مسلک هم دا وی، دریم جواب دا دې چه دا صحابی د مناجات په حالت کښې وو کیدې شی چه هغه ته د خروج دم پته نه وی لګیدلې، څلورم دا چه مونږ دا اومنله چه خروج دم من غیر السبیلین ناقض وضوء نه دې خو فی نفسه خو دم کثیر بالاتفاق نجس دې ددې کثرت دم باوجود به مونځ څنګه صحیح کیږی. فما هو جوابکم فهو جوابنا.

د شوافعو د طرف نه په استدلال کښې د سیدنا عمر رضی الله عنه واقعه هم پیش کولې شی کومه چه په موطاء د امام مالک رحمه الله کښې ده مسعر وائی چه په کومه شپه په سیدنا عمر رضی الله عنه باندې حمله اوکړې شوه ما اوکتل چه عمر رضی الله عنه مونځ کولو او د هغوی د بدن نه وینه روانه وه، زمونږ د طرف نه جواب دا دې چه د عمر رضی الله عنه قصه د مبحث نه خارج ده ځکه چه د هغه نه خو وینه مسلسل روانه وه هغه د معذور په حکم کښې وو، او د معذور حکم بیل دې.

### د احنافو دلیل :

د احنافو د مسلک ډیر دلائل دی، یو دهغې نه د استحاض والا روایت دې کوم چه په صحاح سته کښې موجود دې، اوس که څوک اوائی چه دا استحاض خو خارج من السبلین دې،د دې جواب دا دې چه د استحاض د ناقض کیدو علت دا نه دې بیان کړې شوې چه هغه خارج من السبیلین دې بلکه رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائیلو ﴿ فانها دم عرق ﴾ معلومه شوه چه د نقض وضوء مدار په استحاضه او خارج من السبیلین باندې نه دې بلکه صرف په دم عرق باندې دې او د بدن د هر یوې حصې نه چه وینه راوځی هغه به دم عرق شمارلې کیږی.

بل دا چه احنافو د حدیث الرعاف نه استدلال کړې دې او هغه په دارقطنی کښې په ډیرو طرقو سره دې، چه دهغې الفاظ دا دی ﴿ من اصابه قئ او رعاف او قلس فلینصرف ولیتوضاء ثم لیبن علی صلوته ﴾ حضرت سهارنپوریؒ په بذل کښې د احنافو د مسلک ډیر روایتونه په تفصیل سره ذکر فرمائیلي دی.

### د دم مقدار معفو کښې مسالک ائمة :

د دې مقام مناسب یوه مسئله بله ده هغه دا چه د دم معفو مقدار څه دې؟ او معاف دې هم او یا نه؟ د احنافو په نزد په اندازه د درهم معاف دې او د امام شافعیؒ په نزد دوه روایتونه دی احدهما لا یعفی مطلقا، ثانیهما یعفی ما دون الکف وهو مذهب احمد، وعند المالکیة روایتان ۱: قدر الدرهم ۲: مادون الدرهم کذا فی هامش الکوکب والفیض السمائی.

## بَابُ الْوُضُوءِ مِنَ النَّوْمِ

### باب دې په بیان د اودس کې د خوب نه

د نواقض وضوء بیان شروع دې نوم ناقض وضوء دې او که نه په کوم صورت کښی دی او په کوم صورت کښې نه دې په دې کښې د علماء کرامو اتهٔ مشهور اقوال دی چه هغه امام نووی هم ذکر کړی دی.

۱: مطلقا ناقض دې، دا روایت دې د اسحق بن راهویه، حسن بصری او مزنیؒ نه.

۲: مطلقا غیر ناقض دې دا روایت دې د ابو موسی اشعریؓ، سعید بن المسیب او اوزاعیؒ نه.

۳: نوم کثیر ناقض دې مطلقا او قلیل ناقض نه دې دا منقول دې د امام مالک او زهری نه او په یو روایت د امام احمدؒ کښې هم داسې دی،

۴: په حالت قیام او قعود کښې نوم کثیر او ددې دوارو حالتونو نه علاوه په باقی کښې مطلقا ناقض دې، دا مذهب دې د امام احمدؒ،

۵: کوم خوب چه په هیئة من هیئات الصلاة وی هغه ناقض نه دې ګینې ناقض دې، دا مذهب دې د احنافو خو ددې نه مراد د مانځه هیئت مسنونه دې، پس قیام او قعود او رکوع ـ سجود کښې چه د سنت طریقې مطابق وی په هغې کښې اودهٔ کیدل ناقض وضوء نه دی: باقی حالات لکه نوم متکئا یا مضطجعا یا مستقلیا هغه به ناقض وی.

۶: کوم خوب چه جالسا د تمیکن مقعد علی الارض سره وی صرف هغه ناقض نه دې باقی

ټولو حالاتو کښې ناقض دي، دا مذهب دې د امام شافعي رحمه الله.

۷: لا ينقض الا نوم راكع والساجد رواية عن احمد.

۸: لا ينقض الا نوم الساجد فقط رواية عن احمد ايضا.

په دې اقوال ثمانيه کښې دريم قول د امام مالک رحمه الله مسلک دې او قول رابع د امام احمد او قول خامس د احنافو او قول سادس د شوافعو دې، لهذا هم ددې څلورو ياد ساتل د طالبانو دپاره اهم دی.

[۱۹۹](¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي نَافِعٌ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شُغِلَ عَنْهَا لَيْلَةً فَأَخَّرَهَا حَتَّى رَقَدْنَا فِي الْمَسْجِدِ، ثُمَّ اسْتَيْقَظْنَا ثُمَّ رَقَدْنَا ثُمَّ اسْتَيْقَظْنَا ثُمَّ رَقَدْنَا ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا، فَقَالَ: لَيْسَ أَحَدٌ يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ غَيْرُكُمْ".

**ترجمه**: عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ يوه شپه دَ لښکر په تيارئی کښې مصروفتيا سره دَ ماسخوتن مونځ نا دخته کړو چه مونږ اوده شو په جمات کښې، بيا رابيدار شو، بيا اوده شو، بيا رابيدار شو، بيا اوده شو، بيا راووتلو مونږ ته، نو اووئی وئيل: نشته هيڅ کس چه انتظار کوي د مونځ غير د تاسو نه.

### د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت:

۱: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، قوله حَتَّى رَقَدْنَا فِي الْمَسْجِدِ ﴾ د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت دا دې چه ددې نه معلوميږی چه هر نوم ناقض وضوء نه دې لکه چه د جمهورو مذهب دې، او ظاهره ده چه د هغوی دا خوب قاعداً وو په هيئت د صلوة باندې ځکه چه د مانځه انتظار په ناسته باندې کول مستحب دی، په دې وجه ناقض وضوء نه شو، صاحب منهل ليکی چه ددې حديث نه استدلال کړې شوې دې چه نوم قليل ناقض نه دې ځکه چه خفقان الراس په نوم قليل کښې کيږی.

﴿ فَقَالَ « لَيْسَ أَحَدٌ يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ غَيْرُكُمْ » ﴾ د رسول الله ﷺ مقصود په دې ارشاد سره دې منتظرين صلوة، صحابه کرامو رضي الله عنهم ته تسلی ورکول وو چه د انتظار تکليف ترې نه اوچت شی، او مطلب دا دې چه الله پاک تاسو ته توفيق درکړې دې د مانځه د انتظار کولو په خلاف د نورو خلقو چه هغوی د مونځ کولو نه پس اوده دی يعنی زنانه ماشومان او معذورين وغيره، او دا هم احتمال دې چه نور اهل مساجد مراد وی چه نورو مسجدونو والا د مانځه نه پس اوده شوې دی او تاسو ئې چه د مانځه په انتظار کښې ناست يئ، او يو احتمال دا هم دې چه د ﴿ غيركم ﴾ نه مراد نور خلق يعنی اهل کتاب يهود وغيره مراد وی، ځکه چه هغوی به د ماسخوتن مونځ بالکل نه کولو.

---

¹): صحيح البخاري/مواقيت الصلاة ۲۴ (۵۷۰)، صحيح مسلم/المساجد ۳۹ (۶۳۹)، (تحفة الأشراف: ۷۷۷۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۸۸، ۱۲۶) (صحيح)

[٢٠٠]([1]) حَدَّثَنَا شَاذُّ بْنُ فَيَّاضٍ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْتَظِرُونَ الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ حَتَّى تَخْفِقَ رُءُوسُهُمْ ثُمَّ يُصَلُّونَ وَلَا يَتَوَضَّئُونَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ فِيهِ شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: كُنَّا نَخْفِقُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ ابْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، بِلَفْظٍ آخَرَ.

**ترجمه:** د انس رضي الله عنه نه روايت دي هغه وئيلي دي: وو ملګري د رسول الله ﷺ چه انتظاربه يې کولو د وروستني ماسخوتن تردې چه خکته به شو سرونه د هغوی بيا به ئي مونځ کولو او اودس به ئي نه کولو. وئيلي دي ابوداود: زيادت کړی دی په دې کښې شعبه د قتاده نه، هغه وائي: وو مونږ چه خکته کيدل به سرونه زمونږ په زمانه د رسول الله ﷺ کښې، او روايت کړی دی ابن ابي عروبه د قتاده نه په نورو الفاظو سره.

**تشريح:** ﴿ قوله حَتَّى تَخْفِقَ رُءُوسُهُمْ ﴾ يعنی د پرکالئ او خوب د راتلو د وجې نه به د هغوی سرونه ښکته شو لکه چه په ناسته ناسته د اودهٔ کيدو په حالت کښې کيږي چه زنه د سينې سره اولګيږي.

[٢٠١]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَدَاوُدُ بْنُ شَبِيبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ: "أُقِيمَتْ صَلَاةُ الْعِشَاءِ، فَقَامَ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ لِي حَاجَةً، فَقَامَ يُنَاجِيهِ حَتَّى نَعَسَ الْقَوْمُ أَوْ بَعْضُ الْقَوْمِ، ثُمَّ صَلَّى بِهِمْ وَلَمْ يَذْكُرْ وُضُوءًا".

**ترجمه:** بيشکه انس بن مالک وائي: ودرولی شو مونځ د ماسخوتن، نو پاڅيدلو يو سړی، نو هغه اووئيل: اې د الله رسوله! زما څه حاجت دی، نو هغه اودريدلو چه مناجاة ئي ورسره کولو تردې چه خلک اوده شول، او يا بعضي خلک اوده شول، بيا ئي مونځ اوکړو دوی ته او ذکر ئي نه کړو اودس.

[٢٠٢]([3]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، وَهَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنْ عَبْدِ السَّلَامِ بْنِ حَرْبٍ، وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِ يَحْيَى، عَنْ أَبِي خَالِدٍ الدَّالَانِيِّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْجُدُ وَيَنَامُ وَيَنْفُخُ، ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي وَلَا يَتَوَضَّأُ، قَالَ: فَقُلْتُ لَهُ: صَلَّيْتَ وَلَمْ تَتَوَضَّأْ وَقَدْ نِمْتَ، فَقَالَ: إِنَّمَا الْوُضُوءُ عَلَى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا"، زَادَ عُثْمَانُ، وَهَنَّادٌ: فَإِنَّهُ إِذَا اضْطَجَعَ اسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَوْلُهُ الْوُضُوءُ عَلَى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا هُوَ حَدِيثٌ مُنْكَرٌ، لَمْ يَرْوِهِ إِلَّا يَزِيدُ أَبُو خَالِدٍ الدَّالَانِيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، وَرَوَى أَوَّلَهُ جَمَاعَةٌ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَلَمْ يَذْكُرُوا شَيْئًا مِنْ هَذَا، وَقَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَحْفُوظًا، وَقَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَنَامُ عَيْنَايَ وَلَا يَنَامُ قَلْبِي، وَقَالَ شُعْبَةُ: إِنَّمَا سَمِعَ قَتَادَةُ مِنْ أَبِي الْعَالِيَةِ أَرْبَعَةَ أَحَادِيثَ: حَدِيثَ يُونُسَ بْنِ مَتَّى، وَحَدِيثَ ابْنِ عُمَرَ فِي الصَّلَاةِ، وَحَدِيثَ الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ، وَحَدِيثَ ابْنِ عَبَّاسٍ، حَدَّثَنِي رِجَالٌ مَرْضِيُّونَ مِنْهُمْ: عُمَرُ، وَأَرْضَاهُمْ عِنْدِي عُمَرُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَذَكَرْتُ حَدِيثَ يَزِيدَ الدَّالَانِيِّ لِأَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ، فَانْتَهَرَنِي اسْتِعْظَامًا لَهُ، وَقَالَ: مَا لِيَزِيدَ الدَّالَانِيِّ يُدْخِلُ عَلَى أَصْحَابِ قَتَادَةَ؟ وَلَمْ يَعْبَأْ بِالْحَدِيثِ.

[1]): تفرد به ابوداود (تحفة الأشراف: ١٣٨٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحيض ٣٣ (٣٧٦)، سنن الترمذي/الطهارة ٥٧ (٧٨) (صحيح)

[2]): صحيح مسلم/الطهارة ٣٣(٣٧٦)، (تحفة الأشراف: ٣٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٠/٣، ٢٦٨) (صحيح)

[3]): سنن الترمذي/الطهارة ٥٧ (٧٧)، (تحفة الأشراف: ٥٤٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٦/١) (ضعيف)

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دي، بیشکه رسول الله ﷺ وو چه سجده ئې کوله او اوده کېدلو به او پوکی به ئې کول، بیا به اودریدو او مونځ به ئې کولو او اودس به ئې نه کولو، هغه اووئیل: ما ورته اووئیل: تا مونځ اوکړو او اودس دې اونه کړو په تحقیق سره ته خو اوده شوی وې، نو هغه اووئیل: بیشکه اودس په هغه چا باندې دی چه هغه اوده شي په تکیا باندې. زیادت کړی دی عثمان او هناد: بیشکه هغه چه کله تکیا ووهي نو سستېږي اندامونه د هغه. وئیلی دي ابوداود: وینا د هغه: چه (الوضوءُ علی من نام مضطجعاً) هغه حدیث منکر دی نه دی روایت کړی مګر یزید ابو خالد الدالاني د قتاده نه، او روایت کړی دی اول سر د حدیث یو جماعت د ابن عباس نه، او نه ئې دی ذکر کړی څه شی د دېنه، او هغه وئیلی دی: وو نبي ﷺ محفوظ.

**تشریح**: ۲: ﴿ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ وقوله عَنْ أَبِي خَالِدٍ الدَّالاَنِيِّ ﴾ د هغوی نوم یزید بن عبدالرحمن دې لکه چه د مصنف رحمه الله په کلام کښې وړاندې راغې ډېرو ائمة رجال د هغوی تضعیف کړې دې، ﴿ قوله يَسْجُدُ وَيَنَامُ وَيَنْفُخُ ﴾ د ترمذی په روایت کښې دی ﴿ نام وهو ساجد حتی غط ونفخ ﴾ چه دهغې نه معلومېږی چه د اوده کېدو نه مراد په مانځه کښې د سجدې په حالت کښې اوده کیدل دی لهذا ددې نه معلومه شوه چه خوب د مونځ په هیئة باندې کول ناقض نه دې، صاحب منهل هم دا خبره لیکلې ده باقی د انبیاو علیهم السلام خوب خو په هیڅ حالت کښې هم ناقض نه دی.

﴿ قوله ولم تَتَوَضَّأْ وَقَدْ نِمْتَ فَقَالَ « إِنَّمَا الْوُضُوءُ عَلَى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا » ﴾ یعنی سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ تاسو ته د مانځه دوران کښې خوب درغلې وو تاسو هم په هغه حالت کښې مونځ پوره کړو او په مینځ کښې مو اودس او نه فرمائیلو نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل اودس په هغه سړی باندې واجب دې د چا خوب چه مضطجعاً وی هر قسم خوب ناقض نه دې.

**په دوه احادیثو کښې رفع تعارض**:

ځان پوهه کړه چه د ابن عباس رضی الله عنهما سوال خو ښکاره دې تشریح ته محتاج نه دی خو د رسول الله ﷺ دا جواب کوم چه دلته مذکور دې!

په دې باندې یو اشکال دې، هغه دا چه ددې نه په طریقه د مفهوم معلومېږی چه د رسول الله ﷺ خوب که مضطجعا وی نو ناقض وضوء به وی حال دا چه د انبیاو علیهم السلام خوب ناقض نه دې مشهوره مسئله ده، هم ددې وجې نه وړاندې په یو حدیث کښې چه دهغې ذکر وړاندې راغې چه کله عائشې رضی الله عنها د رسول الله ﷺ نه هم دغه شان تپوس اوکړو نو هغه وخت رسول الله ﷺ په جواب کښې ارشاد اوفرمائیلو ﴿ تنام عيناى ولا ينام قلبى ﴾ چه په هغې سره رسول الله ﷺ هم دې طرف ته اشاره اوفرمائیله چه خوب د نبی ﷺ ناقض نه دې نو اوس په دواړو جوابونو کښې تعارض ظاهر دې هم ددې اشکال او تعارض په بناء باندې امام ابوداؤد رحمه الله وړاندې په دې روایت باندې کلام کوی، ﴿ قال ابوداؤد قوله الوضوء على من نام مضطجعا هو حديث منكر الخ ﴾ ددې حدیث چه کومه آخری ټکړه ده یعنی د ابن عباس رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ

نه ټپوس کول او بیا په هغې باندې د رسول اللهﷺ جواب کول ﴿ انما الوضوء علی من نام مضطجعا ﴾ دا حدیث ثابت نه دې په دې کښې ابوخالد دالانی منفرد دې کوم چه ضعیف راوی دې د ابوخالد نه علاوه نورو راویانو ددې حدیث صرف اول حصه ذکر کړې ده، آخری حصه ئې نه ده ذکر کړې لهذا یو جواب خو د پورته اشکال دا شو چه حدیث بالکل ثابت نه دې.

## د دعوی نکارة دلائل:

وړاندې مصنفؒ نور هم بعض دلائل د حدیث ددې ټکړې د عدم ثبوت پیش کوی پس فرمائی ﴿ وقال کان النبیﷺ محفوظا ﴾ یعنی رسول اللهﷺ ددې خبرې نه محفوظ او بری وو چه په حالت نوم کښې دې هغوی ته حدث (خروج ریح) لاحق شی، او هغوی ته دې احساس نه وی، یعنی خوب فی نفسه خو ناقض نه دې بلکه په دې وجه ناقض دې چه هغې کښې قوی ګمان د خروج ریح دې او عام خلقو ته په خوب کښې د خروج ریح پته نه لګی په دې وجه د عام خلقو په حق کښې خوب د خروج ریح قائم مقام کړې شو او د رسول اللهﷺ شان دا نه دې چه هغوی ته دې د خروج ریح پته او نه لګی، لهذا د هغوی په حق کښې خوب ناقض هم نه دې که مضطجعا وی او که بل شان، دا خو ددې کلام تشریح شوه.

خو څان پوهه کړه چه د ﴿ وقال ﴾ ضمیر کوم طرف ته راجع دې د ظاهر سیاق نه معلومیږی چه د ابن عباسؓ طرف ته دې خو حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه د ابوداؤدؒ روایت امام بیهقیؒ هم ذکر فرمائیلې دې په هغې کښې داسې دی ﴿ وقال عکرمة کان النبیﷺ محفوظا ﴾ ددې نه معلومیږی چه زمونږ په نسخه کښې د قال نه روستو عکرمة پاتې شوې دې ﴿ وقالت عائشة قال النبیﷺ تنام عینای ولا ینام قلبی ﴾ دا د مصنفؒ د طرف نه په ذکر کړې دعوی باندې دویم دلیل دې ددې وضاحت مونږ سره په پورته کلام کښې راغلو.

## د لیلة التعریس په واقعه باندې یو شبهه:

خو په دې حدیث باندې یو اشکال دې هغه دا چه هر کله دا خبره ده چه د رسول اللهﷺ خوب د داسې غفلت نه وو نو د لیلة التعریس واقعه ولې پیښه شوه هلته د مانځه په وخت ټول اودهٔ پاتې شو، جواب دا دې چه د طلوع شمس تعلق د سترګې سره دې د قلب سره نه دې او سترګه بیداره نه ده، په خلاف د حدث چه ددې تعلق د باطن سره دې او قلب بیدار دې، حضرات علماء کرامو لیکلې دی چه د رسول اللهﷺ قلب مبارک به بیدار وو او په دې کښې د الله پاک یو حکمت دا دې چه د انبیاءؑ خوبونه وحی وی په دې وجه به د رسول اللهﷺ قلب مبارک بیدار وو چه رسول اللهﷺ دا وحی محفوظ اوساتلې شی او په هر حال کښې به ئې په معارف الهیه کښې ترقی فرمائیله.

پس څان پوهه کړه چه دا صرف د رسول اللهﷺ خصوصیت نه دې بلکه نور انبیاءؑ هم په دې کښې شامل دی پس د ابن سعدؒ په یو روایت کښې کوم چه د عطاء نه مرسلا مروی دې په هغې کښې داسې دی ﴿ انا معاشر الانبیاء تنام اعیننا ولا تنام قلوبنا ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د ټولو انبیاء کرامو ؑ قلوب په حالت نوم کښې بیدار وی. (منهل)

﴿ وقال شعبة انما سمع قتادة الخ ﴾ دا د مصنفؒ په دعوی مذکور باندې څلورم

دلیل دي، هغه دا چه شعبه رحمه الله فرمائی چه قتادة د ابوالعالیه نه صرف څلور احادیث اوریدلي دی [1] وړاندې ددې څلورو احادیثو تعین دې. مطلب دا دې چه حدیث الباب لره قتادة د ابوالعالیه نه روایت کوی او قتاده د ابوالعالیه نه صرف څلور احادیث اوریدلي دی، او دا حدیث په دې څلورو کښې نه دی لهذا حدیث منقطع شو.

بهر حال د مصنف رحمه الله دا وینا ده چه د حدیث دا ټکړه ثابته نه ده او معنوی اشکال په دې باندې هم هغه دې کوم چه مونږ پورته ذکر کړې دي، خو ددې اشکال یو جواب دا کړې شوې دې کوم چه حضرت رحمه الله هم په بذل کښې ذکر فرمائیلي دی، هغه دا چه د رسول الله ﷺ جواب ﴿ انما الوضوء علی من نام مضطجعا ﴾ د جواب علی اسلوب الحکیم د قبیل نه دې جواب په اسلوب د حکیم دې ته وائی چه په هغې کښې د سوال د مطابقت رعایت نه وی بلکه د سائل د حال او مقام رعایت ملحوظ وی پس په دې جواب کښې رسول الله ﷺ د عام خلقو د احوالو پیش نظر د تعلیم امت دپاره دا جواب ارشاد اوفرمائیلو ځکه چه د امت حکم هم دا دې چه نوم مضطجعا ناقض دې لهذا ددې اشکال نه د بچ کیدو په غرض خو د حدیث د تضعیف حاجت نشته خو تحقیق روایت امر اخر دې.

[٢٠٣]([2]) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحِمْصِيُّ، فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنِ الْوَضِينِ بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ مَحْفُوظِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَائِذٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وِكَاءُ السَّهِ الْعَيْنَانِ، فَمَنْ نَامَ فَلْيَتَوَضَّأْ".

**ترجمه**: دعلي بن ابي طالب رضی الله عنه نه روایت دې، هغه وئیلی دی: چه وئیلی دي رسول الله ﷺ واړې د عورت هغه دواړه سترګې دې، پس هغه څوک چه اوده شو نو اودس دې اوکړي.

**تشریح**: ٣. ﴿ حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحِمْصِيُّ قوله وِكَاءُ السَّهِ الْعَيْنَانِ فَمَنْ نَامَ فَلْيَتَوَضَّأْ ﴾ یعنی د شرمګاه مزې سترګې دی د سترګو نه مراد یقظة یعنی بیداری ده مطلب دا شو چه کله انسان بیدار وی او د هغه سترګې کولاؤ وی نو ګویا په شرمګاه باندې مزې تړلې شوې دې چه دننه څیز بهر نه شی راتلې، د کوم احساس چه هغه نائم ته نه شی کیدې او ظاهره ده چه د انسان په خیټه کښې ریاح وغیره وی نو کله چه هغه اوده شی نو د شرمګاه د هغه مزی د پرانستلې کیدو په وجه باندې د هوا خارج کیدو قوی امکان دې هم په دې وجه شریعت نوم ته ناقض وضوء وئیلی دی، ددې حدیث نه دا خبره بالکل صفا معلومیږی چه نوم فی نفسه ناقض وضوء نه دې څنګه چه د جمهورو مسلک دې. ځان پوهه کړه چه ﴿ السه ﴾ کوم چه په دې حدیث کښې مذکور دې دا د حروف ناقصه نه دې یعنی د کوم حرف اصلی چه غائب دې ځکه چه دا لفظ په اصل کښې ﴿ سته ﴾ وو چه دهغې جمع ﴿ استاه ﴾ راځی لکه د فرس جمع افراس، پس په دې کښې تعلیل دا اوشو چه اولاً ددې حرف آخر هاء تخفیفا حذف کړې شوه

---

[1] ) لكن الحصر في الاربعة اما باعتبار علمه او تقريبي اذ ذكر البيهقي حدثين اخرين فالمجموع حديثين فالجموع ستة وفي الترمذي قال شعبة لم يسمع قتادة من ابي العالية الا ثلاثة اشياء)

[2] ): سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٢ (٤٧٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١١/١، ٩٧/٤) (حسن)

او بیا دهغې په عوض کښې په شروع کښې همزه راوړلې شوه نو دا ﴿ است ﴾ شو، او لفظ است په احادیثو کښې وارد شوې دې څنګه چه د ابوهریره رضی الله عنه په حدیث کښې دی ﴿ فحررت لاستی ﴾ بیا دا اوشوه چه هاء کوم چه دهغې آخری حرف وو یعنی لام کلمه دوباره راوړلې شوه او عین کلمه یعنی تاء حذف کړې شوه نو هغه همزه کومه چې دهغې په شروع کښې د هاء په عوض کښې راوړلې شوې وه هغه حذف کړې شوه لهذا اوس ﴿ سه ﴾ پاتې شو.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه دا چه په دې حدیث کښې راغلی دی ﴿ فمن نام فلیتوضا ﴾ ددې نه هغه خلقو استدلال کړې دې کوم چه نوم لره مطلقا ناقض منی، کوم چه د اقوال ثمانیه نه یو قول دې او دا د جمهورو خلاف دې په دې وجه ددې جواب دا کړې شوې دې چه دا ضعیف دې، ددې په سند کښې دوه راویان داسې دی کوم چه ضعیف دی یو بقیة بن الولید دویم وضین، بله دا چه دا حدیث منقطع دې ځکه چه د عبدالرحمن بن عائذ سماع د علی رضی الله عنه نه ثابت نه ده، نقله العینی عن ابی زرعة الرزای... دریم تاویل د حدیث دا هم کیدې شی چه په دې حدیث کښې دا بیانیږی چه نوم په دې وجه ناقض دې چه په دې سره د شرمګاه خولهٔ پرانستلې کیږی نو په کوم خوب کښې چه د خوله پرانستلې کیدل أقرب او اغلب وی هم هغه خوب به دلته مراد وی هر قسم خوب به په دې کښې داخل نه وی، بله دا چه احادیث سابقه هم په دې باندې دلالت کوی چه هر نوم ناقض وضوء نه دې، والله تعالی اعلم بالصواب.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَطَأُ الْأَذَى بِرِجْلِهِ

### باب دې په بیان د سړي کې چې پایمال کوي کنده شي په خپله خپه

[٢٠٤](1) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي مُعَاوِيَةَ، عَنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنِي شَرِيكٌ، وَجَرِيرٌ، وَابْنُ إِدْرِيسَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللهِ "كُنَّا لَا نَتَوَضَّأُ مِنْ مَوْطِئٍ، وَلَا نَكُفُّ شَعْرًا وَلَا ثَوْبًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي مُعَاوِيَةَ فِيهِ: عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، أَوْ حَدَّثَهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللهِ. وَقَالَ هَنَّادٌ: عَنْ شَقِيقٍ، أَوْ حَدَّثَهُ عَنْهُ.

**ترجمه:** د شقیق نه روایت دې چه عبد الله بن مسعود وئیلی دی: وو مونږ چه اودس به مو نه کولو چه کوم شي باندې به مونږ خپه کیخوده، او مونږ به نه بندول خپل ویخته او جامه وئیلي دي ابوداود: وئیلي دي ابراهیم بن ابي معاویه په هغې کښې، د اعمش نه او هغه د شقیق نه، او هغه د مسروق نه، او یایې حدیث بیان کړی دی د هغه نه. هغه اووئیل: وئیلي دي عبد الله. او وئیلي دي هناد د شقیق نه، او یایې حدیث بیان کړی دی د هغه نه.

**تشریح:** یعنی یو سړې خپې ابله روان دې او روان هم د مسجد طرف ته دې او د مخکښې نه

---

(1): حدیث ابراهیم بن أبي معاویة عن أبي معاویة تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٥٦٤)، وحدیث هناد عن أبي معاویة وعثمان عن شریك وجریر وعبدالله بن ادریس، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٠٩ (١٤٣) تعلیقًا: سنن ابن ماجه/الإقامة ٦٧ (١٠٤١)، (تحفة الأشراف: ٩٢٦٨) (صحیح)

نې اودس کړې دې. اوس د لارې په ګندګۍ او ناپاکه څيزونو باندې تيريږي نو ايا د هغه دپاره ضروری ده چه مسجد ته د رسيدو نه مخکښې اودس اوکړی يا ښپې اووينځی؟
مصنف رحمه الله په دې باب کښې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حديث بيان فرمائيلې دې. ﴿ كنا لا نتوضا من موطئ ﴾

شرح المتن: په موطئ کښې دوه احتمالونه دی، يا دا مصدر ميمی دې د ﴿ وطی ﴾ په معنی کښې يعنی د ښپو لاندې کول. يا اسم مفعول دې په اصل کښې ﴿ موطوء ﴾ وو، يعنی هغه څيز کوم چه د ښپو لاندې کړې شوې وی، نجاست وغيره يعنی اودس به نه کولو مونږ د ښپو د راښکلو د وجې نه، ځان پوهه کړه چه په دې حديث کښې دوه احتمالات دی يو دا چه هغه اودس د کوم چه نفی کولې شی ددې نه وضوء شرعی مراد وی يعنی د راښکلو د وجې نه به باقاعده مونږ اودس نه کولو، دويم دا چه د وضوء نه وضوء لغوی مراد وی يعنی غسل رجلين، يعنی مونږ به هلته رسيدو سره غسل رجلين نه کولو، که د ښپو لاندې کولو نه مراد دلته د لارې ختې يا هغه څيزونه چه طبيعت ئې بد ګنړی لکه لارې بلغم وغيره، نو بيا خو د وضوء شرعی او لغوی هر دواړو نفی کول صحيح دی هم دغه شان که نجاست يابسه مراد وی نوبيا هم، خو که تر نجاست مراد وی نو په دې صورت کښې متعين ده چه نفی د وضوء شرعی به مراد وی، د وضوء لغوی نفی مراد کول به دی وخت صحيح نه وی، ځکه چه په دی صورت کښې غسل رجلين ضروری دې.
﴿ ولا نكف شعرا ولا ثوبا الخ ﴾ يعنی مانځه کښې به سجدې ته د تلو په وخت مونږ د خپل سر ويښته او کپړې په دې خيال چه هسې نه د زمکې ګردوغبار پرې اولګی نه راټولولې، ځکه چه دا څيز د خشوع فی الصلوة خلاف دې، دا کلام خو د متن حديث سره متعلق وو، ددې حديث په سند باندې پوهيدل لږ ګران دی کوم چه مصنف رحمه الله وړاندې بيانوی.

شرح السند:

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي مُعَاوِيَةَ فِيهِ ﴾ د مصنف رحمه الله په دې حديث کښې درې استاذان دی، هناد، ابراهيم، عثمان، مصنف رحمه الله د خپلو استاذانو اختلاف فی السند بيانوی، اصل سند کوم چه په شروع کښې مصنف رحمه الله بيان کړو هغه الفاظ خو د مصنف رحمه الله د استاذ عثمان بن ابی شيبة رحمه الله دی، اوس ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د خپلو باقی دوه استاذانو د سند الفاظ نقل کوی، يو ابراهيم، دويم هناد، د عثمان د سند الفاظ کوم چه په شروع کښې مذکور دی ددې نه دا معلومه شوه چه د اعمش او شقيق ترمنيځه هيڅ واسطه نشته خو د شقيق او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ترمينځه د مسروق واسطه ده. ﴿ أَوْ حَدَّثَهُ عَنْهُ ﴾ په دې صورت کښې به دوه واسطې شی مسروق او يو ددې نه علاوه مبهم دې په سند کښې نه دې ذکر شوې او دا دويم مبهم واسطه به د شقيق او مسروق ترمينځه وی تقدير د عبارت داسې دې ﴿ او حدث شقيق عن مسروق ﴾ يعنی يا خو شقيق د مسروق نه روايت کوی يا د يو راوی په واسطې سره او بيا وړاندې مسروق د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت کوی، ﴿ وَقَالَ هَنَّادٌ (ای عن الاعمش) عَنْ شَقِيقٍ أَوْ حَدَّثَهُ عَنْهُ ﴾ ای حدث الاعمش عن شقيق. يعنی د هناد شک دې

په دې خبره کښې چه اعمش براه راست د شقيق نه روايت کوي يا د چا په واسطې سره (کوم چه دلته په سند کښې نه دې ذکر شوې) دَدې دريم استاذ يعنی د هناد د کلام نه معلوميږی چه د شقيق او ابن مسعود رضي الله عنه ترمينځه هيڅ واسطه نشته خو د اعمش او شقيق ترمينځه په تردد سره واسطه ذکر کوی.[1]

دا د سند تول تشريح په هغه صورت کښې ده چه کله ﴿ او حدثه عنه ﴾ لره په صيغه د مجهول سره اولوستلې شي او که دا په صيغه معروف سره لوستلې شي په دې صورت کښې به ئې بل مطلب شي، په اول ځائې کښې به ئې مطلب دا وی چه شقيق د مسروق نه په طريق د عنعنه روايت کوی يا په طريق د تحديث هم دغه شان په دويم ځائې کښې به مطلب دا وی چه د اعمش نه په طريق د عنعنه روايت کوی يا په صيغه د تحديث يعنی د راوی شک دې چه روايت په لفظ د عن سره دې يا په لفظ د ﴿ حدث ﴾ سره، د واسطې او عدم واسطې بحث به په دې صورت کښې نه وی.

## بَابُ مَنْ يُحْدِثُ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د هغه چا کې چې بې اودسه شي په مانځه کې

[٢٠٥](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ عِيسَى بْنِ حِطَّانَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ سَلَّامٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ، فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ، وَلْيُعِدِ الصَّلَاةَ".

**ترجمه**: د علي بن طلق نه روايت دې هغه وئيلی دي، چه وئيلی دي رسول الله ﷺ کله چه باد لاړ شي په تاسو کښې د يو کس نه په مانځه کښې، نو لاړ دې شي او اودس دې اوکړي او اعاده د مانځه دې اوکړي.

**تشريح**: يعنی که د مانځه ترمينځه حدث لاحق شي نو څه کول پکار دی، اودس کولو سره هم په هغه مانځه باندې بناء کيدلې شي يا که اعاده به کولې شي، مسئله مختلف فيه ده، پس که حدث عمدا وی نو استيناف بالاتفاق ضروری دې او که بغير د عمد نه وی نو د جمهورو علماو او ائمه ثلاثه په نزد هغه وخت هم استيناف ضروری دې او د احنافو په نزد په دې صورت کښې بناء هم جائز ده خو اولی استيناف دې، په حديث الباب کښې چه کومه اعاده مذکور ده هغه زمونږ په نزد په استحباب باندې محمول ده يا دې داسې اووئيلې شي

---

[1] ﴿ قَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي مُعَاوِيَةَ ﴾ د ابراهيم په روايت کښې د شقيق او دَ عبدالله بن مسعود (رض) ترمينځه د مسروق زيادت دې او په يو صورت کښې کوم چه هغه ﴿ او حدثه عنه ﴾ سره بيانوی، د مسروق نه علاوه د يو بل راوي زيادت هم دې کوم چه مبهم دې ﴿ وقال هناد الخ ﴾ د دوی په روايت کښې شک ښکاره کړې شوې دې چه د اعمش روايت د شقيق نه يا خو بغير د واسطې نه دې يا بالواسطه دې، د ابراهيم په روايت کښې واسطه که يو وی يا دوه هغه د شقيق او ابن مسعود رضي الله عنه ترمينځه ده او که د هناد په روايت کښې واسطه ده نو هغه د اعمش او شقيق ترمينځه ده او د عثمان په روايت کښې کوم چه په شروع کښې مذکور دې واسطه دواړو ځايونو کښې نشته نه د اعمش او شقيق ترمينځه او نه د شقيق او عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ترمينځه.

[2]: سنن الترمذي/الرضاع ١٢ (١١٦٤)، سنن النسائي/الكبرى، عشرة النساء (٩٠٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٤٤)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ١١٤ (١١٨١)، مسند احمد (٨٦/١) ويأتي عند المؤلف برقم: ١٠٠٥ (ضعيف)

چه په دې صورت کښې محمول ده د احنافو استدلال په مسئلة البناء کښې د هغه متعدد رواياتو نه دې کوم چه په سنن ابن ماجه او دارقطنی وغيره کښې مروی دی کوم چه په بذل المجهود کښې د باب الوضوء من الدم لاندې حضرت نقل فرمائيلې دی، د روايت الفاظ دا دی ﴿ من اصابه قئ او رعاف او قلس او مذی فلينصرف فليتوضا وليبن على صلوته ﴾ حديث تقريبا هم په دې الفاظو باندې د ډيرو صحابه کرامو عائشه، ابوسعيد خدری، علی بن ابی طالب، ابن عباس رضی الله عنهم، وغيرهم نه منقول دې.

**شرح السند :**

﴿ عَنْ مُسْلِمِ بْنِ سَلَّامٍ ﴾ دا سلام په تشديد د لام سره دې بلکه هرځائې کښې سلام مشدد دې سوا د دوه ځايونو نه يو عبدالله بن سلام صحابی او دويم محمد بن سلام د امام بخاری رحمه الله استاذ (كذا قال النووی رحمه الله فی مقدمة شرح مسلم) زمونږ د ابوداؤد استاذ محترم مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله چا چه د شعر او ادب ډير ذوق لرلو د هغوی شعر دې!

بهر موضع مشدد هست سلام　　　　مگر شيخ بخاری وصحابی

﴿ عن علی بن طلق ﴾ تاسو ته به ياد وی چه د وضوء من مس الذكر په باب کښې يو راوی طلق بن علی تير شوې دې، او دلته دې علی بن طلق، پس ځان پوهه کړه چه په نوم کښې قلب واقع شوې دې بلکه دا دوه راويان دی بيل بيل پس د بعض علماء رجال د تحقيق مطابق دا علی بن طلق د مخکښې راوی طلق بن علی پلار دې نو ګويا طلق د علی د پلار نوم دې او د ځوی هم او سلسله د نسب داسې ده، طلق بن علی بن طلق هم دا رائې د حافظ ابن عبدالبر رحمه الله ده، پس هغوی د علی بن طلق په باره کښې فرمائی ﴿ اظنه والد طلق بن علی ﴾ په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی : هو ظن قوی اذ نسبهما واحد.

## بَابٌ فِي الْمَذْيِ

### باب دې په بيان د مذی کښې

د نواقض الوضوء نه يو خروج المذی ده ﴿ مذی ﴾ په سکون د ذال او تخفيف د ياء سره او مذی په تشديد د ياء سره په وزن د غنی دواړو طريقو سره صحيح دې، ﴿ وهو ماء رقيق اصفر يخرج عند الشهوة الضعيفة ﴾ او هم په دې حکم کښې ﴿ ودی ﴾ ده، ﴿ هو ماء ابيض ثخين ﴾ کوم چه د متيازو نه پس يا د څه وزنی څيز د اوچتولو نه پس راوځی.

**د مذی سره متعلق مسائل اربعه خلافيه :**

ځان پوهه کړه چه د مذی متعلق څلور مسائل اختلافی ده، آيا مذی په حکم د متيازو کښې دې، څنګه چه د متيازو نه پس استنجاء بالحجر کافی ده هم دغه شان دلته هم کافی ده يا غسل ضروری دې، د احنافو او شوافعو په نزد راجح قول دا دې چه په دې کښې استجمار کافی دې غسل ضروری نه دې او د مالکيانو او حنابله په نزد دوه روايتونه دی، جواز او عدم جواز، مسئله ثانيه د خروج مذی نه پس صرف محل نجاست لره پاکول ضروری دی يا که دهغې نه علاوه هم، د امام مالک رحمه الله مذهب دې ﴿ يغسل جميع الذكر ﴾ او د حنابله په نزد

د ذکر سره د خصیتین وینځل هم ضروري دي او د احنافو او شوافعو په نزد صرف د موضع نجاست وینځل ضروري دي، مسئله ثالثه چه په کومه جامه باندې مذی اولګی دهغې غسل ضروري دې که نضحه هم کافي ده، د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاثه په نزد باندې غسل ضروري دې نضح او رش الماء کافي نه دې او د امام احمد رحمه الله نه دواړه روایتونه دي، قول راجح د هغوی دا دې چه نضح کافي ده (کما فی هامش الکوکب) علامه شوکاني رحمه الله هم دې ته ترجیح ورکړې ده او د خپل طرف نه ئې ددې وجه د ترجیح هم بیان کړې ده کومه چه حضرت په بذل کښې رد فرمائیلې ده، مسئله رابعه دا ده چه مذی د ائمه اربعه او جماهیر علماء کرامو سلفا او خلفا په نزد نجس ده، په خلاف د فرقه امامیه د روافضو نه چه هغوی دې ته طاهر وائی د لفظ نضح نه استدلال کولو سره، خو مونږ وایو چه لفظ نضح خو د دم حیض او بول صبی په باره کښې هم راغلې دې حال دا چه دم حیض بالاتفاق نجس دې.

[٢٠٦]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ الْحَذَّاءُ، عَنِ الرُّكَيْنِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ حُصَيْنِ بْنِ قَبِيصَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً، فَجَعَلْتُ أَغْتَسِلُ حَتَّى تَشَقَّقَ ظَهْرِي، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَوْ ذُكِرَ لَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَفْعَلْ إِذَا رَأَيْتَ الْمَذْيَ، فَاغْسِلْ ذَكَرَكَ وَتَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ، فَإِذَا فَضَخْتَ الْمَاءَ فَاغْتَسِلْ".

**ترجمه:** د علي رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دي: وم زه چه ډیر مذي به رانه تله، نو زه شروع شوم چه غسل به مې کولو تردې چه شا مې وچاودله، نو دا خبره ما ذکر کړه نبي صلی الله علیه وسلم ته، او یا ورته ذکر کړې شوه، نو اووئیل رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې مه کوه کله چه ته مذي اووینې نو خپل ذکر اووینځه، او اودس کوه پشان د اودس ستا د مانځه دپاره، کله چه تا اوبه راویستلې په ټوپ وهلو سره نو بیا غسل اوکړه.

**تشریح:** ﴿ قوله كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً فَجَعَلْتُ أَغْتَسِلُ ﴾ سیدنا علی رضی الله عنه فرمائی چه زما نه به مذی په کثرت سره تله. او د مسئلې د نه معلومیدو د وجې نه به ما ددې نه غسل کولو او په کثرت سره به دې ته ضرورت راتلو تردې چه د یخنۍ په موسم کښې د یخنې شدت او بار بار د غسل کولو د وجې نه زما په ملا کښې شقوق او درد شوې وو.

### د روایات مختلفه ترمینځه تطبیق:

﴿ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ الخ ﴾ په دې کښې روایات مختلف دي دلته خو د شک سره دی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ددې ذکر اوکړو یا بل چا هغوی ته ذکر اوکړو او وړاندې په ابوداؤد کښې راځی چه مقداد بن اسود رضی الله عنه ته ئې اووئیل چه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د مسئلې تپوس اوکړی او د نسائي په روایت کښې دی چه ما عمار بن یاسر رضی الله عنهما ته اووئیل او د مصنف عبدالرزاق په روایت کښې دی چه یو خل د علی، مقداد بن اسود او عمار بن یاسر رضی الله عنهم ترمینځه په دې

[1] : سنن النسائي/الطهارة ١١١ (١٥٢)، والغسل ٢٨ (٤٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٧٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الغسل ١٣(٢٦٩)، سنن الترمذي/الطهارة ٨٣ (١١٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٠ (٥٠٤)، مسند احمد (١٠٩/١، ١٢٥، ١٤٥) (صحيح)

مسئله باندې مذاکره اوشوه او علي رضي الله عنه دې دوارو ته حکم اوفرمائيلو چه هغه د رسول الله ﷺ نه د مسئلې تپوس اوکړی، او د ترمذی او ابن ماجه په روايت کښې دی علی رضي الله عنه فرمائی ﴿ سالت النبی ﷺ عن المذی ﴾ ابن حبان دا روايات مختلفه داسې جمع کړی چه علی اول عمار رضي الله عنه ته حکم اوکړو او بيا ئې مقداد رضي الله عنه ته، او بيا هغوی خپله سوال اوکړو، حافظ رحمه الله فرمائی چه دا جمع جيد ده خو د هغوی دا وينا چه بيا علی رضي الله عنه خپله سوال اوکړو دا صحيح نه ده ځکه چه دا د هغوی د قول ﴿ انا استحی ﴾ خلاف دې خو ددې جواب دا کيدې شی چه د علی رضي الله عنه دپاره استحياء په شروع کښې وه خو چه کله دې دوارو په سوال کښې تاخير اوکړو نو علی رضي الله عنه د شدت احتياج د وجې نه خپله سوال اوکړو د امام نووی رحمه الله وغيره رائې دا ده چه چرته د سوال نسبت د علی رضي الله عنه طرف ته دې هغه مجاز دې، د آمر کيدو په حيثيت سره ئې خپل طرف ته نسبت کړې دې او بعضو وئيلې دی چه سوال بالواسطه دخپل ځان دپاره وو او په دې کښې د استحياء کيدل ظاهر دی او براه راست سوال د مطلق مسئلې په حيثيت سره ښکاره دی.

دلته دې دا اشکال اونکړې شی چه په طلب د علم کښې علی رضي الله عنه استحياء ولې اوکړه، ځکه چه طلب د علم نه هغوی استحياء نه ده کړې، په طلب د علم کښې خو هغوی هميشه وو خو براه راست د تپوس کولو نه ئې حياء اوکړه چه دهغې د وجې نه ښکاره ده چه خروج مذی عامةً د خپل اهل سره د ملاعبت نه کيږی او د هغوی په نکاح کښې د رسول الله ﷺ لور وه په دې وجه د استحياء کيدل قرين قياس وو دا ټول تفصيل هم دغه شان په اوجز المسالک کښې دې.

﴿ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لاَ تَفْعَلْ إِذَا رَأَيْتَ الْمَذْىَ فَاغْسِلْ ذَكَرَكَ وَتَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلاَةِ ﴾ رسول الله ﷺ علی رضي الله عنه په خروج مذی باندې د غسل کولو نه منع کړو، مسئله اجماعی ده چه په خروج د مذی سره غسل نه واجب کيږی، ﴿ فَإِذَا فَضَخْتَ الْمَاءَ فَاغْتَسِلْ ﴾ چه کله ته اوبه راوباسې نو بيا غسل کوه يعنی غسل په ماء دافق (منی) سره واجب کيږی نه په مذی سره، ﴿ قوله ليغسل ذكره وانثييه ﴾ په دې روايت کښې د ذکر سره ﴿ انثيين ﴾ هم مذکور دې دا د امام احمد او اوزاعی رحمهما الله دليل دې.

[٢٠٧] [1] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ، أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رضي الله عنه أَمَرَهُ أَنْ يَسْأَلَ لَهُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرَّجُلِ إِذَا دَنَا مِنْ أَهْلِهِ فَخَرَجَ مِنْهُ الْمَذْيُ، مَاذَا عَلَيْهِ؟ فَإِنَّ عِنْدِي ابْنَتَهُ وَأَنَا أَسْتَحْيِي أَنْ أَسْأَلَهُ، قَالَ الْمِقْدَادُ: فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ ذَلِكَ، فَلْيَنْضَحْ فَرْجَهُ وَلْيَتَوَضَّأْ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ".

**ترجمه:** د مقداد بن الاسود نه روايت دې چه بيشکه علي بن ابي طالب رضي الله عنه ورته امر اوکړو چه تپوس اوکړي د هغه لپاره د رسول الله ﷺ نه، په باره د يو سړي کښې چه کله هغه نزدې

---

[1]: سنن النسائي/الطهارة ١١٢ (١٥٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٠ (٥٠٥)، (تحفة الأشراف: ١١٥٤٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ٨٣ (١٥٦)، موطا امام مالك/الطهارة ١٣ (٥٣)، مسند احمد (٤/٦، ٥) (صحيح)

شي خپل اهل ته، نو مذي ترېنه وځي، نو په هغه به څه وي؟ بیشکه د هغه لور زما سره ده او زه حیاء کوم چه د هغه نه تپوس اوکړم، مقداد اووئیل: چه ما تپوس اوکړو د رسول الله ﷺ نه د دغې باره کښې، نو هغه اووئیل: کله چه یو کس ستاسو نه دا بیاموخي نو خپل عورت ته دې اوبه وشیندي او اودس دې اوکړي پشان د اودس د هغه د مانځه دپاره.

[٢٠٨](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ لِلْمِقْدَادِ وَذَكَرَ نَحْوَ هَذَا، قَالَ: فَسَأَلَهُ الْمِقْدَادُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لِيَغْسِلْ ذَكَرَهُ وَأُنْثَيَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ الثَّوْرِيُّ وَجَمَاعَةٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْمِقْدَادِ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ فِيهِ: وَالْأُنْثَيَيْنِ.

**ترجمه:** بیشکه علي بن ابي طالب اووئیل مقداد ته او ذکر ئې کړو پشان د دې، هغه اووئیل: تپوس اوکړو د هغه نه مقداد، نو اووئیل رسول الله ﷺ: اودې وینځي خپل ذکر او هګۍ. وئیلی دي ابوداود: او روایت کړی دی ددې ثوري او یو جماعت د هشام نه او هغه د خپل پلار نه، او هغه د مقداد نه، او هغه د علي نه، او هغه د نبي ﷺ نه.

[٢٠٩](2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَدِيثٍ حَدَّثَهُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: قُلْتُ لِلْمِقْدَادِ: فَذَكَرَ مَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد، وَرَوَاهُ الْمُفَضَّلُ بن فضالة وجماعة، والثوري، وابن عيينة، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَرَوَاهُ ابْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْمِقْدَادِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يَذْكُرْ: أُنْثَيَيْهِ.

**ترجمه:** د علي بن ابي طالب نه روایت دې هغه وائي چه ما اووئیل مقداد ته، نو ذکر ئې کړه معنی د هغې. وئیلی دي ابوداود: او روایت کړی دی دهغې مفضل بن فضاله او یو جماعت او ثوري او ابن عیینة د هشام نه، هغه د خپل پلار نه او هغه د علي بن ابي طالب نه، او روایت کړی دی دهغې ابن اسحاق د هشام بن عروه نه، او هغه د خپل پلار نه، او هغه د مقداد نه او هغه د نبي ﷺ نه، نه ئې دی ذکر کړی اُنثيیه.

**تشریح:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَاهُ الْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ الخ ﴾ مصنف رحمه الله ددې ځائې نه د هشام د شاګردانو اختلاف بیانوی، پورته د زهیر په روایت کښې د انثیین ذکر وو، مصنف رحمه الله هم دې لره بیانوی چه څنګه زهیر د هشام نه دا حدیث په انثیین سره ذکر کړو هم دغه شان مفضل او سفیان ثوری او سفیان بن عیینة هم ذکر کړې دې، معلومه شوه چه انثیین لره ذکر کونکې یو جماعت دې، وراندې تلو سره مصنف رحمه الله فرمائی په خلاف د محمد بن اسحاق چه هغوی هم د هشام نه دا حدیث روایت کړې دې خو انثیین ئې نه دی ذکر کړی، زمونږ حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه زما په نزد امام ابوداؤد رحمه الله کلک حنبلی دې او دا تاسو ته معلومه شوه چه امام احمد رحمه الله د غسل انثين قائل دې په ظاهر کښې مصنف رحمه الله هم هغې ته ترجیح ورکوی، د جمهور د طرف نه به ددې جواب دا وی چه په ذکر د انثین کښې د راویانو

(1): سنن النسائي/الطهارة ١١٢ (١٥٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٢٤) (صحیح)
(2): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٢٤١) (صحیح)

اختلاف او اضطراب دی په دې وجه ددې نه به غسل نه ثابتيږی، يا دې داسې اووئيلې شی چه دا هغه وخت ده چه کله انثيين په مذی سره ملوث وی يا کيدې شی چه د غسل انثيين حکم رسول الله ﷺ تبريدا فرمائيلې وی چه سيلان مذی زر منقطع شی.

[٢١٠](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، قَالَ: كُنْتُ أَلْقَى مِنَ الْمَذْيِ شِدَّةً، وَكُنْتُ أُكْثِرُ مِنَ الِاغْتِسَالِ، فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "إِنَّمَا يُجْزِيكَ مِنْ ذَلِكَ الْوُضُوءُ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، فَكَيْفَ بِمَا يُصِيبُ ثَوْبِي مِنْهُ؟ قَالَ: يَكْفِيكَ بِأَنْ تَأْخُذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَتَنْضَحَ بِهَا مِنْ ثَوْبِكَ حَيْثُ تَرَى أَنَّهُ أَصَابَهُ".

**ترجمه**: د سهل بن حُنيف نه روايت دې هغه وئيلې دی: وم زه چه مخامخ کيدم د مذي سره په سختئ، او وم زه چه ډير مې کول لمبل، نو ما تپوس اوکړو د رسول الله ﷺ نه ددې په باره کښې، نو هغه اووئيل: بيشکه کافي کيږي ستا لپاره د دېنه اودس، نو ما اووئيل: اې د الله رسوله! نو څنګه به وي هغه چه رسيږي زما جامي ته؟ نو هغه اووئيل: کافي دی ستا لپاره چه ته واخلې يو ورغوی د اوبو نه، وئې شېندې په خپله جامه، په هغه ځائې چه ته ئې وينې چه دا ورته رسيدلې دی.

**تشريح**: ﴿ قوله بِأَنْ تَأْخُذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَتَنْضَحَ بِهَا مِنْ ثَوْبِكَ ﴾ په دې حديث کښې په ظاهره د حنابله تائيد کيږی چه کومې جامې باندې مذی اولګی دهغې د پاکولو دپاره رش الماء کافی دې د غسل حاجت نشته او د مسلم شريف په روايت کښې د ابن عباس رضي الله عنهما نه ﴿ وانضح فرجک ﴾ وارد شوی دې، جمهور داسې وائی چه په ډيرو احاديثو کښې لفظ د نضح د غسل په معنی کښې راغلې دې دلته هم هغه مراد دی، امام نووی رحمه الله فرمائی چونکه په نورو روايتونو کښې د ﴿ ليغسل ذکره ﴾ تصريح ده لهذا نضح به په هغې باندې محمول کولې شی.

[٢١١](2) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ يَعْنِي ابْنَ صَالِحٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ حَرَامِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ عَمِّهِ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَعْدٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمَّا يُوجِبُ الْغُسْلَ، وَعَنِ الْمَاءِ يَكُونُ بَعْدَ الْمَاءِ، فَقَالَ: "ذَاكَ الْمَذْيُ، وَكُلُّ فَحْلٍ يَمْذِي، فَتَغْسِلُ مِنْ ذَلِكَ فَرْجَكَ وَأُنْثَيَيْكَ وَتَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ".

**ترجمه**: عبد الله بن سعد الانصاري وايي: ما تپوس اوکړو د رسول الله ﷺ نه په باره د هغه څه کښې چه واجبوي غسل او په باره د اوبو کښې چه وي وروسته د اوبو نه، نو هغه اووئيل: دا مذي ده، او هر اينده مذي غورځوي، نو ووينځه ته د دغې نه خپل عورت او دواړه هګی، او اودس اوکړه پشان د اودس ستا د مانځه دپاره.

**تشريح**: ٥ : ﴿ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى قوله وَعَنِ الْمَاءِ يَكُونُ بَعْدَ الْمَاءِ ﴾ يعنی هغه اوبه کومې چه

---

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ٨٤ (١١٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٠ (٥٠٦)، (تحفة الأشراف: ٤٦٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٨٥/٣)، سنن الدارمي/الطهارة ٤٩ (٧٥٠) (حسن)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٣٢٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ١٠٠ (١٣٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٣٠ (٦٥١)، مسند احمد (٣٤٢/٤، ٢٩٣/٥) (صحيح)

لږې لږې مسلسل راځي كوم نه چه څاڅكي وائي يعنى مذى ددې لفظ صحيح تشريح هم دا ده او علامه شوكانى رحمه الله نه ددې په تشريح كښې وهم شوې دې هغوى د بعد الماء نه مراد بول اخستلې دې يعنى هغه اوبه چه د متيازو نه پس اوځي خو دا صحيح نه ده ځكه چه د متيازو نه پس چه كوم رقيق څيز اوځي هغې ته ودى وائى نه مذى، اودلته ذكر شروع دې د مذى.

**تنبيه**: ځان پوهه كړه چه اوس وړاندې دوه احاديث راروان دى په هغه دواړو كښې د مباشرت حائض ذكر دې دلته نسخې مختلف دى په نسخه د بذل المجهود كښې دا دوه احاديث هم په ترجمة سابقه يعنى په ﴿ باب فى المذى ﴾ كښې داخل دى او په بعض نسخو د ابوداؤد كښې په دې باندې مستقل ترجمة قائم كړې شوې ده. ﴿ باب فى مباشرة الحائض ﴾ كه دا ترجمه دلته اومنلې شى نو بيا خو په دې دواړو احاديثو او ترجمه كښې مطابقت ښكاره دې، او كه دلته ترجمه نه منئ څنګه چې په نسخه د بذل كښې نشته نو د عدم مطابقت اشكال به پيدا كيږى، غالبا هم ددې اشكال نه د بچ كيدو دپاره بعض ناسخينو دلته دا باب قائم كړې دې خو په دې كښې يو بل اشكال دا پيدا كيږى چه د حيض او استحاض روايات به وړاندې راشى بلكه دا چه د مباشرة الحائض مستقل باب هم راروان دې نو ګويا دوه اشكالات به شى، يو تكرار په ترجمه كښ، دويم ددې باب دلته د بې محله كيدو چه دا محل ددې باب نه دې، لهذا غوره دا ده چه دلته دې دا ترجمه نه وى بلكه دا دواړه احاديث دې د ترجمه سابقه سره متعلق اومنلې شى او د ترجمة الباب سره په مطابقت باندې دې لږ سوچ اوكړې شى پس مناسبت دا كيدې شى چه مباشرت د حائض د خروج مذى سبب دې، او ترجمة الباب د مذى سره متعلق دې لهذا فى الجملة مناسبت پيدا شو.

[۲۱۲](۱) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ بَكَّارٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ حَرَامِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ عَمِّهِ، "أَنَّهُ سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَحِلُّ لِي مِنِ امْرَأَتِي وَهِيَ حَائِضٌ، قَالَ: لَكَ مَا فَوْقَ الْإِزَارِ"، وَذَكَرَ مُؤَاكَلَةَ الْحَائِضِ أَيْضًا، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه**: حرام بن حكيم د خپل تره نه روايت كوي چه بيشكه هغه تپوس اوكړو د رسول الله ﷺ نه، چه كله زما ښځه حائضه وى نو دهغې څه څيز زما دپاره حلال دې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل: ستا دپاره د لنګ (پرتوګ) دپاسه حصه (نه خوند اخستل) جائز دى، او دې سره ئې د خوراك خوړلو هم ذكر اوكړو. بيا راوى (تيرشوې) پوره حديث بيان كړو.

[۲۱۳](۲) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ الْيَزَنِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ سَعْدٍ الْأَغْطَشِ وَهُوَ ابْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَائِذٍ الْأَزْدِيِّ، قَالَ هِشَامٌ وَهُوَ ابْنُ قُرْطٍ أَمِيرُ حِمْصَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: "سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمَّا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ مِنِ امْرَأَتِهِ وَهِيَ حَائِضٌ، قَالَ: فَقَالَ: مَا فَوْقَ الْإِزَارِ، وَالتَّعَفُّفُ عَنْ ذَلِكَ أَفْضَلُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَيْسَ هُوَ يَعْنِي الْحَدِيثَ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه**: د معاذ بن جبل رضى الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى: چه ما تپوس اوكړو د رسول الله

(۱): سنن الترمذي/الطهارة ۱۰۰ (۱۳۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۳۰ (۶۵۱)، (تحفة الأشراف: ۵۳۲۶) (صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۳۲) (ضعيف)

ﷺ نه په باره د هغه څه کښې چه روا وي د سړي لپاره د ښځې خپلې نه په حالت د حيض کښې؟ هغه وائي: رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل: د لنګ نه دپاسه او ځان ساتل د دېنه افضل دي. وئيلی دي ابوداود: نه دی دا، يعني: حديث قوي.

**تشريح:** ﴿ قوله قَالَ هِشَامٌ وَهُوَ ابْنُ قُرْطٍ أَمِيرُ حِمْصَ ﴾ دا ضمير د عائذ طرف ته راجع دې يعني د عائذ ځوئې قرط وړاندې تلو سره په امير حمص کښې دواړه احتمالات کيدې شي چه د عبدالرحمن صفت وی او کيدې شي چه د عائذ وی.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَلَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ ﴾ ضمير هو د سعد اغطش طرف ته راجع دې کوم چه په سند کښې مذکور دې د مصنف رحمه الله غرض ددې روايت تضعيف دې، او شارح ابن رسلان دا ضمير د حديث طرف ته واپس کړې دې يعنی دا حديث قوی نه دې او منشاء د نه قوی کيدو هم دا راوی سعد اغطش دې په معنی د اعمش.

## بَابٌ فِي الْإِكْسَالِ

### باب دې په بيان د اکسال کې (غسل نه کول په مجرد دخول بلا انزال)

د نواقض وضوء بيان ختم شو اوس مصنف رحمه الله ددې ځائې نه د موجبات غسل بيان شروع کوی، د اکسال معنی دا ده چه سړې د خپلې ښځې سره جماع اوکړی او انزال ئې اونشی او د بعض عوارضو په وجه باندې داسې کيږی هم اوس سوال دا دې چه دا جماع بغير د انزال نه سبب د غسل دې يا نه؟ جواب دا دې چه دا د جمهور علماء سلفا وخلفا او د ائمه اربعه په نزد موجب غسل دې، د داؤد ظاهری رحمه الله په نزد نه دې، اصل کښې په دې سلسله کښې دوه احاديث روايت شوې دی يو ﴿ إِذَا جَلَسَ بَيْنَ شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا فَقَدْ وَجَبَ الْغَسْلُ ﴾ دا روايت خو متفق عليه دې، د ابوهريره رضی الله عنه او سيده عائشه رضی الله عنها نه روايت دې، او دويم حديث دې ﴿ الماء من الماء ﴾ دا حديث په دې الفاظو خو په صحيح مسلم او ابوداؤد وغيره کښې دې خو د مضمون په اعتبار سره دا هم متفق عليه دې، پس په بخاری کښې د عثمان غنی رضی الله عنه او ابی بن کعب رضی الله عنه نه دا مضمون نقل دې خو په دې مسئله کښې امام بخاری رحمه الله صرف حديث اول ﴿ اذا التقی الختانان الخ ﴾ سره استدلال کړې دې او دا بل حديث ئې د يوې بلې مسئلې د لاندې راوړې دې، په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د انصارو يو جماعت د ﴿ الماء من الماء ﴾ د وجې نه په اکسال کښې د غسل قائل نه وو لکه ابوايوب او ابوسعيد الخدری، زيد بن خالد، ابی بن کعب رضی الله عنهم، خو د ابی بن کعب رضی الله عنه نه رجوع ثابت ده او د مهاجرينو يو جماعت د غسل قائل وو د هغوی مخې ته د ﴿ اذا التقی الختانان الخ ﴾ حديث وو، يو ځل د سيدنا عمر رضی الله عنه په مجلس کښې په دې مسئله باندې خبره کيدله، دې دواړو جماعتونو خپل مينځ کښې اختلاف کولو، په دې باندې عمر رضی الله عنه اوفرمائيل ﴿ انتم اهل بدر الاخيار فكيف بمن بعدكم ﴾ تاسو مشران اهل بدر حضرات چه په دې مسئله کښې اختلاف کوئ نو د روستو خلقو به څه حال وی په دې باندې هغوی عرض اوکړو يا امير المومنين که تاسو ددې مسئلې صحيح تحقيق کول غواړئ نو د ازواج مطهراتو نه معلومه

کړئ، پس هغوی اول حفصه ﷺ ته سړې اولیږلو خو هغې د لا علمئ اظهار اوکړو ددې نه پس ئې د عائشې ﷺ په خدمت کښې قاصد اولیږلو نو هغې اوفرمائیل ﴿ اذا جاوز الختان الختان فقد وجب الغسل ﴾ پس عمر ﷺ هم ددې مطابق فیصله اوفرمائیله ددې واقعې تخریج امام طحاوی ﷺ په شرح معانی الاثار کښې کړې دې.

ابن العربی ﷺ فرمائی چه د صحابه کرامو ﷺ ترمینځه په دې مسئله کښې اختلاف په شروع کښې وو د عمر ﷺ د فیصلې نه پس په وجوب غسل باندې اجماع شوې وه خو په دې باندې حافظ ابن حجر ﷺ اشکال کړې وو چه په دې مسئله کښې اختلاف د صحابه کرامو ﷺ ترمینځه مشهور دې او ددې نه پس په تابعینو کښې هم وو، خو دا صحیح ده چه د جمهورو مسلک همیشه د ایجاب غسل پاتې شوې دې او هم هغه صحیح دې خو د حافظ په کلام باندې علامه عینی ﷺ تعاقب کړې دې او د ابن العربی ﷺ د کلام تائید ئې کړې دې، بلکه دا چه ابن العربی فرمائی چه دا مسئله په اهم مسائلو کښې ده اګرچه په شروع کښې مختلف فیه وه خو روستو اجماع شوې وه سوا د داؤد ظاهری نه ﴿ ولا یعبا بخلافه ﴾ د هغوی د اختلاف مونږ پرواه نه کوو بیا وړاندې هغوی فرمائی چه ګرانه معامله د امام بخاری ﷺ ده چه هغه په اجل علماء مسلمین کښې دې او بیا هم هغوی په دې کښې صرف د استحباب غسل قائل دې.

## په دې مسئله کښې د امام بخاری ﷺ میلان:

خو خان پوهه کړه چه په دې مسئله کښې د امام بخاری ﷺ په میلان کښې شراح بخاری مختلف دی، اصل کښې په بخاری شریف کښې د امام بخاری ﷺ الفاظ دا دی، قال ابوعبدالله الغسل احوط، په دې باندې د بعضو رائې خو دا ده چه د هغوی مراد په احتیاط سره احتیاط ایجابی دې یعنی غسل نه کول خلاف احتیاط دی او وئیلې شوې دی چه د هغوی مراد د احتیاط نه احتیاط استحبابی دې د حضرت ګنګوهی ﷺ او هم دغه شان د حافظ ابن حجر ﷺ رائې دا ده چه د هغوی مذهب په دې سلسله کښې د جمهورو موافق دې، احقر وائی چه د امام بخاری ﷺ کلام ته په کتلو سره ښه معلومیږی چه هغه د وجوب غسل قائل دی، د ﴿ الماء من الماء ﴾ قائل نه دی، امام نووی ﷺ په شرح د مسلم کښې فرمائی چه د امت دې وخت کښې اجماع ده په وجوب غسل باندې که انزال شوې وی او که نه وی شوې.

[٢١٣](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي بَعْضُ مَنْ أَرْضَى، أَنَّ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّمَا جُعِلَ ذَلِكَ رُخْصَةً لِلنَّاسِ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ لِقِلَّةِ الثِّيَابِ، ثُمَّ أَمَرَ بِالْغُسْلِ وَنَهَى عَنْ ذَلِكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي الْمَاءَ مِنَ الْمَاءِ.

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ٨١ (١١٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١١ (٦٠٩)، (تحفة الأشراف: ٢٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الغسل ١٢ (٢٦٧)، صحيح مسلم/الحيض ٦ (٣٠٩)، سنن النسائي/الطهارة ١٧٠ (٢٦٤، ٢٦٥)، مسند احمد (١١٥/٥، ١١٦)، سنن الدارمي/الطهارة ٧٤ (٧٨٦) (صحيح)

**ترجمه**: ابي بن كعب خبر وركړى دى سهل بن سعد الساعدي ته چه بيشكه رسول الله وسلم وئيلى دى: بيشكه ګرځولى شوى دى دا رخصت دخلكو لپاره په اول د اسلام كښې د وجې د كموالي د جامو نه، بيا امر اوشو په غسل باندې او نهي اوشوه د دېنه. وئيلى دي ابوداود: يعني اوبه د اوبو نه دي.

**د حديث الماء من الماء توجيهات :**

د جمهورو د طرف نه د ﴿ الماء من الماء ﴾ ډير جوابونه كړې شوې دى،

١: داچه دا حديث منسوخ دې لكه چه د ابى بن كعب رضي الله عنه حديث هم په دې باب كښې راروان دې،

٢: دا حديث محمول دې په مباشرت فى غير الفرج باندې او په دې صورت كښې غسل د ټولو په نزد په انزال باندې موقوف دې قاله ابن رسلان.

٣: الماء من الماء دې عام اوساتلې شي كه حقيقى وى او كه حكمى وى پس ايلاج ماء حكمى دې يعنى د انزال په حكم كښې دې دا جواب د حضرت ګنګوهى رحمه الله د بعض تقاريرو نه ملاويږى.

۴: د ابن عباس رضي الله عنهما توجيه كومه چه امام ترمذى رحمه الله هم ذكر كړې ده هغه دا چه دا حديث په احتلام باندې محمول دې، يعنى د جماع دوه قسمونه دى، يو جماع فى اليقظة او يو جماع فى المنام كوم ته چه احتلام وائى، په اول صورت كښې به په ﴿ اذا التقى الختان الختان ﴾ والا حديث باندې عمل وى او په دويم صورت كښې په ﴿ الماء من الماء ﴾ باندې، پس په احتلام كښې بغير د انزال نه بالاتفاق غسل نه واجب كيږى، دا يو لويه توجيه ده كومه چه امام نسائى رحمه الله هم اختيار كړې ده پس هغوى په دې حديث باندې باب قائم كړې دې باب الذى يحتلم ولا ير الماء.

خو په دې باندې يو قوى اشكال دې هغه دا چه دا توجيه د مسلم د روايت خلاف ده چه دهغې مضمون دا دې سيدنا ابوسعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى چه زه يو ځل رسول الله صلى الله عليه وسلم سره قبا ته روان اوم په لاره كښې مونږ محلې د بنو سالم ته اورسيدلو، رسول الله صلى الله عليه وسلم هلته رسيدلو سره د عتبان بن مالك رضي الله عنه په دروازه باندې اودريدلو او ور ئې اوټكولو هغوى هغه وخت خپلې بيبى سره مشغول وو. د رسول الله صلى الله عليه وسلم آواز اوريدلو سره هم په دې حال كښې زر حاضر شو او رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د ملاقات نه پس هغوى د مسئلې تپوس اوكړو چه كه يو سړى د خپلې بيبى سره صحبت كوى او انزال ئې نه وى شوې نو آيا په هغه باندې غسل واجب دې، رسول الله صلى الله عليه وسلم په دې موقع باندې اوفرمائيل ﴿ الماء من الماء ﴾ ظاهره ده چه هغوى د جماع فى اليقظة په باره كښې تپوس كړې وو خو بيا هم رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ﴿ الماء من الماء ﴾ لهذا دې حديث لره په احتلام باندې حمل كول صحيح نه دى.

ددې جواب دا وركړې شوې دې چه د ابن عباس رضي الله عنهما مراد دا نه دې چه دا حديث د شروع نه په احتلام باندې محمول دې بلكه مطلب دا دې چه په دې مسئلې كښې دوه نسخې واقع كيدو نه پس اوس دا حكم صرف په احتلام كښې باقى پاتې شوې دې.

﴿ قوله إِنَّمَا جَعَلَ ذَٰلِكَ رُخْصَةً لِلنَّاسِ فِى أَوَّلِ الإِسْلَامِ لِقِلَّةِ الثِّيَابِ ﴾ يعنى په ابتداء د

اسلام کښې د خلقو د سهولت دپاره د جامو د کمی د وجې نه د ﴿ الماء من الماء ﴾ حکم ورکړې شو ددې جملې په شرح کښې د شارحینو دوه اقوال دی یو دا چه د بار بار غسل کولو په صورت کښې چه کله په یو کپړه کښې د بدن لوند والې بار بار اولګی نو هغه جامه به زر کمزورې او زړه شی، دویم قول کوم چه ابن رسلان لیکلې دې چه د جامو د کمی وجې نه زوجین چه کله شپه په یو بستره او څادر کښې تیره کړی نو په دې کښې به د مقاربت او مصاحبت نوبت زیات راځی چه په هغې کښې به کله انزال وی او کله به نه وی نو ددې مجبورئ د وجې نه بغیر د انزال نه د ترک غسل د رخصت او اجازت ورکړې شوې وو

او په یو نسخه کښې په ځائې د ثیاب لفظ ثبات دې چه دهغې نه مراد کلک والې دې یعنی د اسلام په شروع کښې د ثبات فی الدین د کمی او کمزورې د وجې نه دا سهولت ورکړې شوې وو، اوګورئ حضرات شراح حدیث د حدیث د شرح حق ادا کړو. فجزاهم الله احسن الجزاء.،

[۲۱۵](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِهْرَانَ الْبَزَّازُ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا مُبَشِّرٌ الْحَلَبِيُّ، عَنْ مُحَمَّدٍ أَبِي غَسَّانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، "أَنَّ الْفُتْيَا الَّتِي كَانُوا يُفْتُونَ أَنَّ الْمَاءَ مِنَ الْمَاءِ كَانَتْ رُخْصَةً رَخَّصَهَا رَسُولُ اللهِ فِي بَدْءِ الْإِسْلَامِ، ثُمَّ أَمَرَ بِالِاغْتِسَالِ بَعْدُ".

**ترجمه:** د سهل بن سعد نه روایت دې چه ماته حدیث بیان کړې دی أبي بن کعب بیشکه فتوي هغه چه وو هغوی چه فتوي ئې ورکولې چه اوبه د اوبو نه دې، وو دا رخصت چه رخصت ورکړی وو رسول الله ﷺ په شروع د اسلام کښې، بیا ئې حکم اوکړو په غسل کولو باندې

[۲۱٦](٢) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْفَرَاهِيدِيُّ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، وَشُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَعَدَ بَيْنَ شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ وَأَلْزَقَ الْخِتَانَ بِالْخِتَانِ، فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ".

**ترجمه:** د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې بیشکه نبي ﷺ اووئیل کله چه کینې سړی په څلورو څانګونو د ښځې کښې، او یو ځائې کړی ختان د ختان سره نو په تحقیق سره غسل واجب شو.

[۲۱٧](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ"، وَكَانَ أَبُو سَلَمَةَ يَفْعَلُ ذَلِكَ.

**ترجمه:** د ابو سعید الخدري رضی الله عنه نه روایت دې، بیشکه رسول الله ﷺ وئیلی دی: اوبه د

---

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٧) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/الغسل ٢٨ (٢٩١)، صحيح مسلم/الطهارة ٢٢ (٣٤٨)، سنن النسائي/الطهارة ١٢٩ (١٩١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١١ (٦١٠)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣٤، ٢٤٧، ٣٩٣، ٤٧١، ٥٢٠)، سنن الدارمي/الطهارة ٧٥ (٧٨٨) (صحيح)

(3): صحيح مسلم/الطهارة ٢١ (٣٤٣)، (تحفة الأشراف: ٤٤٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٩، ٣٦، ٤٧) (صحيح)

اوبو نه دي. او وو ابو سلمه به هم داسې کول.

**تشریح:** ﴿ قوله وَأَلْزَقَ الْخِتَانَ بِالْخِتَانِ ﴾ د ختان نه مراد موضع دَختان دې ځکه چه د ختان معنی خو د ختنې ده، د ختان استعمال د سړو او د ښځو دواړو په حق کښې وی لکه چه په حدیث کښې دی ددې بالمقابل دویم لفظ خفاض دې ددې استعمال د زنانه سره خاص دې، د زنانه د شرمگاه دپاسه د ځرمنې يو ټکړه وی ﴿ عرف الدیک ﴾ د چرگ د چارخولک په شان هغه قطع کولې شی، په عربو کښې ددې دستور وو اگرچه په هندوستان کښې دا رواج نشته.

شارحينو ليکلي دی چه ﴿ الزق الختان بالختان ﴾ کنایه ده د ایلاج حشفه نه ځکه چه اول خو د جماع په وخت کښې د ختانین تماس نه وی ځکه چه د زنانه د عورت محل حتان د فرج دپاسه وی دویم دا چه صرف د التقاء ختانین نه د جماع او دخول تحقق نه وی، پس د ابن ماجه په روايت کښې دی ﴿ اذا التقى الختانان وتوارت الحشفة فقد وجب الغسل ﴾ بهر حال بغير د غيبوبة حشفه نه نۀ د جماع تحقق کيږی او نه غسل واجب کيږی. بالاتفاق [1]

## بَابٌ فِي الْجُنُبِ يَعُودُ

### باب دې په بيان د جنب کې چې واپس کيږي جماع ته

يعنى که د يو ځل جماع کولو نه پس عود الى الجماع کوی نو په مينځ کښې غسل کول ضروری دی يا نه؟ جواب دا دې چه بالاتفاق ضروری نه دی، زيات نه زيات اولى دی، خو په مينځ کښې اودس کول لکه چه په بل باب کښې راځی دا مختلف فيه مسئله ده، د جمهور علماء ائمه اربعه په نزد اودس په متعدد يعنى اودس بين الجماعين مستحب دې، د داؤد ظاهری رحمه الله او ابن حبيب مالکی رحمه الله په نزد واجب دې او د امام ابو يوسف رحمه الله نه عدم استحباب منقول دې، هغوی نه په دې سلسله کښې چه کوم امر وارد شوې دې هغه ئې په اباحت باندې محمول کړې دې ځکه چه اودس د عبادت دپاره مشروع دې نه د قضاء شهوت دپاره خو د هغوی دا تعليل د حديث خلاف دی.

[٢١٨] ([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى نِسَائِهِ فِي غُسْلٍ وَاحِدٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَكَذَا رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَمَعْمَرٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، وَصَالِحُ بْنُ أَبِي الْأَخْضَرِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، كُلُّهُمْ عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د انس رضی الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم طواف اوکړو يوه ورځ په ټولو بيبيانو په يو غسل سره. وئيلی دي ابوداود: او همداسې روايت کړی دی هشام بن زيد د انس نه، او معمر د قتاده نه او هغه د انس نه، او صالح بن ابي الاَخضر د زهري نه، ټولو د

---

[1] ) قال النووي في شرح مسلم قال اصحابنا لو غيب الحشفة في دبر امراة او دبر رجل او فرج بهيمة او دبرها وجب الغسل الي آخر ما ذكر)

[2] ): سنن النسائي/الطهارة ١٧٠ (١٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٥٠٣، ٥٦٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الغسل ١٢ (٢٦٨)، ١٧ (٢٧٥)، والنكاح ٤ (٥٠٦٨)، ١٠٢ (٥٢١٥)، صحيح مسلم/الطهارة ٦ (٣٠٩)، سنن الترمذي/الطهارة ١٠٦ (١٤٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠١ (١٤٠)، مسند احمد (٣/٢٢٥، سنن الدارمي/الطهارة ٧١ (٧٨٠) (صحيح)

انس نه، او هغه د نبي ﷺ نه

**تشریح:** ﴿ قوله عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- طَافَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى نِسَائِهِ فِي غُسْلٍ وَاحِدٍ ﴾ یعنی یو ځل رسول الله ﷺ ټولو ازواج مطهرات سره ملاؤ شو او هرې یوې سره ئې مقاربت اوفرمائیلو او په آخر کښې ئې صرف په یو غسل باندې اکتفاء اوفرمائیله او په بعض روایاتو کښې دی ﴿ وهن تسع ﴾ چه هغه نهه وې، هسې خو ازواج مطهرات د یو قول په بناء باندې یولس او د بل قول په بناء باندې دولس وې، خو د مشهور قول په بناء باندې د نهو نه د زیاتو اجتماع ثابت نه ده

## د ازواج مطهرات اسماء گرامی:

د ازواج مطهرات اسماء گرامی په اعتبار د ترتیب نکاح دا دی

١: خدیجه، ٢: سودة بنت زمعه، ٣: عائشة،
۴: حفصه، ۵: زینب بنت خزیمة، ٦: ام سلمة،
٧: زینب بنت جحش، ٨: جویریه بنت الحارث، ٩: ام حبیبة بنت ابی سفیان،
١٠: میمونة بنت زمعة، ١١: صفیه بنت حیی بن اخطب ﷺ

دا ټولې یولس شوې چه د هغوی نه د رسول الله ﷺ استمتاع ثابت ده. او بعض علماء کرامو ریحانة بنت عمرو یا بنت زید هم په ازواج کښې شمار کړې ده، او دویم قول دا دې چه دا په ازواج کښې نه ده بلکه د رسول الله ﷺ وینځه وه، پس دوه وینځې د رسول الله ﷺ مشهورې دی یو ماریه قبطیه او دویمه ریحانة، په دې یولسو بیبیانو کښې دوه یعنی خدیجة او زینب بنت خزیمة د رسول الله ﷺ په ژوند کښې وفات شوې وې او باقی نهه د رسول الله ﷺ د وفات په وخت موجود وې، د دوی نه علاوه هم بعض نورې زنانه دی چه د هغوی سره ئې عقد شوې دې خو د دخول نوبت نه وو راغلې بلکه د بعض وجوه نه مخکښې د رخصت کیدو نه بیلتون راغلو چه په هغوی کښې د بعضو واقعه او ذکر د صحاح په بعض کتابونو کښې راغې

**فائده:** د صحیح بخاری په روایت کښې دی چه سیدنا انس ﷺ نه دهغوی شاګرد تپوس اوکړو چه ﴿ او کان یطیق ذلک ﴾ یعنی آیا رسول الله ﷺ دومره طاقت لرلو چه په یوه شپه کښې ئې ټولو سره مقاربت اوفرمائیلو نو هغوی جواب ورکړو ﴿ کنا نتحدث انه اعطی قوة ثلاثین رجلا ﴾ یعنی رسول الله ﷺ ته د دیرشو سړو برابر طاقت ورکړې شوې وو، او په معارف السنن کښې د علامه عینی نه نقل کړی دی چه په صحیح اسماعیلی کښې دی سیدنا معاذ بن جبل ﷺ فرمائی ﴿ اعطی قوة اربعین رجلا ﴾ او په کتاب الحلیة لابی نعیم کښې دی مجاهد ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ ته د جنتی سړو نه د څلویښتو سړو زور ورکړې شوې وو، او په مسند احمد او ترمذی کښې د زید بن ارقم او انس ﷺ نه مرفوعا نقل دی چه په رجال جنت کښې به هر سړی ته د سلو سړو زور ورکولې شی، او څالیس ته په سلو کښې ضرب ورکولو سره څلور زره جوړیږی ګویا رسول الله ﷺ ته د څلورو زرو کسانو طاقت ورکړې شوې وو

**په حديث الباب باندې دا اشکال چه اقل قسمة يو شپه ده او د هغې جوابات:**

ځان پوهه کړه چه دلته يو فقهي اشکال دې چه اقل قسمة يو شپه ده نو بيا په يو شپه کښې رسول اللهﷺ هرې يوې بيبي ته څنګه اورسيدل، جواب دا دې چه اول خو دا مسئله مختلف فيه ده چه په رسول اللهﷺ باندې قسم يعنی عدل بين الزوجات واجب وو يا نه که واجب نه وو نو بيا خو هيڅ اشکال نشته او که واجب وو نو بيا مختلف جوابونه کړې شوې دی، ۱: ملا علی قاری رحمه الله فرمائی ﴿ کان ذلک برضاهن ﴾ يعنی د صاحبة النوبة (د چا نمبر چه وو) دهغې په رضا باندې به رسول اللهﷺ دا کار کولو. ۲: حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه ﴿کان ذلک عند قدومه من سفر ﴾ يعنی د يو سفر نه په واپسئ باندې د نمبر شروع کولو نه مخکښې رسول اللهﷺ داسې اوکړل، د يوې زوجې محترمې په نمبر کښې رسول اللهﷺ ټولو سره نه دې ملاؤ شوې ۳: ابن العربی فرمائی چه الله پاک رسول اللهﷺ ته په شپه او ورځ کښې يو ساعت داسې ورکړې وو چه په هغې کښې د يوې بيبي حق هم نه وو بلکه په هغې کښې رسول اللهﷺ ته اختيار وو چه چاته غواړی تلې شی او د مسلم شريف د روايت نه معلوميږی چه دا وخت د مازيګر نه پس وو او که په دې کښې به موقع نه ملاويده نو پس د ماښام نه، ۴: وئيلې شوې دی چه دا واقعه د سفر حجة الوداع ده پس ټول ازواج مطهرات په دې سفر کښې هغوی سره شريکې وې، رسول اللهﷺ د ماسپخين د مونځ کولو نه پس د مدينې منورې نه روان شو او د مازيګر مونځ ئې په ذوالحليفه کښې تلو سره ادا اوفرمائيلو کوم چه د اهل مدينه ميقات دې او هلته ئې يو شپه قيام اوفرمائيلو. په بله ورځ باندې د احرام تړلو نه پس د هغه ځائې نه روان شو نو په دې شپه باندې رسول اللهﷺ د ټولو ازواج مطهراتو سره مجامعت اوفرمائيلو او د سحر د مانځه نه مخکښې ئې غسل جنابت اوفرمائيلو. لکه چه په جزء حجة الوداع کښې په حواله د کتابونو حضرت شيخ ليکلې دی، د جواب حاصل دا شو چه دا واقعه د سفر ده په دې کښې قسم بين الزوجات واجب نه دې، مولانا انور شاه صاحب رحمه الله هم دا رائې لری لکه چه په عرف الشذی کښې دی.

د دې حديث نه معلومه شوه چه رسول اللهﷺ غسل بين الجماعين نه دې فرمائيلې اوس پاتې شوه دا خبره چه په مينځ کښې ئې اودس هم فرمائيلې يا نه دواړه احتمالات کيدې شی چه اودس ئې فرمائيلې وی او دا هم ممکن ده چه ترک کړې ئې وی د بيان جواز دپاره.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَهَكَذَا رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ زَيْدٍ الخ ﴾ مصنف رحمه الله د مذکوره حديث د تقويت دپاره ددی څو طرق نور هم ذکر فرمائيلې دی، په متن کښې چه کوم روايت ذکر شوې دې هغې لره روايت کونکې د انس رضی الله عنه نه حميد طويل رحمه الله دې. چونکه دا ټول طرق مصنف رحمه الله په پوره سند سره نه دی بيان کړې په دې وجه دې ته به تعليقات وئيلې شی، اوس دا چه دا روايات موصولا په کوم کتاب کښې دی، حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه د هشام روايت په مسلم کښې او د قتادة او د زهری روايت په ابن ماجه کښې موجود دې.

# بَابُ الْوُضُوءِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يَعُودَ

## باب دې په بيان د اودس کې د هغه چا لپاره چې اراده د واپسی لري

په دې مسئله باندې کلام تير شوی باب کښې راغلو.

[٢١٩]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَمَّتِهِ سَلْمَى، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى نِسَائِهِ يَغْتَسِلُ عِنْدَ هَذِهِ وَعِنْدَ هَذِهِ، قَالَ: قُلْتُ لَهُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَلَا تَجْعَلُهُ غُسْلًا وَاحِدًا؟ قَالَ: هَذَا أَزْكَى وَأَطْيَبُ وَأَطْهَرُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ أَنَسٍ أَصَحُّ مِنْ هَذَا.

**ترجمه**: د ابو رافع نه روايت دې چه بيشکه نبي ﷺ طواف اوکړو يوه ورځ په خپلو بيبيانو باندې، چه غسل به ئې کولو ددې سره او ددې سره. هغه وائی چه ما اووئيل هغه ته. اې د الله رسول! يوځل غسل ولی نه کوئی، هغه اووئيل: دا ډير پاکونکی او اطيب او اطهر دی. وئيلی دي ابوداود: او حديث انس ډير اصح دی ددې نه

### د بابين په دوه مختلفو احاديثو کښې د مصنف رحمه الله رائې:

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَحَدِيثُ أَنَسٍ أَصَحُّ مِنْ هَذَا﴾ ددې نه مخکښې باب کښې مصنف رحمه الله د سيدنا انس رضي الله عنه حديث ذکر فرمائيلی وو چه په هغې کښې صرف يو ځل غسل فرمائيل مذکور وو او په دې باب کښې ئې د ابورافع رضي الله عنه حديث ذکر اوفرمائيلو چه په دی کښې تعدد غسل مذکور دې چه د هرې يوې زوجې سره رسول الله ﷺ غسل اوفرمائيلو ﴿هَذَا أَزْكَى وَأَطْيَبُ وَأَطْهَرُ﴾ يعنی دا تعدد غسل زيات ثواب والا دې او په دې کښې د ظاهر او باطن طهارت هم زيات دې.

دلته يو اشکال دا کيږی چه ابورافع رضي الله عنه ته ددې خاص واقعې او هرې يوې زوجې سره د غسل کولو خبر څنګه اوشو؟ جواب ښکاره دې چه ابورافع رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خادمانو او غلامانو کښې دې، څوک پردې سرې نه دې کيدې شی چه هم هغوی ورته د غسل اوبه برابرولې. اوس دا د رسول الله ﷺ دوه مختلف طرزونه دی کوم چه ددې دوه بابونو په دوه مختلف احاديثو کښې ذکر شوې دی د اکثر حضرات شارحينو رائې خو دا ده چه د دی خپل مينځ کښې هيڅ تعارض نشته په يو وخت کښې رسول الله ﷺ داسې اوکړل، او په بل وخت کښې داسې، که د يوې واقعې سره دا احاديث متعلق وې نو بيا خو بيشکه تعارض وو، بهر حال صحيح خبره خو دا ده خو مصنف علام رحمه الله په دې دواړو احاديثو کښې په ظاهره تعارض ګنړی او د دفع تعارض دپاره فرمائی چه ﴿وحديث انس اصح من هذا﴾ يعنی په اول باب کښې چه کوم د انس رضي الله عنه حديث تير شوې دې هغه ددې حديث ثانی په مقابله کښې ډير صحيح دې، لهذا دا دويم حديث مرجوح او اول حديث راجح شو باقی دې دويم حديث ته مصنف رحمه الله ضعيف نه وائی بلکه صرف د اصحيت نفی فرمائی لهذا دا سوال پيدا کيدل نه دی پکار چه ولې ضعيف دې او هم ددې خبرې د وجې نه مصنف رحمه الله د اول باب د حديث د

(): سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٢ (٥٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٨، ٩، ٣٩١) (حسن)

متعدد طرق طرف ته اشاره فرمائيلو سره هغه موکد کړې دي.

[۲۲۰]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ، ثُمَّ بَدَا لَهُ أَنْ يُعَاوِدَ، فَلْيَتَوَضَّأْ بَيْنَهُمَا وُضُوءًا".

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدري نه روايت دی چې نبي ﷺ فرمائيلي دي: کله چه راشي يو کس ستاسو نه خپل اهل ته، بيا ورته ښکاره شوه چه بيا واپس شي، نو اودس دې اوکړي په مينځ د دواړو کښې په اودس کولو سره

**تشريح**: ﴿ قوله فَلْيَتَوَضَّأْ بَيْنَهُمَا وُضُوءًا ﴾ په دې حديث کښې د وضوء بين الجماعين امر دې کوم چه د ظاهريه او ابن حبيب مالکی رحمه الله په نزد د وجوب دپاره دې او د جمهورو په نزد د استحباب دپاره دې چه دهغې قرينه دا ده چه د حاکم په روايت کښې دی ﴿ فانه انشط للعود ﴾ چه دهغې نه معلوميږی چه په دې کښې هيڅ شرعی مصلحت نشته بلکه د سړی د خپل ذاتی او طبعی مصلحت دپاره دې ګويا دا امر امر ارشادی شو

# بَابٌ فِي الْجُنُبِ يَنَامُ

## باب دې په بيان د جنب کې چې اوده کيږي

د جنبی دپاره اودس کول د خوب نه مخکښې د جمهور علماء ائمه اربعه په نزد مستحب دې د داؤد ظاهری او ابن حبيب مالکی رحمه الله په نزد واجب دې.

[۲۲۱]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ تُصِيبُهُ الْجَنَابَةُ مِنَ اللَّيْلِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ، ثُمَّ نَمْ".

**ترجمه**: د عبد الله بن عمر نه روايت دې بيشکه هغه وئيلی دی: ذکر کړو عمر بن الخطاب رسول الله ﷺ ته چه هغه ته رسيږي جنابت دشپې، نو اووئيل هغه ته رسول الله ﷺ اودس اوکړه او خپل ذکر اووينځه، بيا اوده شه.

**تشريح**: ﴿ قوله أَنَّهُ تُصِيبُهُ الْجَنَابَةُ مِنَ اللَّيْلِ ﴾ د شارحينو ترمينځه په دې کښې اختلاف دې چه د ﴿ انه ﴾ ضمير چاته راجع دې، مقصود ددې دا دې چه د نسائی په سنن کبری کښې دا روايت لږ په تفصيل سره راغلې دې چه په هغې کښې داسې دی چه يو ځل ابن عمر رضي الله عنهما ته د شپې جنابت پيښ شو نو هغوی خپل پلار عمر رضي الله عنه ته راغلل او هغوی ته ئې ددې ذکر اوکړو او په دې باندې عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضريدلو سره د مسئلې تپوس اوکړو

[1] ): صحيح مسلم/الطهارة ٦ (٣٠٨)، سنن الترمذي/الطهارة ١٠٧ (١٤١)، سنن النسائي/الطهارة ١٦٩ (٢٦٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٠ (٥٨٧)، (تحفة الأشراف: ٤٢٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧/٣، ٢١، ٢٨) (صحيح)

[2] ): صحيح البخاري/الغسل ٢٧ (٢٩٠)، صحيح مسلم/الطهارة ٦ (٣٠٦)، سنن النسائي/الطهارة ١٦٧، (٢٦١)، (تحفة الأشراف: ٧٢٢٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٩ (٥٨٥)، موطا امام مالك/الطهارة ١٩ (٧٦)، مسند احمد (٦٤/٢)، سنن الدارمي/الطهارة ٧٣ (٧٨٣) (صحيح)

ددې روايت تقاضا دا ده چه ضمير د ابن عمر رضي الله عنهما طرف ته راجع کيدل پکار دی اګرچه د ابوداؤد د روايت د ظاهر تقاضه دا ده چه ضمير دې د عمر رضي الله عنه طرف ته راجع وی، پس حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په شروع کښې د بذل په مسوده کښې ضمير عمر رضي الله عنه ته راجع کړې وو پس هم دهغې مطابق کتابت هم شوې وو. او حضرت شيخ د کتابت کړې شوې کاپيانو د طباعت دپاره روان وو، د زرقانی شرح د موطا د حضرت شيخ سره وه په ريل کښې ناست حضرت دهغې مطالعه کوله اتفاق سره هم دا حديث ئې د نظر نه تير شو په هغې کښې علامه زرقانی رحمه الله ضمير د ابن عمر رضي الله عنهما طرف ته راجع کړې وو نو حضرت شيخ فورا هم هغه وخت د حضرت سهارنپوری رحمه الله په نوم باندې يو خط اوليکلو او دا خبره ئې ترې نه اوتپوسله چه که د حضرت رائې وی نو د ضمير مرجع بدله کړې شی، د عمر په ځائې ابن عمر کړې شی، د حضرت جواب راورسيدلو مناسب ده چه د عمر په ځائې ابن عمر کړې شی، حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل چه د حضرت سهارنپوری رحمه الله جواب هغه وخت راورسيدلو چه کله کاپی په پليټ باندې پرته وه د حضرت جواب ليکلو سره ما په پليټ باندې اصلاح کولو سره په ځائې د عمر ابن عمر اوليکلو.

بهر حال احقر وائی چه د ابوداؤد ددې حديث د وجې نه که ضمير د عمر طرف ته راجع کړې شی نو په دې کښې هم څه باک نشته ځکه چه ددې روايت ظاهر الفاظ هم دغه تقاضا کوی او که د نسائی روايت مخې ته کيخودلې شی او ضمير د ابن عمر رضي الله عنهما طرف ته راجع کړې شی نو بيا هم صحيح ده ځکه چه مشهوره ده چه روايت مفصله قاضی وی په روايت مجمله باندې يعنی فيصله د روايت مفصله مطابق وی او د صاحب منهل ميلان د تعدد واقعه طرف ته دې او دا چه د ابوداؤد په روايت کښې د ضمير مرجع عمر اومنلې شی کيدې شی چه عمر رضي الله عنه يو ځل د ځان دپاره او يو ځل د خپل ځوئی دپاره تپوس کړې وی، خو زه وايم چه تعدد خلاف اصل دې او نه د يوې مسئلې دوباره د تپوسلو حاجت شته، او په روايت کښې چه کوم لفظ ﴿ تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ ﴾ په صيغه د خطاب سره مذکور دې ددې مخاطب هم ابن عمر رضي الله عنهما کيدې شی چه رسول الله ﷺ عمر رضي الله عنه ته داسې وئيلې وی چه لاړ شه او خپل ځوئی ته داسې اوايه.

په دې حديث کښې چه د وضوء قبل النوم کوم امر کړې شوې دې هغه د جمهورو په نزد د استحباب دپاره دې، په دويم روايت سره کوم حضرت په بذل کښې ذکر کړې دې عدم وجوب ثابتيږی.

## باب الْجُنُبِ يَأْكُلُ

### باب دې په بيان د جنب کې چې خوراک کوي

د جنبی دپاره د اکل او شرب نه مخکښې اودس کول بالاجماع واجب نه دی بلکه صرف اولی دی د بعض رواياتو نه معلوميږی چه رسول الله ﷺ به د خوراک ځکاک نه مخکښې اودس فرمائيلو لکه چه د راروان باب په حديث کښې راځی او د بعض نه معلوميږی چه په حديث الباب کښې دی چه صرف غسل يدين به ئې فرمائيلو، ملا علی

قاری رحمه الله فرمائی چه کوم ځائې کښې وضوء لفظ راغلې دې هلته هم د وضوء نه مراد وضوء لغوی یعنی غسل یدین دې، حضرت سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه د صحیحین په یو روایت کښې دی ﴿ توضاء وضوءه للصلوة ﴾ چه دهغې نه معلومیږی چه وضوء شرعی مراد دی بیا وراندې حضرت لیکلې دی چه کیدې شی دا اختلاف په اختلاف د اوقاتو باندې محمول وی چه کله به رسول الله ﷺ غسل یدین فرمائیلو او کله شرعی اودس.

## د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت :

ځان پوهه کړه چه ددې باب د ړومبی حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت نشته ځکه چه په دې کښې وضوء عند الاکل ذکر نه ده نه نفیا او نه اثباتا، جواب دا دې چه ددې باب اول او دویم حدیث یو دې دا دواړه مستقل احادیث نه دی او په حدیث ثانی کښې راځی ﴿ وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ وَهُوَ جُنُبٌ غَسَلَ يَدَيْهِ ﴾ لهذا په حدیث ثانی کښې چه کوم زیادت راغلې دې دهغې په وجه باندې حدیث د ترجمة الباب سره مطابق شو.

[٢٢٢]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنَامَ وَهُوَ جُنُبٌ، تَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې چه بیشکه نبي ﷺ وو چه کله به ئې اراده وه چه اوده شي او هغه به جنب وو نو اودس به ئې اوکړو پشان د اودس د مانځه.

[٢٢٣]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، زَادَ: وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ وَهُوَ جُنُبٌ، غَسَلَ يَدَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، فَجَعَلَ قِصَّةَ الْأَكْلِ قَوْلَ عَائِشَةَ مَقْصُورًا، وَرَوَاهُ صَالِحُ بْنُ أَبِي الْأَخْضَرِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، كَمَا قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ، إِلَّا أَنَّهُ، قَالَ: عَنْ عُرْوَةَ، أَوْ أَبِي سَلَمَةَ، وَرَوَاهُ الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَمَا قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ.

**ترجمه**: د زهري نه روایت په مخکښې اسناد او معنی سره، هغه دا زیاته کړې ده: او چه کله به ئې اراده اوکړه چه خوراک اوکړي او هغه به جنب وو نو لاسونه به ئې وینځل. وئیلی دي ابوداود: او روایت کړی دی ابن وهب د یونس نه. نو هغه به ګرځوله قصه د اکل قول د عائشې ، او روایت کړی دهغې صالح بن ابي الاخضر د زهري نه لکه څرنګه چه وئیلی دي ابن المبارک، مګر داچه هغه وئیلی دی: دعروه نه اویا د ابي سلمة نه، او روایت کړی دی اوزاعي دیونس نه اوهغه د زهري نه، اوهغه دنبي ﷺ نه لکه څرنګه چه وئیلی دي ابن المبارک.

**تشریح**: ٢: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ الخ ﴾ د زاد ضمیر د یونس طرف ته راجع دې په اول سند کښې د زهری شاګرد سفیان وو او په دې کښې یونس دې، مطلب دا دې چه دا حدیث چه کله زهری د سفیان نه نقل کړو نو هغوی صرف وضوء عند النوم ذکر

[1]: صحيح مسلم/الطهارة ٦ (٣٠٥)، سنن النسائي/الطهارة ١٦٤ (٢٥٦)، ١٦٥ (٢٥٧)، ١٦٦ (٢٥٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٩ (٥٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٦٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الغسل ٢٥ (٢٨٦)، مسند احمد (٨٥/٦)، سنن الدارمي/الطهارة ٧٣ (٧٨٤) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٧٦٩) (صحيح)

کړو او یونس چه کله دا د هغوی نه نقل کړو نو هغوی اکل هم ذکر کړو چه رسول اللهﷺ به د خوراک نه مخکښې صرف غسل یدین فرمائیلو.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَاهُ ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ فَجَعَلَ قِصَّةَ الأَكْلِ قَوْلَ عَائِشَةَ مَقْصُورًا ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د یونس د شاګردانو اختلاف بیانوی، د یونس شاګرد په اول سند کښې ابن المبارک وو او په دویم سند کښې ابن وهب دې ددې دواړو په روایت کښې فرق دا دې چه ابن المبارک د یونس نه مسئله د اکل او نوم دواړه مرفوعا روایت کړه او ابن وهب مسئله د نوم خو مرفوعا ذکر کړه او مسئله د اکل ئې موقوفا په عائشې رضي الله عنها باندې ذکر کړه او ددې کلام شرح حضرت په بذل کښې او صاحب منهل هم دغه شان کړې ده او صاحب د عون المعبود ددې مطلب دا لیکلې دې چه ابن وهب صرف قصه د اکل ذکر کړې ده او قصه د نوم ئې بالکل ذکر کړې نه ده په ظاهر کښې اول مطلب صحیح دې.

﴿ وَرَوَاهُ صَالِحُ بْنُ أَبِي الأَخْضَرِ ﴾ په دې سره د ابن المبارک د روایت تائید مقصود دې لکه چه دا خبره ښکاره ده ﴿ وَرَوَاهُ الأَوْزَاعِيُّ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم﴾ ددې مطلب دا مه ګڼړئ چه زهری براه راست د رسول اللهﷺ نه روایت کوی، بلکه مطلب دا دې چه دا روایت په خپل سند سره د رسول اللهﷺ نه روایت کوی، د مصنف رحمه الله غرض په دې سره هم د ابن المبارک رحمه الله تائید دې.

## بَابُ مَنْ قَالَ يَتَوَضَّأُ الْجُنُبُ

### باب دې په بیان د هغه چا کښې چې وایې اودس به کوي جنب

### د ترجمة الباب غرض :

ځان پوهه کړه چه دا د یوې سلسلې درې ابواب دی چه په هغې کښې دا دریم دې، مصنف رحمه الله د باب اول او ددی په حدیث سره وضوء الجنب عند النوم ثابت کړې دی، ددې نه پس ئې دوه بابونه د وضوء عند الاکل سره متعلق دی، چه په هغې کښې اول سره مصنف رحمه الله دا ثابت کړې ده چه رسول اللهﷺ عند الاکل په غسل یدین باندې اکتفاء اوفرمائیله او ددې دویم باب نه ثابتوی چه د رسول اللهﷺ نه (د جنابت په حالت کښې) د خوراک په وخت اودس کول هم ثابت دی چه ددې باب د حدیث نه معلومیږی د بذل د عبارت نه مستفاد کیږی چه مصنف رحمه الله په دې دریم باب سره وضوء الجنب عند النوم والاکل دواړه ثابت کړی دی، ددې باب په حدیث کښې خو دواړه اجزاء ذکر شوې دی خو زما په نزد د مصنف رحمه الله غرض صرف د اکل سره متعلق دې ځکه چه وضوء عند النوم خو مصنف رحمه الله مخکښې ثابت کړې دې، زما د خبرې تائید ددې نه هم کیږی چه په دې باب کښې مصنف رحمه الله د حدیث ذکر کولو نه پس چه د بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم کوم اقوال بیان کړی دی هغه هم د وضوء عند الاکل سره متعلق دی.

[٢٢٤](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَنَامَ، تَوَضَّأَ تَعْنِي وَهُوَ جُنُبٌ".

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې، بيشكه نبي ﷺ وو چه كله به ئې اراده اوكړه چه خوراک اوكړي او يا اوده شي نو اودس به ئې اوكړي. چه هغه به جنب وو.

[٢٢٥](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، أَخْبَرَنَا عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لِلْجُنُبِ إِذَا أَكَلَ أَوْ شَرِبَ أَوْ نَامَ، أَنْ يَتَوَضَّأَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: بَيْنَ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، وَعَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ رَجُلٌ، وقَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَابْنُ عُمَرَ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرٍو: الْجُنُبُ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ، تَوَضَّأَ.

**ترجمه**: د عمار بن ياسر نه روايت دې بيشكه نبي ﷺ رخصت وركړى دى جنب ته چه كله خوراک كوي او يا څكل كوي او يا اوده كېږي چه اودس اوكړي. وئيلى دي ابوداود: په مابين د يحيى بن يعمر او عمار بن ياسر كښې يو سړى دى. او وئيلى دي علي بن ابي طالب او ابن عمر او عبد الله بن عمرو: جنب چه كله اراده اوكړي چه خوراک اوكړي نو اودس دې كوي.

## بَابٌ فِي الْجُنُبِ يُؤَخِّرُ الْغُسْلَ

### باب دې په بيان د جنب كې چې وروسته كوي غسل

يعنى دا ضرورى نه ده چه كه يو سړى ته د شپې په شروع كښې جنابت اورسى نو هغه دې هم په دې حالت كښې غسل اوكړى بلكه كه د شپې په آخره كښې غسل اوكړى نو هم څه باک نشته.

[٢٢٦](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا بُرْدُ بْنُ سِنَانٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ، قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ: "أَرَأَيْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ، أَوْ فِي آخِرِهِ؟ قَالَتْ: رُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ، وَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي آخِرِهِ، قُلْتُ: اللهُ أَكْبَرُ، الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً، قُلْتُ: أَرَأَيْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوتِرُ أَوَّلَ اللَّيْلِ، أَمْ فِي آخِرِهِ؟ قَالَتْ: رُبَّمَا أَوْتَرَ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ، وَرُبَّمَا أَوْتَرَ فِي آخِرِهِ، قُلْتُ: اللهُ أَكْبَرُ، الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً، قُلْتُ: أَرَأَيْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْهَرُ بِالْقُرْآنِ، أَمْ يَخْفُتُ بِهِ؟ قَالَتْ: رُبَّمَا جَهَرَ بِهِ، وَرُبَّمَا خَفَتَ، قُلْتُ: اللهُ أَكْبَرُ، الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً".

**ترجمه**: غضيف بن الحارث نه روايت دې، هغه وائى ما اووئيل عائشې ته، خبر راكړه ماته چه رسول الله ﷺ به غسل د جنابت په اول د شپه كښې كوه او كه په اخير كښې؟ هغې اووئيل: كله به ئې غسل كولو په اول د شپه كښې، او كله به ئې غسل كولو په اخير كښې، ما اووئيل: الله لوى دى، تعريفونه دې هغه ذات لره (شُكردې) چه په كار كښې ئې وسعت

[1]: صحيح مسلم/الطهارة ٦(٣٠٥)، سنن النسائي/الطهارة ١٦٣ (٢٥٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٣ (٥٩١)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٦/٦، ١٩١، ١٩٢) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الجمعة ٧٨(٦١٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٠/٣) (ضعيف)

[3]: سنن النسائي/الطهارة ١٤١ (٢٢٣)، والغسل ٦ (٤٠٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٧٩(١٣٥٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٢٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحيض ٦(٣٠٧) (صحيح)

پیدا کړې دي، ما اووئیل: چه خبر راکړه ماته د رسول الله ﷺ په باره کښې چه هغه به وتر په اول د شپه کښې کول او که په اخیر کښې؟ هغې اووئیل: کله به ئې وتر کول په اول د شپه کښې او کله به ئې وتر کول په اخیر کښې، ما اووئیل: الله لوی دی، شکر دی دهغه الله چه په کار کښې ئې وسعت پیدا کړی دی. ما اووئیل چه خبر راکړه ماته د رسول الله ﷺ په باره کښې چه قرآن به ئې په جهر لوستلو او که په پټه؟ نو هغې اووئیل: کله به ئې په جهر لوستلو او کله به ئې په پټه لوستلو، نو ما اووئیل: الله لوی دی، شکر دی دهغه الله چه په کار کښې ئې وسعت پیدا کړی دی.

## د حدیث مضمون او د هغې وضاحت:

لکه څنګه په حدیث الباب کښې عائشې رضي الله عنها د سائل د سوال په جواب کښې اوفرمائیل ﴿رُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي أَوَّلِ اللَّيْلِ وَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فِي آخِرِهِ﴾ یعنی رسول الله ﷺ خو به کله د جنب کیدو نه پس د شپې په شروع کښې هم هغه وخت غسل فرمائیلو او کله به ئې داسې کول چه هغه وخت به اودس کولو سره اوده شو او د شپې په آخره کښې به پاسیدو او غسل به ئې اوفرمائیلو خو دلته یو احتمال عقلاً دا هم ممکن دې چه د عائشې رضي الله عنها مراد دا وی چه بعض وخت به د جنابت حالت د شپې په شروع کښې پیښیدو نو هم هغه وخت به ئې غسل اوفرمائیلو او که د شپې په آخر کښې به ورته پیښ شو نو د شپې په آخرې حصه کښې به غسل ئې فرمائیلو په دې صورت کښې تاخیر د غسل کوم چه په ترجمة الباب کښې مذکور دې هغه به نه ثابتیږی خو دا معنی په دې وجه نه شی مراد کیدې چه سائل د عائشې رضي الله عنها په جواب اوریدلو باندې اووئیل ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ فِي الْأَمْرِ سَعَةً﴾ په دې وجه د ګنجائش کیدل خو به هغه ثابت وی چه کله اول معنی مراد وی.

وړاندې بیا په حدیث کښې دی چه سائل د عائشې رضي الله عنها نه دوه تپوسونه نور اوکړل یو د وترو په باره کښې چه د رسول الله ﷺ معمول د وترو په باره کښې څه وو، د شپې په شروع کښې به ئې ادا فرمائیل او که د شپې په اخر کښې، چه دهغې جواب هغوی دا ورکړو چه کله به رسول الله ﷺ داسې فرمائیلو او کله داسې، دویم سوال ئې دا اوکړو چه رسول الله ﷺ به په قیام لیل کښې د قرآن کریم تلاوت جهراً فرمائیلو یا سراً، ددې جواب هغوی هم دا ورکړو چه دواړو طریقو سره.

[٢٢٧](1) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُدْرِكٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُجَيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ، وَلَا كَلْبٌ، وَلَا جُنُبٌ".

**ترجمه:** د علي بن ابي طالب رضي الله عنه نه روایت دې، هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه، هغه وئیلی دی: نه داخلیږي ملائک هغه کور ته چه په هغې کښې تصویر وي او یا سپی او یا جنب.

(1): سنن النسائي/الطهارة ١٦٨ (٢٦٢)، والصيد ١١ (٤٢٨٦)، سنن ابن ماجه/اللباس ٤٤ (٣٦٥٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٨٣، ١٠٤)، سنن الدارمي/ الاستئذان ٣٤ (٢٧٠٥)، ويأتي عند المؤلف في اللباس برقم (٤١٥٢) (ضعيف)

## يو اشكال او د هغې جواب:

قوله:﴿ حَدَّثَنَا حَفصُ بْنُ عُمَرَ – قوله لاَ تَدْخُلُ الْمَلاَئِكَةُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلاَ كَلْبٌ وَلاَ جُنُبٌ ﴾ دا حديث په ظاهره كښې د باب د اول حديث خلاف دې ځکه چه د رومبی حديث نه د تاخير غسل جواز ثابتيږي، او په دې كښې دا دی چه په كوم كور كښې جنب وی په هغې كښې د رحمت ملائک نه داخليږي، بلكه دا چه حديث په ظاهر كښې د ترجمة الباب هم خلاف دې، د مصنف رحمه الله عادت دا دې چه هغوی بعض وخت د ترجمة الباب مطابق حديث راوړلو نه پس كله كله داسې حديث هم راوړی كوم چه په ظاهر كښې د ترجمة الباب خلاف وی، زما په نزد د مصنف رحمه الله غرض طالبانو لره متوجه كول دی چه هغوی ددې په جواب باندې سوچ اوكړي او د هر دوه احاديثو محمل متعين كړی، پس ددې جواب حضرت په بذل كښې د امام خطابی رحمه الله نه دا نقل فرمائيلې دې چه په دې حديث كښې د جنبی نه مراد هغه جنبی نه دې كوم چه غسل لره موخر كړی د مانځه د وخته پورې، او د مونځ وخت راتلو سره غسل اوكړي بلكه ددې نه مراد هغه جنبی دې چه د غسل په باره كښې هميشه تهاون او تكاسل كوی ګينې د رسول الله ﷺ نه تاخير غسل ثابت دې په نفس تاخير كښې څه اشكال دې.

زه وائم چه امام نسائی رحمه الله ددې حديث يو بله نفيس توجيه فرمائيلې ده او هغوی ددې توجيه طرف ته د اشارې كولو دپاره يو مستقل ترجمة الباب قائم كړې دې هغه دا چه ددې نه مراد هغه جنبی دې كوم چه د شپې د جنابت نه پس بغير د اودس كولو نه اوده شی، دا توجيه د هغوی ډيره غوره ده او د احاديث نه هم عموما دا مفهوم كيږی چه رسول الله ﷺ به د جنابت په حالت كښې پس د اودس نه آرام فرمائيلو اوبيا ددې نه پس احقر ته دا خبره د ابوداؤد په يو روايت كښې په صراحت سره ملاؤ شوه، پس مصنف رحمه الله په كتاب الترجل كښې په باب الخلوق للرجال كښې د سيدنا عمار بن ياسر رضی الله عنهما دا حديث مرفوع ذكر فرمائيلې دې چه ﴿ ثَلاَثَةٌ لاَ تَقْرَبُهُمُ الْمَلاَئِكَةُ جِيفَةُ الْكَافِرِ وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوقِ وَالْجُنُبُ إِلاَّ أَنْ يَتَوَضَّأَ ﴾ چه دهغې نه معلوميږی چه د اودس كولو نه پس حالت جنابت د قرب ملائكه نه مانع نه وی، فالحمد لله.

بيا خان پوهه كړه چه عند الجمهور په حديث كښې دتصوير نه مراد صورت ذی روح دې كه د سوری والا وی (مجسم) يا غير د سوری والا، بلكه دا چه هغه تصوير داسې وی چه هغه ويزاند كړې شوې وی د زينت دپاره مثلا، او كوم تصوير چه ممتهن وی متبذل وی د خپو لاندې كيږی مثلاً په فرش كښې يا په تكيه كښې يا په پيزار كښې يا په پائيدان كښې ددې جواز د حديث نه ثابت دې، خو جوړول ددې قسم تصوير هم جائز نه دی، نو ګويا دوه څيزونه شو يو عمل تصوير (تصويران ويستل) او دويم استعمال تصوير، عمل تصوير يعنی د ذی روح مطلقا ناجائز دې، او دا استعمال د تصوير په بعض صورتونو كښې حرام او په بعض صورتونو كښې مباح دې، دريم څيز كوم چه په حديث كښې مذكور دې هغه كلب دې، د كلب دوه قسمونه دی، ماذون الاتخاذ لكه ښكاری سپی وغيره، غير ماذون الاتخاذ، په دې كښې د شارحينو اختلاف دې چه د دخول ملائكه نه مانع مطلق كلاب دی يا صرف هغه كوم چه غير ماذون الاتخاذ وی، پس امام نووی رحمه الله د امام خطابی رحمه الله او قاضی

عياض رحمه الله نه نقل کړې دی چه د دخول ملائکه نه مانع صرف هغه کلاب دی کوم چه ممنوع الاقتناء دی او هم دغه شان تصویر هم خو خپله د امام نووی رحمه الله رائې دا نه ده د هغوی په نزد دا حکم عام دې دواړو قسمونو ته شامل دې او په حاشیه د ترمذی کښې د علامه طیبی رحمه الله قول د قاضی عیاض موافق او د امام محی السنة رائې د امام نووی رحمه الله موافق ليکلې شوې ده، او زمونږ د حضرت سهارنپوری رحمه الله رائې کومه چه په بذل کښې ددې نه علاوه وړاندې په کتاب اللباس کښې مذکور ده، هغه دا دې چه امتناع ملائکه مخصوص دې ممنوع الاقتناء سره خو دا خبره حضرت په انشاء الله سره ليکلې ده بالجزم نه.

[٢٢٨]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنَامُ وَهُوَ جُنُبٌ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَمَسَّ مَاءً"، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْوَاسِطِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ يَزِيدَ بْنَ هَارُونَ، يَقُولُ هَذَا الْحَدِيثُ وَهْمٌ يَعْنِي حَدِيثَ أَبِي إِسْحَاقَ

**ترجمه:** د عائشې رضی الله عنها نه روايت دې هغې وئيلى دى: وو رسول الله صلی الله عليه وسلم چه اوده کيده به او هغه به جنب وو بغير د مس کولو د اوبو نه. وئيلى دي ابوداود: حديث بيان کړى دى مونږ ته حسن بن علي الواسطي، هغه وئيلى دى: ما اوريدلي دي د يزيد بن هارون نه چه هغه ويل: دا حديث وهم دى. مطلب ئې حديث د ابو اسحاق دى

**تشريح:** ٣: ﴿قوله يَنَامُ وَهُوَ جُنُبٌ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَمَسَّ مَاء﴾ ددې حديث نه هم ښکاره ده چه تاخير غسل ثابتيږي د کوم دپاره چه ترجمة قائم کړې شوې ده، خو ﴿من غير ان يمس ماء﴾ کښې دواړه احتمالونه دی چه غسل او اودس د دواړو نفی وی، دويم دا چه صرف د غسل نفی مراد وی، اوس نزدې د عائشې رضی الله عنها په حديث کښې تير شو چه رسول الله صلی الله عليه وسلم چه به کله په حالت د جنابت کښې د نوم اراده فرمائيله نو ﴿توضا وضوءه للصلوة﴾ ددې مقتضى دا ده چه دلته صرف د غسل نفی مراد کړې شی او که د دواړو نفی مراد کړې شی نو دا به په بيان جواز باندې محمول وی، د امام نووی رحمه الله ميلان دې دويم احتمال طرف ته دې او امام بيهقی رحمه الله احتمال اول اختيار کړې دې

## د مصنف رحمه الله د وهم د دعوې توضيح او ددې مقام تحقيق:

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَذَا الْحَدِيثُ وَهَم﴾ ځان پوهه کړه چه ددې حديث په باره کښې چه کومه رائې د مصنف رحمه الله ده هغه د امام ترمذی رحمه الله هم ده، هغوی د ډيرو علماء کرامو نه ددې حديث وهم کيدل نقل کړی دی او هم دا رائې د امام احمد بن حنبل رحمه الله ده بلکه بعض علماء کرامو لکه ابن المفوز رحمه الله خو ددې حديث په خطاء کيدو باندې د محدثينو اجماع نقل کړې ده خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه اجماع نقل کول صحيح نه دی ځکه چه ددې حديث امام بيهقی رحمه الله تصحيح کړې ده بلکه هغوی د تغليط کونکو ترديد کړې دې.

ځان پوهه کړه چه دا ټول حضرات دافرمائی چه په دې حديث کښې د ابواسحاق-

(): سنن الترمذي/الطهارة ٨٧ (١١٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٨ (٥٨٣)، (تحفة الأشراف: ٢٣ ١٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣/٦) (صحيح)

راوی نه غلطي شوې ده، هغه غلطی ترې نه څه شوې ده؟ دا خبره ابن العربی په شرح د ترمذی کښې واضح کړې ده چه دهغې خلاصه دا ده چه دا حدیث په اصل کښې اوږد وو چه دهغې په صحیح مفهوم باندې پوهیدلو کښې غلطي شوې ده او بیا ددې نه پس ئې د خپل فهم په اعتبار سره ددې اختصار کړې دې، صورت حال دا دې چه په اصل روایت کښې داسې وو، سیده عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ په باره کښې فرمائی ﴿ کان ینام اول اللیل ویحیی اخره ثم ان کانت له حاجة قضی حاجته ثم ینام قبل ان یمس ماء ﴾ چه دهغې مطلب دا دې چه د رسول الله ﷺ معمول وو چه د شپې په شروع کښې به ئې آرام فرمائیلو او په آخر کښې به بیدار وو بیا به ئې که څه حاجت وو نو دا به ئې پوره فرمائیلو او بیا به اودهٔ شو ﴿ قبل ان یمس ماء ﴾ ابن العربی رحمه الله فرمائی چه دلته د قضاء حاجت نه مراد د بول وبراز حاجت دې او مطلب دا دې چه د حاجت انسانیه نه فارغ کیدو سره به رسول الله ﷺ آرام فرمائیلو بغیر د اوبو د مسح کولو نه، د ابو اسحاق نه دلته دا غلطي اوشوه چه هغوی حاجت لره په ځائې د حاجت انسانیه حاجت الی الاهل یعنی وطی باندې محمول کړه حال دا چه دا غلطه ده ځکه چه هم ددې حدیث په اخر کښې ﴿ وان نام جنبا توضا ﴾ چه دهغې نه صفا معلومیږی چه په حالت د جنابت کښې بغیرد اودس کولو نه نهٔ اودهٔ کیدلو. نو اوس که په شروع کښې حاجت په حاجت وطی باندې محمول کړې شی او ﴿ ولا یمس ماء ﴾ په مطلق ماء باندې محمول کړې شی یعنی ماء وضوء او ماء اغتسال د دواړو نفی مراد کړې شی نو په دې صورت کښې به اول حدیث د آخر حدیث معارض شی هغوی فرمائی چه صحیح محمل خو ددې حدیث دا وو چه که په حاجت وطی باندې محمول کړې شی نو ﴿ ولا یمس ماء ﴾ مطلق نه دې بلکه صرف د ماء اغتسال نفی دې مراد کړې شی او که حاجت په حاجت انسانیه باندې محمول کړې شی نو بیا بیشکه ﴿ ولا یمس ماء ﴾ لره په خپل عموم پاندې کیخودلې شی، خو ابواسحاق داسې اوکړل چه حاجت ئې په حاجت وطی باندې محمول کړو او ﴿ ولا یمس ماء ﴾ ئې په خپل عموم باندې اوساتلو د غسل او اودس نفی ئې اوکړه او دا خبره د خلاف واقع کیدو نه علاوه د آخر حدیث هم معارض ده ځکه چه د رسول الله ﷺ معمول په حالت د جنابت کښې بغیر د اودس نه د اودهٔ کیدو نه وو، دا خو تشریح شوه د هغه خلقو د مراد کوم چه دې حدیث ته غلط وائی.

خو ددې تنقید جواب دا دې چه د حدیث د اول به د آخر سره معارضه هله لازمیږی چه کله مونږ حدیث د ابو اسحاق کښې ﴿ لا یمس ماء ﴾ لره په عموم باندې محمول نه کړو چه د اودس او غسل دواړو نفی کولې شی خو که په حدیث کښې د ماء نه خاص ماء اغتسال مراد کړې شی نو بیا دا اشکال دې، او ابواسحاق دا کله وئیلې دی چه د ماء نه مطلق ماء مراد دی، تعارض خو په دې حدیث کښې دې ناقدینو خپله پیدا کړې دې چه هغوی د ماء نه مطلق مراد اخستلو سره بیا اول حدیث وآخر حدیث کښې تعارض بیانوی، لهذا حدیث د ابو اسحاق وهم نه شو، پس د امام بیهقی رحمه الله او ابوالعباس بن سریج هم دا رائې ده چه په دې حدیث کښې څه وهم نشته او ﴿ لا یمس ماء ﴾ کښې صرف د ماء الاغتسال نفی ده، د

وضوء نفی نه ده او امام نووی رحمه الله فرمائي چه یو شکل دا هم دي چه دلته د مطلق ماء نفی مراد کړې شی او دا دې په بیان جواز باندې محمول کړې شی چه کله کله رسول الله ﷺ داسې هم کړی دی عادت نه دې مراد ، احقر ته په دې باندې دا اشکال دې چه په دې توجیه سره خو به د ناقدینو اصل اشکال بیا راواپس شی یعنی د حدیث اوله او آخره حصه کښې تعارض، ځکه چه دلته خبره په یو خاص حدیث باندې شروع ده. مطلقا د مسئلې په حیثیت سره نه، حضرت سهانپوری رحمه الله په بذل کښې د امام بیهقی رحمه الله وغیره دا رائې اختیار فرمائیلې دې او په دې کښې د حضرت ناقدین حدیث ملګرې نه دې

**تنبیه** : ځان پوهه کړه چه د ابو اسحاق دا روایت مطوله په مسلم شریف کښې هم دې چه دهغې الفاظ دا دی ﴿ ثم ان كانت له حاجة الى اهله قضى حاجته ﴾ په دې روایت کښې ﴿ الى اهله ﴾ موجود دې اوس ددې معنی د وطی متعین شوه، خو د مسلم شریف په روایت کښې ددې نه پس ﴿ ولا يمس ماء ﴾ جمله نه ده چه دهغې د وجې نه ټول اشکال اودریدلې وو.

### د امام طحاوی رحمه الله رائې

او په دې باندې هم ځان پوهه کړئ چه د امام طحاوی رحمه الله رائې هم دا ده چه په دې روایت کښې د ابواسحاق نه غلطې شوې ده. خو د هغوی په نزد غلطی دا نه ده چه ابو اسحاق د حاجت مطلب غلط فهم کړې دې، د حاجت مفهوم خو د امام طحاوی رحمه الله په نزد هم جماع ده خو هغوی دا وائی چه د ابو اسحاق د ﴿ ولا يمس ماء ﴾ په ذریعه د اودس او غسل هر دواړو نفی کول دا صحیح نه دی ځکه چه دا د نورو روایاتو خلاف ده، د نورو روایاتو نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ به په حالت جنابت کښې د اودس نه پس آرام فرمائیلو نه قبل الوضوء. خو بیا امام طحاوی رحمه الله وړاندې لیکلې دې چه کیدې شی چه د ابو اسحق مراد په ﴿ ولا يمس ماء ﴾ سره صرف د غسل نفی وی لهذا بیا به هیڅ اشکال باقی نه پاتې کیږی، دا هم هغه خبره شوه کوم چه مونږ په شروع کښې کړې وه چه تعارض خو ناقدینو خپله پیدا کړې دې، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې د امام طحاوی رحمه الله رائې نه ده نقل فرمائیلې بلکه صرف د قاضی ابوبکر ابن العربی رائې ئې د شوکانی د کلام نه او د بیهقی رائې ئې خپله د هغوی د کتاب نه نقل فرمائیلې ده، خو صاحب د معارف السنن د امام طحاوی کلام او د هغوی رائې نقل کړې ده، هغوی په دې موضوع باندې کافی اوږد بحث کړې دې.

## بَابٌ فِي الْجُنُبِ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ

### باب دې په بیان د جنب کښې چې قران لولي

[٢٢٩](١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلِمَةَ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عَلِيٍّ رضي الله عنه أَنَا وَرَجُلَانِ، رَجُلٌ مِنَّا وَرَجُلٌ مِنْ بَنِي أَسَدٍ أَحْسِبُ، فَبَعَثَهُمَا عَلِيٌّ رضي الله عنه وَجْهًا، وَقَالَ: إِنَّكُمَا عِلْجَانِ، فَعَالِجَا عَنْ دِينِكُمَا، ثُمَّ قَامَ فَدَخَلَ الْمَخْرَجَ، ثُمَّ خَرَجَ فَدَعَا بِمَاءٍ، فَأَخَذَ مِنْهُ حَفْنَةً فَتَمَسَّحَ بِهَا، ثُمَّ جَعَلَ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ،

(١): سنن الترمذي/الطهارة ١١١ (١٤٦)، سنن النسائي/الطهارة ١٧١ (٢٦٦، ٢٦٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٥ (٥٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٠١٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٤/١، ١٢٤) (ضعيف)

فَأَنْكَرُوا ذٰلِكَ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ فَيُقْرِئُنَا الْقُرْآنَ، وَيَأْكُلُ مَعَنَا اللَّحْمَ وَلَمْ يَكُنْ يَحْجُبُهُ، أَوْقَالَ: يَحْجُزُهُ عَنِ الْقُرْآنِ شَيْءٌ لَيْسَ الْجَنَابَةَ.

**ترجمه**: د عبد الله بن مسلمة نه روایت دې هغه وائي: چه زه داخل شوم په علي رضی الله عنه باندې او دوه سړي، يو سړی زمونږ نه وو او بل د بنو اسد نه وو زما گمان دی، نو دواړه ولېږل علي رضی الله عنه يو ځائي ته، او وئې وئيل: بيشکه تاسو دواړه مضبوط يې، نو خپل قوي والی ښکاره کړې په دفاع د دين ستاسو دواړو کښې، بيا پاڅيدلو نو داخل شو تشناب ته بيا راووتلو، نو راوبې غوښتلې اوبه نو راواپې خستې يو چونگ نو مسح ئې اوکړه په هغې، بيا ئې شروع اوکړه په لوستلو د قرآن، نو خلکو بد وگڼړلو د هغه دغه کار، نو وئې وئيل بيشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم وو چه راوتلو به د بيت الخلاء نه نو مونږ ته به ئې قرآن لوستلو، او خوړله به ئې زمونږ سره غوښه او نه وو چه منع کولو به څه شي، او يايې اووئيل: يَحجزه، د قرآن نه چه د جنابت نه علاوه.

**تشريح**: په حالت د جنابت کښې اذکار او دعاء گانې لوستل بالاجماع جائز دی خو تلاوت د قرآن کريم مختلف فيه دې، مذاهب په دې کښې دا دی چه د داؤد ظاهری رحمه الله په نزد مطلقا جائز دې او هم دا مذهب مروی دې د ابن عباس، سعيد بن المسيب او عکرمه رضی الله عنهم نه، او د امام شافعی رحمه الله په نزد مطلقا حرام دې اگر که حرف ولې نه وی، د امام احمد رحمه الله نه دوه روايتونه دی يو د شوافعو په شان دويم د مادون الاية د جواز دې، هم دغه شان زمونږ په نزد هم دوه روايتونه دی، پس امام طحاوی رحمه الله د مادون الاية اباحت نقل کړې دې او امام کرخی رحمه الله د عدم جواز، او د امام مالک رحمه الله په نزد د آيت يا آيتين لوستلو گنجائش شته. (كذا فى الميزان الكبرى للشعرانى)

ځان پوهه کړه چه د امام بخاری رحمه الله ميلان په دې مسئله کښې د مطلق جواز طرف ته دې پس هغوی په دې سلسله کښې ډير روايات او آثار ذکر کړې دی او دغه شان ئې د ﴿ كان النبى صلی الله علیه وسلم يذكر الله على كل احيانه ﴾ نه هم استدلال کړې دې هم دغه شان د ابن المنذر او ابن جرير طبری رحمهم الله هم دا رائې ده. بله دا چه طبری د منع روايات په اولويت باندې محمول کړې دی.

ځان پوهه کړه چه مصنف رحمه الله په دې مسئله کښې د حائضې حکم بيان نه کړو، امام ترمذی رحمه الله په يوه ترجمة کښې دواړه ذکر کړې دی، باب الجنب والحائض لا يقران القران... د حائضې حکم د جمهورو په نزد هم هغه دې کوم چه د جنبی دی خو په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دې د هغوی په نزد د حائض دپاره مطلقا جائز دې ځکه چه د حيض موده اوږده وی که په دې موده کښې ئې مطلقا نه لولی نو د هيريدلو ويره ده چه په هغې باندې وعيد راغلې دې په خلاف د جنابت چه هغه د لږ وخت ځيز دې دهغې آزاله د انسان په اختيار کښې ده. (كذا فى المنهل)

## مضمون الحديث:

**﴿ قوله عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلِمَةَ ﴾** دا سلمه په کسرې د لام سره دې په کتب رجال کښې ددې تصريح ده، او امام نووی رحمه الله د شرح مسلم په مقدمه کښې په هغه فصل کښې چه په هغې کښې

هغوی د اسماء مشتبه اوصول ليکلي دي چه سلمه هر ځائي کښي په فتحې د لام سره دي خو هغوی د عبدالله بن سلمة استثناء نه ده کړې ځکه چه کومه قاعده هغه ليکلي ده هغه صرف د رجال صحيحين سره متعلق ده او دا عبدالله بن سلمة د کتب سنن راوی دي (الفيض السمائی)

﴿ قوله رَجُلٌ مِنَّا وَرَجُلٌ مِنْ بَنِى أَسَدٍ أَحْسِبُ الخ ﴾ عبدالله بن سلمة وائي چه يو ځل دوه سړي يو زمونږ د قبيلې يعنی د قبيله مراد او دويم سړې د قبيله بنو اسد وو، علي رضي الله عنه د هغوی دواړو چرته د ليږلو اراده اوفرمائيله، او وې فرمائيل چه تاسو قوی او مضبوط کسان يئ لهذا د دين خدمت کوئ (دا خبره اوشوه ددې نه پس راوی وائي) بيا علي رضي الله عنه پاسيدو او مخرج يعنی بيت الخلاء ته ئې تشريف يوړلو د فراغت نه پس بهر راغلو او اوبه ئې طلب کړې چه اوبه حاضرې شوې دهغې نه ئې يو لپه واخستلې او (د لاسونو او مخ) مسح ئې اوکړه او بيا ئې قرآن کريم لوستل شروع کړل، په دې (يعنی بې اودسه تلاوت باندې) خلقو اعتراض اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ به ډير کرته د بيت الخلاء نه د راتلو نه پس مونږ ته قرآن کريم لوستلو او خوراک څکاک به ئې هم کولو او هيڅ څيز به د هغوی دپاره د تلاوت نه مانع نه وو ﴿ لَيْسَ الْجَنَابَةَ ﴾ سوا د جنابت نه

## بَابٌ فِي الْجُنُبِ يُصَافِحُ

### باب دې په بيان د جنب کې چې مصافحه کوي

[٢٣٠] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ وَاصِلٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَهُ فَأَهْوَى إِلَيْهِ، فَقَالَ: إِنِّي جُنُبٌ، فَقَالَ: "إِنَّ الْمُسْلِمَ لَا يَنْجُسُ".

**ترجمه:** د حذيفه رضي الله عنه نه روايت دې چه بيشکه نبي ﷺ مخامخ شو د هغه سره نو قصديې اوکړو هغه ته، نو هغه اووئيل: زه جنب يم، نو هغه اووئيل: بيشکه مسلمان نه نجس کيږي

[٢٣١] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، وَبِشْرٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ بَكْرٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "لَقِيَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَرِيقٍ مِنْ طُرُقِ الْمَدِينَةِ وَأَنَا جُنُبٌ، فَاخْتَنَسْتُ، فَذَهَبْتُ فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جِئْتُ، فَقَالَ: أَيْنَ كُنْتَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ؟ قَالَ: قُلْتُ: إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا، فَكَرِهْتُ أَنْ أُجَالِسَكَ عَلَى غَيْرِ طَهَارَةٍ. فَقَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ، إِنَّ الْمُسْلِمَ لَا يَنْجُسُ"، وَقَالَ فِي حَدِيثِ بِشْرٍ: حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، حَدَّثَنِي بَكْرٌ.

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې هغه وائي: مخامخ شو ماسره رسول الله ﷺ په يوه لار کښې د لارو د مدينې نه او زه جنب وم، نو زه وروسته شوم لاړم غسل مې اوکړو بيا راغلم، هغه اووئيل: چيرته وې اې ابو هريره؟ هغه وائي ما اووئيل: زه جنب وم دا مې بده وګڼړله چه تاسره ناسته اوکړم بغير د طهارت نه، نو هغه اووئيل سبحان الله بيشکه مومن نه نجس کيږي

(١): صحيح مسلم/الطهارة ٢٩ (٣٧٢)، سنن النسائي/الطهارة ١٧٢ (٢٦٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٠ (٥٣٥)، (تحفة الأشراف: ٣٣٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٤/٥، ٤٠٢) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الغسل ٢٣ (٢٨٣)، صحيح مسلم/الحيض ٢٩ (٣٧١)، سنن الترمذي/الطهارة ٨٩ (١٢١)، سنن النسائي/الطهارة ١٧٢ (٢٧٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٠ (٥٣٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٥/٢، ٢٨٢، ٤٧١) (صحيح)

د جنبي ظاهر بدن پاک دي جنابت يو معنوي نجاست دي لهذا د جنبي سره کيناستل پاسيدل او مصافحه کول ټول جائز دي لکه چه د حديث الباب نه معلوميږي.

﴿ قوله أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- لَقِيَهُ الخ ﴾ سيدنا حذيفه رضي الله عنه فرمائي چه د رسول الله ﷺ ماسره ملاقات اوشو په دې باندې رسول الله ﷺ د حذيفه رضي الله عنه طرف ته د مصافحې دپاره مائل شو هغوي عرض اوکړو زه جنب يم.

دلته يو اشکال راځي چه حذيفه رضي الله عنه د لقاء نسبت د رسول الله ﷺ طرف ته اوکړو دا د ادب خلاف ده ملاقات ماشومان کوي د مشرانو سره نه برعکس، جواب دا دې چه هغوي قصدا اووئيل ځکه چه هغوي د خپل ځان په نزد هغه حال کښې نه وو چه د رسول الله ﷺ سره ملاقات اوکړي ځکه چه په حالت د جنابت کښې وو ﴿ فَقَالَ إِنَّ الْمُسْلِمَ لاَ يَنْجُسُ ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل مسلمان نه ناپاکه کيږي يعني د جنابت د وجې نه د هغه د بدن ظاهر نه ناپاکه کيږي چه د مصافحې وغيره نه مانع وي، حافظ فرمائي چه ددې حديث (بطريق المفهوم) بعض ظاهريه د کافرو په نجاست باندې استدلال کړې دې چه هغه نجس العين دې بله دا چه هغوي د الله پاک ددې قول ﴿ انما المشركون نجس الاية ﴾ نه هم استدلال کړې دې.

جواب دا دې چه په حديث کښې د رسول الله ﷺ مراد د ﴿ ليس بنجس ﴾ نه تحامي عن النجاسة دې يعني د مومن شان دا دې چه هغه د نجاست نه ځان بچ کوي په خلاف د کافر چه د نجاست نه بچ کيدل د هغه شعار نه دې، يا دې داسې اووئيلې شي چه په حديث کښې د مومن تخصيص د کافر په مقابله کښې نه دې بلکه صرف په دې حيثيت سره دې چه چونکه خطاب هم هغه ته دې، او د آيت کريمه جواب دا کړې شوې دې چه په دې کښې د نجاست سره د اعتقاد او باطن نجاست مراد دې.

## بَابٌ فِي الْجُنُبِ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ

### باب دې په بيان د جنب کې چې داخلېږي مسجد ته

[٢٣٢]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الأَفْلَتُ بْنُ خَلِيفَةَ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي جَسْرَةُ بِنْتُ دِجَاجَةَ، قَالَتْ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، تَقُولُ: "جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوُجُوهُ بُيُوتِ أَصْحَابِهِ شَارِعَةٌ فِي الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: وَجِّهُوا هَذِهِ الْبُيُوتَ عَنِ الْمَسْجِدِ، ثُمَّ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَصْنَعِ الْقَوْمُ شَيْئًا رَجَاءَ أَنْ تَنْزِلَ فِيهِمْ رُخْصَةٌ، فَخَرَجَ إِلَيْهِمْ بَعْدُ، فَقَالَ: وَجِّهُوا هَذِهِ الْبُيُوتَ عَنِ الْمَسْجِدِ، فَإِنِّي لاَ أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلاَ جُنُبٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ فُلَيْتٌ الْعَامِرِيُّ.

**ترجمه:** ام المؤمنين حضرت عائشه رضی الله عنها وائي چه رسول الله ﷺ تشريف راوړو او حال دا وو چه د بعضو صحابو د کورونو دروازې جمات طرف ته کهلاويدې نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل واړوئ مخونه ددې کورونو د جمات نه. بيا داخل شو نبي ﷺ او قوم هيڅ تبديلي هم اونه کړه په دې اميد چه د دوی په باره کښې به څه رخصت نازل شي، نو ووتلو دوی ته وروسته وئې وئيل: واړوئ دا کوټې د جمات نه، بيشکه زه نه حلالوم مسجد د

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٢٨) (ضعيف)

حائضي لپاره او نه د جنب دپاره. وئيلی دي ابوداود: هغه فليت العامري دی.

**تشريح:** د جنابت احکام شروع دی دهغې نه يو دا دي چه په حالت د جنابت کښې انسان مسجد ته داخليدلې شی يا نه؟ مسئله مختلف فيه ده، پس په دې کښې د علماء کرامو درې مذاهب دی.

## مذاهب ائمه او د هر يو دليل :

ځان پوهه کړه چه دلته دوه څيزونه دی، يو تلل، دويم ايساريدل، د امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد د جنب او حائض دپاره مطلقا که څه خاص ضرورت وی او که نه وی که اودس ئې وی او که نه وی دخول او مسجد کښې تلل جائز دی خو د حائض دپاره شرط دا دې چه د تلويث مسجد ويره نه وی، دويم مذهب د احنافو او مالکيانو دې د هغوی په نزد د جنب او حائض دپاره مسجد کښې تيريدل جائز نه دی خو د څه مجبورئ يا ضرورت په وجه باندې جائز دی، دويم څيز دې مکث فی المسجد يعنی د جنبی په مسجد کښې ايساريدل، کيناستل پاسيدل، پس دا د جمهور علماو او ائمه ثلاثه احناف، مالکيان او شوافعو په نزد ناجائز دی د حنابله او اسحاق بن راهويه په نزد جائز دی خو پس د اودس نه، د مزنی وغيره په نزد د جنب او حائض دواړو دپاره مرور او مکث دواړه مطلقا جائز دی په منهل کښې مذاهب ائمه دغه شان ليکلې شوې دی، اوس دلته دوه اختلافات دی، يو د احنافو او شوافعو تقابل او يو د جمهور ائمه ثلاثه او د حنابله تقابل، د دواړو دليل واورئ، مصنف رحمه الله په دې باب کښې د عائشې رضی الله عنها مرفوع حديث ذکر کړې دې، چه دهغې په اخر کښې دی ﴿ فَإِنِّی لاَ أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلاَ جُنُبٍ ﴾ دا حديث په دې مسئله کښې د جمهورو دليل دې او د حنابله او ظاهريه خلاف دې، په بذل کښې ليکلې شوې دی چه ددې حديث ابن خزيمه تصحيح او ابن القطان او ابن سيد الناس رحمهم الله تحسين کړې دې خو ابن حزم ظاهری رحمه الله ددې حديث تضعيف کړې دې هغوی وائی چه په دې کښې يو راوی دې افلت بن خليفه او هغه مجهول دې قابل استدلال نه دې، خطابی شارح د ابوداؤد وائی چه د تضعيف کونکو دا خبره صحيح نه ده ځکه چه د افلت ابن حبان او احمد بن حنبل رحمهما الله وغيره محدثينو توثيق کړې دې، هم دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله هم د تضعيف کونکو ترديد کړې دې، پس صحيح دا ده چه دا راوی مجهول نه دې بلکه ثقه او مشهور دې.

اوس د احنافو او د شوافعو تقابل واخلئ، شوافع کوم چه د جواز مرور قائل دی د هغوی استدلال د آيت کريمه ﴿ لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنتُمْ سُكَارَىٰ حَتَّىٰ تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ ﴾ نه دې هغوی وائی چه د صلوة نه مراد موضع الصلوة يعنی مسجد دې او عابری سبيل نه هم دا عبور او مرور مراد دې، لهذا ددې آيت کريمه نه معلومه شوه چه د جنب دپاره مرور فی المسجد جائز دې، زمونږ علماء کرامو ددې جواب دا ورکړې دې چه ستاسو استدلال په حذف مضاف باندې بناء دې او زمونږ په نزد دا آيت کريمه په خپل ظاهر باندې دې د صلوة نه مراد صلوة دې موضع صلوة مراد نه دې او د عابری سبيل نه مراد مسافر دی، او د آيت کريمه مطلب دا دې چه په حالت د جنابت کښې مانځه ته تلل نه دی

پکار مګر دا که انسان مسافر وی او اوبه ملاؤ نه شی نو بیا هغه له تیمم کول پکار دی، په تیمم کښې د مسافر قید په دې وجه اولګولې شو چه عام طور سره په سفر کښې د عدم وجدان ماء حالت راپیښیږی لهذا د آیت کریمه مفهوم بغیر د حذف مضاف نه بالکل صفا او واضح دې، په دې باندې هغوی اشکال کړې دې چه د عابری سبیل نه مراد که مسافر واخستلې شی نو بیا به په آیت کریمه کښې د مسافر په اعتبار سره تکرار پیدا شی ځکه چه وړاندې بیا د مسافر ذکر دې ﴿ وان کنتم مرضی او علی سفر ﴾ جواب دا دې چه تکرار څه داسې قبیح څیز نه دې چه دهغې نه بچ کیدل دې ضروری وی. لهذا دهغې دپاره څه نکته کیدل پکار دی پس دلته دا نکته کیدې شی چه چونکه د مریض حکم بیانول وو او مریض د واجد الماء کیدو باوجود تیمم کوی نو هغه سره مسافر دوباره په دې وجه ذکر کړې شو چه معلومه شی چه واجد الماء یعنی مریض او عادم الماء یعنی مسافر دواړه په اعتبار د حکم سره یو شان دی، لهذا مریض ته دې په جواز د تیمم کښې د وجدان ماء د وجې نه څه تردد نه دی کیدل پکار مطمئن کیدو سره دې تیمم اوکړی.

د حدیث الباب مضمون دا دې چه په ابتداء کښې چه د کومو صحابه کرامو حجرې د مسجد نبوی نه ګیر چاپیره وې دهغې دروازې د مسجد د انګنړ طرف ته پرانستلې شوې وې، یوه ورځ رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ وجهوا هذه البیوت عن المسجد ﴾ چه ددې کورنو دروازې د مسجد د طرف نه ختمولو سره بل طرف ته اوباسئ. ځکه چه ددې په صورت کښې بعض وخت د جنب او حائض مرور فی المسجد لازمیږی خو صحابه کرامو د رسول الله ﷺ په حکم باندې په دې طمع عمل اونکړو چه کیدې شی په دې سلسله کښې څه رخصت نازل شی، بیا ددې نه پس په دویم ځل رسول الله ﷺ په دې طرف باندې ورتیر شو نو رسول الله ﷺ دوباره هم هغه خبره ارشاد اوفرمائیله چه د دروازو مخونه واړوئ، پس صحابه کرامو رضی الله عنهم ددې حکم تعمیل اوکړو؟

ځان پوهه کړئ چه دا چه په دې باب کښې مسئله روانه ده یعنی د جنبی دپاره د دخول مسجد ممانعت، ددې حکم نه رسول الله ﷺ او سیدنا علی رضی الله عنه مستثنی دی، پس په ترمذی کښې په مناقب علی کښې یو روایت راغلې دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ یا علی لا یحل لاحد ان یجنب فی المسجد غیری وغیرک ﴾ معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ او علی رضی الله عنه دا خصوصیت دې چه هغوی په حالت د جنابت کښې مسجد ته تلې راتلې شی، حضرت شیخ رحمه الله په حاشیه د لامع کښې لیکی چه ددې خصوصیت تصریح زمونږ په علماء کرامو کښې علامه شامی هم کړې ده، بلکه دا چه علامه شامی لیکی چه د روافضو دا وئیل چه دا حکم د ټولو اهل بیت دپاره عام دې او دا چه لبس حریر هم د هغوی دپاره جائز دې غلط دی او د شیعه ګانو د مخترعاتو نه دی.

**فائده** : ځان پوهه کړه چه په حدیث الباب کښې د تحویل ابواب حکم مطلقا راغلې دې، د باب علی یا باب ابوبکر استثناء په دې کښې مذکور نه ده کومه چه په ترمذی کښې په مناقب علی کښې په روایت د ابن عباس رضی الله عنهما موجود ده ﴿ ان رسول الله ﷺ امر بسد الابواب

الا باب علی ﴾ اګر که ابن الجوزی په دې باندې د وضع حکم لګولې دې چه دا د روافضو اختراع ده کومه چه هغوی د باب ابی بکر د استثناء په مقابله کښې کړې ده، خو حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې ددې تردید کړې دې هغوی د باب علی د استثناء په سلسله کښې ډیر روایات ذکر کړې دی او ددې ټولو د ذکر کولو نه پس ئې وئیلې دی چه ددې ټولو احادیثو طرق قابل استدلال دی او د یو په بل باندې تقویت معلومیږی، او د باب ابی بکر د استثناء روایت خو په بخاری شریف کښې دې، د بخاری په یو روایت کښې کوم چه په کتاب المناقب کښې دې په لفظ د باب سره استثناء راغلې ده او په یو روایت کښې په لفظ د خوخه سره ﴿ لا تبقین فی المسجد خوخة الا خوخة ابی بکر ﴾ او هم دغه شان په ترمذی کښې هم دی، اوس په دې دواړو احادیثو کښې په ظاهره تعارض معلومیږی چه په یو ځائې کښې صرف د باب علی استثناء فرمائیلې شوې ده او په دویم روایت کښې صرف د باب ابی بکر یا خوخة ابی بکر رضی الله عنه، حافظ وغیره شارحینو جمع بین الروایتین داسې کړې ده چه په شروع کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د چا ابواب چه د مسجد طرف ته مفتوح وو د تحویل ابواب حکم ورکړو سوا د علی رضی الله عنه نه، پس په هغې باندې عمل اوکړې شو. خو دې ټولو حضراتو داسې اوکړل چه په خپلو کورونو کښې ئې د مسجد طرف ته خوخات یعنی کهړکئ پرانستلې، رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغې د بندولو هم حکم ورکړو، خو دې ځل ئې د خوخة ابی بکر د پریخودلو استثناء اوفرمائیله چه که د دوی کهړکئ د مسجد طرف ته پرانستلې وی نو هیڅ باک نشته دا د ابوبکرصدیق رضی الله عنه خصوصیت وو او د علی رضی الله عنه خصوصیت خو په شروع کښې اوفرمائیلې شو چه د هغوی اصل دروازه دې د مسجد طرف ته باقی پریخودلې شی او هم دغه شان دا هم چه د هغوی دپاره په حالت د جنابت کښې مسجد ته راتلل مباح دی. دا ډیره ښه توجیه ده کومه چه شراح حدیث فرمائیلې ده.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَهُوَ فُلَيْتٌ الْعَامِرِيُّ ﴾ مصنف رحمه الله فرمائی چه په سند کښې چه کوم افلت بن خلیفه راوی راغلې دې دا هم هغه دې کوم چه په فلیت العامری سره مشهور دې، زه وایم کیدې شی چه په دې سره اشاره وی د هغه خلقو د رد طرف ته کوم چه دوی ته مجهول او غیر معروف وائی.

## بَابٌ فِي الْجُنُبِ يُصَلِّي بِالْقَوْمِ وَهُوَ نَاسٍ

**باب دې په بیان د جنب کې چې قوم ته مونځ کوي په هېره سره**

یعنی د یوسړی نه خپل جنبی کیدل هیر شی او بغیر د غسل نه د مونځ کولو دپاره اودریږی ځان پوهه کړه چه دا باب او ددې احادیث فقهی لحاظ سره اهمیت لری مسئله هم مختلف فیه ده او د باب په روایاتو کښې هم اختلاف دې، د مسئلة الباب د وضاحت نه مخکښې د باب د حدیث اول مفهوم باندې ځان پوهه کړئ.

[۲۳۳](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ زِيَادٍ الْأَعْلَمِ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ، فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ أَنْ مَكَانَكُمْ، ثُمَّ جَاءَ وَرَأْسُهُ يَقْطُرُ، فَصَلَّى بِهِمْ".

**ترجمه**: د ابو بکره نه روایت دې چه بیشکه رسول الله ﷺ داخل شو د سحر په مونځ کښې، نو اشاره ئې اوکړه په خپل لاس چه په خپل ځائې پاتې شئ، بیا راغلو او د سر نه ئې اوبه روانې وې نو مونځ ئې اوکړو دوی ته.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ قوله أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– دَخَلَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ أَنْ مَكَانَكُمْ ثُمَّ جَاءَ وَرَأْسُهُ يَقْطُرُ فَصَلَّى بِهِمْ ﴾ یعنی یو ځل داسې اوشوه چه رسول الله ﷺ د سحر مونځ شروع کړو او بیا ورته فورا رایاد شو چه هغوی په حالت د جنابت کښې دی هم په دې وخت کښې رسول الله ﷺ د لاس په اشارې سره صحابه کرام پوهه کړل چه هغوی دې په خپل خپل ځائې باندې ولاړ وی او بیا ئې فوری غسل فرمائیلو سره تشریف راوړلو د سر مبارک نه ئې د اوبو قطرې سسیدلې او خلقو ته ئې مونځ ورکړو.

**د امام د مونځ فساد د مقتدی د مانځه فساد لره مستلزم دې او که نه؟:**

د دې حدیث د ظاهر نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ په حالت د جنابت کښې مونځ شروع کړې وو او بیا روستو د یاد راتلو نه پس ئې غسل فرمائیلو سره شروع کړې شوې مونځ پوره کړو یعنی په هغې باندې ئې بناء اوفرمائیله ددې نه معلومه شوه چه د امام د مانځه فساد د مقتدی د مانځه فساد لره مستلزم نه دې، پس د شوافعو وغیره جمهورو مسلک هم دا دې لهذا دا حدیث د احنافو خلاف او د جمهورو موافق شو اوس احنافو له د جواب فکر کول پکار دی، جواب دا دې چه غالبا معترض ته ددې مسئلې تحقیق حاصل نه دې. د جمهورو مسلک دا دې چه د مونځ نه د فارغ کیدو نه پس که معلومه شی چه د امام مونځ په څه وجه باندې فاسد شوې دې نو په دې صورت کښې جمهور دا وائی چه د مقتدیانو مونځ صحیح دې فاسد شوې نه دې او د احنافو په نزد د امام سره د مقتدیانو مونځ هم لاړو، اصل مسئله خو دا ده او په دې حدیث کښې چه کوم صورت پیښ شوې دې هغه دا نه دې دلته خو د مونځ د شروع کولو نه پس د مانځه په دوران کښې امام ته رایاد شو او بیا د طهارت د حاصلولو دپاره لاړو فاین هذا من ذاک..... اوس پاتې شوه دا خبره چه کوم صورت په دې حدیث کښې مذکور دې په دې کښې د ائمه کرامو څه رائې ده، پس ځان پوهه کړه چه د احنافو او حنابله مذهب دا دې چه د مونځ د شروع کولو نه پس که امام ته حدث سابق په اثناء صلوة کښې رایاد شی نو ددې دواړو په نزد مونځ باطل شو او د تحصیل طهارت نه پس استیناف واجب دې بناء جائز نه ده، د شوافعو هم صحیح مسلک دا دې چه مونځ باطل شو او استیناف به واجب وی، پس ابن رسلان خپله د امام شافعی رحمه الله نه د هغوی مسلک هم دا نقل کړې دې خو ابن قدامة په مغنی کښې د شوافعو مسلک دا لیکلې دې چه د هغوی په نزد د مقتدیانو مونځ نه باطلیږی بلکه په داسې مونځ باندې بناء کیدلې شی،

---

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٦٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤١،٤٥) (صحیح)

ممکنه ده چه دا د هغوی روایت وی، اوس پاتې شو مسلک د امام مالک رحمه الله هغوی فرمائی چه په داسې صورت پیښیدلو باندې دوه طریقې دی چه یا خو دې مقتدی خپل مونځ بیل بیل ادا کړی یا دې په هغوی کښې څوک خپل نائب کړی او خپل مونځ دې پوره کړی. حاصل دا چه د هغوی په نزد به مونځ باطل نه وی هم په دې باندې بناء کیدلې شی، خو که مقتدیان د امام انتظار کوی نو د هغوی په نزد به هم د مقتدیانو مونځ باطل شی او په حدیث الباب کښې هم دغه شان ده چه هغوی د امام انتظار اوکړو، نو اوس خلاصه دا شوه چه په صورت مذکوره فی الحدیث کښې د مقتدیانو مونځ په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم صحیح نه شو، لهذا دا حدیث د ټولو خلاف شو ددې دوه جوابونه کړې شوې دی. ١: دا چه روایات صحیحه کوم چه په صحیحین وغیره کښې دی دهغې نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ له تر اوسه پورې په مانځه کښې نه وو داخل شوې بلکه صرف مصلي ته داخل شوې وو هم هغه وخت ورته رایاد شو لهذا ټول اشکال رفع شو، پس وړاندې په دې باب کښې ډیر روایتونه داسې راروان دی چه په هغې کښې ددې خبرې تصریح ده چه رسول الله ﷺ مصلي او مقام صلوة ته رارسیدلې وو چه هغوی ته خپل جنابت رایاد شو لهذا دا حدیث د چا خلاف هم نه دې. ٢: دا چه که دا تسلیم کړې شی چه رسول الله ﷺ مانځه ته داخل شوې وو نو بیا مونږ دا نه تسلیموو چه رسول الله ﷺ په خپل مانځه باندې بناء اوکړه بلکه د مانځه استیناف ئې اوفرمائیلو، پس د ابن حبان په روایت کښې د استیناف صلوة تصریح ده دا چه څه د مسئلې تحقیق او تفصیل مونږ بیان کړې دې هم دغه شان په حاشیه د بذل کښې حضرت شیخ رحمه الله او ددې نه علاوه په لامع الدراری او اوجز المسالک کښې تحریر فرمائیلې دې.

### د امام محمد رحمه الله استنباط:

خان پوهه کړه چه امام محمد رحمه الله دا حدیث په موطاء محمد کښې حدیث الباب په حدث فی الصلوة باندې محمول کړې دې او بیا ئې دهغې نه د جواز البناء فی الصلوة مسئله مستنبط کړې ده چه دهغې احناف قائل دی او جمهور نه نه دی چه دهغې تفصیل په باب الحدث فی الصلوة کښې مونږ سره تیر شوې دې، مولانا عبدالحی صاحب رحمه الله په حاشیه د موطاء کښې دا استنباط رد فرمائیلې دې، او دا ټول بحث حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې نقل فرمائیلې دې او حضرت په دې کښې د امام محمد رحمه الله د طرف نه مدافعت فرمائیلې دې او دا ئې لیکلې دی چه د مولانا عبدالحی رحمه الله چه څومره اشکالات دی هغه ټول په دې خبره باندې مبنی دی چې هغه د موطاء امام محمد روایت لره او دهغې نه علاوه باقی کتب صحاح کښې چه ددې سلسلې کوم روایتونه راغلی دی هغه ټول هغوی په وحدت واقعه باندې محمول کوی خو که هغه روایات په تعدد واقعه باندې محمول کړې شی نو بیا به د امام محمد رحمه الله په رائې کښې هیڅ اشکال نه وی او امام محمد رحمه الله چه د روایت کوم الفاظ په موطاء کښې ذکر فرمائیلې دی هغه په حدث فی الصلوة باندې بغیر د څه تردد نه محمول کیدلې شی، او کوم چه دهغې نه علاوه دا نور روایات دی نو بیشکه دا په حدث فی الصلوة باندې نه شی محمول کیدې، ځکه چه دهغې نه په بعضو کښې د جنابت او غسل تصریح ده

[٢٣٤]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، وَقَالَ فِي أَوَّلِهِ: فَكَبَّرَ، وَقَالَ فِي آخِرِهِ: فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ، قَالَ: إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، وَإِنِّي كُنْتُ جُنُبًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: فَلَمَّا قَامَ فِي مُصَلَّاهُ وَانْتَظَرْنَا أَنْ يُكَبِّرَ، انْصَرَفَ، ثُمَّ قَالَ: كَمَا أَنْتُمْ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ أَيُّوبُ، وَابْنُ عَوْنٍ، وَهِشَامٌ، عَنْ مُحَمَّدٍ مُرْسَلًا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَكَبَّرَ، ثُمَّ أَوْمَأَ بِيَدِهِ إِلَى الْقَوْمِ أَنِ اجْلِسُوا، فَذَهَبَ فَاغْتَسَلَ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ مَالِكٌ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي حَكِيمٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَبَّرَ فِي صَلَاةٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ حَدَّثَنَاهُ مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَبَّرَ.

**ترجمه**: حماد بن سلمة بیان کړی دی په هم هغه سند او په معنی دهغې سره، او وئي وئيل په اول د هغې کښې: تکبيريې اووئيلو، او وئيلی ئې دي په اخير دهغې کې: هرکله ئې چه مونځ خلاص کړو نو وئې وئيل: بيشکه زه بشر يم او زه جنب وم. وئيلی دي ابوداود: روايت کړی دی ددې زهري د ابو سلمة بن عبد الرحمن نه او هغه د ابوهريره نه هغه وئيلی دی: هرکله چه هغه اودريدلو په ځائې د مونځ، مونږ انتظار کولو چه تکبير به وائي نو لاړو، بيا ئې اووئيل: همدغه شان اوسئ په خپلو ځايونو. وئيلی دي ابوداود: او روايت کړی دی دهغې ايوب او ابن عون او هشام د محمد نه مرسل، او هغه د پيغمبر ﷺ نه، هغه اووئيل: تکبيريې اووئيلو بيا ئې اشاره اوکړه په لاس قوم ته چه کينئ، نو لاړلو غسل ئې اوکړو. همدارنګه روايت کړی دی ددې مالک د اسماعيل بن ابي حکيم نه، او هغه د عطاء بن يسار نه، بيشکه رسول الله ﷺ تکبير اووئيلو په مونځ کښې. وئيلی دي ابوداود: او همدارنګه بيان کړی دی مونږ ته دهغې مسلم بن ابراهيم، بيان کړی دی مونږ ته ابان د يحيی نه، او هغه د ربيع بن محمد نه، او هغه د نبي ﷺ نه: بيشکه هغه تکبير اووئيلو.

[٢٣٥]([2]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا الزُّبَيْدِيُّ. ح وحَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْأَزْرَقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ. ح وحَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ إِمَامُ مَسْجِدِ صَنْعَاءَ، حَدَّثَنَا رَبَاحٌ، عَنْ مَعْمَرٍ. ح وحَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، كُلُّهُمْ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ وَصَفَّ النَّاسُ صفوفهم، فخرج: "أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَتَّى إِذَا قَامَ فِي مَقَامِهِ، ذَكَرَ أَنَّهُ لَمْ يَغْتَسِلْ، فَقَالَ لِلنَّاسِ: مَكَانَكُمْ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى بَيْتِهِ، فَخَرَجَ عَلَيْنَا يَنْطُفُ رَأْسُهُ وَقَدِ اغْتَسَلَ، وَنَحْنُ صُفُوفٌ"، وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ حَرْبٍ، وَقَالَ عَيَّاشٌ فِي حَدِيثِهِ: فَلَمْ نَزَلْ قِيَامًا نَنْتَظِرُهُ حَتَّى خَرَجَ عَلَيْنَا وَقَدِ اغْتَسَلَ؛

**ترجمه**: د ابوهريرة نه روايت دې هغه وئيلی دی يوځل ودرولی شو مونځ، او جوړ کړل خلکو صفونه خپل، نو راووتلو رسول الله ﷺ تر دې چه اودريدلو په خپل ځائې کښې، هغه ذکر کړل چه هغه غسل اونه کړو وئې وئيل خلکو ته، ثابت شئ په خپل ځای. بيا واپس شو خپل

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨٦٣٤،١١٦٦٥) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الغسل ١٧ (٢٧٥)، والأذان ٢٥ (٦٣٩)، صحيح مسلم/المساجد ٢٩ (٦٠٥)، سنن النسائي/الإمامة ١٤ (٧٩٣)، ٢٤ (٨١٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٠٠،١٥٢٦٤، ١٥١٩٣، ١٥٢٧٥، ١٥٣٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣٧، ٢٥٩، ٢٨٣، ٣٣٨، ٣٣٩)، ويأتي مختصراً برقم: (٥٤١) (صحيح)

کور ته، راووتلو چه څخیدلی آوبه سر د هغه نه په تحقیق سره غسل کړی وو هغه او مونږ صفونه کښې ولاړ وو، او دا لفظ د ابن حرب دی، او وئیلی دي ابن عیاش په خپل حدیث کې: نو مونږ همیشه ولاړ وو مونږ انتظار کولو د هغه تردې چه راووتلو مونږ ته او په تحقیق سره غسل ئې کړی وو.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَجِدُ الْبِلَّةَ فِي مَنَامِهِ

### باب دي په بيان د سړي چې بيا موځي لوندوالی په خوب خپل کې

بلة په کسرې د باء سره دی او بلل بفتح الباء دي يعنی لوندوالې، يعنی انسان د خوب نه پاسی او په خپله جامه باندې لوندوالې بيا مومی نو په هغه باندې غسل واجب دې يا نه، د احتلام په کومو کومو صورتونو کښې غسل واجب کیږی او په کومو کښې نه دا مسئله تفصيل غواړی خصوصا د احنافو په نزد په دې کښې ډير تفصيل دې.

[٢٣٦]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ الْخَيَّاطُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ الْعُمَرِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرَّجُلِ يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا، قَالَ: يَغْتَسِلُ، وَعَنِ الرَّجُلِ يَرَى أَنَّهُ قَدِ احْتَلَمَ وَلَا يَجِدُ الْبَلَلَ، قَالَ: لَا غُسْلَ عَلَيْهِ، فَقَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ: الْمَرْأَةُ تَرَى ذَلِكَ، أَعَلَيْهَا غُسْلٌ؟ قَالَ: نَعَمْ، إِنَّمَا النِّسَاءُ شَقَائِقُ الرِّجَالِ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلی دی: تپوس اوشو د رسول الله ﷺ نه په باره د سړي کښې چه بيا موځي لوندوالی او ياد نه وي ورته احتلام، هغه اووئيل: غسل به کوي، او په باره د سړي کښې چهويني د هغه خو احتلام شوی دی او لوندوالی نه وي، نو هغه اووئيل: نشته غسل په هغه، نو آووئيل ام سليم ښځه چه دغه ويني نو په هغې غسل شته؟ هغه وفرمايل: آو، بيشکه ښځې په اصل خلقت او طبعيت کښې په مثل د سړو دي.

**تشريح**: ﴿ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– عَنِ الرَّجُلِ يَجِدُ الْبَلَلَ الخ ﴾ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه کوم سړې د پاسيدو نه پس په جامه باندې لوندوالې بيا مومی او احتلام هغه ته ياد نه وی نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په داسې سړی باندې غسل واجب دې، او د هغه سړی په باره کښې چه هغه ته د احتلام کيدل ياد وی خو لوندوالې بيا نه مومی نو د هغه په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په داسې سړی باندې غسل واجب نه دې. د بعض علماء کرامو لکه شعبی رحمه الله او ابراهيم نخعی رحمه الله مسلک دا دې چه په دې حديث کښې د بلل نه مراد مطلق لوندوالې دی که دهغې منی کيدل محقق وی او که نه وی، او د اکثرو علماء کرامو رائې دا ده چه ددې نه مراد د منی لوندوالې دې.

ځان پوهه کړه چه علامه شامی رحمه الله ددې مسئلې څوارلس شکلونه ذکر فرمائيلې دی چه دهغې تفصيل دا دې، ١: تيقن د منی، ٢: تيقن مذی، ٣: تيقن ودی، درې شکلونه د تيقن شو او څلور صورتونه د عدم تيقين او شک دی. ١: الشک بين الاولين (منی ومذی)

---

[1]): سنن الترمذي/الطهارة ٨٢ (١١٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٢ (٦١٣)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٦/٦)، سنن الدارمي/الطهارة (٧٩٠/٧٦) (حسن) إلا قول أم سليم: المرأة ترى...

۲: الشک بین الاخرین (مذی و ودی) ۳: الشک بین الاول والثالث (منی و ودی) ۴: الشک فی الثلاث یعنی د لوندوالی په باره کښې درې واړه خیالات وی کیدې شی چه منی وی، کیدې شی چه مذی وی، کیدې شی چه ودی وی، دا ټول اووهٔ صورتونه شو په دې کښې د هر یو دوه صورتونه دی تذکر د احتلام او عدم تذکر د احتلام، لهذا ټول څوارلس صورتونه شو اوس ددې حکم واورئ د تذکر احتلام په اووهٔ صورتونو کښې د یو نه علاوه په باقی ټولو صورتونو کښې غسل واجب دې او یو صورة د تیقین ودی دې په دې کښې امام صاحب او صاحبین متفق دی، او په عدم تذکر احتلام کښې دا تفصیل دې چه په یو صورت یعنی د تیقن منی په صورت کښې بالاتفاق غسل واجب دې او د تیقن غیر منی په صورتونو کښې بالاتفاق غسل واجب نه دې او هغه درې صورتونه دی، ۱: تیقن مذی، ۲: تیقن ودی، ۳: شک بین المذی والودی، او احتمال منی (چه دهغې درې صورتونه دی) کښې د طرفین په نزد غسل واجب دې، د امام ابویوسف رحمه الله په نزد واجب نه دې او هغه درې صورتونه دا دی، شک بین الاولین، شک بین الاول والثالث، شک فی الثلاث، حاصل دا چه د عدم تذکر په اووهٔ صورتونو کښې د امام ابویوسف رحمه الله په نزد صرف یو صورت یعنی تیقن منی کښې غسل دې په باقی شپږو کښې نه دې، او عند الطرفین تیقن منی او احتمال منی چه دهغې درې صورتونه دی په دې څلورو کښې هم غسل واجب دې دا تفصیل خو د احنافو په مذهب کښې دې

د شوافعو په نزد ټول درې صورتونه دی تیقن منی، تیقن غیر منی، او احتمال منی، د اول دواړو حکم ظاهر دې[1] او په دریم صورت کښې د هغوی په نزد اختیار دې په غسل او عدم غسل کښ، او هم دغه شان د حنابله په نزد دی خو هغوی د شک او احتمال په صورت کښې داسې وائی چه که قبل النوم د خروج مذی په اسبابو کښې څه سبب موندلې شوې وی نو بیا غسل واجب نه دې او که سبب خروج مذی نه وی نو غسل واجب دې او د مالکیانو په نزد د احتمال منی په سلسله کښې دا دی چه که شک وی په منی او باقی دواړو (یعنی مذی او ودی) نه په یو کښې نو بیا غسل واجب دې او که شک یوځائې په درې واړو کښې وی نو اوس چونکه احتمال منی ضعیف شو په دې وجه به غسل واجب نه وی، ددې ائمه ثلاثه مذهب صاحب منهل داسې لیکلې دې، او د ټولو نه دا ظاهریږی چه د هغوی په نزد د تذکر احتلام اوعدم تذکر احتلام ترمینځه هیڅ فرق نشته

## بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَرَى مَا يَرَى الرَّجُلُ

### باب دې په بیان د ښځې کې چې اووینی هغه چې وینې ئې سړی

مخکښې باب د احتلام رجل سره متعلق وو او دا د احتلام مراة سره متعلق دې، خو احتلام فی النساء نادر دې لکه چه په رجال کښې عدم احتلام نادر دې، کذا قالوا.

---

[1] ، لکن لا یذهب علیک ای ابن رسلان شارح ابی داؤد نقل مذهب الشافعی انه لو تیقن انه منی ولکن لم یذکر الاحتلام لایحب الغسل عنده،، لهذا د شوافعو د مذهب دې مزید تحقیق اوکړې شی.

[٢٣٧]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: قَالَ عُرْوَةُ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ أُمَّ سُلَيْمٍ الْأَنْصَارِيَّةَ هِيَ أُمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ، أَرَأَيْتَ الْمَرْأَةَ إِذَا رَأَتْ فِي النَّوْمِ مَا يَرَى الرَّجُلُ، أَتَغْتَسِلُ أَمْ لَا؟ قَالَتْ عَائِشَةُ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَعَمْ، فَلْتَغْتَسِلْ إِذَا وَجَدَتِ الْمَاءَ، قَالَتْ عَائِشَةُ: فَأَقْبَلْتُ عَلَيْهَا، فَقُلْتُ: أُفٍّ لَكِ، وَهَلْ تَرَى ذَلِكَ الْمَرْأَةُ؟ فَأَقْبَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: تَرِبَتْ يَمِينُكِ يَا عَائِشَةُ، وَمِنْ أَيْنَ يَكُونُ الشَّبَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَى عُقَيْلٌ، وَالزُّبَيْدِيُّ، وَيُونُسُ، وَابْنُ أَخِي الزُّهْرِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَوَافَقَ الزُّهْرِيَّ مُسَافِعٌ الْحَجَبِيُّ، قَالَ: عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وَأَمَّا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، فَقَالَ: عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ أُمَّ سُلَيْمٍ جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې، بيشکه ام سليم الانصاريه چه دا مور د انس بن مالک ده، هغې اووئيل: اې د الله رسوله! بيشکه الله تعالى حياء نه کوي د حق نه، خبر راکړه ماته که چرته ښځه اووينى خوب کښې هغه څه چه سړى ئې وينى ايا هغه به غسل کوي؟ عائشې اووئيل: وئيلى دي پيغمبر ﷺ، آو، غسل دې اوکړي کله چه اوبه بياموخې. اووئيل عائشې: ما ورته مخ کړو او مې ويل: تباهي دې وي تا لره ايا وينې ښځه دغه؟ نو مخامخ شو ماته رسول الله ﷺ او وئې وئيل: په خاورو دې ککړ شي ښي لاس ستا اې عائشې (مور پلار او دهغوى په اولاد کښى) مشابهت د کوم ځائې نه وي.

**تشريح:** ﴿ قوله إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ ﴾

ام سليم رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه داسې مسئله اوتپوسله کومه چه عرفا او طبعا قابل استحياء وه، خو چونکه په شريعت کښې په تحصيل علم کښې استحياء نشته په دې وجه هغوى په طور د تمهيد د خپل کلام په شروع کښې دا خبره اوکړه.

ځان پوهه کړه چه حياء د انفعال او د تاثر د قبيل نه دې چه دهغې نه بارى تعالى پاک دې په دې وجه علماء کرامو ددې جواب دا کړې دې چه دلته د استحياء لازمى معنى مراد ده يعنى ترک ا امتناع، ځکه چه د کوم څيز نه انسان شرميږى هغه ترک کوى، لهذا دلته لازمى معنى مراد شوه يعنى الله پاک د حق خبرې د ښکاره کولو يا د حق خبرې د تپوسلو نه منع نه کوى، بعضو په دې باندې داسې وئيلې دى چه ددې سوال او جواب هيڅ حاجت نشته ځکه چه دلته په حديث کښې د الله پاک نه د استحياء نفى کولې شى نه اثبات، جواب دا دې چه دلته دا ذکر دى چه الله پاک د حق نه استحياء نه فرمائى نو ددې نه په طور د مفهوم مخالف دا مستفاد کيږى چه د غير حق نه استحياء فرمائى، لهذا سوال او جواب صحيح دى فضول نه دى.

﴿ قَالَتْ عَائِشَةُ _ وَهَلْ تَرَى ذَلِكَ الْمَرْأَةُ ﴾ ام سليم رضي الله عنها چه کله د رسول الله ﷺ نه د احتلام مراة تپوس اوکړو نو په دې باندې عائشې رضي الله عنها کومه چه هلته موجود وه ډيره حياء

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٦٠٧(الف)، ١٦٧٣٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحيض ٧(٣١١، ٣١٣، ٣١٤)، سنن الترمذي/الطهارة ٩٠ (١٢٢)، سنن النسائي/الطهارة ١٣١ (١٩٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة (٦٠١)، موطا امام مالك/الطهارة ٢١ (٨٥)، مسند احمد (٦/٩٢)، سنن الدارمي/الطهارة ٧٥ (٧٩٠) (صحيح)

ورغله او ام سليم رضي الله عنها ته ئي خطاب كولو سره اوفرمائيل آيا زنانه هم دا څيز ليدلې شي.

علماء كرامو ليكلي دى چه اول خو په زنانو كښې احتلام نادر دې دويم دا چه عائشه رضي الله عنها په دې وخت كښې كم عمره وه په دې وجه هغې تعجب اوكړو په دې باندې علامه سيوطي رحمه الله ليكلي او دا هم ممكنه ده چه دا اووئيلي شي چه څنګه انبياء عليهم السلام د احتلام نه محفوظ وى هم دغه شان ازواج مطهرات هم د احتلام نه محفوظ وې او دا د هغوى د خصائصو نه ده، دا خبره علامه زرقاني او حافظ عراقي په دې وينا رد كړې ده چه ﴿الخصائص لا تثبت الا باحتمال﴾، مولانا عبد الحى رحمه الله په سعايه كښې په دې مسئلې باندې بحث كړې دې او هغوى خپل تحقيق دا ليكلې دې ﴿ انهن لا يحتلمن بالجماع بشخص اجنبى ﴾ نيز د احتلام اثر شيطاني كيدل هم متعين نه دى بلكه هغه كله د كثرت شبع، يا مرض، يا امتلاء اوعيه منى د وجې نه هم كيږى.

﴿ قوله تَرِبَتْ يَمِينُكِ يَا عَائِشَةُ ﴾ ددې لفظي معنى خو دا ده چه ستا لاسونه دې په خاورو باندې ككړ شي كومه چه كناية وى د فقر او احتياج نه خو د عربو خلقو عادت دې چه هغوى دا لفظ په غير د معنى اصلى نه استعمالوى، او په دې سره صرف نكير مقصود وى نه بد دعا هسى ابن العربى په شرح د ترمذى كښې ددې لفظ د معنى تحقيق او تشريح كښې د علماء كرامو لس اقوال ليكلي دى كوم چه حضرت شيخ په اوجز كښې نقل كړې دى.

**(مور او پلار كښې د يو سره د بچى دمشابهت وجه):**

قوله: ﴿ وَمِنْ أَيْنَ يَكُونُ الشَّبَهُ ﴾ الشَّبَهُ بفتحين او بكسر الشين وسكون الباء دواړو طريقو سره منقول دې يعني مشابهت او اشتراک د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ارشاد حاصل دا دې چه ماشوم چه كله د پلار او كله د مور مشابه وى ددې څه وجه ده؟ هم دا ده چه كله د سړى نطفه غالبه شي نو ماشوم د سړى مشابه وى او چه كله د زنانه نطفه غالبه شي نو ماشوم د مور مشابه وى نو هر كله چه د زنانه دپاره د منئ ثبوت پيدا شو نو بيا په احتلام كښې څه استبعاد دې، د صحيح مسلم په يو روايت كښې دى [1] چه كله ماء الرجل غالب وى په ماء المراة باندې نو ماشوم د خپلو ترونو مشابه وى، او چه كله ماء المراة غالب وى په ماء الرجل باندې نو هغه وخت مولود د خپلو ماماګانو مشابه وى، د مسلم په يو روايت كښې دى چه كله د سړى منى غالب شي نو ماشوم مذكر وى د الله پاک په حكم باندې او چه كله برعكس وى نو ماشوم مونث وى د الله پاک په حكم.

**ثبوت المنى والاختلاف فيه:**

خان پوهه ګړه چه په دې حديث كښې د زنانه دپاره اثبات د منى دې او د جمهور علماء كرامو په دې خبره باندې اتفاق دې، صرف د بعض فلاسفه په دې كښې اختلاف دې، پس ارسطاطاليس وائى چه د زنانه منى نه وى بلكه د زنانه په دم حيض كښې طاقت د

[1] ولفظه في رواية إذَا عَلاَ مَاؤُهَا مَاءَ الرَّجُلِ أَشْبَهَ الوَلَدُ أَخْوَالَهُ وَإِذَا عَلاَ مَاءُ الرَّجُلِ مَاءَهَا أَشْبَهَ أَعْمَامَهُ وفي رواية مَاءُ الرَّجُلِ أَبْيَضُ وَمَاءُ الْمَرْأَةِ أَصْفَرُ فَإِذَا اجْتَمَعَا فَعَلاَ مَنِيُّ الرَّجُلِ مَنِيَّ الْمَرْأَةِ أَذْكَرَا بِإِذْنِ اللهِ وَإِذَا عَلاَ مَنِيُّ الْمَرْأَةِ مَنِيَّ الرَّجُلِ آنَثَا بِإِذْنِ اللهِ وفي نسخة انثا)

تولید وی او ابو علی سینا وائی چه د زنانه رطوبت وی کوم چه د منی مشابه وی او فی الواقع هغه منی نه وی حضرت شیخ رحمه الله د سعایه نه نقل کولو سره لیکی چه د محققینو فلاسفه تحقیق هم دا دې چه د زنانه منی وی، بیا حضرت شیخ رحمه الله لیکی خو حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې د بعض علماء کرامو لکه ابراهیم النخعی نه د زنانو دپاره د منی د کیدو انکار نقل کړې دې اګرچه امام نووی رحمه الله په شرح د مهذب کښې ابراهیم نخعی رحمه الله طرف ته ددې قول نسبت کولو ته مستبعد وئیلې دی خو حافظ وائی چه ابن ابی شیبة دا قول د ابراهیم النخعی نه په جید سند سره نقل کړې دې.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَكَذٰلِكَ رَوَى عُقَيْلٌ وَالزُّبَيْدِيّ الخ ﴾ پورته په روایت کښې د ابن شهاب شاګرد یونس وو، دلته مصنف رحمه الله د یونس نه علاوه د ابن شهاب نور شاګردان ذکر کوی چه څنګه د ابن شهاب نه یونس روایت کوی هم دغه شان نور هم ډیر راویان دا حدیث د هغوی نه روایت کوی چه په هغې سره د یونس روایت ته تقویت حاصل شو او هغه راویان دا دی: زبیدی، عقیل، یونس (خو د یونس ذکر مکرر دې په دې وجه د هغوی روایت خو پورته راغلو) ابن اخی الزهری او ابن ابی الوزیر کوم چه ددی زهری نه په واسطه د مالک سره روایت کوی، واضحه دې وی چه په عبارت کښې د عن مالک تعلق صرف د ابن ابی الوزیر سره دې ددې نه مخکښې چه کوم راویان ذکر شوې دی د هغوی سره نه دې هغوی بغیر د واسطې د مالک نه براه راست د زهری نه روایت کوی.

## په روایتین کښې تعارض او دی په دفع کولو کښې د محدثینو رائې:

﴿ وَوَافَقَ الزُّهْرِيَّ مُسَافِعٌ الْحَجَبِيُّ ﴾ ځان پوهه کړه چه دلته په روایات حدیثیه کښې اختلاف دې چه د ام سلیم رضی الله عنها په سوال باندې رد کونکې عائشه رضی الله عنها ده یا سیده ام سلمه رضی الله عنها ..... د زهری په روایت کښې دا دی چه رد کونکې عائشه ده او ددې بالمقابل د هشام بن عروه په روایت کښې دا دی چه هغه ام سلمه رضی الله عنها ده، مصنف رحمه الله د زهری روایت ته د هشام په روایت باندې ترجیح ورکوی څکه چه مسافع حجبی د زهری موافقت کړې دې لهذا د زهری روایت موید او موکد شو، په دې دواړو روایتونو کښې چه کوم تعارض دې دهغې په جواب کښې د محدثینو رائې مختلف دی امام ابوداؤد رحمه الله د زهری روایت ته ترجیح ورکړې ده چه په هغې کښې رد کونکې عائشه رضی الله عنها ده او قاضی عیاض رحمه الله د هشام روایت ته ترجیح ورکړې ده چه په هغې کښې رد کونکې ام سلمه رضی الله عنها ده او امام نووی رحمه الله په ځائې د مسلک ترجیح جمع بین الروایتین اختیار فرمائیله ده د هغوی رائې دا ده چه دواړه روایتونه صحیح دی ګویا د ام سلیم رضی الله عنها د سوال په وخت ام سلمه او عائشه رضی الله عنها دواړه موجود وې دواړو په ام سلیم رضی الله عنها باندې نکیر کړې دې اوس دا د راویانو اختصار دې چه بعضو هغه ذکر کړې ده او بعضو دا، حافظ ابن حجر رحمه الله د امام نووی رحمه الله رائې غوره کړې ده، او علامه سندهی په حاشیه د نسائی کښې یو بله توجیه لیکلې ده یعنی احتمال د تعدد واقعه، ممکنه ده چه ام سلیم رضی الله عنها چه کله په اول ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو نو په هغه دواړو کښې یو نکیر اوکړو بیا خو ورځې پس د ام سلیم رضی الله عنها د نسیان واقع کیدو نه پس دوباره د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه

تپوس اوکړو نو هغه وخت په مجلس کښې بله زوجه وه نو هغې هم په دې سوال باندې نکیر اوفرمائیلو لهذا دواړه روایتونه په خپل خپل ځائې باندې صحیح دي.

## بَابٌ فِي مِقْدَارِ الْمَاءِ الَّذِي يُجْزِءُ فِي الْغُسْلِ

### باب دې په بیان داوبوکې هغه اندازه چې غسل پرې روا کیږي

### (ما قبل سره ربط او مناسبت):

د موجبات غسل بیان پوره شو اوس ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د غسل بیان شروع کوی، مصنف رحمه الله په طهارت صغری یعنی اودس کښې هم داسې کړې وو چه د اودس نه مخکښې ئې موجبات وضوء یعنی استنجاء او آداب استنجاء بیان فرمائیلي وو دهغې نه پس اودس، مصنف رحمه الله د غسل د کیفیت د بیان نه مخکښې مقدار دماء غسل بیانوی هم ددې قسم باب د ابواب الوضوء په شروع کښې راغلې دې، چه په هغې کښې د ماء وضوء مقدار بیان کړې شوې وو، مونږ هلته مقدار دماء غسل هم بیان کړې وو، لهذا ددوباره کلام کولو حاجت نشته

[٢٣٨]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ هُوَ الْفَرَقُ مِنَ الْجَنَابَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَى ابْنُ عُيَيْنَةَ نَحْوَ حَدِيثِ مَالِكٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَعْمَرٌ: عَنْ الزُّهْرِيِّ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَتْ: كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ، فِيهِ قَدْرُ الْفَرَقِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: الْفَرَقُ: سِتَّةَ عَشَرَ رِطْلًا، وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: صَاعُ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ خَمْسَةُ أَرْطَالٍ وَثُلُثٌ، قَالَ: فَمَنْ قَالَ ثَمَانِيَةُ أَرْطَالٍ؟ قَالَ: لَيْسَ ذَلِكَ بِمَحْفُوظٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَسَمِعْتُ أَحْمَدَ يَقُولُ: مَنْ أَعْطَى فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ بِرِطْلِنَا هَذَا خَمْسَةَ أَرْطَالٍ وَثُلُثًا، فَقَدْ أَوْفَى، قِيلَ: الصَّيْحَانِيُّ ثَقِيلٌ، قَالَ: الصَّيْحَانِيُّ أَطْيَبُ، قَالَ: لَا أَدْرِي.

**ترجمه:** د عائشي رضی الله عنها نه روایت دې بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم وو چه غسل به ئې کولو د یو لوښي نه۔ چه هغه فرق دی۔ د جنابت نه. وئیلی دي ابوداود: او روایت کړی دی ابن عیینة پشان د حدیث د مالک. وئیلی دي ابوداود: وئیلی دي معمر د زهري نه په دې حدیث کې: هغې اووئیل. وم چه غسل کولو ما او رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو لوښي نه چه په هغې کښې اوبه په اندازه د یو فرق وې. وئیلی دي ابوداود: ما اوریدلي دي د احمد بن حنبل نه چه وئیل یې: فرق شپاړس رطله وی، او ما اوریدلي دي د هغه نه چه وئیل یې: صاع د ابن ابي ذئب چه پنځه رطله او دریمه حصه وی، هغه اووئیل: چا چه اووئیل اته رطل وی؟ نو هغه اووئیل نه دی هغه محفوظ، هغه اووئیل: ما اوریدلي دي د احمد نه چا چه ورکړو په صدقة الفطر کښې زمونږ په دې رطل پنځه رطله او ثلث نو هغه پوره ورکړو، وئیلی شوي دي چه صیحاني درونډ دی، ابوداود اووئیل: صیحاني عمده کهجورې دی، هغه اووئیل: ماته نه ده معلومه.

**تشریح:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ ﴾ ددې حدیث راوی ابن شهاب

[1]): صحيح البخاري/الغسل ٢ (٢٥٠)، ١٥ (٢٧٢)، صحيح مسلم/الحيض ١٠ (٣٢١)، سنن النسائي/الطهارة ٥٨ (٧٢)، والغسل ٩ (٤٠٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٥ (٣٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٧، ١٧٣، ٢٣٠، ٢٦٥، سنن الدارمي/الطهارة ٦٨ (٧٧٧) (صحيح)

زهري دې هغوی نه روايت کونکې په اول سند کښې مالک او په دويم کښې کوم چه ددې ځائې نه بيانوی معمر دې، د زهري او د هغه د شاګردانو د روايت ترمينځه فرق دې چه د مالک په روايت کښې دا دی چه عائشې رضي الله عنها او رسول الله ﷺ دواړو به په يو فرق اوبو باندې غسل فرمائيلو، اوس يا خو دې داسې اوونيلې شی چه په اول روايت کښې غسل عائشه نه دې مذکور نو دهغې نفی هم نشته او په دويم روايت کښې د دواړو غسل صراحة ذکر دې، لهذا په اول روايت کښې به هم په دې باندې محمول کولې شی، يا دې داسې اوونيلې شی چه دا په اختلاف د اوقاتو او احوالو باندې محمول دې کله کله به رسول الله ﷺ په يو فرق اوبو باندې غسل فرمائيلو او کله به رسول الله ﷺ او عائشې رضي الله عنها دواړو.

وړاندې مصنف رحمه الله د فرق او صاع مقدار بيان فرمائيلې دې ددې تفصيلي بحث مونږ سره په ابواب الوضوء کښې تير شوې دې او په دې باندې تفصيلي کلام حضرت په بذل کښې فرمائيلې دې.

﴿ وَسَمِعْتُ أَحْمَدَ يَقُولُ مَنْ أَعْطَى فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ الخ ﴾ د امام احمد رحمه الله ددې کلام حاصل دا دې چه په حديث شريف کښې د صدقة الفطر مقدار يو صاع تمر بيان کړې شوې دې او صاع د يو مشهورې پيمانې نوم دې اوس که يو سړې ددې پيمانې په ذريعه صدقة الفطر ادا کوی نو بيا خو هيڅ د شک خبره نشته خو که څوک صدقة الفطر په ځائې د پيمانې د وزن په ذريعه پينځه رطل او ثلث رطله ادا کړی کوم چه د صاع وزن دې نو د هغه نه به هم صدقة الفطر ادا شی.

﴿ قِيلَ الصَّيْحَانِيُّ ثَقِيلٌ قَالَ الصَّيْحَانِيُّ أَطْيَبُ. قَالَ لاَ أَدْرِي ﴾ صيحانی[1] د يو خاص قسم کهجورې نوم دې کومه چه په عربو کښې مشهوره ده، چه کله زه په ١٣٩٣ هجری کښې اول ځل حج له تلې اوم نو هلته رسيدلو سره مې معلوم کړې وو چه آيا د کهجورې يو قسم صيحانی هم دې؟ نو خلقو اوونيل چه او يو خاص قسم دې، پس ما هغه اخستلې وې کومې چه د عام کهجورو نه لږې ګرانې وې، او عمده قسم شمار کيدلې

**تشريح حديث:**

د امام احمد رحمه الله نه چا تپوس اوکړو چه تاسو اوس اوفرمائيل چه که د وزن په اعتبار سره پينځه رطل او ثلث رطل کهجورې ادا کړې شی نو کافی دی، حال دا چه صيحانی کهجورې درنې وی او دهغې په پينځو رطلو او ثلث رطل سره پيمانه يعنی صاع نه ډکيږی اوس بيان

---

[1] د صيحانی وجه تسميه صاحب قاموس دا ليکلې ده چه په اصل کښې صيحانی د يو ګډ نوم دې کوم چه به د کهجورې ددې قسم اونې سره تړلې شو، په دې مناسبت سره هم دې اونې ته صيحانی وئيل شروع شو، او حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې د لسان العرب په حوالې سره ليکلې دی چه په يو غير صحيح حديث کښې راغلې دی چه صيحانی کهجورې ته صيحانی په دې وجه وائی چه دا د صياح نه دې چه دهغې معنی د وينا او چغو وهلو ده، شوې داسې وه چه يو ځل رسول الله ﷺ او علی رضي الله عنه د يوې کهجورې د اونې په خوا کښې ناست وو نو دې اونې بلې اونې ته آواز کولو سره اوونيل ﴿ هذا النبي المصطفي وعلي المرتضي ﴾ ګويا اصل ماده ددې صياح ده د نسبت په وخت تغير کولو سره صيحانی وئيلې شی)

کړئ چه په دې سره به هم واجب ادا کيږي يا نه؟ ځکه چه په حديث کښې خو د يو صاع ورکولو حکم دې او دلته د وزن په اعتبار سره يو صاع دې خو صورة وکيلا هغه د يو صاع نه کم دی په دې باندې امام صاحب رحمه الله اوفرمائيل ﴿ الصيحانى اطيب ﴾ يعنى آيا صيحانى غوره کهجورې دی؟ دا سوال هغوی په ظاهر کښې په دې وجه اوکړو که صيحانى کهجوره غوره وی نو بيا به په دې سره صدقة الفطر يقينا ادا شی، خو دا خبره کومه چه د هغوی په ذهن کښې راغله د سوال مطابق نه وه پس امام صاحب چه کله په سوال کښې دوباره غور اوکړو نو بيا پوهه شو چه د سائل سوال خو څۀ بل څه دې په دې کښې په عمده او غير عمده سره هيڅ فرق نه پريوځی په دې وجه د خپلې خبرې نه رجوع کولو سره امام صاحب اوفرمائيل ﴿ لا ادرى ﴾ يعنى ددې سوال جواب ماته مستحضر نه دې، ددې کلام په شرح کښې يو بل احتمال هم دې هغه دا چه امام احمد رحمه الله چه کله سوال اوفرمائيلو چه ﴿ الصيحانى اطيب ﴾ نو په دې باندې مجيب اوفرمائيل ﴿ لا ادرى ﴾ چه دا خو ماته پته نشته چه هغه عمده دی يا غير عمده، او بيا هم په دې باندې خبره ختم شوه، وړاندې معلومه نه ده چه بيا به امام صاحب څه فيصله فرمائيلې وی ګويا د ﴿ لا ادرى ﴾ په قائل کښې دوه احتمالات شو يو دا چه ددې قائل خپله امام احمد رحمه الله دې، دويم دا چه ددې قائل مخاطب يعنى سائل دې حضرت په بذل کښې اول معنى اختيار کړې ده او ابن رسلان دويمه معنى ذکر کړې ده.

فقهی مسئله دا ده چه حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه د احنافو په نزد په دې صورت کښې صدقة الفطر نه ادا کيږی، او په منهل کښې د بقيه ائمه ثلاث مذهب هم دا ليکلې شوې دې. فقهی مسئله دا ده چه حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه د احنافو په نزد به په دې صورت کښې صدقة الفطر نه ادا کيږی او په منهل کښې ئې د باقی درې امامانو مذهب هم دا ليکلې دې.

## بَابُ الْغُسْلِ مِنَ الْجَنَابَةِ

### باب دې په بيان د غسل کې د جنابت نه

دا باب د کيفيت غسل په باره کښې دې او ډير اوږد دې، او د کيفيت وضوء خو ددې نه هم زيات اوږد وو په دې باب کښې مصنف رحمه الله يولس احاديث ذکر کړې دی، امام نسائی رحمه الله په دې سلسله کښې ډير ابواب قائم کړې دی، مکرر سه مکرر ابواب قائمولو سره ئې کيفيت د غسل ښه واضح فرمائيلې دې، زه خو وايم چه د تراجم دا تکثير او هر هر جزء باندې بيل بيل باب قائم کول، شغف بالحديث، د حديث پاک عظمت او د حب رسول ﷺ په بناء باندې دې.

اعد ذكر نعمان لنا ان ذكره :: هو المسک ما کررته يتضوع

[٢٣٩][1] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ صُرَدٍ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، أَنَّهُمْ ذَكَرُوا عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغُسْلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

[1]: صحيح البخاري/الغسل ٤ (٢٥٤)، صحيح مسلم/الحيض ١١ (٣٢٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٥٨ (٢٥١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٥ (٥٧٥)، (تحفة الأشراف: ٣١٨٦) (صحيح)

وَسَلَّمَ: "أَمَّا أَنَا، فَأُفِيضُ عَلَى رَأْسِي ثَلَاثًا، وَأَشَارَ بِيَدَيْهِ كِلْتَيْهِمَا".

**ترجمه:** د جبیر بن مطعم نه روایت دې چه هلکو ذکر کړو د رسول الله ﷺ په نزد غسل د جنابت، نو اووئیل رسول الله ﷺ هر چه زه یم نو اړوم په سر باندې درې لپې. او اشاره ئې اوکړه په خپلو دواړو لاسونو لپه جوړولو سره.

**تشریح:** ۱: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ- قوله أَمَّا أَنَا فَأُفِيضُ عَلَى رَأْسِي ثَلَاثًا ﴾ یعنی یو ځل بعض صحابه کرامو ﷺ دنبی علیه السلام په مجلس کښې د غسل جنابت مذاکره فرمائیله، هر یو د خپل غسل طریقه بیانوله. رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه زما طریقه خو دا ده چه زه په غسل کښې په خپل سر باندې صرف درې کرته اوبه بیوم. ابن رسلان لیکی چه د ظاهر الفاظو نه معلومیږی چه صحابه کرامو ﷺ به د دریو نه زیات عدد ذکر کړې وی یعنی چا به وئیلې وی چه زه ئې پنځه کرته بیوم او چا به وئیلې وی زه اووۀ کرته، په دې باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو ﴿ اما انا فافیض علی راسی ثلثا ﴾ انا په اصل کښې د تفصیل دپاره راځی کوم چه تعدد غواړی دلته په روایت کښې د مدخول اما صرف یو شق ذکر شوې دې ددې شق ثانی د مقام نه په پوهه کښې راځی یعنی ﴿ اما انتم فتفعلون کذا وکذا ﴾

ځان پوهه کړئ چه ددې حدیث نه په غسل کښې تثلیث غسل راس مستحب کیدل معلومیږی، امام نووی ﷺ فرمائی چه په غسل راس کښې د تثلیث استحباب متفق علیه دې زمونږ علماء کرامو باقی بدن هم په دې باندې قیاس کولو سره په دې کښې هم تثلیث نه مستحب وئیلې دې او هم دغه شان په اودس باندې د قیاس کولو تقاضا هم دا ده بلکه غسل په نسبت د اودس د تثلیث زیات مستحق دې ځکه چه د اودس بناء په تخفیف باندې ده خو په دې کښې د قاضی ماوردی شافعی اختلاف دې هغوی د باقی بدن تثلیث مستحب نه منی، صاحب منهل لیکی چه امام نووی ﷺ چه کوم مسلک د شوافعو لیکلې دې هم هغه د احنافو او حنابله هم دې، او د مالکیانو په نزد صرف په غسل راس کښې تثلیث مستحب دې په باقی بدن کښې نه هم دغه شان د غسل په شروع کښې چه کوم اودس کولې شی د هغوی په نزد په دې کښې هم تثلیث مستحب نه دې بلکه د اودس د اندامونو غسل صرف مرة مرة دې. (کما فی الشرح الکبیر)

[۲۴۰](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ حَنْظَلَةَ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، دَعَا بِشَيْءٍ مِنْ نَحْوِ الْحِلَابِ، فَأَخَذَ بِكَفَّيْهِ، فَبَدَأَ بِشِقِّ رَأْسِهِ الْأَيْمَنِ ثُمَّ الْأَيْسَرِ، ثُمَّ أَخَذَ بِكَفَّيْهِ، فَقَالَ بِهِمَا عَلَى رَأْسِهِ".

**ترجمه:** د عائشې ﷺ نه روایت دې هغې وئیلی دی: وو رسول الله ﷺ چه کله به ئې غسل

(1): صحیح البخاري/الغسل ٦ (٢٥٨)، صحیح مسلم/الحیض ٩ (٣١٨)، ١٠ (٣٢٠)، سنن النسائي/الطهارة ١٥٣ (٢٤٥)، ١٥٦ (٢٤٨)، ١٥٧ (٢٤٩)، والغسل ١٦ (٤٢٠)، ١٩ (٤٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٤٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ٧٦ (١٠٤)، موطا امام مالك/الطهارة ١٧ (٦٧)، مسند احمد (٦/٩٤، ١١٥، ١٤٣، ١٦١، ١٧٣)، سنن الدارمي/الطهارة ٦٦ (٧٧٥) (صحیح)

کولو د جنابت نه نو راوبه ئي غوښتلو يولوښي په اندازه د لشولو د لوښي د اوښي، نو راوبه ئي خستي اوبه په دواړو ورغوو نو شروع به ئي اوکړه په طرف د سر ښي باندې، بيا په ګس باندې، بيابه ئي راوخستي اوبه په دواړو ورغوو، نو هغه اووئيل: دواړه به ئي واچولې په خپل سر باندې.

**تشريح:** ٢: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى - إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ دَعَا بِشَيْءٍ نَحْوِ الْحِلَابِ الخ ﴾ يعنى چه کله به رسول الله ﷺ د غسل اراده فرمائيله نو په داسې لوښي کښې به ئي اوبه راغوښتلې چه د حلاب په شان به وو، حلاب وائي هغه لوښي ته چه په هغې کښې د اوښې د يو وخت پئ ځائې شي چه دهغې مقدار ښکاره دې چه د هغوی په نزد به معروف او متعين وی، ﴿ قوله فقال بهما على راسه ﴾ يعنى په دواړو لاسونو کښې اوبه اخستلو سره ئي په سر باندې بهيولې، لفظ قال په ډيرو معنو باندې استعماليږي کومه معنى چه د مقام او محل مناسب وی هغه اخستلې شي، پس ﴿ قال بيده وقال برجله ﴾ معنى دا کيدې شي چه په لاس ئي اونيولو او په خپلو خپو لاړو.

### په حديث الباب باندې د امام بخاری رحمه الله يو خاص ترجمه:

ځان پوهه کړه چه امام بخاری رحمه الله د لفظ جلاب د وجې نه په دې حديث باندې په صحيح بخاری کښې ترجمه قائم کړې ده ﴿ باب من بداء بالحلاب او الطيب ﴾ او د هغوی دا ترجمه د بخاری شريف په هغه مشهور تراجمو کښې ده کوم چه معرکة الاراء او ګران ګڼړلې کيږي، د ترجمة الباب الفاظ په ظاهر کښې ددې خبرې مشعٔر دی چه د غسل ابتداء په حلاب او طيب سره کيدل پکار دی ګويا حلاب يو داسې څيز دې کوم چه د طيب د قبيلې نه دې امام خطابی رحمه الله فرمائی غالبا امام بخاری رحمه الله ته وهم راغلې دې او د هغوی ذهن دحلاب نه د محلب طرف ته لاړو او محلب واقعی يو داسې څيز وی کوم چه په لاس او بدن وينځلو کښې استعمالولې شی، خو په حديث کښې د محلب ذکر نشته بلکه د حلاب دې کوم چه د يو ظرف نوم دې، حضرت په بذل کښې د خطابی رحمه الله نه هم دومره نقل فرمائيلې دې هسې خو شارحينو د بخاری په دې باندې تفصيلی کلام فرمائيلې دې. حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې ليکلې دی چه حافظ رحمه الله فرمائی د يو جماعت رائې ده چه د امام بخاری رحمه الله نه په دې کښې وهم واقع شوې دې، او هيڅ انسان داسې نشته چه د غلطئ نه محفوظ وی (او غلطی هم هغه ده د کومې ذکر چه پورته د خطابی په کلام کښې راغلې دې) او د بعض شارحينو رائې دا ده چه په حديث کښې تصحيف واقع شوې دې، صحيح حلاب نه دې بلکه جلاب په ضمې د جيم او د لام په تشديد سره دې يعنی ماء الورد کوم چه يقينا د طيب د قبيل نه دې او د بعض شراح بخاری رائې دا ده چه د امام بخاری رحمه الله مقصود په دې ترجمة الباب سره استعمال د طيب قبل الغسل لره ثابتول نه دی بلکه دهغې نفی مقصود ده چه د غسل نه مخکښې استعمال طيب ثابت نه دې.

[٢٣١](١) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ مَهْدِيٍّ، عَنْ زَائِدَةَ بْنِ قُدَامَةَ، عَنْ صَدَقَةَ، حَدَّثَنَا جُمَيْعُ بْنُ عُمَيْرٍ أَحَدُ بَنِي تَيْمِ اللهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ أُمِّي وَخَالَتِي عَلَى عَائِشَةَ فَسَأَلَتْهَا إِحْدَاهُمَا: كَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ عِنْدَ الْغُسْلِ؟ فَقَالَتْ عَائِشَةُ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ يُفِيضُ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ، وَنَحْنُ نُفِيضُ عَلَى رُءُوسِنَا خَمْسًا مِنْ أَجْلِ الضَّفْرِ".

**ترجمه**: بيان كړى دى جميع بن عمير يو د بني تيم الله بن ثعلبه نه دى، هغه اووئيل: زه داخل شوم سره د خپلې مور او خالې نه په عائشې باندې، نو يوې تربنه تپوس اوكړو تاسو به د غسل په وخت كښې څنګه كول؟ نو عائشې اووئيل: وو رسول الله ﷺ چه اودس به ئې كولو پشان د اودس د مانځه، بيابه ئې اړولې په خپل سر باندې اوبه درې ځله، او مونږ به اړولې په خپلو سرونو باندې پنځه ځل د وجې د كمڅو نه.

**تشريح**: ٣: ﴿ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ – وَنَحْنُ نُفِيضُ عَلَى رُءُوسِنَا خَمْسًا مِنْ أَجْلِ الضَّفْرِ ﴾

سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه رسول الله ﷺ به په خپل سر مبارك باندې درې كرته اوبه بهيولې او مونږ يعنې د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات به د ويښتو د كمسو د وجې نه پنځه كرته اوبه بهيولې.

په دې حديث باندې حضرت په بذل كښې خو هيڅ اشكال نه دې فرمائيلې بلكه دا ئې ليكلې دى چه په ظاهر كښې به هغوى احتياطاً داسې كول چه اوبه ئې په ښه طريقې سره د ويښتو ويخونو ته اورسيږى او حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې ليكلې دى چه د عائشې رضي الله عنها مراد دا دې چه كله كله به مونږ داسې كول ګيني دا حديث به د هغه حديث خلاف شى كوم چه ددې نه په وړاندې باب كښې راروان دې چه په هغې كښې دا دى چه رسول الله ﷺ ام سلمه رضي الله عنها ته اوفرمائيل ﴿ انما يكفيك ان تحثى عليك ثلاث حثيات ﴾ يعنى د زنانه دپاره دا كافى ده چه د غسل په وخت كمسئ نه پرانيزى او په خپل سر باندې دې درې لپې اوبه واچوى، لهذا اصل خو تثليث دې او دې حديث متعلق به دا وئيلې شى چه دا د هغوى خپل فعل وو، د رسول الله ﷺ د طرف نه ددې حكم نه وو او يا به دا اووئيلې شى چه دا حديث ضعيف دې ځكه چه په دې كښې يو راوى جميع بن عمير دې كوم چې متكلم فيه دې، والله تعالى اعلم.

[٢٣٢](٢) حدثنا سليمان بن حرب الواشحي. ح حَدَّثَنَا وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، قَالَ سُلَيْمَانُ: يَبْدَأُ فَيُفْرِغُ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: غَسَلَ يَدَيْهِ يَصُبُّ الْإِنَاءَ عَلَى يَدِهِ الْيُمْنَى، ثُمَّ اتَّفَقَا: فَيَغْسِلُ فَرْجَهُ، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: يُفْرِغُ عَلَى شِمَالِهِ وَرُبَّمَا كَنَتْ عَنِ الْفَرْجِ، ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ يُدْخِلُ يَدَيْهِ فِي الْإِنَاءِ فَيُخَلِّلُ شَعْرَهُ، حَتَّى إِذَا رَأَى أَنَّهُ قَدْ أَصَابَ الْبَشْرَةَ أَوْ أَنْقَى الْبَشْرَةَ أَفْرَغَ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثًا، فَإِذَا فَضَلَ فَضْلَةٌ صَبَّهَا عَلَيْهِ".

---

[1]: سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٤ (٥٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٥٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ١٧(٦٧)، مسند احمد (١٨٨/٦)، سنن الدارمي/الطهارة ٦٦ (٧٧٥) (ضعيف جداً)

[2]: صحيح البخاري/الغسل ٩ (٢٦٢)، صحيح مسلم/الحيض ٩ (٣١٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٧٧٣، ١٦٨٦٠) (صحيح)

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلي دي: وو رسول الله ﷺ چه کله به ئې غسل کولو د جنابت نه (ويلي دي سليمان) شروع به ئې کوله نو اړولې به ئې په ښې لاس په ګس لاس باندې. او وئيلي دي مسدد: وئې وينځل دواړه لاسونه چه اړولې به ئې اوبه په خپل ښي لاس، بيا دواړه متفق شوي دي: نو وينځلو به ئې خپل عورت. او وئيلي دي مسدد: اړولې به ئې په ګس لاس، او کله به ئې کنايه کوله د فرج نه، بيا به ئې اودس کولو پشان د اودس د مانځه، بيا به ئې دواړه لاسونه ننوېستل په لوښي کښې، نو خلال د ويختو به ئې اوکړو، تردې چه هغه ته به معلومه شوه چه بيشکه اوبه هغه پوستکې ته ورسيدې، او يايې صفا کړو پوستکی، راوابه ئې ړولې په خپل سر باندې درې ځل اوبه، بيابه چې کومې اوبه باقي پاتې شوې نو هغه به په خپل ځان واړولې.

**تشريح حديث**:

**﴿ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ – قَالَ سُلَيْمَانُ يَبْدَأُ فَيُفْرِغُ مِنْ يَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ. وَقَالَ مُسَدَّدٌ غَسَلَ يَدَيْهِ الخ ﴾** په دې حديث کښې عائشه رضي الله عنها د غسل جنابت په سلسله کښې د رسول الله ﷺ معمول بيان فرمائی د غسل کيفيت مسنونه کوم چه په احاديثو کښې راغلې دې. ددې حاصل دا دې چه کله به رسول الله ﷺ د غسل جنابت اراده فرمائيله نو اول به ئې دواړه لاسونه وينځل ددې نه پس به ئې استنجاء بالماء فرمائيله، او په بعض رواياتو کښې دی **﴿ فيغسل مذاکيره ﴾** يعنی د محل استنجاء نه چاپيره فخذين او اصول فخذين وغيره باندې به چه کوم نجاست وو هغه به رسول الله ﷺ زائل کولو بيا به ئې لاس وينځلو سره اودس فرمائيلو ددې نه پس به ئې اول په سر باندې درې کرته اوبه اچولې او بيا به ئې په باقی بدن باندې اوبه بهيولې.

د دې نه پس تاسو ځان پوهه کړئ چه د مصنف رحمه الله په دې حديث کښې دوه استاذان دی سليمان او مسدد ددې دواړو استاذانو الفاظو کښې چه کوم فرق دې مصنف رحمه الله هغه بيانوی د سليمان په روايت کښې دی **﴿ يبداء فيفرغ بيمينه ﴾** يعنی رسول الله ﷺ به غسل يدين داسې فرمائيلو چه اول به ئې په لوښي کښې په ښی لاس باندې اوبه اخستلو سره په ګس اچولې او بيا به ئې دواړه لاسونه وينځل، او مسدد اولا خو غسل يدين مجملا ذکر کړو او وې وئيل **﴿ غسل يديه ﴾** ددې نه پس ئې چه د غسل يدين کوم کيفيت بيان کړو هغه د سليمان د بيان کړې شوی کيفيت نه لږ مختلف دې، د سليمان د روايت نه خو په ظاهر کښې معلوميږی چه رسول الله ﷺ د اوبو اخستلو دپاره ادخال يد فی الاناء اوفرمائيلو، او د مسدد د روايت نه معلوميږی چه په ځائې د ادخال يد ئې اضغاء اناء اوفرمائيلو يعنی لوښې ښکته کولو سره ئې په لاس باندې اوبه واچولې.

**﴿ قوله ثُمَّ اتَّفَقَا فَيَغْسِلُ فَرْجَهُ ﴾** يعنی سليمان او مسدد دواړو د غسل يدين د ذکر کولو نه پس اووئيل **﴿ فيغسل فرجه ﴾** چه دهغې نه استنجاء بالماء مراد ده بيا وړاندې مصنف رحمه الله فرمائی چه مسدد کيفيت د استنجاء هم بيان کړو **﴿ يفرغ علی شماله ﴾** يعنی د استنجاء په وخت به رسول الله ﷺ په ښی لاس سره په ګس لاس باندې اوبه اچولې.

**﴿ قوله وَرُبَّمَا كَنَتْ عَنِ الْفَرْجِ ﴾** مسدد وائی چه عائشي رضي الله عنها به لفظ فرج خو کله صراحة

ذکر فرمائیلو او کله کنایة، پس د مسلم په روایت کښې دی ﴿ ثم صب الماء علی الاذی الذی به ﴾ دا د الفاظ متن تشریح شوه کومه چه یقینا قابل اعتناء ده.

﴿ قوله ثم یتوضاء وضوءه للصلوة ﴾ یعنی د استنجاء وغیره د فراغت نه پس به رسول اللهﷺ په شروع کښې اودس فرمائیلو د مانځه والا اودس.

### په ابتداء د غسل کښې د اودس متعلق اختلافات:

څان پوهه کړه چه په وضوء قبل الغسل کښې درې مسئلې اختلافی دی، اول ددې حکم، دویم دا چه دا اودس به کامل وی او که په دې کښې به غسل رجلین موخر کولې شی، ثالث دا چه په دې اودس کښې به مسح د سر هم وی یا نه.

### اختلاف اول:

د جمهورو علماء کرامو په نزد دا اودس سنت دې او د داؤد ظاهری په نزد واجب دې، او د امام احمدؒ هم یو روایت د وجوب دې چه دهغې تحقیق به ددې نه په وړاندې باب باب الوضوء قبل الغسل کښې راځی.

### اختلاف ثانی:

په دې سلسله کښې روایات هم مختلف دی او د علماء کرامو اقوال هم، د عائشېؓ ددې روایت نه تکمیل وضوء په فهم کښې راځی او د میمونېؓ روایت کوم چه ددې نه وړاندې راروان دې په هغې کښې تاخیر رجلین ذکر شوې دې، امام نوویؒ په شرح د مسلم کښې فرمائی چه د عائشېؓ روایات کوم چه په صحیحین کښې دی دهغې د ظاهر نه تکمیل وضو مستفاد کیږی او د اکثر روایات میمونه نه تاخیر غسل قدمین معلومیږی او هغوی دا هم لیکلې دی چه د امام شافعیؒ قول اصح او اشهر اولویت د تکمیل وضوء دې هم دغه شان علامه زرقانی مالکیؒ فرمائی، د امام مالکؒ او امام شافعیؒ مذهب تکمیل وضوء دې یعنی عدم تاخیر د غسل قدمین او د حنابله په نزد په دې کښې دوه روایتونه دی، کما فی المغنی. او د احنافو په نزد په دې مسئله کښې درې اقوال دی، ۱: قول مختار د اکثرو په نزد کوم چه په متون احناف کښې ذکر دې هغه اولویت تاخیر دې مطلقا، ۲: عدم تاخیر مطلقا، ۳: که د غسل ځائې مستنقع الماء وی نو بیا خو تاخیر دې کینې تقدیم دې.

### اختلاف ثالث:

په دې وضوء کښې مسح راس شته او که نه؟ د جمهور علماء کرامو او ائمه اربعه په نزد شته خو د حسن بن زیاد او امام صاحبؒ نه یو روایت دې چه په دې اودس کښې مسح راس نشته. امام نسائیؒ په دې مسئله باندې مستقل ترجمه قائم کړې ده، ﴿باب ترک مسح الراس فی الوضوء من الجنابة ﴾ او په دې باب کښې هغوی د عائشېؓ او د عبدالله بن عمرؓ هغه روایت ذکر فرمائیلې دې ـــــ ﴿ حتی اذا بلغ راسه لم یمسح وافرغ علیه الماء ﴾ خو چونکه په دیرو روایاتونو کښې ﴿ یتوضاء وضوءه للصلوة ﴾ وارد دې په دې وجه جمهور علماء کرامو هم هغه اختیار کړې دې، او د نسائی ددې روایت په باره کښې دا وئیلې کیدې شی چه ممکن ده

دا د بیان جواز دپاره وی کله کله رسول الله ﷺ داسې هم کړې دی. (کذا قال السندی فی الحاشیة)

﴿ قوله فَيُخَلِّلُ شَعْرَهُ ﴾ علامه زرقانی لیکلې دی چه په غسل کښې تخلیل شعر راس بالاتفاق غیر واجب دې مګر دا چه د سر ویښته د یو څیز سره ملبد وی یعنی یو غوړ څیز ورپورې لګی چه په هغې سره بغیر د تخلیل د اوبو نه خلال ویښتو ته او نه رسی خو تخلیل لحیه فی الغسل مختلف فیه دې چه دهغې بیان په ابواب الوضوء کښې تیر شوې دې.

﴿ قوله قد اصاب البشرة ﴾ دا لفظ بفتحین دې ددې معنی د انسان د ظاهری څرمنې ده صاحب د عون المعبود ته دلته وهم پیدا شوې دې هغوی دا بکسر الموحدة وسکون الشین ضبط کړې دې دا صحیح نه دی، د بشر بالکسر معنی د طلاقة الوجه یعنی د رونړ تندی ده هم دغه شان وړاندې لفظ د فضلة صاحب د عون په ضمې د فاء سره ضبط کړې دې دا هم صحیح نه دې دا لفظ بفتح الفاء دې، کما ضبطه فی البذل، البته فضالة بضم الفاء دې.

[٢٤٣]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ الْبَاهِلِيُّ، حَدَّثَنَا، مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَدِيٍّ، حَدَّثَنِي سَعِيدٌ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ النَّخَعِيِّ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَغْتَسِلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، بَدَأَ بِكَفَّيْهِ فَغَسَلَهُمَا، ثُمَّ غَسَلَ مَرَافِغَهُ وَأَفَاضَ عَلَيْهِ الْمَاءَ، فَإِذَا أَنْقَاهُمَا أَهْوَى بِهِمَا إِلَى حَائِطٍ، ثُمَّ يَسْتَقْبِلُ الْوُضُوءَ وَيُفِيضُ الْمَاءَ عَلَى رَأْسِهِ".

**ترجمه**: د عائشې رضی الله عنها نه روایت دی وو رسول الله ﷺ چه کله به ئې اراده د غسل اوکړه د جنابت نه شروع به ئې په دواړو ورغوو نو دواړه به ئې اووینځل، بیابه ئې وینځل هغه ځایونه چه اوبه ورته په اسانۍ نه رسېږي، او اوبه به ئې پرې واړولې، چه کله به ئې ښه پاک کړل نو قصد به ئې اوکړو په دواړو سره دیوال ته، بیابه ئې اودس کولو، او اوبه به ئې اړولې په خپل سر.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ الْبَاهِلِيُّ - ثُمَّ غَسَلَ مَرَافِغَهُ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ به په غسل کښې د غسل کفین نه شروع کوله ددې نه پس به ئې غسل مرافغ فرمائیلو، اصل کښې ددې نه مراد استنجاء بالماء ده لکه چه په روایاتو کښې مشهوره ده دا د رفغ جمع ده، مرافغ وائی مغابن ومطاوی بدن ته یعنی مواضع عرق او د وسخ بدن هغه حصه چرته چه خوله او خیرې جمع کیږی لکه ابطین او اصول فخذین او دلته ترې نه مراد فرج او اوصول فخذین دی په یو روایت کښې دی ﴿ اذا التقی الرفغان وجب الغسل ﴾ ای الفرجان والختانان.

﴿ قوله وَأَفَاضَ عَلَيْهِ الْمَاءَ ﴾ ددې روایت په الفاظو کښې دلته لږ وړانې معلومیږی حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه په ظاهره د روایت په الفاظو کښې تقدیم او تاخیر دې، د بنده رائې دا ده کومه چه حضرت هم احتمالا بیان فرمائیلې ده، د علیه ضمیر په تاویل د مذکور د مرافغ طرف ته راجع دې او تردې ځائې پورې د استنجاء بیان پوره شو. وړاندې په ﴿ فاذا انقاهما ﴾ د غسل یدین ذکر دې حاصل دا دې چه اول رسول الله ﷺ غسل مرافغ یعنی استنجاء بالماء اوفرمائیله او ددې نه پس ئې بیا غسل یدین اوکړو او د غایة تنظیف دپاره

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٩٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧١/٦) (صحیح)

ئې خپل لاسونه په دیوال یعنی خاورو پورې راښکل په دې صورت کښې په عبارت کښې د تقدیم او تاخیر منلو ضرورت نشته.

[٢٣٤]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ شَوْكَرٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ عُرْوَةَ الْهَمْدَانِيِّ، حَدَّثَنَا الشَّعْبِيُّ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: "لَئِنْ شِئْتُمْ لَأُرِيَنَّكُمْ أَثَرَ يَدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَائِطِ حَيْثُ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ".

**ترجمه:** عائشې رضی الله عنها وئیلی دی: که چېرې ستاسو خوښه وي نو زه به خامخا وښایم تاسو ته اثر د لاس د رسول الله ﷺ په دیوال کښې په هغه وخت کښې چه هغه به غسل کولو د جنابت نه.

[٢٣٥]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ، عَنْ خَالَتِهِ مَيْمُونَةَ، قَالَتْ: "وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا يَغْتَسِلُ بِهِ مِنَ الْجَنَابَةِ، فَأَكْفَأَ الْإِنَاءَ عَلَى يَدِهِ الْيُمْنَى فَغَسَلَهَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا، ثُمَّ صَبَّ عَلَى فَرْجِهِ فَغَسَلَ فَرْجَهُ بِشِمَالِهِ، ثُمَّ ضَرَبَ بِيَدِهِ الْأَرْضَ فَغَسَلَهَا، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، ثُمَّ صَبَّ عَلَى رَأْسِهِ وَجَسَدِهِ، ثُمَّ تَنَحَّى نَاحِيَةً فَغَسَلَ رِجْلَيْهِ، فَنَاوَلْتُهُ الْمِنْدِيلَ فَلَمْ يَأْخُذْهُ وَجَعَلَ يَنْفُضُ الْمَاءَ عَنْ جَسَدِهِ"، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِإِبْرَاهِيمَ، فَقَالَ: كَانُوا لَا يَرَوْنَ بِالْمِنْدِيلِ بَأْسًا، وَلَكِنْ كَانُوا يَكْرَهُونَ الْعَادَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مُسَدَّدٌ: قُلْتُ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ دَاوُدَ: كَانُوا يَكْرَهُونَهُ لِلْعَادَةِ، فَقَالَ: هَكَذَا هُوَ، وَلَكِنْ وَجَدْتُهُ فِي كِتَابِي هَكَذَا.

**ترجمه:** حدیث بیان کړی دی ابن عباس د خپلې خالې میمونې نه، هغې وئیلی دی: ما کېښودلې نبي ﷺ ته اوبه د اودس، چه غسل کولو د جنابت نه نو رانسکورېې کړو لوښی په خپل ښي لاس، نو دواړه ئې وینځل دوه ځل او یا درې ځل، بیا ئې اوبه راواړولې په خپل عورت نو خپل عورت ئې په ګس لاس وینځلو، بیا ئې ووهلو خپل لاس په ځمکه نو هغه ئې وینځلو، بیا ئې مضمضه اوکړه او استنشاق ئې اوکړو، او وئې وینځلو مخ او خپل دواړه لاسونه، بیا ئې اوبه واړولې په خپل سر او بدن، بیا یوې غاړې ته شو نو دواړه خپې ئې وینځلې، نو ما ورته دسمال ورکړو نو هغه ئې وانخستلو، او شروع شو چه اوبه ئې څنډلې د خپل بدن نه، نو ما دا خبره ذکر کړه ابراهیم ته نو هغه اووئیل: هغوی به په دسمال باندې څه باک نه لیدلو، لیکن عادت جوړول ئې بد ګڼړلو. وئیلی دي ابوداود: وئیلی دي مسدد: ما اووئیل عبد الله بن داود: هغوی وو چه بدیې ګڼړلو د وجې د عادت نه؟ نو هغه اووئیل همداسې هغه وو، لیکن ما بیاموندلو هغه په خپل کتاب کښې همداسې

**تشریح:** ٧: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ – ثُمَّ تَنَحَّى نَاحِيَةً الخ ﴾ دا دې د میمونې رضی الله عنها هغه روایت چه په هغې کښې د تاخیر غسل قدمین تصریح ده

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦١٦٨) (ضعيف)

[2]: * تخريج: صحيح البخاري/الغسل ١ (٢٤٩)، ٥ (٢٥٧)، ٧ (٢٥٩)، ٨ (٢٦٠)، ١٠ (٢٦٥)، ١١ (٢٦٦)، ١٦ (٢٧٤)، ١٨ (٢٧٦)، ٢١ (٢٨١)، صحيح مسلم/الحيض ٩ (٣١٧)، سنن الترمذي/الطهارة ٧٦ (١٠٣)، سنن النسائي/الطهارة ١٦١ (٢٥٤)، الغسل ٧ (٤٠٨)، ١٤ (٤١٨)، ١٥ (٤١٩)، ٢٢ (٤٢٨)، سنن ابن ماجه/ الطهارة ٩٤ (٥٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٣٠، ٣٣٥، ٣٣٦)، سنن الدارمي/الطهارة ٣٩ (٧٣٨)، ٦٦ (٧٧٤) (صحيح)

## د تمسح بالمنديل بحث او مذاهب ائمة :

﴿ قوله فَنَاوَلْتُهُ الْمِنْدِيلَ فَلَمْ يَأْخُذْهُ ﴾ ميموني ﷺ د بدن د اوچولو دپاره رسول الله ﷺ ته رومال پيش کړو خو رسول الله ﷺ هغه قبول نه کړو، د تمسح بالمنديل په باره کښې امام ترمذي رحمه الله مستقل باب قائم کړې دې [1] او بيا ئې دهغې نه لاندې دوه احاديث ذکر فرمائيلي دی يو د عائشې ﷺ حديث چه دهغې الفاظ دی ﴿ كانت لرسول الله ﷺ خرقة ينشف بها بعد الوضوء ﴾ او دويم د معاذ ﷺ حديث چه په هغې کښې دی ﴿ رايت رسول الله ﷺ اذا توضاء مسح وجهه بطرف ثوبه ﴾ او په يو روايت کښې دی کوم چه علامه جزري رحمه الله په نهايه کښې ذکر کړې دې ﴿ كان لرسول الله ﷺ نشافة ينشف بها غسالة وجهه ﴾ او امام ترمذي رحمه الله ددې دواړو احاديثو تضعيف کړې دې او دا ئې فرمائيلي دی چه په دې سلسله کښې د رسول الله ﷺ نه هيڅ حديث ثابت نه دې، بنده وائی چه په صحيحين کښې د رسول الله ﷺ نه صرف ترک تنشيف روايت کړې شوې دې او هم دغه شان امام بخاري رحمه الله په بخاری کښې په ځائې د تمسح بالمنديل باب نفض اليدين من الغسل قائم کړې دې يعنی اندامونه په ځائې ددې چه په کپړې سره اوچ کړې شی دهغې نه هم داسې اوبه څنډل، او امام نسائي رحمه الله د ترک المنديل بعد الغسل ترجمه قائم کړې ده.

د علماء کرامو ترمينځه هم دا مسئله مختلف فيه ده پس علامه کرماني رحمه الله د امام نووي رحمه الله نه د شوافعو په نزد په دې کښې پنځه اقوال ذکر کړې دی، ١: اصح دا ده چه ترک تنشيف اولی دې. ٢: تنشيف مکروه دې. ٣: مباح دې. ۴: مستحب دې. ۵: مکروه فی الصيف دون الشتاء، او د باقی ائمه ثلاث امام ابوحنيفه و امام مالک و احمد ﷺ په نزد تنشيف مباح دې، زمونږ په نزد راجح قول هم دا دې لکه چه قاضی خان فرمائيلي دی، خو صاحب د منية نشف لره مستحب ليکلي دې، په معارف السنن کښې د صاحب بحر نه نقل کړې دی چه د احنافو په نزد استحباب بغير د صاحب منية نه بل چا نه دې نقل کړې، زه وائم چه حضرت سهارنپوري رحمه الله په بذل کښې د احنافو مسلک استحباب تنشيف ليکلي دې او ليکلي ئې دی چه په دې کښې اګرچه احاديث ضعيف دی، خو په فضائلو کښې عمل بالضعيف جائز دې او حضرت شيخ په حاشيه د کوکب کښې ليکی چه صاحب د در مختار تمسح بالمنديل په ادابو کښې شمار کړې دې او ابن عابدين په دې باندې تفصيلی کلام کړې دې» د حضرت ګنګوهي رحمه الله رائې په کوکب کښې دا ده چه د رسول الله ﷺ تمسح بالمنديل فرمائيل د بيان جواز دپاره وو او هم دغه شان علامه طحطاوی د امام محمد د کتاب الاثار نه نقل کړی دی چه تمسح بالمنديل د لا باس به د قبيل نه دې، امام محمد رحمه الله فرمائی وهو قول ابی حنيفة علامه سندهی حنفی په حاشيه د ابن ماجه کښې ليکی ﴿ والظاهر انه مباح ان يفض الى الكبر ﴾ او بعض فقهاء کرامو ليکلي دی چه بهر کيف تنشيف د مبالغې

---

[1] د تمسح بالمنديل په سلسله کښې په مثبت اړخ کښې صرف امام ترمذی او امام ابن ماجه ﷺ باب قائم کړې دې،

سره نه دی کول پکار دا خو تحقیق دې د مذاهب ائمه چه دهغې خلاصه دا ده چه د شوافعو په نزد په اصح قول باندې ترک تنشیف اولی دې، او د مالکیانو او حنابله په نزد تنشیف مباح دې او د احنافو په نزد د راجح قول په بناء باندې مباح او په دویم قول باندې مستحب دې.
د دې نه علاوه د بعض نورو علماء کرامو نه ددې کراهت منقول دې، پس امام ترمذی رحمه الله د سعید بن المسیب او امام زهری رحمه الله نه کراهت تنشیف نقل کړې دې او دهغې وجه ئې دا نقل کړې ده ﴿ الوضوء یوزن ﴾ یعنی د اودس د اوبو به د قیامت په ورځ باندې د نورو اعمالو سره وزن کولې شی لهذا دا د ځان نه نۀ دی لرې کول پکار او ابن العربی رحمه الله فرمائی چه په دې مسئله کښې د علماء کرامو درې اقوال دی یو دا چه جائز دی په اودس او غسل دواړو کښې، قول ثانی دا چه مکروه دی په دواړو کښې دا هغوی منسوب کړې دې ابن عمر رضي الله عنهما او ابن ابی لیلی ته، قول ثالث دا چه مکروه دې په اودس کښې مباح دې په غسل کښې، دا هغوی منسوب کړې دې ابن عباس رضي الله عنهما ته. او ابن العربی ته دا هم فرمائی چه هغه چه د بعض علماء کرامو نه چه امام ترمذی رحمه الله نقل کړې دې ﴿ الوضوء یوزن ﴾ نو په دې سره ددې په کراهت باندې استدلال صحیح نه دې ځکه چه ددې وزن کیدل ددې د مسح نه مانع نه دی زه وایم ځکه چه که مسح اونکړې شی نو بیا هم لږ ساعت پس به د بدن په حرارت او هوا سره خو اوچیږی او بعضو د کراهت وجه دا بیان کړې ده چه اودس یو عبادت دې او دا لوندوالې د عبادت د اثر نه دې لهذا ددې ازاله په خپل اختیار سره مناسب نه ده.
﴿ قوله وجعل ینفض الماء عن جسده ﴾ یعنی په کپړې باندې د بدن اوچولو په ځائې رسول الله ﷺ د بدن نه هم داسې په اوبو څنډلو باندې اکتفاء اوکړه، صاحب منهل لیکی چه په کوم روایت کښې د نفض ممانعت راغلې دې یعنی ﴿ لا تنفضوا ایدیکم فی الوضوء فانها مراوح الشیطان ﴾ هغه ضعیف دې.

## د اودس نه پس د نفض الیدین بحث:

ځان پوهه کړه چه دلته دوه څیزونه دی، یو ترک تنشیف چه دهغې بحث پورته تیر شوې دې، دویم د نفض الیدین، نفض الیدین ته چا هم مستحب نه دی وئیلې امام نووی رحمه الله فرمائی زمونږ مشهور قول دا دې چه ترک د نفض مستحب او اولی دې. او دویم قول دا دې چه مکروه دې او دریم دا دې چه مباح دې، امام نووی رحمه الله هم دا قول غوره کړې دې ځکه چه دا د صحیح حدیث نه ثابت دې، علامه قسطلانی د بخاری د ترجمې باب نفض الیدین د لاندې لیکی چه ددې ترک اولی دې ځکه چه په نفض کښې د تبری من العبادة شبه ده، او په احنافو کښې صاحب د درمختار عدم نفض الیدین د اودس په مندوباتو کښې شمار کړې دې دا ټول بحث په تفصیل سره په الحل المفهم کښې مذکور دې، بلکه دا چه په هغې کښې د حضرت ګنګوهی د بعض تقاریرو نه نقل کړې شوې دی چه په حدیث کښې چه کوم د اودس یا غسل نه پس نفض یدین راځی ددې نه مراد دې ﴿ انه جعل یمشی مسترسلا یدیه فیقطرا لماء من یدیه بنفسه ﴾ یعنی لاسونه هم داسې سست پریخودل چه دهغې نه هغه اوبه خپله اوسسیږی، نفض الیدین مراد نه دې.

﴿ قوله فذكرت ذلک لابراهيم الخ ﴾ د ابوداؤد ددې روايت نه دا خبره معلوميدل ګران دی چه ددې جملې قائل څوک دې د مسند احمد د روايت نه معلوميږی چه ددې قائل راوی حديث اعمش دې کوم چه دلته په سند کښې ذکر دې، اعمش وائی چه د سالم نه چه کوم حديث ما اوريدلې وو دهغې ما ابراهيم نخغی ته ذکر اوکړو نو هغه ددې حديث د اوريدلو نه پس اوفرمائيل ﴿ كانوا لا يرون بالمنديل باسا الخ ﴾ يعنی علماء کرام په مطلق استعمال منديل کښې باک نه ګنړلو خو دا مکروه ګنړی چه ددې عادت جوړ کړې شی.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ مُسَدَّدٌ الخ ﴾ ددې جملې په شرح کښې شارحينو دوه احتمالات ليکلې دی يو دا چه مسدد وائی چه ما د خپل استاذ عبدالله بن داؤد نه تپوس اوکړو چه دا چه په دې روايت کښې د اعمش او ابراهيم ترمينځه سوال او جواب واقع شو آيا دا تاسو ته ښه ياد دې؟ هغوی جواب ورکړو چه ترڅو چه د حفظ تعلق دې په هغې کښې خو دا زيادت نشته بلکه د ميمونې رضي الله عنها روايت ماته ياد دې بغير ددې سوال او جواب نه خو ما سره چه کوم کتاب دې په هغې کښې دا زيادت مذکور دې، او دويم احتمال په دې شرح کښې دا دې چه پورته په روايت کښې راغلې وو ﴿ كانوا يكرهون العادة ﴾ (بغير د لام جاره نه) نو په دې باندې مسدد د خپل استاذ نه تپوس اوکړو چه ستاسو مراد د ﴿ يكرهون العادة ﴾ نه ﴿ يكرهون للعادة ﴾ دې نو په دې باندې هغوی اوفرمائيل چه مراد خو هم دا دې خو زما په کتاب کښې بغير د لام جار نه دې. حضرت په بذل کښې په احتمال ثانی باندې اکتفاء کړې ده او صاحب منهل دواړه احتمالات ليکلې دی.

[٢٣٦](١) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عِيسَى الْخُرَاسَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ شُعْبَةَ، قَالَ: "إِنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ كَانَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، يُفْرِغُ بِيَدِهِ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى سَبْعَ مِرَارٍ، ثُمَّ يَغْسِلُ فَرْجَهُ، فَنَسِيَ مَرَّةً كَمْ أَفْرَغَ، فَسَأَلَنِي: كَمْ أَفْرَغْتُ؟ فَقُلْتُ: لَا أَدْرِي، فَقَالَ: لَا أُمَّ لَكَ، وَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَدْرِيَ؟ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ يُفِيضُ عَلَى جِلْدِهِ الْمَاءَ، ثُمَّ يَقُولُ: هَكَذَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَطَهَّرُ".

**ترجمه**: د شعبه نه روايت دې هغه وئيلی دی: بيشکه ابن عباس وو چه کله به ئې غسل کولو د جنابت نه نو اړولې به ئې په خپل ښي لاس سره په خپل ګس لاس باندې اوبه اوه ځل، بيا به ئې وينځلو خپل عورت، نو د هغه نه هېر شو چه څومره ئې اوبه ژاړزړولې، نو مانه ئې تپوس اوکړو چه څو ځل مې واړولې؟ نو ما اووئيل: زه نه پوهيږم، هغه اووئيل: مور دې ورکه شه ته څه شې منع کړې چه پوهه شې؟ بيا به ئې اودس کولو پشان د اودس د مونځ، بيا به ئې اړولې په خپلې څرمن باندې اوبه. بيا به ئې ويل: دارنګه وو رسول الله ﷺ چه صفايې ئی کوله.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عِيسَى الْخُرَاسَانِيُّ – قوله يُفْرِغُ بِيَدِهِ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى سَبْعَ مِرَارٍ ﴾ سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما به د غسل په ابتداء کښې اووۀ کرته لاس وينځل په دې کښې دوه احتمالات دی يا خو دې داسې اووئيلې شی چه داسې په شروع کښې وه بيا په احاديث

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٦٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٠٧) (ضعيف)

تثلیث سره دا حکم منسوخ شو کیدې شی چه ابن عباس ﷠ ددې نسخ قائل نه وی یا دې داسې اووئیلې شی چه دا حدیث ضعیف دې ځکه چه ددې په سند کښې شعبة بن دینار راوی دې چه ضعیف دې.

[٢٣٧]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ جَابِرٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُصْمٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَتِ الصَّلَاةُ خَمْسِينَ، وَالْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ سَبْعَ مِرَارٍ، وَغَسْلُ الْبَوْلِ مِنَ الثَّوْبِ سَبْعَ مِرَارٍ، فَلَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ، حَتَّى جُعِلَتِ الصَّلَاةُ خَمْسًا، وَالْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ مَرَّةً، وَغَسْلُ الْبَوْلِ مِنَ الثَّوْبِ مَرَّةً".

**ترجمه:** د عبد الله بن عمر نه روایت دې هغه وئیلی دی: وو مونځونه پنځوس، او غسل د جنابت نه اوه ځل، او وینځل د بولو د جامې نه اوه ځل، نو همیشه وو نبي ﷺ چه سوال ئې کولو تردې چه مونځونه وګرځولی شو پنځه، او غسل د جنابت نه یو ځل، او وینځل د بولو د جامې نه یو ځل.

**تشریح:** ٩: ﴿ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ – قوله كَانَتِ الصَّلَاةُ خَمْسِينَ الخ ﴾ یعنی په شروع کښې مونځونه پنځوس او غسل جنابت اووهٔ کرته او ثوب نجس اووهٔ کرته وینځل واجب وو رسول الله ﷺ د الله پاک نه د تخفیف سوال کولو تردې چه مونځونه د پنځوسو نه پنځه او غسل جنابت یو ځل او د متیازو نه کپړه وینځل یو ځل پاتې شو، په مانځه کښې د تخفیف واقعه خو مشهوره ده چه په لیلة الاسراء کښې پیښه شوې وه دهغې نه علاوه چه کوم دوه ځیزونه په دې حدیث کښې مذکور دی په دې کښې دواړه احتمالات شته کیدې شی چه ددې نسخ هم په دغه شپه کښې شوې وی یا بل څه وخت.

## د ثوب نجس په تطهیر کښې مذاهب ائمة:

په دې حدیث کښې چه د ثوب نجس د تطهیر کومه مسئله ذکر شوې ده هغه مختلف فیه ده د امام شافعی او د امام مالک ﷬ په نزد ددې حدیث مطابق صرف یو ځل وینځل کافی دی، او د امام احمد ﷫ نه په دې کښې دوه روایتونه دی یو دا چه اووهٔ کرته وینځل ضروری دی دویم دا چه یو ځل کافی دی، په مغنی کښې د هغوی مذهب په شان د شوافعو لیکلې شوې دې او ابن العربی فرمائی چه د امام احمد ﷫ په نزد د ټولو نجاستونو اووهٔ کرته وینځل ضروری دی او د احنافو په نزد درې کرته وینځل ضروری دی ځکه چه په حدیث کښې د ولوغ کلب په سلسله کښې په یو روایت کښې تطهیر د لوخې درې کرته راغلې دې، بل په استیقاظ من النوم کښې درې کرته د لاسونو وینځلو حکم په حدیث کښې راغلې دې حال دا چه هلته صرف احتمال نجاست دې، ظاهره ده چه د تحقق نجاست په شکل کښې دا حکم په طریق اولی دې، او حدیث الباب د مالکیانو او د شوافعو موافق دې، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه دا حدیث ضعیف دې ددې په سند کښې ایوب بن جابر او عبد الله بن عصم دواړه ضعیف دی.

ځان پوهه کړه چه زمونږ په نزد تقدیر بالثلاث لازم نه دې بلکه په اصل کښې د

(): تفرد أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٢٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٩/٢) (ضعيف)

مبتلی د رائي اعتبار دي چه کله ئې د طهارت ظن غالب شي نو بیا به کپړه پاکه وی خو چونکه عام طور په درې کرتو باندې ظن غالب پیدا کیږي په دې وجه د دریو قید دې، بلکه دا چه دا حکم د نجاست غیر مرئیه دې او نجاست مرئیه کښې د طهارت مدار د عین نجاست په زوال باندې دې ترڅو چه هغه نه وی زائل شوې طهارت به نه حاصلیږي.

[٢٣٨]([1]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنِي الْحَارِثُ بْنُ وَجِيهٍ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ دِينَارٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةً، فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ، وَأَنْقُوا الْبَشَرَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْحَارِثُ بْنُ وَجِيهٍ حَدِيثُهُ مُنْكَرٌ، وَهُوَ ضَعِيفٌ.

**ترجمه**: د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دي، وئیلی دي رسول الله صلی الله علیه وسلم: بیشکه لاندې د هر ویښته نه جنابت دی وینځئ ویښته او پاک کړئ پوستکی. وئیلی دي ابوداود: حارث بن وجیه حدیث ئې منکر دی او هغه ضعیف دی.

**تشریح**: ١٠: ﴿ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ - إِنَّ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةً الخ ﴾ امام خطابی رحمه الله فرمائی چه بعض علماء کرامو ددې نه استدلال کړې دې چه په غسل جنابت کښې استنشاق واجب دې ځکه چه په داخل د انف کښې ویښته وی او ﴿ انقوا البشر ﴾ کوم چه مخکښې راځی دهغې نه ئې په ایجاب د مضمضه باندې استدلال کړې دې ځکه چه داخل فم په بشر باندې صادق راځی خو خطابی دا په دې وینا باندې رد کړې دې چه د بشره اطلاق په ما ظهر من البدن باندې کیږي او د داخل فم نه په ادمة سره تعبیر کولې شی خو علامه عینی رحمه الله فرما چه په دې حدیث سره په وجوب مضمضه بانډ هم استدلال صحیح دې ځکه چه داخل فم د ظاهر بدن نه دې هم دا وجه ده چه په خوله کښې دننه د خوراک څکاک څه څیز اخستل په روژې کښې ضرر نه لري، زه وایم امام خطابی رحمه الله چه دا کومه خبره کړې ده چه داخل فم ته ادمة وائی په دې باندې حضرت په بذل کښې او صاحب منهل هم د اهل لغت کلام لره اخستلو سره په دې باندې تعقب کړې دې خو دا هم یاد ساتئ چه دا حدیث ضعیف دې او منکر دې لکه چه مصنف رحمه الله فرمائی ځکه چه ددې په سند کښې حارث بن وجیه دې (وقیل وجبه) هغه ضعیف دې.

[٢٣٩]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ زَاذَانَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ تَرَكَ مَوْضِعَ شَعْرَةٍ مِنْ جَنَابَةٍ لَمْ يَغْسِلْهَا، فُعِلَ بِهِ كَذَا وَكَذَا مِنَ النَّارِ"، قَالَ عَلِيٌّ: فَمِنْ، ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي ثَلَاثًا، وَكَانَ يَجُزُّ شَعْرَهُ.

**ترجمه**: د علي رضي الله عنه نه روایت دې بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم وئیلی دی: چا چه پریخودلو څه ځائې په اندازه د ویښته د جنابت نه چه وئې نه وینځې کیږي به په هغه باندې داسې او داسې د اور نه. وئیلی دي علی: د دغې وخت نه مې دشمنې شروع کړه د خپل دسر ویښتو

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ٧٨ (١٠٦) سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٦ (٥٩٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٥٠٢) (ضعيف)

[2]: سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٦ (٥٩٩) مسند احمد (١/١٠١، سنن الدارمي/الطهارة ٦٩ (٧٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٩٠) (ضعيف)

سره دا جمله هغوی دری ځل اووئیله، او چه په بیخ کښې به ئې ویخته اخستل.

**تشریح:** ١١: ﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ – قوله قَالَ عَلِيٌّ فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِي الخ ﴾ د علی رضي الله عنه په حدیث کښې دا دی چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه کوم انسان په غسل جنابت کښې د یو ویښته برابر ځائې هم اوچ پریږدی نو هغه سره به داسې داسې معامله کولې شی یعنی عذاب به ورکولې شی، په دې باندې علی رضي الله عنه فرمائی هم ددې خطرې د وجې نه زه د خپل سر د ویښتو سره د دشمنئ معامله لرم، پس راوی د هغوی عمل نقل کوی ﴿ وكان يجز شعره رضي الله عنه ﴾؟

## التفصيل بين خلق الراس واتخاذ الشعر:

علامه طیبی رحمه الله ددې حدیث نه په سنیت د حلق راس باندې استدلال کړې دې خو ملا علی قاری او شیخ ابن حجر مکی دا رد کړې دی چه د رسول الله ﷺ او د باقی خلفاء راشدینو عادت شریفه د ویښتو د ساتلو وو نه د خرئیلو، نو دې ته به رخصت وئیلې شی نه سنت، لهذا دا خو سنت علوی شو نه سنت نبوی، حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې د ابن قدامة حنبلی نه نقل کړې دی چه اتخاذ شعر افضل دې د ازاله شعر نه او حلق راس د امام احمد رحمه الله په یو روایت کښې مکروه دې ځکه چه رسول الله ﷺ حلق ته د خوارجو علامت وئیلې دې، په حدیث کښې دی ﴿ سيماهم التحليق ﴾

د کیفیت غسل باب پوره شو چه په هغې کښې مصنف رحمه الله یولس روایتونه بیان کړې دی.

## بَابٌ فِي الْوُضُوءِ بَعْدَ الْغُسْلِ

### باب دې په بیان د اودس کې وروسته د غسل نه

[٢٥٠]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ وَيُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ وَصَلَاةَ الْغَدَاةِ، وَلَا أُرَاهُ يُحْدِثُ وُضُوءًا بَعْدَ الْغُسْلِ".

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې هغې وئیلی دی: وو رسول الله ﷺ چه غسل به ئې کولو او مونځ به ئې کولو دوه رکعته او مونځ به ئې کولو د صباح، ما به هغه نه لیدلو چه نوی کولو به ئې اودس وروسته د غسل نه.

**تشریح:** په بذل کښې لیکلې دی چه دا مسئله اجماعی ده چه د غسل نه د فارغ کیدو نه پس اودس کول مستحب نه دې په دې باندې حضرت شیخ رحمه الله لیکلې دی چه د امام احمد رحمه الله په دې کښې اختلاف دی ځکه چه د هغوی مسلک دا دې چه کوم انسان ته حدث اصغر او اکبر دواړه لاحق وی نو په هغه باندې اودس او غسل دواړه واجب دې که اودس قبل الغسل ئې اونکړو نو بعد الغسل دې اوکړی، دویم روایت د هغوی دا دې چه که په غسل کښې د جنابت او د حدث دواړو د طهارت نیت اوکړی نو د غسل په ضمن کښې به اودس هم ادا

[1]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٦٠٢١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ٧٩ (١٠٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٦٠ (٢٥٢)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٦ (٥٧٩)، مسند احمد (٦٨/٦، ١١٩، ١٥٤، ١٩٢، ٢٥٣، ٢٥٨) (صحيح)

شي او که نه ئي مستقلا اودس اوکړواو نه ئي په غسل کښې د طهارت عن الحدث نيت اوکړو نو بيا د هغوی مذهب دا دې چه د داسې سړی په ذمه باندې اودس واجب دې.

## بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ هَلْ تَنْقُضُ شَعَرَهَا عِنْدَ الْغُسْلِ

### باب دې په بيان د ښځه کښې، ايا هغه به سپړې خپل ويختان په وخت د غسل کې

د زنانه ويښته که کمسئ وی نو آيا په غسل کښې دهغې پرانستل ضروری دی؟ د ابراهيم نخعي رحمه الله په نزد نقض ضفائر مطلقا ضروری دې، امام نووی رحمه الله خپل او د جمهورو مسلک دا ليلکې دې چه که أوبه بغير د نقض نه د ويښتو ظاهر او باطن تولو ته اورسيږی نو بيا خو نقض واجب نه دې ګيني نقض ضفائر واجب دې او هم دا مسلک د مالکيانو دې، صاحب منهل د هغوی په مسلک کښې لږ شان تفصيل ليکلې دې او د حنابله په نزد په غسل د حيض او نفاس کښې نقض ضروری دې او په غسل جنابت کښې نه دې په دې شرط چه اوبه اصول شعر ته اورسيږی. (كما فی نيل المارب والمنهل وغيرهما) او هم دا مذهب دې د حسن بصری او د طاؤس، زمونږ په نزد ظاهر الرواية هم دا دې چه صرف اصول شعر تر کول کافی دی، په در مختار کښې ليکلې دی چه که ويښته مضفور وی نو صرف اصول شعر لره تر کول کافی دی او که منقوض وی نو بيا د پوره ويښتو تر کول ضروری دی، حضرت سهارنپوری په بذل کښې دا مسئله دلته نه ده ذکر فرمائيلې بلکه ددې نه په مخکښې باب کښې ئي د ﴿ان تحت كل شعرة جنابة﴾ د لاندې ذکر کړې دې.

د امام احمد رحمه الله دليل د انس رضي الله عنه هغه حديث مرفوع دې کوم چه په دارقطنی او بيهقی کښې دې چه په غسل حيض او جنابت کښې ددې فرق تصريح دې، ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه ددې په سند کښې مسلم بن صبيح اليحمدی دې چه ضعيف دې.

ځان پوهه کړه چه د احنافو په نزد په دې مسئله کښې د سړو او ښځو ترمينځه فرق دې، د سړی دپاره که ضفائر وی نو دهغې پرانستل او اثناء شعر ته اوبه رسول ضروری دی صرف د اصول شعر لوندول کافی نه دی، په خلاف د جمهورو چه د هغوی په نزد په دې مسئله کښې د سړی او ښځې ترمينځه هيڅ فرق نشته (كذا نقل فی البذل عن الخطابی وهكذا فی هامش الكوكب عن كتب الفروع) ددې فرق دليل هم ددې باب په آخری حديث کښې حديث ثوبان دې چه دهغې الفاظ دا دی ﴿اما الرجل فلينثر راسه فليغسله﴾.

[۲۵۱] (١) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعٍ مَوْلَى أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ امْرَأَةً مِنَ الْمُسْلِمِينَ، وَقَالَ زُهَيْرٌ: أَنَّهَا قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضُفُرَ رَأْسِي، أَفَأَنْقُضُهُ لِلْجَنَابَةِ؟ قَالَ: "إِنَّمَا يَكْفِيكِ أَنْ تَحْفِنِي عَلَيْهِ ثَلَاثًا" وَقَالَ زُهَيْرٌ: تُحْثِي عَلَيْهِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ مِنْ مَاءٍ، ثُمَّ تُفِيضِي عَلَى سَائِرِ جَسَدِكِ، فَإِذَا أَنْتِ قَدْ طَهُرْتِ.

---

١): صحيح مسلم/الحيض ١٢ (٣٣٠)، سنن الترمذي/الطهارة ٧٧ (١٠٥)، سنن النسائي/الطهارة ١٥٠ (٢٤٢)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٨ (٦٠٣)، (تحفة الأشراف: ١٨١٧٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٩/٦، ٣١٤)، سنن الدارمي/الطهارة ١١٥ (١١٩٦) (صحيح)

**ترجمه:** د ام سلمة نه روايت دې، بيشکه يوه ښځه د مسلمانانو نه (او وئيلی دي زهير: هغې اووئيل: اې د الله رسوله! زه يوه ښځه يم) چه مضبوطې جوړوم کمڅې د سر خپل ايا زه ئې وسپړم لپاره د جنابت؟ هغه وفرمايل: بيشکه کافي کيږي ستا لپاره چه ته واچوې په هغې باندې درې لپې. (او وئيلی دي زهير: چه واچوه په هغې باندې درې لپې د اوبو نه) بيا وارږوه په ټول بدن ستا باندې، اوبه نو داسې به ته پاکي حاصل کړې.

**تشريح:** ۱: ﴿ حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ – وَقَالَ زُهَيْرٌ إِنَّهَا – قَالَتْ الخ ﴾ ددې حديث په سند کښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان دی زهير او ابن السرح چه د هغوی نوم احمد بن عمرو بن السرح دې ددې دواړو په روايت کښې فرق دا دې چه د ابن السرح د روايت نه معلوميږی چه سوال کونکې امراة من المسلمين ده او د زهير د روايت نه معلوميږی چه سوال کونکې خپله ام سلمه رضي الله عنها ده او جمع بين الروايتين دا ده -------- چه ددې نه د روستو روايت نه معلوميږی چه د ام سلمه رضي الله عنها په خدمت کښې يو زنانه راغله او هغې خپل حال عرض کړو په دې باندې ام سلمه رضي الله عنها د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دهغې دپاره د مسئلې تپوس اوکړو ددې روايت نه معلومه شوه چه سوال کونکې خو ام سلمه رضي الله عنها ده خو دهغې سوال د خپل ځان دپاره نه وو بلکه ددې زنانه دپاره وو لهذا په کوم روايت کښې چه د سوال نسبت د ام سلمه رضي الله عنها طرف ته کړې شوې دې هغه حقيقت دې او په کوم کښې چه د امراة طرف ته کړې شوې دې هغه مجاز دې خو بنده ته په دې کښې دا اشکال دې چه د ﴿ انی امراة اشد ضفر راسی ﴾ مصداق څوک دې؟ کمسئ کلکه تړونکې څوک ده؟ که امراة من المسلمين ده نو د ام سلمة رضي الله عنها په وخت د سوال دا وئيل چه ﴿ انی امراة اشد ضفر راسی ﴾ به څنګه صحيح شي؟ او که ددې مصداق خپله ام سلمه رضي الله عنها وی نو بيا دا وئيل څنګه صحيح شو چه هغوی د امراة من المسلمين دپاره تپوس اوکړو، لهذا ظاهره دا ده چه سوال کونکې خپله امراة من المسلمين ده، روستو سوچ کولو سره مې ددې اشکال دفيعه هم په ذهن کښې راغله چه ددې مصداق خو امراة من المسلمين ده خو سوال کونکې ام سلمه رضي الله عنها ده او دهغې دا کلام په طريقه د حکايت عن الغير دې يعنی هغې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په دې طريقه تپوس اوکړو چه يو زنانه ماته راغله چا چه د خپل ځان په باره کښې دا اووئيل خو راوی په روايت کښې د اجمال نه کار واخستلو.

﴿ قوله إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِي ﴾ دا لفظ يا خو په فتحې د ضاد او سکون الفاء سره دې په دې صورت کښې به مصدر وی او يا به په ضمتين سره دې په دې صورت کښې به دا د ضفيرة جمع وی يعنی زما عادت دې چه د خپل سر ويښته کلک ترم، آيا د غسل جنابت په وخت هغه پرانيزم؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو درې لپې اوبه په هغې باندې بهيول کافي دی او دهغې نه په وړاندې روايت کښې دی ﴿ وَاغْمِزِی قُرُونَكِ عِنْدَ كُلِّ حَفْنَةٍ ﴾ يعنی هرځل ويښتو لره نچوړول او زوړل هم ضروری دی چه اوبه دننه اورسيږی.

[٢٥٢](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ نَافِعٍ يَعْنِي الصَّائِغَ، عَنْ أُسَامَةَ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ امْرَأَةً جَاءَتْ إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَتْ: فَسَأَلْتُ لَهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ فِيهِ: وَاغْمِزِي قُرُونَكِ عِنْدَ كُلِّ حَفْنَةٍ.

**ترجمه**: د ام سلمة رضي الله عنها نه روايت دې چه بيشکه يوه ښځه راغله رسول الله صلى الله عليه وسلم ته بيا هم دا حديث مخکښې بيان شوی هغې اووئيل: نو تپوس اوکړو دهغې لپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په معنی دهغې سره وئيلی ئې دي په هغې کې: وسوله خپلې کمڅې په وخت د هرې لپې کښې.

**تشريح**: ٢: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ – قوله عَنْ أُسَامَةَ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ الخ ﴾ دا د اول حديث دويم طريق دې په اول سند کښې د مقبری نه روايت کونکې ايوب وو او دلته اسامه دې، د مقبری نه مراد سعيد بن ابی سعيد دې په اول سند او دې کښې فرق دا دې چه په اول سند کښې د مقبری او ام سلمه رضي الله عنها ترمينځه د عبدالله بن رافع واسطه وه او دا روايت بغير د واسطې نه دې مصنف رحمه الله دواړه طريق ذکر کړې دی د يو ترجيح ئې هم نه ده بيان کړې، او امام بيهقی رحمه الله د واسطې والا روايت ته ترجيح ورکړې ده، امام بيهقی رحمه الله د ايوب په باره کښې فرمائی ﴿ وقد حفظ في اسناده ما لم يحفظه اسامة بن زيد رضي الله عنهما ﴾

[٢٥٣](2) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَافِعٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَتْ إِحْدَانَا إِذَا أَصَابَتْهَا جَنَابَةٌ، أَخَذَتْ ثَلَاثَ حَفَنَاتٍ هَكَذَا تَعْنِي بِكَفَّيْهَا جَمِيعًا، فَتَصُبُّ عَلَى رَأْسِهَا، وَأَخَذَتْ بِيَدٍ وَاحِدَةٍ فَصَبَّتْهَا عَلَى هَذَا الشِّقِّ وَالْأُخْرَى عَلَى الشِّقِّ الْآخَرِ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلی دي، وه يوه زمونږ نه چه کله به ورسيدلو هغې ته جنابت وابه ئې خستلې درې لپې اوبه(داسې مطلب ئې دادی چه په دواړو ورغوو) نو هغه به ئې واړولې په خپل سر، او په يو لاس کښې به ئې راواخستې نو په دې طرف به ئې واړولې، او بله په هغه بل طرف باندې.

**تشريح**: ٣: ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ – قوله أَخَذَتْ ثَلَاثَ حَفَنَاتٍ الخ ﴾ عائشه رضي الله عنها فرمائی چه زمونږ معمول په غسل د جنابت کښې دا وو چه پرلپسې به مو درې لپې اوبه په سر باندې بهيولې او ددې نه پس به مو يو لپه اوبه د سر په ښی طرف او يو لپه اوبه د سر په گس طرف باندې اچولې، لهذا کل مجموعه ثلث حفنات او غرفتين شوه.

[٢٥٤](3) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كُنَّا نَغْتَسِلُ وَعَلَيْنَا الضِّمَادُ وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مُحِلَّاتٌ وَمُحْرِمَاتٌ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلی دی: وو مونږ چه غسل به کولو مونږ او په مونږ به پټې وې، او وو مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په حالت د حل او احرام کښې.

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٥١) (حسن)

(2): صحيح البخاري/الغسل ١٩ (٢٧٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٥٠) (صحيح)

(3): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٩/٦، ١٣٨) (صحيح)

**تشریح:** ۴: ﴿ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ – قوله قَالَتْ كُنَّا نَغْتَسِلُ وَعَلَيْنَا الضِّمَادُ الخ ﴾ ضماد په کسرې د ضاد سره ددې مشهوره معنی خو د لیو کولو ده یو څیز په بل څیز باندې لګول او مړل، او دلته ددې نه د ګوند وغیره اوبه مراد دی کومې چه زنانه د سر په ویښتو باندې مږی خصوصا چرت په سفر باندې د تلو په وخت چه ویښته ئې ګډوډ او خوارهٔ نه شی.

په دې حدیث کښې عائشه رضی الله عنها فرمائی چه مونږ به غسل کولو او زمونږ د سر په ویښتو باندې به ضماد هم دغه شان باقی وو حال دا چه مونږ به د رسول الله ﷺ سره وې په حالت احرام او حالت غیر احرام دواړو کښې یعنی که سفر د حج به وو یا یو عام سفر، مصنف رحمه الله ددې نه په عدم نقض ضفائر باندې استدلال کړې دې ځکه چه ضماد په ویښتو باندې هغه وخت باقی پاتې کیدې شی ترڅو چه هغه پرانستلې شوې نه وی.

## شرح حدیث:

د دې حدیث چه مونږ کومه شرح کړې ده دا دهغې موافق ده کومه چه حافظ ابن الاثیر رحمه الله په جامع الاصول کښې بیان کړې ده او د ترجمة الباب مناسب هم دا معنی ده خو حضرت په بذل کښې ددې حدیث شرح د مجمع البحار نه بله نقل کړې ده او د بذل والا معنی ددې حدیث هم معنی ده کومه چه په وړاندې باب ﴿ باب الرجل يغسل راسه بالخطمى ﴾ کښې راروان ده.

[٢٥٥]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، قَالَ: قَرَأْتُ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَيَّاشٍ، قَالَ ابْنُ عَوْفٍ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أَبِيهِ، حَدَّثَنِي ضَمْضَمُ بْنُ زُرْعَةَ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: أَفْتَانِي جُبَيْرُ بْنُ نُفَيْرٍ، عَنِ الْغُسْلِ مِنَ الْجَنَابَةِ، أَنَّ ثَوْبَانَ حَدَّثَهُمْ: أَنَّهُمْ اسْتَفْتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "أَمَّا الرَّجُلُ فَلْيَنْشُرْ رَأْسَهُ فَلْيَغْسِلْهُ حَتَّى يَبْلُغَ أُصُولَ الشَّعْرِ، وَأَمَّا الْمَرْأَةُ فَلَا عَلَيْهَا أَنْ لَا تَنْقُضَهُ لِتَغْرِفْ عَلَى رَأْسِهَا ثَلَاثَ غَرَفَاتٍ بِكَفَّيْهَا".

**ترجمه:** شریح بن عبید وائي چه فتوی راکړه ماته جبیر بن نُفیر د غسل باره کښې د جنابت نه، بیشکه ثوبان دوی ته حدیث بیان کړی دی چه بیشکه دوی تپوس اوکړو د نبي ﷺ نه د دغې په باره کښې، نو هغه وفرمایل: هر چه سړی دی نو هغه دې خپل ویخته خواره کړي او ودې وینځي تردې چه ورسیږي اوبه بیخونو د ویختانو ته، او هر چه ښځه ده نشته په هغې باندې چه اونه سپړي هغې لره، وادې چوي په خپل سرباندې اوبه درې لپې په دواړو ورغوو

**تشریح:** ۵: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ – قوله قَالَ قَرَأْتُ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ الخ ﴾ د اصل اسماعیل نه مراد هغه لیکل او صحیفه ده چه په هغې کښې د اسماعیل خپل مسموعات او مرویات لیکلي شوي وو، محمد بن عوف فرمائی چه دا حدیث کوم چه زه اوس بیانوم دا ما براه راست د اسماعیل بن عیاش په کتاب کښې لیدلو سره لوستلي دي او دا حدیث ماته د هغه ځوئي محمد بن اسماعیل هم بیان کړې دې. اول شکل د وجادہ شو او دویم د تحدیث او سماع شو، خو سماع براه راست د اسماعیل نه نهٔ بلکه د هغوی د ځوی محمد بن اسماعیل نه ده دا هم هغه حدیث ثوبان دي چه په هغې کښې دی چه د سړی دپاره په غسل د جنابت

[1]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٠٧٨) (صحيح)

کښې نقض شعر ضروری دې چه دهغې حواله مونږ سره مخکښې تیره شوې ده.

## بَابٌ فِي الْجُنُبِ يَغْسِلُ رَأْسَهُ بِالْخِطْمِيِّ أَيُجْزِئُهُ ذَلِكَ

باب: آیا جُنبی سړې چه خپل سر خطمی (گیا، وابنه) سره اووینځی نو کافی ده؟

خطمی مشهور بکسر الخاء دې او په فتحې د خاء هم راځی، د یو خوشبوداره گیا وی کومهَ چه په دوایانو کښې هم استعمالیږی ددې خاصه دا ده چه ددې په اوبو کښې اچولو سره اوبو کښې څګ پیدا شی بیا په هغې سره گیره اود سر ویښته وینځلې شی چه په هغې سره ویښته نرم او زر صفا کیږی، ددې تخم هم په دې کار کښې استعمالیږی کوم چه د تخم خطمی په نوم سره مشهور دې. فقهاء کرامو هم د مړی په غسل کښې خاص طور د سر او د گیرې د ویښتو په باره کښې لیکلې دی چه هغه دې په ماء خطمی سره اووینځلې شی او باقې بدن دې د بیرې په اوبو سره، حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه زمونږ په هندوستان کښې خلقو عملا ماء خطمی د مړی سره خاص کړې دی، حال دا چه په دې کښې د مړی خصوصیت نشته، په ژوند هم ددې استعمال کول پکار دی، پس د څه مودې پورې حضرت په غسل کښې ددې د استعمال معمول اوساتلو چه په حدیث الباب کښې دی چه رسول الله ﷺ به د خپل سر ویښته په خطمی سره وینځل. لهذا ددې استعمال سنت شو.

[٢٥٦]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ قَيْسِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي سُوَاءَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّهُ كَانَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ بِالْخِطْمِيِّ وَهُوَ جُنُبٌ يَجْتَزِئُ بِذَلِكَ، وَلَا يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ".

**ترجمه:** عائشه رضي الله عنها د پیغمبر ﷺ نه روایت کوي: بیشکه هغه وو چه خپل سر به ئې په خطمې باندې وینځلو او هغه به جنب وو اکتفاء به ئې کوله په هغې، او نوری اوبه ئې نه اړولې په هغې.

**تشریح:** ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ زِيَادٍ – قوله يَجْتَزِئُ بِذَلِكَ وَلاَ يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ به په غسل د جنابت کښې د سر مبارک په خطمی سره وینځلو باندې اکتفاء فرمائیله او خالص اوبه به ئې نه بهیولې.

### ماء مخلوط بشئ طاهر سره اودس او غسل کښې اختلاف:

ځان پوهه کړه چه د جمهورو په نزد په ماء مخلوط بشئ طاهر سره اودس یا غسل جائز نه دې، د احنافو په نزد جائز دې. دا حدیث د احنافو دلیل دې او هم دغه شان ثابت دی چه رسول الله ﷺ غسل اوفرمائیلو ﴿ بماء فيه اثر العجين ﴾ لکه چه د نسائی په روایت کښې دی او امام نسائی په دې باندې مستقل ترجمة قائم کړې ده، او هم دغه شان په غسل میت کښې د ماء سدر استعمال دا ټول څیزونه د مسلک حنفیه مؤید دی خو د غسل میت والا روایت حافظ د شوافعو د طرف نه دا جواب نقل کړې دې چه غسل میت د تنظیف دپاره دې نه د تطهیر دپاره، حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه د حافظ دا وینا چه غسل میت د

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨١١) (ضعيف)

تنظيف دپاره دي، دا د امام شافعي رحمه الله وغيره قول دي او د احنافو په نزد دا غسل د تطهير دپاره دي ځکه چه د حلول موت د وجې نه انسان ناپاکه کيږي ځنګه چه په نورو حيواناتو کښې دم سائل دي، په مرګ سره ناپاک کيږي، خو د سړي خصوصيت دا دي اکراما له، چه هغه په غسل ورکولو سره پاکيږي، د حديث الباب جواب دا حضرات دا ورکوی چه دا حديث ضعيف دي ددې په سند کښې يو رجل مجهول دې، ددې نه علاوه ابن رسلان ددې حديث يو تاويل هم کړې دي هغه دا چه کيدې شي مراد دا وی چه رسول الله ﷺ په سر باندې خطمی کيخودلو سره په هغې باندې اوبه بهيولې خو دا خلاف ظاهر ده ځکه چه په ماء خطمی سره د ويښتو د وينځلو فائده هغه وخت کيدې شي چه د مخکښې نه هغه د لږ ساعت دپاره په اوبو کښې لوند کړې شي چه په اوبو کښې ځګ پيدا شي، اصل کښې د هغه لعاب مطلوب وی.

## بَابٌ فِيمَا يَفِيضُ بَيْنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ مِنَ الْمَاءِ

### باب دې په بيان د هغې چې تويږي په مابين د سړي او د ښځې کې د اوبو نه

[٢٥٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ قَيْسِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي سُوَاءَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ عَائِشَةَ، فِيمَا يَفِيضُ بَيْنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ مِنَ الْمَاءِ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذُ كَفًّا مِنْ مَاءٍ يَصُبُّ عَلَى الْمَاءِ، ثُمَّ يَأْخُذُ كَفًّا مِنْ مَاءٍ ثُمَّ يَصُبُّهُ عَلَيْهِ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې په هغه څه کښې چه تويږي مابين د سړي او ښځه کښې د اوبو نه، هغې اووئيل: وو رسول الله ﷺ چه راخستلو به ئي يو ورغوی د اوبو نه چه اړولي به ئې په اوبو (مني) بيابه ئي راواخستلو يو ورغوی داوبونه بيابه ئې واړولې په هغې.

**تشريح**: ﴿ عَنْ عَائِشَةَ فِيمَا يَفِيضُ بَيْنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ مِنَ الْمَاءِ ﴾ سيده عائشه رضي الله عنها د هغه اوبو په باره کښې کومې چه د سړي او ښځې ترمينځه په اختلاط سره بهيږی فرمائی چه که هغه په جامه باندې اولګی نو رسول الله ﷺ به خو کرته په هغې باندې اوبه بهيولې او هغه به ئې وينځلو، ددې اوبو مصداق که مذی وی نو بيا خو د کپړې وينځل بالاتفاق د تطهير دپاره وو او که مني وی نو بيا د جامې وينځل د احنافو او مالکيانو په نزد د تطهير دپاره وو او د شوافعو او د حنابله په نزد د تنظيف دپاره، ځکه چه مني د هغوی په نزد طاهره ده.

## بَابٌ فِي مُؤَاكَلَةِ الْحَائِضِ وَمُجَامَعَتِهَا

### باب دې په بيان د خوراک کې د حائضې سره او کوروالي کې

يعنی د حائضې سره خوراک او څکاک کول او د هغه سره ناسته ولاړه، د مجامعت نه مراد مساکنت فی البيوت دې نه جماع.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١٥٣) (ضعيف)

[٢٥٨]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ الْيَهُودَ كَانَتْ إِذَا حَاضَتْ مِنْهُمُ امْرَأَةٌ، أَخْرَجُوهَا مِنَ الْبَيْتِ وَلَمْ يُؤَاكِلُوهَا وَلَمْ يُشَارِبُوهَا وَلَمْ يُجَامِعُوهَا فِي الْبَيْتِ، فَسُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَأَنْزَلَ اللهُ سُبْحَانَهُ: وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ سورة البقرة آية ٢٢٢ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: جَامِعُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ وَاصْنَعُوا كُلَّ شَيْءٍ غَيْرَ النِّكَاحِ، فَقَالَتِ الْيَهُودُ: مَا يُرِيدُ هَذَا الرَّجُلُ أَنْ يَدَعَ شَيْئًا مِنْ أَمْرِنَا إِلَّا خَالَفَنَا فِيهِ، فَجَاءَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ، وَعَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَا: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ الْيَهُودَ تَقُولُ كَذَا وَكَذَا، أَفَلَا نَنْكِحُهُنَّ فِي الْمَحِيضِ؟ فَتَمَعَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنْ قَدْ وَجَدَ عَلَيْهِمَا. فَخَرَجَا، فَاسْتَقْبَلَتْهُمَا هَدِيَّةٌ مِنْ لَبَنٍ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَعَثَ فِي آثَارِهِمَا فَسَقَاهُمَا، فَظَنَنَّا أَنَّهُ لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا".

**ترجمه:** د انس بن مالک نه روایت دي، بیشکه یهود وو کله چه به حائضه شوه د دوی نه زنانه هغوی به اووېستله د کور نه، خوراک به ئي ورسره نه کولو او څکاک به ئي ورسره نه کولو، او یو ځائې به ورسره نه اوسیدل په کور کښې، نو تپوس اوشو د رسول الله ﷺ نه ددې په باره کښې، نو نازل کړو الله تعالی (و یسألونک عن المحیض قل هو اذی فاعتزلوا النساء في المحیض) ترجمه: تپوس کوي ستانه په باره د حیض کښې ته ورته ووایه چه دا خو ضرر دی ځان ساتئ د زنانو نه د حیض په حالت کښې. د ایت تر اخیر پورې، پس اووئیل رسول الله ﷺ: یو ځائې ورسره اوسېږئ په کورونو کښې، کوئ هرڅه بغیر د نکاح نه. نو یهودیانو اووئیل: دا سړی نه غواړي چه څه شی پرېږدي زمونږ د کار نه مګر مخالفت کوي زمونږ په هغې کښې، نو راغی اُسید بن حُضیر او عباد بن بشر نبي ﷺ ته نو دواړو اووئیل: اې د الله رسوله! بیشکه یهود داسې وائي ایا مونږ ورسره جماع نه کوو د حیض په حالت کښې؟ نو سور شو مخ د رسول الله ﷺ ترديې چه مونږ ګمان اوکړو د غوسې په هغوی دواړو، نو دواړه ووتل نو دواړو ته مخامخ راغله تحفه د شودو رسول الله صلی الله ﷺ نه.

**تشریح:** ﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ - قوله أَنَّ الْيَهُودَ كَانَتْ إِذَا حَاضَتْ مِنْهُمُ الْمرأَة ﴾ یعنی د یهودو طرز عمل دا وو چه د زنانه سره به ئې په حالت د حیض کښې خوراک څکاک او ناسته ولاړه ټول بندول دهغې د اوسیدو ځائې به ئې هم بیلولو صحابه کرامو ﷺ په دې سلسله کښې د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو نو په دې باندې دا آیت کریمه نازل شو. ﴿یسئلونک عن المحیض الخ ﴾

﴿ قوله اصْنَعُوا كُلَّ شَيْءٍ الا النِّكَاحِ ﴾ یعنی په حالت د حیض کښې د زنانه سره صرف د وطی نه ځان بچ کول ضروری دی ددې نه علاوه باقی انواع د مباشرت جائز دی.

## په شرح د حدیث کښې د شارحینو اختلاف:

﴿ قوله افلا ننکحهن فی المحیض ﴾ اسید بن حضیر او عباد بن بشر ﷺ د رسول الله ﷺ په

---

[1]): صحیح مسلم /الحیض ٣ (٣٠٢)، سنن الترمذي /تفسیر البقرة ٣ (٢٩٧٧)، سنن النسائي /الطهارة ١٨١ (٢٨٩)، والحیض ٨ (٣٦٩)، سنن ابن ماجه /الطهارة ١٢٥ (٦٤٤)، (تحفة الأشراف: ٣٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٤٦)، دي /الطهارة ١٠٦ (١٠٩٣)، ویأتي برقم (٢١٦٥) (صحیح)

خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو یا رسول اللهﷺ! د حائضې په باره کښې چه تاسو کوم حکم فرمائیلې دې یهود دهغې په سلسله کښې خبرې کوی او خفه کیږی چه په هره خبره کښې زمونږ مخالفت کولې شی که ستاسو اجازت وی نو مونږ به په حالت د حیض کښې د زنانو سره صحبت هم کوو چه ددې یهودو ذلیلانو پوره پوره مخالفت اوشی.
ځان پوهه کړه چه د مسلم په روایت کښې په ځائې د ﴿ افلا ننکحهن ﴾، ﴿ افلا نجامعهن ﴾ وارد دې او ددې شرح ملا علی قاری رحمه الله په مرقاة کښې شیخ عبدالحق په لمعات کښې په مجامعت فی البیوت سره کړې ده او مطلب ئې دا لیکلې دې چه که ستاسو رائې وی نو مونږ به د زنانو سره په حالت د حیض کښې مجامعت یعنی مساکنت (هغوی سره ناسته پاسته) ترک کړو ددې دپاره چه فی الجمله د یهود سره موافقت پیدا شی او د هغوی د طعن او تشنیع نه بچ شو، حضرت په بذل کښې لیکی چه د ابوداؤد ددې روایت نه معلومه شوه چه د مسلم په روایت کښې د مجامعت نه مجامعت فی البیوت مراد نه دې بلکه نکاح یعنی وطی مراد ده، او د صحابی مراد هغه دې کوم چه په شروع کښې مونږ بیان کړې دې، زه وائم د ترمذی شریف په کتاب التفسیر کښې هم هغه لفظ دې کوم چه دلته په ابوداؤد کښې دی خو ددې باوجود په الکوکب الدری کښې ددې لفظ په معنی کښې دوه احتمالات لیکلې شوې دی ګویا د حضرت ګنګوهی رحمه الله په نزد لفظ نکاح د وطی په معنی کښې نص نه دې څنګه چه لفظ مجامعت عند الشراح معنیین لره محتمل دې دغه شان لفظ د نکاح کښې هم د دواړه معنو احتمال دې خو ظاهره دا ده حضرت سهارنپوری رحمه الله لیکلې دی چه ﴿ افلا ننکحهن ﴾ د وطی په معنی کښې متعین دې په خلاف د لفظ ﴿ افلا نجامعهن ﴾ چه هغه بیشکه معنیین لره محتمل دې، خو په یقین سره نه شی وئیلې کیدې چه ددې صحابی اصل لفظ څه وو ځکه چه روایتونه دواړه د صحاح دی او په واقعه کښې تعدد نشته، اوس ښکاره خبره ده چه صحابی به په دې دواړو الفاظو کښې یو داسې لفظ په خپل کلام کښې اختیار کړې وی اوس هغه څه دې. والله تعالی اعلم

﴿ قوله فَتَمَعَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ –صلی الله علیه وسلم ﴾ یعنی په دې سوال باندې د رسول اللهﷺ مخ مبارک د غصې د وجې نه متغیر شو ځکه چه مخالفت د یهودو اګرچه مطلوب دې خو داسې مخالفت کوم چه د حکم منصوص خلاف وی کله جائز کیدې شی، ددې دواړو صحابه کرامو رضی الله عنهم سوال ظاهره دا ده چه په اخلاص باندې بناء وو خو خلاف اصول وو په دې وجه رسول اللهﷺ ناراض شو خو د رسول اللهﷺ خفګان هغه وخت سره د خبرداری دپاره وو، هم په دې وجه وړاندې په روایت کښې راځی چه هغوی دواړه رسول اللهﷺ په هدیه د لبن کښې د شریکیدو دپاره راوغوښتل چه په هغې سره حاضرینو ته اطمینان حاصل شو چه رسول اللهﷺ د هغوی نه خفه نه دې.

﴿ قوله لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا ﴾ دا د موجدة او د وجد نه دې چه دهغې معنی د غضب ده او د وجد یجد مصدر وجود هم راځی چه دهغې معنی د موندلو ده په دواړو کښې صرف د مصدر فرق دې.

[۲۵۹]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أَتَعَرَّقُ الْعَظْمَ وَأَنَا حَائِضٌ، فَأُعْطِيهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعُ فَمَهُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي فِيهِ وَضَعْتُهُ، وَأَشْرَبُ الشَّرَابَ فَأُنَاوِلُهُ فَيَضَعُ فَمَهُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي كُنْتُ أَشْرَبُ مِنْهُ".

**ترجمه**: د عائشي ﷞ نه روایت دې هغې وئیلي دي: ومِ زه چه غوښه مې شکوله د هډوکي نه او زه حائضه وم، بیا به مې ورکړه نبي ﷺ ته نو کېخودله به ئې خوله خپله په هغه ځائې باندې چه ما په هغې ایخودې وه، او څکل به مشروبات نو هغه ته مې ورکړل نو کېخودله ئې خوله خپله په هغه ځائې چه وم څکل مې کول د هغه ځائې نه.

**تشریح**: ۲: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ – قوله كُنْتُ أَتَعَرَّقُ الْعَظْمَ وَأَنَا حَائِضٌ ﴾ سیده عائشه ﷞ فرمائي چه ما به اکثر د هډوکي نه غوښه خوړه او زه به حائضه اوم او بیا به مې هغه رسول الله ﷺ ته ورکولو نو رسول الله ﷺ به خاص د هم هغه ځائي نه خوراک کولو د کوم ځائي نه به چه ما کړې وو، په دې طرز کښې چه یو طرف ته د کمال الفیت بین الزوجین تعلیم دې هم دغه شان د یهودو مخالفت هم مقصود دې لکه چه مخکښې تیر شوې دی چه هغوی به د زنانه نه په زمانه د حیض کښې د نفرت اظهار کولو.

د تعرق معنی د هډوکي نه د غوښې خوراک ده او په بعض روایاتو کښې راځي ﴿كنت اتعرق العرق﴾ عرق او عراق هغه هډوکي ته وائي د کوم غوښه چه خوړلې شوې وي، دویم قول دا دې چه عرق هغه عظم دې چه په هغه باندې غوښه باقي وي او د کوم نه چه غوښه کوزه کړې شوې وي هغه عراق دې.

[۲۶۰]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ صَفِيَّةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ رَأْسَهُ فِي حِجْرِي فَيَقْرَأُ وَأَنَا حَائِضٌ".

**ترجمه**: د عائشي ﷞ نه روایت دې هغې وئیلي دي: وو رسول الله ﷺ چه کېخودلو به ئې سر خپل زما په غېږ کښې نو لوستلو به ئې قرآن او زه به حائضه وم.

## بَابٌ فِي الْحَائِضِ تُنَاوِلُ مِنَ الْمَسْجِدِ

### باب دې په بیان د حائضې کې چې څه شي ورکوي د مسجد نه

که دا لفظ د باب تفاعل نه وي نو په اصل کښې وو تتناول، د تناول معنی د اخستلو راځي او که د باب مفاعلت نه دې نو بیا به تناول په ضمې د تاء سره وي چه دهغې معنی د عطاء کولو ده.

[1]: صحيح مسلم/الحيض ۳ (۳۰۰)، سنن النسائي/الطهارة ۵۶ (۷۰)، ۱۷۷ (۲۸۰)، ۱۸۷ (۲۸۱)، والمياه ۹ (۳۴۲)، والحيض ۱۴ (۳۷۷)، ۱۵ (۳۸۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲۵ (۶۴۳)، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۴۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۲/۶، ۶۴، ۱۲۷، ۱۹۲، ۲۱۰، ۲۱۴) دي/الطهارة ۱۰۸ (۱۱۰۱) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الحيض ۳ (۲۹۷)، والتوحيد ۵۲ (۷۵۴۹)، صحيح مسلم/الحيض ۳ (۳۰۱)، سنن النسائي/الطهارة ۱۷۵ (۲۷۵)، والحيض ۱۶ (۳۸۱)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲۰ (۶۳۴)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۷/۶، ۱۳۵، ۱۹۰) (صحيح)

[۲۶۱]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَاوِلِينِي الْخُمْرَةَ مِنَ الْمَسْجِدِ، فَقُلْتُ: إِنِّي حَائِضٌ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ حَيْضَتَكِ لَيْسَتْ فِي يَدِكِ".

**ترجمه**: د عائشې ﷞ نه روايت دې هغې وئيلى دي، اووئيل ماته رسول الله ﷺ: راکړه ماته جانماز د مسجد نه، نو ما اووئيل: زه حائضه يم، نو اووئيل رسول الله ﷺ: بيشکه ستا حيض ستا په لاس کښې نه دې.

**تشريح**: ﴿قوله نَاوِلِينِي الْخُمْرَةَ مِنَ الْمَسْجِدِ﴾ ددې حديث په شرح کښې دوه اقوال دى يو دا چه ﴿من المسجد﴾ حال واقع دې د رسول الله ﷺ نه، او معنى دا ده چه عائشه ﷞ فرمائى چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل په داسې حال کښې چه هغوى په مسجد کښې وو چه ماته بوريا راکړه، په دې صورت کښې رسول الله ﷺ خو به په مسجد کښې دننه او حصير به خارج د مسجد نه او دويم احتمال دا ليکلې شوې دې چه من المسجد حال واقع دې د ﴿الخمرة﴾ نه يعنى رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه خمره کوم چه په مسجد کښې ده هغه اوچته کړه او ماته ئې راکړه، په دې صورت کښې به رسول الله ﷺ د مسجد نه بهر وى او حصير به مسجد کښې دننه وى، صاحب د مجمع البحار ليکى چه من المسجد يا خو متعلق دې په ﴿ناولينى﴾ پورې يا په ﴿قال﴾ پورې، په اول صورت کښې به ترجمه داسې وى " دا بوريا د مسجد نه اوچتولو سره ماته راکړه" او په دويم صورت کښې به ترجمه دا وى چه رسول الله ﷺ مسجد ته اوفرمائيل چه دا بوريا ماته راکړه، او بهر حال په دواړو صورتونو کښې به د حائض په مسجد کښې لاس داخلول بيا موندلې شى.

د دې نه معلومه شوه چه حائض په مسجد کښې لاس ور اوږدولو سره څه څيز د بل نه اخستلې او ورکولې شى ځکه چه ممانعت د دخول نه دې نه د ادخال د يد نه او ادخال يد په عرف کښې دخول نه ګڼړلې کيږى، مسئله اتفاقى ده هيڅ اختلاف پکښې نشته، او دا هم ضرورى نه ده چه که په مسئله کښې اختلاف وى نو بيا به دا بيانولې شى، مختلف فيه او متفق عليه ټول مسائل بيانولې شى.

## د لفظ حيضة تحقيق او په هغې کښې د شارحينو اختلاف:

﴿قوله ان حيضتک ليست فى يدک﴾ د رسول الله ﷺ په طلب حصير باندې عائشې ﷞ عرض اوکړو چه زه خو په حالت د حيض کښې يم (مسجد ته لاس څنګه داخلولې شم)ن په دې باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه د حيض وينه ستا په لاس کښې نه لګيږى.

دلته د شارحينو په دې خبره کښې اختلاف دې چه دا لفظ حيضة په کسرې د حاء سره دې يا که په فتحې د حاء سره، د خطابى رائې دا ده چه دا په کسرې د حاء سره دې ددې

[1]: صحيح مسلم/الحيض ٢ (٢٩٨)، سنن الترمذي/الطهارة ١٠١ (١٣٤)، سنن النسائي/الطهارة ١٧٣ (٢٧٢)، والحيض ١٨ (٣٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٤٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٠ (٦٣٢)، مسند احمد (٤٥/٦، ١٠١، ١١٢، ١١٤، ١٧٣، ٢١٤، ٢٢٩، ٢٤٥) سنن الدارمي/الطهارة ٨١ (٧٩٨) (صحيح)

معنی ده هغه حالت کوم چه حائضې ته د حیض د وجې نه عارض وی، لکه جنابت کوم چه سړی ته د خروج منی د وجې نه عارض وی، او حیضه په فتحې د حاء سره په معنی د دم حیض دې، خطابی په هغه محدثینو باندې رد کړې دې کوم چه دا بالفتح لولی ددې بالمقابل قاضی عیاض رحمه الله د خطابی رد کړې دې او وئیلې ئې دی چه صحیح هم هغه ده چه محدثین وائی یعنی بالفتح او د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا دې چه دم حیض د کوم نه چه مسجد بچ کول ضروری دی هغه په لاس باندې چرته دې، امام نووی رحمه الله د قاضی عیاض رحمه الله رائې ته ترجیح ورکړې ده او دا ئې هم فرمائیلې دی چه خطابی چه څه وائی دهغې هم یو معقوله وجه ده او زمونږ حضرت په بذل کښې د خطابی رائې ته ترجیح ورکړې ده او دا ئې هم فرمائیلې دی ځکه چه دا خبره خو عائشې رضی الله عنها ته هم معلومه وه چه دم حیض په لاسونو باندې نه دې لګیدلې هغه د ادخال ید فی المسجد نه ځکه منع شوه چه د خروج حیض د وجې نه چه زنانه ته کوم حالت عارض وی دهغې حلول په لاس کښې هم دې خو رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه دهغې حاصل دا دې چه د حیض د وجې نه چه زنانه ته کوم حالت عارض وی دهغې تعلق د ټول بدن سره دې د بیلو بیلو اندامونو سره نه دې، لهذا صرف لاس ته حائض نه شی وئیلې کیدې، علی هذا القیاس د جنبی سړی لاس یا بل اندام ته به جنبی نه شی وئیلې کیدې بلکه ددې اطلاق به په مجموعه بدن باندې وی.

## بَابٌ فِي الْحَائِضِ لَا تَقْضِي الصَّلَاةَ

### باب دې په بیان د حائضې کې چې د مونځ قضائي به نه راوړې

مسئله د اهل سنت ترمینځه اجماعی ده چه د زمانه حیض د مونځونو قضاء واجب نه ده په خلاف د صوم چه دهغې قضاء واجب ده د خوارجو په دې کښې اختلاف دې هغوی د وجوب قضاء صلوة قائل دی، په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د سمرة بن جندب رضی الله عنه په باره کښې راځی چه هغوی په شروع کښې د مونځ قائل وو په دې باندې ام سلمه رضی الله عنها په هغوی باندې نکیر اوفرمائیلو نو بیا هغوی اودریدل، لکه چه په ابوداؤد کښې وړاندې په باب فی وقت النفساء کښې دا روایت راروان دې او په دواړو کښې د فرق وجه مشهوره ده چه که د مونځونو قضاء واجب وی نو فرض به مکرر او دوچند شی چه په هغې کښې حرج دې او حرج په شریعت کښې مدفوع دې او په قضاء د صوم کښې دا خبره نه لازمیږی.

[۲۶۲] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ مُعَاذَةَ، أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتْ عَائِشَةَ: أَتَقْضِي الْحَائِضُ الصَّلَاةَ؟ فَقَالَتْ: "أَحَرُورِيَّةٌ أَنْتِ؟ لَقَدْ كُنَّا نَحِيضُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا نَقْضِي وَلَا نُؤْمَرُ بِالْقَضَاءِ".

**ترجمه**: د معاذه نه روایت دې، بیشکه یوې ښځې تپوس اوکړو د عائشې نه، ایا ته قضائي راوړې د مانځه؟ نو هغې اووئیل ایا ته حروریه یې؟ بیشکه مونږ باندې به حیض راتلو په زمانه د رسول الله ﷺ کښې نو مونږ به قضائي نه راوړه او مونږ ته به حکم د قضائي هم نه کېدو.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ – قوله فَقَالَتْ أَحَرُورِيَّةٌ أَنْتِ ﴾ د عائشې رضی الله عنها نه تپوس اوکړې شو چه آیا د حیض د مونځونو قضاء شته؟ نو په دې باندې هغوی دا اوفرمائیل.

## د لفظ حرورية او ددې نسبت تشريح:

حرورية نسبت دې د حروراء طرف ته کومه چه کوفې ته نزدې يو قرية ده د علي رضي الله عنه خلاف هلته د خوارجو اجتماع شوې وه په دې وجه خوارج هغه قرية ته منسوب کولو سره هغې ته حرورية وائي.

د خوارجو د سيدنا علي رضي الله عنه خلاف د بغاوت قصه، په کتب حديث وتاريخ کښې مشهوره ده، اول هغوى د علي رضي الله عنه سره وو د جنګ صفين په موقع باندې په مسئله د تحکيم کښې د علي رضي الله عنه نه خفه کيدو سره بيل شو، او د مقابلې دپاره وسلې اخستلو سره تيار شو دا د اتو زرو کسانو لښکر وو ددې لښکر امير عبدالله بن الکوی وو، سيدنا علي رضي الله عنه عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ددې خلقو د پوهه کولو او د مناظرې دپاره اوليږلو، د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما سره د هغوى مناظره اوشوه او په هغه لښکر کښې دوه زره کسانو رجوع اوکړه شپږ زره باقي پاتې شو، سيدنا علي رضي الله عنه په مقام نهروان کښې د هغوى مقابله اوکړه، جنګ نهروان هم ددې نوم دې چه په هغې کښې علي رضي الله عنه ته شانداره فتح ملاؤ شوه، ددې جنګ او فتح متعلق روايات په ابوداؤد کښې په ابواب شرح السنة کښې موجود دی.

دلته دا سوال واردېږي چه عائشې رضي الله عنها دا سوال کونکې په دې سوال باندې سمدستې فرقه خوارج ته څنګه منسوب کړه؟ کومه چه يقينا يو بد دينه فرقه ده، جواب دا دې چه عائشې رضي الله عنها ته په ظاهر کښې دا شبهه پيدا شوه چه سائلې ته ددې حکم شرعي په ثبوت کښې تردد دې لکه چه د مسلم د روايت د الفاظو نه مستفاد کيږي، د مسلم په روايت کښې داسې دی چه هغې زنانه اووئيل - ﴿ما بال الحائض تقضى الصوم ولا تقضى الصلوة﴾ په دې وجه باندې عائشې رضي الله عنها په جواب کښې دا طرز احتيار کړو، او يو جواب دا هم کيدې شي چه د عائشې رضي الله عنها دا وينا په طور د ظرافت او خوش طبعئ وه حقيقت د کلام نه دې مراد.

[۲۶۳](1) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَمْرٍو، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُعَاذَةَ الْعَدَوِيَّةِ، عَنْ عَائِشَةَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَزَادَ فِيهِ: فَنُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّوْمِ، وَلَا نُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّلَاةِ.

**ترجمه:** معاذة روايت کوي د عائشې نه په دې حديث سره. وئيلې دي ابوداود: او زيادت ئې کړی دی په هغې کې: پس امر به کېدی شو مونږ ته په قضاء د روژې، او امر به نه شو کېدی مونږ ته په قضاء د مونځ.

## بَابٌ فِي إِتْيَانِ الْحَائِضِ
### باب دې په بيان د اتيان کې حائضې ته

يعنی په حالت د حيض کښې وطی کول، دلته دوه مسئلې دی يو د وطی فی حالة الحيض حکم، دويم په حديث کښې چه کومه کفاره ذکر ده دهغې شرعي حيثيت، پس څان پوهه کړه چه وطی فی حالة الحيض بالاجماع حرام ده، نص قطعي سره دهغې حرمت ثابت دې، خو په دې کښې اختلاف دې چه ددې د مستحل به تکفير کولې شی يا نه، د قياس تقاضا خو هم

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۶٤) (صحيح)

دا ده چه د هغه تکفير اوکړې شي او د ډيرو علماء کرامو رائې هم دا ده خو په درمختار کښې ليکلې دی چه د محققينو په نزد به د هغه تکفير نه شي کولې، ځکه چه وطی فی حالة الحيض قبيح لعينه نه ده بلکه لغيره ده.

د دويم مسئلې جواب دا دې چه کومه کفاره په حديث کښې مذکور ده هغه د جمهور ائمه اربعه په نزد په طريق د استحباب ده او په داسې سړی باندې اصل واجب توبه او استغفار دی، خو د امام احمد رحمه الله په يو روايت او د امام شافعي رحمه الله قول قديم دا دې چه په دې کښې کفاره واجب ده او هم دا مذهب دې د حسن بصری، اسحق بن راهويه او سعيد بن جبير رحمهم الله، بيا کوم خلق چه د وجوب تکفير قائل دی په هغوی کښې اختلاف دې چه په کفاره کښې څه واجب دی؟ د حسن بصری او د سعيد بن جبير په نزد عتق رقبة ده او د باقی په نزد دينار يا نصف دينار دې.

او په دې هم ځان پوهه کړه چه په حديث کښې چه کوم لفظ د او راغلې دې چه دينار به ورکوی يا نصف دينار دا د امام احمد رحمه الله په نزد د تخيير دپاره دې (كما فی الروض المربع) او د امام شافعي رحمه الله په نزد د تنويع دپاره دې كما قال ابن رسلان يعنی که د حيض په ابتدائی زمانه کښې ئې وطی اوکړه نو بيا خو به د يو دينار تصدق کولې شی او که په اخری وخت کښې ئې وطی اوکړه نو نصف دينار، هم دغه شان په ترمذی کښې د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې چه که دم احمر وې نو يو دينار او که اصفر وی نو نصف دينار، ددې وجه هم دا ده چه حيض په اول وخت کښې احمر او په آخری وخت کښې اصفر شی. او په ظاهره د اول او آخرې په حکم فرق په دې وجه دې چه په اول صورت کښې جرم شديد دې او په دويم صورت کښې صحبت لره څه موده د جدا کيدو د وجې نه فی الجملة معذور ګڼړلې شوې دې. په دې وجه په کفاره کښې تخفيف اوکړې شو.

[٢٦٤]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي الْحَكَمُ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فِي الَّذِي يَأْتِي امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ، قَالَ: يَتَصَدَّقُ بِدِينَارٍ أَوْ نِصْفِ دِينَارٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَكَذَا الرِّوَايَةُ الصَّحِيحَةُ: قَالَ: دِينَارٌ أَوْ نِصْفُ دِينَارٍ، وَرُبَّمَا لَمْ يَرْفَعْهُ شُعْبَةُ.

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې هغه د نبی صلی الله عليه وسلم نه روايت کوې په باره د هغه چا کښې چه راتلل کوې خپلې ښځې ته او هغه حائضه وې، هغه اوونيل صدقه به ورکوې د يو دينار او نيم دينار. وئيلی دې ابوداود: دارنګ دی روايت صحيحه، هغه وئيلی دی. دينار او يا نيم دينار. او کېدی شي شعبه نه وې مرفوع کړی

**تشريح**: ١: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ – قوله قَالَ أَبُو دَاوُدَ هَكَذَا الرِّوَايَةُ الصَّحِيحَةُ ﴾ دې روايت نه صحيح د هغه بل روايت په مقابله کښې وائی کوم چه ددې نه وړاندې راغی چه په هغې کښې نصف دينار ذکر دې او دهغې نه هم وړاندې په دريم روايت کښې ﴿ بخمسی دينار ﴾ راغی.

[1]): سنن النسائي/الطهارة ١٨٢ (٢٩٠)، والحيض ٩ (٣٧٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٣ (٦٤٠)، (تحفة الأشراف: ٦٤٩٠)، ويأتي هذا الحديث في النكاح (٢١٦٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ١٠٣ (١٣٦ و ١٣٧)، مسند احمد (١/٢٣٧، ٢٧٢، ٢٨٦، ٣١٢، ٣٢٥، ٣٦٣، ٣٦٧) سنن الدارمي/الطهارة ١١١ (١١٤٥) (صحيح)

[۲٦٥]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحَكَمِ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَبِي الْحَسَنِ الْجَزَرِيِّ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِذَا أَصَابَهَا فِي أَوَّلِ الدَّمِ، فَدِينَارٌ، وَإِذَا أَصَابَهَا فِي انْقِطَاعِ الدَّمِ، فَنِصْفُ دِينَارٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ، عَنْ مِقْسَمٍ.

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى: كله چه ورسره‌ي هغې ښځى ته په اول د وينې كښې نو دينار دى، او چه كله ورته ورسره‌ي په انقطاع د دم كښې نو نيم دينار دى. وئيلى دي ابوداود: او همدارنګه وئيلى دي ابن جريج د عبد الكريم نه او هغه د مقسم نه.

[۲٦٦]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا وَقَعَ الرَّجُلُ بِأَهْلِهِ وَهِيَ حَائِضٌ، فَلْيَتَصَدَّقْ بِنِصْفِ دِينَارٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا قَالَ عَلِيُّ بْنُ بَذِيمَةَ: عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مُرْسَلًا، وَرَوَى الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: آمُرُهُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِخُمُسَيْ دِينَارٍ، وَهَذَا مُعْضَلٌ.

**ترجمه:** ابن عباس رضي الله عنه روايت كوي د نبي صلى الله عليه وسلم نه هغه وئيلى دى: كله چه واقع شي يو سړى په خپل اهل او هغه حائضه وي نو صدقه دې وركړي په نيم دينار سره. وئيلى دي ابوداود: او همدارنګه وئيلى دي علي بن بذيمة د مقسم نه او هغه د نبي صلى الله عليه وسلم نه په طريقې د ارسال سره، او روايت كړى دى اوزاعي د يزيد بن ابي مالک نه، او هغه د عبد الحميد بن عبد الرحمن نه، او هغه د نبي صلى الله عليه وسلم نه، هغه فرمايلي دى: زه ورته امر كوم چه صدقه وركړي په دوه خمسونو د دينار. او دا معضل دى.

**تشريح:** ۲: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ – قوله وَهَذَا مُعْضَلٌ ﴾

د باب ددې آخرى حديث په باره كښې مصنف رحمه الله د معضل حكم لګوى، معضل هغه حديث دې چه دهغې د سند دوه راويان مسلسل ساقط وى، دلته چه كوم دوه راويان ساقط دى هغه د عبدالحميد نه روستو دى، هغه دوه راويان څوک دى؟ مصنف رحمه الله دهغې سره تعرض نه دې كړې، خو د بيهقى روايت كوم چه وړاندې راروان دې دهغې نه معلوميږى چه په هغوى كښې يو عمر رضي الله عنه، خو څان پوهه كړه چه د ابوداؤد دا روايت امام بيهقى رحمه الله د ابن داسه د نسخې نه نقل كړې دې، چه دهغې سند داسې دې ﴿ عن عبد الحميد بن عبدالرحمن اظنه عن عمر ﴾، او امام بيهقى رحمه الله فرمائى چه دا حديث منقطع دې د عبدالحميد او عمر ترمينځه انقطاع ده، لهذا دا روايت د نسخه ابن داسه په اعتبار سره صرف منقطع دې زمونږ نسخه كومه چه ابوعلى لولوى طرف ته منسوب ده دهغې په لحاظ سره معضل دې.

بله دا چه د بيهقى د روايت نه هم معلوميږى چه دلته په متن كښې امره ان يتصدق كښې د ضمير مرجع عمر رضي الله عنه دې، رسول الله صلى الله عليه وسلم عمر رضي الله عنه ته د دينار يا نصف دينار په ځائې د دوه خمس دينار د تصدق حكم اوفرمائيلو ددې وجه په ظاهر كښې دا ده لكه چه په بيهقى

[1]: تفرده به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٤٩٨)، ويأتي هذا الحديث في النكاح (٢١٦٩) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الطهارة ١٠٣ (١٣٦)، (تحفة الأشراف: ٦٤٨٦) (ضعيف)

کښې ددې زنانه په باره کښې دی ﴿ انها کانت تکره الرجل ﴾ چه دې زنانه د سړي خواهش نه لرلو ددې روایت نه دا معلومه شوه چه عمر رضي الله عنه دهغې سره وطی په دې حالت کښې په دې خیال کړې وه چه دا هسې بهانې کوی، قصدا ئې نه وه کړې په دې وجه په کفاره کښې تخفیف اوکړې شو.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُصِيبُ مِنْهَا مَا دُونَ الْجِمَاعِ

### باب دې په بیان د سړي کښې چې رسیږي هغه ته کم د جماع نه

[۲۶۷](1) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ حَبِيبٍ مَوْلَى عُرْوَةَ، عَنْ نُدْبَةَ مَوْلَاةِ مَيْمُونَةَ، عَنْ مَيْمُونَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُبَاشِرُ الْمَرْأَةَ مِنْ نِسَائِهِ وَهِيَ حَائِضٌ، إِذَا كَانَ عَلَيْهَا إِزَارٌ إِلَى أَنْصَافِ الْفَخِذَيْنِ أَوِ الرُّكْبَتَيْنِ تَحْتَجِزُ بِهِ".

**ترجمه**: د میموني نه روایت دې بیشکه رسول الله ﷺ وو چه مباشرت به ئې کولو د بي بي سره د خپلو بیبیانو نه او هغه به حائضه وه، کله چه به وو په هغې باندې لنګ نیم د ورنونو پورې او یا د زنګنونو پورې، چه ځان به ئې ساتلو په هغې.

**د مباشرت حائض انواع او د هغې په باره کښې د ائمة کرامو اختلاف**:

ځان پوهه کړه چه د مباشرت حائض درې قسمونه دی یو بالاجماع حرام، او یو بالاجماع جائز او یو مختلف فیه،

۱: مباشرت فی الفرج بالاجماع حرام دې،

۲: او مباشرت فیما فوق السرة وتحت الرکبة په اتفاق د ائمة اربعه جائز دې خو د ابن عباس او عبیده سلمانی په نزد دا هم ناجائز دې،

۳: او مباشرت بین السرة والرکبة سوی القبل والدبر مختلف فیه دې د ائمه ثلاث او امام ابویوسف په نزد ناجائز او د امام احمد او محمد په نزد جائز دې. (2)

قسم ثالث کوم چه مختلف فیه دې دهغې په باره کښې امام نووی رحمه الله لیکلي دی چه قول اصح و اشهر د جمهور شوافعو په نزد هم دا دې چه حرام دی او دویم قول دا دې چه حرام نه دې بلکه مکروه تنزیهی دې، دریم قول دا دې چه که مباشر ته په خپل نفس باندې اعتماد وی نو بیا خو جائز دې ګڼلې نه دې، امام نووی رحمه الله د جواز قول ته خپل قول مختار او من حیث الدلیل اقوی لیکلي دې هم دغه شان زمونږ په علماء کرامو کښې علامه عینی رحمه الله هم دې قول ته اقوی لیکلي دې، د مجوزین یعنی امام احمد او محمد رحمهما الله دلیل د انس رضي الله عنه حدیث مرفوع ﴿ اصنعوا کل شئ الا النکاح ﴾ دې کوم چه په صحیح مسلم او سنن

---

(1): سنن النسائي/الطهارة ۱۸۰ (۲۸۸)، والحيض ۱۳ (۳۷٦)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۸۵)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحيض ۵ (۲۹۸)، صحيح مسلم/الحيض ۱ (۲۹٤)، مسند احمد (٦/۳۳۵)، سنن الدارمي/الطهارة ۱۰۷ (۱۰۹۷) (صحيح)

(2)، حضرت شیخ به دا اختلاف داسې بیانولو چه په دې مسئله کښې بوداګان یو طرف ته او ځوانان بل طرف ته دې، د بوداګانو په نزد ناجائز او د ځوانانو په نزد جائز، امام محمد رحمه الله چونکه د امام ابویوسف رحمه الله نه ورو کې وو او امام احمد رحمه الله په ائمه اربعه کښې د زمانې په لحاظ سره زمانا د ټولو نه موخر دې، غالبا په دې وجه ئې دې دواړو ته ځوانان اووئیل

ابوداؤد وغیره کښې روایت دي، د مانعینو دلیل احادیث الباب دی، پس حدیث اول کوم چه د میمونې رضي الله عنها نه روایت دې په هغې کښې دا دی ﴿ كَانَ يُبَاشِرُ الْمَرْأَةَ مِنْ نِسَائِهِ وَهِيَ حَائِضٌ إِذَا كَانَ عَلَيْهَا إِزَارٌ ﴾ او حدیث ثانی کوم چه د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې په هغې کښې دی ﴿ يَأْمُرُ إِحْدَانَا إِذَا كَانَتْ حَائِضًا أَنْ تَتَّزِرَ ثُمَّ يُضَاجِعُهَا ﴾ او مجوزین دا د اتزار روایتونه په استحباب او تورع باندې محمول کوي.

**تنبیه**: خان پوهه کړه چه حافظ په فتح الباری کښې د امام طحاوی رحمه الله طرف ته منسوب کړې دی چه هغوی د امام احمد رحمه الله قول ته ترجیح ورکړې ده، حضرت شیخ په حاشیه د اوجز کښې لیکلې دی چه د حافظ نه علاوه ابن رسلان او صاحب د تعلیق الممجد هم د امام طحاوی رحمه الله هم ددې قول طرف ته ترجیح نقل کړې ده حال دا چه دا صحیح نه ده، امام طحاوی رحمه الله په معانی الآثار کښې د خپل کلام په شروع کښې هم دې ته ترجیح ورکړې وه خو بیا ئې وړاندې تلو سره دهغې نه رجوع کولو سره د امام صاحب قول ته ترجیح ورکړې ده، دې حضراتو ته د طحاوی د شروع د کلام نه وهم پیدا شوی دې او هغوی د کلام آخره نه ده کتلې.

[٢٦٨]() حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ إِحْدَانَا إِذَا كَانَتْ حَائِضًا، أَنْ تَتَّزِرَ، ثُمَّ يُضَاجِعُهَا زَوْجُهَا"، وَقَالَ مَرَّةً: يُبَاشِرُهَا.

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې هغې وئیلی دی: وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چه امر به ئې کولو یوې زمونږ ته چه کله به حائضه وه چه لنګ واچوي، بیا به ورسره پرېوتلو خاوند د هغې. او وئیلی ئې دي یو ځل: چه مباشرت به ئې ورسره کولو.

**په لفظ حدیث باندې د قاعده صرفیه د مخالفت اشکال او د هغې جواب:**

٢: ﴿ حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ — قوله يَأْمُرُ إِحْدَانَا إِذَا كَانَتْ حَائِضًا أَنْ تَتَّزِرَ ﴾ د لفظ تتزر په سلسله کښې په شروح حدیث کښې ډیر تفصیلی کلام کړې شوې دې چه دهغې خلاصه دا ده په دې لفظ باندې د قواعد صرفیه په لحاظ سره اشکال دې، د قاعدې په اعتبار سره ﴿ ان تاتزر ﴾ کیدل پکار دی په دې وجه ددې مصدر ائتزار دې او فاء د افتعال په تاء باندې بدلولو سره په تاء کښې مدغم کول د قاعدې خلاف دی او په اتخاذ کښې ګویا هم دغه شان شوی دی خو اهل صرفو دې ته شاذ وئیلې دی په دې روایت حدیثیه کښې کله خو د قاعدې مطابق راغلی او کله د ادغام سره خلاف قیاس وارد شوې دې اوس ډیرو شارحینو چه په هغوی کښې ابن هشام، زمخشری او صاحب قاموس وغیره دی دې ته خطاء او تحریف وئیلې دي، خو ابن مالک وئیلې دی چه ددې مدار په سماع باندې دې، د باب افتعال په مصادرو کښې دا تغیر شوې دې دهغې نظائر موجود دی لکه اتکل او اتمن کما فی قراءة فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اتُّمِنَ لهذا دا لفظ هم ددې قبیل نه کیدې شی، او که دا خطاء اومنلې شی نو په

():صحيح البخاري/الحيض ٥ (٢٩٩)، صحيح مسلم/الحيض ١ (٢٩٣)، سنن الترمذي/الطهارة ٩٩ (١٣٢)، سنن النسائي/الطهارة ١٨٠ (٢٨٧)، والحيض ١٢ (٣٧٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢١ (٦٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٨٢) (صحيح)

دې صورت کښې کیدې شي چه دا د راویانو تصرف وی، د عائشې ﷞ لفظ نه دې خو که د عائشې ﷞ نه ثابت شي نو بیا کلام عائشه ﷞ پخپله حجت دې لانها من فصحاء العرب، علامه کرمانی ﷫ هم داسې وئیلې دی چه کلام عائشه حجت دې، او حافظ فرمائی چه بعض علماء کرامو د ادغام جواز د کوفیانو مذهب لیکلې دې په دې صورت کښې خو بیا هیڅ اشکال نشته، زمونږ استاذ محترم مولانا اسعد الله صاحب ﷫ چه ډیر لوئې ادیب وو هغوی به فرمائیل چه اهل لسان د صرف او نحو د قواعدو پابند نه دی بلکه خپله دا قواعد د فصحاء عرب د کلام او د هغوی د استعمالات نه ماخوذ دی.

[٢٦٩]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ جَابِرِ بْنِ صُبْحٍ، سَمِعْتُ خِلَاسًا الْهَجَرِيَّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقُولُ: "كُنْتُ أَنَا وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيتُ فِي الشِّعَارِ الْوَاحِدِ وَأَنَا حَائِضٌ طَامِثٌ، فَإِنْ أَصَابَهُ مِنِّي شَيْءٌ غَسَلَ مَكَانَهُ وَلَمْ يَعْدُهُ، ثُمَّ صَلَّى فِيهِ، وَإِنْ أَصَابَ تَعْنِي ثَوْبَهُ مِنْهُ شَيْءٌ، غَسَلَ مَكَانَهُ وَلَمْ يَعْدُهُ، ثُمَّ صَلَّى فِيهِ".

**ترجمه**: خلاس الهجري وئیلی دي ما اوریدلي دي د عائشې نه هغې به ویل: وم زه او رسول الله ﷺ چه شپه به مو تیروله په یوه شړۍ کښې او زه به حائضه وم، که چېرې به ورسیدلو زما نه هغه ته څه شي نو وبه ئې وینځلو هغه ځائې او دهغې نه به ئې تجاوز نه کولو، بیا به ئې مونځ کولو په هغې کښې، او که چېرې به ورسیدلو (مطلب جامه د هغه ته) هغه ته څه شي نو هغه ځائې به ئې وینځلو او دهغې نه به ئې تجاوز نه کولو، بیا به ئې مونځ اوکړو په هغې کښې.

**د لفظ حدیث په ظاهر باندې یو اشکال او د هغې توجیه:**

۳: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ – قوله نَبِيتُ فِي الشِّعَارِ الْوَاحِدِ وَأَنَا حَائِضٌ طَامِثٌ فَإِنْ أَصَابَهُ مِنِّي شَيْءٌ غَسَلَ مَكَانَهُ وَلَمْ يَعْدُهُ ثُمَّ صَلَّى فِيهِ ﴾ سیده عائشه ﷞ فرمائی زه او رسول الله ﷺ دواړو به په یو کپړه کښې شپه تیروله او زه به حائضه اوم، بیا که به زما نه په هغوی باندې څه اولګیدل یعنی دم حیض نو رسول الله ﷺ به صرف هم هغه ځائې وینځلو چرته چه به نجاست لګیدلې وو دهغې نه به ئې زیادت نه کولو، وړاندې په روایت کښې دی ﴿ ثم صلی فیه ﴾ ددې لفظ د ماقبل سره ربط نه معلومیږی ځکه چه په ما قبل کښې په ظاهره د بدن ذکر دې که په هغې باندې به څۀ اولګیدل نو هغه به ئې وینځل، په بدن کښې د مونځ لوستلو څه مطلب؟ او ددې نه په وړاندې جمله کښې دا هم راځی هلته هم دا لفظ دې خو هلته صحیح دې ځکه چه په هغې کښې د ثوب ذکر دې چه که د رسول الله ﷺ په جامه باندې به څۀ اولګیدل نو هغه به ئې وینځلو او مونځ به ئې پکښې اوکړو هم په دې وجه حضرت په بذل کښې لیکی چه په ظاهر کښې دا لفظ دلته غلط دې چه دهغې دوه قرینې دی یو دا چه د ماقبل سره معنوی ربط نشته، دویم دا چه امام بیهقی ﷫ هم دا روایت د ابن داسه د نسخې نه نقل کړې دې هلته دا لفظ ﴿ ثم صلی فیه ﴾ نه دې مذکور زه وایم هم دغه شان دا روایت وړاندې د ابوداؤد

[1]): سنن النسائي/الطهارة ١٧٩ (٢٨٥)، والحيض ١١ (٣٧٢)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٦٧)، مسند احمد (٤٤/٦)، سنن الدارمي/الطهارة ١٠٤ (١٠٥٣)، ويأتي عند المؤلف في النكاح برقم (٢١٦٦) (صحيح)

په كتاب النكاح كښې راروان دي هلته هم دا لفظ نشته.

زمونږ استاذ محترم مولانا اسعد الله رحمه الله د خپل بذل په حاشيه كښې يو توجيه فرمائيلې ده هغه دا چه د حديث د دواړو جملو تعلق دې د كپړې سره اومنلې شي د بدن سره نه او د تكرار نه د بچ كيدو دپاره دې دا اووئيلې شي چه په اول جمله كښې شعار مذكور دې او په جمله ثانيه كښې ثوب، او د ثوب نه مراد غير شعار دې، او يو بله توجيه هم كيدې شي هغه دا چه مراد دواړو ځايونو كښې يو كپړه ده خو مقصود دا دې چه يو ځل به ئې كپړه وينځله او په هغې كښې به ئې مونځ اوكړو دهغې نه پس به كه دوباره بيا په هغې باندې څه څيز اولګيدلو نو بيا به ئې هغه هم دغه شان وينځلو او په هغې كښې به ئې مونځ كولو لكه چه هم دغه شان دا مضمون د نسائى په روايت كښې هم دې كوم چه حضرت په بذل كښې نقل فرمائيلې دې. لهذا دا تكرار په تعدد د واقعې باندې محمول دې غرض دا چه ددې توجيهاتو په صورت كښې به ﴿ ثم صلى فيه ﴾ په دواړو ځايونو كښې صحيح شي.

﴿ قوله وَلَمْ يَعْدُهُ ﴾ دا د ﴿ لم يدع ﴾ په وزن باندې دې د عدا يعدو نه ماخوذ دې چه دهغې معنى د تجاوز كولو ده او مطلب دا دې چه صرف هم هغه ځائې به ئې وينځلو چرته چه به څه لګيدلې وو دهغې نه به ئې زيادت نه كولو يعنى هغه به ئې نه وينځلو.

[٢٧٠]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ يَعْنِي ابْنَ عُمَرَ بْنِ غَانِمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ زِيَادٍ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غُرَابٍ، قَالَ: إِنَّ عَمَّةً لَهُ حَدَّثَتْهُ، أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: إِحْدَانَا تَحِيضُ وَلَيْسَ لَهَا وَلِزَوْجِهَا إِلَّا فِرَاشٌ وَاحِدٌ، قَالَتْ: "أُخْبِرُكِ بِمَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، دَخَلَ لَيْلًا وَأَنَا حَائِضٌ، فَمَضَى إِلَى مَسْجِدِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: تَعْنِي مَسْجِدَ بَيْتِهِ، فَلَمْ يَنْصَرِفْ حَتَّى غَلَبَتْنِي عَيْنِي وَأَوْجَعَهُ الْبَرْدُ، فَقَالَ: ادْنِي مِنِّي، فَقُلْتُ: إِنِّي حَائِضٌ، فَقَالَ: وَإِنْ، اكْشِفِي عَنْ فَخِذَيْكِ، فَكَشَفْتُ فَخِذَيَّ فَوَضَعَ خَدَّهُ وَصَدْرَهُ عَلَى فَخِذِي وَحَنَيْتُ عَلَيْهِ حَتَّى دَفِئَ وَنَامَ".

**ترجمه**: عمارة بن غراب نه روايت دې هغه وئيلى دى: بيشكه د هغه عمې هغه ته بيان كړى دى چه هغې د عائشې نه تپوس اوكړو هغې اووئيل: يوه زمونږ نه حائضه كيږي او نشته دهغې او د خاوند لپاره ئې مګر بستره يوه؟ هغې وفرمايل: زه خبر دركوم تاته په هغه څه چه كړي وو رسول الله ﷺ، داخل شو او د كور مسجد ته لاړلو. وئيلى دي ابوداود: مطلب ئې د كور مسجد دى. نو رانغلو تردې چه غالبې شوې په ما باندې سترګې زما او دردمند كړى وو هغې لره يخنى، نو هغه اووئيل: رانزدې شه ماته، نو ما اووئيل چه حائضه يم، نو هغه وفرمايل: چه ښكاره كړه خپل ورنونه، نو ما ښكاره كړل خپل ورنونه نو كېخوده هغه خپل مخ او سينه زما په ورنونو، او زه وركړه شوم په هغه تردې چه ګرم شو او اوده شو.

**تشريح**: ۴: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ – قوله أَنَّهَا سَأَلَتْ الخ ﴾ د حديث مضمون دا دې عمارة بن غراب وائى چه يو ځل زما ترور ماته بيان اوكړو چه ما د عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوكړو چه كله كله به داسې كيدله چه په مونږ كښې به د چا حيض وو او حال دا دې چه دهغې او دهغې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٩٩٣) (ضعيف)

د زنانه به یو بستره وه نو آیا په حالت د حیض کښې یو ځائې سملاستې شی، یعنی د مضاجعة مع الحائض تپوس ئې اوکړو نو په دې باندې عائشې ﷞ اوفرمائیل چه زه تا ته یو واقعه واوروم هغه دا چه یو ځل داسې اوشو چه رسول الله ﷺ کور ته داخل شو او مصلی یعنی د مونځ کولو کوم ځائې چه وو هلته ئې تشریف یوړلو او په مانځه کښې مشغول شو، بل طرف ته زه په خپله بستره باندې ملاسته اوم ترڅو چه رسول الله ﷺ د مانځه نه فارغ کیدو سره بتسرې ته راتلو زه اوده شوې اوم، رسول الله ﷺ هغه وخت یخنئ تنګ کړې وو په دې وجه هغوی ماته اوفرمائیل چه ماته رانزدې شه ما عرض اوکړو زه حائضه یم په دې باندې رسول الله ﷺ (زما د شک او تردد د زائل کولو دپاره) دا اوفرمائیل چه د خپل فخذینو نه کپړه هم لرې کړه، پس ما لرې کړه او رسول الله ﷺ خپل رخسار مبارک او خپله سینه زما په فخذ باندې کیخودله او زه هم په رسول الله ﷺ باندې ښه راښکته شوم، تردې چه رسول الله ﷺ راګرم شو او اوده شو.

د دې حدیث نه د مباشرت حائض دا نوع یعنی مضاجعت ثابتیږی چه دهغې دپاره مصنف ﷫ ترجمه قائم کړې ده، اګرچه فی نفسه دا حدیث ضعیف دې ځکه چه ددې په سند کښې عبدالرحمن بن زیاد بن انعم الافریقی دې چه د هغه جرح او تعدیل مختلف فیه دې او هم دغه شان عماره او ام عماره دواړه مجهول دی خو مضاجعة مع الحائض د احادیث صحیحه نه ثابت دې بلکه علماء کرامو لیکلي دی چه که د اتباع نیت اوکړې شی نو ماجور به وی. هسې خو په انواع مباشرت کښې اختلافات د علماء کرامو په شروع کښې ذکر شو.

[٢٧١] (١) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْجَبَّارِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي الْيَمَانِ، عَنْ أُمِّ ذَرَّةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "كُنْتُ إِذَا حِضْتُ نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ عَلَى الْحَصِيرِ، فَلَمْ نَقْرُبْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ نَدْنُ مِنْهُ حَتَّى نَطْهُرَ".

**ترجمه**: د عائشې ﷞ نه روایت دې هغې وئیلی دی: وم زه کله چه به زه حائضه شوم زه به راخکته شوم د بسترې نه پوړ ته، مونږ به نه نزدې کېدلو رسول الله ﷺ، ته تردې چه پاکې به شو.

## حدیث محتاج تاویل دې:

٥: ﴿ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْجَبَّارِ – قوله كُنْتُ إِذَا حِضْتُ نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ عَلَى الْحَصِيرِ الخ ﴾ سیده عائشه ﷞ فرمائی چه کله به ماته حیض راتلو نو زه به د فراش نه (کوم چه دهغې او د رسول الله ﷺ مشترک وو) حصیر ته راکوزه شوم، او ترڅو چه به د حیض نه پاکه شوې نه اوم مونږ به رسول الله ﷺ ته نه نزدې کیدو، دا حدیث د احادیث صحیحه او هم د دې باب د ذکر شوو احادیثو خلاف دې، لهذا دا خو دې یا منسوخ اومنلې شی یا مرول او تاویل دې دا اوکړې شی چه دلته د قرب نه د مخصوص قرب نفی مراد ده یعنی قربان بالجماع هسې خو ددې حدیث په سند کښې یو راوی دې ابوالیمان د هغوی په باره کښې وئیلې شوې دی.

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٧٩٨٠) (ضعيف)

چه دا مستور دي.

او کوم انواع د مباشرت چه مونږ بيان کړي وو په هغي کښې يو قول د ابن عباس رضي الله عنهما تير شوې دې چه د هغوی په نزد مباشرت مطلقا ممنوع دې ددې روايت نه دهغې تائيد کيدې شي.

[۲۷۲]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ بَعْضِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ مِنَ الْحَائِضِ شَيْئًا، أَلْقَى عَلَى فَرْجِهَا ثَوْبًا".

**ترجمه**: عکرمه د بعضو بيبيانو د نبي ﷺ نه روايت کوي. بيشکه نبي ﷺ وو چه کله به ئې اراده اوکړه د حائضې نه د څه شي وابه ئې چولو دهغې په فرج باندې جامه

[۲۷۳]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا فِي فَوْحِ حَيْضَتِنَا أَنْ نَتَّزِرَ، ثُمَّ يُبَاشِرُنَا، وَأَيُّكُمْ يَمْلِكُ إِرْبَهُ كَمَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْلِكُ إِرْبَهُ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلی دی. وو رسول الله ﷺ چه امر به ئې کولو مونږ ته په شروع د حيض زمونږ کښې چه لنګ ووهې، بيا به ئې مباشرت کولو مونږ سره، او کوم يو مالک دی په تاسو کښې د خپل حاجت لکه څنګه چه وو رسول الله ﷺ مالک د خپل خواهش.

**تشريح**: ۷: ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ – قوله يَأْمُرُنَا فِي فَوْحِ حَيْضِنَا الخ ﴾ سيده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ به زمونږ د حيض په شروع کښې کوم چه دهغې د شدت او کثرت وخت دې حکم فرمائيلو چه خپل لنګ برابر کړی. ددې نه پس به مونږ رسول الله ﷺ سره مباشرت يعنی مضاجعت فرمائيلو په بعض رواياتو کښې د لفظ فوح په ځائې لفظ فور راغلې دې او معنی د دواړو يو ده، د حيض د شروع په زمانه کښې د حيض کثرت او شدت وی او بيا چه څومره څومره ورځې تيريږی په هغې کښې کمې راځی غالبا عائشه رضي الله عنها په دې سره دا بيانول غواړی چه رسول الله ﷺ د حائض سره مباشرت صرف په آخری زمانه د حيض کښې نه بلکه په اول زمانه د حيض کښې به هم فرمائيلو.

﴿ قوله وَأَيُّكُمْ يَمْلِكُ إِرْبَهُ ﴾ ارب په کسرې د الف او ارَب په فتحين دواړو طريقو سره دې ددې معنی د حاجت ده او بعض ليکلې دی چه د ارَب معنی خو حاجت ده او د ارب بالکسر معنی حاجت او د عضو مخصوص دواړو راځی.

عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ به مونږ سره په زمانه د حيض کښې مضاجعت فرمائيلو او په تاسو کښې څوک داسې دې چه په خپل حاجت او خواهش باندې داسې قابو لری څومره چه د رسول الله ﷺ وه، شارحينو د عائشې رضي الله عنها د بيان په مراد کښې دوه

---

[1]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۷۹) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/الحيض ٦ (۳۰۲)، صحيح مسلم/الحيض ۱ (۲۹۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲۱ (٦۳۵)، (تحفة الأشراف: ۱٦۰۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۳۳، ۱۴۳، ۲۳۵) (صحيح)

احتمالات لیکلې دی، یو دا چه د هغوی غرض دا دې چه نور خلق دی ځان په رسول الله ﷺ باندې نه قیاس کوی هغوی له احتیاط کول پکار دی، او دویم احتمال دا دې چه رسول الله ﷺ چه کله د قابو یافته کیدو باوجود مباشرت د حائض فرمائیلو او ددې نه نۀ منع کیدو نو بیا به د نورو دپاره ولې جائز نه وی په طریق اولی به جائز وی.

## بَاب فِي الْمَرْأَةِ تُسْتَحَاضُ وَمَنْ قَالَ تَدَعُ الصَّلَاةَ فِي عِدَّةِ الْأَيَّامِ الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُ

**باب دې په بیان د ښځه کې چې مستحاضه شي، او هغه چا چې ویلي دي پریږدې به مونځ په عدت د هغه ورځو کې چې هغې کې به حائضه کېده**

**د استحاضه د روایاتو په باره کښې د مصنف رحمه الله اهتمام او د هغوی د روایات تعدد انواع:**

د دې ځائې نه د استحاضې د ابواب ابتداء کیږی، امام بخاری رحمه الله اول د حیض متعلق څو ابواب ذکر کړې دی دهغې نه پس ئې د استحاضه صرف یو باب ذکر اوفرمائیلو خو امام ابوداؤد او هم دغه شان امام مسلم رحمه الله ابتداء د استحاضه د روایاتو نه کړې ده ددې نه پس ځان پوهه کړه چه د استحاضه روایات چه په کوم کثرت او اهتمام سره امام ابوداؤد رحمه الله بیان فرمائیلې دی زمونږ د علم مطابق دومره په صحاح سته کښې په یو کتاب کښې هم نه دی بیان شوې. مصنف رحمه الله د هر نوع روایات بیل بیل ذکر کولو سره په هر یو باندې مستقل ترجمه قائم کړې ده او د هرې ترجمې د لاندې ئې ډیر روایات او تعلیقات راوړې دی.

د استحاضه په باره کښې د روایاتو اختلاف په مختلف اعتبار او حیثیت سره دې پس د بعض روایاتو په اعتبار (یعنی د الوان دم اعتبار یو مخصوص رنګ (اسود و احمر) وینه د حیض او بل قسم (مثلا اصفر) استحاضه اومنلې شی) سره تمیز مذکور دې، او د بعض نه معلومیږی چه د ایام عدت اعتبار دې، او په بعض کښې توحید غسل دې، او په بعض کښې تعدد غسل او په بعض کښې جمع بین الصلوتین بغسل او په بعض کښې غسل لکل صلوة او په بعض کښې ظهر الی ظهر دې او په بعض کښې من طهر الی طهر دې بله دا چه په دې روایاتو کښې یو د اشکال او خلجان خبره دا موندلې کیږی چه د یوې زنانه په باره کښې بعض وخت په روایاتو کښې د رد الی العادة حکم لګولې شوې دې او په بعض کښې د اعتبار تمیز، حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه زمونږ حضرت سهارنپوری رحمه الله به فرمائیل چه د استحاضه په روایات مختلفه کښې همیشه (د فهم په اعتبار سره) اشکال پاتې شوې دې، د دوی دا خیال وو چه د ابوداؤد په شرح لیکلو سره به کیدې شی چه دا اشکالات ختم شی، خو په شرح باندې د عبور نه پس هم انشراح او تسلی اونشوه زه وایم چه خاص طور سره په دې کتاب کښې د روایاتو د راوړلو په وخت په بعض ابوابو کښې د مصنف رحمه الله بعض عبارتونه داسې دی چه دهغې حل کول ګران معلومیږی پس هم ددې باب په اتم حدیث ﴿ حدثنا یوسف بن موسی ﴾ کښې یو مقام خاص طور سره قابل اشکال دې چه کله مونږ انشاء الله هلته اورسیږو نو معلومه به شی.

## د استحاضه تعریف او د مستحاضه انواع:

د استحاضه تعریف کړې شوې دې: ﴿وهي دم يخرج من المراة في غير اوقاتها المعتادة والمعينة﴾ يعنى استحاضه هغه وینه ده کومه چه د زنانه د فرج نه جارى کيږى د اوقات معينه نه علاوه رحم ته نزدې يو رگ وى چه دهغې نوم عاذل دې دهغې نه دا وينا بهيږى په خلاف د حيض نه چه هغه د رحم د ژورې نه راوځى استحاضه د حيض نه ماخوذ دې چه دهغې معنى لغة د سيلان ده. پس وئيلې شى ﴿حاض الوادى﴾ چه كله په هغې كښې اوبه بهيدل شروع شى، دا ئې باب استفعال ته بوتلو، چه په انقلاب او تغير باندې دلالت كوى كومه چه خاصه ده د باب استفعال لكه چه وئيلې شى استحجر الطين دلته هم په حيض كښې تغير واقع شوې دې چه هغه استحاضه شو يا استفعال ته بوتلل ددې دپاره وو چه په مبالغه او كثرت باندې دلالت اوكړى. علماء كرامو ليكلې دى چه حيض هميشه په صيغه معروف استعماليږى، وئيلې شى ﴿حاضت المراة﴾ او استحاضه په صيغه د مجهول ﴿أستحيضت المراة﴾ په دې كښې نكته دا ده چه اشاره ده ددې خبرې طرف ته چه دم استحاضه خلاف عادت او غير معروف څيز دې ﴿فكانه امر جهل سببه﴾ په خلاف د حيض چه هغه معروف او پيژندګلو څيز دې په ټولو زنانو باندې راځى.

د استحاضه رواياتو باندې من حيث الفقه والمسائل پوهيدلو دپاره ضرورى ده چه اول د مستحاضه اقسام او په هغې كښې اقوال ائمه معلوم كړې شى چه بيا دهغې په رڼړا كښې په رواياتو باندې پوهه او دهغې انطباق اسان شى ځكه چه حضرات فقهاء كرام احاديثو او د الفاظو مغز ته د رسيدلو كوشش كوى او د هغه رواياتو خلاصه راوباسى لهذا هم ددې حضراتو د اقوالو او مذاهبو په رهنمايئ كښې په دې رواياتو باندې ښه طريقې سره انسان پوهيدلې شى. اول يو خبره واورئ هغه دا چه حضرت شيخ په اوجز كښې د مغنى نه نقل كړې دې چه امام احمد بن حنبل رحمه الله اوفرمائيل د حيض او استحاض بنياد صرف په درې احاديثو باندې دې، حديث د فاطمې، حديث د ام حبيبة او حديث د حمنة، ام حبيبة، حمنه او زينب بنت جحش درې واړه خپل مينځ كښې خوايندې وې ټولې بنات جحش دى ګويا داسې معلوميږى چه بنات جحش د استحاضه ټهيكه اخستلې وه. رضى الله تعالى عنهن اجمعين

### (د مستحاضه اقسام)

د مستحاضه انواع د احنافو په نزد خو درې دى، المبتدئه، المعتادة، المتحيرة، خو د مجموع مذاهب ائمه په حيثيت سره ټول پنځه انواع دى، حضرت شيخ رحمه الله په اوجز المسالک كښې دا ټول انواع ډير په تهذيب او ترتيب سره، سره د اختلاف ائمه بيان فرمائيلې دى، هم دهغې مطابق ئې زه هم په دې سبقونو كښې بيانوم

د انواع مستحاضه د بيان نه مخكښې يو بنيادى خبره د فهم قابله ده هغه دا چه دلته دوه څيزونه دى يو العبرة بالعادة او يو العبرة بالتميز يا داسې اوايئ چه اعتبار الايام او اعتبار الالوان يعنى د زنانو د حيض په باره كښې خاص عادت هم وى په څو باندې اووۀ ورځې راځى او په څو باندې لس ورځې او داسې زنانه ته فقهاء كرام معتادة وائى او ډيرو

زنانو ته د حیض د رنګ پیژندګلو حاصله وي او هغوی د رنګ په ذریعه پیژني چه دا حیض دې یا غیر حیض داسې زنانه ته ممیزه وائي، د ډیرو احادیثو نه د حیض مدار په ایام عادت باندې کیدل معلومیږي او د بعض روایاتو نه په الوان دم باندې، هم په دې وجه د حضرات فقهاء کرامو ترمینځه په دې مسئله کښې اختلاف پیدا شو او حضرات محدثین هم ځانله ځانله د دواړو ابواب قائموي په هر باب کښې دهغې موافق روایات ذکر کوي، جمهور علماء کرام عادت او تمیز دواړه تسلیموي، او د احنافو په نزد تمییز باللون څه معیاري څیز نه دې اصل څیز ایام عادت دې او په دې کښې هم اختلاف دې چه د عادت ثبوت په څو کرته راتلو سره کیږي دهغې تفصیل په اوجز کښې ذکر دې هلته کتلې کیدې شي،[1] اوس ددې تمهید نه پس تاسو مستحاضه عند الائمة باندې ځان پوهه کړئ.

## اول ممیزه غیر معتادة :

یعني هغه زنانه چه حیض او غیر حیض پیژني او عادت ئې هیڅ نه وي په دې کښې به د ائمة ثلاث په نزد د تمییز اعتبار وي.

## ثاني معتادة غیر ممیزة :

یعني صرف عادت ئې دې تمیز نه شي کولې، په دې کښې بالاتفاق د عادت اعتبار وي، خو امام مالک رحمه الله د اعتبار عادت سره درې ورځې د استظهار هم قائل دې په دې شرط چه د ایام عادت او استظهار مجموعه د پنځلسو ورځو نه زیاته نه وي ګیني استظهار به هم په دې حساب سره وي لهذا که د یوې زنانه دولس ورځې عادت وي نو درې ورځې د استظهار به ځانې کولو سره به پنځلس ورځې شي، او که د چا د دیارلسو ورځو عادت وي نو دهغې دپاره به استظهار صرف دوه ورځې وي، د استظهار معنی د انتظار ده مراد ترې نه احتیاط دې.

## ثالث غیر ممیزة معتادة :

یعني عادت او تمییز دواړه شته، پس که عادت او تمییز دواړه متفق وي خو صحیح ده ګیني د احنافو او د امام احمد رحمه الله په راجح قول کښې به د عادت اعتبار وي او په ایام عادت کښې چه هر څنګه وینه راځي هغې ته به حیض وئیلې شي او د ورځو تیریدلو نه پس چه هر څنګه وینه راځي هغې ته به استحاضه وئیلې شي او د امام شافعي او امام مالک رحمهما الله په نزد به د تمییز اعتبار وي یعني کومه وینه چه دهغې د رنګ د وجې نه حیض ګڼړي هغې ته دې حیض اوائي او کوم چه دهغې په پهچان کښې استحاضه وي هغې ته دې استحاضه اوائي، په ایام او زمان حیض باندې به ئې مدار نه وي.

---

[1] ، حضرت شیخ رحمه الله لیکلې دي علامه زرقاني رحمه الله فرمائي چه اصح عند المالکیة والشافعیة دا ده چه د عادت ثبوت په یو ځل سره راځي او ابن قدامة په مغني کښې د حنابله مسلک دا لیکلې دې چه د هغوی په نزد په یو ځل عادت بالاتفاق نه ثابتیږي، او دوه کرته په ثبوت کښې اختلاف دې او په دریم ځل بغیر د اختلاف نه ثابتیږي، او په احنافو کښې د طرفین په نزد د عادت ثبوت مرتین وي ځکه چه عادة د عود نه مشتق دې او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد په یو ځل سره عادت ثابتیږي)

## رابع غير معتادة و غير مميزة :

يعنى نه ورته عادت معلوم دي او نه تميز كولې شى، ددې نوع رابع دوه قسمونه دى مبتدئة او متحيرة، د متحيرة مطلب دا دې چه دهغې عادت وو خو هير شو ترې، د مبتدئة په باره كښې د جمهورو درې اقوال دى، ١: د غالب حيض په اعتبار وى، ٢: د اقل حيض به اعتبار وى، ٣: اكثر مودې د حيض له به اعتبار وى. د غالب حيض مطلب دا دې چه ددې زنانه مشابه چه د خاندان كومې نورې زنانه دى هغوى ته چه عام طور سره څومره حيض راځى دهغې اعتبار دې اوكړې شى دا خو مسلك د ائمه ثلاث، او د احنافو په نزد د حيض اكثرې مودې لره اعتبار دې او قسم ثانى متحيرة په باره كښې د جمهورو په نزد تفصيل دې كوم چه د هغوى په كتابونو كښې مذكور دې، او د احنافو په نزد د متحيره حكم دا دې چه هغه دې تحرى اوكړى، پس كه دهغې تحرى په څه څيز باندې واقع شوه خو صحيح ده، او كه په تحرى كښې ئې يو رائې متعين نه شوه بلكه تردد ئې باقى وى **(فمتى ترددت بين حيض وطهر ودخول فى الحيض تتوضا لكل صلوة ومتى ترددت بين حيض وطهر ودخول فى الطهر تغتسل لكل صلوة)** يعنى كله چه زنانه ته په حيض او استحاض كښې تردد كيدو سره خيال پيدا شى چه په دې وخت په زمانه د حيض كښې داخليږم نو دهغې حكم وضوء لكل صلوة دې او كله چه هغې ته د حيض او استحاض ترمينځه د تردد كيدو سره سره دا خيال وى چه اوس په زمانه د طهر كښې داخليږم او دا د انقطاع حيض وخت دې نو بيا دې هغه غسل لكل صلوة كوى.

د مستحاضه چه كوم اقسام او احكام ذكر شوې دى دهغې نه به تاسو ته معلومه شوې وى چه د احنافو په نزد په هيڅ قسم كښې د تميز اعتبار نشته او كومه زنانه چه صرف معتادة ده په هغې كښې بالاتفاق د عادت اعتبار دې، او كومه چه مميزة او معتادة دواړه وى په هغې كښې امام احمد رحمه الله مونږ سره دې او امام شافعى او امام مالك رحمه الله يو طرف ته دى ګويا حنابله په دې مسئله كښې اقرب الى الحنفية دى او د امام مالك رحمه الله په نزد يو څيز بل هم دې استظهار، دهغې هم د هغوى په نزد اعتبار دې او دا هم معلومه شوه چه په بعض انواع متحيره كښې د احنافو په نزد هم غسل لكل صلوة دې

## حكم د استحاضه او د حيض په اقل او اكثر موده كښې اختلاف ائمة :

خان پوهه كړه چه د مستحاضه حكم د ائمة اربعه په نزد دا دې چه هغه دې په پوره مياشت كښې صرف يو ځل غسل كوى په وخت د منقطع كيدلو د حيض دا بيله خبره ده چه د انقطاع حيض معلومات د شوافعو په نزد په الوان او ايام دواړو سره كيدې شى او زمونږ په نزد صرف په ايام سره، او دهغې نه پس پرې بيا په پوره مياشت كښې غسل نشته بلكه اودس دې د امام شافعى رحمه الله په نزد لكل مكتوبة او د احنافو او د حنابله په نزد لوقت كل صلوة (حضرت شيخ په اوجز كښې ليكى بعض شارحينو ته وهم پيدا شوې دې هغوى په دې مسئله كښې امام احمد د امام شافعى رحمه الله سره كړې دې دا صحيح نه ده) او د امام مالك رحمه الله په نزد اودس مطلقا واجب نه دې بلكه مستحب دې ځكه چه استحاضه د هغوى په نزد ناقض نه ده لكه چه د نواقض وضو په بيان كښې تير شوې دى

ځان پوهه کړه چه د حيض اقله او اکثره موده کښې اختلاف دې د احنافو په نزد اقله موده درې ورځې او درې شپې ده او اکثر موده لس ورځې، د امام شافعي او احمد رحمهما الله په نزد اقل موده يو ورځ او يو شپه ده او اکثر موده پنځلس يا اولس ورځې دی، او د امام مالک رحمه الله په نزد لا حد لاقله او اکثر موده ئې اولس يا اتلس ورځې ده، خو امام ترمذی رحمه الله د ائمه ثلاث درې واړو مسلک يو ليکلې دې اقله يوم وليلة واکثره خمسة عشر يوما.

## د احنافو په نزد د عدم اعتبار تميز وجه :

ددې نه پس ځان پوهه کړه چه احنافو الوان دم معيار نه دې ګڼړلې چه دهغې ډير وجوه دی چه مشهور دی او په بذل کښې هم مذکور دی، اصل وجه دا ده چه د تميز په باره کښې چه کوم روايات صريح دی هغه صحيح نه دی بلکه متکلم فيه دی او کوم چه صحيح دی هغه صريح نه دی، پس د لون په باره کښې چه کوم روايت صريح دې هغه ددې نه په وړاندې باب کښې د عائشې رضي الله عنها په روايت باندې راروان دې چه دهغې الفاظ دا دې ﴿ اذا كان دم الحيضة فانه دم اسود يعرف ﴾ دا حديث په ابوداؤد او نسائی کښې په يو سند سره مروی دې او دواړو په دې باندې کلام کړې دې کوم چه به هغه ځائ ته رسيدلو سره راشي دا تاسو په الفيض السمائی کښې هم کتلې شئ، او دا چه مونږ اووئيل چه کوم روايات صحيح دی هغه صريح نه دی دهغې تشريح دا ده چه په ډيرو رواياتو صحيحه کښې دا راغلی دی چه ﴿ فاذا اقبلت الحيضة فدعی الصلوة واذا ادبرت فاغتسلی ﴾ د جمهورو رائې دا ده چه دا د اقبال او ادبار روايات په تميز باندې محمول دی او هغوی مطلب ددې رواياتو دا اخلی چه کله د مخصوص رنګ وينه راشي نو مونځ دې پريږدی او کله چه د هغه خاص رنګ وينه ختمه شی او د بل رنګ راشی نو مونځ دې شروع کړی ګويا دا تلل راتلل د هغوی په نزد د لون په اعتبار سره دی مونږ وايو چه دا احاديث په دې معنی کښې صريح نه دی آيا دا تلل راتلل د ورځو په اعتبار سره نه شی کيدې او حال دا دی چه د ايام ذکر په رواياتو صحيحه شهيره کښې موجود دې لهذا د احنافو رائې دا ده چه د ايام روايات خو په خپله معنی کښې هسې هم صريح دی د اقبال او ادبار روايات هم په دې باندې محمول دی لهذا د ﴿ اقبلت او ادبرت ﴾ معنی به دا وی چه کله راشی حيض يعنی دهغې ورځې او تاريخ او تيرې شې دهغې ورځې او تاريخ، زمونږ علماء کرامو دا هم ليکلې دی چه اول خو د لون ثبوت روايةً ضعيف دې دويم درايةً او عقلاً هم ځکه په لون کښې اختلاف ډير کرته د اختلاف اغذية او اختلاف امزجة د وجې نه هم وی چه د يوې زنانه مزاج ګرم او د چا يخ او د چا معتدل وی لهذا دې ته معيار وئيل څه مضبوطه خبره نه ده.

د دې ابتدائی مباحثو د پيژندګلو نه پس تاسو ځان پوهه کړئ چه مصنف رحمه الله د استحاضه په سلسله کښې چه دا کوم اول باب قائم کړې دې دا عادت او عبرة بالايام باندې دې او د تميز په باره کښې ترجمة الباب ددې نه پس راروان دې د کوم نه چه مصنف رحمه الله په اقبال حيض او ادبار سره تعبير کړې دې.

[٢٧٤]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهَرَاقُ الدِّمَاءَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاسْتَفْتَتْ لَهَا أُمُّ سَلَمَةَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "لِتَنْظُرْ عِدَّةَ اللَّيَالِي وَالْأَيَّامِ الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُهُنَّ مِنَ الشَّهْرِ قَبْلَ أَنْ يُصِيبَهَا الَّذِي أَصَابَهَا، فَلْتَتْرُكِ الصَّلَاةَ قَدْرَ ذَلِكَ مِنَ الشَّهْرِ، فَإِذَا خَلَّفَتْ ذَلِكَ فَلْتَغْتَسِلْ، ثُمَّ لِتَسْتَثْفِرْ بِثَوْبٍ، ثُمَّ لِتُصَلِّ فِيهِ".

**ترجمه:** د ام سلمه نه چه د پيغمبر ﷺ بي بي ده روايت دې، بيشکه يوه ښځه وه چه تويوله به ئې وينه په زمانه د رسول الله ﷺ کښې، نو فتوى وغوښتله دهغې لپاره ام سلمه د رسول الله ﷺ نه، نو هغه اووئيل: انتظار دې اوکړي په عدت د هغه شپو او ورځو چه په هغې کښې به حائضه کيده د مياشتې نه مخکښې دهغې نه چه ورته ورسيږي هغه څه چه ورته رسيدلې دى، نو پريږدي دې مونځ په اندازه د دغې د مياشت نه، کله چه تېرې شوې نو غسل دې اوکړي، بيا دې ځان صفا کړي په يوه جامه بيا دې مونځ کوي.

[٢٧٥]( ) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ رَجُلًا أَخْبَرَهُ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهَرَاقُ الدَّمَ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، قَالَ: فَإِذَا خَلَّفَتْ ذَلِكَ وَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ، فَلْتَغْتَسِلْ، بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** سليمان بن يسار ته يو سړي خبر ورکړى دى د ام سلمه نه: بيشکه يوه ښځه وه چه تويوله ئې وينه، نو ذکر ئې کړه معنى د هغې، هغه وفرمايل: چه تيرې شوې دغه ورځې او شپې او مونځ حاضر شو نو غسل دې اوکړي. په معنى دهغې باندې.

[٢٧٦]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا أَنَسٌ يَعْنِي ابْنَ عِيَاضٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهَرَاقُ الدِّمَاءَ، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ اللَّيْثِ، قَالَ: فَإِذَا خَلَّفَتْهُنَّ وَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ، فلتغتسل، وساق الحديث بمعناه.

**ترجمه:** بيشکه يوه ښځه وه چه اړوله ئې وينه، نو ذکر ئې کړه د حديث د ليث، هغه وفرمايل: کله چه ئې هغه تېرې کړې او مونځ حاضر شو نو غسل دې اوکړي او حديث ئې سوق کړو په معنى د هغې.

[٢٧٧]( ) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا صَخْرُ بْنُ جُوَيْرِيَةَ، عَنْ نَافِعٍ، بِإِسْنَادِ اللَّيْثِ وَبِمَعْنَاهُ، قَالَ: فَلْتَتْرُكِ الصَّلَاةَ قَدْرَ ذَلِكَ، ثُمَّ إِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْتَغْتَسِلْ وَلْتَسْتَثْفِرْ بِثَوْبٍ ثُمَّ تُصَلِّي.

**ترجمه:** روايت دى د نافع په اسناد د ليث او په معنى دهغې سره، هغه وفرمايل: پريږدي دې مونځ په اندازه د دې، بيا کله چه مونځ حاضر شو نو غسل دې اوکړي او ځائې د وينې دې وتړي په يوه جامه، بيا دې مونځ کوي.

[1]: سنن النسائي/الطهارة ١٣٤ (٢٠٩)، والحيض ٣ (٣٥٤، ٣٥٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ٢٩ (١٠٥)، سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨٠٧) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٨) (صحيح)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٨) (صحيح)

[4]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٨) (صحيح)

[۲۷۸]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فِيهِ تَدَعُ الصَّلَاةَ، وَتَغْتَسِلُ فِيمَا سِوَى ذَلِكَ وَتَسْتَثْفِرُ بِثَوْبٍ وَتُصَلِّي. قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمَّى الْمَرْأَةَ الَّتِي كَانَتْ اسْتُحِيضَتْ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ.

**ترجمه**: د ام سلمة نه روایت دې ددې قصې، وئیلی دې هغه په دې کې: پریږدې به مونځ او غسل به کوي په نورو کښې او ځائې د وینې دې وتړې په یوه جامه او مونځ دې کوي. وئیلی دي ابوداود: مسمی کړه هغه ښځه چه وه مستحاضه شوې حماد بن زید د ایوب نه په دې حدیث کښې، هغه اووئیل: فاطمة بنت ابي حبیش.

**تشریح**: دا باب ډیر اوږد دې په دې کښې مصنف رحمه الله تقریبا اتۀ احادیث او متعدد تعلیقات ذکر فرمائیلي دی، د باب په شروع کښې مصنف رحمه الله د ام سلمة حدیث په ډیرو طرقو سره بیان کړې دې، د اکثرو طرق مدار په نافع باندې دې، او بیا د نافع نه روایت کونکي د هغوی مختلف تلامذه دی، پس د ټولو مخکښې په سند کښې د هغوی نه روایت کونکي مالک دی او په دویم کښې لیث او دریم کښې عبیدالله او په څلورم کښې صخر بن جویریة، ددې نه پس مصنف رحمه الله یو بل طریق ذکر کړې دې چه په هغې کښې د نافع په ځائې ایوب مذکور دې ګویا ایوب د نافع عدیل شو چه څنګه نافع دا حدیث د سلیمان بن یسار نه روایت کوی هم دغه شان ایوب هم د هغوی نه راوی دې، ددې حدیث ام سلمه رضي الله عنها مضمون دا دې چه هغه فرمائی چه یوی زنانه ته به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې کثرت حیض راتلو دهغې په باره کښې ما د رسول الله ﷺ نه مسئله اوتپوسله په دې باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه دې زنانه له پکار دی چه د خپل حیض ورځې او دهغې تاریخونه شمار کړی، استحاضه کښې د مبتلا کیدو نه مخکښې چه څومره موده دهغې د حیض عادت وو هغه ورځې دې خپل حیض حساب کړی او مونځ دې پریږدی، او کله چه هغه ورځې تیرې شی نو غسل کولو سره دې مونځ شروع کړی، ددې مراة تعین د نافع په طریق سره په یو روایت کښې هم نشته خو د ایوب په طریق کښې بعض راویانو ددې زنانه تعین په فاطمة بنت ابی حبیش رضي الله عنها سره کړې دې پس مصنف رحمه الله فرمائی ﴿ قال ابوداؤد وسمی المراة التی کانت استحیضت حماد بن زید عن ایوب الخ ﴾

**فائده**: ځان پوهه کړه چه د امام ترمذی رحمه الله او امام بیهقی رحمه الله رائې دا ده چه فاطمة ممیزة وه او د ام سلمة رضي الله عنها په دې روایت کښې کوم چه په طریق د ایوب دې ددې زنانه تعین په فاطمه بنت ابی حبیش رضي الله عنها سره اوکړې شو چه دهغې مطلب دا شو چه فاطمة معتادة وه هم په دې وجه هغوی ته د رد الی العادة حکم کړې شوې دې او دا خبره د امام بیهقی رحمه الله د رائې خلاف ده هم په دې وجه هغوی د ام سلمة رضي الله عنها حدیث ته مرجوح وئیلي دي او دا ئې وئیلي دی چه د فاطمې رضي الله عنها په سلسله کښې د عائشې رضي الله عنها حدیث په طریق د هشام بن عروة عن ابیه زیات صحیح دې چه دهغې نه معلومیږی چه فاطمه ممیزه وه، او ام سلمة رضي الله عنها چه د کومې زنانه په

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨١٥٨) (صحيح)

باره کښې سوال کړې وو هغه به د فاطمې نه علاوه بله وی، او بیا وړاندې لیکی چه که حدیث د ام سلمهؓ د فاطمېؓ په سلسله کښې صحیح او ثابت اومنلې شی نو بیا به دا اووئیلې شی چه کیدې شی د فاطمېؓ په مختلفو زمانو کښې دوه حالتونه وی یو د تمیز او دویم د عدم تمیز، د تمیز په زمانه کښې هغې ته دهغې مطابق حکم ورکړې شو، او د عدم تمیز په زمانه کښې ورته د رد الی العادة (کذا فی البذل) زه وائم امام بیهقیؒ چه د عائشېؓ ته اصح وئیلې دې چه دهغې نه د فاطمېؓ ممیزه کیدل معلومیږی هغه د راروان باب اول حدیث دې هغه دې اوکتلې شی. [1]

[۲۷۹]([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ عِرَاكٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: إِنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدَّمِ، فَقَالَتْ عَائِشَةُ: فَرَأَيْتُ مِرْكَنَهَا مَلْآنَ دَمًا، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "امْكُثِي قَدْرَ مَا كَانَتْ تَحْبِسُكِ حَيْضَتُكِ، ثُمَّ اغْتَسِلِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ قُتَيْبَةُ بَيْنَ أَضْعَافِ حَدِيثِ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ فِي آخِرِهَا، وَرَوَاهُ عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ، وَيُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ اللَّيْثِ، فَقَالَا: جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ.

**ترجمه**: د عائشېؓ نه روایت دې، بیشکه هغې وئیلی دی: بیشکه ام حبیبې سوال اوکړو د رسول اللهﷺ نه په باره د وینه کښې، نو هغې اووئیل: ما ولیدلو لګن دهغې ډک د وینې نه، نو اووئیل هغې ته رسول اللهﷺ وخت تېر کړه په اندازه دهغې چه بندولې ته حیض ستا، بیا غسل اوکړه وئیلی دي ابوداود: او روایت کړی دی دهغې قتیبه په مینځ د حدیث د جعفر بن ربیعه په اخیر کښې، او روایت کړی دی علي بن عیاش او یونس بن محمد د لیث نه، هغه اووئیل جعفر بن ربیعة.

**تشریح**: ﴿ قوله عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ إِنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ سَأَلَتِ الخ ﴾ ددې نه مخکښې روایت کوم چه مصنفؒ په متعدد طرق سره ذکر کړو هغه د ام سلمةؓ وو، د فاطمې بنت ابی حبیشؓ په باره کښ، او دا حدیث د عائشېؓ دې، د ام حبیبة بنت جحشؓ په باره کښې کومه چه د عبدالرحمن بن عوفؓ زوجه ده لکه چه په صحیح مسلم او د نسائی په روایت کښې مصرح دې.

## د موطاء په یو روایت کښې یو وهم او د هغې تحقیق:

او دا چه د ابوداؤد او مسلم په روایت کښې دی هم دا صحیح ده، په خلاف د موطاء امام مالکؒ کښې چه په دې روایت کښې په ځائې د ام حبیبةؓ زینب بنت جحش مذکور ده هغه صحیح نه ده، د نورو ټولو کتابونو د روایاتو خلاف دې، بله دا چه تحت عبدالرحمن بن عوفؓ خپله د موطاء په روایت کښې هم موجود دې هغه په زینب باندې صادق نه راځی

[1] تاسو ته به یاد وی چه مونږ په شروع کښې په تمهیدی مضمون کښې بیان کړې وو چه د استحاضه په بعض روایاتو کښې یو اشکال دا هم کیږی چه د یوې زنانه په باره کښې دوه مختلف روایاتونه راځی په څه کښې د ردّ الی العادة حکم کیږی او په څه کښې د تمیز دا هم دهغې یو مثال شو.

[2]: صحیح مسلم/الحیض ۱۴ (۳۳۴)، سنن النسائي/الطهارة ۱۳۴ (۲۰۷)، والحیض ۳ (۳۵۳)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۷۰)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۱۶ (۶۲۶)، مسند احمد (۶/۸۳، ۱۴۱، ۱۸۷)، سنن الدارمي/الطهارة ۸۳ (۸۰۵) (صحیح)

بلکه هغه ام حبیبة رضی الله عنها ده، پس شراح د موطاء د موطاء دې روایت ته وهم وئیلې دې او دلته د یوې لطیفې خبره ده چه بعض شراح د موطاء د موطاء روایت لره د وهم نه د بچ کولو دپاره دا تاویل اوکړو چه ټول بنات جحش ته زینب وائی نو ګویا د هغوی مطلب دا شو چه د موطاء په روایت کښې د زینب بنت جحش مصداق پخپله ام حبیبه رضی الله عنها ده.

دا دې هم واضحه وی چه زینب بنت جحش خو ام المومنین ده کومه چه د رسول الله ﷺ په نکاح کښې د راتلو نه مخکښې د زید بن حارثه رضی الله عنه په نکاح کښې وه لکه چه مشهوره ده، او هغه ام حبیبة کوم چه ام المومنین ده هغه بنت جحش نه ده بلکه بنت ابی سفیان ده.

﴿ قوله فَقَالَتْ عَائِشَةُ فَرَأَيْتُ مِرْكَنَهَا مَلآنَ دَمًا ﴾ یعنی ام حبیبة به لوئې لوښی کښې اوبه اچولو سره په هغې کښې د علاج دپاره کیناستله چونکه مستحاضه وه په دې وجه د وینې د رنګ د وجې نه به هغه لوښې داسې معلومیدو چه د وینې نه ډک دې، وړاندې په دې روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ هغې ته د عبرة بالایام حکم اوفرمائیلو یعنی صرف د عادت په ورځو کښې دې خپل ځان حائضه ګڼړی ددې نه پس طاهره، ددې حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت بالکل ښکاره دې ځکه چه ترجمة الباب هم د عبرة بالایام په باره کښې دې.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ قُتَيْبَةُ بَيْنَ أَضْعَافِ حَدِيثِ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ فِي آخِرِهَا ﴾ ددې جملې صحیح معنی دا ده چه مصنف رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې زما استاذ قتیبة د جعفر بن ربیعة د حدیث په سلسله کښې او دهغې په دوران کښې ذکر کړې دې اګرچه د اضعاف او تضاعیف استعمال د مینځ او دوران په معنی کښې کیږی، مصنف رحمه الله په اصل کښې دا وئیل غواړی چه پورته په سند کښې چه کوم جعفر ذکر دې د هغه نه مراد جعفر بن ربیعة دې او قرینه ئې ددې دا بیان کړه چه زما استاذ قتیبة دا حدیث د جعفر بن ربیعة د احادیثو ترمینځه ذکر کړې دې چه دهغې نه معلومه شوه چه دا جعفر جعفر بن ربیعه دې د یو نوم ډیر راویان دی، په نسب سره تعین کیږی.

دویمه معنی ددې چه غلطه ده هغه دا چه بعض شارحینو دا اوګڼړله چه ﴿ بین ﴾ د تبیین نه د ماضی صیغه ده او ددې نه پس چه کوم لفظ د اضعاف دې دا هغوی د باب افعال مصدر په معنی د تضعیف منلې دې او حاصل معنی ئې دا بیان کړې ده چه مصنف رحمه الله فرمائی چه زما استاذ قتیبة د جعفر بن ربیعة د حدیث ضعیف کیدل بیان کړې دی، د غلط فهمی وجه دا اوشوه چه لفظ اضعاف ددې بعض شارحینو په پوهه کښې نه راځی چه څه دې؟ حال دا چه اضعاف بفتح الالف او تضاعیف د دواړو استعمال د مصنفینو په نزد رائج دې کوم چه هغوی د اثناء او د ترمینځه په معنی باندې استعمالوی.

.......

[٢٨٠](١) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ الْمُنْذِرِ بْنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ، حَدَّثَتْهُ، أَنَّهَا سَأَلَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَكَتْ إِلَيْهِ الدَّمَ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا ذَلِكِ عِرْقٌ، فَانْظُرِي إِذَا أَتَى قُرْؤُكِ، فَلَا تُصَلِّي، فَإِذَا مَرَّ قُرْؤُكِ فَتَطَهَّرِي، ثُمَّ صَلِّي مَا بَيْنَ الْقُرْءِ إِلَى الْقُرْءِ".

**ترجمه**: د عروة بن الزبير نه روايت دې بيشکه فاطمة بنت ابي حُبيش حديث بيان کړی دی هغه ته، بيشکه هغې تپوس اوکړو د رسول الله ﷺ نه. نو شکايت ئې اوکړو هغه ته د وينې، نو اووئيل هغې ته رسول الله ﷺ بيشکه دغه رګ دی، اوګوره کله چه ستا حيض راشي نو مونځ مه کوه، چه کله ستا حيض تېر شي نو بيا ځان پاک کړه، بيا مونځ کوه په مينځ د يو حيض او د بل حيض کښې.

[٢٨١](٢) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ سُهَيْلٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي صَالِحٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، حَدَّثَتْنِي فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ، أَنَّهَا أَمَرَتْ أَسْمَاءَ، أَوْ أَسْمَاءُ حَدَّثَتْنِي أَنَّهَا أَمَرَتْهَا فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ، أَنْ تَسْأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فَأَمَرَهَا أَنْ تَقْعُدَ الْأَيَّامَ الَّتِي كَانَتْ تَقْعُدُ ثُمَّ تَغْتَسِلُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ قَتَادَةُ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ جَحْشٍ اسْتُحِيضَتْ، فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَدَعَ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، ثُمَّ تَغْتَسِلَ وَتُصَلِّيَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَسْمَعْ قَتَادَةُ مِنْ عُرْوَةَ شَيْئًا، وَزَادَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فِي حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ كَانَتْ تُسْتَحَاضُ، فَسَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَهَا أَنْ تَدَعَ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا وَهْمٌ مِنْ ابْنِ عُيَيْنَةَ، لَيْسَ هَذَا فِي حَدِيثِ الْحُفَّاظِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، إِلَّا مَا ذَكَرَ سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، وَقَدْ رَوَى الْحُمَيْدِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، لَمْ يَذْكُرْ فِيهِ: تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، وَرَوَتْ قَمِيرُ بِنْتُ عَمْرٍو زَوْجُ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، الْمُسْتَحَاضَةُ تَتْرُكُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا ثُمَّ تَغْتَسِلُ، وقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْقَاسِمِ: عَنْ أَبِيهِ، إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَمَرَهَا أَنْ تَتْرُكَ الصَّلَاةَ قَدْرَ أَقْرَائِهَا، وَرَوَى أَبُو بِشْرٍ جَعْفَرُ بْنُ أَبِي وَحْشِيَّةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ جَحْشٍ اسْتُحِيضَتْ، فَذَكَرَ مِثْلَهُ، وَرَوَى شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْمُسْتَحَاضَةُ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، ثُمَّ تَغْتَسِلُ وَتُصَلِّي، وَرَوَى الْعَلَاءُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ، أَنَّ سَوْدَةَ اسْتُحِيضَتْ، فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَضَتْ أَيَّامُهَا، اغْتَسَلَتْ وَصَلَّتْ، وَرَوَى سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، الْمُسْتَحَاضَةُ تَجْلِسُ أَيَّامَ قُرْئِهَا، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ عَمَّارٌ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ وَطَلْقُ بْنُ حَبِيبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ مَعْقِلٌ الْخَثْعَمِيُّ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، وَكَذَلِكَ رَوَى الشَّعْبِيُّ، عَنْ قَمِيرَ امْرَأَةِ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ قَوْلُ الْحَسَنِ، وَسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، وَعَطَاءٍ، وَمَكْحُولٍ، وَإِبْرَاهِيمَ، وَسَالِمٍ، وَالْقَاسِمِ، أَنَّ الْمُسْتَحَاضَةَ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَسْمَعْ قَتَادَةُ مِنْ عُرْوَةَ شَيْئًا.

**ترجمه**: عروة بن الزبير وائي ماته حديث بيان کړی دی فاطمي بنت ابي حبيش، بيشکه هغې امر اوکړو اسماء ته، او يا اسماء ماته حديث بيان کړی دی چه هغه امر اوکړو فاطمي بنت

[١]: سنن النسائي/الطهارة ١٣٤ (٢٠١)، والحيض ٢ (٣٥٠)، ٤ (٣٥٨)، ٦ (٣٦٢)، والطلاق ٧٤ (٣٥٨٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٠١٩)، موطا امام مالك/الطهارة ٢٩(١٠٤)، مسند احمد (٦/٤٢٠، ٤٦٣)، سنن الدارمي/الطهارة ٨٣(٨٠١) (صحيح)

[٢]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨٠١٩) (صحيح)

ابي حبيش، چه تپوس اوکړي د رسول الله ﷺ نه، نو امر ورته اوکړو هغه چه کيني به هغه ورځې چه وه کېناستله به، بيا به غسل اوکړي. وئيلى دي ابوداود: او روايت کړى دهغې قتاده د عروة بن الزبير نه، او هغه د زينب بنت ام سلمه نه، بيشکه ام حبيبة مستحاضه شوه، نو امر ورته اوکړو نبي ﷺ: چه پريږده مونځ په اندازه د ورځو د حيض د هغې، بيا دې غسل اوکړي او مونځ دې کوي. وئيلى دي ابوداود: نه دى اوريدلى قتادة د عروه نه هيڅ شى، او زيادت کړى دى ابن عيينه په حديث د زهري کښې د عمر نه او هغه د عائشې نه، بيشکه ام حبيبه مستحاضه کيده، نو تپوس ئې اوکړو د نبي ﷺ نه: نو امر ئې ورته اوکړو چه پريږده مونځ په مقدار د ورځو د حيض د هغې. وئيلى دي ابوداود: دا وهم دى د ابن عيينه نه نشته دى دا په حديث د حفاظو کښې د زهري نه، مگر چه ذکر کړى دى سهيل بن صالح، او په تحقيق سره روايت کړى دى حميدي دا حديث د ابن عيينه نه ذکر کړى ئې نه دي په هغې: چه پريږدې به مونځ په مقدار د ورځو د حيض د هغې. او روايت کړى دى قمير بنت عمرو چه زوجه د مسروق ده د عائشې نه: مستحاضه به پريږدې مونځ په مقدار د ورځو د حيض د هغې. او وئيلى دي عبد الرحمن القاسم د خپل پلار نه: بيشکه نبي ﷺ: امر کړى وو هغې ته چه پريږدي به مونځ په اندازه د ورځو د حيض د هغې. او روايت کړى دى بشر جعفر بن ابي وحشية د عکرمه نه او هغه د نبي ﷺ نه، بيشکه ام حبيبه بنت جحش مستحاضه، نو ذکر ئې کړو په مثل د هغې. او روايت کړى دى شريک د ابي اليقظان نه ا و هغه د عدي بن ثابت نه، او هغه د خپل پلار نه، او هغه د خپل پلار نه او هغه د نبي عليه السلام نه: مستحاضه به پريږدې مونځ په مقدار د ورځو د حيض دهغې بيا به غسل کوي او مونځ به کوي. او روايت کړى دى علاء بن المسيب د حکم نه او هغه د ابي جعفر نه، بيشکه سودة مستحاضه شوه، نو امر ورته اوکړو رسول الله ﷺ کله چه تېرې شي ورځې دهغې غسل به اوکړي او مونځ به اوکړي. او روايت کړى دى سعيد بن جبير د علي او ابن عباس نه: کيني به په اندازه د ورځو د حيض د هغې. او همدارنگه روايت کړى دى عمار مولى بني هاشم، او طلق بن حبيب د ابن عباس نه. او همدارنگه روايت کړى دى معقل الخثعمي، د علي رضي الله عنه نه، او همدارنگه روايت کړى دى شعبي د قمير نه چه ښځه د مسروق ده، او د عائشې نه. وئيلى دي ابوداود: او دا قول د حسن او سعيد بن المسيب او عطاء او مکحول او ابراهيم او سالم او د القاسم دى: بيشکه مستحاضه به پريږدي مونځ په مقدار د ورځو د حيض د هغې. وئيلى دي ابواود: نه دى اوريدلى قتادة د عروه نه هيڅ شى.

**تشريح**: ۸: ﴿ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى – قوله حَدَّثَتْنِي فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ أَنَّهَا أَمَرَتْ أَسْمَاءَ الخ ﴾
عروه رحمه الله وائى چه ماته فاطمې بيان اوکړو چه هغې اسماء رضي الله عنها ته عرض اوکړو چه زما دپاره د رسول الله ﷺ نه مسئله اوتپوسى، وړاندې شک د راوى دې هغه دا چه عروة وائى چه يا اسماء ماته بيان اوکړو چه هغې ته فاطمې وئيلې وو چه د رسول الله ﷺ نه زما دپاره مسئله اوتپوسه، ځان پوهه کړه چه ددې حديث راوى زهرى دې او د هغوى دا روايت د فاطمې رضي الله عنها په قصه کښې دې او وړاندې تلو سره په دې کښې هم دا مضمون دې چه رسول الله ﷺ

هغوی ته د عبرة بالایام حکم اوفرمائیلو

## د مصنف رحمه الله غرض او ددې مقام صحیح تحقیق :

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَاهُ قَتَادَةُ عَنْ عُرْوَةَ الخ ﴾ د رواه ضمیر منصوب مرجع دلته په عبارت کښې صراحة چرته هم نه ده ذکر شوې پس دا به وئیلې شی چه دا ضمیر راجع دې د ما یدل علی الترجمة طرف ته، په اصل کښې هر مصنف د هر باب د لاندې هم هغه حدیث راوړی چه په ترجمة الباب باندې دال وی، لهذا دلته ددې ضمیر مرجع به هغه حدیث د مستحاضې وی کوم چه په ترجمة الباب یعنی په ایام عادت باندې دلالت اوکړی په دې تعلیق کښې مصنف رحمه الله د قتادة روایت ذکر کړې دې کوم چه د ام حبیبة په سلسله کښې دې، په اصل کښې دا قتادة مقابل دې د زهری د زهری یو روایت پورته راغلې دې کوم چه د فاطمې رضی الله عنها په سلسله کښې وو، د زهری یو بل روایت هم دې کوم چه د هم دې ام حبیبة رضی الله عنها په قصه کښې دې په هغې کښې هم ایام عادت ذکر شوې دې چه دهغې بیان وړاندې راروان دې نو اوس د زهری دوه روایتونه شو یو هغه کوم چه پورته تیر شو د فاطمې رضی الله عنها په قصه کښې دویم هغه کوم چه د ام حبیبة په قصه کښې راغلې دې د قتادة په شان.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَزَادَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فِي حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ كَانَتْ تُسْتَحَاضُ الخ ﴾ (1) دا مقام ګران او من مزال الاقدام دې، په غور سره واورئ؛ اول په دې باندې ځان پوهه کړئ چه قتادة او زهری دواړه د یوې طبقې دی ددې دواړو د روایتونو تقابل راغلې دې د مصنف رحمه الله رائې دا ده چه د قتادة روایت کوم چه د ام حبیبة رضی الله عنها په سلسله کښې دې کوم چه اوس پورته تیر شو، په دې کښې خو ذکر د ایام صحیح دې او د زهری په روایت کښې کوم چه د ام حبیبة په سلسله کښې دې په هغې کښې ذکر د ایام صحیح نشته، خو د زهری په شاګردانو کښې ابن عیینة دا غلطی اوکړه چه هغوی د زهری نه د ام حبیبة په سلسله کښې ایام عادت ذکر کړل حال دا چه دا صحیح نه ده پس د ابن عیینة نه علاوه د زهری چه څومره شاګردان دی په هغوی کښې چا هم په دې روایت کښې ایام عادت نه دې ذکر کړې.

ځان پوهه کړه چه د زهری روایت کوم چه د ام حبیبة په باره کښې دې په دې کښې د مصنف رحمه الله په نزد د زهری د دوه شاګردانو نه غلطی شوې ده، یو د ابن عیینة نه کوم چه مصنف رحمه الله دلته ذکر کړې دې

او دویم د اوزاعی نه کوم چه به مصنف رحمه الله په راروان باب کښې ذکر کوی، پس

---

(1) غرض المصنف رحمه الله ان الرواية الصحيحة من روايات الزهري التي في قصة ام حبيبة ليس فيها ذكر الايام ومن ذكرها فيه فقد وهم، نعم ذكر الايام في حديث الزهري الذي هو في قصة فاطمة صحيح كما تقدم في رواية سهيل عن الزهري، والصحيح من رواية الزهري في قصة ام حبيبة ما سياتي عند المصنف رحمه الله في الباب الاتي واما رواية قتادة (مقابل الزهري) في قصة ام حبيبة فقد وقع فيها ذكر الايام فليس الغرض نفي ذكر الايام في قصة ام حبيبة راسا بل في رواية الزهري في قصتها، والله سبحانه وتعالي اعلم وعلي هذا الغرض لا يرد شئ من الايراد المذكور في البذل وغيره من الشروح، فكلام المصنف رحمه الله محفوظ من الوهم او الخبط ان شاء الله تعالي)

مصنف رحمه الله په دې باب کښې فرمائی ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ زَادَ الأَوْزَاعِيُّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ وَعَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتِ اسْتُحِيضَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ جَحْشٍ - وَهِيَ تَحْتَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ - سَبْعَ سِنِينَ فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَدَعِي الصَّلاَةَ وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْتَسِلِي وَصَلِّي » ﴾ د مصنف رحمه الله د بیان مطآبق اوزاعی دا غلطی کړې ده چه په دې روایت کښې ئې اقبال او ادبار ذکر کړې دې، او دا مخکښې معلومه شوه چه اقبال او ادبار د محدثینو په نزد په تمیز باندې محمول دې نو اوس د زهری روایت کوم چه د ام حبیبة په سلسله کښې دې په دې کښې دوه غلطئ شوې دی یو د ابن عیینة د طرف نه چه هغوی په دې روایت کښې ایام عادت ذکر کړل، دویم غلطی د اوزاعی نه چه هغوی په دې روایة کښې اقبال او ادبار ذکر کړو ګویا د ابن عیینة د بیان کړې شوی روایت مطابق ام حبیبة معتاده شوه چاته چه د عبرت بالایام حکم ورکړې شو، او د اوزاعی د روایت مطابق د محدثینو په اصطلاح باندې هغې ته ممیزه اووئیلې شوه.

## الصحیح من روایة الزهری فی قصة ام حبیبة عند المصنف رحمه الله :

اوس سوال دا دې چه بیا په دې روایت کښې صحیح عند المصنف رحمه الله څه دی؟ جواب دا دې چه د مصنف رحمه الله په نزد په دې روایت کښې صرف دومره ثابت دی چه رسول الله ﷺ د ام حبیبة رضی الله عنها په باره کښې اوفرمائیل ﴿ ان هذه لیست بالحیضة ولکن هذا عرق فاغتسلی وصلی ﴾ نه په دې کښې ذکر د ایام دې نه ذکر د اقبال او ادبار لکه چه په وړاندې باب کښې د ﴿ حدثنا ابن ابی عقیل ﴾ په روایت کښې راځی هم د هغه ځائې نه معلومیږی چه د مصنف رحمه الله په نزد صحیح څه دی په دې مقام باندې ځان ښه پوهه کړئ ددې تشریح څنګه چه ما کړې ده داسې ماته بل یو ځائې کښې هم نه ده ملاؤ شوې.

او په دې باندې هم ځان پوهه کړه چه په صحیح مسلم کښې هم د ام حبیبة رضی الله عنها متعلق دا حدیث په ډیرو طرقو سره مروی دې په هغې کښې په بعض کښې خو صرف دومره الفاظ مذکور دی کوم چه اوس مونږ بیان کړی دی، او په بعض طرق کښې ﴿ امکثی قدر ما کانت تحبسک حیضتک ﴾ هم راغلې دې ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَهَذَا وَهَمٌ مِنَ ابْنِ عُيَيْنَةَ لَيْسَ هَذَا فِي حَدِيثِ الْحُفَّاظِ عَنِ الزُّهْرِيِّ ﴾ ددې وهم تشریح مونږ سره پورته ذکر شوه.

﴿ قوله إِلاَّ مَا ذَكَرَ سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ ﴾ مصنف رحمه الله دا فرمائی چه د زهری په روایت کښې صحیح هغه دې کوم چه سهیل بن ابی صالح ذکر کړې دې، د سهیل بن ابی صالح روایت هم هغه دې کوم چه پورته په متن کښې مذکور دی، شارحینو ته چه په هغې کښې حضرت ګنګوهی رحمه الله او صاحب منهل هم دې دلته دا اشکال پیدا کیږی چه د سهیل بن ابی صالح روایت خو د فاطمه بنت ابی حبیش رضی الله عنها په قصه کښې دې، او خبره دلته د هغه روایت په باره کښې کیږی کوم چه د ام حبیبة رضی الله عنها په قصه کښې دې نو بیا دهغې حواله ورکول څنګه صحیح دې، او دویم اشکال شارحینو ته د مصنف رحمه الله په کلام باندې دا کیږی چه ابن عیینة چه کوم زیادت ذکر کړې دې ددې مضمون او د سهیل بن ابی صالح د روایت مضمون دواړه یو دی، په دواړو کښې د عادت او د ایام ذکر دې بیا یو ته صحیح وئیل او یو ته وهم

وئیل ددې څه مطلب؟ [1] مونږ چه د مصنف رحمه الله د کلام کومه تشریح کړې ده په هغې باندې د پوهیدو نه پس په دې کښې یو اشکال هم نه واردیږی. مصنف رحمه الله خو هم دا وائی چه د زهری روایت کوم چه د ام حبیبة رضی الله عنها په باره کښې دې په دې کښې ذکر د ایام غلط دې، او د زهری کوم روایت چه سهیل بن ابی صالح [2] ذکر کړې دې کوم چه د فاطمې رضی الله عنها قصه کښې دی په هغې کښې ذکر ایام صحیح دې، د مصنف رحمه الله خبره بالکل واضحه ده، بحمدالله په دې کښې هیڅ تردد نشته، صاحب منهل چه ددې اشکال ثانی کوم جواب ورکړې دې او د مصنف رحمه الله ئې چه کوم غرض بیان کړې دې د احقر هغې سره اتفاق نشته.

او حضرت په بذل کښې د مصنف رحمه الله په کلام باندې یو اشکال بل هم فرمائیلې دې هغه دا چه مصنف رحمه الله په حصر سره فرمائی چه دا زیادت صرف ابن عیینة ذکر کړې دې، د مصنف رحمه الله دا دعوی د تفرد صحیح نه ده بلکه دا زیادت اوزاعی هم ذکر کړې دې کوم چه خپله مصنف رحمه الله هم وړاندې تلو سره بیان کړې دې خو مونږ دا خبره بیان کړه چه په دواړو زیادتونو کښې فرق دې او په دې فرق بین المعنیین اعتراف خپله حضرت هم وړاندې تلو سره چرته چه دا مضمون راځی فرمائیلې دې لهذا هیڅ د اشکال خبره پاتې نه شوه.

﴿قوله وَقَدْ رَوَى الْحُمَيْدِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ لَمْ يَذْكُرْ فِيهِ «تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا»﴾ [3]

د مصنف رحمه الله په نزد چونکه د ابن عیینة روایت وهم دې په دې سره ددې وهم کیدو تائید فرمائی هغه داسې چه خپله د ابن عیینة حال دا دې چه کله هغوی دا زیادت ذکر کوی او کله نه، پس د حمیدی کوم روایت چه د ابن عیینة نه دې په هغې کښې دا زیادت نه موندلې کیږی.

---

[1] حضرت خو په بذل کښې دا اشکال کولو سره پریخودلې دې خو صاحب منهل ددې د جواب کوشش کړې دې هغوی لیکلې دی چه اګرچه د دواړو الفاظو مفهوم یو دې خو بهر حال په الفاظو کښې فرق دې او حضرات محدثین د الفاظو فرق هم ډیر په اهتمام سره بیانوی خو زه وایم دا خبره اګر که صحیح ده چه حضرات محدثین لفظی فرق هم بیانوی خو صرف د لفظی فرق نه په وهم سره تعبیر نه کوی، بله دا چه مصنف رحمه الله دلته وئیلې دی ﴿زاد ابن عیینة﴾ چه دهغې نه معلومیږی چه هغوی په مضمون د حدیث کښې اضافه کړې ده، زمونږ د خیال مطابق دلته شارحین د مصنف رحمه الله په غرض باندې نه دی پوهه شوې، وکم ترک الاول للاخر، والله اعلم بالصواب)

[2] تاسو ته به یاد وی چه د باب په اول حدیث یعنی حدیث د ام سلمه رضی الله عنها د لاندې مونږ وئیلې دی چه د امام بیهقی رحمه الله رائې دا ده چه فاطمة بنت ابی حبیش رضی الله عنها ممیزه ده نه معتاده (خو ام حبیبة معتادة ده) هم په دې وجه د کوم حدیث نه چه د فاطمې رضی الله عنها معتاده کیدل معلومیږی، امام بیهقی رحمه الله یا خو هغې ته ضعیف وائی یا ئې تاویل کوی پس د سهیل بن ابی صالح روایت د کوم چه امام ابوداؤد رحمه الله حواله ورکړې ده او صحیح ئې ورته وئیلې دې، په دې سره چونکه د فاطمې معتاده کیدل ظاهریږی په دې وجه امام بیهقی رحمه الله دې ته هم وهم وئیلې دې خو دا څه ضروری خو نه ده چه کوم تحقیق د بیهقی وی هغه دې د مصنف رحمه الله هم وی)

[3] د مصنف رحمه الله د کلام نه معلومیږی چه د حمیدی روایت د ابن عیینة نه د ام حبیبة بنت جحش په قصه کښې دې خو د سنن بیهقی په کتلو باندې معلومیږی چه په بذل کښې دی چه د حمیدی روایت د فاطمه بنت ابی حبیش په قصه کښې دې خو منصف علام رحمه الله پخپل خانې امام او حجت دې په دې وجه کیدې شی چه د حمیدی روایت د ام حبیبه رضی الله عنها په سلسله کښې هم وی، والله اعلم)

﴿ قوله وَرَوَتْ قَمِيرُ بِنْتُ عَمْرٍو الخ وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْقَاسِمِ الخ وَرَوَى أَبُو بِشْرٍ جَعْفَرُ بْنُ أَبِي وَحْشِيَّةَ الخ وَرَوَى شَرِيكٌ عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- « الْمُسْتَحَاضَةُ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا الخ وَرَوَى الْعَلَاءُ بْنُ الْمُسَيَّبِ الخ ﴾

دا پنځه تعليقات دی او په ټولو کښې د مستحاضې دپاره د ايام عادت د اعتبار حکم کړې شوې دې ددې ټولو په ذکر کولو سره د مصنف رحمه الله غرض دا دې چه د مصنف رحمه الله د ابن عيينة په روايت کښې ذکر ايام لره وهم منلو سره دې چاته دا شبه نه پريوځي چه مصنف رحمه الله د مستحاضې دپاره د ايام عادت د اعتبار کولو قائل نه دې ځکه چه دا حکم فی نفسه د ډيرو روايتونو نه ثابت دې او د ابن عيينة په روايت کښې ذکر ايام ته وهم وئيل د يو مخصوص روايت په اعتبار سره دی.

﴿ قوله وروى سعيد بن جبير الخ ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د څو صحابه کرامو علی، ابن عباس او عائشې رضي الله عنهم او د ډير تابعينو حسن بصری، سعيد بن المسيب، عطاء، مکحول، ابراهيم النخعی، سالم او قاسم رحمهم الله متعلق نقل کړی دی چه دا ټول حضرات هم د عبرة بالايام قائل وو.

### ايا په امهات المومنين کښې څوک مستحاضه وه؟

مصنف رحمه الله چه پورته کوم تعليقات ذکر کړل په هغې کښې په يو روايت کښې راغلی دی چه ﴿ ان سودة استحيضت ﴾ دا سودة بنت زمعة ام المومنين رضي الله عنها ده ددې روايت نه معلوميږی چه بعض ازواج مطهرات مستحاضه شوې دی او هم دا صحيح ده خو ابن الجوزی رحمه الله د امهات المومنين د استحاضه کيدو انکار کړې دې، حضرت شيخ په اوجز کښې ليکی چه ابن الجوزی چه د ازواج مطهرات د استحاضه مطلقا نفی کړې ده دا د هغوی د روايات صحيحه نه غفلت دې، چه دهغې حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينی تصريح کړې ده، د رسول الله ﷺ په بيبيانو کښې د زينب بنت جحش مستحاضه کيدل هم په بعض رواياتو کښې راځی، خپله مصنف رحمه الله هم په وړاندې باب کښې په روايت د عائشې رضي الله عنها ذکر کړې دې، خو د زينب رضي الله عنها د استحاضه والا روايت ثبوت د محدثينو په نزد متنازع فيه دې، بعض محدثين دا ثابت منی او بعض نه، اصل کښې د زينب بنت جحش رضي الله عنها د استحاضه والا روايت په موطاء د امام مالک کښې هم دې، او حضرت شيخ په اوجز کښې په هغې باندې تفصيلی کلام فرمائيلی دې، ابن العربی، علامه سيوطی او ابن رسلان شارح ابوداؤد ددې روايت د ثبوت نه منکر دې او حافظ ابن عبدالبر ددې د ثبوت قائل دې، د حافظ ابن حجر رحمه الله ميلان هم دې طرف ته دې هغوی فرمائی چه په دې سلسله کښې د رواياتو کتلو نه معلوميږی چه ام حبيبه بنت جحش رضي الله عنها مستقل په مرض استحاضه کښې اخته وه او د هغوی خور ام المومنين زينب بنت جحش رضي الله عنها باندې به هم کله کله راتلو.

فائده : ځان پوهه کړه چه په بنات جحش نه د دريو استحاض په روايات حديثيه کښې ذکر راځی، ام حبيبة، حمنة، زينب رضي الله عنهن، علامه سيوطی رحمه الله فرمائی چه د بعض علماء کرامو رائې دا ده چه ﴿ بنات جحش کلهن يستحضن ﴾ او بعض وائی چه د زينب نه علاوه د باقی دواړو

مستحاضه کیدل ثابت دی او یو قول دا دی چه صرف د ام حبیبهؓ مستحاضه کیدل ثابت دی ددې نه معلومه شوه چه د ام حبیبهؓ مستحاضه کیدل متفق علیه دی، پس په وړاندې روایت کښې راغی چه ﴿ انها استحیضت سبع سنین ﴾.

## بَابُ مَنْ قَالَ إِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ تَدَعُ الصَّلَاةَ

**باب دې په بیان د هغه چا کښې چې قول کوي په دې چې کله حیض راشي نو مونځ به پریږدي**

دلته اختلاف نسخ دې، د بذل المجهود په نسخه کښې دا ترجمه دلته نه ده بلکه د دوه احادیثو نه پس راروانه ده، ددې باب د دوه احادیثو ﴿ حدثنا احمد بن یونس ﴾ او ﴿ حدثنا القعنبی الخ ﴾ د تیر ترجمې د لاندې دی خو دا نسخه کومه چه مونږ اختیار کړې ده زیاته صحیح ده، د بذل د نسخې په اعتبار سره به اشکال راشی ځکه چه په دې دواړو احادیثو کښې د ایام ذکر نشته بلکه اقبال او ادبار ذکر دې ددې نه پس ځان پوهه کړئ!

اوس خو تاسو ښه خبر شوی یئ چه عادت او تمیز دواړه مختلف څیزونه دی ترجمه سابق د عادت متعلق وه او دا ترجمة د تمیز متعلق ده، ځکه چه حضرات محدثین د اقبال او ادبار والا روایات په تمیز یعنی معرفت لون باندې محمول کوی، خو دلته به دا وایو چه د مصنفؒ مراد دلته په ترجمه ثانیه سره صرف تمیز نه دې بلکه مطلق د حیض راتلل مراد دی که هغه د ایام عادت په اعتبار سره وی یا د الوان په اعتبار سره ځکه چه مصنفؒ په دې باره کښې دواړه قسم روایات ذکر فرمائیلې دی، لهذا ترجمې لره به عام ساتل مناسب وی.

[۲۸۲](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ جَاءَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: إِنِّي امْرَأَةٌ أُسْتَحَاضُ فَلَا أَطْهُرُ، أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ؟ قَالَ: "إِنَّمَا ذَلِكَ عِرْقٌ وَلَيْسَتْ بِالْحَيْضَةِ، فَإِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَدَعِي الصَّلَاةَ، وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ، ثُمَّ صَلِّي".

**ترجمه**: د عائشې ؓ نه روایت دې، بیشکه فاطمة بنت ابي حبیش راغله رسول الله ﷺ ته، هغې اووئیل: زه یوه ښځه یم چه مستحاضه کېږم نه پاکېږم ایا مونځ پریږدم؟ نو هغه ورته وفرمایل: بیشکه دغه رګ دی او حیض نه دی، کله چه حیض راشي نو مونځ پریږده، او کله چه ختم شي نو ووینځه ځان نه وینه او بیا مونځ کوه.

**تشریح**: ۱: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ قوله هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ الخ ﴾ د عائشېؓ دا حدیث د فاطمېؓ په قصه کښې هم په دې طریق باندې په بخاری او مسلم کښې هم دې چه په هغې کښې اقبال او ادبار ذکر دې کوم چه د محدثینو

(۱): صحيح البخاري/الوضوء ٦٣ (٢٢٨)، والحيض ٨ (٣٠٦)، ١٩ (٣٢٠)، ٢٤ (٣٢٥)، ٢٦ (٣٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٨٩٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحيض ١٤ (٣٣٣)، سنن الترمذي/الطهارة ٩٣ (١٢٥)، سنن النسائي/الطهارة ١٣٤ (٢٠١)، ١٣٥ (٢١٢)، والحيض ٤ (٣٥٨)، ٦ (٣٦٢)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٣/٦، ١٤١، ١٨٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨٠١) (صحيح)

په نزد په تمييز باندې محمول دې، لهذا ددې متفق عليه روايت نه معلومه شوه چه فاطمه ﷞ مميزه وه، د فاطمې ﷞ په باره کښې هم دا رائې د امام بيهقى وترمذى ﷭ هم ده چه دهغې ذکر مونږ سره مخکښې راغلې دې.

[۲۸۳](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامٍ، بِإِسْنَادِ زُهَيْرٍ وَمَعْنَاهُ، وَقَالَ: فَإِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَاتْرُكِي الصَّلَاةَ، فَإِذَا ذَهَبَ قَدْرُهَا فَاغْسِلِي الدَّمَ عَنْكِ وَصَلِّي.

**ترجمه**: د هشام نه روايت دې په اسناد او معنى د زهير سره، او هغه وفرمايل: کله چه راشي حيض، نو پريږده مونځ، کله چه لاړه شي اندازه د هغې، نو ووينځه ځان نه وينه او مونځ کوه.

**تشريح**: ۲: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ – قوله فَإِذَا ذَهَبَ قَدْرُهَا الخ ﴾ په دې حديث کښې دا دى چه کله اقبال حيض وى نو زنانه دې مونځ پريږدى او کله چه دهغې مقدار تير شى نو غسل کولو سره دې مونځ شروع کړى، په يوه خبره ځان پوهه کړئ تاسو ته مخکښې معلومه شوې ده چه د اقبال روايات محدثين په لون دم باندې محمول کوى او احناف په ايام عادت باندې، په دې حديث کښې د ذکر اقبال نه پس فرمائيلې شوې دى چه ﴿ فاذا ذهب قدرها ﴾ دا قرينه ده ددې خبرې چه اقبال حيض په اعتبار د ايام عادت مراد دې نه په اعتبار د الوان ځکه چه لون د مقدار د قبيل نه نهٔ دې بلکه د کيف د قبيل نه دې، سبحان الله څه ښه دليل دې، افاده الشيخ فى الاوجز.

[۲۸۴](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبُو عَقِيلٍ، عَنْ بُهَيَّةَ، قَالَتْ: سَمِعْتُ امْرَأَةً تَسْأَلُ عَائِشَةَ عَنِ امْرَأَةٍ فَسَدَ حَيْضُهَا وَأُهْرِيقَتْ دَمًا، "فَأَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ آمُرَهَا فَلْتَنْظُرْ قَدْرَ مَا كَانَتْ تَحِيضُ فِي كُلِّ شَهْرٍ وَحَيْضُهَا مُسْتَقِيمٌ، فَلْتَعْتَدَّ بِقَدْرِ ذَلِكَ مِنَ الْأَيَّامِ، ثُمَّ لِتَدَعِ الصَّلَاةَ فِيهِنَّ أَوْ بِقَدْرِهِنَّ، ثُمَّ لِتَغْتَسِلْ، ثُمَّ لِتَسْتَثْفِرْ بِثَوْبٍ ثُمَّ لِتُصَلِّي".

**ترجمه**: عائشه روايت کوي د يوې ښځې نه چه حيض ئې خراب شوى وو او اړولې ئې وينې، نو امر اوکړو ماته رسول الله ﷺ چه زه ورته امر اوکړم: انتظار دې اوکړي په اندازه دهغې چه دا به حائضه کيده په هره مياشت کښې او حيض ئې برابر وو، نو اودې شمارې په اندازه دهغې ورځو، بيا دې پريږدې مونځ په هغې کښې او يا په اندازه د هغې، بيا دې غسل اوکړي، بيا دې وتړي ځائې د وينې په يوه جامه، او بيا دې مونځ کوي.

[۲۸۵](٣) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَقِيلٍ وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمِصْرِيَّانِ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ جَحْشٍ خَتَنَةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَحْتَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ اسْتُحِيضَتْ سَبْعَ سِنِينَ، فَاسْتَفْتَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ

---

١): صحيح البخاري/الحيض ٨(٣٠٦)، سنن النسائي/الطهارة ١٣٨ (٢١٩)، (تحفة الأشراف: ١٧١٤٩) (صحيح)

٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٢٦) (ضعيف)

٣): صحيح البخاري/الحيض ٢٧ (٣٢٧)، صحيح مسلم/الحيض ١٤(٣٣٤)، سنن النسائي/الطهارة ١٣٥ (٢١١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٦) (تحفة الأشراف: ١٧٩٢٢، ١٦٥٧٢) (صحيح)

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ هَذِهِ لَيْسَتْ بِالْحَيْضَةِ، وَلَكِنْ هَذَا عِرْقٌ، فَاغْتَسِلِي وَصَلِّي "، قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ الْأَوْزَاعِيُّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: اسْتُحِيضَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ جَحْشٍ وَهِيَ تَحْتَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ سَبْعَ سِنِينَ، فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَدَعِي الصَّلَاةَ، وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْتَسِلِي وَصَلِّي، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ يَذْكُرْ هَذَا الْكَلَامَ أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِ الزُّهْرِيِّ غَيْرُ الْأَوْزَاعِيِّ، وَرَوَاهُ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، وَاللَّيْثُ، وَيُونُسُ، وَابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، وَمَعْمَرٌ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ، وَابْنُ إِسْحَاقَ، وَسُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا هَذَا الْكَلَامَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَإِنَّمَا هَذَا لَفْظُ حَدِيثِ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَزَادَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فِيهِ أَيْضًا: أَمَرَهَا أَنْ تَدَعَ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، وَهُوَ وَهْمٌ مِنَ ابْنِ عُيَيْنَةَ، وَحَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ الزُّهْرِيِّ، فِيهِ شَيْءٌ يَقْرُبُ مِنَ الَّذِي زَادَ الْأَوْزَاعِيُّ فِي حَدِيثِهِ.

**ترجمه**: د عائشې نه روايت دې، بيشکه ام حبيبة بنت جحش د رسول الله ﷺ خينې په نکاح د عبد الرحمن بن عوف کښې، مستحاضه شوه اوه کاله، نو فتوی ئې طلب کړه د رسول الله ﷺ نه، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: بيشکه دا خو حيض نه دې لکن دا رګ دې غسل اوکړه او مونځ کوه. وئيلی دي ابوداود: زيادت کړې دې اوزاعي د زهري نه او هغه د عروة او عمره نه او هغوی د عائشې نه هغې وئيلی دي: مستحاضه شوه ام حبيبة بنت جحش او هغه په نکاح د عبد الرحمن بن عوف کښې وه اوه کاله، نو امر ورته اوکړو رسول الله ﷺ، هغه اووئيل: کله چه حيض راشي نو پريږده مونځ او چه کله لاړ شي نو غسل اوکړه او مونځ کوه. وئيلی دي ابوداود: او نه دې ذکر کړې دا کلام يو کس هم د ملګرو د زهري نه په غير د اوزاعي نه، او روايت کړې دې د زهري نه عمرو بن الحارث او ليث او يونس او ابن ابي ذئب او معمر او ابراهيم بن سعد او سليمان بن کثير، او ابن اسحاق او سفيان بن عيينة. او نه يې دې ذکر کړې دا کلام. وئيلی دي ابوداود: بيشکه دا لفظ د حديث د هشام دې بن عروة دې د خپل پلار نه، او هغه د عائشې نه. وئيلی دي ابوداود: او زيادت کړې دې ابن عيينة په دې کې: امريې اوکړو هغې ته چه پريږدې مونځ په ورځو د حيضونو دهغې کښې. او هغه وهم دې د ابن عيينه نه، او حديث د محمد بن عمرو د زهري نه په دې کښې څه شی چه نزدې دې هغې ته اوزاعي زيات کړې دې په خپل حديث کښې.

**تشريح**: ۴: ﴿ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَقِيلٍ وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمِصْرِيَّانِ ﴾ د زهری هغه روايت کوم چه د ام حبيبه رضي الله عنها په سلسله کښې کوم چه عند المصنف رحمه الله صحيح دې او د کوم حواله چه مونږ سره مخکښې راغلې ده هغه دا حديث دې کوم چه مصنف رحمه الله دلته ذکر کوی دهغې الفاظ تاسو خپله اوګورئ هغه دا دی ﴿ إِنَّ هَذِهِ لَيْسَتْ بِالْحَيْضَةِ وَلَكِنْ هَذَا عِرْقٌ فَاغْتَسِلِي وَصَلِّي ﴾ په دې کښې نه ذکر د ايام دې نه ذکر د اقبال او ادبار ښه څان پوهه کړئ.

### د ابن ابی عقيل راوی تحقيق:

د دې نه پس تاسو د سند په باره کښې واورئ! هغه دا چه په دې حديث کښې ابن ابی عقيل مذکور دې چه د هغه په باره کښې حضرت په بذل کښې دلته ليکلې دی ﴿ لم اجد ذكره في شئ من كتب الرجال ﴾ ددې نه پس دا راوی د ﴿ باب غسل الجمعة ﴾ هم د يو حديث په سند کښې راغلې دې، هلته رسيدلو سره حضرت ددې راوی نوم د تهذيب التهذيب نه احمد بن ابی

عقیل المصری نقل کړې دې او هم دا صاحب منهل هم لیکلې دی خو د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې دی چه ابن رسلان شارح د ابوداؤد د هغوی نوم عبدالغنی بن رفاعه لیکلې دې او لیکلې ئې دی روی عن الطحاوی رحمه الله زه وایم چه ابن رسلان چه کوم تعین کړې دې هغه هم محتمل دې ځکه چه عبدالغنی هم د امام ابوداؤد په استاذانو کښې دې او هغوی ته هم ابن ابی عقیل وئیلې شی، ددې وجې نه حافظ په تقریب کښې د عبدالغنی بن رفاعه په نوم باندې د ابوداؤد رمز جوړ کړې دې، او په دې کتاب کښې په کتاب الحدود باب الرجم کښې د عبدالغنی بن رفاعه نه یو روایت راروان دې. چه څوک کتل غواړی او دې ګوری.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ زَادَ الأَوْزَاعِيُّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ الخ ﴾ په دې باندې کلام مونږ سره نزدې بنه په تفصیل سره تیر شو، ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَإِنَّمَا هَذَا لَفْظُ حَدِيثِ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ ﴾ یعنی د اقبال او ادبار زیادت د زهری په دې حدیث کښې صحیح نه دی کوم چه د ام حبیبه رضي الله عنها په سلسله کښې دې، خو دا زیادت د هشام بن عروة عن ابیه عن عائشة په حدیث کښې صحیح دی کوم چه د فاطمة بنت ابی حبیش رضي الله عنها په قصه کښې دې، او دا حدیث د عائشې رضي الله عنها په قصه د فاطمې رضي الله عنها هم ددې باب ړومبې حدیث دې چه دهغې ابتداء په ﴿ حدثنا احمد بن یونس ﴾ سره ده، بنه ځان پوهه کړئ.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَزَادَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فِيهِ أَيْضًا ﴾ د ایضا مطلب دا دې چه څنګه اوزاعی په دې حدیث کښې وهما یو زیادت ذکر کړو هم دغه شان ابن عیینة رحمه الله هم، لکه چه پوره په تفصیل سره په مخکښې باب کښې ذکر شو.

﴿ قوله وَحَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ الزُّهْرِيِّ فِيهِ شَيْءٌ يَقْرُبُ مِنَ الَّذِي زَادَ الأَوْزَاعِيُّ فِي حَدِيثِهِ ﴾ د محمد بن عمرو حدیث هم هغه دې کوم چه ددې نه روستو متصلا راروان دې، مصنف رحمه الله فرمائی چه اوزاعی چه کوم زیادت د ام حبیبة رضي الله عنها په قصه کښې ذکر کړې دې هم ددې هم معنی د محمد بن عمرو په حدیث کښې مذکور دې، د محمد بن عمرو په حدیث کښې دی ﴿ اذا کان دم الحیضة فانه دم اسود یعرف ﴾ دا د اوزاعی زیادت قریب المعنی په دې وجه دی چه اوزاعی اقبال او ادبار ذکر کړې دې او د محدثینو په نزد اقبال او ادبار په تمیز او لون باندې محمول دې او ددې محمد بن عمرو په روایت کښې د لون ذکر صراحة دې.

[۲۸۶] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِي حُبَيْشٍ، أَنَّهَا كَانَتْ تُسْتَحَاضُ، فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ دَمُ الْحَيْضَةِ، فَإِنَّهُ أَسْوَدُ يُعْرَفُ، فَإِذَا كَانَ ذَلِكَ فَأَمْسِكِي عَنِ الصَّلَاةِ، فَإِذَا كَانَ الْآخَرُ فَتَوَضَّئِي وَصَلِّي، فَإِنَّمَا هُوَ عِرْقٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: حَدَّثَنَا بِهِ ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، مِنْ كِتَابِهِ هَكَذَا، ثُمَّ حَدَّثَنَا بِهِ بَعْدُ حِفْظًا، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ فَاطِمَةَ كَانَتْ تُسْتَحَاضُ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَقَدْ رَوَى أَنَسُ بْنُ سِيرِينَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، فِي الْمُسْتَحَاضَةِ، قَالَ: إِذَا رَأَتِ الدَّمَ الْبَحْرَانِيَّ فَلَا تُصَلِّي، وَإِذَا رَأَتِ الطُّهْرَ وَلَوْ سَاعَةً فَلْتَغْتَسِلْ وَتُصَلِّي، وَقَالَ مَكْحُولٌ: إِنَّ النِّسَاءَ لَا تَخْفَى عَلَيْهِنَّ الْحَيْضَةُ، إِنَّ دَمَهَا أَسْوَدُ غَلِيظٌ، فَإِذَا ذَهَبَ

¹): سنن النسائي/الطهارة ۱۳۵ (۲۱۱) (تحفة الأشراف: ۱۸۰۱۹، ۱۶۶۲۶) (حسن)

ذَلِكَ وَصَارَتْ صُفْرَةً رَقِيقَةً، فَإِنَّهَا مُسْتَحَاضَةٌ فَلْتَغْتَسِلْ وَلْتُصَلِّ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، فِي الْمُسْتَحَاضَةِ، إِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ تَرَكَتِ الصَّلَاةَ، وَإِذَا أَدْبَرَتِ اغْتَسَلَتْ وَصَلَّتْ، وَرَوَى سُمَيٌّ وَغَيْرُهُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، تَجْلِسُ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَى يُونُسُ، عَنِ الْحَسَنِ، الْحَائِضُ إِذَا مَدَّ بِهَا الدَّمُ تُمْسِكُ بَعْدَ حَيْضَتِهَا يَوْمًا أَوْ يَوْمَيْنِ، فَهِيَ مُسْتَحَاضَةٌ، وَقَالَ التَّيْمِيُّ، عَنْ قَتَادَةَ، إِذَا زَادَ عَلَى أَيَّامِ حَيْضِهَا خَمْسَةُ أَيَّامٍ، فَلْتُصَلِّ، وَقَالَ التَّيْمِيُّ: فَجَعَلْتُ أَنْقُصُ حَتَّى بَلَغَتْ يَوْمَيْنِ، فَقَالَ: إِذَا كَانَ يَوْمَيْنِ فَهُوَ مِنْ حَيْضِهَا، وَسُئِلَ ابْنُ سِيرِينَ عَنْهُ، فَقَالَ: النِّسَاءُ أَعْلَمُ بِذَلِكَ.

**ترجمه**: د فاطمي بنت ابي حبيش نه روايت دې، بيشکه هغه به مستحاضه کېده نو هغې ته نبي ﷺ وفرمايل: کله چه د حيض وينه وي نو هغه توره وي پېژندل کېږي، کله چه وي دغه نو بنده شه د مانځه نه، کله چه وي بله نو اودس کوه او مونځ کوه بيشکه هغه رګ دی. وئيلی دي ابوداود: او وئيلی دي ابن المثنی، بيان کړی دی په دي سره مونږ ته ابن ابي عدي د خپل کتاب نه داسې، بيا ئي وروسته بيان اوکړو مونږ ته د حفظ نه هغه اووئيل: حديث بيان کړی دی مونږ ته محمد بن عمرو د زهري نه او هغه د عروه نه او هغه د عائشي نه، بيشکه فاطمة وه چه مستحاضه کېده نو ذکر ئي کړه معنی د هغه حديث. وئيلی دي ابواود: او په تحقيق سره روايت کړی دی انس بن سيرين د ابن عباس نه په مستحاضه کښې هغه اووئيل: کله چه ويني وينه دريابي مونځ دې نه کوي او کله چه ويني پاکوالي اګر که يو ساعت وي نو غسل دي اوکړي او مونځ دي کوي. او وئيلی دي مکحول: بيشکه په ښځو باندې نه پټېږي د حيض وينه دهغې توره او سخته ده، کله چه لاړه شي دغه او ګرځي زيړ نرم نو دغه بيا مستحاضه ده غسل دي اوکړي او مونځ دي کوي. وئيلی دي ابوداود: او روايت کړی دی حماد بن زيد د يحيی بن سعيد نه او هغه د قعقاع بن حکيم نه او هغه د سعيد بن المسيب نه په مستحاضه کې: کله چه راشي حيض نو مونځ به پريږدي، او کله چه لاړ شي نو غسل به اوکړي او مونځ به کوي. او روايت کړی دی سمي او غير د هغه نه د سعيد بن المسيب نه: کېني به په شمار د ورځو د حيض د هغې. او همدارنګه روايت کړی دی حماد بن سلمة د يحيی بن سعيد او هغه د سعيد بن المسيب نه. وئيلی دي ابوداود: او روايت کړی دی يونس د حسن نه: حائضه نه بنديږي به وروسته د حيض دهغې نه يوه ورځ او يا دوه ورځې نو دا مستحاضه ده. او وئيلی دي تيمي د قتادة نه: کله چه زيات شي په ورځو د حيض دهغې پنځه ورځې نو مونځ دي کوي. او وئيلی دي تيمي: زه شروع شوم چه کمولي مې تر دې چه ورسېده دوه ورځو ته، نو هغه اووئيل: کله چه دوه ورځې وي نو هغه د حيض نه دي. او تپوس اوشو د ابن سيرين نه د هغې په باره کښې نو هغه اووئيل: ښځې ښه پوهه دي په دې.

**تشريح**: ۵: ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا بِهِ ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ مِنْ كِتَابِهِ هَكَذَا ثُمَّ حَدَّثَنَا بِهِ بَعْدُ حِفْظًا الخ ﴾ پورته په سند کښې د ابن المثنی استاد ابن ابی عدی دی، ابن المثنی دا وائی چه زما استاد ابن ابی عدی چه ماته دا حديث کله چه د خپل کتاب نه واورولو نو هم په دې

سند سره کوم چه پورته مذکور دې خو بیا ددې نه څو ورځې پس هغوی چه کله ماته دا حدیث په خپل حفظ باندې واورولو نو په سند کښې ئې فرق اوکړو، په دې دواړو کښې فرق دا دې چه په اول سند کښې عروة ابن الزبیر روایت کوی د فاطمې نه او په دویم کښې د عائشې رضي الله عنها نه، دا کلام بعینه هم دغه شان د نسائی په روایت کښې هم دې.

## الکلام علی قوله ﴿ فانه دم اسود یعرف ﴾

ځان پوهه کړه چه دا هم هغه حدیث دې کوم چه د اعتبار لون په باره کښې صریح دې او د کوم حواله چه مخکښې ذکر شوې ده، ددې په سند کښې اختلاف او اضطراب مصنف رحمه الله خپله بیان کړې دې، پس شوکانی وائی ﴿ وقد ضعف الحدیث ابوداؤد ﴾ او امام نسائی رحمه الله هم په دې باندې کلام کړې دې هغه دا چه ﴿ فانه دم اسود ﴾ د ابن ابی عدی نه علاوه بل چا نه دې ذکر کړې ﴿ لم یذکر احد ما ذکره ابن ابی عدی ﴾ او امام طحاوی رحمه الله په مشکل الاثار کښې فرمائی ﴿ انه مدرج ﴾ هم دغه شان حضرت شیخ په اوجز کښې لیکی دا حدیث ثابت نه دې لکه چه علامه ابو الولید باجی ددې اقرار کړې دې او شوکانی وائی چه امام ابوحاتم رازی دې ته منکر وئیلې دې او صاحب د الجوهر النقی وائی چه د ابن ابی حاتم په کتاب العلل کښې دی چه ما د خپل پلار ابوحاتم نه ددې حدیث په باره کښې تپوس اوکړو فقال منکر او ابن القطان فرمائی، عندی منقطع.

د دې نه پس مصنف رحمه الله ډیر روایات تعلیقا ذکر کړې دی، د بعض نه عبرة بالایام معلومیږی او د بعض نه تمیز او د بعضو نه استظهار.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَى يُونُسُ عَنِ الْحَسَنِ الخ ﴾ په دې تعلیق کښې استظهار ذکر دې، حسن بصری رحمه الله د انقطاع حیض نه پس د یو یا دوه ورځو د استظهار قائل دې، دا مونږ سره بالتفصیل وړاندې تیر شوې دی چه امام مالک رحمه الله هم د استظهار قائل دې.

﴿ وَقَالَ التَّيْمِيُّ عَنْ قَتَادَةَ – قَالَ التَّيْمِيُّ فَجَعَلْتُ أَنْقُصُ حَتَّى بَلَغْتُ يَوْمَيْنِ الخ ﴾ قتادة چونکه د تیمی استاد دې او هغه تر پنځو پورې د استظهار قائل وو، تیمی وائی چه ما هغوی ته د استظهار په ورځو کښې د کمی سوال اوکړو تر دې چه هغه د پنځو نه راکوزیدو سره په دوو باندې اودریدلو او وې وئیل چه دوه ورځې خو د استظهار د پاره ضروری دی.

[۲۸۷](١) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ وَغَيْرُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ عَمِّهِ عِمْرَانَ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ أُمِّهِ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ، قَالَتْ: كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْتَفْتِيهِ وَأُخْبِرُهُ، فَوَجَدْتُهُ فِي بَيْتِ أُخْتِي زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، فَقُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي امْرَأَةٌ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً، فَمَا تَرَى فِيهَا قَدْ مَنَعَتْنِي الصَّلَاةَ وَالصَّوْمَ؟ فَقَالَ: أَنْعَتُ لَكِ الْكُرْسُفَ، فَإِنَّهُ يُذْهِبُ الدَّمَ، قَالَتْ: هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: فَاتَّخِذِي ثَوْبًا، فَقَالَتْ: هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ، إِنَّمَا أَثُجُّ ثَجًّا، قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ، أَيَّهُمَا فَعَلْتِ أَجْزَأَ

(١): سنن الترمذي/الطهارة ٩٥ (١٢٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٢، ٦٢٧) (تحفة الأشراف: ١٥٨٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٣٩)، سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨١٢) (حسن)

عَنْكِ مِنَ الْآخَرِ، وَإِنْ قَوِيتِ عَلَيْهِمَا فَأَنْتِ أَعْلَمُ، قَالَ لَهَا: إِنَّمَا هَذِهِ رَكْضَةٌ مِنْ رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ، فَتَحَيَّضِي سِتَّةَ أَيَّامٍ أَوْ سَبْعَةَ أَيَّامٍ فِي عِلْمِ اللهِ، ثُمَّ اغْتَسِلِي حَتَّى إِذَا رَأَيْتِ أَنَّكِ قَدْ طَهُرْتِ وَاسْتَنْقَأْتِ فَصَلِّي ثَلَاثًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً أَوْ أَرْبَعًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً وَأَيَّامَهَا وَصُومِي، فَإِنَّ ذَلِكَ يَجْزِيكِ، وَكَذَلِكَ فَافْعَلِي فِي كُلِّ شَهْرٍ كَمَا تَحِيضُ النِّسَاءُ وَكَمَا يَطْهُرْنَ مِيقَاتَ حَيْضِهِنَّ وَطُهْرِهِنَّ، وَإِنْ قَوِيتِ عَلَى أَنْ تُؤَخِّرِي الظُّهْرَ وَتُعَجِّلِي الْعَصْرَ فَتَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، وَتُؤَخِّرِينَ الْمَغْرِبَ وَتُعَجِّلِينَ الْعِشَاءَ ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ، فَافْعَلِي، وَتَغْتَسِلِينَ مَعَ الْفَجْرِ، فَافْعَلِي وَصُومِي إِنْ قَدَرْتِ عَلَى ذَلِكَ، قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَهَذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ عَمْرُو بْنُ ثَابِتٍ، عَنِ ابْنِ عَقِيلٍ، قَالَ: فَقَالَتْ حَمْنَةُ: فَقُلْتُ: هَذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ، لَمْ يَجْعَلْهُ مِنْ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، جَعَلَهُ كَلَامَ حَمْنَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَعَمْرُو بْنُ ثَابِتٍ رَافِضِيٌّ رَجُلُ سُوءٍ، وَلَكِنَّهُ كَانَ صَدُوقًا فِي الْحَدِيثِ، وَثَابِتُ بْنُ الْمِقْدَامِ رَجُلٌ ثِقَةٌ، وَذَكَرَهُ عَنْ يَحْيَى بْنِ مَعِينٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ، يَقُولُ: حَدِيثُ ابْنِ عَقِيلٍ فِي نَفْسِي مِنْهُ شَيْءٌ.

**ترجمه:** د حمنة بنت جحش نه روایت دې هغې وئیلي دي: زه به مستحاضه کېدم ډیره زیاته، نو راغلم رسول الله ﷺ ته فتوی مي تربنه غوښتله او خبر مي کړو هغه، نو ما هغه بیاموندلو په کور د خور زما کښې چه زینب بنت جحش ده، نو ما اووئیل: اې د الله رسوله! زه یوه ښځه یم چه مستحاضه کېږم په سخت حیض سره، ستا څه فیصله ده په هغې کښې، بیشکه زه ئې د مونځ او روژې نه منع کړې یم، نو هغه وفرمایل: زه تاته ښایم کرسف هغه ختموي وینه، هغې اووئیل هغه وینه د دېنه زیاته ده، هغه وفرمایل: نو کیده یوه جامه. هغې اووئیل دا دهغې نه هم زیاته ده، بیشکه زه بهیږم په بهیدلو سره، اووئیل رسول الله ﷺ: زه تاته امر کوم په دوه امرونو باندې کوم چه دې اوکړو جائز کېږي ستانه د هغې بل نه، او که ته قوي ئې په دواړو باندې نو تاته ښه پته ده، هغه وفرمایل هغې ته: دا یوه ټونګه ده د ټونګو د شیطان نه نو حیض تیروه شپږ ورځې او یا اوه ورځې د الله په علم کښې، بیا غسل کوه تردې چه ته ووینې چه ښه پاکه شوې ئې مونځ کوه درویشت شپې او څلرویشت شپې او ورځې، او روژه نیسه، بیشکه دا کار ستانه جائز کېږي، او همدارنګه کوه په هره میاشت کښې لکه څرنګه چه ښځې حائضې کېږي، او لکه څرنګه چه پاکېږي چه وقت د حیض او د طهر د هغوی دی، او که ته چېرته قوي شې په دې چه وروسته کړې ماسپخین او رامخکې کړې مازیګر او غسل اوکړې او جمع کړې په مابین د دواړو مونځونو د ماسپخین او مازیګر کښې، او وروسته کړې ماښام او رامخکې کړې ماخوستن، بیا غسل اوکړې او جمع کړې په مابین د دواړو مونځونو کښې نو اوکړه، او غسل اوکړې د صبا سره نو اوکړه، او روژه نیسه که چېرې تا قدرت وموندلو په دې باندې، اووئیل رسول الله ﷺ: او دا ډیر خوښ دی ماته په دواړو کارونو کښې. وئیلي دي ابوداود: او روایت کړی دی ددې عمرو بن ثابت د ابن عقیل نه هغه وئیلي دي: اووئیل حمنې چه ما اووئیل: دا خوښ د دواړو کارونو دی ماته. دایې نه دی ګرځولی قول د نبي ﷺ ګرځولی ئې دی کلام د حمنې. وئیلي دي ابوداود: عمرو بن ثابت رافضي دی ناکاره سړی دی لیکن هغه رشتني دی په حدیث کښې، او ثابت بن المقدام سړی دی ثقه، او ذکر کړی ئې دی د یحیی بن معین. وئیلي دي ابوداود: ما اوریدلي دي د احمد نه چه هغه وئیل: حدیث د ابن عقیل نه زما په نفس کښې څه شی دی.

تشریح: ﴿ حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ – قوله حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ قَالَتْ كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً الخ ﴾ په دې کښې اختلاف دې [1] چه حمنة بنت جحش او ام حبيبة دواړه يو دی يا بيل بيل صحيح دا ده چه بيل بيل دی.

﴿ قوله أَنْعَتُ لَكِ الْكُرْسُفَ ﴾ کرسف مالوچو ته وائی چه هغه لوندوالې جذب کوی او خصوصا کله چې زاړه وی کوم ته چه زاړه مالوچ وائی، ﴿ قال فتلجمی ﴾ يعنی رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه د وضع کرسف نه پس دا مقام په يو بله پټئ سره داسې اوتړه څنګه چه د ځاروی خوله په واړو سره تړلې شی، لجام معرب دې د لګام، په دې باندې حمنهؓ اووئيل ﴿ هو اكثر من ذلك ﴾ رسول اللهﷺ اوفرمائيل بيا د يوې بلې کپړې اضافه اوکړه، هغې اوفرمائيل ﴿ انما اثج ثجا ﴾ يقينا زه بهيږم په بهيدلو سره، مبالغة وائی چه زما ټول بدن وينې شو او ګويا زه خپله بهيږم، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ ﴾ يعنی زه تاته د دوه خبرو حکم کوم په دې کښې چه کوم هم اختياروې هغه به کافی وی.

﴿ قوله إِنَّمَا هَذِهِ رَكْضَةٌ من رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ ﴾ رَكْضَةٌ په معنی د لتې وهل، په دې کښې دواړه احتمالات دی، په حقيقت باندې هم محمول کيدې شی لکه چه په حديث کښې راځی چه د ماشوم د پيدائش نه پس شيطان هغه مسه کوی يعنی نوکاره پرې لګوی چه په هغې سره هغه چغه وهی، په دې صورت کښې مطلب دا شو چه د وينې کثرت د شيطان د لتې وهلو د وجې نه دې،دويم احتمال دادې چه د لتې وهلو نه مرادوسوسه اچول دی چه هغه مستحاضه په شک کښې اخته کولو سره پريشانه کوی او دهغې په ذهن کښې دا خبره اچوی چه هغه حائضه ده د مونځ قابله نه ده حال دا چه استحاضه د صوم او صلوة نه مانع نه ده.

﴿ قوله فَتَحَيَّضِي سِتَّةَ أَيَّامٍ أَوْ سَبْعَةَ أَيَّامٍ ﴾ يعنی خپل ځان حائضه منه په مياشت کښې شپږ يا اووۀ ورځې، په اصل کښې دا معتادة وه او خپل عادت ترې نه هير شوې وو چه شپږ ورځې دې يا اووۀ ورځې، ګويا دا متحيره شوه لهذا رسول اللهﷺ هغې ته د تحری حکم اوفرمائيلو چه په کوم عدد باندې تحری واقع شی هغه دې اختيار کړی، او د خطابیؒ رائې دا ده چه دا مبتدئه وه او د مبتدئه حکم دا دې چه هغه به د غالب حيض اعتبار کوی او هغه شپږ يا اووۀ ورځې دې په دې وجه رسول اللهﷺ د شپږو يا اووۀ ورځو حکم اوفرمائيلو (قاله ابن رسلان) او حضرت شيخ په هامش بذل کښې ليکی چه د بيهقی رائې هم دا ده کومه چه د خطابی ده، او دا هم وئيلې شوې دی چه دا ﴿او ﴾ شک د راوی دې.

﴿ فِي عِلْمِ اللَّهِ ﴾ يعنی زه تاته حکم شرعی بيانوم، اوس وړاندې ته پوهه شه او ستا رب چه ته په دې باندې ښه طريقې سره عمل کوې يا نه، يا علم الله په معنی د حکم الله يعنی کومه خبره چه زه تاته کوم د استحاضې په سلسله کښې پس هغه د الله پاک حکم دې يعنی حکم شرعی دې (كذا فی العون عن ابن رسلان) د بنده رائې دا ده چه په ماقبل کښې چه کوم د شپږو

---

[1] د هذا الاختلاف في البذل تحت حديث فرايت مركنها ملآن دما)

یا اووهٔ ورځو د تحری حکم ورکړې شوې دې دا هم دهغې سره متعلق دې او علم الله کنایة ده د ما هو الصواب الموافق للواقع نه ځکه چه کومه خبره د الله پاک په حکم کښې وی هغه به یقینا صحیح او حقیقت وی لهذا معنی دا شوه چه ته تحری اوکړه د ما هو الصواب یعنی صحیح صحیح اندازه اولګوه شپږ یا اووهٔ چه هر یو وی.

﴿ قوله وَإِنْ قَوِيتِ عَلَى أَنْ تُؤَخِّرِي الخ ﴾ ددې ځائې نه د امر ثانی بیان کیږی، رسول اللهﷺ فرمائیلې وو چه زه به تاته د دوه خبرو حکم کوم چه په هغې کښې یو خبره خو تیره شوه هغه دا چه د شپږ یا اووهٔ ورځو د تحری کولو نه پس په میاشت کښې یو ځل غسل کولو سره مونځونه شروع کړه او امر ثانی کوم چه دلته بیان فرمائی هغه دا دې چه شپږ یا اووهٔ ورځې د حیض مستثنی کولو سره بیا روزانه جمع بین الصلوتین په یو غسل کوه، او د فجر د مانځهٔ دپاره مستقل غسل، په دې صورت کښې به روزانه (دیرویش یا خلیریشت ورځو پورې) درې کرته غسل وی.

**د أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ مطالب :**

﴿ قوله أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ ﴾ امر ثانی یعنی جمع بین الصلوتین بغسل ددې حکم فرمائیلو نه پس رسول اللهﷺ فرمائی چه دا امر ثانی زما په نزد په دواړو کښې زیات خوښ دې، اعجب د اسم تفضیل صیغه ده جمع بین الصلوتین بغسل خو دې مفضَّل کوم چه غوره کړې شوې دې ددې مفضل علیه څهٔ دې؟ په دې کښې دوه اقوال مشهور دی، بعض شارحینو چه په هغوی کښې ملا علی قاری، حضرت سهارنپوری او هم دغه شان په کوکب کښې د حضرت ګنګوهیؒ رائې دا ده چه ددې مفضل علیه غسل لکل صلوة دې چه دهغې ذکر اګرچه په دې روایت کښې نشته خو د مستحاضې په نورو روایاتو کښې موجود دې نو مطلب دا شو چه دا امر ثانی یعنی جمع بین الصلوتین بغسل زما په نزد زیات غوره دې په نسبت د غسل لکل صلوة. ځکه چه هغه شاق زائد دې او په دې کښې مشقت کم دې او فائده د دواړو تقریبا یو ده چه هر مونځ په غسل سره شو، په دې صورت کښې به اعجب په معنی د اسهل وی، او دویم قول دا دې چه د اعجب مفضل علیه غسل لکل صلوة نه دې ځکه چه هغه خو دلته مذکور نه دې بلکه ددې مفضل علیه هغه امر اول دې کوم چه هم ددې حدیث په شروع کښې ذکر دې یعنی د تحری نه پس په پوره میاشت کښې صرف یو ځل غسل کول، او په دې صورت کښې به د رسول اللهﷺ دارشاد مطلب دا وی چه په پوره میاشت کښې د یو ځل غسل کولو په مقابله کښې هره ورځ جمع بین الصلوتین بغسل زیات غوره دې ځکه چه په دې کښې احتیاط زیات دې، دا مطلب حضرت شیخ په حاشیه د کوکب کښې اختیار کړې دې کوم چه شیخ الاسلام حضرت مدنیؒ هم غوره کړې وو، او ددې مطلب د تحسین دپاره ئې د دیوبند نه سهارنپور ته تشریف راوړلو او حضرت شیخ ته ئې اوفرمائیل چه تاسو چه د اعجب الامرین کوم مطلب په حاشیه د کوکب کښې لیکلې دې زمونږ ډیر زیات خوښ شو او وې فرمائیل چه څومره غټه خبره ده چه په مشرانو کښې دا خبره چا هم نه ده لیکلې په دې باندې شیخ اوفرمائیل ! زه ددې ذمه داریم چه چا ولې نه ده لیکلې.

ځان پوهه کړه چه دا مطلب صاحب د عون المعبود هم اختيار کړې دې، خو هغوی د اعجب کيدو وجه بله ليکلې ده چه په دې کښې مشقت زيات دې والاجر علی قدر المشقة والنبی ﷺ يجب ما فيه اجر عظيم،دا علت حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې رد فرمائيلې دې چه دا صحيح نه دی ځکه چه رسول الله ﷺ دامت په حق کښې امر اسهل غوره کولو نه امر اصعب.

ځان پوهه کړه چه ددې حديث چه کوم اول مطلب ليکلې شوې دې يعنی دا چه د جمع بين الصلوتين بغسل مقابل غسل لکل صلوة دې هم دا رائې د امام ابوداؤد رحمه الله هم معلوميږی په دې وجه هغوی وړاندې باب کوم چه په ﴿ غسل لکل صلوة ﴾ باندې دې دهغې په اخر کښې فرمائيلې دی ﴿ قال ابوداؤد فی حديث ابن عقيل الامران جميعا ﴾ د ابن عقيل د حديث نه په ظاهره هم حديث د حمنة رضي الله عنها مراد دې کوم چه دلته روان دې په دې وجه چه ددې په سند کښې هم يو راوی ابن عقيل دې.

د ﴿ اعجب الامرين الی ﴾ يو مطلب بل هم واورئ هغه دا چه رسول الله ﷺ فرمائی چه جمع بين الصلوتين بغسل د استحاضه د وجې نه زما په نزد زيات اولٰی دې په نسبت د جمع بين الصلوتين لاجل السفر، د مشکوة مشهور شارح ابن الملک هم دا معنی ليکلې ده خو ملا علی قاری رحمه الله دې معنی ته خلاف ظاهر وئيلې ده.

## بَابُ مَنْ رَوَى أَنَّ الْمُسْتَحَاضَةَ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ

**باب دې په بيان دهغه چا کښې چې وائی چې مستحاضه به غسل کوي د هر مانځه دپاره**

په مرقاة کښې ليکلې دی چه د غسل لکل صلوة د وجوب قائل بعض صحابه کرام رضي الله عنهم لکه سيدنا علی، ابن مسعود، ابن الزبير وغيرهم دی. او مصنف رحمه الله په آخر د باب کښې د ابن عباس رضي الله عنهما نوم هم ليکلې دې.

[۲۸۸](¹) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَقِيلٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَعَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ جَحْشٍ خَتَنَةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَحْتَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ اسْتُحِيضَتْ سَبْعَ سِنِينَ، فَاسْتَفْتَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ هَذِهِ لَيْسَتْ بِالْحَيْضَةِ، وَلَكِنْ هَذَا عِرْقٌ، فَاغْتَسِلِي وَصَلِّي"، قَالَتْ عَائِشَةُ: فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ فِي مِرْكَنٍ فِي حُجْرَةِ أُخْتِهَا زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ حَتَّى تَعْلُوَ حُمْرَةُ الدَّمِ الْمَاءَ.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه چه د رسول الله ﷺ بي بي ده روايت دې، بيشکه ام حبيبه بنت جحش خښنې د رسول الله ﷺ په نکاح د عبد الرحمن بن عوف کښې، مستحاضه شوه اوه کاله، فتوی ئې طلب کړه د رسول الله ﷺ نه په دغې کښې، نو وفرمايل رسول الله ﷺ: دا حيض نه دی، لکن دا رګ دی غسل اوکړه او مونځ کوه. اووئيل عائشې وه چه غسل به ئې کولو په لګن کښې په کوټه د خور خپله کښې چه زينب بنت جحش ده، تردې چه را اوچت به شو سوروالی د وينې په اوبو کښې.

¹): انظر حديث رقم :۲۸۵، (تحفة الأشراف: ۱۶۵۷۲،۱۷۹۲۲) (صحيح)

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَقِيلٍ – قوله قَالَتْ عَائِشَةُ فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ فِي مِرْكَنٍ ﴾ يعنى ام حبيبة رضي الله عنها به په يو لوئي لوښي کښې اوبه واچولې او په هغې کښې ناسته کولو سره به ئې غسل کولو او چونکه استحاضه ئې جاري وه په دې وجه د وينې رنګ به ئې په وينه باندې غالب شو خو ظاهره دا ده چه چونکه دا اوبه ناپاکې وې ددې نه پس به ئې پاکې اوبه په بدن باندې ضرور بهيولې، او دا په دې طريقه وو چه د اوبو په لوښي کښې کيناستل د علاج دپاره وو.

[٢٨٩]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَتْنِي عَمْرَةُ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ.

**ترجمه:** روايت دی د ام حبيبه نه ددې حديث، وئيلی دي عائشې رضي الله عنها وه چه غسل به ئې کولو د هر مانځه دپاره.

[٢٩٠]([2]) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنِي اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِيهِ: فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْقَاسِمُ بْنُ مَبْرُورٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ بِنْتِ جَحْشٍ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وَرُبَّمَا قَالَ مَعْمَرٌ عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، بِمَعْنَاهُ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فِي حَدِيثِهِ: وَلَمْ يَقُلْ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهَا أَنْ تَغْتَسِلَ. وَكَذَلِكَ رَوَاهُ الْأَوْزَاعِيُّ أَيْضًا، قَالَ فِيهِ: قَالَتْ عَائِشَةُ: فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ.

**ترجمه:** د عائشې نه روايت دې په دې حديث سره، هغه وفرمايل په دې کې: وه هغه چه غسل ئې کولو د هرمانځه دپاره. وئيلی دي ابوداود: روايت کړی دی قاسم بن مبرور د يو نس نه او هغه د ابن شهاب نه او هغه د عمرې نه او هغې د عائشې نه او هغې د ام حبيبة بنت جحش نه په هغې سره. او همدارنګه نقل کړی دی هغې لره معمر د زهري نه، او هغه د عمري نه، او هغې د عائشې نه او کله به وئيل معمر روايت دی عمري نه عن ام حبيبة په معنی د هغه حديث سره. او همدارنګه روايت کړی دی اوزاعي هم هغه اووئيل دي کې وئيلی دي عائشې: وه هغه چه غسل به ئې کولو د هر مانځه لپاره.

[٢٩١]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ الْمُسَيَّبِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ اسْتُحِيضَتْ سَبْعَ سِنِينَ، "فَأَمَرَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَغْتَسِلَ"، فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې بېشکه ام حبيبه مستحاضه شوه اوه کاله. نو امر ورته اوکړو رسول الله صلى الله عليه وسلم چه غسل دې اوکړي، نو وه چه غسل به ئې کولو د هر مانځه دپاره.

[٢٩٢]([4]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدَةَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ أُمَّ

---

[1]: انظر حديث رقم (٢٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٤/٦) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الحيض ١٤ (٣٣٤)، سنن الترمذي/الطهارة ٩٦ (١٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٨٣) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الحيض ٢٧ (٣٢٧) (تحفة الأشراف: ١٧٩١٠، ١٦٦١٩) (صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٦٦١٠، ١٦٤٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٧/٦) (صحيح)

حَبِيبَةَ بِنْتَ جَحْشٍ اسْتُحِيضَتْ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَهَا بِالْغُسْلِ لِكُلِّ صَلَاةٍ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَلَمْ أَسْمَعْهُ مِنْهُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: اسْتُحِيضَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ، فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اغْتَسِلِي لِكُلِّ صَلَاةٍ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ عَبْدُ الصَّمَدِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ كَثِيرٍ، قَالَ: تَوَضَّئِي لِكُلِّ صَلَاةٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا وَهْمٌ مِنْ عَبْدِ الصَّمَدِ، وَالْقَوْلُ فِيهِ قَوْلُ أَبِي الْوَلِيدِ.

**ترجمه:** د عائشي رضي الله عنها نه روايت دي بېشكه ام حبيبة بنت جحش حائضه شوه په زمانه د رسول الله ﷺ كې: نو امر ئې اوكړو هغې ته په غسل باندې د هر مانځه دپاره. او سوق د حديث ئې اوكړو. وئيلى دي ابوداود: او نقل كړى دى ابو الوليد الطيالسي او ما نه دى اوريدلى د هغه نه، د سليمان بن كثير نه او هغه د زهري نه او هغه د عروة نه او هغه د عائشي نه هغې وئيلى دى: مستحاضه شوه زينب بنت جحش، نو اووئيل ورته نبي ﷺ غسل اوكړه د هر مانځه دپاره. او سوق د حديث ئې اوكړو. وئيلى دي ابوداود: او نقل كړى دى عبدالصمد د سليمان بن كثير نه هغه وئيلى دى: اودس اوكړه د هر مانځه دپاره. وئيلى دي ابوداود: اودا وهم دى د عبد الصمد نه، او صحيح قول په دې كښې قول د ابو الوليد دى.

**تشريح:** ٥: ﴿ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ – قوله فَأَمَرَهَا بِالْغُسْلِ لِكُلِّ صَلَاةٍ ﴾ ځان پوهه كړه چه دا ترجمة الباب په غسل لكل صلوة باندې دى، په دې باب كښې مصنف رحمه الله ډير روايتونه ذكر كړي دى په بعضو كښې خو غسل لكل صلوة مطلقا نه دې ذكر شوې، او په بعض كښې دى ﴿ فكانت تغتسل لكل صلوة ﴾ يعنى هغې به خپله غسل لكل صلوة كولو ګويا رسول الله ﷺ هغې ته ددې حكم نه وو فرمائيلې، د باب د اكثرو رواياتو مدار په زهرى باندې دې، او د زهرى نه روايت كونكى د هغوى ډير شاګردان دى پس د ټولو نه اول حديث كښې د هغوى شاګرد عمرو بن الحارث وو، په دويم حديث كښې يونس وو، په دريم كښې ليث بن سعد دې او په يو روايت كښې ابن ابى ذئب دې دا ټول روايات هم په دې باب كښې ذكر شوي دى په دې كښې په يو كښې هم غسل لكل صلوة مرفوعا مذكور نه دې او جمهور علماء كرام هم د مستحاضه دپاره د غسل لكل صلوة قائل نه دى.

**د جمهورو د طرف نه د حديث الغسل لكل صلوة جوابات او په هغې كښې د مصنف رحمه الله رائې**

خو يو روايت په دې باب كښې په طريق د ابن اسحق عن الزهرى دې په هغې كښې غسل لكل صلوة مرفوعا ذكر شوې دې، لهذا دې روايت ته د جمهورو د مسلک خلاف وئيلې كيدې شى، جواب دا دې چه په اصل كښې دا حديث يو دې چه دهغې طرق مختلف دى اكثر راويانو غسل لكل صلوة مرفوعا نه دې ذكر كړې صرف د ابن اسحاق په طريق كښې دى او هغه متكلم فيه دې او كه دا روايت صحيح هم اومنلې شى نو دا په استحباب او علاج باندې محمول دې، او د امام طحاوى رحمه الله رائې د نسخ ده، دا څه چه مونږ اووئيل دا د جمهورو د طرف نه دى، خو د مصنف رحمه الله رائې دا ده چه حديث الغسل لكل صلوة مرفوعا ثابت دې لكه چه د ابن اسحق په روايت كښې دى، او بيا وړاندې تلو سره مصنف رحمه الله ددې تائيد هم پيش كوى.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَاهُ أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ وَلَمْ أَسْمَعْهُ مِنْهُ ﴾ دا د ابن اسحق د روايت تائيد دې خو په دې كښې اشكال دا دې (١) چه د ابن اسحق روايت بلكه د باب ټول روايات كوم چه د ام حبيبةؓ په قصه كښې دى او دا روايت كوم چه تاسو په تائيد كښې پيش كوئ، د زينب بنت جحشؓ په قصه كښې دى، او دويمه خبره دا ده چه ددې روايت په باره كښې مصنفؒ خپله فرمائى چه ما دا روايت د ابوالوليد طيالسى نه نهٔ دې اوريدلې، لهذا دا روايت خو منقطع شو، په حديث منقطع سره به څهٔ تائيد راشي.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَاهُ عَبْدُ الصَّمَدِ........ وَهَذَا وَهَمٌ مِنْ عَبْدِ الصَّمَدِ ﴾ ددې حاصل دا دې چه مصنفؒ چه كوم روايت اوس په تائيد كښې پيش كړې وو هغې لره د سليمان نه روايت كونكې ابوالوليد وو، په دې كښې خو بيشكه غسل لكل صلوة مذكور دې خو هم هغه روايت د سليمان نه عبدالصمد هم روايت كوى او هغوى په ځائې د غسل لكل صلوة، وضوء لكل صلوة ذكر كړې دې په دې سره د مصنفؒ تائيد ختم شو، په دې وجه مصنفؒ ددې جواب دا وركوى چه د عبدالصمد روايت وهم دې او د ابوالوليد روايت صحيح دې، خو بيهقى وائى لكه چه په بذل كښې دى چه د ابوالوليد روايت هم غير محفوظ دې.

[٢٩٣](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنِ الْحُسَيْنِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: أَخْبَرَتْنِي زَيْنَبُ بِنْتُ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهَرَاقُ الدَّمَ وَكَانَتْ تَحْتَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهَا أَنْ تَغْتَسِلَ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ وَتُصَلِّي"، وَأَخْبَرَنِي أَنَّ أُمَّ بَكْرٍ، أَخْبَرَتْهُ أَنَّ عَائِشَةَ، قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ فِي الْمَرْأَةِ تَرَى مَا يُرِيبُهَا بَعْدَ الطُّهْرِ: إِنَّمَا هِيَ، أَوْ قَالَ: إِنَّمَا هُوَ عِرْقٌ، أَوْ قَالَ: عُرُوقٌ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَفِي حَدِيثِ ابْنِ عَقِيلٍ الْأَمْرَانِ جَمِيعًا، وَقَالَ: إِنْ قَوِيتِ فَاغْتَسِلِي لِكُلِّ صَلَاةٍ، وَإِلَّا فَاجْمَعِي، كَمَا قَالَ الْقَاسِمُ فِي حَدِيثِهِ: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْقَوْلُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا.

**ترجمه**: د ابو سلمة نه روايت دې هغه وائى چه خبر راكړې دى ماته زينب بنت ابي سلمة، بيشكه يوه زنانه وه چه وينه ئې تويوله، او وه په نكاح د عبد الرحمن بن عوف كښې، بيشكه رسول الله ﷺ هغې ته امر اوكړو چه غسل اوكړي په وخت د هر مانځه كښې او مونځ اوكړي. او خبر راكړې دى ماته ام بكر بيشكه عائشې وئيلى دى. يقيناً رسول الله ﷺ اووئيل: په باره د زنانه كښې چه وينې هغه څه چه هغه په شك كښې اچوي وروسته د ماسپخين نه: بيشكه هغه رګ دى. او يا هغه اووئيل: رګونه دي. وئيلى دي ابوداود: او په حديث ابن عقيل كښې دواړه كارونه دې، او هغه وفرمايل. كه ستا طاقت وي نو غسل اوكړه د هر مانځه دپاره، او كه داسې نه وي نو جمع كوه. لكه څنګه چه وئيلى دي قاسم په

(١) د مصنفؒ د طرف نه ددې توجيه دا كيدې شي چه د مصنفؒ غرض د طريق ابن اسحق تقويت مقصود نه دې، بلكه د نفس مسئلې په حيثيت سره د غسل لكل صلوة دپاره يو بل حديث په طور د شاهد پيش كوى. هذا ما عندي

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٩٧٦، ١٥٨٨٦) (صحيح)

خپل حدیث کښې، او په تحقیق سره روایت شوی دی ددې قول د سعید بن جبیر نه او هغه د علي نه او هغه ابن عباس رضي الله عنهما نه.

**تشریح:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَفِي حَدِيثِ ابْنِ عَقِيلٍ الأَمْرَانِ جَمِيعًا ﴾ مصنف رحمه الله دا خبره کوی چه ددې باب په روایاتو کښې صرف غسل لکل صلوة مذکور دې خو د ابن عقیل په حدیث کښې دوه څیزونه مذکور دی غسل لکل صلوة او جمع بین الصلوتین بغسل دا مخکښې مونږ سره تیر شوي دی چه د اکثرو شارحینو رائې دا ده چه د مصنف رحمه الله مراد په حدیث د ابن عقیل سره هم هغه حدیث د حمنة دې چه په هغې کښې ﴿ سامرک بامرین ﴾ مذکور دې خو په دې کښې اشکال دا دې چه په حدیث د حمنة کښې خو صرف جمع بین الصلوتین بغسل مذکور دې غسل لکل صلوة مصرح نه دې حضرت شیخ رحمه الله فرمائی ممکنه ده د مصنف رحمه الله مراد په دې سره چرته بل حدیث وی چه په هغې کښې دواړه حکمونه صراحة ذکر وی، والله تعالی اعلم.

## بَابُ مَنْ قَالَ تَجْمَعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ وَتَغْتَسِلُ لَهُمَا غُسْلًا

باب دې په بیان د هغه چا کښې چه جمع کوي به دوه مونځونه او غسل به کوي دواړو لپاره یو غسل

[۲۹۴](1) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: اسْتُحِيضَتِ امْرَأَةٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فَأُمِرَتْ أَنْ تُعَجِّلَ الْعَصْرَ وَتُؤَخِّرَ الظُّهْرَ وَتَغْتَسِلَ لَهُمَا غُسْلًا، وَأَنْ تُؤَخِّرَ الْمَغْرِبَ وَتُعَجِّلَ الْعِشَاءَ وَتَغْتَسِلَ لَهُمَا غُسْلًا، وَتَغْتَسِلَ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ غُسْلًا"، فَقُلْتُ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ: أَعَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ: لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ.

**ترجمه:** د عائشي رضي الله عنها نه روایت دې هغې وئیلی دی: حائضه شوه یوه ښځه په زمانه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښې نو امر ورته اوشو چه رامخکې کړي مازیګر او وروسته کړي ماسپخین او غسل اوکړي دواړو لپاره یو غسل، او وروسته کړي ماښام او رامخکې کړي ماسخوتن او غسل اوکړي دواړو لپاره یو غسل، او غسل اوکړي د صباح مونځ لپاره یو غسل. نو ما تپوس اوکړو د عبد الرحمن نه چې دا نبي صلی الله علیه وسلم نه مروی دی، هغه اووئیل: زه حدیث نه بیانوم تاته مګر د نبي صلی الله علیه وسلم نه

**تشریح:** ﴿ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ – قوله قَالَتِ اسْتُحِيضَتِ امْرَأَةٌ ﴾ دا سهله بنت سهیل رضي الله عنها هم کیدې شی چه دهغې ذکر په وړاندې روایت کښې راروان دې او حمنة بنت جحش هم، بهر حال رسول الله صلی الله علیه وسلم هغې ته د جمع بین الصلوتین بغسل حکم اوفرمائیلو.

**جمع بین الصلوتین بغسل والا روایات باندې د عمل دپاره د مسلک احناف پیش نظر توجیه**

ځان پوهه کړه چه په جمع بین الصلوتین والا روایات باندې د عمل کولو دپاره د جمهورو د مسلک پیش نظر خو هیڅ اشکال نشته ځکه چه د هغوی په نزد جمع حقیقی جائز ده لکه چه د احنافو په نزد په سفر کښې نه جمع حقیقی نه هلته جائز ده او نه دلته، اوس که

(1): سنن النسائي/الطهارة ۱۳٦ (۲۱٤)، والحيض ٥ (۳٦۰)، (تحفة الأشراف: ۱۷٤۹٥)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ۸۲ (۷۹۸) (صحيح)

مونځ دا په جمع صوري باندې محمول کوو [1] نو د مستحاضه د معذور کیدو د وجې نه به د نقض وضوء بخروج الوقت اشکال واردیږی ځکه چه په خروج د وخت سره د معذور طهارت زائل شی ددې جواب شیخ عبدالحق محدث دهلوی په لمعات کښې دا ورکړې دې چه ممکنه دا چه داسې اووئیلې شی چه د عام معذورینو حکم خو هم دا دې چه د وخت خروج د هغوی په حق کښې ناقض دې خو ددې حدیث په رڼا کښې د مستحاضې حکم ددې نه مستثنی دې (یعنی اگر که زمونږ فقهاء کرامو ددې تصریح نه وی کړې) دویم جواب ددې دا کیدې شی چه هم ددې باب په آخری حدیث کښې د یو لفظ زیادت راروان دې چه په هغې سره به انشاء الله د مسلک احناف نه اعتراض لرې شی هغه دا چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ وتوضاء فیما بین ذلک ﴾. اوس به په دې حدیث باندې د عمل کولو شکل دا وی چه د ماسپخین په آخری وخت کښې به غسل کولو سره د ماسپخین مونځ اوکړی بیا چه کله د عصر وخت داخل شی نو اودس کولو سره دې د مازیگر مونځ اوکړی هم دغه شان دې په آخری وخت د مغرب کښې غسل اوکړی، بیا دې د دخول عشاء نه پس اودس کولو سره د ماسخوتن مونځ اوکړی ددې لفظ ﴿ توضاء فیما بین ذلک ﴾ شرح حضرت په بذل کښې هم دغه شان فرمائیلې ده او دا ئې هم لیکلې دی چه د معذور اودس د خروج وقت نه پس باقی نه پاتې کیږی.

خو واضحه دې وی چه ددې جملې دویمه معنی هم کیدې شی [2] چه ﴿ وتوضاء فیما بین ذلک ﴾ ای لاحداث اخری غیر الاستحاضة یعنی د استحاضه د وجې نه د ظهر او عصر د مانځه دپاره یو غسل کافی شو، په دې سره به هغه دواړه مونځونه ادا کوی خو که د وختونو ترمینځه د استحاضه نه علاوه بل څه حدث بیا اوموندلې شو نو دهغې دپاره به اودس کوی. پس د مالکیانو په نزد ددې جملې هم دا معنی متعین ده ځکه چه استحاضه د هغوی په نزد مطلقا ناقض نه ده، نه په وخت کښې دننه نه روستو، او شوافع چونکه په جمع بین الصلوتین کښې د جمع حقیقی قائل دی په دې وجه د هغوی په نزد خو به د خروج وخت اشکال بالکل نه وی پس هغوی به د خپل مسلک د وجې نه د ﴿ وتوضاء فیما بین ذلک ﴾ دا معنی اخلی ای لفرض اخر یعنی یو غسل خو د ظهر او عصر دپاره کافی شو اوس که مستحاضه په دې دوران کښې د یو بل فرض مونځ قضاء کول غواړی نو دهغې دپاره دې اودس اوکړی ځکه چه د شوافعو په نزد د معذور په حق کښې وضوء لکل صلوة واجب دی.

**د مثل اول او د مثل ثانی سره متعلق د مولانا انور شاه صاحب رحمه الله مخصوص رائې :**

[1] په داسې طریقه چه په آخر وخت د ظهر کښې مونځ اوکړی او بیا د مازیگر د وخت شروع کیدو په اول وخت کښې د مازیگر مونځ هم په دې غسل سره اوکړی، اوس ښکاره ده چه څنګه په خروج د وخت سره د معذور اودس مات شی هم دغه شان به دا غسل هم ماتیږی، لهذا د مازیگر مونځ به بغیر د طهارت نه وی)

[2] خو ظاهره دا ده چه ددې دویمې معنی د مراد کولو په صورت کښې به په احنافو باندې د راتلونکی اشکال دپاره دا حدیث رافع نه وی فتأمل)

د مولانا انور شاه صاحب رحمه الله یو بیله رائې ده هغوی فرمائی چه مختلف روایات حدیثیه لره کتلو سره زما رائې دا قائم شوې ده چه د زوال نه واخله تر مثل اول پورې خالص د ظهر وخت دې او د مثل ثانی نه تر غروب پورې خالص وخت د عصر دې، او د مثل اول او ثانی ترمینځه په معذورینو کښې لکه چه د مستحاضې او مسافر په حق کښې دواړه پکار راتلې شی ګویا دا درمیانه وخت د معذورینو په حق کښې دې دا وخت مشترک بین الظهر والعصر اومنلې شی، او هم دغه شان د مغرب آخری وخت او د عشاء اول وخت یعنی شفق ابیض کوم چه د جمهورو په نزد خو د عشاء وخت دې او د امام صاحب رحمه الله په نزد د مغرب، هغه دې هم مشترک اومنلې شی.

﴿ قوله فَقُلْتُ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– فَقَالَ لاَ أُحَدِّثُكَ الا عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم ﴾ دلته په دې عبارت کښې د کتاب نسخې مختلف دی، د بذل په نسخه کښې بل شان دی، په هغې کښې بغیر د استثناء نه داسې دی ﴿ لاَ أُحَدِّثُكَ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– بِشَيْءٍ ﴾ او د بذل په نسخه کښې اقرب الی القیاس دا معلومیږی ځکه چه دلته په وړاندې عبارت کښې ﴿ بشئ ﴾ راروان دې، ﴿ الا ﴾ په دې صورت کښې ددې جوړ نه معلومیږی، بهر حال تشریح ددې مقام دا ده چه پورته په روایت کښې راغلې دی ﴿ فامرت ﴾ په دې کښې ددې خبرې تصریح نشته چه دې زنانه ته دا حکم د چا د طرف نه ورکړې شوې وو نو په دې باره کښې شعبه د خپل استاذ عبدالرحمن نه تپوس کوی چه آیا دا امر د رسول الله ﷺ د طرف نه وو؟ په دې باندې هغوی دا جواب ورکړو، د ﴿ الا ﴾ په صورت کښې مطلب ښکاره دې یعنی زه تاته حدیث نه بیانوم مګر د رسول الله ﷺ، دا امر هم د هغوی د طرف نه وو، او بغیر د الا نه لکه چه په بله نسخه کښې دی، د عبارت دوه مطلبونه کیدې شی، یو دا چه زه ددې امر نسبت صراحة د رسول الله ﷺ طرف ته نه شم کولې ځکه چه دا روایت هم دغه شان بغیر د تصریح نسبت نه ماته رارسیدلې دې، نو اوس که رسول الله ﷺ مراد وی نو هم زه د خپل طرف نه نسبت کول خلاف احتیاط دی، دویم مطلب ددې هغه کیدې شی کوم چه حضرت په بذل کښې اختیار فرمائیلې دې چه دلته استفهام انکاری مقدر دې او مطلب دا دې چه آیا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ څه حدیث نه بیانوم یعنی دا هم د رسول الله ﷺ نه مروی دې، چه کله استفهام انکاری مقدر اومنلې شو نو نفی د نفی سره یوځائې کیدو باندې اثبات شو.

[۲۹۵]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ سَهْلَةَ بِنْتَ سُهَيْلٍ، اسْتُحِيضَتْ، فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فَأَمَرَهَا أَنْ تَغْتَسِلَ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، فَلَمَّا جَهَدَهَا ذَلِكَ، أَمَرَهَا أَنْ تَجْمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِغُسْلٍ، وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِغُسْلٍ، وَتَغْتَسِلَ لِلصُّبْحِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ امْرَأَةً اسْتُحِيضَتْ، فَسَأَلَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَهَا بِمَعْنَاهُ.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۵۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۹/۶، ۱۳۹) (ضعيف)

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې، بيشکه سهلة بنت سُهيل مستحاضه شوه نو راغله نبي ﷺ ته نو هغه ورته امر اوکړو چه غسل اوکړه د هر مانځه په وخت کښې. هرکله چه ورته دا ګرانه پرېوته، نو امريې ورته اوکړو چه جمع کړي په مابين د ماسپخين او مازيګر کښې په يو غسل سره، ماښام او ماسخوتن په يو غسل سره، او غسل اوکړي د صباح د مانځه دپاره. وئيلی دي ابوداود: او نقل کړی دی ابن عيينة د عبد الرحمن بن مقسم نه او هغه د خپل پلار نه، بيشکه يوه ښځه مستحاضه شوه نو تپوس ئي اوکړو د رسول الله ﷺ نه نو امريې ورته اوکړو په معنی د هغي سره.

[۲۹۲]() حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ سُهَيْلٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي صَالِحٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ اسْتُحِيضَتْ مُنْذُ كَذَا وَكَذَا فَلَمْ تُصَلِّ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سُبْحَانَ اللهِ، إِنَّ هَذَا مِنَ الشَّيْطَانِ، لِتَجْلِسْ فِي مِرْكَنٍ فَإِذَا رَأَتْ صُفْرَةً فَوْقَ الْمَاءِ فَلْتَغْتَسِلْ لِلظُّهْرِ وَالْعَصْرِ غُسْلًا وَاحِدًا وَتَغْتَسِلْ لِلْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ غُسْلًا وَاحِدًا وَتَغْتَسِلْ لِلْفَجْرِ غُسْلًا وَاحِدًا وَتَتَوَضَّأُ فِيمَا بَيْنَ ذَلِكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ مُجَاهِدٌ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، لَمَّا اشْتَدَّ عَلَيْهَا الْغُسْلُ، أَمَرَهَا أَنْ تَجْمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ إِبْرَاهِيمُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهُوَ قَوْلُ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ شَدَّادٍ.

**ترجمه**: د اسماء بنت عميس نه روايت دې هغې وئيلی دي: ما اووئيل: اې د الله رسوله! بيشکه فاطمة بنت ابي حبيش مستحاضه شوه (د فلاني فلاني وخت نه) هغې مونځ نه دی کړی، نو اووئيل رسول الله ﷺ: سبحان الله، بيشکه دا د شيطان نه دی، هغه دې کيني په يو لګن کښې کله چه هغې اوليدلو زيړوالی د اوبو دپاسه نو غسل دې اوکړي د ماسپخين او مازيګر لپاره يو غسل، او غسل دې اوکړي د ماښام او د ماسخوتن لپاره يو غسل، او غسل دې اوکړي د سحر لپاره يو غسل، او اودس به کوي په مابين د دې کښې. وئيلی دي ابوداود: نقل کړی دی مجاهد د ابن عباس نه: هرکله چه ګران شو په هغې باندې غسل نو امر ئي ورته اوکړو چه جمع کړي په مابين د دوه مونځونو کښې. وئيلی دي ابو داود: او نقل کړی دی ابراهيم د ابن عباس نه او دا قول د ابراهيم نخعي او د عبد الله بن شداد دی.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ – قوله إِنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ أَبِي حُبَيْشٍ اسْتُحِيضَتْ مُنْذُ كَذَا وَكَذَا ﴾ په بذل کښې د کذا وکذا تعين په سبع سنين سره کړې شوې دې، او هم دغه شان صاحب منهل هم ليکلې دی او هغوی پرې زياتی دا هم ليکلې دی کما تقدم خو په دې باندې اشکال دا دې چه ددې نه مخکښې چه په کتاب کښې سبع سنين راغلې دې هغه د فاطمې رضي الله عنها په باره کښې نه دې بلکه د ام حبيبة رضي الله عنها په سلسله کښې دې او ملا علی قاری رحمه الله په شرح د مشکوة کښې ددې تفسير په شهر سره کړې دې او هم دا صحيح هم معلومېږي ځکه چه د طحاوی په يو روايت کښې دی فاطمه رضي الله عنها فرمائی ﴿ احيض الشهر والشهرين ﴾ چه ماته به تر دوه دوه مياشتو پورې استحاضه راتله.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷٦۰) (صحيح)

## د حديث په تشريح کښې متعدد اقوال :

﴿ قوله لِتَجْلِسْ فِي مِرْكَنٍ فَإِذَا رَأَتْ صُفْرَةً فَوْقَ الْمَاءِ ﴾ ددې جملې شارحينو مختلف شرحې کړې دی، په بذل کښې ددې معنی دا ليکلې ده چه په اصل کښې هغې ته د اوبو په لوښی کښې د ناستې حکم علاجا وو چه د اوبو په يخوالی سره د دننه په حرارت کښې کمې واقع شی چه په هغې سره به وينه کښې کمې واقع شی چه کله دهغې په ناسته ناسته هغې کښې زيات وخت اوشی، تردې چه د اوبو رنګ بدل شی نو اوس چونکه د طبيعت په هغې کښې په ناسته باندې کراهت محسوسيږی او هسې هم هغه اوبه ناپاکې شوې دی لهذا هغې له پکار دی چه ددې لوښی نه جدا کيدلو سره د نجاست دم د زائله کولو دپاره په پاکو اوبو باندې غسل کولو سره د ظهر او عصر مونځ اوکړی او صاحب منهل او صاحب عون المعبود دا په معرفة لون باندې محمول کړې دې چه دا زنانه مميزه وه او مطلب ئې دا ليکلې دې چه په لوښی کښې کيناستلو چه ترڅو پورې په اوبو باندې د حيضه وينه ښکاره کيږی د هغه وخته پورې خو دې مونځونه نۀ شروع کوی ځکه چه دا د حيض زمانه ده او کله چه په دې لون کښې تغير راشی او په ځائې د حمرة صفرة پيدا شی کوم چه د استحاضه رنګ دې نو ددې ورځې نه دې غسل کولو سره مونځ شروع کړی، او ددې جملې دريمه معنی هغه ده کومه چه په مرقاة کښې ملا علی قاری رحمه الله ليکلې ده چه په دې سره مقصود د وخت معرفت دې او د صفرة نه مراد صفرة شمس دې نه صفرة دم ځکه چه په دې زنانه باندې د ظهر په آخری وخت کښې غسل کول دی يعنی په داسې وخت کښې چه څنګه هم د ماسپخين مونځ اوکړی نو د عصر وخت شروع شی دا د هغه غسل وخت وئيلې شوې دې چه په داسې وخت کښې دې غسل اوکړی، فيا للعجب د يوې جملې څومره معانی دی، الله پاک دې دې شراح حديث ته جزاء خير ورکړی چه دې حضراتو د خدمت حديث او شرح حديث حق ادا کړو بله دا چه په دې سره د رسول الله ﷺ د خولې مبارکې نه د وتلو الفاظو او کلماتو جامعيت هم ښکاره دې.

# بَابُ مَنْ قَالَ تَغْتَسِلُ مِنْ طُهْرٍ إِلَى طُهْرٍ

### باب دې په بيان د هغه چا کښې چې قول کوي په غسل باندې ديو ماسپخين نه تر بل ماسپخين پورې

يعنی يو غسل کوم چه په ابتداء دغسل کښې کړې شوې وو هغه د طهر د انتهاء پورې کافی دې لکه چه د جمهورو مسلک دې ددې نه مخکښې چه څومره ابواب قائم کړې شوې وو هغه د تعدد غسل وو.

### د مصنف رحمه الله د قائم کړې شوې ابوابو ترتيب :

مصنف رحمه الله اول د غسل لکل صلوة باب اوتړلو د کوم چه مصنف رحمه الله خپله قائل دې دهغې نه پس ئې د جمع بين الصلوتين بغسل باب اوتړلو چه دهغې بعض علماء کرام قائل دی او دا باب د غسل واحد دې چه دهغې ائمه اربعه قائل دی دا وړاندې ذکر شوه چه د ائمه اربعه په نزد صرف يو ځل غسل کول دی بيا ددې نه پس د احنافو او حنابله په نزد لوقت کل صلوة اودس واجب دې او د شوافعو په نزد لکل صلوة.

ځان پوهه کړه چه مصنف رحمه الله ددې باب په ټولو رواياتو باندې کلام کړې دې داسې معلوميږی چه مصنف رحمه الله د غسل مرة ثم الوضوء لکل صلوة د رواياتو په تضعيف پسې دې حال دا چه دا د جمهورو مسلک دې، خو مصنف رحمه الله خو د فن امام دې د هغوی مخې ته خو صرف د روايت تحقيق کول دی.

**د غسل مستحاضه په باره کښې ائمة اربعة د موقف تائيد د صحيحينو د روايت نه :**

ځان پوهه کړه چه غسل لکل صلوة يا جمع بين الصلوتين بغسل مرفوعا د صحيحينو نه په يو روايت کښې هم ثابت نه دې امام بخاری رحمه الله د استحاضه په سلسله کښې په بخاری شريف کښې صرف يو روايت ذکر کړې دې کوم چه د فاطمة بنت ابی حبيش رضی الله عنها په باره کښې دې او اتفاق سره په هغې کښې يو ځل هم غسل نه دې خو ظاهره دا ده چه يو ځل غسل کول خو مجمع عليه دی او امام مسلم رحمه الله په دې سلسله کښې دوه احاديث ذکر کړې دی، يو هغه کوم چه د فاطمې رضی الله عنها په قصه کښې دې کوم چه هغوی په دوه طرقو سره ذکر کړې دې، دويم هغه کوم چه د أم حبيبة په قصه کښې دې دا هغوی په متعدد طرقو سره ذکر کړې دې چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ هغوی ته يو ځل د غسل حکم ورکړې وو خو راوی وائی ﴿ فکانت تغتسل عند کل صلوة ﴾ دا د هغوی خپل فعل وو د رسول الله ﷺ د طرف نه نۀ وو، حاصل دا چه په صحيحين کښې د مستحاضه په حق کښې د تعدد غسل هيڅ روايت هم مرفوعا نه دې، په دې سره د ائمۀ اربعه د مذهب مضبوطی معلوميږی، امام نووی رحمه الله هم په شرح د مسلم کښې هم دا خبره ليکلې ده کومه چه مونږ کړې ده، بلکه دا چه هغوی فرمائی ﴿وَأَمَّا الْأَحَادِيثُ الْوَارِدَةُ فِي سُنَنِ أَبِي دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيِّ وَغَيْرِهِمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهَا بِالْغُسْلِ، فَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ ثَابِتٌ، وَقَدْ بَيَّنَ الْبَيْهَقِيُّ وَمَنْ قَبْلَه ضَعْفَهَا ﴾ او امام نووی رحمه الله ليکی جمهور علماء سلفا وخلفا او د ائمه اربعه په نزد په مستحاضه باندې صرف يو ځل غسل واجب دې، او ابن عمر او ابن الزبير اوعطاء بن ابی رباح رحمهم الله نه روايت دې چه غسل لکل صلوة واجب دې، او د عائشې رضی الله عنها نه روايت دې چه هره ورځ يو ځل غسل واجب دې، او د ابن المسيب او حسن بصری رحمهما الله په نزد روزانه يو ځل د ماسپخين په وخت، او علی او ابن عباس رضی الله عنهم نه دواړه روايتونه دی غسل د مرة واحدة او غسل لکل صلوة دې.

[٢٩٧] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فِي الْمُسْتَحَاضَةِ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، ثُمَّ تَغْتَسِلُ وَتُصَلِّي، وَالْوُضُوءُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ عُثْمَانُ: وَتَصُومُ وَتُصَلِّي.

**ترجمه**: عدي بن ثابت د خپل پلار نه روايت کوي او پلار ئې د خپل پلار نه کوي، او هغه د نبي ﷺ نه، په باره د مستحاضه کښې پريږدي به مونځ په ورځو د حيضونو خپلو کښې بيا به غسل کوي او مونځ به کوي، او اودس به کوي د هر مانځه په وخت کښې وئيلی دي

(١): سنن الترمذي/الطهارة ٩٤ (١٢٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٥)، سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨٢٠)، (تحفة الأشراف: ٣٥٤٢) (صحيح)

ابوداود: زیادت کړی دی عثمان چه روژه به نیسي او مونځ به کوي.

**تشريح:** ۱: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ – قوله عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّه ﴾ د عدي د نیکهٔ نوم عبدالله بن یزید الخطمی دې یعنی د مور پلار ئې دې هسې خو د هغوی په نوم کښې اختلاف دې د حافظ په نزد راجح قول هم دا دې، په دې حدیث کښې غسل مرة مذکور دې خو دا حدیث ضعیف دې ځکه چه ابو الیقظان راوی متکلم فیه دې دا روایت تعلیقا هم په دې سند سره په ابواب استحاضه کښې د ټولو نه مخکښې باب کښې د تعلیقاتو د لاندې تیر شوې دې.

[۲۹۸](¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: جَاءَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ خَبَرَهَا، وَقَالَ: "ثُمَّ اغْتَسِلِي، ثُمَّ تَوَضَّئِي لِكُلِّ صَلَاةٍ وَصَلِّي".

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې هغې وئیلی دی: راغله فاطمة بنت ابي حبیش نبي ﷺ ته نو ذکریې کړو خپل حال، او هغه وفرمایل: بیا غسل اوکړه، بیا اودس اوکړه د هر مانځه لپاره او مونځ اوکړه.

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ – قوله عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ عَنْ عُرْوَةَ ﴾ دا هم هغه روایت دې چه دهغې حواله مصنف رحمه الله په باب الوضوء من القبلة کښې ورکړې وه، هلته مصنف رحمه الله د یحیی بن سعید دا مقوله نقل کړې ده چه دا حدیث شبه لاشئ دې ددې وجه هلته دا تیره شوې ده چه دا عروة عروة بن الزبیر نه دې بلکه عروة المزنی دې کوم چه بالاتفاق مجهول دې ددې عروه تفصیلي بحث هلته تیر شوې دې، خو دلته حضرت په بذل کښې هغوی ته عروة بن الزبیر وئیلې دې او صاحب منهل په دې کښې اختلاف او دواړه اقوال لیکلي دی.

[۲۹۹](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ الْقَطَّانُ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ أَبِي مِسْكِينٍ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ، عَنْ عَائِشَةَ، "فِي الْمُسْتَحَاضَةِ تَغْتَسِلُ تَعْنِي مَرَّةً وَاحِدَةً، ثُمَّ تَوَضَّأُ إِلَى أَيَّامِ أَقْرَائِهَا".

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روایت دی: په مستحاضه کښې چه غسل به کوي، مطلب ئې دی یو ځل، بیا به اودس کوي تر زمانې د حیض پورې.

[۳۰۰](³) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ الْقَطَّانُ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ، عَنْ أَيُّوبَ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنِ ابْنِ شُبْرُمَةَ، عَنِ امْرَأَةِ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، وَالْأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبٍ، وَأَيُّوبَ أَبِي الْعَلَاءِ، كُلُّهَا ضَعِيفَةٌ لَا تَصِحُّ، وَدَلَّ عَلَى ضُعْفِ حَدِيثِ الْأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبٍ، هَذَا الْحَدِيثُ أَوْقَفَهُ حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، وَأَنْكَرَ حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ أَنْ يَكُونَ حَدِيثُ حَبِيبٍ مَرْفُوعًا، وَأَوْقَفَهُ أَيْضًا أَسْبَاطٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، مَوْقُوفٌ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ ابْنُ دَاوُدَ عَنِ الْأَعْمَشِ مَرْفُوعًا أَوَّلُهُ، وَأَنْكَرَ أَنْ يَكُونَ فِيهِ الْوُضُوءُ

---

¹): سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۱۵ (۶۲۵)، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۷۲) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، سنن الدارمي/الطهارة ۸۴ (۸۱۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۵۸ و ۱۷۹۸۹) (صحيح)

³): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۵۸ و ۱۷۹۸۹) (صحيح)

عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، وَدَلَّ عَلَى ضُعْفِ حَدِيثِ حَبِيبٍ هَذَا، أَنَّ رِوَايَةَ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ، فِي حَدِيثِ الْمُسْتَحَاضَةِ، وَرَوَى أَبُو الْيَقْظَانِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه، وَعَمَّارٍ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ وَرَوَى عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ، وَالْمُغِيرَةُ، وَفِرَاسٌ، وَمُجَالِدٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ حَدِيثِ قَمِيرَ، عَنْ عَائِشَةَ، تَوَضَّئِي لِكُلِّ صَلَاةٍ، وَرِوَايَةُ دَاوُدَ وَعَاصِمٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ قَمِيرَ عَنْ عَائِشَةَ، تَغْتَسِلُ كُلَّ يَوْمٍ مَرَّةً، وَرَوَى هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، الْمُسْتَحَاضَةُ تَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ، وَهَذِهِ الْأَحَادِيثُ كُلُّهَا ضَعِيفَةٌ، إِلَّا حَدِيثَ قَمِيرَ، وَحَدِيثَ عَمَّارٍ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ، وَحَدِيثَ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ، وَالْمَعْرُوفُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: الْغُسْلُ.

**ترجمه:** عائشه رضي الله عنها روايت کوي د نبي ﷺ نه په مثل د هغې. وئيلی دي ابوداود. او حديث د عدي بن ثابت او اعمش د حبيب نه او د ايوب نه چه ابو العلاء دی ټول ضعيف دي صحيح نه دي. او دليل دی په ضعف د حديث د اعمش باندې دا حديث موقوف کړی دی حفص بن غياث د اعمش نه، او منکر کړی دی حفص بن غياث چه شي دي حديث د حبيب مرفوع، دارنګه موقوف کړی دی اسباط د اعمش نه موقوف د عائشې نه، وئيلی دي ابوداود. او نقل کړی دی ابن داود د اعمش نه مرفوع اوله حصه، او منکر ئي ګڼړلی دی په دي کښې اودس کول په وخت د هر مانځه کښې، او دليل دی په ضعف د حديث د حبيب باندې چه دا دی، بيشکه روايت د زهري د عروه نه او هغه د عائشې نه هغې وئيلی دی: وه چه غسل به ئي کولو د هر مانځه دپاره، په حديث د مستحاضه کښې، او روايت کړی دی ابو اليقظان د عدين بن ثابت نه او هغه د خپل پلار نه او هغه د علي رضي الله عنه او عمار نه چه مولی د بنو هاشم دی، او هغه د ابن عباس نه. او روايت کړی دی عبد الملک بن ميسرة او بيان او مغيره او فراس او مجالد د شعبي نه د حديث د قمير عن عائشة نه: چه اودس کوه د هر مانځه دپاره. او روايت داود او عاصم د شعبي نه عن قمير عن عائشة: چه غسل به کوي هره ورځ او روايت نقل کړی دی هشام بن عروة د خپل پلار نه: چه مستحاضه به اودس کوي د هر مانځه دپاره. او دا احاديث ټول ضعيف دي مګر حديث د قمير او حديث د عمار چه مولی د بنو هاشم دی، او حديث د هشام بن عروة د خپل پلار نه، او معروف د ابن عباس نه هغه غسل دی.

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ – قوله عَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ عَنْ عَائِشَةَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ تَغْتَسِلُ مَرَّةً وَاحِدَةً ﴾ د عائشې رضي الله عنها دا روايت موقوفا دې دې خبرې لره د هغوی نه روايت کونکې ام کلثوم رضي الله عنها ده ددې نه وړاندې حديث هم د عائشې رضي الله عنها دې هغې لره نقل کونکې د مسروق امراة ده چه دهغې نوم قمير دې خو هغه حديث مرفوع دې، مضمون د دواړو يو دې غسل مرة واحدة ثم الوضوء لکل صلوة، ددې ځائې پورې د باب ټول څلور روايتونه شو،

١: حديث جد عدی، ٢: حديث عروة عن عائشة مرفوعا، ٣: حديث ام کلثوم عن عائشة موقوفا،

٤: حديث قمير عن عائشة مرفوعا.

**د مصنف رحمه الله دطرف نه د احاديث الباب تضعيف:**

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَحَدِيثُ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ وَالْأَعْمَشِ عَنْ حَبِيبٍ وَأَيُّوبَ أَبِي الْعَلَاءِ كُلُّهَا ضَعِيفَةٌ لَا تَصِحُّ ﴾ د آخرى دواړو احاديثو په سند کښې ايوب ذکر شوي دي لهذا د حديث ايوب نه آخرى دواړه احاديث مراد دی ګويا مصنف رحمه الله په څلورو واړو احاديثو باندې د ضعف حکم نافذ کړو.

﴿ وَدَلَّ عَلَى ضَعْفِ حَدِيثِ الأَعْمَشِ عَنْ حَبِيبٍ ﴾ ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د خپل تضعيف دعوى ښکاره کول غواړي، خو اول د ړومبى حديث په ځائې د حديث ثانى ضعف بيانوى په ظاهره کښې ددې وجه دا ده چه د حديث اول ضعيف کيدل دليل ته زيات محتاج نه وو په خلاف ددې دويم حديث، مصنف رحمه الله ددې د ضعف دوه دليلونه پيش کړى دى اول دليل دا چه ددې حديث مدار په اعمش باندې دې او د اعمش په شاګردانو کښې اختلاف دې، وکيع دا د هغوى نه مرفوعا نقل کوى او حفص بن غياث او اسباط دا دواړه موقوفا ګويا په حديث کښې رفعا و وقفا اضطراب پيدا شوې دې او حديث مضطرب ضعيف دې.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَرَوَاهُ ابْنُ دَاوُدَ عَنِ الأَعْمَشِ مَرْفُوعًا أَوَّلَهُ ﴾ دا دفع د دخل مقدر ده هغه دا چه چا اووئيل چه تاسو وئيلې وو چه دا روايت مرفوعا صرف وکيع روايت کوى او موقوفا روايت کونکى دوه سړى دى ګويا موقوفا نقل کونکو کښې تعدد دې، معترض وائى مرفوعا نقل کونکى هم دوه دى يو وکيع دويم ابن داؤد [1]

مصنف رحمه الله ددې جواب ورکوى هغه دا چه ابن داؤد بيشکه دا د اعمش نه مرفوعا نقل کړې دې خو ددې حديث صرف اول جزء يعنى غسل مرة او د حديث جزء ثانى يعنى وضوء لکل صلوة چه په اصل کښې زمونږ مطمطع نظر ده دا هغوى مطلقا نه ده ذکر کړې نه مرفوعا او نه موقوفا، لهذا د ابوداؤد روايت کان لم يکن شو.

**د حديث ثانى د ضعف دويم دليل :**

﴿ وَدَلَّ عَلَى ضَعْفِ حَدِيثِ حَبِيبٍ هَذَا أَنَّ رِوَايَةَ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ الخ ﴾ د حديث حبيب نه مراد هم هغه حديث الاعمش عن حبيب دې په کوم باندې چه بحث شروع دې، ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د هغه د تضعيف دويم دليل بيان فرمائى، ددې حاصل دا دې چه په دې حديث کښې حبيب د امام زهرى رحمه الله مخالفت کړې دې ځکه چه حبيب او زهرى دواړه دا حديث د عروة نه روايت کوى، حبيب خو د هغوى نه غسل مرة ثم الوضوء لکل صلوة روايت کړې دې او زهرى د هغوى نه غسل لکل صلوة نقل کړې دې، او زهرى د حبيب نه زيات اوچت راوى دې، لهذا اوس د اودس لکل صلوة والا روايت د ضعف دوه دليلونه شو خو دليل ثانى حضرت په بذل کښې د خطابى د کلام نه رد کړې دې چه وضوء لکل صلوة اول خو د جمهورو فقهاء کرامو مسلک دې دويم دا چه دا د زهرى په روايت سره د حبيب د روايت ترديد نه کيږى او نه په هغه دواړه روايتونو کښې څه تخالف دې ځکه چه د زهرى په روايت کښې د وضوء لکل صلوة په ځائې غسل لکل صلوة چه کوم مذکور دې هغه مرفوعا نه دې بلکه هغه منسوب دې د زنانه د فعل طرف ته پس په هغې کښې دى ﴿ فکانت تغتسل لکل صلوة ﴾ دا نشته چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوى ته د غسل لکل صلوة امر فرمائيلې وو.

**فائده** : ځان پوهه کړه چه حضرت په بذل کښې دا حديث عروة عن عائشة کښې د وضوء لکل صلوة مرفوعا روايت کيدل د حديث بخارى نه ثابت کړې دى اګرچه دهغې

[1] حضرت ليکلې دى د ابن داؤد روايت په دارقطنى کښې دې،

مرفوع کېدل په بخاری کښې د لفظ روایت په اعتبار سره منصوص او صریح نه دی خو د حافظ رائې هم دا ده چه دا مرفوع دې، په دې باندې تفصیلی کلام مونږ په الفیض السمائی کښې کړې دې هغه دې او کتلې شی.

﴿ وَرَوَى أَبُو الْيَقْظَانِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ الخ ﴾ اوسه پورې خبره شروع وه د باب د حدیث ثانی د تضعیف چه دهغې مصنف رحمه الله دوه دلائل بیان کړل اوس ددې ځائې نه مصنف رحمه الله په ظاهر کښې د حدیث اول د ضعف د دلیل طرف ته اشاره کوی هغه داسې چه د ابو الیقظان په روایت کښې اضطراب موندلې کیږی، پس هغوی اول سند داسې بیان کړې وو ﴿عن عدی بن ثابت عن ابیه عن جده﴾ او دلته وائی ﴿عن عدی بن ثابت عن ابیه عن علی﴾ او دا اضطراب فی السند د ضعف علامت دې.

﴿ وَرَوَى عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ الخ ﴾ په ظاهر کښې ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د څلورم حدیث د ضعف دلیل بیانوی هغه داسې چه په شروع کښې د امراة مسروق یعنی قمیر عن عائشة چه کوم روایت مرفوعا ذکر شوې دې او دلته د هغوی دا روایت کوم چه د قمیر نه شعبی روایت کوی موقوفا دې او هم په دې سره د دریم حدیث ام کلثوم عن عائشة هم تضعیف راوځی ځکه چه په دې سند کښې لاندې راوی ایوب ابو العلاء دې کوم چه د دریم او څلورم حدیث دواړو په سندونو کښې مشترک دې، ددې نه معلومه شوه چه ایوب کله یو شان روایت کوی او کله بل شان، لهذا په دې اضطراب سره دواړه روایتونه متاثر شو.

﴿ وَرِوَايَةُ دَاوُدَ وَعَاصِمٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ ﴾ په دې سره مصنف رحمه الله مزید اختلاف ثابتوی هغه داسې چه حدیث قمیر کوم چه په طریق د شعبی دې په هغې کښې اکثر راویانو وضوء لکل صلوة ذکر کړې دې او داؤد او عاصم د شعبی نه په دې حدیث کښې په ځائې د وضوء لکل صلوة غسل کل یوم ذکر کړې دې.

﴿ قوله وَرَوَى هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ ﴾ مصنف رحمه الله چونکه د وضوء لکل صلوة د روایاتو په تضعیف پسې دې په دې سلسله کښې هغه فرمائی چه دا وضوء لکل صلوة په بعض طرقو سره خو د هغوی د عائشې رضي الله عنها نه مرفوعا کېدل ثابتیږی او په بعضو سره موقوفا په عائشې رضي الله عنها باندې، او د بعض نه موقوفا په عروة باندې.

﴿ وَهَذِهِ الأَحَادِيثُ كُلُّهَا ضَعِيفَةٌ ﴾ ځان پوهه کړه چه مصنف رحمه الله په دې باب کښې ټول نهه روایات ذکر کړې دی چه په هغې کښې درې مرفوع دی، ۱: حدیث جد عدی، ۲: حدیث عروة عن عائشه، ۳: حدیث قمیر عن عائشه او شپږ روایات موقوفه ___ ۱: اثر ام کلثوم عن عائشه، ۲: اثر علی، ۳: اثر عمار عن ابن عباس، ۴: اثر قمیر عن عائشة (اول): چه په هغې کښې وضوء لکل صلوة دې، ۵: اثر قمیر عن عائشة

(ثانی): چه په هغې کښې غسل کل یوم مرة دې، ۶ : اثر عروة رحمه الله، مصنف علام په شورع کښې احادیث مرفوعه ثلاثه او اثر ام کلثوم د څلورو واړو د ذکر کولو نه پس په هغې باندې د ضعف حکم لګولې دې دهغې نه پس ئې پنځه آثار نور ذکر کړې دی، اوس په آخر کښې بیا

فرمائي ﴿ وَهَذِهِ الأَحَادِيثُ كُلُّهَا ضَعِيفَةٌ ﴾ په دې کښې تاسو ته اختيار دې که غواړې نو د هذه الاحاديث نه ټول روايات تسعة مراد کړه او که غواړې نو آخرى پنځه روايات، ځکه چه د څلورو ړومبو روايتونو تضعيف خو ئې په شروع کښې کړې هم دې، خو وړاندې تلو سره مصنف رحمه الله په دې نهو روايتونو کښې د دريو استثناء کړې ده چه هغه ضعيف نه دی، ۱: اثر د قمير عن عائشة اول، ۲: اثر عمار عن ابن عباس، ۳: اثر عروة، بيا مصنف رحمه الله فرمائي وَالْمَعْرُوفُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسِ الْغُسْلُ، لهذا په دې دريو کښې يو بيا ساقط شو، اوس د ضعف د حکم نه صرف د دوه روايتونو ضعف باقى پاتې شو، باقى ټول ضعيف دی، الحمد لله په دې باب باندې کلام پوره شو.

**هذا الباب عندي من اصعب الابواب :**

دا باب په اعتبار د حل عبارات کتاب و بيان غرض مصنف زما په نزد مشکل ترين دې، حضرت رحمه الله په بذل کښې ددې باب په حل کولو کښې هيڅ کمې نه دې پريخودلې، فجزاه الله تعالى احسن الجزاء، بحمد الله احقر ته د صحيح بخاري نه علاوه د صحاح د ټولو کتابونو د تدريس موقع ملاؤ شوه، زما په خيال کښې مجموعى حيثيت سره سنن ابوداؤد په هغه ټولو کتابونو کښې د ټولو نه زيات اهم او دقيق دې.

## بَابُ مَنْ قَالَ الْمُسْتَحَاضَةُ تَغْتَسِلُ مَنْ ظُهْرٍ إِلَى ظُهْرٍ

**باب دې په بيان د هغه چا کې چې قول کوي چې مستحاضه**
**به غسل کوي د ماسپخين نه تر بل ماسپخين پورې**

[۳۰۱](۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُمَيٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ، أَنَّ الْقَعْقَاعَ، وَزَيْدَ بْنَ أَسْلَمَ أَرْسَلَاهُ إِلَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ يَسْأَلُهُ كَيْفَ تَغْتَسِلُ الْمُسْتَحَاضَةُ؟ فَقَالَ "تَغْتَسِلُ مِنْ ظُهْرٍ إِلَى ظُهْرٍ، وَتَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ، فَإِنْ غَلَبَهَا الدَّمُ اسْتَثْفَرَتْ بِثَوْبٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، تَغْتَسِلُ مِنْ ظُهْرٍ إِلَى ظُهْرٍ، وَكَذَلِكَ رَوَى دَاوُدُ، وَعَاصِمٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ امْرَأَتِهِ، عَنْ قَمِيرَ، عَنْ عَائِشَةَ، إِلَّا أَنَّ دَاوُدَ، قَالَ: كُلَّ يَوْمٍ، وَفِي حَدِيثِ عَاصِمٍ، عِنْدَ الظُّهْرِ، وَهُوَ قَوْلُ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَالْحَسَنِ، وَعَطَاءٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَالِكٌ: إِنِّي لَأَظُنُّ حَدِيثَ ابْنِ الْمُسَيَّبِ مِنْ طُهْرٍ إِلَى طُهْرٍ، فَقَلَبَهَا النَّاسُ مِنْ ظُهْرٍ إِلَى ظُهْرٍ، وَلَكِنَّ الْوَهْمَ دَخَلَ فِيهِ، وَرَوَاهُ الْمِسْوَرُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَرْبُوعٍ، قَالَ فِيهِ: مِنْ طُهْرٍ إِلَى طُهْرٍ، فَقَلَبَهَا النَّاسُ مِنْ ظُهْرٍ إِلَى ظُهْرٍ.

**ترجمه**: د سعيد بن المسيب نه تپوس اوشو چه مستحاضه به څنګه غسل کوي؟ نو هغه اووئيل: غسل به کوي د يو ماسپخين نه تر بل ماسپخينه پورې. او اودس به کوي د هر مانځه دپاره، که چېرته پرې وينه غالب وه نو د وينې په ځائې کښې به څه کپړه کېدي. وئيلى دي ابوداود: او روايت نقل شوى دى د ابن عمر او انس بن مالک نه: چه غسل به کوې د ماسپخين نه تر ماسپخين پورې. او همدارنګه روايت نقل کړې دى داود او عاصم د شعبي نه او هغه د خپلې ښځې نه، او هغې د قمير نه او هغه د عائشې نه: مګر داود وئيلى

(۱): موطا امام مالک/الطهارة ۲۹ (۱۰۷)، أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ۸۴ (۸۳۷) (صحيح)

دی: ونیلی دي مالک: بیشکه زه ګمان کوم حدیث د ابن المسیب: د یو ماسپخین نه تر بل ماسپخین پورې، بیشکه دا (طهر الی طهر) دی، لیکن وهم داخل شوی دی په دې کښې، نو خلکو مقلوب کړو نو وئې وئیل: (من ظهر الی ظهر) او روایت کړی دی مسور بن عبد الملک بن سعید بن عبد الرحمن بن یربوع، هغه ونیلی دي په دې کې: (من طهر الی طهر) خلقو مقلوب کړو (من ظهر الی ظهر) ته.

**تشریح**: دا دواړه ظهر په ظاء معجمه سره دی یعنی روزانه یو ځل د ماسپخین غسل کول په دې باب کښې مصنفﷺ هیڅ حدیث مرفوع نه دې ذکر کړې بلکه په شروع کښې د سعید بن المسیب یو روایت دې او دهغې نه پس د بعض صحابه کرامو آثار تعلیقا دی، د مستحاضې دپاره روزانه په وخت د ظهر غسل کول مونږ سره د تیر باب په شروع کښې د امام نووی نه تیر شوې دی چه دا د حسن بصری او سعید بن المسیب نه منقول دی.

﴿ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ امْرَأَةٍ عَنْ قَمِيرَ ﴾ او په بعض نسخو کښې دی ﴿ عَنِ امْرَأَتِهِ عَنْ قَمِيرَ ﴾ دا دویمه نسخه خو بالکل غلطه ده ځکه چه ددې مطلب به دا وی چه شعبی روایت کوی د خپلې ښځې نه او د خپلې ښځې قمیر نه حال دا چه شعبی خو براه راست د قمیر نه روایت کوی لکه چه اوس نزدې ددې نه مخکښې باب کښې تیر شو، او اول نسخه هم صحیح نه ده ځکه چه ددې مطلب دا دې چه شعبی د یوې زنانه نه روایت کوی او هغه قمیر ده، او ا ددې نسخې د صحت یو شکل ممکن دې هغه دا چه ﴿ عن قمیر ﴾ د ﴿ عن امراة ﴾ نه بدل اومنلې شی، اصل خبره دا ده چه دا لفظ دلته کیدل نه وو پکار، صحیح ﴿ عن الشعبی عن قمیر ﴾ دې یا دې بیا داسې وی چه ﴿ عن الشعبی عن امراة مسروق ﴾ او دا امرة مسروق قمیر ده لکه چه د باب په شروع کښې تیر شو.

په دې روایاتو کښې د ظهر د وخت تخصیص په ظاهره کښې په دې وجه دې چه په اصل کښې دا د غسل حکم علاجا دې، د برودت د پیدا کولو دپاره او د ظهر وخت چونکه د حرارت وی په دې وجه هم دا زیات مناسب دې.

﴿ قوله قَالَ مَالِكٌ إِنِّي لَأَظُنُّ الخ ﴾ د امام مالکﷺ رائې دا ده چه د سعید بن المسیب روایت چه په هغې کښې ﴿ من ظهر الی ظهر ﴾ دې وهم دې صحیح ﴿ من طهر الی طهر ﴾ دې، د یوې نقطې د زیادت د وجې نه د څه نه څه جوړ شو ځکه چه د نقطې والا روایت حاصل دا دې چه روزانه یو ځل غسل کوی او د حذف نقطه والا روایت مقتضی دا ده چه په پوره میاشت کښې صرف یو ځل غسل اوکړی، د امام مالکﷺ په دې رائې باندې امام خطابیﷺ د خوشحالئ نه ټوپونه جوړ کړل او وې وئیل ﴿ ما احسن ما قال مالک وما اشبهه بما ظنه من ذلک ﴾ یعنی امام مالکﷺ څه خبره کړې ده او څه صحیح ګمان دې د هغوی، خو د حضرت ددې رائې سره اتفاق نشته ځکه حضرت فرمائی چه سعید بن المسیب دا اثر په سنن دارمی کښې په متعددو طرقو او مختلفو الفاظو سره مروی دې د هغی نه هم دا معلومیږی چه طهر نه دې بلکه ظهر دې (په ظاء منقوطه سره) ځکه چه په دې یو روایت کښې داسې دی ﴿ تغتسل کل یوم عند الصلوة الاولی ﴾ او صلوة اولی ظهر ته وائی. والله تعالی اعلم بالصواب

## بَابُ مَنْ قَالَ تَغْتَسِلُ كُلَّ يَوْمٍ مَرَّةً وَلَمْ يَقُلْ عِنْدَ الظُّهْرِ

**باب دې په بيان د هغه چې کې چې وايې غسل به کوي هره ورځ يوځل او نه يې دی ويلی په وخت د ماسپخين کې**

دمستحاضه يوځل غسل کول دا دعلي او ابن عباس رضي الله عنهم نه په يو روايت کښې دی کما تقدم.

[۳۰۲](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي إِسْمَاعِيلَ وَهُوَ مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ، عَنْ مَعْقِلٍ الْخَثْعَمِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: "الْمُسْتَحَاضَةُ إِذَا انْقَضَى حَيْضُهَا، اغْتَسَلَتْ كُلَّ يَوْمٍ وَاتَّخَذَتْ صُوفَةً فِيهَا سَمْنٌ أَوْ زَيْتٌ".

**ترجمه:** د علي رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلي دی. مستحاضه چه کله پوره شي حيض دهغې غسل به کوي هره ورځ او ردې به وړی چه په هغې کښې به غوړې وي او يا تيل.

**تشريح:** ﴿ قوله وَاتَّخَذَتْ صُوفَةً فِيهَا سَمْنٌ أَوْ زَيْتٌ ﴾ دا د تدبير او علاج په طور ښودلې شی چه يو کپړه د زيتونو تيل وغيره کښې لوندولو سره په مخصوص مقام باندې کيږدی ځکه چه دا په صلابة عروق کوم چه د سيلان دم سبب دې هغې لره لرې کولو سره په عروق کښې نرمی پيدا کوی.

## بَابُ مَنْ قَالَ تَغْتَسِلُ بَيْنَ الْأَيَّامِ

**باب دې په بيان د هغه چا کې چې ويلي يې دې غسل به کوي په مابين د ورځو کې**

[۳۰۳](2) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُثْمَانَ، أَنَّهُ سَأَلَ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ عَنِ الْمُسْتَحَاضَةِ، فَقَالَ: "تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، ثُمَّ تَغْتَسِلُ فَتُصَلِّي، ثُمَّ تَغْتَسِلُ فِي الْأَيَّامِ".

**ترجمه:** د محمد بن عثمان نه روايت دې، بېشکه هغه سوال اوکړو د قاسم بن محمد نه، په باره د مستحاضه کښې نو هغه اووئيل: پريږدې به مونځ په ورځو د حيض دهغې کښې، بيا به غسل کوي او مونځ به کوي، بيا به غسل کوي په ورځو کښې.

**تشريح:** يعنی مستحاضه يو ځل غسل خو دې عند انقطاع الحيض اوکړی او بيا يو ځل دوباره وجوبا د طهر په زمانه کښې اوکړی دا د قاسم بن محمد قول دې چه په هغې کښې هغوی متفرد دی د جمهورو په نزد صرف يو ځل غسل واجب دې ددې نه زائد مستحب دې.

## بَابُ مَنْ قَالَ تَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ

**باب دې په بيان د هغه چا کې چې وايې اودس به کوي د هر مانځه دپاره**

[۳۰۴](3) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، حَدَّثَنِي ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِي حُبَيْشٍ، أَنَّهَا كَانَتْ تُسْتَحَاضُ، فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ دَمُ الْحَيْضِ فَإِنَّهُ دَمٌ أَسْوَدُ يُعْرَفُ، فَإِذَا كَانَ ذَلِكَ فَأَمْسِكِي عَنِ الصَّلَاةِ، فَإِذَا كَانَ الْآخَرُ فَتَوَضَّئِي وَصَلِّي"، قَالَ أَبُو

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۸۲) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۰۵) (صحيح)

(3): انظر حديث رقم: ۲۸۱، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۱۹) (حسن)

دَاوُد: قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: وَحَدَّثَنَا بِهِ ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ حِفْظًا، فَقَالَ: عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ فَاطِمَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرُوِيَ عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، وَشُعْبَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ، قَالَ الْعَلَاءُ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَوْقَفَهُ شُعْبَةُ عَلَى أَبِي جَعْفَرٍ: تَوَضَّأْ لِكُلِّ صَلَاةٍ.

**ترجمه:** د فاطمة بنت ابي حبيش نه روايت دې، بيشکه هغه مستحاضه کېده نو اووئيل هغې ته نبي ﷺ کله چه وي وينه د حيض نو دا وينه ده توره پېژندل کېږي، کله چه وي دا نو بنده شه د مانځه نه، کله چه هغه بله وي نو اودس کوه او مونځ کوه. وئيلي دي ابوداود: وئيلي دي ابن المثنى، او حديث بيان کړى دى مونږ ته په دې سره ابن ابي عدي د حفظ نه، هغه اووئيل د عروه نه او هغه د عائشې نه: بيشکه فاطمة. وئيلي دي ابوداود: او روايت نقل دى دعلاء بن المسيب او شعبه نه دوى د حکم نه، اوهغه د ابي جعفر نه، وئيلي دي علاء د نبي ﷺ نه، او موقوف کړى دى شعبه په ابي جعفر باندې، اودس اوکړه د هر مانځه دپاره.

**تشريح:** د مستحاضه دپاره وضوء لکل صلوة يعنى هر فرض مونځ دپاره د غسل کول مستقل اودس کول اګر که په وخت کښې دننه وى دا د شوافعو مسلک دې د مصنف رحمه الله غرض هم دغه مذهب لره بيانول دى، ددې باب په حديث باندې کلام او دهغې شرح په باب اذا اقبلت الحيضة کښې تير شوې دې.

## بَابُ مَنْ لَمْ يَذْكُرِ الْوُضُوءَ إِلَّا عِنْدَ الْحَدَثِ

### باب دې په بيان دهغه چا کې چې داودس قائل نه دى مګر په وخت دبې اودسى کې

په ظاهره په دې ترجمه کښې د مالکيانو مسلک مذکور دې کوم چه وائى چه استحاضه اودس واجب کونکې نه دى مګر دا چه د استحاضه نه علاوه بل څه حدث بيا موندلې شي.

[٣٠٥]([1]) حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ بِنْتَ جَحْشٍ اسْتُحِيضَتْ، "فَأَمَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَنْتَظِرَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، ثُمَّ تَغْتَسِلُ وَتُصَلِّي، فَإِنْ رَأَتْ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ تَوَضَّأَتْ وَصَلَّتْ".

**ترجمه:** د عکرمه نه روايت دې بيشکه ام حبيبة بنت جحش مستحاضه شوه، نو امر ورته اوکړو نبي ﷺ چه انتظار اوکړي ورځې د حيضونو د هغې، بيا بيا به غسل کوي او مونځ به کوي، که چېرې ئې اوليدلو څه شى د دغې نه اودس به کوي او مونځ به کوي.

[٣٠٦]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ رَبِيعَةَ، "أَنَّهُ كَانَ لَا يَرَى عَلَى الْمُسْتَحَاضَةِ وُضُوءًا عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، إِلَّا أَنْ يُصِيبَهَا حَدَثٌ غَيْرُ الدَّمِ، فَتَوَضَّأُ" قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا قَوْلُ مَالِكٍ يَعْنِي ابْنَ أَنَسٍ.

**ترجمه:** د ربيعه نه روايت دې، بې شکه هغه وو چه نه ئې ليدو په مستحاضه باندې اودس د هر مانځه لپاره مګر که ورسېږي ورته بې اودسې بغير د وينې نه، نو اودس به کوي. وئيلي دي ابوداود: دا قول د مالک دى مطلب ئې خوى د انس دى.

[1]: انظر حديث رقم: ٢٨٧، (تحفة الأشراف: ١٥٨٢١) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٦٣٦) (صحيح)

**تشریح:** ١: ﴿ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ – قوله فَإِنْ رَأَتْ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ ﴾ ای نواقض الوضوء غیر الاستحاضة یعنی ذلک نه مراد د استحاضه نه علاوه نور نواقض وضوء دی، مطلب دا دې چه مستحاضه عند انقطاع الحیض یو ځل غسل کولو سره هم په دې غسل سره دې مونځونه کوی ځومره چه غواړی د خروج وخت نه پس هم ترڅو چه د استحاضه نه علاوه بل څه حدث اومونډلې شی او هم دا مذهب بعینه د مالکیانو دې، دې مطلب لره اخستلو سره دا حدیث د جمهورو خلاف کیږی لهذا دا به اوویئلې شی چه په ذلک سره اشاره د استحاضې طرف ته ده او مطلب دا دې چه ترڅو پورې د استحاضه سلسله قائم وی مستحاضه دې اودس کولو سره مونځونه کوی د یو ځل نه زیات غسل ته حاجت نشته، اوس دا اودس کول عام دی که د هر مانځه دپاره وی لکه د شوافعو په نزد، او که لوقت کل صلوة وی کما عند الحنفية.

﴿ قوله عَنْ رَبِيعَةَ أَنَّهُ كَانَ لاَ يَرَى عَلَى الْمُسْتَحَاضَةِ وُضُوءًا ﴾ ربیعه شیخ مالک او خپله امام مالک رحمه الله د دواړو مسلک یو دې چه مستحاضې ته د استحاض د وجې نه د اودس حاجت نشته نه په وخت کښې دننه او نه پس د خروج وخت نه، او د احنافو په نزد د وخت د دخول په وخت اګرچه د اودس حاجت نشته خو د خروج وخت نه پس اودس ضروری دې، د ربیعه او د احنافو د مسلک ترمینځه هم دا فرق دې، په بذل کښې حضرت قول ربیعه په دې باندې محمول کړې دې. چه په داخل د وخت کښې حاجت نشته بیا هم په دې وجه حضرت په دې باندې لیکلې دی چه هم دا مذهب د احنافو هم دې، نبه علیه شیخنا ایضا فی هامش البذل.

## بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَرَى الْكُدْرَةَ وَالصُّفْرَةَ بَعْدَ الطُّهْرِ

### باب دې په بیان د ښځه کې چې وینې خړوالی او زېړوالی وروسته د پاکوالې نه

یعنی کومه زنانه چې صفرة او کدرة دا دواړه رنګونه اووینی د حصول طهر یعنی د حیض د مودې د تیریدلو نه پس، کدرة نه مراد هغه رنګ دې چه مشابه وی د ماء مکدر یعنی خړو اوبو سره چه په هغې کښې ګردوغباروغیره ګډ شی، د مصنف رحمه الله دا ترجمه بلفظ الحدیث ده.

[٣٠٧](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أُمِّ الْهُذَيْلِ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ وَكَانَتْ بَايَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "كُنَّا لاَ نَعُدُّ الْكُدْرَةَ وَالصُّفْرَةَ بَعْدَ الطُّهْرِ شَيْئًا".

**ترجمه:** د ام عطية نه روایت دې (او دا وه چه بیعت کړی وو د رسول الله ﷺ سره) هغه وائی: وومونږ چه مونږ نه شمارلو خړوالی او زېړوالی وروسته د طهر نه هېڅ شی.

[٣٠٨](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، بِمِثْلِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أُمُّ الْهُذَيْلِ هِيَ حَفْصَةُ بِنْتُ سِيرِينَ، كَانَ ابْنُهَا اسْمُهُ هُذَيْلٌ وَاسْمُ زَوْجِهَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٣٢) وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحيض ٢٥ (٣٢٥)، سنن النسائي/الحيض ٧ (٣٦٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٧ (٦٤٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٩٣ (٩٠٠) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الحيض ٢٦ (٣٢٦)، سنن النسائي/الحيض ٧ (٣٦٨)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٧ (٦٤٧)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٩٦) (صحيح)

**ترجمه:** د ام عطية نه روايت دې په مثل د هغه حديث. وئيلى دي ابوداود: ام الهذيل هغه حفصة بنت سيرين ده وو خوى دهغې چه نوم ئې هذيل وو، او نوم د خاوند دهغې عبد الرحمن وو.

## مسئلة الباب كښې مذاهب علماء او د هغوى دلائل:

دا مسئله مختلف فيه ده، په دې كښې د علماء كرامو درې اقوال دى، د جمهورو علماء كرامو چه په هغوى كښې احنافو هم دى، مسلک دا دې چه زنانه كه صفرة او كدرة كه په موده د حيض كښې اوينى نو هغه حيض دې گڼې استحاضه. او هم دا مصنف رحمه الله په ترجمة الباب كښې هم وائى لهذا دا ترجمة د مسلک جمهور موافق شوه، دويم قول د ابن حزم ظاهرى رحمه الله دې چه دا دواړه رنگونه مطلقا استحاضه ده اگر كه په موده د حيض كښې دننه اووينى، دريم قول دا دې كوم چه د امام مالک رحمه الله يو روايت دې چه صفرة او كدرة مطلقا حيض دې كه په عادت كښې ئې دننه وينى يا دهغې د پوره كيدو نه پس، او دويم روايت د امام مالک رحمه الله د جمهورو په مثل دې، دلته يو څلورم قول هغه دې كوم چه په احنافو كښې د امام ابويوسف رحمه الله نه مروى دې چه كدرة حيض دې په دې شرط چه په شروع كښې اثر دم (اسود يا احمر) اووينى گنې صرف يو رطوبت دې چه دهغې څه اعتبار نشته.

د جمهورو دليل د ابوداؤد حديث الباب دې، د ابن حزم دليل هم دا حديث الباب يعنى حديث د ام عطيه رضي الله عنها دې خو په روايت د بخارى او نسائى، ځكه چه په هغوى دواړو كښې ددې روايت الفاظو كښې ﴿ بعد الطهر ﴾ مذكور نه دې بس داسې دى ﴿ كنا لا نعد الكدرة والصفرة شيئا ﴾ په دې وجه امام نسائى رحمه الله په دې باندې ترجمه هم مطلق قائم كړې ده، د جمهورو د طرف نه ددې جواب دا وركړې شوې دې چه د ابوداؤد په روايت كښې د بعد الطهر زيادت موجود دې هم په دې وجه امام ابوداؤد رحمه الله په ترجمه الباب كښې دا قيد ذكر فرمائيلې دې او هم دغه شان امام بخارى رحمه الله هم په بخارى كښې ترجمةُ الباب د ابوداؤد د روايت مطابق د بعد الطهر د قيد سره قائم كړې دې، لهذا ابن حزم دپاره اوس دهغې نه د استدلال گنجائش پاتې نه شو، او د دريم قول دليل د بخارى هغه مشهور حديث دې چه په هغې كښې عائشه رضي الله عنها فرمائى ﴿ لا تعجلن حتى ترين القصة البيضا ﴾ چونكه په ظاهره كښې ددې حديث عائشه رضي الله عنها نه د صفرة او كدرة مطلقا حيض كيدل ثابتيږى د حيض د مودې قيد نشته، ددې جواب هم د ام عطيه رضي الله عنها د حديث نه پخپله راوتلو چه حديث د عائشې رضي الله عنها حديث به محمول كولې شى په زمانه د حيض باندې، لهذا اوس د حديث عائشه، او حديث ام عطيه دواړو په يو ځائې كولو سره حاصل دا شو چه صفرة او كدرة حيض دى مخكښې د طهر يعنى په زمانې د حيض كښې او استحاضه ده پس د طهر يعنى غير ايام حيض كښ.

ځان پوهه كړه چه دا د اختلاف مذاهب بيان خو كلى طور باندې وو، بيا وړاندې په دې كښې نور هم تفصيل دې هغه دا چه د زنانه دپاره د صفرة او كدرة په حيض كښې د ليدو دوه صورتونه دى يو دا چه دا ليدل د عادت نه متجاوز كيدو سره اكثر په حيض باندې راتلو سره منقطع شى دويم دا چه په اكثره موده باندې منقطع نه شى بلكه دهغې نه هم

متجاوز شي، د احنافو په نزد په اول صورت کښې ټول حیض دي او په صورت ثانیه کښې ما زاد علی العادة استحاضه ده او هم دا قول د شوافعو هم دې خو فرق دا دې چه زمونږ په نزد اکثر موده د حیض لس ورځې ده او د هغوی په نزد پنځلس ورځې ده، او دویم قول د شوافعو دا دې چه صفرة او کدرة په ایامو د عادت کښې خو حیض دې او ما زاد علی العادة مطلقا استحاضه ده.

## بَابُ الْمُسْتَحَاضَةِ يَغْشَاهَا زَوْجُهَا

### باب دی چې مستحاضې سره کوروالی کوي خاوند د هغې

[۳۰۹]([1]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُسْهِرٍ، عَنْ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: "كَانَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ تُسْتَحَاضُ فَكَانَ زَوْجُهَا يَغْشَاهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ: مُعَلَّى ثِقَةٌ، وَكَانَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ لَا يَرْوِي عَنْهُ، لِأَنَّهُ كَانَ يَنْظُرُ فِي الرَّأْيِ.

**ترجمه:** د عکرمه نه روایت دې هغه اووئیل: وه ام حبیبة چه مستحاضه کېده وو خاوند دهغې چه کوروالی ئې ورسره کولو. وئیلی دي ابوداود:: او وئیلی دي یحیی بن معین: معلی ثقه دی، او وو احمد بن حنبل چه روایت ئې نه کولو د هغه نه ځکه هغه وو چه نظر به ئې رای ته کوو.

[۳۱۰]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْجَهْمِ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ، "أَنَّهَا كَانَتْ مُسْتَحَاضَةً وَكَانَ زَوْجُهَا يُجَامِعُهَا".

**ترجمه:** د حمنة بنت جحش نه روایت دی: بیشکه هغه وه چه مستحاضه کېده او وو خاوند دهغې چه کوروالی به ئې کولو دهغې سره.

**تشریح:** وطی د مستحاضې د جمهورو په نزد جائز ده او د یو جماعت په نزد ناجائز ده چه په هغې کښې ابراهیم نخعی هم دې او هم دا یو روایت د امام احمد رحمه الله دې، او د ابن سیرین نه کراهت منقول دې.

مصنف رحمه الله په دې باب کښې هیڅ حدیث مرفوع نه دې ذکر کړې بلکه اثر عکرمه رحمه الله ئې ذکر کړو هغه دا چه ام حبیبة رضی الله عنها سره به دهغې خاوند او حمنة رضی الله عنها سره به دهغې خاوند په حالت د استحاضه کښې وطی کوله، د ام حبیبة رضی الله عنها خاوند عبدالرحمن بن عوف دې رضی الله عنه او د حمنة بنت جحش خاوند طلحة بن عبیدالله رضی الله عنه دې، په دې مسئله کښې د فعل صحابی نه استدلال په دې طریقه دې چه دا دواړه جلیل القدر صحابه کرامو کوم چه د عشره مبشره نه دی په دې فعل باندې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اجازت نه بغیر جراءت نه شی کولې، خصوصا هر کله چه د حائض د نزدیکت نه ممانعت هم راغلې دې، دویم خبره دا ده چه د منع دپاره د دلیل حاجت دې او په دې سلسله کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه هیڅ نهی نه ده ثابت خو حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی چه په دې سلسله کښې بعض روایات په جمع الفوائد

---

[1]: أنظر حديث رقم (۳۰۵)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۲۱) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم (۳۰۵)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۲۱) (حسن)

کښې موجود دی. (۱)

# باب مَا جَاءَ فِي وَقْتِ النُّفَسَاءِ

## باب دې په بيان د هغې کې چې راغلی دی په وقت د نفاسې کې

په اقل موده د نفاس کښې د ائمه اربعه په نزد هيڅ تحديد نشته، په اکثره موده کښې اختلاف دې، د احنافو او حنابله په نزد څلويښت ورځې ده او د امام شافعي رحمه الله او مالک رحمه الله په نزد شپيته ورځې ده، او په يو روايت کښې د امام شافعي رحمه الله نه سبعون يوما مروی دې او امام ترمذی رحمه الله د امام شافعي رحمه الله مسلک هم دا ليکلې دې کوم چه د احنافو او حنابله دې خو په کتب شافعيه کښې ستون يوما مذکور دې.

[۳۱۱](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، أَخْبَرَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ أَبِي سَهْلٍ، عَنْ مُسَّةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "كَانَتِ النُّفَسَاءُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقْعُدُ بَعْدَ نِفَاسِهَا أَرْبَعِينَ يَوْمًا، أَوْ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً، وَكُنَّا نَطْلِي عَلَى وُجُوهِنَا الْوَرْسَ تَعْنِي مِنَ الْكَلَفِ".

**ترجمه:** د ام سلمة نه روايت دې هغې وئيلی دی: وه نفاسه په زمانه د رسول الله ﷺ کښې چه کيناستله وروسته د نفاس نه څلويښت ورځې (او يا څلويښت شپې) او وو مونږ چه مونږ به لړل به مو مخونه خپل په ورس باندې. مطلب ئې دادی چه د ورو دانو د وجې نه.

[۳۱۲](۳) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ يَحْيَى، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ يَعْنِي حِبِّي، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ زِيَادٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي الْأَزْدِيَّةُ يَعْنِي مُسَّةَ، قَالَتْ: حَجَجْتُ فَدَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ، فَقُلْتُ: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ، إِنَّ سَمُرَةَ بْنَ جُنْدُبٍ يَأْمُرُ النِّسَاءَ يَقْضِينَ صَلَاةَ الْمَحِيضِ، فَقَالَتْ: "لَا يَقْضِينَ، كَانَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ نِسَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقْعُدُ فِي النِّفَاسِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً، لَا يَأْمُرُهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَضَاءِ صَلَاةِ النِّفَاسِ". قَالَ مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ حَاتِمٍ: وَاسْمُهَا مُسَّةُ تُكْنَى أُمَّ بُسَّةَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: كَثِيرُ بْنُ زِيَادٍ كُنْيَتُهُ أَبُو سَهْلٍ.

**ترجمه:** کثير بن زياد نه روايت دی هغه وائی حديث بيان کړی دی ماته ازديه يعني مسه، هغې وئيلی دی: حج اوکړو ما نو زه داخله شوم په ام سلمة نو ما اووئيل: اې ام المؤمنين! بېشکه سمرة بن جندب امر کوي ښځو ته چه قضائي به راوړي د مونځ د حيض، نو هغې اووئيل: قضايي به نه راوړي، وه به زنانه د بيبيانو د نبي ﷺ نه چه کيناستله به په نفاس کښې څلويښت شپې امر به ورته نبي ﷺ نه کولو په قضاپې د مونځ د نفاس. وئيلی دي محمد يعني ابن حاتم، نوم دهغې مسة وو چه کنيه ئې ام بسة وه، وئيلی دي ابوداود: د

---

(۱) په جمع الفوائد کښې ددې سلسله دواړه قسم روايات دی د جواز هم او د عدم جواز هم مونږ د هغوی عبارت بعينه نقل کوو، (عائشه) قالت المستحاضة لا ياتيها زوجها، للدارمي (وله) بلين عن ابراهيم قال كان يقال المستحاضة لا تجامع ولا تصوم ولا تمس المصحف انما رخص لها في الصلوة، وقال يزيد يجامعه زوجها ويحل لها ما يحل للطاهرة (وله) عن ابن جبير وقد سئل اتجامع مع المستحاضة فقال الصلوة اعظم من الجماع ددې نه پس ئې په دې کښې د ابوداؤد په حوالې سره اثر د عکرمه ذکر کړې دی، د ام حبيبة او حمنة رضی الله عنهما په باره کښې.

(۲): سنن الترمذي/الطهارة ۱۰۵ (۱۳۹)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲۸ (۶۴۸) (تحفة الأشراف: ۱۸۲۸۷)، وقد أخرجه: مسند أحمد (۶/۳۰۰، ۳۰۳، ۳۰۴، ۳۱۰) (حسن صحيح)

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۸۸) (حسن)

کثير بن زياد كنيه ابو سهل وه

**تشريح:** قوله: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ – قوله كَانَتِ النُّفَسَاءُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- تَقْعُدُ بَعْدَ نِفَاسِهَا أَرْبَعِينَ يَوْمًا ﴾ ددې نه معلومه شوه چه اكثره موده د نفاس څلويښت ورځې ده لكه چه د احنافو او حنابله مذهب دې او د صحابى قول ﴿ كنا نفعل كذا فى زمن رسول اللهﷺ ﴾ بالاتفاق د حديث مرفوع په حكم كښې دې [1] كما فى كتب الاصول او دلته خو داحديث يو بل لحاظ سره هم مرفوع دې هغه په دې وجه چه د صحابيه مراد دا دې چه نفساء د رسول اللهﷺ د طرف نه په دې خبره باندې مامور وې چه څلويښت ورځې د ناستې مطلب دا نه دې چه كيناستلې به او مراد په دې وجه دې چه حديث كه په ظاهر باندې كيخودلې شى نو د حديث مضمون به خلاف واقع وى ځكه چه دا مستبعد ده چه د يوې زمانې ټولې زنانه دې په نفاس كښې متحد شى يقينا دې په ټولو باندې څلويښت ورځې نفاس راشى يقينا په دې كښې د عادت په اعتبار سره زنانه مختلف وى، كذا فى البذل عن الشوكانى، او هم دا خبره شيخ ابن الهمام په فتح القدير كښې هم ليكلې ده خو زه وائم چه دا لوئې لوئې حضرات خو هم دا ليكى خو د مضمون د خلاف واقع كيدو خبره ددې احقر په فهم كښې نه راځى ځكه چه په دې حديث كښې مراد دا دې چه د رسول اللهﷺ په زمانه كښې به نفساء زيات نه زيات څلويښت ورځې كيناستلې په دې كښې خو هيڅ هم اشكال نشته، او كه دلته امر مقدر اومنلې شى نو بيا به هم دا مطلب اخستلې كيږى چه نفساء د رسول اللهﷺ د طرف نه مامور وې ددې خبرې چه زيات نه زيات به څلويښت ورځې كينى، او كه دا مطلب واخستلې شى چه څلويښت ورځې به كيناستلې يا هر نفساء د څلويښتو ورځو دناستې مامور وې نو بيا به په دواړو صورتونو كښې اشكال وى.

**فائده:** مصنفؒ د نفاس د مودې په باره كښې خو ترجمة قائم كړې ده خو د حيض د مودې په باره كښې ئې هيڅ ترجمه نه ده قائم كړې او نه ئې دهغې څه حديث ذكر كړې دې په ظاهره ددې وجې نه چه په دې كښې يو حديث هم ثابت نه دې لكه چه د ابن العربى د كلام نه معلوميږى. (كذا فى هامش البذل)

﴿ قوله وَكُنَّا نَطْلِى [2] عَلَى وُجُوهِنَا الْوَرْسَ يَعْنِى مِنَ الْكَلَفِ ﴾ كلف يعنى داغ او نخښې د زنانه په مخ باندې د ولادت د سختئ او تكليف وغيره د وجې نه څه نخښې پريوځى، ام سلمهؓ دې باره كښې وائى چه مونږ به ددې دپاره څه تدبير كولو چه ورس يو مشهوره ګيا ده هغه به ميده كولو سره زنانو په مخ باندې مږله، چه په هغې سره به هغه نخښې پاكې شوې.

[1] ، او په دې سلسله كښې يو حديث په سنن ابن ماجه كښې مرفوع صريح هم دې ﴿ عن انس ان رسول اللهﷺ وقت للنفساء اربعين يوما الا ان ترى الطهر قبل ذلك ﴾

[2] ، دا د طلا يطلى مجرد نه هم كيدې شى او نطّلى بتشديد الطاء د باب افتعال نه هم كيدې شى او دا دوه احتمالات علامه سندى (رح) په حاشيه د نسائى كښې د قول ابن عمر: لان اصبح مطليًا بقطران، لاندې ذكر كړى دى.

۲: ﴿ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ يَحْيَى – قوله إِنَّ سَمُرَةَ بْنَ جُنْدُبٍ يَأْمُرُ النِّسَاءَ الخ ﴾ سيدنا سمره بن جندب رضي الله عنه به غالبا په خپل قياس او اجتهاد سره زنانو ته د حيض د زمانې د قضاء مونځونو حکم کولو، ام سلمه رضي الله عنها ته چه کله دا معلومه شوه نو هغوی ددې ترديد اوفرمائيلو او وې فرمائيل چه رسول الله ﷺ به د نفاس د زمانې د مونځونو د قضاء حکم نه فرمائيلو مطلب دا دې چه کله د نفاس د مونځونو د قضاء حکم نشته نو په زمانه د حيض کښې به د مونځونو د قضاء حکم په طريق اولی نه وی ځکه چه په دې کښې حرج زائد دې، ځکه چه حيض د نفاس په مقابله کښې ډير زيات کثير الوقوع دې، نو چه کله د دفع حرج دپاره هلته قضاء نشته نو دلته به په طريق اولی نه وی.

## بَابُ الاِغْتِسَالِ مِنَ الْحَيْضِ

### باب دې په بيان د غسل کې د حيض نه

په دې باب سره مقصود د غسل حيض کيفيت لره بيانول دی لکه چه ددې نه مخکښې په شروع کښې د غسل جنابت کيفيت بيانول وو غسل که د جنابت دپاره وی يا د حيض دپاره د دواړو طريقه يوه ده خو د غسل حيض په باره کښې په رواياتو کښې بعض داسې څيزونه راځی چه دهغې تعلق خاص د حيض سره وی، مثلاً د فرصه ممسکه وغيره ذکر کوم چه په وړاندې روايت کښې راځی په دې وجه دا بيل بيانولې شی.

[۳۳]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ سُحَيْمٍ، عَنْ أُمَيَّةَ بِنْتِ أَبِي الصَّلْتِ، عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي غِفَارٍ قَدْ سَمَّاهَا لِي، قَالَتْ: أَرْدَفَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حَقِيبَةِ رَحْلِهِ، قَالَتْ: فَوَاللَّهِ لَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الصُّبْحِ فَأَنَاخَ وَنَزَلْتُ عَنْ حَقِيبَةِ رَحْلِهِ، فَإِذَا بِهَا دَمٌ مِنِّي، فَكَانَتْ أَوَّلَ حَيْضَةٍ حِضْتُهَا، قَالَتْ: فَتَقَبَّضْتُ إِلَى النَّاقَةِ وَاسْتَحْيَيْتُ، فَلَمَّا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بِي وَرَأَى الدَّمَ، قَالَ: "مَا لَكِ؟ لَعَلَّكِ نَفِسْتِ"، قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَأَصْلِحِي مِنْ نَفْسِكِ، ثُمَّ خُذِي إِنَاءً مِنْ مَاءٍ فَاطْرَحِي فِيهِ مِلْحًا ثُمَّ اغْسِلِي مَا أَصَابَ الْحَقِيبَةَ مِنَ الدَّمِ ثُمَّ عُودِي لِمَرْكَبِكِ"، قَالَتْ: فَلَمَّا فَتَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ رَضَخَ لَنَا مِنَ الْفَيْءِ، قَالَتْ: وَكَانَتْ لَا تَطَّهَّرُ مِنْ حَيْضَةٍ إِلَّا جَعَلَتْ فِي طَهُورِهَا مِلْحًا وَأَوْصَتْ بِهِ أَنْ يُجْعَلَ فِي غُسْلِهَا حِينَ مَاتَتْ.

**ترجمه:** د امية بنت ابي الصلت نه روايت دې، هغه روايت کوي د يوې ښځې د بني غفار نه چه هغه ماته مسمی کړه، هغې وئيلی دی: ورروسته سوره کړم زه رسول الله ﷺ په هغه وروستنې سر د پالان د سورلی د هغه، هغې اووئيل: قسم په الله همېشه وو رسول الله ﷺ تر صباح پورې، نو هغه چو کړه او زه خکته شوم د وروستې سر د سورلی نه، په هغې باندې وينه وه نو وو هغه اولنی حيض چه په هغې باندې حائضه شوم، هغې اووئيل: نو ما ځان جوخت کړو اوښې ته او حياء مې اوکړه، هر کله چه اوليدلو رسول الله ﷺ هغه څه چه په ما باندې وو نو وې وئيل: څه دې تالره شايد ته حائضه شوې يې؟ ما اووئيل: آو، هغه اووئيل: اصلاح د خپل ځان اوکړه او بيا واخله يو لوښی د اوبو، واچوي په هغې کښې مالګه، بيا

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٣٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٠/٦) (ضعيف)

وونبڅه هغه چه رسيدلې وې د پالان وروستني سرته د وينې نه، بيا واپس شه خپلې سورلۍ ته. هغې اووئيل: هر كله چه فتح كړو رسول الله ﷺ خيبر رايې كړو مونږ ته د مال فيئ نه، هغې اووئيل: او وه هغه چه نه به پاكيده د حيض نه مگر هغې به اچوله په اوبو كښې مالگه، او وصيت ئې اوكړو په دې باندې چه واچولې شي دهغې په غسل كښې كله چه مړه شي

**مضمون حديث:**

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ – قوله عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي غِفَارٍ الخ ﴾ وئيلې شوې دې چه دهغې نوم ليلې دې او دا د ابوذر غفاري ﷺ ښځه ده، مضمون حديث دا دې چه هغه د خپل څه سفر حال بيانوي غالبا دا سفر د غزوه خيبر دپاره وو، لكه چه د حديث د آخرې نه معلوميږي هغه وائي چه په سفر كښې رسول الله ﷺ زه د خپل حقيبه رحل يعنى د پالان نه په شاته لږگې باندې رديف جوړ كړم (دا قافله په كوم كښې چه رسول الله ﷺ هم وو ټوله شپه روانه وه، تردې چه) سحر يو منزل ته رسيدلو سره رسول الله ﷺ نزول اوفرمائيلو او زه د خپل ځائې نه راكوزه شوم، نو ما اوليدل چه هلته د وينې داغ ښكاره كيږي او دا ماته په اول ځل حيض راغلې وو، هغه وائى چه زه دهغې په ليدو باندې د هغه ځائې نه لرې شوم او اوشرميدم، چه كله رسول الله ﷺ زما دا كيفيت اوليدو او په دې وينه باندې هم د هغوى نظر پريوتلو نو رسول الله ﷺ تپوس اوكړو چه پا تاباندې جوړې حيض راغلو ما عرض اوكړو او جي! نو هغوى اوفرمائيل خپله جامه برابر كړه چه د حيض وينه منتشر نه شي او بيا ئې اوفرمائيل چه لرې شان اوبه واخله په هغې كښې مالگه واچوه او حقيبه رحل په كومې چه وينه پرته ده هغه وينځه بيا خپلې سورلۍ ته واپس شه، وړاندې راوى وائى چه ددې واقعې نه پس دهغې دا معمول وو چه كله به ئې هم د حيض نه غسل كولو نو په اوبو كښې به ئې مالگه اچوله، بلكه ددې ئې دومره اهتمام اوكړو چه وصيت ئې اوكړو چه د مرگ نه پس چه ماته غسل راكولې شي نو په هغه اوبو كښې دې هم مالگه واچولې شي.

په دې حديث كښې د غسل حيض څه خاص كيفيت نه دې مذكور معلومه نه ده چه مصنف رحمه الله هم دا روايت ولې ذكر كړو، (١) خو ددې حديث نه يو مسئله معلوميږي يعنى د ماء مخلوط بشئ طاهر سره د غسل جواز، كوم چه په باب فى الجنب يغسل راسه بالخطمى كښې په تفصيل سره تير شوې دى

﴿ قوله فَلَمَّا فَتَحَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– خَيْبَرَ الخ ﴾ رسول الله ﷺ به په غزواتو كښې كله كله زنانه هم ځان سره بوتلې خو دا بوتلل به د قتال دپاره نه وو بلكه د نورو خدماتو دپاره د مجروحينو د مرهم پټئ كولو او د خيال ساتلو دپاره، او داسې قسم زنانو ته به باقاعده د غنيمت حصه خو نه وركړې كيده خو د انعام په طور باندې به څه معمولى څيز د مال غنيمت

(١) ممكنه ده چه مصنف رحمه الله ته ددې صحابيه رضي الله عنها دا كار ډير خوښ شوې وى چه په حديث باندې د عمل كولو ئې دومره اهتمام اوفرمائيلو رضي الله تعالى عنها ددې حديث چه كومه مرفوع حصه ده په هغې كښې خو اغتسال د حائضى مذكور نه دې بلكه غسل دم حيض مذكور دې خو فعل د صحابيه رضي الله عنها د غسل حيض سره متعلق دې ١٢)

نه ورکولې شو کوم ته چه رضخ وائی، د فئ نه مراد دلته مال غنیمت دې، هسې خو مشهوره دا ده چه فئ هغه مال دې کوم چه د کفارو نه حاصل شی بغیر د قتال نه او کوم چه حاصل شی په قتال سره هغې ته غنیمت وائی، دا څیزونه به په کتاب الجهاد کښې راشي.

[۳۳](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أَخْبَرَنَا سَلَّامُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: دَخَلَتْ أَسْمَاءُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ، كَيْفَ تَغْتَسِلُ إِحْدَانَا إِذَا طَهُرَتْ مِنَ الْمَحِيضِ؟ قَالَ: "تَأْخُذُ سِدْرَهَا وَمَاءَهَا فَتَوَضَّأُ، ثُمَّ تَغْسِلُ رَأْسَهَا وَتَدْلُكُهُ حَتَّى يَبْلُغَ الْمَاءُ أُصُولَ شَعْرِهَا، ثُمَّ تُفِيضُ عَلَى جَسَدِهَا، ثُمَّ تَأْخُذُ فِرْصَتَهَا فَتَطَهَّرُ بِهَا"، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ، كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا؟ قَالَتْ عَائِشَةُ: فَعَرَفْتُ الَّذِي يَكْنِي عَنْهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ لَهَا: تَتَبَّعِينَ بِهَا آثَارَ الدَّمِ.

**ترجمه:** د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې هغې وئیلی دي چه داخل شوه اسماء په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې، هغې اووئیل: اې د الله رسوله! څنګه به غسل کوي یوه زمونږ نه کله چه پاکه شي د حیض نه؟ هغه وفرمایل: وابه خلي بېره خپله او اوبه خپلې نو اودس به اوکړي، بیا به خپل سر اوینځي، او وبه ئې مږې تردې چه ورسېږي اوبه بیخونو د ویختو دهغې ته، بیا به واړوي په ټول بدن باندې، بیا به واخلي د مالوچو موټې، نو پاک کړي په هغې، هغې اووئیل: اې د الله رسوله! څنګه ځان صفا کړم په هغې، اووئیل عائشې: ماته پته ولګېده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې سره کنایه کوي دهغې نه، نو ما اووئیل هغې ته: دا به وریسې کړي آثارو د وینې پسې.

**تشریح:** ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ – قوله عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَتْ أَسْمَاءُ الخ ﴾

دا اسماء بنت شکل رضی الله عنها چه د صحیح مسلم په روایت کښې دی، په صحیح بخاری کښې هم دا حدیث دې په هغې کښې ﴿ دخلت امراة ﴾ بغیر د تعین نه دې حافظ رحمه الله فرمائی چه خطیب په مبهمات کښې دا روایت ذکر کړې دې او په هغې کښې په ځائې د بنت شکل اسماء بنت یزید بن السکن دې دمیاطی وغیره بعض محدثینو د مسلم روایت ته تصحیف وئیلې دي ځکه چه په انصارو کښې څوک هم داسې نشته چه د هغه نوم شکل وی، حافظ ابن حجر رحمه الله ددې تردید کړې دې چه کیدې شی شکل د هغه لقب وی او نوم ئې یزید وی بلکه حافظ وائی زیات تر مشهورو کتابونو کښې اسماء بنت شکل دې یا اسماء بغیر د نسب نه لکه چه په ابوداؤد کښې دی.

﴿ قوله ثُمَّ تَأْخُذُ فِرْصَتَهَا فَتَطَهَّرُ بِهَا ﴾ یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه حائضې له پکار دی چه د غسل نه د فراغت نه پس دې نور نظافت او طهارت حاصل کړی، د ﴿ فرصته ﴾ په فاء کښې درې واړه حرکات لوستلې شوې دی ددې معنی ده مالوچ یا د مالوچو ټکړه یعنی شوړه (یا پټۍ). دلته ددې نه مراد مشکو باندې لړلې شوې شوړه (کپړه) ده لکه چه په وړاندې روایت

(1): صحیح مسلم/الحیض ۱۳ (۳۳۲)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲٤ (٦٤۲)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸٤۷)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الحیض۱۳ (۳۱٤)، سنن النسائي/الطهارة ۱۵۹ (۲۵۲)، مسند احمد (٦/۱٤۷)، سنن الدارمي/الطهارة ۸۳ (۸۰۰) (حسن صحیح)

کښې دی ﴿ فرصة ممسكة ﴾ او په بعض روایاتو کښې دی ﴿ من مسک ﴾ مطلب دا دې چه په یو پټهایه باندې مشک لګولو سره د رائحه کریهه د زوال دپاره دې هغه په خپل فرج کښې کیږدی او دا هم مراد کیدې شی چه د فرج نه علاوه په کوم کوم ځائې کښې چه د وینې اثر وی هغه لګولو سره دې بیا په فرج کښې کیږدی، پس دهغې نه هم په وړاندې روایت کښې ﴿تتبعین بها آثار الدم ﴾ راروان دې په بعض روایاتو کښې د فرصة په ځائې قرصة په قاف سره دې او بعضو دا قرصة په قاف او ضاد سره ضبط کړې ده نو ګویا په دې کښې درې روایتونه شو ، فِرصة، قرصة، قرضة، مراد د ټولو نه یو دې.

[۳۱۵]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا ذَكَرَتْ نِسَاءَ الْأَنْصَارِ فَأَثْنَتْ عَلَيْهِنَّ، وَقَالَتْ: لَهُنَّ مَعْرُوفًا، وَقَالَتْ: دَخَلَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: فِرْصَةً مُمَسَّكَةً، قَالَ مُسَدَّدٌ: كَانَ أَبُو عَوَانَةَ، يَقُولُ: فِرْصَةً، وَكَانَ أَبُو الْأَحْوَصِ، يَقُولُ: قَرْصَةً.

**ترجمه**: د عائشې نه روایت دې بېشکه هغې ذکر کړې ښځې د انصارو، د هغوی صفت ئې اوکړو او وئې وئیل د هغوی په حق کښې معروف، او وئې وئیل: داخله شوه یوه ښځه د دوی نه په رسول الله ﷺ باندې، نو ذکر ئې کړه معنی دهغې مګر دا چه هغه اووئیل (فرصة ممسكة) کلکه کپړه. اووئیل مسدد: وو ابو عوانه چه وئیل به یې: (فرصة) او وو ابو الاحوص وئیل به یې: قَرصةً).

**تشریح**: مونږ اوس وئیلې وو چه په بعض روایاتو کښې ﴿ من مسک ﴾ دې مشهور خو دا دی چه دا مسک په کسرې د میم سره دې کوم چه معروف خوشبوئی ده، او بعض دا مسک په فتحې د میم سره لوستلې دې او مسک څرمې ته وائی او دهغې وجه ئې دا لیکلې ده چه مشک خو ډیر ګران څیز دې او صحابه کرامو ﷺ به په عام حالاتو کښې د غریبئ ژوند تیرولو لهذا مطلب دا دې چه د څرمنې ټکړه اخستلو سره د بدن په کومه کومه حصه چه د وینې اثر وی په هغې سره دې اومږی او کومو خلقو چه دا مشک لوستلې دې د هغوی تائید د هغه روایت نه کیږی چه په هغې کښې راغې ﴿ فرصة ممسكة ﴾ (هغه شُوږه (کپړه) چه په هغې کښې د مشکو خوشبوئی اچولې شوې وی) دویمې ډلې ددې جواب دا ورکړی دی چې کیدې شی دا لفظ ﴿ ممسكة ﴾ وی د امساک بالید نه په دې صورت کښې به دا معنی وی هغه شوږه (کپړه) چه په لاس کښې نیولې شوې وی، خو دا معنی غلطه او خلاف ظاهر ده، د امام نووی ﷫ رائې دا ده چه مسک په کسرې د میم سره زیات صحیح دې، او د عسرت او حاجت والا خبره بس هم داسې ده، عرب خلق ډیر فراخه زړونو والا وو خصوصا د استعمال طیب په معامله کښې.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۸٤۷) (حسن صحیح)

او په دې کښې هم اختلاف دې چه د مشک په استعمال کښې حکمت څه دې په دې کښې دوه اقوال دی بعضو وئیلې دی چه د رائحه کریهه د ازالې دپاره او بعضو وئیلې دی په دې وجه چه د مشک استعمال په فرج کښې اسرع الی الحبل دې په دې سره استقراء د حمل زر کیږی خو امام نووی رحمه الله ددې قول تردید فرمائیلې دې، حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه امام نووی رحمه الله فرمائی لا حول ولا قوة الا بالله چرته اورسیدل.

﴿قوله فَأَثْنَتْ عَلَيْهِنَّ الخ﴾ عائشې رضی الله عنها د انصاری زنانو ذکر اوکړو او د هغوی تعریف او مدح ئې اوکړه، د مدح الفاظ په بل روایت کښې راروان دی ﴿نعم النساء نساء الانصار لم يكن يمنعهن الحياء﴾ یعنی انصاری زنانه ډیرې غوره دی هغوی د دین د زده کړې او د مسائلو د معلومولو نه حیاء نه منع کوی.

[٣١٦]() حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُعَاذٍ الْعَنْبَرِيُّ، أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ يَعْنِي ابْنَ مُهَاجِرٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ أَسْمَاءَ سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ: فِرْصَةً مُمَسَّكَةً، قَالَتْ: كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا؟ قَالَ: سُبْحَانَ اللهِ، تَطَهَّرِي بِهَا وَاسْتَتِرِي بِثَوْبٍ، وَزَادَ: وَسَأَلَتْهُ عَنِ الْغُسْلِ مِنَ الْجَنَابَةِ، فَقَالَ: تَأْخُذِينَ مَاءَكِ فَتَطَهَّرِينَ أَحْسَنَ الطُّهُورِ وَأَبْلَغَهُ، ثُمَّ تَصُبِّينَ عَلَى رَأْسِكِ الْمَاءَ ثُمَّ تَدْلُكِينَهُ حَتَّى يَبْلُغَ شُؤُونَ رَأْسِكِ، ثُمَّ تُفِيضِينَ عَلَيْكِ الْمَاءَ، قَالَ: وَقَالَتْ عَائِشَةُ: نِعْمَ النِّسَاءُ نِسَاءُ الْأَنْصَارِ، لَمْ يَكُنْ يَمْنَعُهُنَّ الْحَيَاءُ أَنْ يَسْأَلْنَ عَنِ الدِّينِ وَأَنْ يَتَفَقَّهْنَ فِيهِ.

**ترجمه:** د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې، یقینًا اسماء تپوس اوکړو د نبي ﷺ نه په معنی د هغې سره، هغه اووئیل (فرصة ممسكة) کلکه کپړه، هغې اووئیل څنګه پاک کړم په هغې، نو هغه وفرمایل: سبحان الله ځان صفا کړه په هغې او ځان پټ کړه په یوې جامه. او هغه زیادت اوکړو، او تپوس ئې اوکړو د غسل د جنابت باره کښې نو هغه اووئیل: وابه خلې خپلې اوبه نو صفایې به اوکړې ښائسته صفایې او مبالغه به اوکړې، بیا به واړوې په سر باندې اوبه، بیابه ئې ومږې تردې چه ورسیږې بیخونو د سر ستاته، بیابه واړوې په ځان باندې اوبه. هغه اووئیل: او اووئیل عائشې: ډیرې ښې ښځې ښځې د انصارو دې نه وو چه منع کولې دوی لره حیاء چه سوال اوکړې د دین باره کښې، او دا چه پوهه شې په دین کښې.

**تشریح:** طهارة مائیه کوم چه اصل دې د هغې بیان پوره شو. الحمدلله الذی بنعمته تتم الصالحات.

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٨٤٧) (حسن)

## بَابُ التَّيَمُّمِ

### باب دې په بيان د تيمم کې

په دې باب سره د مصنف رحمه الله مقصود مشروعيت د تيمم او صفت دواړه بيانول دی پس د باب د حديث اول نه مشروعيت او دهغې نه په روستو رواياتو کښې ئې صفت د تيمم بيان کړې دې.

### د تيمم سره متعلق مباحث عشرة :

دلته به مونږ دا امور بيانوو:

١ : المناسبة بما قبله، ٢ : معنى التيمم لغة و شرعا،
٣: متى شرع التيمم، ٤ : طهارة مطلقة او ضرورية،
٥ : رخصة او عزيمة، ٦ : هل التيمم من خصائص هذه الامة،
٧: ما يجوز به التيمم، ٨: اختلاف الائمة فى كيفية التيمم،
٩: دلائل الفريقين او حديث د عمار بن ياسر رضي الله عنهما کوم چه په دې باب کښې اصل دې په هغې باندې کلام، ١٠ : هل يجوز التيمم للجنابة.

### بحث اول : المناسبة بما قبله

مصنف رحمه الله د طهارة مائيه صغری او کبری يعنی اودس او غسل او دهغې د متعلقاتو د بيان نه چه کله فارغ شو نو اوس ددې ځائې نه طهارة ترابيه شروع کوی کوم چه د طهارة مائيه نائب او دهغې بدل دې او نائب موخر وی د اصل نه.

### بحث ثانی : معنى التيمم لغة و شرعا

د تيمم لغوی معنی د قصد ده او د حج معنی هم د قصد ده خو په دې کښې د معظم او محترم قيد دې يعنی د يو معظم او محترم څيز قصد کول او د تيمم معنې شرعی ده پاکه خاورې لره د قاعده شرعيه مطابق استعمالول د طهارت په نيت باندې (١) ابن رسلان رحمه الله فرمائی چونکه د تيمم لغوی معنی د قصد ده په دې وجه د فقهاء امصار په دې باندې اتفاق دې چه په تيمم کښې نيت واجب دې خو په اودس کښې اختلاف دې ځکه چه په هر اصطلاحی معنی کښې لغوی معنی ملحوظ وی، خو د امام اوزاعی رحمه الله نه په دې کښې اختلاف منقول دې چه د هغوی په نزد په تيمم کښې نيت ضروری نه دې، او هم دغه شان

---

(١) فی نفسه تيمم خو مطلق د طهارة په نيت باندې صحيح کيږی سره د مانځه ادا کول امر اخر دې په دې کښې تفصيل او اختلاف دې د طرفين په نزد د تيمم په ذريعه صحة د صلوة په دې باندې موقوف دې چه هغه تيمم د داسې عبادة مقصوده دپاره کړې شوې وی کوم چه بغير د طهارت نه نۀ صحيح کيږی، مثلاً صلوة جنازه او سجده تلاوت، او که داسې عبادت مقصوده وی کوم چه بغير د طهارة نه صحيح کيږی لکه اسلام راوړل نو په دې تيمم سره به مونځ نه صحيح کيږی او د امام ابويوسف رحمه الله په نزد چه کوم تيمم د عبادت مقصوده دپاره کړې شوې وی، عام ددې نه چه هغه بغير د طهارت نه صحيح کيږی او که نه په هغې سره د مانځه ادا کول جائز دی او کوم تيمم چه د قربت غير مقصوده دپاره کړې شوې وی لکه دخول مسجد او مس مصحف په دې تيمم سره بالاتفاق د مونځ ادا کول جائز نه دی، او دا خبره دې هم واضحه وی چه په دې بحث کښې د مقصود او غير مقصود هم يو خاص فهم دې کوم چه په کتب فقه کښې مذکور دې، د شرح وقاية په حاشيه کښې هم ليکلې شوې دې.

صاحب هداية په دې کښې د امام زفر رحمه الله او ابن رشد په بداية المجتهد کښې د حسن بن حی هم اختلاف ليکلې دې.

**بحث ثالث : متى شرع التيمم**

خان پوهه کړه چه څنګه د افک عائشه رضی الله عنها د قصې بناء په فقد عقد (د اميل ورکيدل) دی هم دغه شان د مشروعيت تيمم سبب هم دغه اميل ورکيدل دی، د افک واقعه بالاتفاق په غزوه مريسيع کښې راپيښه شوې ده کوم ته چه غزوه بنو المصطلق هم وائی او يو لوئې جماعت چه په هغې کښې ابن عبدالبر، ابن سعد، ابن حبان هم دی ددې حضراتو رائې دا ده چه د تيمم د آيت نزول هم په دې غزوه کښې اوشو، او د يو جماعت رائې دا ده چه د قصه افک د پيښيدو نه پس په يو بل سفر کښې دوباره اميل ورک شو او په هغې باندې د آيت تيمم نزول اوشو، پس د طبرانی د يو روايت نه معلوميږی سيده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه د واقعه افک د پيښيدو نه پس زه د رسول الله ﷺ سره په يوه بله غزوه کښې شريکه شوم په هغې کښې د تيمم نزول اوشو، خو په دې روايت کښې د هغه سفر نوم ذکر نه دې، حافظ ابن القيم رحمه الله په زاد المعاد کښې فرمائی وهذا هو الظاهر او هم دغه شان د حافظ ابن حجر رحمه الله ميلان هم دې طرف ته معلوميږی، حافظ رحمه الله د بعض علماء کرامو نه د آيت تيمم نزول په غزوه ذات الرقاع کښې کيدل نقل کړی دی، کيدې شی چه هغه دويمه غزوه هم دا وی کومه چه عائشې رضی الله عنها فرمائيلې ده خو دا مسئله مختلف فيه ده چه ذات الرقاع مقدم ده يا بنو مصطلق، قسطلانی فرمائی چه د آيت تيمم نزول په ۵ يا ۶ هجری کښې شوې دې، او په تاريخ خميس کښې ئې ۵ هجری ليکلې دې او ابن الجوزی په التلقيح کښې ۴ هجری ليکلې دې، والله تعالى اعلم

**بحث رابع : طهارة مطلقة او ضرورية،**

تيمم د احنافو په نزد طهارة مطلقا (کامله) دې او د ائمه ثلاثه په نزد طهارة ضرورية دې، هم په دې وجه زمونږ په نزد د وخت د داخليدلو نه مخکښې ئې هم کولې شی او د ائمة ثلاثه په نزد د وخت د دخول نه مخکښې تيمم جائز نه دې ځکه چه د ضرورت تحقق د وخت نه پس وی، بله دا چه د هغوی په نزد د وخت د تيريدلو نه پس تيمم ماتيږی او بله دا چه د امام احمد رحمه الله په نزد په وخت کښې دننه په يو تيمم سره مونځونه قضاء او ادا لوستلې شی. او د شوافعو او مالکيانو په نزد د هر فرض مونځ دپاره مستقل تيمم ضروری دې اګر که په يو وخت کښې وی خو نوافل د هغوی ټولو په نزد د فرائضو تابع دی، د شوافعو په نزد نوافل قبليه او بعديه دواړه او د مالکيانو په نزد صرف بعديه

**بحث خامس : رخصة او عزيمة**

په دې کښې درې اقوال دی:
۱: عزيمت، ۲: رخصت دې مطلقا، دريم قول دا دې چه په وخت د عدم الماء کښې عزيمت دې، او د اوبو د کيدو سره سره د مرض وغيره د وجې نه رخصت دې.

## بحث سادس : هل التیمم من خصائص هذه الامة،

تیمم ددې امت د خصائصو نه دې لکه چه د صحیحینو په حدیث کښې ددی تصریح ده ﴿اعطیت خمسا لم یعطهن احد قبلی﴾ او ددې په آخیر کښې دی ﴿جعلت لی الارض مسجدا وطهورا﴾

## بخث سابع : ما یجوز به التیمم

په قرآن کریم کښې حکم دې چه په صعید طیب سره دې تیمم اوکړې شی لهذا په صعید طیب سره بالاجماع جائز دې خو د صعید طیب په تفسیر کښې اختلاف دې امام شافعی او امام احمد ﷫ ددې تفسیر په تراب سره کړې دې لهذا د هغوی په نزد تیمم صرف په تراب سره کیدلې شی، او د دوی دواړو په نزد تراب هم د غبار والا کیدل پکار دی تعلق الغبار بالید ضروری دې په کتب شافعیه او حنابله کښې ددې تصریح ده او په احنافو کښې د امام ابویوسف﷫ په نزد هم علی القول الاصح تیمم په تراب سره خاص دې، او د امام ابوحنیفه او امام مالک ﷫ په نزد د صعید مصداق وجه الارض ده (د زمکې مخ) لهذا تیمم په تراب سره خاص نه دې بلکه ﴿کل ما کان من جنس الارض﴾ سره جائز دی، او د جنس الارض نه مراد دا دې چه کوم څیز په اور باندې ګرمولو سره نه ویلې کیږی او په سوزولو سره نه ایره کیږی لکه جص نوره زرنیج حجر وغیره، او د بعض مالکیانو په نزد په دې کښې نور هم عموم دې هغه دا چه ما اتصل بالارض سره هم جائز دې لکه نبات په دې شرط چه مقلوع نه وی په وخت کښې تنګ والی وی او بل څه څیز مخې ته نه وی (ذکره صاحب المنهل)

## بحث ثامن : اختلاف الائمة فی کیفیة التیمم

په کیفیت د تیمم کښې اختلاف د ائمه کرامو، څان پوهه کړه چه دلته اختلاف په دوه ځایونو کښې دې یو عدد د ضرباتو، دویم مقدار د یدین، د امام احمد، اسحق بن راهویه او امام بخاری ﷫ وغیره محدثینو په نزد د تیمم دپاره ضربه واحده ده، او د احنافو او د شوافعو په نزد ضربتین دی او د مالکیانو په نزد دواړه روایتونه دی مثل المذهبین او دریم روایت د امام مالک﷫ نه دا دې چه ضربه واحده فرض او ثانیه سنت او هم دا د هغوی قول راجح دې هم دا په مختصر خلیل وغیره کتب مالکیه کښې اختیار کړې شوې دې او په مقدار د یدین کښې اختلاف دا دې چه د امام احمد﷫ په نزد مسح صرف الی الکوعین (کفین) ده، او د احنافو او شوافعو په نزد الی المرفقین ده، او د امام مالک﷫ نه دواړه روایتونه دی، او دریم روایت د هغوی نه دا دې چه مسح الی الکفین فرض ده او الی المرفقین سنت ده، خو په کتب د مالکیانو کښې الی المرفقین لیکلې شوې دی او د امام مالک﷫ د موطا او د مدونه د ظاهر نه هم دا معلومیږی لهذا د راجح قول په بناء باندې مالکیان هم په دې مسئله کښې د احنافو او شوافعو سره شو او د عدد ضربات په راجح قول په وجه باندې هغوی د امام احمد﷫ سره شو.

## بحث تاسع : دلائل الفریقین :

څان پوهه کړه چه امام بخاری﷫ په دې دوه مسئلو کښې د حنابله او د جمهور اهل حدیث د مسلک مطابق باب قائم کړې دې ﴿باب التیمم للوجه والکفین﴾ او ﴿باب التیمم ضربة﴾ او

بيا ئي هم ددی مطابق روايات راوړلي دی او امام مسلم رحمه الله هم دغه شان کړې دی او هغه روايات کوم چه په تعدد ضربه او مسح الی المرفقين باندې دال دی هغه د غير صحيحين او د سنن روايات دی، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې هغه په تفصيل سره، سره د سند او حوالې نه په کتابونو کښې درج فرمائيلي دي کوم چه د ډيرو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه مروی دی، حضرت فرمائی دا روايات اګرچه په قوة او صحت کښې د صحيحين د رواياتو مثل نه دی خو د هغوی د ضعف انجبار د تعدد طرق او د موافقت قياس نه کيږی يعنی قياس الفرع بالاصل هغه داسې چه اودس کوم چه د تيمم اصل دې په هغې کښې يو اوبه په دوه اندامونو کښې استعمالول جائز نه دی لهذا تيمم کښې هم يو خاوره په دوه اندامونو کښې استعمالول جائز نه دی کيدل پکار او هم دغه شان په اودس کښې غسل د يدين دې الی المرفقين لهذا په تيمم کښې هم مسح يدين الی المرفقين کيدل پکار دی، او حضرت دا هم ليکلي دی چه په کومو روايتونو کښې چه صرف ضربه واحده مذکور دی يا مطلق ضرب دې هغه د مافوق په نفی باندې دلالت نه کوی مګر په طريق د مفهوم مخالف او د استدلال بالمفهوم احناف قائل نه دی لهذا روايات دالة علی وحدة الضربة ته د روايات مثبة للضربتين معارض نه شی وئيلي کيدې.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه امام ابوداؤد رحمه الله باب التيمم مطلقا قائم کړې دې چه په هغې کښې نه د ضربه واحده قيد دې نه د ضربتين، هم دغه شان نه د کفين او نه د الی المرفقين، هم په دې وجه مصنف رحمه الله په دې باب کښې د ضربه واحده، ضربتين الی الکفين، الی المرفقين الی الذراعين حتی چه الی المنکبين ټول روايات ذکر کړې دی.

## د حديث عمار اضطراب :

او دا ټول اختلافات د حديث عمار په مختلفو طرقو کښې موجود دی هم په دې وجه امام طحاوی رحمه الله وغيره بعض علماء کرامو ليکلي دی چه په دې سلسله کښې حديث عمار رضي الله عنه قابل استدلال نه دې، امام ترمذی رحمه الله هم ليکلي دی چه هم ددې اختلاف په بنياد باندې بعض اهل علم د حديث عمار تضعيف کړې دې.

## حديث عمار سره د اضطراب نه په صحيحين کښې :

امام بخاری او امام مسلم رحمهما الله حديث د عمار رضي الله عنه صرف په هغه طرق سره اخستلي دې چه په هغې کښې ضربه واحده او کفين مذکور دی بنده ته په دې سلسله کښې يو اشکال وو هغه دا چه په حديث د عمار رضي الله عنه کښې چه هر کله دومره سخت اضطراب دې نو بيا امام بخاری او امام مسلم رحمهما الله هغه ته په صحيحين کښې څنګه ځائې ورکړو؟ دا خو بيله خبره ده چه دې حضراتو صرف هغه طرق اختيار کړې دی چه په هغې کښې ضربه واحده او کفين مذکور دی خو صرف په دغه طرق اختيار کولو سره نور طرق خو کالعدم کيدې نه شی ددې صحيح جواب خو به لوئې حضرات ورکوی زما د غور کولو نه يو خبره په فهم کښې راغلله هغه دا چه په اصل کښې حديث د عمار رضي الله عنه دوه دی، يو هغه دې چه په هغې کښې د تيمم ابتداء او دهغې د مشروعيت ذکر دې چه په هغې کښې هغوی فرمائی مونږ د نزول تيمم نه پس د

رسول الله ﷺ سره تیمم اوکړو، او دویم حدیث عماره رضی الله عنه هغه دې کوم چه هغوی د عمر رضی الله عنه مخکښې پیش کړو کوم تیمم چه د جنب په سلسله کښې دې زیات تر اختلاف او اضطراب د کوم چه پورته ذکر راغلو د عمار په حدیث اول کښې دې په دې وجه حضرات شیخینو هغه نه دې اخستلې او د عمار رضی الله عنه هغه حدیث کوم چه حضرات شیخینو اخستلې دې په هغې کښې دا ټول اختلافات نشته بلکه دهغې ټول طرقو کښې ضربه واحده مذکور دې دهغې خلاف نه دې خو د مقدار یدین په باره کښې په هغې کښې هم فی الجملة اختلاف دې په بعض کښې الی الکفین دې او هم دا شیخینو اختیار کړې دې او په بعض کښې ددې هم خلاف دې الی المرفقین وغیره الی المناکب والاباط په دې کښې نشته. هذا ماعندی والله تعالی أعلم. روسته چه کله ترمذی شریف اوکتلې شو نو دهغې نه معلومه شوه امام ترمذی د اسحاق بن راهویه نه همدا خبره نقل کړې ده یعنی دا چه حدیث دعمار دوه دی او دا اختلاف او اضطراب په هغوی کښې صرف په یو کښې دې. فلله الحمد والمنة.

حضرات شیخینو د حدیث عمار رضی الله عنه نه علاوه د ابوالجهیم حدیث هم ذکر کړې دې کوم چه امام ابوداؤد په راروان باب کښې ذکر کړې دې، د ابوالجهیم حدیث کښې ضربه واحده مذکور ده او د یدین په باره کښې هغه مجمل دې راوی صرف الی الیدین وئیلې دې دهغې مقدار ئې نه دې بیان کړې.

## بحث عاشر : هل یجوز التیمم للجنابة

دا ټول نهه بحثونه شو، د تکمیل عشره دپاره یو مسئله بله واورئ هغه هم اهم ده هغه دا چه تیمم په حدث اصغر او اکبر دواړو کښې مشروع دې یا صرف په حدث اصغر کښې؟ په نورو الفاظو کښې تیمم صرف د اودس قائم مقام دې یا که د اودس او غسل دواړو؟ د جمهورو علماو سلفا وخلفا ومنهم الائمة الاربعة په نزد عموم دې، خو د ابراهیم نخعی رحمه الله په دې کښې اختلاف منقول دې د هغوی په نزد صرف په حدث اصغر کښې مشروع دې او په صحابه کرامو کښې د عمر رضی الله عنه او ابن مسعود رضی الله عنه نه هم داسې منقول دی، خو د اخیرین نه رجوع مروی ده.

## د تیمم جنب ثبوت د کتاب الله نه :

بلکه د احنافو په نزد خو تیمم د کتاب الله نه ثابت دې ځکه چه آیت تیمم کښې چه کوم ﴿ او لمستم النساء ﴾ دې دا احناف په جماع باندې حمل کوی لکه چه ددې تفصیل په خپل محل کښې تیر شو، د تیمم د مباحثو نه پس اوس حدیث اول واخلئ.

[۳۱۷](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

---

[1]): صحيح البخاري/اللباس ٥٨ (٥٨٨٢)، التفسير ٣ (٤٥٨٣)،(تحفة الأشراف: ١٧٢٠٥،١٧٦٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التيمم ٢ (٣٣٤)، صحيح مسلم/التيمم ٢٨ (٣٦٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٩٤ (٣١١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٠ (٦٥٨)، موطا امام مالك/الطهارة ٢٣(٨٩)، مسند احمد (٥٧/٦، ١٧٩)، سنن الدارمي/الطهارة ٦٥ (٧٧٣) (صحيح)

وَسَلَّمَ أُسَيْدَ بْنَ حُضَيْرٍ وَأُنَاسًا مَعَهُ فِي طَلَبِ قِلَادَةٍ أَضَلَّتْهَا عَائِشَةُ، فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّوْا بِغَيْرِ وُضُوءٍ، فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا ذَلِكَ لَهُ، فَأُنْزِلَتْ آيَةُ التَّيَمُّمِ "، زَادَ ابْنُ نُفَيْلٍ، فَقَالَ لَهَا أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ: يَرْحَمُكِ اللَّهُ، مَا نَزَلَ بِكِ أَمْرٌ تَكْرَهِينَهُ إِلَّا جَعَلَ اللَّهُ لِلْمُسْلِمِينَ وَلَكِ فِيهِ فَرَجًا.

**ترجمه**: عثمان بن ابي شيبة حديث بيانوي، وائي چه خبر راکړي دی ماته عبدة معنی يوه ده، د هشام بن عروة نه او هغه د خپل پلار نه، او هغه د عائشي نه هغي اووئيل: ولېږلو رسول الله ﷺ أسيد بن حضير او نور خلک د هغه سره په طلب د هار کښې چه عائشي ورک کړی وو، نو حاضر شو مونځ نو هغوی اودس اوکړو بغير د اودس نه، نو هغوی راغلل پيغمبر ﷺ ته نو هغوی ذکر کړو هغه ته هغه، نو نازل شو ايت د تيمم. زيادت کړی دی ابن نفيل: پس اووئيل هغه ته اسيد بن حضير، الله دې په تا باندې رحم اوکړي نه دی نازل شوی څه حکم چه ته ئي بد ګنړې مګر ګرځولی دی الله د مسلمانانو لپاره او ستا لپاره په هغې کښې پراخي.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ – قوله فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّوْا بِغَيْرِ وُضُوءٍ الخ ﴾ د صلوٰة نه مراد د سحر مونځ دې، صحابه کرامو رضی اللہ عنہم د اوبو د نه کيدو د وجې نه بغير د اودس نه مونځونه ادا کړل او تيمم تر دغه وخته پورې مشروع شوې نه وو ددې نه د فاقد الطهورين مسئله معلوميږی چه په هغې کښې اختلاف مشهور دې، زمونږ په نزد دا مسئله په باب فرض الوضوء کښې تيره شوې ده.

﴿ قوله فَنَزَلَتْ آيَةُ التَّيَمُّمِ ﴾ د آيت کريمه په مصداق کښې د شارحينو اختلاف دې، ابن العربی فرمائی هذه معضلة ما وجدت لدائها دواء يعنی دا يو داسې ګرانه مسئله ده چه ما ددې مرض هيڅ علاج نه دې موندلې چه د عائشې رضی اللہ عنہا مراد کوم آيت دې ابن بطال رحمہ اللہ وئيلې دی چه ددې نه مراد آية النساء دې ځکه چه آيت المائدة د آيت وضوء په نوم سره مشهور دې اګرچه په هغې کښې د تيمم ذکر هم دې، او په آيت النساء کښې صرف د تيمم ذکر دې د اودس نشته، علامه عينی رحمہ اللہ د يو روايت په بناء باندې کوم چه د حميدی په جمع بين الصحيحين کښې دې چه په هغې کښې داسې دی ﴿ فنزلت ياايها الذين امنوا اذا قمتم الى الصلوة الاية ﴾ د آيت مائده متعين کيدل ليکلې دی.

﴿ قوله مَا نَزَلَ بِكِ أَمْرٌ تَكْرَهِينَهُ إِلاَّ جَعَلَ اللَّهُ لِلْمُسْلِمِينَ وَلَكِ فِيهِ فَرَجًا ﴾ سيدنا اسيد بن حضير رضی اللہ عنہ عائشې رضی اللہ عنہا ته دعا کوی چه کله هم هغوی ته څه ناخوښه خبره پيښه شوې ده نو په هغې کښې الله پاک د ابوبکر رضی اللہ عنہ د کورنۍ په وجه باندې (کما فی رواية ما هی باول برکتکم يا الی ابی بکر) خپله د هغوی دپاره او د ټولو مسلمانانو دپاره د آرام او سهولت سامان برابر کړې دې، شارحينو ليکلې دی چه په دې سره د واقعه افک طرف ته اشاره کيدې شی ځکه چه دهغې هم امر مکروه کيدل ظاهر دی ددې نه مستفاد کيږی چه واقعه افک مقدم ده په واقعه د نزول تيمم باندې لکه چه مونږ په شروع کښې بيان کړې ده.

[٣١٨]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ، حَدَّثَهُ عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، "أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّهُمْ تَمَسَّحُوا وَهُمْ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّعِيدِ لِصَلَاةِ الْفَجْرِ، فَضَرَبُوا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيدَ ثُمَّ مَسَحُوا وُجُوهَهُمْ مَسْحَةً وَاحِدَةً، ثُمَّ عَادُوا فَضَرَبُوا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيدَ مَرَّةً أُخْرَى فَمَسَحُوا بِأَيْدِيهِمْ كُلِّهَا إِلَى الْمَنَاكِبِ وَالْآبَاطِ مِنْ بُطُونِ أَيْدِيهِمْ".

**ترجمه**: د عمار بن یاسر رضی الله عنه نه روایت دې بیشکه هغه وو چه حدیث ئې بیانولو، بیشکه دوی، مسح ئې اوکړه او دوی د رسول الله ﷺ سره وو په پاکه خاوره د مانځه د صباح دپاره، دوی ووهل خپل ورغوي په پاکه خاوره، بیائې مسح کړل خپل مخونه یو ځل، بیا واپس شول وئې وهل خپل ورغوي په پاکه خاوره بل ځل نو مسح ئې کړل خپل لاسونه ټول تر اوږو او تخرګونو پورې په خېټو د لاسو باندې.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ – قوله عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ ﴾ د باب د حدیث اول نه مشروعیت تیمم بیانولو نه پس اوس مصنف رحمه الله په دې حدیث سره کیفیت د تیمم بیانوی، دا حدیث د عمار رضی الله عنه دې کوم چه مصنف رحمه الله په مختلفو او متعددو طرقو سره بیان کړې دې ددې حدیث د ټولو طرقو مدار په ابن شهاب باندې دې. بیا د ابن شهاب نه روایت کونکی متعدد دی په اول سند کښې د هغوی شاګرد یونس بن یزید الایلی دې او په دویم سند کښې هم هغه دې خو لاندې راویان یعنی د مصنف رحمه الله استاذان بدل شو په دواړو روایتونو کښې ضربتین مذکور دې خو په مقداریدین کښې څه فرق دې په یو کښې الی المناکب والاباط دې او په دویم کښې نشته.

[٣١٩]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، وَعَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبٍ، عَنْ ابْنِ وَهْبٍ، نَحْوَ هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: قَامَ الْمُسْلِمُونَ فَضَرَبُوا بِأَكُفِّهِمُ التُّرَابَ وَلَمْ يَقْبِضُوا مِنَ التُّرَابِ شَيْئًا، فَذَكَرَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرِ الْمَنَاكِبَ وَالْآبَاطَ، قَالَ ابْنُ اللَّيْثِ: إِلَى مَا فَوْقَ الْمِرْفَقَيْنِ.

**ترجمه**: د ابن وهب نه روایت دې پشان ددې حدیث، هغه اووئیل: پاڅېدل مسلمانان نو وئې وهل خپل ورغوي په خاوره، او راوایې نه خستله د خاورې نه هېڅ شی. نو ذکر ئې کړو پشان دهغې، او ذکر د مناکبو او تخرګونو ئې اونه کړو، وئیلی دي ابن اللیث: بره د څنګلو نه.

[٣٢٠]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ أَبِي خَلَفٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، أَخْبَرَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ اللهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَّسَ بِأُولَاتِ الْجَيْشِ وَمَعَهُ عَائِشَةُ، فَانْقَطَعَ عِقْدٌ لَهَا مِنْ جَزْعِ ظَفَارٍ، فَحُبِسَ النَّاسُ ابْتِغَاءَ عِقْدِهَا ذَلِكَ حَتَّى أَضَاءَ الْفَجْرُ وَلَيْسَ مَعَ النَّاسِ مَاءٌ، فَتَغَيَّظَ عَلَيْهَا أَبُو بَكْرٍ، وَقَالَ: حَبَسْتِ النَّاسَ وَلَيْسَ

[1]: سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٠ (٥٦٥)، ٩٢ (٥٧١)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٦٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الطهارة ١١٠ (١٤٤)، سنن النسائي/الطهارة ١٩٦ (٣١٣)، ١٩٩ (٣١٧)، ٢٠٠ (٣١٨)، ٢٠١ (٣١٩)، ٢٠٢ (٣٢٠)، مسند احمد (٢٦٣/٤، ٢٦٤) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٣٦٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الطهارة ١٩٧ (٣١٤)، مسند احمد (٢٦٣/٤، ٢٦٤) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/الطهارة ١٩٧ (٣١٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٣/٤) (صحيح)

مَعَهُمْ مَاءٌ، فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُخْصَةَ التَّطَهُّرِ بِالصَّعِيدِ الطَّيِّبِ، فَقَامَ الْمُسْلِمُونَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبُوا بِأَيْدِيهِمْ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ رَفَعُوا أَيْدِيَهُمْ وَلَمْ يَقْبِضُوا مِنَ التُّرَابِ شَيْئًا فَمَسَحُوا بِهَا وُجُوهَهُمْ وَأَيْدِيَهُمْ إِلَى الْمَنَاكِبِ، وَمِنْ بُطُونِ أَيْدِيهِمْ إِلَى الْآبَاطِ"، زَادَ ابْنُ يَحْيَى فِي حَدِيثِهِ: قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فِي حَدِيثِهِ: وَلَا يَعْتَبِرُ بِهَذَا النَّاسُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ ابْنُ إِسْحَاقَ، قَالَ فِيهِ: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَذَكَرَ ضَرْبَتَيْنِ، كَمَا ذَكَرَ يُونُسُ، وَرَوَاهُ مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، ضَرْبَتَيْنِ، وَقَالَ مَالِكٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمَّارٍ، وَكَذَلِكَ قَالَ أَبُو أُوَيْسٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَشَكَّ فِيهِ ابْنُ عُيَيْنَةَ، قَالَ مَرَّةً: عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ أَبِيهِ، أَوْ عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَمَرَّةً قَالَ: عَنْ أَبِيهِ، وَمَرَّةً قَالَ: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، اضْطَرَبَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فِيهِ وَفِي سَمَاعِهِ مِنَ الزُّهْرِيِّ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَحَدٌ مِنْهُمْ فِي هَذَا الْحَدِيثِ الضَّرْبَتَيْنِ، إِلَّا مَنْ سَمَّيْتُ.

**ترجمه:** د عمار بن یاسر رضی الله عنه نه روایت دي، بېشکه رسول الله ﷺ شپه ئي تېره کړه په اولات الجيش کښې او د هغه سره عائشه وه، نو وشلېدلو هار د هغې د مشکنړو د ظفار نه، نو خلک حصار شو د وجې د لټولو د امېل دهغې نه، تردې چه رڼا شو صبا، او نه وي د خلکو سره اوبه نو غصه شو په هغې باندې ابوبکر او وئې وئيل: خلک دې ايسار کړل او د دوی سره اوبه نشته، نو نازل کړو الله تعالی په رسول الله ﷺ باندې رخصت د پاکوالي په پاکه خاوره، پاڅېدل مسلمانان د رسول الله ﷺ سره نو وئې وهل لاسونه خپل په ځمکه باندې، زيادت کړی دی يحيی په خپل حديث کې: وئيلی دي ابن شهاب په خپل حديث کې: او اعتبار نه کوي په دې باندې خلک. وئيلی دي ابوداود: او همدارنګه روايت کړی دی ابن اسحاق هغه په هغې کښې وئيلی دی: روايت دی د ابن عباس نه: او هغه ذکر کړي دي دوه ضربه. لکه څرنګه چه روايت کړی دی يونس. او روايت کړی دی معمر د زهري نه دوه ضربه. او وئيلی دي مالک د زهري نه او هغه د عبيد الله بن عبد الله نه او هغه د خپل پلار نه، او هغه د عمار نه، او همدارنګه وئيلی دي ابو اويس: د زهري نه، او شک کړی دی په دې کښې ابن عيينة هغه وئيلی دي يو ځل د عبيد الله عن ابيه او يا د عبيد الله عن ابن عباس نه، او بل ځل ئې وئيلی دی: د خپل پلار، او يو ځل ئې وئيلی دی: د ابن عباس، مضطرب شوی دی ابن عيينة په هغې کښې، او په سماع دهغې کښې د زهري نه او نه دی ذکر کړی هيڅ د دوی نه په دې حديث کښې (الضربتين) مګر هغه چا چه مايې نومونه واخستل

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ خَلَفٍ ﴾ دا د حديث عمار دويم طريق دې په دې کښې د ابن شهاب نه روايت کونکې صالح بن کيسان دې په دوارو طريقو کښې فرق دا دې چه د يونس په روايت کښې د عبيد الله بن عبد الله او عمار بن ياسر رضی الله عنهما ترمينځه هيڅ واسطه نه وه او په دې دويم سند کښې د ابن عباس رضی الله عنهما واسطه ده، په دې څلورم روايت کښې هم د امېل د ورکيدلو ذکر دې لکه چه د باب په حديث اول حديث عائشه رضی الله عنها کښې وو.

## د ذات الجيش تحقيق:

﴿ قوله عَرَّسَ بِأُولَاتِ الْجَيْشِ ﴾ تعريس وائی د مسافر په آخره شپه کښې د استراحت دپاره په يو منزل باندې کوزيدل اولات الجيش کوم ته چه ذات الجيش هم وئيلې شوې دې دا مدينې منورې ته نزدې تقريبا د يو بريد (منزل) په فاصله باندې يو وادی ده د بخاری په يو روايت

کښې ﴿ بالبيداء ﴾ او ﴿ بذات الجيش ﴾ دي د مشهور قول په بناء باندې دا دواړه ځايونه ذوالحليفه ته نزدې د مکې او مدينې ترمينځه دی او يو قول دا دې چه بيداء په نسبت د ذوالحليفه مکې ته زيات نزدې دې او دريم قول په دې کښې دا دې چه بيداء او ذات الجيش د مدينې او خيبر ترمينځه دې د مکې په لاره کښې نه دې، حافظ رحمه الله قول اول ته ترجيح ورکړې ده او قول ثالث ئې مرجوح کړې دې، او په قول ثالث کښې به دا هم منل راځی چه نزول تيمم په قصة د غزوة المريسيع کښې نه ده پيښه شوې ځکه چه مريسيع د مدينې منورې نه د مکې په طرف واقع دې، ﴿ قوله مِنْ جَزْعِ ظَفَارِ ﴾ ظفار بفتح الظاء مبنى على الکسره دې لکه قطام، په يمن کښې د يو ښار نوم دې، لفظ جزع جمع ده د جزعة ددې معنى ده خرزيمانی يعنی ملغلرې او قيمتی کانړی او غمی چه په هغې سره اميل جوړولې شی.

**د ظفار او اظفار تحقيق:**

په بعض رواياتو کښې په ځائې د ظفار اظفار راغلې دې لکه چه په نسائی کښې دی اظفار جمع د ظفر ده د يو معروف خوشبويئ نوم دې کوم ته چه قسط او قسط اظفار هم وائی ــــ چه دهغې نه بخور يعنی خوشبويه لوږې ورکولې شی، چونکه هغه د ظفر الانسان سره مشابه وی په دې وجه ورته اظفار وائی، خو ځان پوهه کړه چه ددې لفظ ذکر په دوه ځايونو کښې راځی يو دلته په باب د تيمم کښې دويم د حيض په غسل کښې [1] په باب تيمم کښې صحيح ظفار دې،اوپه غسل کښې هم روايات دواړه قسمه راغلی دی خو هلته اظفار صحيح دې ظفار د يو ښار نوم دې او اظفار کوم ته چه قسط اظفار هم وائی د خوشبويئ نوم دې.

﴿ قوله حَبَسْتِ النَّاسَ وَلَيْسَ مَعَهُمْ مَاءٌ ﴾ دلته دا اشکال راځئ چه دې قافلې تعريس او نزول په داسې ځائې کښې ولې اوکړو چه هلته اوبه نه وې جواب دا دې چه دلته دا تعريس او نزول بالقصد نه وو بلکه د التماس عقد دپاره مجبوراً شوې وو وکذا يستفاد من امانى الاحبار غفر الله لمولفه، او د حضرت شيخ په تقرير د بخاری کښې ددې يو بله توجيه ليکلې ده.

﴿ قوله فَضَرَبُوا بِأَيْدِيهِمْ إِلَى الأَرْضِ ﴾ د حديث عمار په دې طريق کښې ضربه واحده ذکر ده او ددې نه په مخکښې طريق کښې د ضربتين ذکر وو، بله دا چه په دې طريق کښې د مسح اليدين الى المناکب والاباط ذکر دې چه دهغې په باره کښې ابن شهاب رحمه الله فرمائی ﴿ ولايعتبر بهذا الناس ﴾ يعنی ډير فقهاء ددې اعتبار نه کوی يا اشاره د ضربه واحدة طرف ته ده يعنی ډير علماء کرام د اکتفاء بضربة واحدة قائل نه دی يا دې د دواړو طرف ته اشاره اومنلې شی.

ځان پوهه کړه چه داسې عبارت خو وی خو د رد او تضعيف دپاره خو چونکه د تيمم د کيفيت په باره کښې شارحينو د ابن شهاب مسلک دا نقل کړې دې چه هغه د مسح الى المناکب والاباط قائل وو ځکه چه دا مطلب اخستل کيدې شی چه صحيح نه وی لهذا دا

[1] پس په حديث د ام عطيه رضي الله عنها کښې راغلې دی وقد رخص لنا عند الطهر اذا اغتسلت احدنا من محيضها في نبذة من کست اظفار او په يو روايت کښې په ځائې د کسبت قسط دې او امام بخاری رحمه الله په دې باندې باب تړلې دې، باب الطيب للمراة عند غسلها من المحيض دا ټول تفصيل)

دې اووئيلې شي چه په طور د ګيلې وائي چه اوګورئ مسح الى المناكب والاباط د روايت نه ثابت دې خو بيا هم ډير علماء كرام ددې قائل نه دى او يا دې داسې اووئيلې شي چه هغوى خپل مسلک بدل كړې وى كوم چه مخكښې قائل وى روستو نه وى پاتې شوې يا ددې برعكس، والله تعالى اعلم.

## د مصنف رحمه الله د مسلسل كلام تشريح:

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَكَذَلِكَ رَوَاهُ ابْنُ إِسْحَاقَ قَالَ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَذَكَرَ ضَرْبَتَيْنِ كَمَا ذَكَرَ يُونُسُ﴾ په دې جمله كښې مصنف رحمه الله دوه مطلبونه بيان كړى دى، يو د سند سره متعلق دې او دويم د متن سره، ابن اسحق د زهرى د شاګردانو نه دې په ذكر د واسطې او عدم واسطه كښې د زهرى د شاګردانو اختلاف روان دې، مصنف رحمه الله فرمائى چه څنګه صالح بن كيسان په سند كښې د ابن عباس رضي الله عنهما واسطه ذكر كړې ده هم دغه شان ابن اسحاق هم كړې ده خو د دواړو په متن كښې فرق دې هغه دا چه د صالح په روايت كښې ضربه واحده مذكور وه او د ابن اسحق په روايت كښې ضربتين دې لكه چه د يونس په روايت كښې هم ضربتين تير شوې دې.

﴿وَقَالَ مَالِكٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ الخ﴾ امام مالک رحمه الله د زهرى څلورم شاګرد دې، هغوى د عبيدالله او د عمار ترمينځه واسطه خو ذكر كړه خو په ځائې د ابن عباس رضي الله عنهما ئې عن ابيه اووئيل، بيا وړاندې مصنف رحمه الله فرمائى ﴿وَشَكَّ فِيهِ ابْنُ عُيَيْنَةَ﴾ دا هم د زهرى د شاګردانو نه دې هغوى په خپل سند كښې واسطه خو ذكر كړې ده خو ددې واسطې تعيين ئې نه دې كړې شک ئې ظاهر كړو چه هغه عن ابيه دې يا عن ابن عباس رضي الله عنهما او كله كله ئې بغير د شک نه عن ابيه او كله عن ابن عباس رضي الله عنهما وائى.

﴿قوله وَلَمْ يَذْكُرْ أَحَدٌ مِنْهُمْ فِي هَذَا الْحَدِيثِ الضَّرْبَتَيْنِ إِلاَّ مَنْ سَمَّيْتُ﴾ د ﴿من سميت﴾ مصداق د مصنف رحمه الله د بيان كړې رواياتو مطابق په اصحاب زهرى رحمه الله كښې صرف درې دى، يونس، ابن اسحاق او معمر خو په بذل كښې ليكى چه د مصنف رحمه الله دعوى د حصر منقوض ده، څكه چه امام بيهقى رحمه الله په دې كښې د ابن ابى ذئب او امام طحاوى رحمه الله پكښې د صالح بن كيسان [1] اضافه كړې ده چه دا هر دواړه هم د ضربتين د ذكر كونكو نه دى.

[۳۲۱] [2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ الضَّرِيرُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ، قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا بَيْنَ عَبْدِ اللهِ، وَأَبِي مُوسَى، فَقَالَ أَبُو مُوسَى: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَرَأَيْتَ لَوْ أَنَّ رَجُلًا أَجْنَبَ فَلَمْ يَجِدِ الْمَاءَ شَهْرًا، أَمَا كَانَ يَتَيَمَّمُ؟ فَقَالَ: لَا، وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ شَهْرًا؟ فَقَالَ أَبُو مُوسَى: فَكَيْفَ تَصْنَعُونَ بِهَذِهِ الْآيَةِ الَّتِي فِي سُورَةِ الْمَائِدَةِ: فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا سورة المائدة آية ٦؟ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ: لَوْ رُخِّصَ لَهُمْ فِي هَذَا لَأَوْشَكُوا إِذَا بَرَدَ عَلَيْهِمُ الْمَاءُ أَنْ يَتَيَمَّمُوا بِالصَّعِيدِ. فَقَالَ لَهُ أَبُو مُوسَى: وَإِنَّمَا كَرِهْتُمْ هَذَا لِهَذَا؟ قَالَ: نَعَمْ. فَقَالَ لَهُ أَبُو مُوسَى:

---

[1] زه وايم د صالح بن كيسان روايت كوم چه په ابوداؤد كښې دې په هغې كښې ضربه واحده مذكور ده امام طحاوى رحمه الله ته چه د هغوى كوم روايت رسيدلې وى هغه به د ضربتين وى او دا دواړه روايتونه به د دوه مختلفو وختونو وى.

[2]: صحيح البخاري/التيمم ٧ (٣٤٥، ٣٤٦)، ٨ (٣٤٧)، صحيح مسلم/الحيض ٢٨ (٣٦٨)، سنن الترمذي/الطهارة ١١٠ (١٤٤ مختصراً)، سنن النسائي/الطهارة ٢٠٣ (٣٢١)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٦٤) (صحيح)

أَلَمْ تَسْمَعْ قَوْلَ عَمَّارٍ لِعُمَرَ: "بَعَثَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَاجَةٍ، فَأَجْنَبْتُ فَلَمْ أَجِدِ الْمَاءَ فَتَمَرَّغْتُ فِي الصَّعِيدِ كَمَا تَتَمَرَّغُ الدَّابَّةُ ثُمَّ، أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ، فَقَالَ: إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ أَنْ تَصْنَعَ هٰكَذَا: "فَضَرَبَ بِيَدِهِ عَلَى الْأَرْضِ فَنَفَضَهَا، ثُمَّ ضَرَبَ بِشِمَالِهِ عَلَى يَمِينِهِ وَبِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ عَلَى الْكَفَّيْنِ، ثُمَّ مَسَحَ وَجْهَهُ"، فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ: أَفَلَمْ تَرَ عُمَرَ لَمْ يَقْنَعْ بِقَوْلِ عَمَّارٍ.

**ترجمه**: د شقیق نه روایت دې هغه وائي: وم زه ناست په مینځ د عبد الله او ابو موسی کښې، اووئیل ابو موسی: اې ابا عبد الرحمن خبر راکړه ماته که چېرې یو سړی نه بیامومي اوبه یوه میاشت، ایا نه دی چه تیمم به کوي؟ نو هغه اووئیل: نه، اګر که اوبه پیدا نه کړي تر یوې میاشتې پورې. اووئیل ابو موسی: تاسو چل کوئ ددې ایت سره هغه چه په سورة المائدة کښې دی (فلم تجدوا ماءً فتیمموا صعیداً طیباً) نو اووئیل عبد الله: که چېرې رخصت ورکړې شي دوی ته په دې کښې نو قریبه ده چه کله یخې شي په دوی باندې اوبه نو تیمم به اوکړي په پاکه خاوره، نو اووئیل هغه ته ابو موسی: بیشکه تاسو دا بد وګڼړلو د وجې ددې نه، هغه اووئیل: آو، نو اووئیل هغه ته ابو موسی: ایا تا نه دی اوریدلی قول د عمار عمر ته، ولیږلم زه رسول الله ﷺ په یو حاجت کښې نو زه جنب شوم نو بیا نه موندلې ما اوبه، نو زه ورغښتلم په پاکه خاوره کښې لکه څرنګه چه رغړې دابه، بیا راغلم نبي ﷺ ته نو ما ورته ذکر کړو هغه نو هغه وفرمایل: بېشکه کافي وه ستا لپاره چه ته اوکړې داسې: نو وئې وهله په خپل لاس باندې ځمکه بیاې څنډوهله، بیا ئې ووهلو ګس لاس په ښي لاس او ښي لاس په ګس لاس تر ورغوو پورې، بیا ئې مسح کړو مخ خپل. نو اووئیل هغه ته عبد الله: ایا ته نه وینې عمر چه قانع نه شو په قول د عمار.

## تیمم د جنب په باره کښې د ابن مسعود او ابوموسی اشعری رضی الله عنهما مباحثه

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ – قوله فَقَالَ أَبُو مُوسَى يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ الخ ﴾ په دې حدیث کښې د تیمم جنب مسئله مذکور ده، ابوعبدالرحمن د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه کنیت دې ابوموسی اشعری رضی الله عنه کوم چه د تیمم جنب د جواز قائل وو د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه مسئله اوتپوسله چه که یو جنبي ته اوبه ملاؤ نه شي نو آیا هغه تیمم کولې شي، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی نه شي کولې، په دې باندې ابوموسی اشعری رضی الله عنه د سورة مائده آیت کریمه ﴿ او لامستم النساء ﴾ پیش کړو [1] د کوم نه چه د جنب تیمم ثابتیږي. په دې باندې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل چه خبره خو صحیح ده خو که مونږ خلقو ته د تیمم جنب اجازت ورکړو نو ویره ده ددې خبرې چه هغوی به په دې کښې بې احتیاطي اوکړي چرته چه وینی چه اوبه یخې دي او یخني ده بس تیمم به کوي ﴿فقال له ابو موسی انما کرهتم لهذا﴾ یعنی ابوموسی اشعری رضی الله عنه اوفرمائیل ښه ! تاسو ددې وجې نه فتوی نه ورکوئ آیا رسول

[1] ، ددې نه معلومه شوه چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ددې آیت کریمه په تفسیر کښې د ابن عباس رضی الله عنهما د رائې سره متفق دي چه په دې آیت کریمه کښې د لمس نه مراد لمس بالید نه دې بلکه جماع مراد ده لکه چه احناف وائی)

الله ﷺ د جواز فتوی نه وه ورکړې، د رسول الله ﷺ نه به څوک زیات مصلحت پیژندلو والا وی، او د عمار ﷺ یو حدیث ئې بیان کړو کوم چه هغوی د عمر ﷺ مخکښې بیان کړې وو دا پوره حدیث وړاندې په متن کښې راروان دې چه دهغې نه د جنب د تیمم جواز ثابتیږی هغه دا چه عمار ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ زه چرته په سفر باندې یو کار پسې لیږلې اوم، ماته هلته جنابت اورسیدلو اتفاق سره اوبه نه وې هغوی وائی چه ما د جنابت په نیت باندې تیمم اوکړو (او ماته دا معلومه نه وه چه د حدث اصغر او اکبر دواړو نه د تیمم طریقه یوه ده) پس زه په زمکه اولوغړیدم څنګه چه څاروې اس وغیره لوغړیږی بیا چه کله زه د سفر نه واپس شوم او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او ما رسول الله ﷺ ته ددې تذکره اوکړه نو په دې باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو د جنابت د تیمم دپاره د تمرغ ضرورت نشته، ددې نه پس رسول الله ﷺ د تیمم چه کومه معروفه طریقه ده هغه بیان کړه، عبدالله بن مسعود ﷺ د ابوموسی اشعری ﷺ په دې خبره اوریدلو باندې اوفرمائیل ﴿ أَفَلَمْ تَرَ عُمَرَ لَمْ يَقْنَعْ بِقَوْلِ عَمَّارٍ ﴾ آیا ته نه ګورې چه کله عمر ﷺ ته عمار ﷺ دا حدیث بیان کړې وو نو عمر ﷺ په دې باندې قناعت او اظهار د اطمینان نه وو کړې، په دې باندې ابو موسی اشعری ﷺ خاموش شو، د قناعت نه کولو تشریح به وړاندې روایت کښې راځی.

### په ترتیب استدلال باندې اشکال او د هغې توجیه:

ځان پوهه کړه چه ابوموسی اشعری ﷺ د عبدالله بن مسعود ﷺ مخې ته د تیمم جنب په جواز باندې په استدلال کښې دوه څیزونه پیش کړل، یو آیت مائده او دویم حدیث د عمار ﷺ، د ابوداؤد په روایت کښې ترتیب دا دې چه هغوی اول استدلال په آیت کریمه باندې اوکړو دهغې نه پس استدلال بالحدیث، اول چه کله هغوی د آیت کریمه نه استدلال اوکړو نو په هغې باندې عبدالله بن مسعود ﷺ د هغوی خبره تسلیم کړه، خو دا ئې اوفرمائیل چه په یو مصلحت سره مونږ د جواز فتوی نه ورکوو. په دې ترتیب باندې دا اشکال واردیږی چه عبدالله بن مسعود ﷺ چه کله د ابوموسی اشعری ﷺ مخکښې د تیمم جنب اعتراف اوکړو نو بیا ابوموسی اشعری ﷺ ددې نه پس دوباره استدلال بالحدیث ولې اوکړو ددې څه حاجت پاتې شوې وو، دویم اشکال دا واردیږی چه کله عبدالله بن مسعود ﷺ د جواز تیمم اعتراف کړې وو نو روستو چه ابو موسی اشعری ﷺ د هغوی مخکښې حدیث عمار ﷺ پیش کړو نو عبدالله بن مسعود ﷺ د هغوی په استدلال باندې نقد ولې اوکړو.دا حدیث په صحیح بخاری کښې هم دې په یو ځائې کښې هلته هم ترتیب د استدلال هم دغه شان دې څنګه چه دلته په ابوداؤد کښې دې خو د صحیح بخاری په دویم روایت کښې ترتیب ددې برعکس دې اولا استدلال بالحدیث بیا چه کله عبدالله بن مسعود ﷺ په دې باندې نقد اوفرمائیلو نو ثانیا ابوموسی اشعری ﷺ استدلال بالآیة اوفرمائیلو، د بخاری د روایة په دې ترتیب باندې هیڅ اشکال نه واقع کیږی هم دغه شان د ابوداؤد د روایت تشریح پورته په کومه طریقه چه مونږ کړې ده په هغې باندې هم اشکال رفع کیږی ځکه چه عبدالله به مسعود ﷺ په شروع کښې د جواز تیمم اګر که اعتراف کړې

وو خو ورسره ئې دا خبره هم بیان اوفرمائیله چه د جواز فتوی د مصلحت خلاف ده، د خلاف مصلحت ګیدو تردید چه کله ابوموسی اشعری ﷺ په حدیث د عمار ﷺ سره اوکړو نو په دې باندې عبدالله بن مسعود ﷺ د هغوی په دلیل باندې نقد اوفرمائیلو، پس د هغوی نقد په اصل جواز باندې نه شو بلکه په انکار د مصلحت باندې شو.

[۳۲۲] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ عُمَرَ، فَجَاءَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: إِنَّا نَكُونُ بِالْمَكَانِ الشَّهْرَ وَالشَّهْرَيْنِ، فَقَالَ عُمَرُ: أَمَّا أَنَا فَلَمْ أَكُنْ أُصَلِّي حَتَّى أَجِدَ الْمَاءَ، قَالَ: فَقَالَ عَمَّارٌ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، أَمَا تَذْكُرُ إِذْ كُنْتُ أَنَا وَأَنْتَ فِي الْإِبِلِ فَأَصَابَتْنَا جَنَابَةٌ، فَأَمَّا أَنَا فَتَمَعَّكْتُ، فَأَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: "إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ أَنْ تَقُولَ هَكَذَا، وَضَرَبَ بِيَدَيْهِ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ نَفَخَهُمَا ثُمَّ مَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ إِلَى نِصْفِ الذِّرَاعِ"، فَقَالَ عُمَرُ: يَا عَمَّارُ، اتَّقِ اللهَ، فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، إِنْ شِئْتَ وَاللهِ لَمْ أَذْكُرْهُ أَبَدًا. فَقَالَ عُمَرُ: كَلَّا وَاللهِ لَنُوَلِّيَنَّكَ مِنْ ذَلِكَ مَا تَوَلَّيْتَ.

**ترجمه**: د عبد الرحمن بن ابزی نه روایت دې هغه وئیلی دي وم زه د عمر په خوا کښې نو راغی هغه ته یو سړی هغه اووئیل: مونږ یو په ځائې کښې یو میاشت او دوه میاشتې نو اووئیل عمر: هر چه زه یم نو نه یم چه مونځ اوکړم ترڅو چه اوبه پیدا کړم، هغه وائی: اووئیل عمار: اې امیر المؤمنین ایا تاته یاد نه دي کله چه وم زه او ته په اوښانو کښې، ورسېدلو مونږ ته جنابت، هر چه زه یم زه ورغښتلم نو راغلو نبي ﷺ ته نو هغه مي ورته ذکر کړو، هغه وفرمایل: بیشکه کافي وو ستا لپاره چه ته اوکړې داسې: او وئې وهل دواړه لاسونه په ځمکه، بیا ئې دواړو وپوکل، بیا ئې مسح کړو په هغې باندې مخ او دواړه لاسونه تر نیم د څنګلو پورې. نو اووئیل عمر: اې عمارا د الله نه ویرېږه، هغه اووئیل: اې امیر المؤمنین! که ستا خوښه وي قسم په الله د دېنه وروسته به ئې هېڅ کله ذکر نه کړم، نو اووئیل ورته عمر: داسې نه ده قسم په الله مونږ به پرېږدو تا هغه څه ته چه ته ئې وایې.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ – قوله كُنْتُ عِنْدَ عُمَرَ فَجَاءَهُ رَجُلٌ الخ ﴾ دا هم هغه حدیث د عمار ﷺ دې چه دهغې حواله ابو موسی اشعری ﷺ په خپل استدلال کښې ورکړې وه، مضمون ددې دا دې.

## د تیمم جنب په باره کښې حدیث عمار ﷺ:

یو ځل یو سړې د عمر ﷺ په خدمت کښې راغلو او هغه د جنب د تیمم په باره کښې سوال اوکړو چه که چاته جنابت پیښ شی او اوبه نه وی نو آیا هغه تیمم کولې شی؟ په دې باندې عمر ﷺ اوفرمائیل چه که خپله ماته داسې ضرورت راشی نو زه به د جنابت نه تیمم کولو سره مونځ نه کوم (ګویا هغوی د جنب د تیمم قائل نه وو) ددې سوال او جواب په وخت په مجلس کښې عمار بن یاسر ﷺ هم موجود وو هغه اووئیل یا امیر المومنین! آیا تاسو ته هغه واقعه یاد نه ده چه یو ځل ما او تاسو ته په حالت د سفر کښې جنابت پیښ شوې وو او ما یو قسم تیمم کولو سره مونځ کړې وو بیا د سفر نه په واپسئ باندې ما رسول الله ﷺ ته دهغې تذکره

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٣٦٢) (صحيح)

کړې وه نو په دې باندې رسول الله ﷺ ماته تیمم ښودلې وو چه داسې کول پکار وو په ځمکه باندې د لوغړېدو ضرورت نه وو، خو عمر رضي الله عنه ته دا واقعه د هغوی په رایادولو باندې هم رایاده نه شوه او وې فرمائیل ﴿ یا عمار ! اتق الله ﴾ په دې باندې عمار رضي الله عنه عرض اوکړو چه ښه دا که تاسو غواړئ نو زه به دا حدیث خلقو ته نه ذکر کوم، په دې باندې عمر رضي الله عنه اوفرمائیل دا خو زه نه غواړم ﴿ لَنُوَلِّيَنَّكَ مِنْ ذَٰلِكَ مَا تَوَلَّيْتَ ﴾ ته په خپله ذمه دارئ باندې دا حدیث بیانوه، واضحه دې وی چه دا هم هغه دویم حدیث عمار رضي الله عنه دې کوم چه شیخینو په صحیحین کښې اخستلې دې د کوم وضاحت چه مونږ مخکښې بیان کړې دې

[۳۲۳]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنِ ابْنِ أَبْزَى، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: يَا عَمَّارُ، إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ هَكَذَا، ثُمَّ ضَرَبَ بِيَدَيْهِ الْأَرْضَ ثُمَّ ضَرَبَ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى ثُمَّ مَسَحَ وَجْهَهُ وَالذِّرَاعَيْنِ إِلَى نِصْفِ السَّاعِدَيْنِ وَلَمْ يَبْلُغِ الْمِرْفَقَيْنِ ضَرْبَةً وَاحِدَةً، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ وَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، وَرَوَاهُ جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى يَعْنِي عَنْ أَبِيهِ.

**ترجمه**: د عمار بن یاسر نه روایت دې په هم دې حدیث کښې هغه اووئیل: اې عمار! بیشکه کافي وو ستا لپاره داسې: بیائې ووهل خپل دواړه لاسونه په ځمکه باندې، بیا ووهلو یو په بل باندې، بیا ئې مسح کړو خپل مخ او دواړه څنګلې تر نیم د بازوګانو پورې، او وئې نه رسولو څنګلو ته یوه ضربه وئیلی دي ابوداود: او نقل کړی دی وکیع د اعمش نه او هغه د سلمة بن کهیل نه او هغه د عبد الرحمن نه بن ابزی نه، او نقل کړی دی جریر د اعمش نه او هغه د سلمة بن کهیل نه او هغه د سعید بن عبد الرحمن بن ابزی نه، یعني د خپل پلار نه

[۳۲۴]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ، عَنْ ذَرٍّ، عَنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمَّارٍ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، فَقَالَ: إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ، وَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ نَفَخَ فِيهَا وَمَسَحَ بِهَا وَجْهَهُ وَكَفَّيْهِ، شَكَّ سَلَمَةُ، وَقَالَ: لَا أَدْرِي فِيهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ يَعْنِي أَوْ إِلَى الْكَفَّيْنِ.

**ترجمه**: روایت دی د عبد الرحمن بن ابزی نه او هغه د خپل پلار نه، او هغه د عمار بن یسار نه په دې قصه سره، هغه اووئیل: بیشکه کافي وو ستا لپاره او ووهلو نبي ﷺ خپل لاس په ځمکه، بیا ئې پوکی اوکړو په هغې کښې، او مسح ئې کړو په هغې باندې مخ او دواړه ورغوی شک کړی دی سلمة او وئیلی ئې دی زه نه پوهېږم په هغې کښې الی المرفقین دی یعني که الی الکفین دی

[۳۲۵]([3]) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ يَعْنِي الْأَعْوَرَ، حَدَّثَنِي شُعْبَةُ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: ثُمَّ نَفَخَ فِيهَا وَمَسَحَ بِهَا وَجْهَهُ وَكَفَّيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ، أَوْ إِلَى الذِّرَاعَيْنِ، قَالَ شُعْبَةُ: كَانَ سَلَمَةُ يَقُولُ: الْكَفَّيْنِ وَالْوَجْهَ وَالذِّرَاعَيْنِ، فَقَالَ لَهُ مَنْصُورٌ: ذَاتَ يَوْمٍ انْظُرْ مَا تَقُولُ، فَإِنَّهُ لَا يَذْكُرُ الذِّرَاعَيْنِ غَيْرُكَ.

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۶۲) (صحیح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۱۳۸، ۱۰۳۶۲) (صحیح)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۶۲) (صحیح)

**ترجمه**: اعور وائي حديث بيان کړې دی ماته شعبه په خپل اسناد سره ددې حديث، هغه وئيلی دی: بيا ئې پوکی اوکړو په هغې کښې او مسح ئې کړو په هغې باندې خپل مخ او دواړه ورغوي ترڅنګلو پورې۔ او يا تر بازوګانو پورې۔ وئيلی دي شعبه: وو سلمة چه وئيل يې: ورغوي او مخ او څنګلې، نو اووئيل هغه ته منصور يوه ورځ: اوګوره ته څه وائې بېشکه نه ذکر کوي ذراعين بغير ستانه.

[۳۲۶]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي الْحَكَمُ، عَنْ ذَرٍّ، عَنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمَّارٍ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَقَالَ: يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكَ أَنْ تَضْرِبَ بِيَدَيْكَ إِلَى الْأَرْضِ فَتَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَكَ وَكَفَّيْكَ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَمَّارًا يَخْطُبُ بِمِثْلِهِ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: لَمْ يَنْفُخْ، وَذَكَرَ حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: ضَرَبَ بِكَفَّيْهِ إِلَى الْأَرْضِ وَنَفَخَ.

**ترجمه**: د عمار رضي الله عنه نه روايت دې په دې حديث کښې، هغه وئيلی دی: اووئيل يعني نبي ﷺ بېشکه کافي وو ستا لپاره چه ته ووهې خپل دواړه لاسونه په ځمکه، پس مسح کړې په دواړو باندې خپل مخ او دواړه ورغوي. او سوق د حديث ئې اوکړو. وئيلی دي ابوداود: او نقل کړې دی شعبة د حُصين نه هغه د ابو مالک نه هغه وئيلی دی: ما اوريدلي دي د عمار نه چه خطبه ئې ويله په مثل دهغې مګر هغه اووئيل: هغه پوکی اونه کړو. او ذکر کړو حسين بن محمد د شعبه او هغه د حکم نه په په دې حديث کښې، هغه اووئيل: وئې وهل خپل دواړه ورغوي په ځمکه او پوکی ئې اوکړو

[۳۲۷]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَزْرَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّيَمُّمِ، "فَأَمَرَنِي ضَرْبَةً وَاحِدَةً لِلْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ".

**ترجمه**: د عمار بن ياسر نه روايت دې هغه وئيلی دی: تپوس اوکړو ما د نبي ﷺ نه په باره د تيمم کې: نو امر ئې اوکړو ماته د يوې ضربې د مخ او د ورغوو دپاره.

[۳۲۸]([3]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، قَالَ: سُئِلَ قَتَادَةُ عَنِ التَّيَمُّمِ فِي السَّفَرِ، فَقَالَ: حَدَّثَنِي مُحَدِّثٌ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ".

**ترجمه**: د عمار بن ياسر نه روايت دې بېشکه رسول الله ﷺ وئيلی دی: ترڅنګلو پورې.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۶۲) (صحيح)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۶۲) (صحيح)
[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۶۲) (منكر)

# بَابُ التَّيَمُّمِ فِي الْحَضَرِ

## باب دې په بيان د تيمم کې په حضر کې

د کيفيت تيمم د بيان نه چه کله فارغ شو نو اوس مصنف رحمه الله د تيمم متعلق بعض نور احکام بيانوي يو دهغې نه دا دې چه آيا د اوبو په موجودګۍ کښې په حالت د حضر کښې هم د يو عبادت دپاره تيمم کيدلې شي؟ د حديث الباب نه معلومه شوه چه او! د رد السلام دپاره تيمم کولې شي ځکه چه رد السلام يو فوري څيز دې چه په هغې کښې د تراخي ګنجائش نشته لهذا که څوک دا غواړي چه د سلام جواب په طهارت سره ورکړي نو اوس ظاهره ده چه که اودس کوي نو د رد وخت به اوځي، لهذا تيمم کولو سره دې جواب ورکړي.

### د حديث الباب نه د امام طحاوي رحمه الله يو استنباط :

امام طحاوي رحمه الله د حديث الباب نه [1] په يو بله مسئله بلکه قاعده کليه باندې استدلال کړې دې چه دهغې صرف احناف قائل دي جمهور نه. هغه دا چه هر هغه عبادت کوم چه فائت لا الى خلف وي يعنې د کوم چه قضاء نه وي، مثلا صلوة الجنازة، صلوة العيدين که د اودس کولو په وجه باندې د ناوخته کيدو د وجې نه د فوت کيدو ويره وي نو د هغې دپاره تيمم جائز دې، د شوافعو وغيره په نزد چونکه دا مسئله نه ده په دې وجه امام نووي رحمه الله په حديث الباب کښې د رسول الله ﷺ د تيمم توجيه دا کړې ده چه دا تيمم د عدم وجدان ماء د وجې نه وو خو ظاهره دا ده چې دا واقعه په مدينې منوره کښې يعنې د حضر او آبادۍ ده، هلته د اوبو نه کيدو څه مطلب فلعل النووي لم يحمله على ذلک الا نصرة مذهبه، په دې سلسله کښې نور هم بعض آثار د صحابه کرامو رضي الله عنهم دي چه دهغې نه زمونږ د مسلک تائيد کيږي.

### د تيمم في الحضر اسباب او صورتونه سره د اختلاف ائمة :

د دې نه پس دا پيژندل پکار دي چه په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله مذکور ده يعنې تيمم في الحضر دا طويل الذيل او تفصيل طلب ده پس دهغې مختلف اسباب او وجوه کيدې شي، او هغه زمونږ د تتبع په اعتبار سره څلور دي.

**الوجه الاول** : لعدم وجدان الماء، د احنافو په نزد د عدم وجدان الماء د وجې نه په ښار کښې تيمم کولې شي يا نه؟ د بعض متون احناف نه معلوميږي چه عدم وجدان الماء معتبر نه دې، ځکه چه دا ډيره نادره ده، د صاحب هداية ميلان هم دې طرف ته دې او بعض فقهاء کرامو ليکلي دي چه دا صحيح ده چه نادره ده خو که اتفاقا داسې اوشي نو د راجح قول په بناء باندې زمونږ په نزد داسې جائز دي، در مختار کښې هم دا اختيار کړې شوې ده او په لامع کښې د حضرت ګنګوهي رحمه الله د کلام نه هم دا معلوميږي، او هم دا د ائمة ثلاثه مذهب

---

[1] او احنافو سره په دې سلسله کښې د عمر او ابن عباس رضي الله عنهم اثر هم موجود دې ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي : اذا فجاءتک جنازة وانت على غير طهارة فتيمم طحاوي او ابن ابي شيبة او هم دغه شان امام نسائي په کتاب الکنى کښې دا روايت کړې دې، په اثر د ابن عمر رضي الله عنهما کښې دا دي چه يو ځل هغوی د جنازې مونځ کولو او دهغې نه مخکښې ئې اودس نه وو نو هغوی تيمم کولو سره مونځ اوکړو امام بيهقي رحمه الله دا په معرفة السنن کښې په ډيرو طرقو سره ذکر کړې دې، (کذا في المنهل)

دي خو د هغوی په نزد په وجوب اعادة کښې اختلاف دې یعنې چه کله اوبه ملاؤ شي نو اعادة د صلوة واجب ده یا نه؟ د امام احمد رحمه الله په دې کښې دواړه اقوال دی کما فی المغنی خو په الروض المربع کښې د عدم وجوب اعادة تصریح ده او د امام مالک رحمه الله راجح قول د عدم اعاده دې او هم دا د احنافو مذهب دې خو امام شافعي رحمه الله د وجوب اعادة قائل دې، **فالائمة الثلاثة فی جانب والامام الشافعی فی جانب.**

**الوجه الثانی** : تیمم فی الحضر لوجه المرض : یو سړې مریض دې د هغه د اوبو په استعمال یا حرکت وغیره باندې د مرض د زیاتیدلو ویره ده پس داسې مریض د جمهور علماء کرامو ومنهم الائمة الثلاثة احناف، مالکیان او حنابله په نزد تیمم کولې شي خو د امام شافعي رحمه الله په نزد صرف د اشتداد مرض د وجې نه نهٔ شي کولې ترڅو چه د تلف نفس یا تلف عضو ویره نه وی (کما فی الهدایة) خو د کتب شافعیه د کتلو نه معلومیږی چه د خوف تلف قید د هغوی په نزد هم نشته. لهذا هغوی هم په دې مسئله کښې د جمهورو سره شو، د داؤد ظاهری رحمه الله په نزد تیمم لاجل المرض مطلقاً جائز دې که د اوبو استعمال ضرر لری یا نه، او هم دا د امام مالک رحمه الله نه یو روایت دې، **کما فی العینی.**

**الوجه الثالث** : تیمم الجنب لاجل البرد : یعنی د اوبو کیدو سره سره د یخنئ د وجې نه د غسل په ځائې تیمم کول، په دې مسئله باندې وړاندې تلو سره مصنف رحمه الله مستقل باب تړلې دې، باب اذا خاف الجنب البرد ایتیمم..... په دې مسئله کښې اختلاف دا دې چه د ائمة اربعه په نزد خو د داسې سړی دپاره تیمم ضروری دې خو په احنافو کښې صاحبین رحمهما الله فرمائی چه د یخنئ د وجې نه د جنبی تیمم کول په مصر کښې جائز نه دی د مصر نه بهر جائز دی [۱] ځکه چه په ښار کښې د ګرمو اوبو انتظام کیدلې شي په خلاف د صحراء، بیا په دې کښې اختلاف دې چه که یو سړی د یخنئ د وجې نه په ځائې د غسل تیمم کولو سره مونځ اوکړو نو بیا د زوال عذر نه پس به د مونځ اعاده واجب وی یا نه؟ د امام ابوحنیفه او امام مالک په نزد واجب نه ده، د امام شافعی په نزد واجب ده، او د امام احمد رحمه الله نه دوه روایتونه دی، خو په الروض المربع کښې صرف عدم وجوب اعادة مذکور ده، لهذا په دې مسئله کښې ائمه ثلاثه یو طرف ته شو او امام شافعي رحمه الله بل طرف ته دا خو مذاهب شو د ائمة اربعه، او د عطاء بن ابی رباح او حسن بصری رحمهما الله په نزد په اصل مسئله کښې اختلاف دې د هغوی په نزد تیمم الجنب لاجل البرد مطلقا جائز نه دې، **بل یجب الغسل وان مات.**

**تنبیه** : حضرت شیخ رحمه الله په حاشیه د بذل کښې په حواله د عینی او مغنی په دې مسئله کښې د شوافعو سره صاحبینو هم ذکر فرمائیلې دې چه د هغوی په نزد هم اعادة

---

[۱] محشی هدایة لیکی ظاهره دا ده چه د صاحبینو په نزد تسخین الماء فی المصر واجب دې او یا دا چه اجرت ورکولو سره په حمام کښې غسل اوکړی او د اصحاب المغتسل عادت دا وی چه هغوی اجرة بعد الفراغ عن الغسل اخلی لهذا که هغه سره دغه وخت کښې اجرت نه وی نو عذر دې اوکړی هم په دې وجه وئیلې شوی دی چه په دې مسئله کښې د امام صاحب او د صاحبینو اختلاف اختلاف زمان دې نه اختلاف برهان، خو په داسې مسئلو کښې د عمل کولو دپاره د فتوی خاوندانو ته رجوع کول پکار دی.

واجب ده، خو د صاحبينو مذهب باوجرد د كافي تتبع نه چرته ملاؤ نه شو، په شرح وقايه او دهغې په حاشيه كښې دا قاعده كليه ليكلې شوې ده چه هغه عذر كوم چه د تيمم دپاره مبيح وى هغه كله د الله پاک د طرف نه وى لكه مرض، برد او خوف عطش وغيره په دې صورت كښې تيمم جائز دې او روستو اعادة واجب نه ده او كوم عذر چه د بندګانو د طرف نه وى لكه هغه سړې كوم چه د كفارو په قبضه كښې وى كوم چه هغه د اودس نه منع كوى يا محبوس فى السجن وغيره په دې صورتونو كښې تيمم كولو سره مونځ كول جائز دى خو د زوال مانع نه پس اعادة واجب ده، دا د تيمم ټول مسائل او اختلاف ائمة د كتابونو د مراجعت نه پس په احتياط سره ذكر كړې شوې دى انشاء الله تعالى تحقيق هم دا دې.

**الوجه الرابع**: هغه صورت كوم چه په حديث الباب كښې مذكور دې يعنى هغه تيمم كوم چه د هغه عبادت دپاره اوكړې شى كوم چه فائت لا الى خلف وى چه دهغې تشريح د باب په شروع كښې تيره شوه.

[٣٢٩]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، أَخْبَرَنَا أَبِي، عَنْ جَدِّي، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ، عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ سَمِعَهُ، يَقُولُ: أَقْبَلْتُ أَنَا وَعَبْدُ اللهِ بْنُ يَسَارٍ مَوْلَى مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى دَخَلْنَا عَلَى أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ الْأَنْصَارِيِّ، فَقَالَ أَبُو الْجُهَيْمِ: "أَقْبَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ بِئْرِ جَمَلٍ، فَلَقِيَهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ السَّلَامَ حَتَّى أَتَى عَلَى جِدَارٍ فَمَسَحَ بِوَجْهِهِ وَيَدَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ".

**ترجمه**: د عمير نه روايت دې چه د ابن عباس غلام دى بيشكه هغه اوريدلې دې د هغه نه چه وئيل يې: زه راغلم او عبد الله بن يسار چه مولى د ميموني دى بي بي د پيغمبر ﷺ ده، په ابو الجهيم بن الحارث بن الصمة الانصاري ته، اووئيل دې ابو الجهيم: راغى رسول الله ﷺ طرف د كوهي د جمل ته نو مخامخ شو ورسره يو سړى نو سلام يې پرې واچولو، نو رد نه كړو رسول الله ﷺ سلام تر دې چې راغى يو ديوال ته نو مسح ئې اوكړه په خپل مخ او دواړه لاسونو باندې بيا ئې جواب ورکړو هغه ته.

**تشريح**: قوله﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبٍ - قوله دَخَلْنَا عَلَى أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ الْأَنْصَارِيِّ فَقَالَ أَبُو الْجُهَيْمِ الانصارى ﴾ ابو الجهيم كنيت دې د دوى په نوم كښې اختلاف دې بعضو وئيلې دى چه د دوى نوم حارث بن الصمة دې لهذا لفظ د ابن كوم چه د ابوالجهيم او حارث ترمينځه په متن كښې دې هغه غلط دې او وئيلې شوې دى چه د هغوى نوم عبدالله دې ددې نه پس ځان پوهه كړه چه دا نوم هم دغه شان مصغرا د بخارى په روايت كښې هم دې او په مسلم كښې په ځائې د مصغر مكبر يعنى ابوالجهم واقع دې. حافظ رحمه الله فرمائي چه دا تحريف دې او صحيح بالتصغير دې د دوى روايت په صحاح ستة كښې دوه ځايونو كښې راځي يو دلته په رد السلام كښې او دويم په مرور بين يدى المصلى يعنى په ابواب

[1]): صحيح البخاري/التيمم ٣ (٣٣٧)، صحيح مسلم/الحيض ٢٨ (تعليقاً) (٣٦٩)، سنن النسائي/الطهارة ١٩٥ (٣١٢)، (تحفة الأشراف: ١١٨٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٩/٤) (صحيح)

السترة کښ، علامه عینی رحمه الله لیکی چه په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې یو سړې بل دې چه د هغه نوم ابوالجهم (مکبرا) دې او د هغوی نوم عامر بن حذیفه دې دا ابوالجهم رضي الله عنه هم هغه سړې دې چه د هغه په باره کښې په حدیث کښې راځی ﴿ ائتونی بانبجانیة ابی جهم ﴾
د ابوالجهیم په دې حدیث کښې ضربه واحده مذکور ده، حضرات شیخین چونکه د ضربه واحدة قائل دی په دې وجه هغوی هم دا روایت په خپل خپل صحیح کښې اخستلې دې.

[۳۳۰](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَوْصِلِيُّ أَبُو عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ ثَابِتٍ الْعَبْدِيُّ، أَخْبَرَنَا نَافِعٌ، قَالَ: انْطَلَقْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي حَاجَةٍ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، فَقَضَى ابْنُ عُمَرَ حَاجَتَهُ فَكَانَ مِنْ حَدِيثِهِ يَوْمَئِذٍ أَنْ، قَالَ: "مَرَّ رَجُلٌ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سِكَّةٍ مِنَ السِّكَكِ وَقَدْ خَرَجَ مِنْ غَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتَّى إِذَا كَادَ الرَّجُلُ أَنْ يَتَوَارَى فِي السِّكَّةِ، ضَرَبَ بِيَدَيْهِ عَلَى الْحَائِطِ وَمَسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ ثُمَّ ضَرَبَ ضَرْبَةً أُخْرَى فَمَسَحَ ذِرَاعَيْهِ، ثُمَّ رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلَامَ، وَقَالَ: إِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَرُدَّ عَلَيْكَ السَّلَامَ إِلَّا أَنِّي لَمْ أَكُنْ عَلَى طُهْرٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ ثَابِتٍ حَدِيثًا مُنْكَرًا فِي التَّيَمُّمِ، قَالَ ابْنُ دَاسَةَ: قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يُتَابَعْ مُحَمَّدُ بْنُ ثَابِتٍ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ عَلَى ضَرْبَتَيْنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَوْهُ فِعْلَ ابْنِ عُمَرَ.

**ترجمه**: خبر راکړی دی مونږ ته نافع هغه اووئیل: زه لاړم د ابن عمر سره د یو حاجت لپاره ابن عباس ته نو ابن عمر خپل حاجت پوره کړو نو وی بعضې خبرې دهغې په دغه ورځ دا چه هغه اووئیل: تېر شو یو سړی په رسول الله ﷺ باندې په یوه کوڅه کښې د کوڅو نه، او په تحقیق سره هغه راووتلو د غائط نه او یا د بولو نه نو سلام ئې واچولو په هغه باندې نو جواب د سلام ئې ورنه کړو تردی چه نزدې شو سړی چه پټ شي په کوڅه کښې، وئې وهل دواړه لاسونه په دیوال او مسح ئې کړل په دواړو باندې مخ خپل، بیا ئې ووهله بله ضربه نو مسح ئې کړې متې خپلې، بیا د سلام جواب ئې ورکړو سړي ته. او وئې وئیل: بیشکه منع کوې مالره چه واپس کړم په تا باندې سلام مګر زه نه وم په پاکئ. وئیلی دي ابوداود: ما اوریدلي دي د احمد بن حنبل نه چه هغه ویل: روایت کړی دی محمد بن ثابت منکر حدیث په تیمم کښې. وئیلی دي ابن داسة وئیلی دي ابوداود: او متابعت نه دی شوی د محمد بن ثابت په دې قصه کښې په ضربتینو د نبي ﷺ نه، او هغوی رایت کوی فعل د ابن عمر رضي الله عنهما.

**تشریح**: ﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَوْصِلِيُّ – قوله فَكَانَ مِنْ حَدِيثِهِ يَوْمَئِذٍ الخ ﴾ د حدیثه ضمیر ابن عمر رضي الله عنهما طرف ته راجع دې نه د ابن عباس رضي الله عنهما طرف ته، اګرچه سیاق د کلام کښې د دواړو احتمال شته، خو د نورو روایاتو د وجې نه دا متعین ده چه دا ضمیر صرف ابن عمر رضي الله عنهما ته راجع دې.

**په کیفیت د تیمم کښې د احنافو دلیل او د مصنف رحمه الله په هغې باندې نقد:**

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ الخ ﴾ په دې حدیث د ابن عمر رضي الله عنهما کښې ضربتین مذکور دي هم دغه شان په ځائې د کفین ذراعین دې چه د احنافو مسلک دې خو په دې باندې مصنف رحمه الله کلام کوی چه امام احمد رحمه الله فرمائی چه د محمد بن ثابت دا حدیث منکر دې، او

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۴۲۰) (ضعیف)

بیا وراندې مصنف رحمه الله فرمائی چه محمد بن ثابت د نافع نه ددې په مرفوعا نقل کولو کښې متفرد دې، په دې کښې چا هم د هغوی متابعت نه دې کړې، د محمد بن ثابت نه علاوه د نافع نورو شاګردانو دا موقوفا په ابن عمر رضي الله عنهما باندې روایت کړې دې یعنی د ابن عمر رضي الله عنهما فعل ئې ورته وئیلې دې، حضرت په بذل کښې په دې باندې تفصیلی کلام فرمائیلې دې چه دهغې خلاصه دا ده چه محمد بن ثابت ثقة دې او زیادة د ثقة مقبول دې.

[٣٣١]() حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يَحْيَى الْبُرُلُّسِيُّ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، أَنَّ نَافِعًا حَدَّثَهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "أَقْبَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْغَائِطِ فَلَقِيَهُ رَجُلٌ عِنْدَ بِئْرِ جَمَلٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى أَقْبَلَ عَلَى الْحَائِطِ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْحَائِطِ ثُمَّ مَسَحَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، ثُمَّ رَدَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الرَّجُلِ السَّلَامَ".

**ترجمه:** د ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې هغه وئیلی دی: راغی رسول الله صلی الله علیه وسلم د غائطو نه نو مخامخ شو ورسره یو سړی د بئر جمل په خوا کښې نو سلام ئې واچولو په هغه باندې، نو جواب ورنکړو رسول الله صلی الله علیه وسلم تردې چه مخامخ شو دېوال سره نو کېخودو لاس خپل په دیوال، بیا ئې مسح اوکړه په مخ خپل باندې او په لاسونو خپلو. بیا ئې رد کړو رسول الله صلی الله علیه وسلم په سړي باندې سلام.

**تشریح:** ٣: ﴿ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ الخ ﴾ دا د پورته ذکر شوی حدیث ابن عمر رضي الله عنهما دویم طریق دې په دې کښې د نافع نه روایت کونکې ابن الهاد دې او په مخکښې روایت کښې محمد بن ثابت وو، په دې دواړو کښې د متن په اعتبار سره فرق دې هغه دا چه په اول روایت کښې ضربتین مذکور وو او په دې کښې ضربه واحده مذکور ده. په ظاهر کښې مصنف رحمه الله دا بیانول غواړی چه حدیث ابن عمر رضي الله عنهما کوم چه مرفوعا دې په هغې کښې ضربه واحده ده او حدیث ابن عمر رضي الله عنهما کوم چه موقوفا دې په هغې کښې ضربتین مذکور دي، محمد بن ثابت د ابن عمر رضي الله عنهما د ضربتین والا روایت مرفوعا نقل کړې دې.

## بَابُ الْجُنُبِ يَتَيَمَّمُ

### باب دې په بیان د جنب کښې چې تیمم کوي

د جنابت دپاره تیمم په اتفاق د ائمه اربعه جائز دې په دې کښې د بعض علماء کرامو اختلاف منقول دې، کوم چه دتیمم په ابحاث عشرة کښې په بحث عاشر کښې تیر شوې دې.

[٣٣٢]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ. ح حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللهِ الْوَاسِطِيَّ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ بُجْدَانَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: اجْتَمَعَتْ غُنَيْمَةٌ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا أَبَا ذَرٍّ، ابْدُ فِيهَا، فَبَدَوْتُ إِلَى الرَّبَذَةِ فَكَانَتْ تُصِيبُنِي الْجَنَابَةُ فَأَمْكُثُ الْخَمْسَ وَالسِّتَّ، فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَبُو ذَرٍّ، فَسَكَتُّ، فَقَالَ: ثَكِلَتْكَ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٥٣٣) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الطهارة ٩٢ (١٢٤)، سنن النسائي/الطهارة ٢٠٥ (٣٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٥/٥، ١٨٠) (صحيح)

أُمُّكَ أَبَا ذَرٍّ لِأُمِّكَ الْوَيْلُ، فَدَعَا لِي بِجَارِيَةٍ سَوْدَاءَ فَجَاءَتْ بِعُسٍّ فِيهِ مَاءٌ فَسَتَرَتْنِي بِثَوْبٍ وَاسْتَتَرْتُ بِالرَّاحِلَةِ وَاغْتَسَلْتُ فَكَأَنِّي أَلْقَيْتُ عَنِّي جَبَلًا، فَقَالَ: "الصَّعِيدُ الطَّيِّبُ وَضُوءُ الْمُسْلِمِ وَلَوْ إِلَى عَشْرِ سِنِينَ، فَإِذَا وَجَدْتَ الْمَاءَ فَأَمِسَّهُ جِلْدَكَ فَإِنَّ ذَلِكَ خَيْرٌ"، وَقَالَ مُسَدَّدٌ: غُنَيْمَةٌ مِنَ الصَّدَقَةِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ عَمْرٍو أَتَمُّ.

**ترجمه**: د ابو ذر ﷺ نه روایت دې هغه وئیلی دی: راجمع شوې څه ګډې د رسول الله ﷺ سره نو هغه اووئیل: اې ابو ذرا دا بادیې ته بوزه، نو زه لاړم ربذې ته نو وو چه رسېدو به ماته جنابت نو مابه وخت تېرولو پنځه او شپږ، نو زه راغلم نبي ﷺ ته نو هغه اووئیل: اې ابو ذرا نو زه چپ شوم هغه اووئیل: بوره دې شي مور ستا اې ابا ذر ستا د مور لپاره دې وئیل وي. نو راوېې غوښتله زما لپاره یوه وینزه توره نو راېي ورلو یو لوښی چه هغې کښې اوبه وې، زه هغې پټ کړم په یوه جامه او بل طرف ته زمانه اوښ وو، او غسل مې اوکړو ګویا چه ما وغورځولو د خپل ځان نه غر، نو هغه وفرمایل: پاکه خاوره د مسلمان اودس دی اګر که وي د لسو کلونو پورې، کله چه تا اوبه پیدا کړې نو بیا ئې ولګوه په خپله څرمن نو دغه افضل دی. او وئیلی دي مسدد: ګډې د صدقې. وئیلي دي ابوداود: او حدیث د عمرو اتم دی

## تشریح حدیث :

قوله:﴿ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ – قوله اجْتَمَعَتْ غُنَيْمَةٌ الخ ﴾ غنیمة د غنم تصغیر دې کوم چه دلته د تقلیل دپاره راوړلې شوې دې، په مضمون حدیث کښې دا دی چه ابوذر غفاری ﷺ فرمائی چه یو ځل څه بیزې د رسول الله ﷺ سره جمع شوې (ممکنه ده چه دا بیزې هم د هغوی ملک وی یا د بیت المال او د صدقې وی خو وړاندې په متن کښې راغی چه د مسدد په روایت کښې ﴿ غنیمة من الصدقة ﴾ دې) په دې باندې رسول الله ﷺ هغوی ته اوفرمائیل چه دا بیزې یو کلی ته بوزی (چه د بیزو د اوسیدو او د ګیا او اوبو سهولت وی، دا وجه خو صرف احتمال عقلی دې وړاندې په روایت کښې ددې دویم علت مذکور دې، یعنی ابوذر ﷺ ته د مدینې منورې دهوا موافق نه راتلل) ابوذر ﷺ فرمائی زه د هغه ګډو بیزو او خپل اهل و عیال سره قریة ربذة ته لاړم او د ګډو بیزو د خدمت او نګرانئ دپاره مې هم هلته قیام اختیار کړو، نو هلته د قیام دوران کښې ماته جنابت راپیښ شو او څو څو ورځې به تیرې شوې چه د غسل دپاره به اوبه نه ملاویدې (او دوی به تیمم کولو سره مونځ کولو چه د مسند احمد په روایت کښې دی) خو هغوی ته د مسئلې د تحقیق د نه کیدو په وجه باندې په تیمم د جنابت باندې انشراح نه وو شوې چه دهغې د وجې نه ئې په طبیعت باندې بوجه محسوس کولو، هغوی فرمائی چه هم ددې پریشانئ په حالت کښې مدینې منورې ته د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، چونکه دوی بغیر د اطلاع او بغیر د رسول الله ﷺ د طلب کولو نه راغلې وو، په دې وجه خاموش اودریدلو او د رسول الله ﷺ په تپوسلو باندې هم خاموش وو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ أَبَا ذَرٍّ لِأُمِّكَ الْوَيْلُ ﴾ په دې سره مقصود بد دعاء کول نه دی بلکه صرف د خفکان اظهار دې، په ظاهره خو په دې وجه چه اول خو د تیمم د مسئلې تپوسلو نه بغیر لاړو، چه دهغې په وجه باندې هلته د پریشانئ په حالت کښې وو دویم دا چه په کوم کار باندې ئې مامور فرمائیلې

وو، د هغه ځائې نه بغير د طلب اؤ اجازت نه راغلو ﴿ فدعا لى بجارية سوداء ﴾ رسول الله ﷺ د هغوى دپاره په يو منګى كښې اوبه راطلب كړې او چونكه هلته څه باقاعده د غسل ځائې نه وو، وقتى طور ئې د پردې نه شاته غسل اوكړو، په داسې طريقه چه يو سورلئ ئې كينوله او بل طرف ته هغه وينځه كېږه نيولو سره اودريدله ﴿ فَكَأَنِّى أَلْقَيْتُ عَنِّى جَبَلاً ﴾ يعنى د غسل نه پس ما په خپل طبيعت كښې داسې سپک والې محسوس كړو لكه چه ما د ځان نه غر كوز كړې وى.

## د تيمم دپاره د طهارة مطلقه كيدو دليل:

﴿ الصَّعِيدُ الطَّيِّبُ وَضُوءُ الْمُسْلِمِ وَلَوْ إِلَى عَشْرِ سِنِينَ ﴾ رسول الله ﷺ هغه ته د هميشه دپاره يو مسئله بيان كړه چه د اوبو نه كيدو په وخت باندې صعيد طيب هم كار كوى كوم چه اودس او غسل كوى لهذا په تيمم باندې غسل حاصلولو كښې دې د انسان څه قسم شک نه وى.

امام خطابى رحمه الله فرمائى ددې حديث [1] نه احنافو په دې خبره باندې استدلال كړې دې چه تيمم د اودس په حكم كښې دې چه څنګه په يو اودس باندې ډير مونځونه كولې شى، هم دغه شان په تيمم سره هم او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په دې مسئله كښې امام بخارى رحمه الله د كوفيينو او جمهورو سره دې.

## شرح السند:

ځان پوهه كړه چه د حديث الباب په سند كښې زمونږ په نسخه كښې داسې دى ﴿ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ نَا خَالِدٌ الْوَاسِطِيُّ ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ نَا خَالِدٌ ﴾ او په بعض نسخو كښې حاء د تحويل نشته، بلكه داسې دى، ﴿ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ وَمُسَدَّدٌ نَا خَالِدٌ ﴾ او كيدل هم داسې پكار دى، په ظاهر كښې د حاء تحويل څه وجه نشته ځكه چه دا دوه مختلف سندونه نه دى كوم چه بيل بيل بيان كړې شى بلكه د مصنف رحمه الله استاذان دوه دى، عمرو بن عون او مسدد دا دواړه روايت كوى د يو استاد يعنى خالد واسطى نه، او زمونږ د نسخې په اعتبار سره د مصنف رحمه الله په دواړو استاذانو كښې د تعبير هم څه فرق نشته، خو په حاشيه باندې د يوې نسخې حواله وركړې شوې ده، په هغې كښې د عمرو بن عون نه په ځائې د نا اخبرنا دې، په دې صورت كښې به د فرق تعبير د وجې نه حاء د تحويل راوړل صحيح شى ځكه چه د عمرو بن عون او د مسدد دواړو استاذ اګرچه يو دې خو په هغوى كښې يو د خپل استاذ نه په طريق د تحديث نقل كوى او دويم په طريق د اخبار، او د اخبار او د تحديث د فرق د وجې

---

[1] ځان پوهه كړه چه دا حديث په مسند احمد صحيح ابن حبان، او مستدرک د حاكم كښې هم دې او په ترمذى كښې مختصرا او حاكم فرمائى چه شيخينو ددې تخريج په دې وجه اونكړو چه دا حديث د عمرو بن بجدان نه د ابوقلابة نه علاوه بل چا نه دې روايت كړې، صاحب منهل فرمائى چه حافظ منذرى رحمه الله په تهذيب السنن كښې د امام ترمذى رحمه الله نه ددې حديث تصحيح نقل كړې ده خو مونږ سره په موجوده نسخه د ترمذى كښې ددې تصحيح نشته بلكه تحسين دې، ممكنه ده چه هغوى سره كومه نسخه ده په هغې كښې به تصحيح وى.

نه مصنف رحمه الله بعض وخت حاء د تحويل راوړي.

[٣٣٣]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عَامِرٍ، قَالَ: دَخَلْتُ فِي الْإِسْلَامِ فَأَهَمَّنِي دِينِي، فَأَتَيْتُ أَبَا ذَرٍّ، فَقَالَ أَبُو ذَرٍّ: "إِنِّي اجْتَوَيْتُ الْمَدِينَةَ، فَأَمَرَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَوْدٍ وَبِغَنَمٍ، فَقَالَ لِي: اشْرَبْ مِنْ أَلْبَانِهَا، قَالَ حَمَّادٌ: وَأَشُكُّ فِي أَبْوَالِهَا، هَذَا قَوْلُ حَمَّادٍ، فَقَالَ أَبُو ذَرٍّ: فَكُنْتُ أَعْزُبُ عَنِ الْمَاءِ، وَمَعِي أَهْلِي فَتُصِيبُنِي الْجَنَابَةُ فَأُصَلِّي بِغَيْرِ طُهُورٍ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنِصْفِ النَّهَارِ وَهُوَ فِي رَهْطٍ مِنْ أَصْحَابِهِ وَهُوَ فِي ظِلِّ الْمَسْجِدِ، فَقَالَ أَبُو ذَرٍّ: فَقُلْتُ: نَعَمْ هَلَكْتُ يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: وَمَا أَهْلَكَكَ؟ قُلْتُ: إِنِّي كُنْتُ أَعْزُبُ عَنِ الْمَاءِ وَمَعِي أَهْلِي فَتُصِيبُنِي الْجَنَابَةُ فَأُصَلِّي بِغَيْرِ طُهُورٍ، فَأَمَرَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَاءٍ فَجَاءَتْ بِهِ جَارِيَةٌ سَوْدَاءُ بِعُسٍّ يَتَخَضْخَضُ مَا هُوَ بِمَلْآنَ فَتَسَتَّرْتُ إِلَى بَعِيرِي فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جِئْتُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا أَبَا ذَرٍّ إِنَّ الصَّعِيدَ الطَّيِّبَ طَهُورٌ، وَإِنْ لَمْ تَجِدِ الْمَاءَ إِلَى عَشْرِ سِنِينَ، فَإِذَا وَجَدْتَ الْمَاءَ فَأَمِسَّهُ جِلْدَكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، لَمْ يَذْكُرْ أَبْوَالَهَا. قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا لَيْسَ بِصَحِيحٍ، وَلَيْسَ فِي أَبْوَالِهَا إِلَّا حَدِيثُ أَنَسٍ، تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْبَصْرَةِ.

**ترجمه:** د يو سړي د بنو عامر نه روايت دي هغه وائي: زه داخل شوم په اسلام كښې نو زه په خفګان كښې واچولم خپل دين، نو زه راغلم ابو ذر ته، اووئيل ابوذر بيشكه د مديني هوا رابانديي بده راغله، امر اوكړو زما لپاره رسول الله ﷺ په اوښانو او په ګډو، نو هغه وفرمايل ماته: وڅكه د شودو دهغي نه. وئيلى دي حماد: زه شک کوم په متيازو دهغي كښې، دا قول د حماد دى، اووئيل ابو ذر: وم زه چه لرې كيدم د اوبو نه، او زماسره به اهل زما وو نو رسېدو به ماته جنابت نو مابه مونځ كولو بغير د اودس نه، نو زه راغلم رسول الله ﷺ ته په نيمايي د ورځې كښې، او وو هغه د يو جماعت سره د ملګرو خپلو نه، او هغه په سوري د مسجد كښې وو، اووئيل ابو ذر: ما اووئيل: او زه هلاک شوم اې د الله رسوله! هغه اووئيل: څه شي هلاک كړې؟ ما اووئيل: بيشكه زه ووم چه لرې كېدم د اوبو نه، او زما سره زما اهل وونو رسېدو به ماته جنابت نو مابه مونځ كولو بغير دپاكئ طهور نه، نو امر اوكړو ماته رسول الله ﷺ په اوبو، نو راوړلي په هغې سره يوې وينځې تورې په يو لوښي كښې چه خوزيدلي هغه چه هغه ډک وو، نو پټ شوم خپل اوښ ته، نو غسل مې اوكړو بيا راغلم، نو اووئيل رسول الله ﷺ: اې ابو ذر! بېشكه پاكه خاوره پاكونكي ده، اګر كه ته پيدا نه كړې اوبه تر لسو كلونو پورې، كله چه تا اوبه پيدا كړې نو بيا مسه كړه په هغې باندې خپله څرمن. وئيلى دي ابوداود: نقل كړى دى حماد بن زيد د ايوب نه، نه دى ذكر كړى هغه (ابوالها). وئيلى دي ابوداود: دا صحيح نه دى، او نشته (في ابوالها) مګر حديث د انس دى چه تفرد كړى دى په هغې باندې اهل د بصرې.

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ – قوله فَقَالَ لِي « اشْرَبْ مِنْ أَلْبَانِهَا ». قَالَ حَمَّادٌ وَأَشُكُّ فِي « أَبْوَالِهَا » ﴾ سيدنا ابوذر غفاري رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ ماته د هغه غنمو د پيو څكلو حكم اوفرمائيلو، او راوى وائي چه په ذكر د بول كښې زما شک دې، په ظاهره دا شک د

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٠٠٨) (صحيح)

حماد د طرف نه دي ځکه چه وړاندي تلو سره مصنف رحمه الله فرمائي ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ لَمْ يَذْكُرْ « أَبْوَالَهَا » ﴾ يعنى دا حديث د ايوب نه حماد بن زيد روايت كړي دي نو هغوى ابوالها نه دي ذكر كړي، او د مصنف رحمه الله ددي كلام نه معلومه شوه چه د سند په شروع كښي چه كوم حماد ذكر دي هغه حماد بن سلمة دي.

﴿ قوله هَذَا لَيْسَ بِصَحِيحِ الخ ﴾ يعنى په دي حديث كښي د ابوال ذكر صحيح نه دي رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوذرغفاری رضی الله عنه ته صرف د شرب البان حكم وركړي وو ﴿ وَلَيْسَ فِي أَبْوَالِهَا إِلاَّ حَدِيثُ أَنَسٍ ﴾ يعنى په كوم حديث كښي چه د البان سره د شرب ابوال هم ذكر دي هغه بل حديث دي چه دهغي راوى انس رضی الله عنه دي، د مصنف رحمه الله اشاره په دي سره حديث العرنيين طرف ته ده كوم چه مشهور دي او په صحيحينو او نورو اكثر كتب صحاح كښي موجود دي.

﴿ قوله تَفَرَّدَ بِهِ أَهْلُ الْبَصْرَةِ ﴾ ددي تعلق د حديث انس رضی الله عنه سره نشته بلكه د حديث الباب حديث ابوذر رضی الله عنه سره دي، د بول ماكول اللحم په طهارت او نجاست كښي اختلاف په باب الاستبراء من البول كښي تير شوي دي.

## بَابٌ إِذَا خَافَ الْجُنُبُ الْبَرْدَ أَيَتَيَمَّمُ

### باب دي په بيان ددي كي چي يرپري جنب د يخنى نه ايا تيمم به كوي

د دي ترجمة الباب حواله او كومه مسئله چه په دي كښي مذكور ده هغه سره د اختلاف ائمة په تفصيل سره په باب التيمم في الحضر كښي ذكر شوي ده.

[۳۳۳](1) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، أَخْبَرَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، أَخْبَرَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ أَيُّوبَ يُحَدِّثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ أَبِي أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرٍ الْمِصْرِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: "احْتَلَمْتُ فِي لَيْلَةٍ بَارِدَةٍ فِي غَزْوَةِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ فَأَشْفَقْتُ إِنِ اغْتَسَلْتُ أَنْ أَهْلِكَ، فَتَيَمَّمْتُ ثُمَّ صَلَّيْتُ بِأَصْحَابِي الصُّبْحَ، فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا عَمْرُو، صَلَّيْتَ بِأَصْحَابِكَ وَأَنْتَ جُنُبٌ؟ فَأَخْبَرْتُهُ بِالَّذِي مَنَعَنِي مِنَ الِاغْتِسَالِ، وَقُلْتُ: إِنِّي سَمِعْتُ اللهَ، يَقُولُ: وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ إِنَّ اللهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا سورة النساء آية ۲۹ فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَقُلْ شَيْئًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جُبَيْرٍ مِصْرِيٌّ مَوْلَى خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ، وَلَيْسَ هُوَ ابْنَ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ.

**ترجمه**: د عمروي بن العاص رضی الله عنه نه روايت دي، هغه وئيلى دى: چه زه محتلم شوم په يخه شپه كښي په غزوه د ذات السلاسل كښي، نو زه ويريدم كه چيري غسل اوكرم نو هلاک به شم نو ما تيمم اوكړو، بيا مي مونځ اوكړو خپلو ملګرو ته د صباح، نو هغوى دغه ذكر كړو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته، هغه وفرمايل: اي عمرو ايا تا مونځ اوكړو خپلو ملګرو ته او ته جنب وي؟ نو ما ورته خبر وركړو په هغه څه باندي چه زه ئي منع كړي وم د غسل كولو نه، او ما اووئيل ما اوريدلي د الله تعالى نه چه هغه وائي: (و لا تقتلوا انفسكم ان الله كانَ بكم رحيمًا) نو اوخندل رسول الله صلی الله علیه وسلم او هيڅ ئي اونه ويل. وئيلى دي ابوداود: عبد الرحمن بن جبير

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۵۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۰۳/۴) (صحيح)

مصري دی مولی د خارجة بن حذافة دی، او هغه ابن جبیر بن نفیر نه دی.

**تشریح: ۱:** ﴿ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى قوله عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ احْتَلَمْتُ فِي لَيْلَةٍ بَارِدَةٍ فِي غَزْوَةِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ ﴾ دې ته غزوه وئیل خو توسعا دی ځکه چه د مشهور قول په بناء باندې غزوة هغه وی چه په هغې کښې رسول اللهﷺ شریک وی او په کوم کښې چه د هغوی شرکت نه وی هغې ته سریة وائی، او په دې کښې رسول اللهﷺ شریک نه وو، خو دا دواړه الفاظ د یو بل په ځائې استعمالیږی، دا سریة د سریة ابن العاصؓ په نوم باندې معروف ده، کومه چه په جمادی الاولی ۸ هجری کښې لیږلې شوې وه، امیر د سریة عمرو بن العاصؓ وو رسول اللهﷺ هغه د درې سوا مهاجرین و انصار امیر جوړولو سره د مشرکینو قبائل لخم او جذام وغیره په مقابله کښې لیږلې وو.

**(د ذات السلاسل وجه تسمیه):**

دا مقابله په موضع سلاسل کښې اوشوه، سلاسل د یوی چینې (کوهی) نوم دې او دهغې او د مدینې منورې ترمینځه د لسو ورځو لاره ده، هم په دې وجه دې ته غزوة ذات السلاسل وائی، بعضو ددې وجه تسمیه دا لیکلې ده چه په دې جنګ کښې مشرکینو خپل ځانونه یو بل سره تړلې وو چه په دوی کښې ځوک او نه تختی، او بعض وائی چه په دې میدان کښې د شږې د ټوپکنړو سلسله تر د لرې پورې تلې ده کومه چه د یو بل سره مربوط ده او کوم د خپو زنځیر چه د مخکښې ور وړاندې کیدو نه مانع وی په دې وجه دې ټوپکنړو ته ذات السلاسل وائی.

**شرح حدیث:**

مضمون حدیث دا دې عمرو بن العاصؓ فرمائی چه ماته په دې غزوه کښې په یو یخه شپه کښې احتلام اوشو (ظاهره ده چه د ګرمو اوبو انتظام هلته چرته وو) پس زما ویره پیدا شوه چه که ما په ګرمو اوبو سره غسل اونکړو نو هلاک به شم په دې وجه مې تیمم اوکړو او هم په دغه تیمم سره مې خپلو اصحابو ته د سحر مونځ اولوستلو، د سفر نه په واپسئ باندې رسول اللهﷺ ته ددې تذکره اوکړې شوه په دې باندې رسول اللهﷺ هغوی ته اوفرمائیل چه تا په حالت د جنابت کښې مونځ ورکړو؟ وړاندې د حدیث مضمون واضح دې.

﴿ قوله وَلَمْ يَقُلْ شَيْئًا ﴾ د رسول اللهﷺ د سکوت او تقریر نه جواز د تیمم للجنب لاجل البرد معلوم شو، خو دلته اشکال دا دې چه ددې نه مخکښې رسول اللهﷺ ﴿ صلیت باصحابک وانت جنب ﴾ ولې اوفرمائیلو، ددې جواب دا کیدې شی چه کیدې شی د رسول اللهﷺ هغوی ته دا فرمائیل امتحانا وی چه اوګوری څه جواب ورکوی پس د هغوی په جواب باندې رسول اللهﷺ مسکې شو.

د دې حدیث نه یو مسئله بله معلومه شوه یعنی امامة المتیمم للمتوضئین کوم چه د ائمة اربعه په نزد جائز دې خو د امام مالکؒ په نزد په دې کښې کراهت دې، خو د امام محمدؒ په نزد جائز نه دې.

[٣٣٥] () حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ ابْنِ لَهِيعَةَ وَعَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ أَبِي أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ مَوْلَى عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ كَانَ عَلَى سَرِيَّةٍ، وَذَكَرَ الْحَدِيثَ نَحْوَهُ، قَالَ: فَغَسَلَ مَغَابِنَهُ وَتَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ صَلَّى بِهِمْ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرِ التَّيَمُّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَرَوَى هَذِهِ الْقِصَّةَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، قَالَ فِيهِ: فَتَيَمَّمَ.

**ترجمه**: د ابو قیس نه روایت دې چه عمرو بن العاص مشر وو په یوې سریه باندې، ذکرېې کړو حدیث په مثل د هغې، هغه اووئیل: وئې وینځل خپل مغابن (یعنې هغه ځایونه چه رسیدل ورته په اسانۍ نه کیګی) او اودس ئې اوکړو پشان د اودس د مانځه، بیا ئې مونځ اوکړو دوی ته. نو ذکرېې کړو پشان دهغې او ذکر ئې نه کړو تیمم. وئیلی دي ابوداود: او نقل کړې ده دا قصه د اوزاعي نه او هغه د حسان بن عطیة نه هغه وئیلی دي په هغې کې: (فتیمم) تیمم ئې اوکړو.

**تشریح**: ٢: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ الخ ﴾ دا د حدیث سابق دویم طریق دې، په تیر سند کښې د یزید بن ابی حبیب نه روایت کونکې یحیی بن ایوب دې او په دې کښې عمرو بن الحارث.

﴿ قوله فَغَسَلَ مَغَابِنَهُ وَتَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ ﴾ په دې دواړو روایتونو کښې ډیر فرق دې، په اول روایت کښې دا وو چه هغوی تیمم کولو سره مونځ ورکړو او په دې دویم کښې د تیمم ذکر نشته چه هغوی غسل مغابن (یعنی استنجاء بالماء) او اودس اوکړو، دا ډیره د اشکال خبره ده ځکه چه تیمم خو د جنابت دپاره کافی کیدې شی خو اودس د غسل قائم مقام نه شی کیدې دا د چا مذهب هم نه دې، بهر حال په دې دواړو روایتونو کښې اختلاف پیدا شو، امام بخاری رحمه الله د ذکر تیمم والا روایت ته ترجیح ورکړې ده او هم هغه ئې په بخاری کښې تعلیقا اخستلې دې، امام بیهقی رحمه الله فرمائی ﴿ یحتمل انه جمعهما ﴾ یعنی احتمال دې چه د غسل مغابن سره به ئې اودس او تیمم دواړه کړې وی امام نووی رحمه الله فرمائی چه هم دا توجیه صحیح او متعین ده او د امام ابوداؤد رحمه الله میلان د امام بخاری رحمه الله د رائې طرف ته معلومیږی ځکه چه هغوی وړاندې تلو سره ذکر د تیمم لره د حسان به عطیه په طریق سره موئد کړې دې، مغابن وائی مواضع وسخ وعرق ته یعنی د بدن هغه حصې چرته چه د ژور والی او جوړ کیدو د وجې نه خیرې جمع شوې وی لکه ابطین او اصول فخذین، دلته تري نه اصول فخذین مراد دی او دهغې نه ګیر چاپیره هم په دې وجه مونږ ددې ترجمة په استنجاء سره کړې ده.

## بَابٌ فِي الْمَجْرُوحِ يَتَيَمَّمُ
### باب دې په بیان د زخمي کې چې تیمم کوي

دلته درې نسخې دی زمونږ په نسخه کښې مجروح دې په یو نسخه کښې المعذور دې او په یوه کښې المجدور دې، یعنی هغه سړې چه په هغه باندې جدری وی، جدری وائی چیچک

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٧٥٠) (صحیح)

ته په ټول بدن باندې ورې ورې دانې راوخيژي، قيل اول من عذب به قوم فرعون.

[۳۳۶]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ خُرَيْقٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: خَرَجْنَا فِي سَفَرٍ فَأَصَابَ رَجُلًا مِنَّا حَجَرٌ فَشَجَّهُ فِي رَأْسِهِ ثُمَّ احْتَلَمَ، فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ، فَقَالَ: هَلْ تَجِدُونَ لِي رُخْصَةً فِي التَّيَمُّمِ؟ فَقَالُوا: مَا نَجِدُ لَكَ رُخْصَةً وَأَنْتَ تَقْدِرُ عَلَى الْمَاءِ، فَاغْتَسَلَ فَمَاتَ. فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُخْبِرَ بِذَلِكَ، فَقَالَ: "قَتَلُوهُ قَتَلَهُمُ اللهُ، أَلَا سَأَلُوا إِذْ لَمْ يَعْلَمُوا، فَإِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ، إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيهِ أَنْ يَتَيَمَّمَ وَيَعْصِرَ أَوْ يَعْصِبَ شَكَّ مُوسَى عَلَى جُرْحِهِ خِرْقَةً ثُمَّ يَمْسَحَ عَلَيْهَا وَيَغْسِلَ سَائِرَ جَسَدِهِ".

**ترجمه**: د جابر نه روايت دې هغه وائي: چه مونږ ووتلو په يو سفر کښې، پس ورسېده يو سړي ته زمونږ نه تېږه نو هغه ئې زخمي کړو په سر کښې، بيا ورته احتلام اوشو نو تپوس ئې اوکړو د خپلو ملګرو نه وئې وئيل: ايا تاسو بياموځئ زما لپاره اجازت په تيمم کښې؟ هغوی اووئيل: نه بياموځو مونږ ستا لپاره رخصت او ته قدرت لرې په اوبو باندې نو غسل ئې اوکړو نو مړ شو، هرکله چه مونږ راغلو نبي ﷺ ته خبر ورکړی شو په دغې باندې، هغه وفرمايل: دوی وژلی دی الله دې دوی مړه کړې ولې نه وه چه دوی تپوس کړی وی کله چه دوی نه پوهېدل، بېشکه علاج د جهل تپوس کول دي، بېشکه کافي وو د هغه لپاره چه تيمم اوکړي، او نچوړ کړی ئې وی، (او يا يې تړلې وی، شک کړی دی موسی) په خپل زخم باندې کپړه، بيا ئې مسح کړې وه په هغې او وينځلی ئې وی ټول بدن.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَنْطَاكِيُّ الخ (كذا فى نسخة مكتبة الشاملة) ﴾ مضمون حديث دا دې چه جابر ؓ فرمائي مونږ په يو سفر کښې وو زمونږ د يو ملګری په سر باندې کاڼړې راغلو او هغه زخمي شو، بيا اتفاقا هغه ته احتلام هم راغلو، دې صحابی د خپلو ملګرو نه معلومه کړه چه آيا زما دپاره د تيمم ګنجائش شته؟ هغوی اووئيل اوبه موجود دی او دهغې په استعمال باندې ئې قدرت هم شته لهذا هيڅ ګنجائش نشته پس دې صحابی غسل اوکړو چه په هغې سره ئې دماغو ته دننه اوبه لاړې او وفات شو، په واپسئ کښې رسول الله ﷺ ته د هغوی خبر ورکړې شو په دې باندې رسول الله ﷺ هغه خلقو باندې د سختې ناراضتيا اظهار اوفرمائيلو او وې فرمائيل ﴿ قَتَلُوهُ قَتَلَهُمُ اللهُ ﴾ هم دوی هغه سړې او وژلو دوی دې تباه شی، په دې کښې د هلاکت نسبت خلقو ته شوې دې ځکه چه په ظاهره هم دا خلق ددې صحابی د مرګ سبب جوړ شوې وو.

﴿ قوله فَإِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ ﴾ بېشکه د عاجز او ناخبره شفاء د اهل علم نه معلومول دی، د عي معنی د عدم قدرت على الكلام ده، دلته ترې نه مراد عدم علم دې ځکه چه وينا هغه له پکار ده چاته چه څه معلوم وی.

په بذل کښې ليکلې شوې دی ددې حديث نه معلومه شوه چه که د مفتی خطاء او غلطې فتوې ورکولو د وجې نه څوک سړې هلاک شی نو په هغې کښې قصاص يا ديت نشته، حضرت شيخ په حاشية د بذل کښې ابن الصلاح محدث نه نقل کړی دی چه که

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۴۱۳) (حسن)

مستفتي د يو سړي په فتوی باندې يو څيز هلاک کړي او بيا ورته روستو د فتوی خطاء کيدل معلوم شي نو په دې صورت کښې به مفتی ضامن وی.[1] په دې شرط چه هغه مفتی د فتوی اهل وی، ګينې ضمان پرې نشته ځکه چه په دې دويم صورت کښې تقصير د مستفتي د طرف نه دې ابن رسلان وائی چه کوم سړې په منصب د افتاء باندې قائم وی او په هغې کښې شهرت يافته وی نو په دې صورت کښې د مستفتي تقصير نشته.

﴿ قوله إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيهِ أَنْ يَتَيَمَّمَ وَيَعْصِرَ أَوْ يَعْصِبَ ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل دې سړي له داسې کول پکار وو چه تيمم ئې کړې وې او په زخمی سر باندې ئې پټئ تړلو سره ئې په هغې مسح کړې وې او په باقی بدن باندې ئې غسل کړې وې.

## په مسئله ثابته بالحديث کښې اختلاف د علماء کرامو :

د دې حديث نه معلوميږی چه که يو سړی ته د غسل حاجت وی او د هغه د بدن بعض حصه زخمی وی نو هغه زخمی حصه دې نه وينځی بلکه په دې نيت دې تيمم کوی او د بدن صحيح حصه دې په اوبو سره وينځی هم دا مذهب دې د امام شافعی او امام احمد ﷫ لکه چه په مغنی وغيره کتب فقهيه کښې دې، او احناف او مالکيان فرمائی چه د بدن د اکثری حصې په اعتبار وی، که هغه جريح وی نو صرف تيمم دې اوکړی او که د بدن اکثره حصه صحيح ده نو د هغه حصې دې غسل اوکړی او د باقی مسح، غسل او تيمم به نه شی جمع کولې او که هغه جريح او صحيح دواړه حصې برابر وی نو ددې تساوی په صورت کښې زمونږ په نزد دواړه روايتونه دی، يو دا چه صرف تيمم دې اوکړی دويم دا چه د صحيح غسل او د جريح مسح، او په کتب مالکيه دسوقی وغيره کښې په دې مسئله کښې ډير تفصيل ليکلې شوې دې، او دا ئې هم ليکلې دی چه په کومو صورتونو کښې چه د تيمم حکم دې په هغې کښې که د ټول بدن غسل اوکړی نو کافی به شی، خو که د صحيح غسل او د جريح مسح اوکړی نو دا به دتيمم په ځائې نه کافی کيږی او بهر حال جمع بين الغسل والتيمم د هغوی په نزد نشته.

## د احنافو د طرف نه د حديث جواب :

په دې حديث کښې چونکه جمع بين الغسل والتيمم مذکور ده په دې وجه دا د احنافو او مالکيانو خلاف شو، جواب دا دې چه ددې حديث اګرچه ابن السکن تصحيح کړې ده خو

---

[1] په صحيح بخاری کتاب الاحکام کښې د ابن عمر ﷠ يو حديث دې چه دهغې خلاصه دا ده چه خالد بن وليد ﷛ بعض قيديان اجتهاداً په غلطئ سره قتل کړي وو، چه کله رسول الله ﷺ ته ددې علم اوشو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اللهم اني ابراء اليك مما صنع خالد بن الوليد ﴾ په دې باندې شارحين ليکی ﴿ وانما لم يعاقبه لانه كان مجتهدا واتفقوا علي ان القاضي اذا قضي بجور او بخلاف ما عليه اهل العلم فحكمه مردود، فان كان علي وجه الاجتهاد واخطاء كما صنع خالد فالاثم ساقط والضمان لازم فان كان الحكم في قتل فالدية في بيت المال عند ابي حنيفة واحمد وعلي عاقلته عند الشافعي وابي يوسف ومحمد ﴾ خو په دې دواړو قصو کښې د مباشر او متسبب فرق دې، د ابوداؤد په روايت کښې بيانونکي متسبب وو، او خالد ﷛ مباشر ګويا په بعض ځايونو کښې اګر که د دواړو حکم يو کيږی، کما فی الأشباه والنظائر كما في مسئلة قطاع الطريق ففي الكنز وغير المباشر كالمباشر، والله تعالي اعلم)

دارقطني او بيهقي ئې تضعيف کړې دې بيهقي په متعدد طرقو سره د تخريج باوجود ددې تضعيف کړې دې او امام نووي رحمه الله خو ليکلي دي اتفقوا على ضعفه، اصل کښې ددې حديث په متن کښې د راويانو اختلاف او اضطراب دې بعض راويانو په دې کښې جمع بين الغسل والتيمم ذکر کړې دې، خو اول خو زبير بن خريق ضعيف دې، دويم د اچه د عطاء نورو شاګردانو د هغوی مخالفت کړې دې پس اوزاعي دا حديث د عطاء نه بلاغا روايت کړې دی او په دی کښې صرف د غسل ذکر دې د تيمم نه دې لکه چه د باب په وړاندې روايت کښې راځي، ددې جواب يو بل هم کيدې شي کوم چه حضرت په بذل کښې ذکر فرمائيلې دې هغه دا چه ددې حديث تاويل دې اوکړې شي چه په ﴿ ان يتيمم ويعصر ﴾ کښې دې واؤ په معنی د او واخستلې شي، او په دې صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه رسول الله ﷺ د شخص مذکور دپاره د حصول طهارت دوه طريقې ذکر فرمائيلې دی يو دا چه صرف تيمم اوکړی او دويم دا چه په سر باندې پټۍ تړلو نه پس دې په هغې باندې مسح اوکړی او باقی بدن دې اووينځی يعني د رسول الله ﷺ مراد دا نه وو چه دواړه دې جمع کړې شی بلکه مراد دا دې چه کله دا قسم صورت پيښ شی نو يا خو دې صرف تيمم اوکړې شی يا صرف غسل او مسح، چه د احنافو او مالکيانو په نزد ده چه په يو صورت کښې تيمم او په يو صورت کښې غسل.

## ايا حديث الباب باندې مصنف رحمه الله سکوت فرمائيلې دې؟

واضحه دې وی چه دا حديث کوم چه د شوافعو موافق راځي امام نووي رحمه الله ددې ضعف تسليم کړې دې خو شيخ ابن حجر مکی شافعي رحمه الله ددې حديث په باره کښې فرمائي چه امام ابوداؤد رحمه الله په دې باندې سکوت فرمائيلې دې لهذا دا حجت دې، ملا علي قاري رحمه الله فرمائي چه د امام ابوداؤد رحمه الله سکوت د نورو محدثينو د تضعيف صريح مقابله نه شی کولې، احقر وائي چه مونږ دا نه تسليموو چه امام ابوداؤد رحمه الله په دې باندې سکوت کړې دې ځکه چه مصنف رحمه الله په دې کښې اختلاف د روايت ذکر کړې دې، اول ئې په دې سند سره روايت کړې دې ﴿ عن الزبير بن خريق عن عطاء عن جابر ﴾ او په دې کښې جمع بين الغسل والتيمم مذکور ده، بيا مصنف رحمه الله دا ذکر کړې دې ﴿ عن الاوزاعي انه بلغه عن عطاء بن ابی رباح عن ابن عباس رضي الله عنهما ﴾ په دې کښې جمع بين الغسل والتيمم نه دې بلکه صرف غسل دې لهذا په دې حديث کښې په ظاهره سندا او متنا دواړو طريقو سره اضطراب شو، نو اوس دا وينا څنګه صحيح شوه چه مصنف رحمه الله په دې باندې سکوت فرمائيلې دې، د امام ابوداؤد رحمه الله عموما هغه طرز نه دې کوم چه د امام ترمذي رحمه الله دې چه صراحة په روايت باندې نقد اوکړی بلکه د مصنف رحمه الله صنيع دا بيانوی چه هغوی په روايت باندې نقد کوی يا سکوت ! ښه ځان پوهه کړئ.

......

[۳۳۷]() حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، أَخْبَرَنِي الْأَوْزَاعِيُّ، أَنَّهُ بَلَغَهُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَصَابَ رَجُلًا جُرْحٌ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ احْتَلَمَ، فَأُمِرَ بِالِاغْتِسَالِ فَاغْتَسَلَ فَمَاتَ، فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: قَتَلُوهُ قَتَلَهُمُ اللهُ، أَلَمْ يَكُنْ شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالَ".

**ترجمه:** د عطاء بن ابي رباح نه روايت دي، بېشکه هغه اوريدلي دي د عبد الله بن عباس نه هغه وئيلي دي: ورسېدو يو سړي ته زخم په زمانه د رسول الله ﷺ کښې، بيا ورته احتلام اوشو نو امر ورته اوشو په غسل کولو، نو غسل ئي اوکړو مړ شو، نو ورسېده دغه خبره رسول الله ﷺ ته، هغه وفرمايل: دوی وژلی دی هغه الله دي دوی مړه کړي ايا نه وو علاج د جهل تپوس کول.

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ – قوله فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللّٰهِ –صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ په دې طريق کښې صرف د واقعې ذکر دې او دا نه دی وئيلې شوې چه رسول الله ﷺ هغوی ته د څه حکم اوفرمائيلو د غسل يا د تيمم يا د هر دواړو، خو په بذل کښې ليکلې شوې دی چه هم دا حديث په ابن ماجه کښې هم دې او په هغې کښې يو زيادة دې کوم چه په ابوداؤد کښې نشته ﴿ قال عطاء بلغنا ان رسول الله ﷺ قال لو غسل جسده وترک راسه وحيث اصابه الجراحة ﴾ اوګورئ په دې حديث کښې صرف د غسل ذکر دې، جمع بين الغسل والتيمم نه دې او هسې هم جمع بين الغسل والتيمم خلاف قياس کيدل ظاهر دی ځکه چه په دې کښې د نائب او اصل دواړو اجتماع ده.

## بَابٌ فِي الْمُتَيَمِّمِ يَجِدُ الْمَاءَ بَعْدَ مَا يُصَلِّي فِي الْوَقْتِ

### باب دې په بيان د تيمم کونکي کې چې اوبه پيدا کړي وروسته د هغې نه چې مونځ يې کړی دی په وقت کې

يعني يو سړی د عدم وجدان ماء په وجه باندې تيمم کولو سره مونځ اوکړو ددې نه پس د مانځه په وخت کښې اوبه ملاؤ شوې نو آيا په دې صورت کښې د مانځه اعادة شته.؟ په اتفاق د ائمة اربعه اعادة نشته خو بعض تابعين لکه د عطاء، طاؤس او زهری ﷭ وغيرهم په نزد اعادة واجب ده، او که اوبه ورته حاصلې شی د خروج وخت نه پس نو بيا بغير د خلاف نه اعادة واجب نه ده.

### د مسئلة الباب ډير صورتونه او د هر يو حکم:

دلته دوه صورتونه نور دی، يو دا چه د تيمم نه پس د مونځ شروع کولو نه مخکښې اوبه ملاؤ شی او دويم دا چه د مانځه په وخت کښې اوبه ملاؤ شی، په اول صورت کښې په اتفاق د ائمة اربعه او جمهور علماء تيمم باطليږی، په اودس سره مونځ کول ضروری دی خو د داؤد ظاهری او ابو سلمة بن عبد الرحمن ﷫ په دې کښې اختلاف دې هغوی وائی چه د

(): أخرجه ابن ماجه موصولاً برقم (۵۷۲)، (تحفة الأشراف: ۵۹۷۲)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ۶۹ (۷۷۹) (حسن)

اودس حاجت نشته هم په دې تیمم سره دې مونځ اوکړي ځکه چه تیمم د هغې دصحیح کیدو د شرطونو موندلې کیدو نه پس کړې شوې وو کوم چه یو عمل دې او ابطال د عمل جائز نه دې، قال تعالی ﴿ لا تبطلوا اعمالکم الایة ﴾ او دویم صورت یعنی چه کله د مانځه په وخت کښې اوبه ملاؤ شي نو دا مسئله مختلف فیه ده، د امام ابوحنیفه او احمد په نزد به په دې وخت کښې تیمم باطل شي. [1] د امام شافعي او امام مالک په نزد به نه باطلیږي، د پورته ذکر شوی تفصیل نه معلومه شوه چه ددې مسئلې ټول څلور صورتونه دی بعض اجماعی او بعض مختلف فیه.

[٣٣٨] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ الْمُسَيَّبِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نَافِعٍ، عَنِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ بَكْرِ بْنِ سَوَادَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "خَرَجَ رَجُلَانِ فِي سَفَرٍ فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ وَلَيْسَ مَعَهُمَا مَاءٌ فَتَيَمَّمَا صَعِيدًا طَيِّبًا فَصَلَّيَا، ثُمَّ وَجَدَا الْمَاءَ فِي الْوَقْتِ فَأَعَادَ أَحَدُهُمَا الصَّلَاةَ وَالْوُضُوءَ وَلَمْ يُعِدِ الْآخَرُ، ثُمَّ أَتَيَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَا ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ لِلَّذِي لَمْ يُعِدْ: أَصَبْتَ السُّنَّةَ وَأَجْزَأَتْكَ صَلَاتُكَ، وَقَالَ لِلَّذِي تَوَضَّأَ وَأَعَادَ: لَكَ الْأَجْرُ مَرَّتَيْنِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد وَغَيْرُ ابْنِ نَافِعٍ: يَرْوِيهِ عَنِ اللَّيْثِ، عَنْ عُمَيْرَةَ بْنِ أَبِي نَاجِيَةَ، عَنْ بَكْرِ بْنِ سَوَادَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَذِكْرُ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: لَيْسَ بِمَحْفُوظٍ وَهُوَ مُرْسَلٌ.

**ترجمه**: د ابو سعید الخدري رضی الله عنه نه روایت دې، هغه وئیلی دی: ووتل دوه سړي په یو سفر کښې، نو مونځ حاضر شو او نه وې د دوارو سره اوبه، نو دوارو تیمم اوکړو په پاکه خاوره باندې او مونځ ئې اوکړو، بیا ئې اوبه پیدا کړې په وقت کښې، نو واپس کړو یو د دوارو نه مونځ او اودس، او اعاده اونه کړه بل، بیا دواړه راغلل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته نو دوارو ذکر کړه دغه هغه ته، وئې وئیل هغه کس ته چه اعاده ئې نه وه کړې: ته ورسېدې سنت ته، او جائز دی ستا لپاره ستا مونځ، او وئې وئیل هغه کس ته چه اودس او اعاده ئې کړې وه: ستا لپاره اجر دی دوه ځل. وئیلی دي ابوداود: او غیر د ابن نافع نه روایت کوي دهغې د لیث نه او هغه د عمیره بن ابي ناجیه نه، او هغه د بکر بن سوادة نه او هغه د عطاء بن یسار نه، او هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه. وئیلی دي ابوداود: او ذکر د ابو سعید الخدري په دي حدیث کښې محفوظ نه دی او هغه مرسل دی.

**تشریح**: ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجَ رَجُلَانِ الخ ﴾ په دې حدیث کښې هم هغه صورت مذکور دې کوم چه په ترجمة الباب کښې دې چه دوه سړو په یو سفر کښې د اوبو د

---

[1] په دې صورت کښې د صحة صلوة او عدم صحة په اعتبار سره د صاحبینو او امام صاحب ترمینځه اختلاف دې، امام صاحب فرمائی چه د سلام اړولو نه مخکښې که داسې سړی ته اوبه ملاؤ شي نو د هغه مونځ به باطل شي، او د صاحبینو په نزد به د قعود قدر التشهد نه پس د اوبو ملاویدو نه پس به مونځ نه باطلیږي او دا مسئله د هغه مسائل اثناء عشریه نه ده په کوم کښې چه د امام صاحب او صاحبینو اختلاف مشهور دې.

[2] ): سنن النسائي/الغسل والتيمم ٢٧ (٤٣٣) (تحفة الأشراف: ٤١٧٦، ١٩٠٨٩، ١٦٥٩٩)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ٦٤ (٧٧١) (صحيح)

نه ملاویدو د وجې نه تیمم کولو سره مونځ ادا کړو، بیا په وخت کښې دننه هغوی ته اوبه ملاؤ شو، یو په هغوی کښې اودس کولو سره د مانځه اعاده اوکړه او دویم اونکړه، بیا د سفر نه په واپسئ باندې هغوی رسول اللهﷺ ته ددې تذکره اوکړه، ﴿ فَقَالَ لِلَّذِي لَمْ يُعِدْ أَصَبْتَ السُّنَّةَ ﴾ یعنی رسول اللهﷺ هغه سړی ته چا چه د مانځه اعادة نه وه کړې اوفرمائیل چه تا د طریقه مشروعه مطابق کار اوکړو، او دویم سړی ته رسول اللهﷺ اوفرمائیل ستا دپاره دوچند ثواب دې، د تیمم په ذریعه دې فرض ادا شو، او دویم مونځ کوم چه دې په اودس سره اوکړو هغه نفل شو، دا حدیث د ائمة اربعه موافق او د عطاء وغیره خلاف دې.

﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَغَيْرُ ابْنِ نَافِعٍ يَرْوِيهِ الخ ﴾ مصنف‌رحمه‌الله اختلاف فی السند بیانوی هغه دا چه د لیث بعضو شاګردانو دا حدیث د لیث نه مرسلا او بعضو مسندا ذکر کړې دې دویم اختلاف دا چه ابن نافع د لیث او بکر بن سواده ترمینځه واسطه نه ده ذکر کړې او بعض راویانو په مینځ کښې د عمیرة بن ناجیة واسطه ذکر کړې ده، ددې بعض تعیین په بذل کښې په یحیی بن بکیر او عبدالله بن مبارک رحمهم‌الله سره کړې شوې ده، د مصنف‌رحمه‌الله رائې دا ده چه ددې حدیث مسندا کیدل صحیح نه دی بلکه مرسلا صحیح دې.

[۳۳۹](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ بَكْرِ بْنِ سَوَادَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللهِ مَوْلَى إِسْمَاعِيلَ بْنِ عُبَيْدٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** د عطاء بن یسار نه روایت دې، بېشکه دوه سړي د اصحابو د رسول اللهﷺ نه په معنی د هغې سره.

**تشریح:** د ابواب التیمم نه دا آخری باب وو، د تیمم باب پوره شو. فالحمد لله.

## بَابٌ فِي الْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### باب دې په بیان د غسل کې په ورځ د جمعه کې

**د باب سره متعلق ابحاث ستة :**

دلته څو خبرو باندې ځان پوهه کړئ!

۱: المناسبة بما قبله، ۲: التسمية ووجهه،

۳: حکم الغسل، ۴: هل الغسل لليوم او للصلوة،

۵: هل الغسل للجنابة يكفى غسل الجمعة، ۶: هل الغسل يختص بمن يحضر الجمعة ام يعم.

**بحث اول : المناسبة بما قبله**

مصنف‌رحمه‌الله د طهارة صغری او کبری اودس او غسل او د فرض غسل او د هغه د نائب یعنی تیمم نه فارغ شو نو اوس طهارت مسنونه بیانوی ځکه چه د سنت درجه خو د فرض نه پس راځی، امام بخاری‌رحمه‌الله د جمعې غسل په کتاب الطهارة کښې نه بلکه د کتاب الصلوة د لاندې په کتاب الجمعه کښې دننه بیان فرمائیلې دې، په سنن ابوداؤد کښې کتاب الجمعة

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۴۱۷۶، ۱۹۰۸۹) (صحيح)

اګر که مستقلا راځی، خو مصنف رحمه الله غسل جمعة هلته نه دی بیان فرمائیلې هلته ئې د جمعې نور احکام مسائل او فضائل بیان کړې دی، د طهارت د مناسبت د وجې نه غسل جمعة مصنف رحمه الله په کتاب الطهارة کښې بیانوی او په دې کښې هغوی د غسل مسنونه صرف دوه قسمونه بیان کړی دی یو غسل جمعة او دویم غسل عند الاسلام، ددې نه علاوه ئې د غسل مسنون بل څۀ قسم دلته نه دې ذکر کړې، فقهاء کرامو غسل عیدین ته هم مستحب وئیلې دې، خو د غسل عیدین روایات ټول ضعیف دی، په صحاح کښې صرف په ابن ماجة کښې موجود دی، او په موطاء کښې حدیث د ابن عمر رضي الله عنهما موقوفا ﴿ انه كان يغتسل يوم الفطر ﴾ مروی دې.

## بحث ثاني : التسمية ووجهه،

په لفظ جمعة کښې دوه لغتونه مشهور دی اول په ضمې د میم سره وهو الافصح كما فى التنزيل العزيز، دویم بسکون المیم ځکه چه قاعده دا ده چه هر ذی ضمتین کښې ثانی ساکن لوستلې شې او دریم قول جمعه په فتحې د میم سره دې، په دې صورت کښې به دا په معنی د الجامع وی او په رومبو دواړو صورتونو کښې د المجموع فیه په معنی کښې دې، په دې کښې اختلاف دې چه دا اسلامی نوم دې یا جاهلی، په دې کښې دواړه اقوال دی بعض وائی هم دا نوم د مخکښې نه راروان دې، پس د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې ﴿ انمى سمى به لان الله تعالى جمع فيه خلق ادم عليه السلام ﴾ یعنی د ادم عليه السلام د تخلیق دپاره الله پاک هم په دې ورځ باندې ماده راجمع کړې وه هم په دې وجه ورته جمعه وائی، او وئیلې شی چه دا اسلامی نوم دې په جاهلیت کښې به ئې دې ته عروبه وئیله، او په اسلام کښې ورته جمعه په دې وجه وائی چه خلق په دې ورځ کښې د مانځه دپاره زیات جمع کیږی، بعض وائی چه ددې ورځې دا نوم د انصارو د طرف نه دې ځکه چه د جمعې مونځ د ټولو نه مخکښې نزول جمعة او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د هجرت نه مخکښې هم انصارو په مدینه طیبه کښې لوستلې وو لکه چه په کتاب کښې په باب الجمعة فى القرى کښې په یو روایت کښې ددې تصریح ده چه اسعد بن زراره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د هجرت نه مخکښې په مدینه منوره کښې ددې ابتداء اوکړه، بیا باقاعده د الله پاک د طرف نه مشروع شو، او ددې د وجه تسمیه په باره کښې دا هم وئیلې شوې دی چه د جاهلیت په زمانه کښې په دې ورځ قریش قبیله د قصئ د طرف نه دار الندوة کښې راجمع کیدل، او وئیلې شوې دی چه کعب بن لوئی په دې ورځ باندې خپل قوم لره جمع کولو سره وعظ او تذکیر او تعظیم حرم ته ترغیب ورکولو، او دا هم چه د هغه د نسل نه به یو نبی مبعوث کیږی.

## بحث ثالث : حكم الغسل

غسل د جمعې د اهل ظواهرو په نزد واجب دې او هم دا د امام مالک او امام احمد نه هم یو روایت دې خو قول راجح د دوی دواړو په نزد هم عدم وجوب دې، ابن القیم رحمه الله په دې کښې د حنابله درې روایتونه ذکر کړې دی، وجوب هم دې ته هغوی ترجیح ورکړې ده، عدم وجوب او دریم روایت دا چه که بدن یا جامه کښې رائحة کریهة ده نو واجب دې ګنې

سنت، او د احنافو او شوافعو په نزد سنت دي.

**بحث رابع : هل الغسل لليوم او للصلوة**

دا غسل د جمهور علماء کرامو په نزد چه په کښې ائمة اربعة هم دي د مانځه دپاره دې، او د امام محمد، حسن بن زياد او د داؤد ظاهري رحمهم الله په نزد د ورځې دپاره دې، لشرافة هذا اليوم، بعض علماء کرامو په دې باندې اجماع نقل کړې ده چه غسل پس د صلوة جمعې نه معتبر نه دې خو نقل اجماع صحيح نه ده ځکه چه د داؤد ظاهری په نزد غسل قبيل مغرب هم معتبر دې، علامه شامی رحمه الله ليکی صحيح دا ده چه دا غسل د مانځه دپاره دې او هم دا ظاهر الرواية او د امام ابويوسف رحمه الله قول دې په خلاف د حسن بن زياد او امام محمد، بيا وړاندې تلو سره هغوی ليکی چه ثمرة د اختلاف به د هغه سړی په حق کښې ظاهريږی چه په هغه باندې د جمعې مونځ نشته او هم دغه شان د هغه سړی په باره کښې چاته چه د غسل نه پس حدث رسيدلې وی او هغه اودس کولو سره مونځ کړې وی د حسن بن زياد په نزد به ده ته فضيلت حاصل شی او د امام ابويوسف رحمه الله په نزد نه.

**بحث خامس : هل الغسل للجنابة يکفی غسل الجمعة،**

علامه شعرانی رحمه الله په الميزان الکبری کښې د ائمة ثلاثه مسلک دا نقل کړې دې چه غسل جنابت د غسل جمعة دپاره کافی کيږی، او هغوی په دې کښې د امام مالک رحمه الله خلاف نقل کړې دې خو حضرت شيخ رحمه الله ليکلې دی چه د امام مالک رحمه الله په نزد هم کافی دې، په دې شرط چه دواړه نيتونه اوکړی لکه چه په مدونة کښې ددې تصريح ده، علامه عينی رحمه الله د احنافو مذهب مطلقا کفايت نقل کړې دې که د غسل نيت کوی او که نه کوی او د باقی ائمة ثلاث په نزد د کفايت نيت ضروری دې.

**بحث سادس : هل الغسل يختص بمن يحضر الجمعة ام يعم**

د جمهور علماء کرامو او ائمة اربعه په نزد دا غسل خاص دې د هغه سړی دپاره کوم چه د جمعې د مانځه دپاره راشی ځکه چه دا غسل دې د مانځه دپاره، لا لليوم، علامه شعرانی رحمه الله د ائمة اربعه مذهب هم دا ليکلې دې او کوم علماء کرام چه دا وائی چه دا غسل لليوم دې د هغوی په نزد به دا حکم عام وی، امام بخاری رحمه الله په دې مسئله کښې مستقل باب قائم کړې دې، ﴿ باب علی من لا يشهد الجمعة غسل من النساء والصبيان ﴾ حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی چه په کوم حديث کښې دادی ﴿ حق علی کل مسلم ان يغتسل ﴾ ددې تقاضا عموم ده، او په کوم روايت کښې چه دی ﴿ اذا اتی احدکم الجمعة فليغتسل ﴾ ددې تقاضا د خصوصيت ده.

**د حضرت شيخ په رائې کښې اغتسالات ثلاثه (يعنی تطبيق بين الروايتين):**

دا مخکښې راغلی دی چه په دې غسل کښې دا اختلاف واقع کيږی چه دا د يوم دپاره دې يا د صلوة دپاره او ددې اختلاف علماء منشاء اختلاف الفاظ روايات دې د بعض رواياتو نه معلوميږی چه دا غسل د يوم جمعة دپاره دی او د بعض روايات نه صلوة جمعة دپاره کيدل معلوميږی او په بعض رواياتو کښې نه د جمعې قيد دې نه د مانځه بلکه فی کل سبعة

ايام دي پس په صحيحين كښې په روايت د ابوهريره رضي الله عنه كښې راغلي دي ﴿ حق الله على كل مسلم ان يغتسل فى كل سبعة ايام ﴾ زمونږ د حضرت شيخ رحمه الله دلته يو بيله رائې ده هغه دا چه د ټولو رواياتو مخې ته رډلو نه معلوميږي چه دا درې غسلونه دي يو هغه چه سنت دې او د بعض علماء كرامو په نزد واجب او دوه ددې نه علاوه كوم چه مندوب او مستحب دي، پس حضرت فرمائي درې غسلونه په داسې طريقه دي، اول غسل اسبوع يعنى په هفته كښې په څۀ ورځ باندې يو ځل غسل كول دا غسل د نظافة مطلقة د قبيل نه دې، او دا د هر مسلمان په حق كښې دې كه سړې وي كه ښځه كه د جمعې مونځ په هغه باندې واجب وي او كه نه وي او ددې غسل ماخذ حضرت فرمائي د صحيحين په حديث كښې مذكور دې كوم چه په لفظ د سبعة ايام مروى دې د جمعې د ورځې قيد په هغې كښې نشته هم دغه شان د بعض فقهاء كرامو په كلام كښې هم ددې تصريح ملاويږي، پس علامه طحاوى او صاحب د در مختار تقليم اظفار، حلق عانة او غسل فى كل اسبوع په ذريعه نظافت حاصلول مستحباتو كښې ليكلې دي، دويم غسل د يوم الجمعة ددې تعلق خاص يوم الجمعة سره دې، كه د صلوٰة جمعة نه مخكښې وي يا روستو بهر صورت به ددې تحقق اوشى د بعض رواياتو نه هم دا معلوميږي چه د جمعې د ورځې دپاره دې غسل اوكړې شى پس په صحيح ابن خزيمة كښې د ابوقتادة نه مرفوعا مروى دى ﴿ اغتسل يوم الجمعة كان فى طهارة الى الجمعة الاخرى ﴾ او د يوم جمعة د فضيلت تقاضا هم دا ده چه دهغې دپاره مستقل غسل كيدل پكار دى ځكه چه دې ورځې ته په حديث كښې سيد الايام وئيلې شى خو په دې دواړو قسمونو كښې تداخل كيدې شى كوم سړې چه د جمعې په ورځې غسل اوكړى هغه ته به د غسل جمعې سره سره د غسل اسبوع فضيلت هم حاصل شى، ثالث غسل صلوٰة الجمعة ددې تعلق صرف د هغه سړى سره دې كوم چه د جمعې دپاره حاضر شى، پس په ډيرو روايتونو كښې د حضور فى الصلوة قيد موجود دې، خو ددې قسم ثالث هم په قسمين اولين كښې تداخل كيدې شى، پس كوم سړې چه د ايام اسبوع نه يوم جمعة كښې صلوٰة الجمعة نه مخكښې غسل اوكړى هغه ته به ددې اغتسالات ثلاثه ثواب ملاويږي، دا مضمون حضرت شيخ په اوجز المسالك كښې ډير په توضيح او تفصيل سره په څو صفحاتو كښې ليكلې دي.

[۳۴۰](١) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، أَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ، عَنْ يَحْيَى، أَخْبَرَنَا أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ بَيْنَا هُوَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ، فَقَالَ عُمَرُ: أَتَحْتَبِسُونَ عَنِ الصَّلَاةِ؟ فَقَالَ الرَّجُلُ: مَا هُوَ إِلَّا أَنْ سَمِعْتُ النِّدَاءَ فَتَوَضَّأْتُ، فَقَالَ عُمَرُ: وَالْوُضُوءَ أَيْضًا، أَوَلَمْ تَسْمَعُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ".

**ترجمه**: ابو سلمة ته ابو هريره خبر وركړى دى، چه بېشكه عمر بن الخطاب خطبه وركوله په ورځ د جمعه كښې، ناڅاپه راداخل شو يو سړى نو اووئيل عمر: او تاسو بنديږئ د مانځه

(١): صحيح البخاري/الجمعة ٢ (٨٧٨)، ٥ (٨٨٢)، صحيح مسلم/الجمعة ١ (٨٤٥)، موطا امام مالك/النداء للصلاة ١(٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٦٦٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجمعة ٣ (٤٩٤)، سنن الدارمي/الصلاة ١٩٠ (١٥٨٠) (صحيح)

نه؟ نو اووئیل سړي: نه دی هغه مګر دا چه ما اوریدلي ده نداء (اذان) نو ما اودس اوکړو، نو اووئیل عمر: اودس هم، ایا تاسو نه دي اوریدلي د رسول الله ﷺ نه چه هغه ویل: کله چه راځي یو کس ستاسو نه جمعې ته نو غسل دې اوکړي.

**تشریح: قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ – قوله أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ بَيْنَا هُوَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِذْ دَخَلَ رَجُلٌ الخ ﴾

(**د رجل مصداق**): راتلونکي سړي سیدنا عثمان رضی الله عنه وو لکه چه د مسلم په روایت کښې دی نو عمر رضی الله عنه د خطبې په وخت کښې اودرولو سره په هغوی باندې نکیر اوفرمائیلو چه د جمعې د مانځه نه هم ایساریږي او ناوخته هم راځي، عثمان رضی الله عنه د معذرت په طور عرض اوکړو چه ما د آذان آواز اوریدلو سره اودس اوکړو او د مانځه دپاره حاضر شوم، (یعنی د آذان د آواز اوریدلو نه پس مې تاخیر اونکړو) نو په دې باندې عمر رضی الله عنه اوفرمائیل ﴿ والوضوء ایضا ﴾ ښه ! یو کمې تا دا هم اوکړو چه د غسل په ځائې دې صرف په اودس باندې اکتفاء اوکړه (یک نه شد دو شد) او د مسلم د روایت نه دا هم معلومیږي چه عمر رضی الله عنه نکیر په طریقه د تعریض فرمائیلي وو ﴿ ما بال رجال یتاخرون بعد النداء ﴾ په دې باندې عثمان رضی الله عنه په یا امیر المومنین خطاب کولو سره خپل عذر ظاهر اوفرمائیلو ﴿ انی شغلت الیوم فلم انقلب الی اهلی حتی سمعت النداء ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د عثمان رضی الله عنه نه ترک غسل او تاخیر د څه مصروفیت د وجې نه اتفاقا شوې وو.

### د واقعه عثمان رضی الله عنه نه د علماء کرامو استنباط:

په دې واقعه باندې امام نووی رحمه الله لیکی چه ددې نه معلومه شوه چه غسل جمعة واجب نه دې ځکه چه عثمان رضی الله عنه د سماع نداء نه پس په غسل باندې د مصروف کیدو په ځائې اودس کولو نه پس د مانځه طرف ته متوجه شو ګیني ظاهره ده چه غسل واجب وې نو د غسل فرمائیلو نه پس به د مانځه دپاره تلې او کوم علماء کرام چه د وجوب قائل دی هغوی هم ددې واقعې نه استدلال کوی چه د عمر رضی الله عنه علی رؤس الاشهاد په یو جلیل القدر صحابی باندې د خطبې په وخت کښې نکیر کول دا صرف د ترک مستحب دپاره نه ده د استحباب په صورت کښې نه د عمر رضی الله عنه نکیر کول مناسب وو نه د عثمان رضی الله عنه د عذر پیش کولو حاجت وو.

[۳۴۱] (^) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ بْنِ قَعْنَبٍ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ".

**ترجمه:** د ابو سعید الخدري رضی الله عنه نه روایت دې بېشکه رسول الله ﷺ وئیلی دی: غسل د جمعې ورځې واجب دی په هر محتلم

^): صحيح البخاري/الأذان ١٦١ (٨٥٨)، والجمعة ٢ (٨٧٩)، ١٢ (٨٩٥)، والشهادات ١٨ (٢٦٦٥)، صحيح مسلم/الجمعة ١ (٨٤٦)، سنن النسائي/الجمعة ٨ (١٣٧٨)، سنن ابن ماجه/الإقامة ٨٠ (١٠٨٩)، (تحفة الأشراف: ٤١٦١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجمعة ١ (٤)، مسند احمد (٣/٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٩٠ (١٥٧٨) (صحيح)

**تشریح**: ﴿ قوله: غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ ﴾ د وجوب نه مراد ثبوت او تاکد دي، د محتلم نه لازمي معنی د بالغ مراد ده.

[۳۴۲](١) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الرَّمْلِيُّ، أَخْبَرَنَا الْمُفَضَّلُ يَعْنِي ابْنَ فَضَالَةَ، عَنْ عَيَّاشِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ حَفْصَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ رَوَاحُ الْجُمُعَةِ، وَعَلَى كُلِّ مَنْ رَاحَ إِلَى الْجُمُعَةِ الْغُسْلُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِذَا اغْتَسَلَ الرَّجُلُ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ أَجْزَأَهُ مِنْ غُسْلِ الْجُمُعَةِ، وَإِنْ أَجْنَبَ.

**ترجمه**: د حفصې رضي الله عنها نه روايت دې، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه، هغه وئيلی دی: په هر محتلم (بالغ) باندې تلل دي جمعي ته، او په هر تلونکي باندې جمعي ته غسل دی. وئيلی دي ابوداود: کله چه غسل اوکړي سړی وروسته د ختلو د نمر نه نو روا دی کافي کېږي د هغه لپاره د غسل د جمعي د ورځي نه، اګر که جنب شي.

**تشریح**: قوله: قَالَ أَبُو دَاوُد: إِذَا اغْتَسَلَ الرَّجُلُ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ: يعنی که څوک د جمعي په ورځ د سحر نه پس غسل اوکړی نو دا غسل به د جمعي دپاره کافی وی اګرچه دا د جنابت غسل وی، دا مسئله په شروع کښې تيره شوې ده پنځم بحث هم دغه دی.

[۳۴۳](٢) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ الْهَمْدَانِيُّ. ح حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ. ح حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، وَهَذَا حَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ يَزِيدُ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ، فِي حَدِيثِهِمَا عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَأَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلَبِسَ مِنْ أَحْسَنِ ثِيَابِهِ وَمَسَّ مِنْ طِيبٍ إِنْ كَانَ عِنْدَهُ، ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَلَمْ يَتَخَطَّ أَعْنَاقَ النَّاسِ، ثُمَّ صَلَّى مَا كَتَبَ اللهُ لَهُ، ثُمَّ أَنْصَتَ إِذَا خَرَجَ إِمَامُهُ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ، كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ جُمُعَتِهِ الَّتِي قَبْلَهَا"، قَالَ: وَيَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ: وَزِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ، وَيَقُولُ: إِنَّ الْحَسَنَةَ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ سَلَمَةَ أَتَمُّ، وَلَمْ يَذْكُرْ حَمَّادٌ كَلَامَ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه**: د ابو سلمة بن عبد الرحمن نه روايت دی: وئيلی دي ابوداود: وئيلی دي يزيد او عبد العزيز په خپل حديث کښې، د ابو سلمة بن عبد الرحمن او د ابو امامة بن سهل نه هغوی دواړو د ابو سعيد الخدري او د ابو هريره نه، دواړو وئيلی دی: وئيلی دي رسول الله ﷺ: چا چه غسل اوکړو په ورځ د جمعي او واﺋي غوستلي ښائسته جامي، او استعمال ئي کړه خوشبو که چېري وي د هغه دپاره، بيا راشي جمعي ته خپې نه ږدي په څټونو د خلقو، بيا مونځ اوکړي هغه څه چه ليکلي دي الله، بيا چپ شي کله چه راوځي امام د هغه تردې چه فارغ شي د مانځه نه کېږي کفاره په مابين ددې کښې او په مابين د جمعي هغي کښې چه د دېنه م مخکښي ده. هغه اووئيل: او واﺋي ابوهريره: او اضافه درې ورځي. او واﺋي: بېشکه حسنه په لس چنده ده. وئيلی دي ابوداود: او حديث د محمد بن سلمة اتم دی، او حماد کلام

١): سنن النسائي/الجمعة ٢ (١٣٧٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٠٦) (صحيح)

٢): وقد تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ٤٤٣٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجمعة ٨ (٨٥٨) من حديث أبي هريرة مختصراً ومن غير هذا السند، وأدرج قوله: »وثلاثة أيام« في قوله صلي الله عليه وسلم (حسن)

د ابو هريره نه دې ذکر کړې.

**تشريح:** ﴿ قوله :وَيَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ « وَزِيَادَةُ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ »﴾ ددې حديث راوي ابوسعيد خدري او ابوهريره رضي الله عنهما دواړه دې اوس پوړې چه د حديث کوم الفاظ راغلل هغه د دواړو مشترک وو او زيادة ثلاثة ايام صرف د ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې دې، ځکه چه د جمعې مونځ د تيرې جمعې د مانځه نه واخله د موجوده جمعې د مونځ د وختنه پورې د ګناهونو کفاره ده په دې صورت کښې دا درې ورځې شوې، او د ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې د درې ورځو زيادت مذکوردې، ځکه ټولې لس ورځې شوې، يعنى يو جمعې دورځې مونځ دلسو ورځو دګناهونو کفاره ده، او که د دواړو طرفونو نه د جمعې ورځ ساقط کړې شي نو صرف شپږ ورځې به پاتې شي او که د دواړو جمعو پوره ورځې مراد کړې شي نو اتۀ ورځې به شي، په اول صورت کښې به د دريو زيادت يو ځائې کولو سره ټولې نهه شي، او په دويم صورت کښې به يولس ورځې شي، لهذا صحيح دا ده چه د هر دواړو جمعو نيمه نيمه ورځ مراد کړې شي.

دلته دې دا اشکال اونکړې شي چه ابوهريره رضي الله عنه د خپل طرف نه دا زيادت څنګه کوی او حال دا چه په حديث کښې صرف يو هفته ذکر ده ځکه چه دا د دريو ورځو زيادت د هغوی د خپل طرف نه نۀ دې بلکه دا هم مرفوعا ثابت دې، لکه چه د مسلم د روايت نه معلوميږی، خو الحسنة بعشر امثالها د ابوهريره رضي الله عنه د طرف نه مدرج دې.

[۳۴۳]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ أَبِي هِلاَلٍ، وَبُكَيْرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الأَشَجِّ حَدَّثَاهُ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْغُسْلُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ، وَالسِّوَاكُ، وَيَمَسُّ مِنَ الطِّيبِ مَا قُدِّرَ لَهُ"، إِلاَّ أَنَّ بُكَيْرًا لَمْ يَذْكُرْ عَبْدَ الرَّحْمَنِ، وَقَالَ فِي الطِّيبِ: وَلَوْ مِنْ طِيبِ الْمَرْأَةِ.

**ترجمه:** د عبد الرحمن بن ابي سعيد الخدري نه روايت دې هغه د خپل پلار نه روايت کوي، بېشکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دی: غسل په ورځ د جمعه کښې په هر محتلم واجب دی، او مسواک او مسه کوي به خوشبو هغه چه اندازه شوی وي هغه دپاره. مګر بکير نه دی ذکر کړی عبد الرحمن، او وئيلی ئې دي په طيب کښې: اګر که د خوشبويې د ښځې نه وي.

**تشريح:۵** : ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ – قوله وَيَمَسُّ مِنَ الطِّيبِ مَا قُدِّرَ لَهُ ﴾ او د مسلم په روايت کښې دی ﴿ ما قدر عليه ﴾ په دې کښې دوه أحتمالات دی يا په دې سره مقصود تکثير دې چه څومره لګولې شي او دې لګوی يا تاکيد دې چه څنګه هم ممکن وی لګول پکار دی پس په بعض رواياتو کښې دی ﴿ ولو من طيب المراة ﴾ خو د ابوداؤد د روايت الفاظ ﴿ ما قدر له ﴾ احتمال ثانی ته زيات نزدې دی يعنی څنګه خوشبوئی هم چه په مقدر کښې ده (معمولی يا غوره) هغه دې اولګوی، وئيلې شوې دی چه د ابوهريره رضي الله عنه په نزد دا امر د وجوب دپاره دې د هغوی په نزد د جمعې په ورځ استعمال طيب واجب دې

[1]: صحيح البخاري/الجمعة ۳ (۸۸۰) (نحوه)، صحيح مسلم/الجمعة ۲ (۸۴۶)، سنن النسائي/الجمعة ۶ (۱۳۷۶)، (تحفة الأشراف: ۴۱۱۶، ۴۲۶۷)، وقد أخرجه: (۳/۳۰، ۶۵، ۶۶، ۶۹) (صحيح)

[۳۴۵]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ الْجَرْجَرَائِيُّ حِبِّي، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، حَدَّثَنِي حَسَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ، حَدَّثَنِي أَبُو الْأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنِي أَوْسُ بْنُ أَوْسٍ الثَّقَفِيُّ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ غَسَّلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ ثُمَّ بَكَّرَ وَابْتَكَرَ وَمَشَى وَلَمْ يَرْكَبْ وَدَنَا مِنَ الْإِمَامِ فَاسْتَمَعَ وَلَمْ يَلْغُ، كَانَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ عَمَلُ سَنَةٍ أَجْرُ صِيَامِهَا وَقِيَامِهَا".

**ترجمه**: د اوس بن اوس الثقفي نه روايت دې چه ما اوريدلې دي د رسول الله ﷺ نه، هغه به فرمائيل: چا چه غسل ئې پرې اوکړو په ورځ د جمعې اوپه خپله ئې هم غسل اوکړو، بيا سحر وختی په اول وخت کښې جمات ته لاړشی، په شروع کښې خطبې ته اورسيږی، او پيدل لاړشی او سور نه شو، او نزدې شو امام ته ښه غوږيې کېخودو او لغو کار ئې اونه کړه، نو وی به د هغه لپاره ثواب په هر قدم باندې د يو کال روژې دهغې او قيام د هغې.

**شرح حديث**:

قوله:﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ – قوله مَنْ غَسَّلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ ﴾ ﴿ غسل ﴾ په تخفيف او تشديد دواړو سره لوستلې شوې دې او په دواړو صورتونو کښې ([2])د دوه معنو احتمال دې يا ددې نه مراد غسل راس بالخطمی وغيره دې يا مراد جماع ده او په دې صورت کښې به ددې مفعول محذوف وی ﴿ ای من غسل امراته ﴾ محاوره په عربو کښې غسل امراته د جماع په معنی کښې استعماليږی ځکه چه کوم سړې د خپلې ښځې سره جماع کوی هغه خپله ښځه غسل ته تياروی او دريم قول دا دې چه ددې نه مراد د اودس د اندامونو وينځل دی په دې صورت کښې به اشاره وی د غسل مسنون طرف ته ځکه چه د غسل په ابتداء کښې اودس سنت دې، د معنی ثانی د وجې نه بعض علماء کرامو د جمعې په ورځ د خپل اهل سره د مجامعت استحباب بيان کړې دې چه د خواهش د پوره کيدو د وجې نه جمعې ته د تلو په وخت د بدنظرئ وغيره نه په حفاظت وی په دې باندې نور کلام د حديث نمبر ۱۱ د لاندې راروان دې.

﴿ قوله ثُمَّ بَكَّرَ وَابْتَكَرَ ﴾ دا دواړه بعض علماء کرامو په تاکيد باندې محمول کړې دې او يوه معنی ئې مراد کړې ده يعنی د مانځه دپاره وختی تلل، او وئيلې شوې دی چه د اول تعلق د مانځه سره دې او د دويم د خطبې سره دې، يعنی لاړو د مانځه دپاره وختی او اول خطبه ئې بيا موندله ﴿ ابتکر ﴾ د باکورة نه اخستلې شوې دی، د هر څيز اول ته باکوره وائی باکورة کل شئ اوله.

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ۲۳۹ (۴۹۶)، سنن النسائي/الجمعة ۱۰ (۱۳۸۲)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۸۰ (۱۰۸۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۵) وقد أخرجه: مسند احمد (۸/۴، ۹، ۱۰)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۹۴ (۱۵۸۸) (صحيح)

[2]) ، کما في المنهل خو په مرقاة کښې د ملا علی قاری رحمه الله د کلام نه معلوميږي چه د جماع په معنی کښې صرف غسل بالتشديد دې او د غسل بالتخفيف په صورت کښې ددې نه مراد غسل راس بالخطمی وغيره دې)

## د مشی الی الجمعة ثبوت او د هغې فضيلت :

﴿ قوله وَمَشَى وَلَمْ يَرْكَبْ ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د جمعې د مانځه دپاره سعی ماشيا افضل ده نه راكبا ، پس امام بخاری رحمه الله په دې باندې مستقل ترجمة قائم كړې ده باب المشى الى الجمعة او دا د احاديث صحيحه نه ثابته ده [1] په خلاف د صلوة عيد چه دهغې دپاره مشى په روايت صحيحه كښې ثابت نه ده اګرچه هغه هم د جمهور علماء كرامو په نزد اولى او مستحب ده خو دهغې ثبوت رواية ضعيف دې دهغې څو روايات په سنن ابن ماجه كښې دی او يو روايت په ترمذی كښې هم دې هم په دې وجه امام بخاری رحمه الله د عيد دپاره په خپل صحيح كښې ترجمة قائم كړې باب المشى والركوب الى العيد ګويا ددې خبرې طرف ته اشاره ده چه د اختر د مانځهٔ دپاره مشى او ركوب دواړه برابر دی، حافظ فرمائی چه كيدې شی د امام بخاری رحمه الله اشاره د ترمذی د روايت د تضعيف طرف ته وی كوم چه د علی رضی الله عنه نه مروی دې ﴿ من السنة ان يخرج الى العيد ماشيا ﴾

﴿ قوله وَدَنَا مِنَ الإِمَامِ ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د خطبې په وخت د امام قرب مطلوب دې، مصنف رحمه الله په كتاب الجمعة كښې په دې باندې مستقل باب تړلې دې باب الدنو من الامام عند الموعظة، حضرت شيخ رحمه الله به په مدينه منوره كښې د قيام په آخری زمانه كښې د خپلې معذورئ د وجې نه حرم شريف ته په ګاړی كښې تشريف اوړلو د مسجد نبوی په شاته حصه كښې ئې په يو ګوټ كښې د مونځ ادا كولو معمول وو ، ما اوريدلې دی چه كله حضرت زيات معذور شوې نه وو د جمعې په ورځ باندې به ئې خادمينو ته هدايت فرمائيلو چه د مسجد دننه حصې كښې داسې نزدې ځائې ته بوتلو سره كينوی د كوم ځائې نه چه خطيب هم په نظر راتلې شی.

## حكم الكلام عند الخطبة :

﴿ قوله وَلَمْ يَلْغُ ﴾ ددې نه مراد عدم تكلم دې ځكه چه كلام عند الخطبة لغو دې [2] علامه عينی رحمه الله فرمائی چه د جمهور علماء ثلاث په نزد مكروه تحريمی بلكه حرام دی، او د امام شافعی رحمه الله قول قديم هم دا دې او قول جديد د هغوی دا دې چه مكروه تنزيهی دې او هم دا مذهب دې د سفيان ثوری او د داؤد ظاهری د احاديث صحيحه نه د جمهورو د مسلك تائيد كيږی.

---

[1] لكه چه د ابوداؤد په دې روايت كښې دی او هم دا روايت په نسائی كښې هم دې، امام بخاری رحمه الله اګرچه د مشى الى الجمعة مستقل باب قائم كړې دې خو دهغې نې څه صريح روايت په باب كښې ذكر نه دې فرمائيلې بلكه په ﴿ من اغبرت قدماه في سبيل الله حرمه الله على النار ﴾ باندې نې استدلال كړې دې ځكه چه ښكاره خبره ده چه اغبرار قدم خو په پيدل تلو كښې دی.

[2] شارحينو ليكلې دی حديث شريف كښې لفظ ﴿ وَلَمْ يَلْغُ ﴾ كيدې شی چه مقتبس وی، ددې آيت كريمه نه ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ الآية ﴾ ددې نه د كلام عند الخطبة ډيره بدی معلوميږی.

## اكثر الاعمال ثوابا :

﴿ قوله كَانَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ عَمَلُ سَنَةٍ أَجْرُ صِيَامِهَا وَقِيَامِهَا ﴾ يعنى د داسې سړى دپاره به د جمعې د مانځه دپاره په تلو باندې په هر هر قدم باندې د يو كال د صيام او قيام يعنى د قيام ليل څه ته چه تهجد وائى ثواب ملاويږى، كه په هر قدم باندې د يوې روژې او د يوې شپې د تهجد ثواب ملاويږى نو بيا خو ښكاره ده چه ډير وو پاتې له دا چه د يو كال، زه اكثر په سبق كښې وايم چه په فضائل اعمال كښې هيڅ صحيح حديث ددې نه د زيات فضيلت والا زما په علم كښې نشته ضعيف احاديث خو د ډيرو اعمالو په باره كښې په كثرت سره راغلي دى، خو د صحيح په قيد سره په بل څه عمل باندې دومره زيات فضيلت نشته، روستو دا خبره ماته د مرقاة شرح مشكوة نه هم معلومه شوه. [1]

[٣٣٦]([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ أَوْسٍ الثَّقَفِيِّ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: مَنْ غَسَلَ رَأْسَهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ، ثُمَّ سَاقَ نَحْوَهُ.

**ترجمه**: اوس الثقفي روايت كوي د رسول الله ﷺ نه بېشكه هغه وئيلى دى: چا چه وينځلو سر خپل په ورځ د جمعه او غسل ئې اوكړو. بيا ئې حديث سوق كړى دى پشان د هغې.

[٣٣٧]([3]) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَقِيلٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمِصْرِيَّانِ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ ابْنُ أَبِي عَقِيلٍ: أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ يَعْنِي ابْنَ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَمَسَّ مِنْ طِيبِ امْرَأَتِهِ إِنْ كَانَ لَهَا وَلَبِسَ مِنْ صَالِحِ ثِيَابِهِ ثُمَّ لَمْ يَتَخَطَّ رِقَابَ النَّاسِ وَلَمْ يَلْغُ عِنْدَ الْمَوْعِظَةِ، كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهُمَا، وَمَنْ لَغَا وَتَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ، كَانَتْ لَهُ ظُهْرًا".

**ترجمه**: عبد الله بن عمرو بن العاص روايت كوي د نبي ﷺ نه بېشكه هغه وئيلى دى: چا چه غسل اوكړو په ورځ د جمعه او استعمال ئې كړه خوشبويي د ښځې خپلې كه چېرې وي ورله، او واغوندې روغې ښائسته جامې، بيا خپې نه ږدې په څټونو د خلقو، او لغوه اونه كړي د نصيحت په وخت كښې، وې به كفاره په مابين د دوارو كښې، او چا چه لغوه اوكړه او د خلقو په څټونو باندې خپې كېدې نو شي به د هغه لپاره ماسپخين.

[٣٣٨]([4]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ شَيْبَةَ، عَنْ طَلْقِ بْنِ حَبِيبٍ الْعَنَزِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا حَدَّثَتْهُ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ أَرْبَعٍ: مِنَ الْجَنَابَةِ، وَيَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَمِنَ الْحِجَامَةِ، وَمِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ".

---

[1]) دا حديث صاحب مشكوة د سنن اربعه طرف ته منسوب كړي دې، په مرقاة كښې دى قال الترمذي حديث حسن وقال النووي اسناده جيد، قال ميرك ورواه الحاكم وقال صحيح وقال ابن حجر ورواه احمد وصححه ابن حبان والحاكم وقال انه علي شرط الشيخين قال بعض الائمة لم نسمع في الشريعة حديثا صحيحا مشتملا علي مثل هذا الثواب ﴾

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٣٥) (صحيح)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦٥٩) (حسن)

[4]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦١٩٣)، ويأتي عند المؤلف في الجنازة برقم (٣١٦٠) (ضعيف)

**ترجمه:** عبد الله بن زبير روايت كوي د عائشې نه، بېشكه هغې ورته حديث بيان كړى دى، بېشكه نبي ﷺ وو چه غسل به ئې كولو د څلورو نه: د جنابت نه، او په ورځ د جمعې، او د ښكر لګولو نه، او د غسل د مړي نه.

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ – قوله أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ أَرْبَعٍ الخ ﴾ په دې حديث كښې د څلورو څيزونو په باره كښې وئيلې شوې دى چه رسول الله ﷺ به دهغې نه غسل فرمائيلو، جنابت، يوم الجمعة، حجامة يعنى ښكر لګولو د وجې نه، او د غسل ميت د وجې نه، په بذل كښې په حواله د علامه سندهى ليكلې شوې دى چه د غسل نه مراد امر بالغسل دې، يعنى رسول الله ﷺ به د څلورو څيزونو نه د غسل حكم كولو او دا په دې وجه چه په دې كښې د غسل ميت هم ذكر دې، او د رسول الله ﷺ يو مړى ته غسل وركول ثابت نه دى، او په منهل كښې ليكلې شوې دى چه د ﴿ يغتسل ﴾ نه مراد عام دې غسل كول او امر بالغسل ځكه چه ددې څلورو نه صرف په دريو كښې د رسول الله ﷺ غسل ثابت دې په څلورم كښې نه دې.

ځان پوهه كړه چه په دې حديث كښې غسل من الحجامة مذكور دې، جمهور علماء كرام ددې د استحباب قائل نه دى، ځكه چه ددې حيثيت د رعاف نه زيات نه دې نو چه كله د رعاف نه حكم نشته نو ددې نه به په طريقه اولى نه وى، او د دارقطنى په يو روايت كښې دى ﴿ انه عليه الصلوة والسلام احتجم ولم يزد على غسل محاجمه ﴾ يعنى رسول الله ﷺ صرف محل احتجام وينځلو غسل ئې نه دې كړې او ددې حديث جواب دا دې چه دا ضعيف دې په دې كښې يو راوى دې مصعب بن شيبة چه ضعيف دې په بعض نسخو د ابوداؤد كښې د امام ابوداؤد نه د هغوى تضعيف نقل دې، اصل كښې د مصعب بن شيبة په جرح او تعديل كښې د علماء كرامو اختلاف دې بعض د هغوى تعديل كوى او بعض تجريح.

## غسل ميت سره په وجوب غسل كښې اختلاف:

څلورم څيز په دې حديث كښې د غسل ميت د وجې نه غسل كول دى دا هم مختلف فيه ده، د ائمة ثلاثه په نزد مستحب دى بلكه د امام مالك او امام شافعى رحمه الله په نزد يو روايت د وجوب هم دې او د احنافو په نزد خو اصالة مستحب هم نه دې، خو ! د خروج عن الخلاف په طور مستحب دې، او د بعض صحابه كرامو لكه ابوهريره رضي الله عنه نه ددې وجوب نقل دې هم دغه شان په روافضو كښې فرقه اماميه هم د وجوب قائل دى، دا مسئله اصالة د كتاب الجنائز ده هلته به راشى، حافظ ابن القيم رحمه الله په دې كښې درې مذاهب ليكلې دى، يجب عند ابن المسيب وابن سيرين، عند الائمة الاربعة لا يجب، يجب من غسل الميت الكافر رواية لاحمد.

[٣٣٩](١) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيُّ، أَخْبَرَنَا مَرْوَانُ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حَوْشَبٍ، قَالَ: سَأَلْتُ مَكْحُولًا عَنْ هَذَا الْقَوْلِ: غَسَّلَ وَاغْتَسَلَ، فَقَالَ: "غَسَّلَ رَأْسَهُ وَغَسَلَ جَسَدَهُ".

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٤٧١) (صحيح)

**ترجمه:** علی بن حوشب وائي ما تپوس اوکړو د مکحول نه ددې قول باره کښې «غَسَّلَ وَاغْتَسَلَ» نو هغه اووئیل: چه ووینځي خپل سر او وینځي خپل ټول بدن.

[۳۵۰]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُسْهِرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ: "فِي غَسَّلَ وَاغْتَسَلَ، قَالَ: قَالَ سَعِيدٌ: غَسَّلَ رَأْسَهُ وَغَسَلَ جَسَدَهُ".

**ترجمه:** ابو مسهر وائي سعید بن عبد العزیز وئیلی دی: «غَسَّلَ وَاغْتَسَلَ» هغه وئیلی دی: اووئیل سعید: چه وینځي خپل سر او وینځي خپل ټول بدن.

[۳۵۱]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ غُسْلَ الْجَنَابَةِ ثُمَّ رَاحَ، فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَدَنَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّانِيَةِ، فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَقَرَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّالِثَةِ، فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ كَبْشًا أَقْرَنَ، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الرَّابِعَةِ، فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ دَجَاجَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الْخَامِسَةِ، فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَيْضَةً، فَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ حَضَرَتِ الْمَلَائِكَةُ يَسْتَمِعُونَ الذِّكْرَ".

**ترجمه:** د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دی: چا چه غسل اوکړو په ورځ د جمعه غسل د جنابت، بیا لاړلو ګویا کښې ده اوښ قرباني کړو، او څوک چه لاړلو په دویم ساعت کښې ګویا کښې ده غوا قرباني کړه، او څوک چه لاړلو په دریم ساعت کښې ګویا کښې ده ګډ قرباني کړو، او څوک چه لاړلو په څلورم ساعت کښې ګویا کښې ده چرګه قرباني کړه، او څوک چه لاړلو په پنځم ساعت کښې ګویا کښې ده هګۍ قرباني کړه، چه کله امام راوځي ملائکې حاضرې شي ذکر اوري.

**تشریح:** قوله:﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ – قوله مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ غُسْلَ الْجَنَابَةِ الخ ﴾ په دې کښې دوه احتمالات دی یو د تشبیه یعنی کوم انسان چه د جمعې په ورځ هم په داسې اهتمام سره غسل اوکړي څنګه چه د جنابت غسل کولې شي، دویم احتمال دا دې چه په حقیقت باندې محمول وی او اشاره وی د جمعې په ورځ د جماع طرف ته لکه چه په ﴿ من اغتسل وغسل ﴾ کښې تیر شو، امام نووی رحمه الله ددې دویمې معنی په باره کښې لیکی ﴿ضعیف وباطل ﴾ خو حافظ ابن حجر او علامه قرطبی رحمه الله د امام نووی رحمه الله د کلام تعقب کړې دې چه دا معنی ډیرو حضراتو لیکلې ده چه په هغوی کښې امام احمد رحمه الله هم دې خو امام قرطبی د امام نووی رحمه الله د کلام دا توجیه لیکلې ده چه کیدې شی د هغوی مراد د هغه معنی تغلیط من حیث المذهب دې څکه چه هغوی ددې نه مخکښې لیکلې دې چه زمونږ بعض فقهاء کرامو دا حدیث په خپل ظاهر باندې کیخودلو سره لیکلې دې چه د جمعې په ورځ باندې د خپلې ښځې سره مجامعت مستحب دې نو د امام نووی رحمه الله انکار په نقل استحباب باندې دې نه په شرح حدیث باندې.

﴿ قوله ثُمَّ رَاحَ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَدَنَةً ﴾ دلته دوه بحثونه دی، اول دا چه په حدیث کښې چه کوم ساعات ذکر دی دهغې ابتداء د کله نه ده.

---

[۱]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۸۶۹۱) (صحيح)

[۲]: صحيح البخاري/الجمعة ٤ (۸۸۱)، وبدء الخلق ٦ (۳۲۱۱)، صحيح مسلم/الجمعة ۷ (۸۵۰)، سنن الترمذي/الجمعة ٦ (٤۹۹)، سنن النسائي/۱۷۰۸، من الكبرى، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۶۹)، وقد أخرجه : سنن النسائي/الإمامة ۵۹ (۸۶۵)، والجمعة ۱۳ (۱۳۸۶)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۸۲ (۱۰۹۲)، موطا امام مالك/الجمعة ۱ (۱)، مسند احمد (۲/۲۳۹، ۲۵۹، ۲۸۰، ۵۰۵، ۵۱۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۹۳ (۱۵۸۵) (صحيح)

**په حديث الباب کښې دوه بحثونه :**

پس دا مسئله مختلف فيه ده، امام مالک، قاضي حسين او امام الحرمين ددې خبرې قائل دی چه د ساعات نه مراد لحظات لطيفه دی چه دهغې ابتداء د زوال نه پس شروع کيږی ځکه چه په حديث کښې لفظ راح دې، ددې حضراتو وينا ده چه رواح په لغة کښې ذهاب بعد الزوال ته وائي په دې وجه به ددې ساعاتو ابتداء د زوال نه پس منلې شی، شاه ولی الله صاحب رحمه الله فرمائي چه امام احمد رحمه الله وغيره د امام مالک رحمه الله ددې قول په سختئ سره نکير فرمائيلې دې چه دا د حديث خلاف ده او د جمهور علماء کرامو په نزد ددې ساعاتو ابتداء د اول النهار نه ده ددې نه لحظات لطيفه نه بلکه ساعات زمانيه مراد دی کومه چه د ساعت مشهوره معنی ده، او د رواح معنې په لغت کښې د مطلب ذهاب هم راځی که قبل الزوال وی يا بعد الزوال لکه چه بعض ائمة لغت ددې تصريح کړې ده او په نورو رواياتو کښې چونکه تکبير الى الجمعة ته ترغيب راغلې دې په دې وجه به دا هم په دې باندې محمول کولې شی، ددې نه پس د جمهورو ترمينځه بيا په دې کښې اختلاف راځی چه ددې ساعاتو ابتداء به د طلوع فجر نه پس وی يا که په طلوع شمس سره، د اکثرو رائې دا ده چه د طلوع فجر نه.
حافظ ابن حجر رحمه الله دلته يو بله خبره فرمائيلې ده هغه دا چه په دې حديث کښې لفظ ﴿راح﴾ صرف د امام مالک رحمه الله په طريق کښې دې او په غير د طريق مالک نه په ځائې د لفظ راح ﴿غدا﴾ راغلې دې چه دهغې معنی على الصباح د تلو ده [1] او په بعض رواياتو کښې بلفظ ﴿المتعجل الى الجمعة کالمهدى بدنة﴾ راغلې دی ددې نه علاوه ددې سلسلې په نورو بعض روايتونو کښې هم لفظ د ﴿غدو﴾ راغلې دې لکه ﴿اذا کان يوم الجمعة غدت الشياطين براياتها الى الاسواق وتغدوا الملائکة الى ابواب المساجد يکتبون الاول فالاول﴾ چه په هغې سره د جمهورو د مسلک تائيد کيږی.

**بحث ثانی :**

دلته دا دې چه ورځ د دولس ګهنتو وی لکه چه د نسائی په روايت کښې دی ﴿يوم الجمعة ثنتا عشرة ساعة﴾ لهذا د اول النهار نه به تر زوال پورې شپږ ساعتونه وی حال دا چه دلته په حديث کښې پنځه ساعتونه ذکر دی ددې جواب دا دې چه د نسائی په روايت کښې ساعت سادسه هم دې، پس دهغې په يو روايت کښې بطة او په يو کښې عصفور مذکور دې، [2]
فزال الاشکال بحمد الله.

﴿قوله وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّانِيَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَقَرَةً﴾ د حديث مضمون دا دې چه کوم سړې د جمعې د مانځه دپاره په ساعت اولی کښې حاضر شی هغه ته به د تصدق ابل ثواب ملاويږی او څوک چه په ساعت ثانيه کښې حاضر شو هغه ته به د تصدق بقرة ثواب ملاويږی او څوک چه په ساعت ثالثه کښې حاضر شی د هغه دپاره د کبش اقرن، او څوک چه په ساعة رابع کښې حاضر شی د هغه دپاره د تصدق دجاجة او بيا په ساعت خامسه

---

[1] حضرت شيخ رحمه الله په اوجز کښې ليکی په رواياتو کښې په دې سلسله کښې څلور قسمه الفاظ ملاويږی، الرواح الغدو التبکير التهجير کوم چه د هاجرة نه ماخوذ دې قرطبی رحمه الله فرمائي د تهجير معنی سير وقت الحر ده او د شدة الحر ابتداء عام طور د ربع نهار نه کيږی.

[2] پس په دې کښې ذکر د شاة دې کالمهدي بطة ثم کالمهدي دجاجة ثم کالمهدي بيضة او په يو روايت کښې په ځائې د بطة عصفور دې.

کښې ديوبيضه اوبيا په ساعت سادسه کښې لکه چه دنسائي په روايت کښې دي ديو عصفور.
**فائده اولی** : د نسائي په يو روايت کښې داسې راغلي دي ﴿ فالناس فيه كرجل قدم بدنة وكرجل قدم بدنة وكرجل قدم بقرة وكرجل قدم بقرة ﴾ په دې روايت کښې د ټولو ساعاتو اجر په تکرار سره ذکر کړې شوې دې په ظاهره ددې نه دې خبرې طرف ته اشاره ده چه دا ټول ساعتونه متجزي او ذو اجزاء دي، لهذا د ساعت اولی په اجزاء کښې چه په کوم جزء کښې هم څوک حاضر شي د ثواب موعود مستحق به وي هم دغه شان د ساعت ثانيه په اجزاء کښې چه په کوم جز کښې راشي هغه به د هغه ساعت د ثواب مستحق وي، زه وائم ددې نه هم د جمهورو تائيد کيږي چه دا ساعات لحظات لطيفه نه دي بلکه ساعات زمانيه (نجوميه) دي.
**فائده ثانيه** : سيدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به هميشه ددې خبرې کوشش کولو چه د جمعې د مانځه دپاره مسجد ته په اول ساعت کښې اورسيږي، يو ځل ترې نه د څه وجې نه تاخير واقع شو مسجد ته ناوخته راغلو، هغه وخت مسجد کښې د مخکښې نه درې کسان موجود وو کوم چه د هغوی نه مخکښې رسيدلي وو، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته په خپل روستو کيدلو باندې ډير تاثر اوشو او وې فرمائيل لکه چه د ابن ماجه په روايت کښې دي ﴿ رابع اربعة ﴾ چه اف هوا دې جمعې له زه څلورم نمبر رارسيدونکې يم او بيا ئې اوفرمائيل ﴿ وما رابع اربعة ببعيد ﴾ ددې دوه مطلبونه کيدې شي يو هغه د تاثر والا خبره چه څلورم نمبر باندې راتلونکې څومره بعيد دې، او دويم مطلب دا کيدې شي چه په طور د تسلئ ئې اوفرمائيل چه خير زه څلورم راتلونکې يم زيات بعيد نه يم.
﴿ قوله فَإِذَا خَرَجَ الإِمَامُ حَضَرَتِ الْمَلَائِكَةُ يَسْتَمِعُونَ الذِّكْر ﴾ ددې نه معلومه شوه چه د خروج امام نه پس دانصات وخت شروع شي، دلته دوه څيزونه دي يو قطع صلوة او دويم قطع کلام ددې دواړو وخت يو دې يا بيل بيل دامسئله اختلافي ده، يجئ في محله انشاء الله وهو كتاب الجمعة.

## بَابٌ فِي الرُّخْصَةِ فِي تَرْكِ الْغُسْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### باب دې په بيان د رخصت کې په ترک د غسل کې په ورځ د جمعه کې

د غسل جمعة په سلسله کښې چونکه روايات دوه قسمه دي د بعضو نه وجوب مستفاد کيږي او د بعضو نه عدم وجوب، مصنف رحمه الله په باب سابق کښې د اول قسم روايات ذکر کړې وو او په دې دويم باب کښې بل قسم روايات ذکر کول مقصود دي، د جمهورو په نزد د وجوب روايات يا خو په تاکد او اهتمام باندې محمول دي يا بيا په نسخ باندې.

[۳۵۲] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ النَّاسُ مُهَّانَ أَنْفُسِهِمْ، فَيَرُوحُونَ إِلَى الْجُمُعَةِ بِهَيْئَتِهِمْ، فَقِيلَ لَهُمْ: لَوِ اغْتَسَلْتُمْ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلي دي: وو خلق خدمت کونکې د خپلو ځانونو، نو دوی به تلل جمعې ته په خپل حال باندې، نو دوی ته اووئيل شول: که چرې غسل مو کړې وې نو ښه به وه.
**تشريح**: قوله: ﴿ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ – قوله كَانَ النَّاسُ مُهَّانَ أَنْفُسِهِمْ الخ ﴾ مهان جمع د ماهن ده په معنی د خادم، يعني په ابتداء د اسلام کښې د فتوحاتو د زمانې نه مخکښې خلق د خپل ځان خادمان پخپله وو د هغوی نوکران وغيره نه وو، د خپل محنت او مشقت ټول کارونه به ئې

(۱): صحيح البخاري/الجمعة ۱۶ (۹۰۳)، والبيوع ۱۵ (۲۰۷۱)، صحيح مسلم/الجمعة ۱ (۸۴۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۳۵)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الجمعة ۹ (۱۳۸۰)، مسند احمد (۶/۶۲) (صحيح)

خپله کول، چه په هغې سره به په بدن کښې بدبوئی پیدا کیدله او چونکه تردې وخته پورې د رسول الله ﷺ د طرف نه د غسل حکم نه وو شوې په دې وجه صحابه کرامو هم په دې حال کښې د جمعې د مانځه دپاره رسیدل په دې وجه رسول الله ﷺ هدایت اوفرمائیلو ﴿لو اغتسلتم﴾ که غسل مو کولو نه غوره ده چونکه ددې صیغې نه په ظاهره د غسل استحباب او عدم وجوب معلومیږی هم په دې وجه مصنف رحمه الله دا حدیث په دې باب کښې راوړی دې

[۳۵۳]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ أُنَاسًا مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ جَاءُوا، فَقَالُوا: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، أَتَرَى الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبًا؟ قَالَ: لَا، وَلَكِنَّهُ أَطْهَرُ وَخَيْرٌ لِمَن اغتسل، ومن لم يغتسل فليس عليه بواجب، "وَسَأُخْبِرُكُمْ كَيْفَ بَدْءُ الْغُسْلِ، كَانَ النَّاسُ مَجْهُودِينَ يَلْبَسُونَ الصُّوفَ وَيَعْمَلُونَ عَلَى ظُهُورِهِمْ وَكَانَ مَسْجِدُهُمْ ضَيِّقًا مُقَارِبَ السَّقْفِ إِنَّمَا هُوَ عَرِيشٌ، فَخَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي يَوْمٍ حَارٍّ وَعَرِقَ النَّاسُ فِي ذَلِكَ الصُّوفِ حَتَّى ثَارَتْ مِنْهُمْ رِيَاحٌ آذَى بِذَلِكَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا، فَلَمَّا وَجَدَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الرِّيحَ، قَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ، إِذَا كَانَ هَذَا الْيَوْمَ فَاغْتَسِلُوا وَلْيَمَسَّ أَحَدُكُمْ أَفْضَلَ مَا يَجِدُ مِنْ دُهْنِهِ وَطِيبِهِ"، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ثُمَّ جَاءَ اللهُ بِالْخَيْرِ، وَلَبِسُوا غَيْرَ الصُّوفِ وَكُفُوا الْعَمَلَ وَوُسِّعَ مَسْجِدُهُمْ وَذَهَبَ بَعْضُ الَّذِي كَانَ يُؤْذِي بَعْضُهُمْ بَعْضًا مِنَ الْعَرَقِ.

**ترجمه**: د عکرمة نه روایت دې، بېشکه څه خلق د عراق والو نه راغلل هغوی اووئیل اې ابن عباس! ایا ته وینې غسل په ورځ د جمعه کښې واجب؟ هغه اووئیل نه، لکن دا ښه پاکونکی دی، او غوره دی د هغه چا لپاره چه غسل اوکړي، او چا چه غسل اونه کړو نو دا پرې واجب نه دی، او زر دی چه به تاسو خبر کړم چه غسل څنګه شروع شوی دی، وو خلق مشقت کونکي اغوستلي به ئې وړۍ او کار به کولو دوی په شاګانو خپلو باندې، او وو جماعت د دوی تنګ چه چت ئې نزدې وو (بېشکه هغه چوتره وه) نو راووتلو رسول الله ﷺ په ګرمه ورځ کښې او خلق خوله شوي وو په دغه ورو کښې تردې چه والوتل د دوی نه بادونه چه ضرر ورکړو په دې باندې بعضو بعضو ته، هر کله چه محسوس کړو رسول الله ﷺ دغه باد وئې وئیل اې خلقو کله چه وي دغه ورځ نو غسل اوکړئ، او استعمال دې کړي یو ستاسو نه افضل هغه چه دایې بیاموخې د تیلو د خوشبوېې نه وئیلی دې ابن عباس بیا پراخې راوسته الله پاک په خیر، او واغوستلي دوی غیر د ورو نه، او منع شول دوی د کار نه، او پراخه کړی شو جمات د دوی، او ختم شو بعضې هغه چه وو ضرر به ورکولو بعضو بعضو ته د خولې نه

[۳۵۴]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعْمَتْ، وَمَنِ اغْتَسَلَ فَهُوَ أَفْضَلُ".

**ترجمه**: د سمرة نه روایت دی وایې، وئیلی دې رسول الله ﷺ چا چه اودس اوکړو په ورځ د جمعه کښې نو ډیر ښه ئې اوکړل، او چا چه غسل اوکړو نو دا افضل دی.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٧٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ٦ (٨٨٣)، مسند احمد (٦/٢٧٦) (حسن)

[2]: سنن الترمذي/الجمعة ٥ (٤٩٧)، سنن النسائي/الجمعة ٩ (١٣٨١)، مسند احمد (٥/١٥، ١٦، ٢٢)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٧) (حسن)

## مضمون حديث :

**تشريح:** قوله:﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ – قوله أَنَّ أُنَاسًا مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ جَاءُوا فَقَالُوا يَا ابْنَ عَبَّاسٍ الخ ﴾ بعض اهل عراق د ابن عباس رضي الله عنهما په خدمت کښې راغلل ممکنه ده دا د هغه وخت واقعه وی، چه کوم وخت کښې ابن عباس رضي الله عنهما د بصرې والی وو، بصره او کوفه دواړه د عراق ښهرونه دی، دې خلقو دا سوال اوکړو چه آيا غسل جمعة ستاسو په نزد واجب دې؟ سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما په صفايئ سره اوفرمائيل چه واجب نه دې صرف غوره دې او بيا ئې اوفرمائيل چه زه تاسو ته ښائم چه د غسل ابتداء څنګه شوې ده ﴿ كَانَ النَّاسُ مَجْهُودِينَ يَلْبَسُونَ الصُّوفَ ﴾ اصل خبره دا ده چه په شروع کښې به خلقو د غريبئ ژوند تيرولو او پيړې پيړې جامې به ئې اغوستلې د مزدورئ او مشقت کارونه به ئې کول چه په هغې سره به ئې کپړې خيرنې او خرابيدلې د خولې د وجې نه به پکښې بوئې پيدا شو، او مسجد هم تنګ او دهغې چهت ښکته وو، د دالان په شان وو، د يوې ورځې خبره ده چه د ګرمئ ورځ وه په دې ځل د ورئ کپړه کښې په خلقو باندې خوله راتله رسول الله صلى الله عليه وسلم راغلو او هغوی بدبوئی محسوس کړه چه دهغې د وجې نه تولو ته تکليف رسيدلو نو په دی موقع باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم د غسل حکم اوفرمائيلو، خو بيا الله پاک حالت بدل کړو د فتوحاتود وجې نه مال او دولت حاصل شو جامه هم د مخکښې نه غوره شوه خادمان او کار کونکی هم ملاؤ شو، او په مسجد کښې توسيع هم اوشوه او د رائحة کريهة والا خبره ختمه شوه، په کومې سره به چه يو بل ته تکليف رسيدلو.

## د ابن عباس رضي الله عنهما د بيان په مراد کښې د شارحينو درې اقوال :

د ابن عباس رضي الله عنهما د کلام حاصل دا دې چه د ايجاب غسل حکم بعلة دې په شروع کښې علت موندلې شوې وو په دې وجه وجه واجب وه اوس نه موندلې کيږی څکه واجب نه دی لهذا دې ته به منسوخ نه وئيلې کيږی بلکه اوس هم که هغه علت بيا موندلې شی نو د ايجاب غسل حکم به راواپس شی، ابن رسلان ددې تشريح داسې کړې ده، كما فى هامش الشيخ، ددې نه د امام احمد رحمه الله د يو روايت تائيد کيږی چه د رائحة کريهة په صورت کښې غسل واجب دې ګينې نه دې، او صاحب منهل ليکی چه د ابن عباس رضي الله عنهما مراد دا دې چه غسل په شروع کښې واجب وو روستو منسوخ شو او حضرت په بذل کښې ليکلی دی چه د ابن عباس رضي الله عنهما د کلام حاصل دا دې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د طرف نه د غسل حکم په طريقه د ايجاب نه وو بلکه ددې دپاره وو چه چاته تکليف او نه رسيږی.

قوله:﴿ حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ – قوله مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعْمَتْ اى فبالسنة اخذ ونعمت السنة هى﴾ په دې کښې اشکال دادې چه سنت خو غسل دې نه اودس تقدير د عبارت اولی دې، ﴿فبالرخصة اخذ ونعمت الرخصة ﴾ نعمت په دوه طريقو باندې لوستلې کيدې شی نعمت په کسرې د نون او سکون عين سره، نعمت په فتح د نون سره او کسرې د عين سره او اصل هم دا دې.

# بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُسْلِمُ فَيُؤْمَرُ بِالْغُسْلِ

## باب دي په بيان د سړي کي چي اسلام راوړي نو امر به ورته په غسل کولو شي

**په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة :**

د غسل مسنون دا دويم باب دي يعني د اسلام راوړلو نه پس يا د اسلام د ارادي په وخت باندې غسل کول، په دې کښې څه اندازه اختلاف دې د امام احمد رحمه الله په نزد مطلقا واجب دې، د ائمة ثلاثه په نزد چه په هغې کښې احناف هم دی وائی چه که د اسلام په وخت څوک جنبي وی نو په هغه باندې غسل واجب دي ګيني صرف مستحب دې خو په دې کښې اختلاف دې چه که د اسلام د قبلولو نه مخکښې د جنابت حالت وو او هغه غسل کړې وو او دهغې نه روستو ئې اسلام قبول کړو نو دا غسل کوم چه ئې په حالت د کفر کښې کړې وو دا به معتبر وی او که نه؟ د احنافو په نزد د کافر غسل معتبر دي د جمهورو په نزد معتبر نه دې ځکه چه د هغوی په نزد د صحت غسل دپاره نيت شرط دې او د کافر نيت معتبر نه دې.

[۳۵۵](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا الْأَغَرُّ، عَنْ خَلِيفَةَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ جَدِّهِ قَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيدُ الْإِسْلَامَ، "فَأَمَرَنِي أَنْ أَغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ".

**ترجمه**: د قيس بن عاصم نه روايت دې هغه وئيلی دی: زه راغلم نبی ﷺ ته اراده مې وه د اسلام نو ماته ئې امر اوکړو چه غسل اوکړم په اوبو او په بېرو.

**تشريح**: ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ – قوله أَتَيْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– أُرِيدُ الْإِسْلَامَ فَأَمَرَنِي أَنْ أَغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ ﴾ حضرت ددې حديث په شرح کښې دوه احتمالات ليکلې دی يو دا چه قيس بن عاصم فرمائی زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د اسلام قبلولو په غرض سره حاضر شوم، پس اسلام مې قبول کړو او ددې نه پس رسول الله ﷺ ماته د غسل کولو حکم اوفرمائيلو، دويم احتمال دا دې چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د اسلام په ارادې سره حاضر شوې اوم نو هغوی ماته اوفرمائيل چه اول غسل کولو سره راشه، حضرت چه کوم احتمال اول ليکلې دې په هغې باندې خو اشکال نشته خو ظاهری الفاظ ددی مساعد نه دی.

**د کافر د غسل د تقديم بحث :**

او دويم احتمال کوم چه ظاهر د الفاظو ته زيات نزدې دې په هغې باندې فقهی طور سره اشکال دې هغه دا چه امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې تصريح کړې ده چه کافر کله د اسلام قبلولو اراده اوکړی نو د اسلام قبلولو نه مخکښې هغه ته د غسل حکم ورکول جائز نه دی په دې سره به تاخير لازم شی او په اسلام قبلولو کښې د هيڅ قسم تاخير قطعا ګنجائش نشته، ابن رسلان رحمه الله اختيار کړې خو معنی ثانی ده خو د الفاظ حديث ئې يو بل تاويل کړې دې هغه دا چه د ﴿ اريد الاسلام ﴾ سره د قيس بن عاصم رضي الله عنه مراد اصل اسلام نه وو بلکه تجديد اسلام علی يد رسول الله ﷺ دې اسلام خو هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د حاضريدلو نه مخکښې قبول کړې وو او وجه ددې تاويل ئې دا ليکلې ده چه په اسلام کښې د تاخير ګنجائش نشته، حال دا چه رسول الله ﷺ هغه ته دا فرمائی چه اول غسل کولو سره راشه، او دويم په دې وجه هم چه د کافر غسل صحيح نه دې.

(۱): سنن الترمذي/الصلاة ۳۰۳ (۶۰۵)، سنن النسائي/الطهارة ۱۲۶ (۱۸۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۰۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۱/۵) (صحيح)

## قيس بن عاصم صحابي رضي الله عنه:

خان پوهه کړه چه قيس بن عاصم رضي الله عنه ده چا د اسلام قبلولو قصه چه په دې حديث کښې ده، حضرت په بدل کښې د دوی په حالاتو کښې ليکلې دی چه ده په ۹ هجری کښې د بنو تميم د وفد سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هم هغه وخت ئې اسلام قبول کړو دې د خپل قوم سردار وو، رسول الله ﷺ د دوی په ليدلو باندې اوفرمائيل ﴿ هذا سيد اهل الوبر ﴾ دا ډير فهيم او حليم الطبع وو، چا د دوی د شاګرد احنف بن قيس نه تپوس اوکړو ﴿ممن تعلمت الحلم قال من قيس﴾، د دوی په وفات چا په مرثيه کښې دا اشعار وئيلې وو!

عليک سلام الله قيس بن عاصم :: ورحمته ماشاء ان يترحما

وماکان قيس هلکه هلک واحد :: ولکنه بنيان قوم تهدما

[۳۵۶]([1]) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أُخْبِرْتُ عَنْ عُثَيْمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: قَدْ أَسْلَمْتُ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلْقِ عَنْكَ شَعْرَ الْكُفْرِ" يَقُولُ: احْلِقْ، قَالَ: وَأَخْبَرَنِي آخَرُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِآخَرَ مَعَهُ: "أَلْقِ عَنْكَ شَعْرَ الْكُفْرِ وَاخْتَتِنْ".

**ترجمه:** عثيم بن کليب د خپل پلار نه روايت کوي او هغه ئې د خپل پلار نه کوي، بېشکه هغه راغلی نبي ﷺ ته نو هغه اووئيل: په تحقيق سره ما اسلام راوړی دی نو نبي ﷺ ورته اووئيل: وغورځوه د خپل ځان نه وېښته د کفر. هغه وائي: وئې خروه، هغه وائي: او خبر راکړی دی ماته بل بېشکه نبي ﷺ اووئيل هغه بل کس ته چه د ده سره وو: وغورځوه ستانه ويخته د کفر او ختنه اوکړه.

**تشريح:** ﴿ حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ – قوله عَنْ عُثَيْمِ بْنِ كُلَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ ﴾ دا عثيم، عثيم بن کثير بن کليب دې، دلته په سند کښې نسبت الی الجد مذکور دې، لهذا د عن ابيه مصداق کثير شو او د عن جده مصداق کليب، دا خبره د تنبيه قابله وه په دې وجه تنبيه اوکړې شوه.

﴿ قوله أَلْقِ عَنْكَ شَعْرَ الْكُفْرِ ﴾ کليب رضي الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او رسول الله ﷺ ته مې عرض اوکړو چه ما اسلام قبول کړې دې نو هغوی اوفرمائيل، چه د کفر د زمانې د وېښتو حلق اوکړه يا د شعر الکفر نه مراد هغه وېښتهٔ دی کوم چه د کفر علامت او د هغوی شعار دی مثلا شارب طويل يا د سر داسې وېښته لکه چه دلته هندوان په سر باندې غوټه ورکوی.

د دې نه په وړاندې روايت کښې دا دی چه رسول الله ﷺ ورته د اختتان حکم هم اوفرمائيلو، د ختان حکم او په دې کښې اختلاف علماء په عشر من الفطرة والا حديث کښې تير شوې دې خو د باب په دې حديث کښې د غسل ذکر نشته چه په هغې باندې مصنف رحمه الله ترجمة تړلې ده، ممکنه ده مصنف رحمه الله دا په طريقه د قياس ثابتوی چه کله د کفر د زمانې د وېښتو حکم ورکړې شو نو دغه شان د بدن د نورو خيرو هم د غسل په ذريعه باندې لرې کول پکار دی. (جلد اول ختم شده)

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١١٦٨، ١٥٦٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٥/٣) (حسن)